# تسهیلات
# پښتو شرح
# مشکواة

تالیف:- مولانا شاه فیصل فاضل دارالعلوم اسلامیه چارسده

اول جلد (۱)

دشلو (۲۰) خصوصیاتو سره چې لس (۱۰) په کښې دا دي

① پیښوري پښتو سره بین القوسین د قندهاري پښتو د گرانو ټکو اضافه
② د مشکاة د عربي او اردو متداولو ټولو شروحاتو مجموعه
③ په ترجمه کښې بین القوسین د مرقاة المفاتیح داضافي قیوداتو ترجمه
④ دحدیث هرې جملې ته اود هغې ترجمې د آسانتیا دپاره نمبرې ورکول
④ په فهقي اختلافي مسئلو کښې مدلل او آسان مباحث
⑤ د اوږدو احادیثو د متن او ترجمې تقسیم
⑥ دهرحدیث د صحاح سته وغیره څخه تخریج
⑦ د حل اللغات په عنوان سره د مرقاة المفاتیح څخه د مشکلو لغات حل
⑧ دقوله په عنوان سره دحدیث د هرې مشکلې جملې تشریح
⑨ دهرباب په اول کښې دهغې د احادیثو خلاصه
⑩ د کتاب په اول کښې د علوم الحدیث مفیده مقدمه

خورنکي
فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور
موبائل ۰۳۱۵-۹۵۹۵۷۱۷

دکتاب نوم تسهیلات شرح مشکواة

شارح مولانا پروفیسر شاه فیصل

فاضل وفاق المدارس، امدادالعلوم، جامعه اسلامیه چارسده

معاون مترجم:: عبدالکریم صدیقی

**د ملاوید پتې**

- جدید اسلامي کتب خانه خوست
- المصباح کتب خانه کابل
- روڼالیوال کتب خانه جلال آباد
- رحیمی کتب خانه خوست
- حرم کتب خانه کابل
- دیلی کتب خانه تیمرگره
- تاج کتب خانه صوابي
- مکتبه خواجه عبدالله انصاري غزني
- مکتبه دارالاخلاص کابل
- مکتبه رحمانیه قندهار
- مکتبه رحمانیه کوټه
- انوري کتب خانه قندهار
- نعمت کتب خانه کابل
- مکتبه علمیه اکوړه خټک
- حقانیه کتب خانه گردیز
- وطن دوست کتب خانه گردیز
- اِقرأ کتب خانه جلال آباد
- مکتبه معروفیه کوټه
- مکتبه عمریه چمن
- مکتبه عباسیه تیمرگره
- مکتبه امیرحمزه قندهار

# اجمالی فہرست

# د احادیثو د عنواناتو فهرست

# فهرست اختلاف مذاهب



*****

# تقریظات الأعلام

## تقریظ شیخ القرآن والحدیث حضرت مولانا محمد ادریس صاحب
## په دارالعلوم حقانیه (نوښار) او دارالعلوم نعمانیه (اتمانزئ چارسده)

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لله الذی یخرج الحی من المیت ویخرج المیت من الحی،والصلاة والسلام علی من خرج أمته من ظلمات الکفروالعصیان إلی نورالایمان والطاعات، وعلی آله وصحبه وسلم تسلیماً کثیراً.

اما بعد: د ډیرې مودې راسې زمونږ د علاقې هشنغر(چارسده) مولانا شاه فیصل د ترجمې،اوتالیف وتصنیف په میدان کښې د طالبانواومسلمانانو علمی تنده ماتوی اودوی د دربار رسالت د لګولی شوی باغ سره مالوف کوی مولانا صاحب د دارالعلوم اسلامیه چارسده اوامداد العلوم پېښور فاضل دې او زمونږ د حضرت شیخ القرآن والحدیث حضرت مولانا محمد حسن جان مدنی شهیدنور الله مرقده قابل فخر شاګرد دې. فی الحال د پېښورپوهنتون نه په عربۍ کښې د دکتوراه مقاله هم لیکی

**تالیفات**:د دوی تالیفی خدمات په پښتوکښې لکه د نمبر روښانه دی په کومو کښې چې ① تسهیل الهدایه شرح هدایه (۸ جلده)،② منهاج الصالحین شرح ریاض الصالحین(۵ جلده)،③ فوزالمبتدی شرح مختصرالقدوری (۳ جلده) وغیره شامل دی،

**پښتوترجمې**:اودغه شان د ترجمې په میدان کښې د بخاری شرح ① کشف الباری (۲۴ جلده)، ② تفسیرخیرکثیر(۶ شپږ جلده) ③ معارف القرآن (۱۱ جلده) ④ انوارالهلالین ترجمه جمالین شرح جلالین،

**عربی تالیفی خدمات**:بل طرف دعربۍ په تالیفی درباب کښې ئې هم لامبووهلي ده لکه ① ,, صلاة الحنفیه في ضوء أحادیث النبویه،، ② أحکام العبادات فی فقه الأحناف،، ③ تسهیل مرقاة المفاتیح شرح مشکاة المصابیح ④ اواوس ئې په عالمګیری باندې هم کار کړې دې،د کومې چپانی چې شروع ده او انشاء الله ډیره زربه د شپږو اضافی خصوصیاتوسره ستاسو؟په خدمت کښې پیش کړې شی دغه شان سراج المنتهی شرح جامع الترمذی ئې هم کارشروع د تکمیل چې د راروان شوال په میاشت کښې متوقع دې.الله تعالی دې ورته زرترزره د تکمیل توفیق ورکړی

**تسهيلات پښتو شرح مشكاة**: د دوی په دې ديني خدماتو کښې يو نوې خدمت د تسهيلات شرح مشکاة المصابيح په نوم باندې تکميل ته اورسيد، کومه چې په دولس جلدونو باندې مشتمله ده، مولانا موصوف د تسهيلات په مقدمه کښې د ټول کتاب خلاصه په (۲۷) خصوصياتو کښې بيان کړې ده

**د تسهيلات خصوصيات**: په کومو کښې چې بعضې خصوصيات دا دی.

① په عربي کښې د هر باب خلاصه بيانول- ② هر حديث ته عنوان ورکول ③ متن او د هغې ترجمې ته د جملو په اعتبار سره نمبرې ورکول ④ داحاديثو تخريج- ⑤ تشريحي ترجمه ⑥ د راوی مختصر حالات ⑦ د لغاتو حل ⑧ د حديث مشکلو جملو ته د قوله عنوان ورکول- ⑨ په شرح کښې هرې يوې خبرې ته مناسب عنوان ورکول ⑩ د مذاهبو بيان ⑪ د اصول حديث مقدمه ⑫ د اردو د شروحاتو مجموعه ⑬ د مذاهبو جدا فهرس ⑭ د اوږدو احاديثو تقسيم.

**د تسهيلات مقام**: اگرچې ماته د ټول کتاب د مطالعې فرصت ملاؤ نشو خو د بعضې ځايونو د مطالعې نه راته معلومه شوه چې مولانا موصوف په پښتوژبه کښې د تسهيلات په نوم د احاديثو کوم خدمت کړې دې د ستائنې وړ دې، ځکه چې کوم خصوصيات په دې شرح کښې راجمع شوی دی دا خصوصيات د اردو او عربي په نورشروحاتو کښې اگرچې متفرق به وی خو په يو ځائې په يوه شرح کښې هم نشته، بلکه که زه دا اووايم چې دا د اردو د ټولو او عربي د بعضې شروحاتو مجموعه ده نومبالغه به نه وی زما خپلو علمی متعلقينو ته ناصحانه مشوره ده که د احاديثو سره تعلق ساتل غواړئ نو تسهيلات په خپلې کتب خانې بنائسته کړئ، چې تفاولاً مو د تسهيلات په برکت په ټولو دنيوی او اخروی کارونو کښې تسهيلات پيدا شي.

**د قبوليت دعا**: زما د لوی رب نه دعا ده چې د مولانا موصوف ټولو کتابونو ته بالعموم او تسهيلات ته بالخصوص د مقبوليت سهره په سر کړی او په دنيا او آخرت کښې ئې د نجات ذريعه اوگرځوی. آمين

**د نبوی احاديثو خادم په**

① (دارالعلوم حقانيه اکوړه خټک (ضلع نوښار)

② اودارالعلوم نعمانيه اتمانزی (ضلع چارسده)

.....

## تقريظ فضيلة الشيخ عبد الحميد العماسي
## شيخ الحديث بالجامعة المحمدية الإسلامية ببلدة كابول (عاصمة أفغانستان)

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله الذي أرسل رسوله بالهدى، ودين الحق ليظهره على الدين كله و لو كره المشركون، و الصلوة والسلام على جميع الانبياء و المرسلين، لا نفرق بين أحد منهم، و نحن له مؤمنون، خصوصا منهم على أفضل الأنام،محمد و آله و أصحابه الذين نقلوا إلينا الكتاب و السنة، واجتهدوا فيما لم ينص عليه الشارع بأيهم اقتدينا اهتدينا.

وبعد: قال العلامة محمد أنور شاه الكشميري:لا أعرف قوما أسلموا كلهم إلا العرب و الترك و الأفغان، فهذه من نعمه تعالى علينا أن أسلمنا كلنا،فنعم الله على هذا القوم الغيور لا تنقطع كما هو عادته تعالى، بل تدوم و مظهر ذلک أن اوجد فينا علماء عاملين وجاهدين في كل ميادين الحق، وأبرز ما هو لائق ان يبرز، و ألقم لمن أراد أن يلتقم من موائد العلم، و أروى لمن خبق لأن يرتوي من آجام العلم، فمنهم أخونا الشيخ العلامة شاه فيصل صاحب مؤلفات كثيرة،و من نعم الله عليه أن اشتهرت مؤلفاته في حياته في بلاد الأفغان كتسهيل الهداية، و ترجم كشف الباري عما في صحيح البخاري، و درس الترمذي،و تفسير ابن كثير و غيرها كثيرة من الكتب إلي اللغة الأفغانية و طبع مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح، لعلي القاري على منهج جديد معنونا لمسائله،عنواناً مناسباً و استغرق فيما جهد سنين.

وأخيراً أرسل إليّ من تاليفاته الجديدة شرحد على مشكاة المصابيح وسماه ,, تسهيلات شرح مشكات،،في إحدى عشرة مجلداً يريد طباعته، فطالعته فوجدته ما تروي الغليل و تشفي العليل و انقاد الحاسد والغابط، و قعد الغابط وتحيرالحاسد و أسأل الله تعالى أن يتقبل منه سعيه الجميل. آمين

خادم الأحاديث النبوية بالجامعة المحمدية الإسلامية كابول

## تقريظ د شيخ القرآن والحديث

### حضرت مولانا رحيم الله حقاني دارالعلوم زبيريه پېښور ښار

ما د مولانا شاه فيصل صاحب تسهيلات شرح مشكات بعض مقامات مطالعه كړل. ما شا الله مولانا صاحب د عربئ او د اردو شروحاتو نچوړ او خلاصه په نوى ترتيب سره راجمع كړي دي. په شرح كښې چه كوم خصوصيات دى زما په نظر كښې داسې جامع شرح لا تر اوسه پورې چا په اردو يا پښتو كښې نه ده ليكلې.

زما طالبانو ته ويښا ده چه دا شرح د خپلو المارو زينت او د خپلې مطالعې مركز جوړ كړى. د دې په مطالعه سره به لږ وخت كښې د خپل نوې ترتيب په وجه ډير څه په ذهن كښې كينى.

د الله تعالى نه مې دعا ده چه مولانا موصوف ته د نور دينې خدمت توفيق وركړى او دې شرحې ته د دوى د نورو تولو تاليفاتوسره مقبوليت وركړى. آمين

د نبوى احاديثو خادم په دارالعلوم زبيريه (سپيرسانس كالج روډ پېښور)

رحيم الله حقاني

..............................

## تقريظ سماحة الشيخ أبي سعيد النقشبندي محمد فيض الباري

### شيخ الحديث بمدرسة دارالعلوم بانية گلداره باغيچه چمن

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله الذي منّ علينا برسوله، و هدانا به إلى سواء سبيله، و أمرنا بتعظيمه، و فرض على كل مؤمن أن يكون أحب إليه من نفسه و أبويه و خليله، صاحب لواء الحمد و المقام المحمود أبي القاسم محمد بن عبد الله بن عبد المطلب صلى الله عليه و آله و صحبه أجمعين.

أما بعد! فمن منن الله تعالى علينا أنه تعالى وفقنا لخدمة هذا الدين القويم في زمن الفتن، و وفقنا أن نعمل في شتى مجال العلوم الإسلامية،و نكشف عن لؤلؤها المستور نهتدي إلي إبرازها على منصة الظهور، لينفع بها العلماء و الطلباء و عامة المسلمين.

قد سرّحت النظر في بعض المواضع من هذا الكتاب المسمى ((ب-تسهيلات شرح مشكات)) الذى صنفه مولانا شاه فيصل فاضل وفاق المدارس وإمداد العلوم ببلدة بشاور،فنسأل الله تعالى أجراً عظيماً لمؤلف هذا الكتاب الذي جمع اللؤلؤ والمرجان وأن يجعله خالصا لوجهه الكريم إنه سميع قدير وبالإجابة جدير و الحمد لله رب العلمين.

كتبه أبو سعيد نقشبندي محمد فيض الباري غفر له الباري

خادم الحديث النبوي بمدرسة دارالعلوم بانية گلداره باغيچه چمن

## تقريظ فضيلة الشيخ ابي الحنيف محمد امير الرحمن النعماني شيخ الحديث بجامعة أم العلوم جلال آباد (افغانستان)

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله الذي أخرج الناس بنوره من كدورات النفس و جهل الظلمات. و شرف من بين سائر المؤمنين العلماء، حيث قال: ((يرفع الله الذين آمنوا منكم والذين أوتوا العلم درجات)) و الصلوة و السلام على من حُمد و مُدح في أقواله و أفعاله و أحواله أفضل الصلوات و أكمل التسليمات، و على آله و صحبه الذين سبقوا الناس في خدمات الدين و سائر أنواع الخيرات.

أما بعد: فهذا الكتاب المستطاب المسمى (ب- تسهيلات شرح مشكات)كتاب كاسمه مُسهّل للكتاب المشهور ب- مشكوة المصابيح، الذي جمعه و رتبه صاحب التاليفات الكثيرة الشهيرة النافعة،أخونا في الله تعالى مولانا و بالفضل أولانا شاه فيصل حفظه الله تعالى عن الفتن و الحلل، و أطال الله عمره في طاعته و خدمة دينه و جزاه الله خيرا و زاده علماً و توفيقاً، و جعل كتابه هذا و سائر كتبه و خدماته الدينية والعلمية مقبولة بقبول حسن و أنبتها نباتاً حسناً.

آمين آمين لا أرضى بواحدة ------ حتى أبلغها ألفين آمينا

و صلى الله على نبينا محمد و على آله و صحبه أجمعين

أخوكم في الله، العبد أبو الحنيف محمد أمير الرحمن النعماني

خادم علوم القرآن و السنة بجامعة أم العلوم جلال آباد (افغانستان)

١١٢ ربيع الاول ١٤٤١هـ

## تقريظ سماحة الشيخ حبيب الله الحسني شيخ الحديث
## بالمدرسة العربية الإسلامية أنوار العلوم الصديقية والمفتي بها (كوئته)

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله ذي الجود و الآلاء، و صلى الله تعالى على حبيبه خاتم الرسل و الأنبياء، و على آله و أصحابه و أعوانه الأتقياء.

أما بعد: فيقول العبد الأواه خادم الأحاديث و الإفتاء المعتصم بحبل الله القوي حبيب الله الحسني شرح الله تعالى صدره و زينه بحق اليقين:

إني رأيت هذه التشريحات المسماة ((ب-تسهيلات شرح مشكات)) تأليف العلامة صاحب التصنيفات الكثيرة، مولانا شاه فيصل أطال الله تعالى عمره بصحة و سلامة،فوجدتها حقا صريحا فلم أجدها إلا كزهرة فوق ربوة ندية، و أرجو أن ينتفع بها الصغير و الكبير و القاصي و الداني، فأوصي لمن يعتمد على كلامي، أن يتمسك بها تمسكاً حقاً و يتقبلها بقبول حسن، و يشكر للمؤلف المحترم شكراً جزيلاً.

اللهم اجعل سعي مصنفها و مؤلفها مقبولاً و جميع عمله الشرعي مبروراً. و صنيعه مأجوراً، و اجعله فوق كثير من خلقك في الدنيا و الآخرة.آمين ثم آمين الحمد لله أولاً و آخراً.

و أنا العبد الأحقر المحتاج إلى الله تعالى الأكبر،

خادم الأحاديث و الإفتاء بالمدرسة العربية الإسلامية أنوار العلوم الصديقية

ستيلائت تاون كوئته بلوجستان باكستان حبيب الله الحسني عفي عنه

بسم الله الرحمن الرحیم

**مقدمه د مؤلف**

**الحمد لله الذی رفع السماء بغیر عمد، والصلاة والسلام علی الذی عرج به إلی السماء من غیر سند، وعلی أصحابه الذین فی الدین علیهم یعتمد.**

اما بعد: د ډیر وخت راسې مې د جامع ترمذی په شرح سراج المنتهی شروع کړې وه خو په مینځ کښې په کښې عوارضات اومشکلات پیښیږی. د سراج المنتهی د تالیف په دوران کښې د مشکاة المصابیح یوه اردو شرح د ،،توضیحات،، په نوم بازار ته راغله. نوما د هغې پښتو ترجمه شروع کړه خو یوسبب داسې پیدا شو چې ما هغه تکمیل ته اونه رسوله. اواراده مې د خپلې مستقلې شرحې لیکلو اوکړه. چې په دې خصوصیاتو مشتمله وی.

① **دهر کتاب په اول کښې د ضروری مباحثو بیان:** چې کوم نوې کتاب شروع کیږی نو په هغې کښې دهغه کتاب سره متعلق مباحث په کښې بیان شوی دی مثلاً د کتاب الصلاة په اول کښې دا مباحث بیان شوی دی.

۱- په صلاة باندې د طهارت د تقدیم وجه.
۲- د صلاة لغوی معنی
۳- د صلاة اصطلاحی معنی
۴- د مونځ شرطونه او ارکان
۵- د مونځ ارکان
۶- د مونځ حکم
۷- د مونځ د فرضیت دلائل
۸- د سورة بقرې نه د پنځو مونځو د فرضیت اثبات
۹- د مونځ د فرضیت تاریخ
۱۰- د پنځومونځونو په فرضیت کښې حکمتونه
۱۱- د مونځ د فرضیت نه وړاندې د تهجدو د مونځ په فرضیت کښې اقوال.
۱۲ د مونځ د فرضیت نه وړاندې د بل مونځ په فرضیت کښې اقوال.

② **دباب خلاصه بیانول:** د هر باب په شروع کښې مې د باب خلاصه بیان کړې ده. مثلاً چې په دې باب کښې دومره احادیث دی او په دغه باب کښې چې د دغه باب سره څومره مسائل راغلی وی دهغې شمار مې هم کړې دې. چې د دې باب په احادیثو کښې دومره مسائل ذکر شوی دی. او بیا په کومو احادیثو کښې چې دغه مسائل راغلی دی نو په حواله کښې د هغې ارقام ورکړې شوی دی چې مثلاً په د ریح (باد) په وتلو د اودس

ماتیدل د دې باب په فلانی فلانی نمبر احادیثو کښې ذکر شوی دی.

③ **هر حدیث ته عنوان ورکول،** په کوم باب کښې چې کوم حدیث راغلی وی نو اګرچې په هغه حدیث کښې نور مسائل هم ذکر وی خو مونږ هم د هغه باب د مسئلې عنوان ورکړې دې چې په اول نظر سره پته لګی چې په دې حدیث کښې کومه مسئله ذکر شوې ده.

④ **د مشکاة متن په تیبل کښې بندول:** د مشکاة چې کوم احادیث دی هغه مونږ په تیبل یعنی چوکور کښې بند کړی دی چې واضحه ښکاری چې دا د مشکاة حدیث دې.

⑤ **متن اوهغې ترجمې ته د جملوپه اعتبارسره نمبرې ورکول،** زما وراندینې تالیف تسهیل الهدایه شرح هدایه کښې ما د جملة ترجمې نهج خپل کړې وو یعنی د هدایه د متن یوه جمله او وروسته متصل د هغې ترجمه دواړه په تیبل کښې بنده کړې شوې وو. دغه ترتیب دطالبانو دپاره د آسانتیا سبب وو خکه هغوی دا ترتیب خوښ کړلو په تسهیلات کښې مې هم هغه نهج اوطریقه خپل کړه خو دومره فرق په کښې دې چې د مشکواة احادیث پوره په تیبل کښې بندی او وروسته دهغې د ترجمې په عنوان سره ترجمه ده خو په عربی متن کښې چې کومه اوله جمله ده نوهغې ته مو ① نمبر ورکړې دې اوپه ترجمه کښې مودهغې عربی جملې ترجمې ته هم ① نمبر ورکړې دې دغه شان دویمې جملې ② او دریمې جملې ته ③ نمبرات ورکړی دی په دې طریقه کښې عربی متن جدا په تیبل کښې دې اودهغې ترجمه دهغې څخه بهر، خود نمبراتو په ترتیب سره هغه عربی جمله اودهغې ترجمه واضحه اوښکاره ده.چې مبتدی طالب علم ترې هم ډیره په آسانه فائده اخستې شی.

⑥ **د مشکاة احادیثوته نمبرات ورکول:** د تسهیلات څخه وراندې احقر شاه فیصل په مرقاة المفاتیح عربی شرح مشکاة المصابیح باندې د تسهیل کار کړې دې کوم کښې چې دالاندې راتلونکی تسهیلات پیدا کړی شوی دی اوالحمد لله اوس د چهاپ د مراحلو سره تیر شواو بازار ته راغلې دې.

۱- تشكيل المشكاة والمرقاة

۲- وضع العناوين المناسبة للعبارات المهمة

۳- تخريج الأحاديث بالعزو إلى الكتب والأبواب والأرقام

۴- ترقيم الأقوال والروايات والتوجيهات والاحتمالات والمذاهب.

نوپه مرقاة کښې مونږ د مشکاة ټولو احادیثو ته نمبرې ورکړې وې دې دپاره چې په مراجعت او حواله ورکولو کښې آسانتیا وی.نودمرقاة المفاتیح هغه نمبرې مو تسهیلات ته هم منتقل کړې چې افادیت ئې زیات شی.په دې حساب سره د مشکاة ټول احادیث شپږ زره دوه سوه څلور نوی (۶۲۹۴) دی

⑦ **د احاديثو تخريج:** څنګه چې مخکښې د دې ذکر اوشو چې ما په مرقاة المفاتيح باندې د تسهيل کار کړې دې نو په هغه تسهيلاتو کښې د مرقاة د احاديثو تخريج هم دې هسې خو اوس هم په متداول مرقاة باندې د تخريج کار شوې دې خو زمونږ په تخريج کښې ورسره مونږ د کتاب او باب اضافه هم کړې ده چې مثلاً دا حديث بخاري په کتاب الايمان کښې ((باب دعاءکم ايمانکم)) کښې نقل کړې دې په دې کښې دا فائده ده چې زمونږ په پاکستان او افغانستان کښې چې کومې نسخې دی په هغې ارقام نشته نو صرف په رقم باندې مطلوبه حديث معلومول ګران وو دغه مشکل مونږ حل کړو او اوس يو عالم اوطالب په آسانتيا سره هر حديث په فهرس کښې کتلې شی او مطلوبه حديث ته ورتلې شی.

⑧ **تشريحی ترجمه:** په تسهيلات کښې د مشکاة د احاديثو تشريحی ترجمه شوې ده يعنی بين القوسين مې په کښې د معارف القرآن د خلاصه تفسير اومنهاج الصالحين شرح رياض الصالحين پشان داسې اضافی قيودات لګولی دی که يو لوستونکې شرح او نه ګوری نو هم به د حديث په مفهوم او مطلب باندې پوهيږی اوستاسو په علم کښې دې وی چې دا اضافی قيودات مونږ د مظاهرحق داردو ترجمې څخه اخستی دی اوصاحب د مظاهر حق دا اضافی قيودات د مرقاة المفاتيح شرح مشکاة المصابيح څخه اخستی دی په دې اعتبار سره مونږ دا وئيلی شو چې د تسهيلات پښتو ترجمه د مرقاة د اضافی قيوداتوپه رڼا کښې شوې ده. په دې اضافی قيوداتوکښې دا فائده ده بعضې وخت کښې د وخت کمې وی نو د نفس ترجمې په مطالعه سره هم د حديث په مفهوم باندې قاری پوهيدې شی اومطلب ترې اخستې شی.

⑨ **د راوی مختصر حالات:** څنګه چې ما د منهاج الصالحين شرح رياض الصالحين په تاليف کښې د حديث د راوی مختصر تعارف کړې دې دغه شان مې په تسهيلات کښې هم په کوم حديث کښې چې په اول ځل د حديث د راوی نوم راغلی وی دهغه تعارف او پيژندګلو مې کړې ده.

⑩ **د لغاتو حل:** لکه څنګه چې ما د هدايه په شرح تسهيل الهدايه کښې د هر متن څخه روسته د حل اللغات په عنوان سره د ګرانو او مشکلو ټکو معانی ليکلی دی دغه شان مې په تسهيلات کښې هم چې کوم حديث کښې ګران لغات وو دهغې معانی ليکلی دی. اودا طريقه موځکه اختيار کړه چې بعضې وخت د وخت د کمی په وجه په حديث کښې مشکل اوګران ټکی راغلی وی چې هغې لغوی ترجمه ګرانه وی نود حل اللغات په کتلو سره که شرح اونه ګوری هم د حديث په مفهوم باندې پوهيدې شی هسې خو د مشکاة المصابيح د توضيحات څخه علاوه نورې هم ګڼرې شرحې شته دا ټيک ده چې هغوی هم د مشکلو لغاتو حل کړې دې خو په تسهيلات کښې د مرقاة المفاتيح څخه په عربی

کښې د ګرانو ټکو معانی نقل کړی شوی دی او ورسره په پښتو کښې د هغې معانی هم لیکلی شوی دی. دا خصوصیت صرف او صرف د تسهیلات دې د بلې اردو یا پښتو هیڅ شرحې ته دا شرف نه دې حاصل.

① **هر باب احادیثو ته مستقلې نمبرې ور کول:** څنګه چې مونږ مخکښې ذکر کړل چې د مشکاة ټولو احادیثو ته مونږ نمبرې ورکړی دی خو هغه مسلسل نمبرې دی یعنی د اول څخه واخله تر آخره پورې د مشکاة د ټولو احادیثو نمبر، خو د دې څخه علاوه په هر باب کښې چې څومره احادیث دی نو هغې ته جدا نمبرې هم ورکړې شوی دی چې په دې باب کښې دومره احادیث دی او بیا هر حدیث ته دباب په اعتبار سره نمبرات ورکړې شوی دی. هم هغه نمبرات د مرقاة څخه تسهیلات ته نقل شوی دی. اودا نمبرات په خلاصة الابواب کښې ډیر ضروری دی ځکه چې هلته مونږ دا وئیلی دی چې دا مسئله په دې نمبر حدیث کښې ذکر شوې ده. بس دغه مطلوبه مسئله په باب کښې د حدیث نمبر کتلو سره سمدستی ملاویدې شی.

② **د حدیث مشکلو جملو ته د قوله عنوان ور کول:** په هر حدیث کښې چې کومه مشکله جمله وی نو د هغې مفهوم او وضاحت دپاره مونږ هغې ته د قوله عنوان ورکړې دې په دې کښې دا فائده ده چې کله یو قاری حدیث لولی اوپه هغې کښې ورته مشکله جملې په نظر راشی نو په قوله باندې نظر اوچولو سره هغه ته معلومیږی چې په دې عنوان سره د دې جملې په کوم ځائې کښې وضاحت شوې دې. نو ډیر په آسانه خپلې مطلوبه جملې ته ورتلې شی

③ **په شرح کښې هرې یوې خبرې ته مناسب عنوان ور کول:** څنګه چې مخکښې ذکر شو چې د حدیث مشکلې جملې د قوله په عنوان سره ښکاره کړې شوی دی بیا دغې جملې ته په شرح کښې مناسب عنوان ورکړې شوې دې او دا د عنواناتو طریقه مونږ ځکه اختیار کړه چې موجوده وخت کښې عنواناتو ته نا قابل انکار عظمت او حیثیت حاصل دې په یو نظر سره په لاندې عبارت کښې چې څه وی د هغې خلاصه سړی ته په نظر راځی په کثرت عنوانات باندې احقر شاه فیصل د مرقاة الفاتیح په تسهیل کښې هم کار کړې دې. هلته هم تاسو د دې افادیت کتلې شئ

④ **اقوالو مذاهبو وغیره ته ارقام ور کول:** په شرح کښې چې څومره اقوال، مذاهب، روایات، دلائل، وجوه ترجیح وغیره راغلی دی هغې ټولو ته ارقام ورکړې شوی دی چې په دې مسئله کښې دومره مذاهب دی یا دومره توجیهات دی یا دومره اقوال دی او بیا هر یو شمارلې شوې دې.

⑤ **د مذاهبو بیان:** په فقهی اختلافی مسائلو کښې د څلورو امامانو بالخصوص او د نورو نادرو مذاهبو ذکرشوې دې. د مذاهبو په بیان کښې کوشش د دې خبرې شوې دې چې

دنورو امامانومذاهب هم د هغوی د معتبرو کتابونو څخه اوشی ځکه چې بعضې وخت هغوی ته غلط نسبت اوشی مسئله هغه شان نه وی ځکه چې نقل شوی وی په دې سره وخت هم ضائع شی اوغلط فهمی هم پیدا شی په کومو مقاماتوکښې چې په یوه مسئله کښې مذاهب وی نوهغې ته مو «.... کښې مذاهب» عنوان ورکړې دې.

⑪**دمذاهبو بیانولو ترتیب:** مونږ په تسهیلات کښې د مذاهبو په نقل کولو کښې دا ترتیب اختیار کړې دې چې اول مو نور مذاهب ذکر کړی دی او په آخرکښې مو خپل مذهب ذکر کړې دې اودا ترتیب مو ځکه غوره کړې دې. چې د دلائلو په ذکر کولو کښې آسانتیا وی د دې آسانتیا وضاحت په لاندینی عنوان کښې اوګوری.

⑫**د مذاهبو دلائل بیانول:** د مذاهبو په بیان کښې مو دا طریقه اختیار کړې ده اول مو د نورو امامانو دلائل ذکر کړی دی خو په دې کښې ما د متداولو شروحاتو څخه جدا نهج او طریقه اختیار کړې ده په نورو شروحاتو کښې اول د فریق مخالف دلائل ذکر کولی شی دهغې څخه روسته خپل دلائل ذکر کولی شی اودهغې څخه روسته بیا د نورو مذاهبو د دلائلو څخه جوابات ذکر کولی شی.او د جواباتو په بیان کښې دا وئیلی شی چې مثلاً د امام مالک د اول دلیل څخه چې دا حدیث دې دا جواب دې.او د دویم دلیل څخه ئې دا جواب دې.په طریقه طالب باندې دوچنده بوج راځی.یو خو د فریق مخالف د دلیل څخه جواب کوی او بل دا یاد ساتی چې د فریق مخالف اول دلیل کوم یو وو او دویم دلیل ئې کوم یو وو.مونږ دا طریقه اختیار کړې ده چې اول د فریق مخالف دلائل ذکرکړو او ورسره ورسره دهر دلیل جواب هغې سره متصل ذکر کوو.چې قصه ختمیږی. اوپه آخر کښې مو خپل دلائل کښې کړی دی.

⑬**په شرح کښې حوالې:** په شرحه کښې چې کومې خبرې شوی دی نواول خو مونږ حواله ورکړې ده.خو که حواله نه وی نو تاسو دا فرض کړئ چې دا خبره په مرقاة المفاتیح کښې ده.ځکه چې زما تسهیلات زیات ماخذ هم مرقاة المفاتیح دې.

⑭**د اصول حدیث مقدمه:** د دې خطبې په اول کښې ذکرشو چې ما د سراج المنتهی په نوم د جامع ترمذی شرح شروع کړې ده خو تر اوسه پورې د عوارضو ښکار ده د هغې په اول کښې ما یوه مقدمه لیکلې ده.هم هغه مقدمه مې دلته تسهیلات ته منتقل کړه.اوپه اول جلد کښې مو شامل کړې ده.خودا یاد ساتئ چې دا مقدمه د شیخ الاسلام علامه مفتی تقی العثمانی مدظله العالی د تقریر ترمذی مقدمه ده چې ما پښتو ته ترجمه کړې ده.او په تسهیلات کښې مې لګولې ده.

⑮**کتابونو بابونو ته نمبر ورکول:** په مشکاة المصابیح کښې چې څومره کتابونه دی هر یو کتاب ته مو نمبر ورکړې دې دغه شان په مشکاة المصابیح کښې ټول (۳۰) کتابونه

دی.اوبیا په هر کتاب کښې چې څومره بابونه دی هغه ته موهم ارقام ورکړی دی چې په دې کتاب کښې دومره بابونه دی مثلاً په کتاب المناقب کښې (۱۴) بابونه دی دغه شان په هر یو کتاب کښې شمار کړه.

⊛**د هرې صفحې په اول کښې د کتاب او باب عنوانات مع ارقام**: د هرې صفحې په اول کښې چې کومه اولنۍ کرښه وی په هغې باندې تاسو ته د کتاب نوم او رقم دغه شان د باب رقم او عنوان ښکاری او په دغه باب کښې چې څومره احادیث دی د هغې شمار هم په کښې هم ذکر شوی دې.

⊛**د اردو د شروحاتو مجموعه**: په اردو کښې چې څومره شروحات دی لکه مظاهر حق، خیر المفاتیح، خیر التوضیح، تنظیمات الاشتات وغیره د هغې ټولو څخه په دې شرح کښې استفاده شوې ده که څوک د دغې مذکوره شروحاتو ددې تسهیلات شرح مشکات سره موازنه اوکړی نو د رڼا ورځ پشان به ورته ښکاره شی.د دې څخه علاوه د مرقاة اشعة اللمعات بذل المجهود وغیره عربی شروحاتو څخه هم د تسهیلات په تالیف کښې استفاده شوې ده.خلاصه دا چې اوس نه مظاهر حق ته ضرورت پاتې شو اونه نورو شروحو ته بلکه د اردو د ټولو شروحاتو مجموعه د تسهیلات په شکل کښې ستاسو وړاندې ده.

⊛**د مذاهبو جدا فهرس**: زمونږ په مدارسو کښې عام اختلافی مسائل اوبالخصوص فقهی اختلافی مسائل ډیر په تفصیل سره وئیلی شی.اواکثریه وفاق المدارس وغیره په امتحاناتو کښې هم راځی.ددې د طالبانو اومدرسینو د آسانتیا په غرض مود اختلافی مسائلو جدا فهرس هم جوړ کړې دې چې د اختلافی او اهمو مسائلو په لټون کښې څخه مشکل نه وی.

⊛**قندهارۍ اوپیښورۍ پښتو**: زمونږ پښتانه رونړه دپښتوژبې د لهجې په لحاظ سره په دوو حصو کښې تقسیم دی قندهارۍ پښتو اویوسفزۍ (پیښورۍ) پښتو ددې وجې کوم کتابونه چې په پیښورۍ پښتو کښې لیکلی شوی وی نو د کوټې چمن قندهار پښتانه پرې صحیح نه پوهیږی اوکوم کتابونه چې په قندهارۍ پښتوکښې لیکلی شوی وی نو د خیبرپختونخوا اوجلال آباد خوست وغیره پښتانه پرې صحیح نه پوهیږی. بالخصوص په کوټه چمن قندهارکښې چې کوم طالب علم کتاب اخلی نواول پښتنه کوی چې په کومه پښتوکښې لیکلې شوې په قندهارۍ کښې که پیښورۍ کښې،چې د قندهارۍ پښتو نوم واوری نووانې راوې ښایه اوچې د پیښورۍ پښتو نوم واوری نو په تندی ئې دخفګان آثار ښکاره شی ددې مشکل حل کولوډپاره فی الحال مونږ د احادیثو په ترجمه کښې د قندهارۍ پښتو اهتمام کړې دې اوڅه وخت پس به انشاء الله په پوره کتاب کښې د پیښورۍ پښتو سره بین القوسین د قندهارۍ پښتو ټکی هم ورکوو چې د قندهاریانو

روړو گیله هم ختمه شي.

⑨ **په احادیثو عنواناتو ته ارقام ورکول:** تقریباً د هر حدیث څخه وړاندې مونږ په پښتو کښې عنوانات لګولی دی چې کوم حدیث ته عنوان ورکړې شوې دې نو د هغه حدیث رقم مو پورته د هغې حدیث عنوان ته هم ورکړې دې دا په دې غرض چې دولس آخری جلد کوم چې مونږ د ،،مفتاح حل الصحاح،، په نوم مرتب کړې دې. په هغې کښې د دې ارقامو څخه فائده واخستې شي.

⑩ **د اوږدو احادیثو تقسیم:** په مشکاة کښې چې کوم احادیث اوږده دی او په ترجمه کښې ئې خپله مطلوبه ترجمه پیدا کول ګران وی نو په آسانتیا سره د خپل مطلوبه ترجمې پیدا کولو په غرض مونږ اوږده احادیث د موضوع په لحاظ سره په مختلفو حصو کښې تقسیم کړل. اوبیا مود هرې حصې سره د ترجمې څخه روسته د هغې حل اللغات هم اولګول چې د مشکل تکی په لټون کښې هم آسانتیا وی.

⑪ **د هرې صفحې په اوله کرښه د کتاب او باب خودله:** تاسوته به د هرې صفحې په اوله کرښه کښې کتاب، باب په نظر راځی مثلا کتاب الطهارة، باب التیمم دغه شان دا سلسله د کتاب د آخره پورې روانه ده په دې کښې دا فائده ده چې که یو قاری فهرس ته لاړ هم نشی نو د اولې صفحې څخه دا معلومولې شی چې دا کوم کتاب او کوم باب دې.

⑫ **تسهیلات د مرقات خلاصه:** په تسهیلات کښې مونږه په اکثرو مباحثو کښې حواله نه ده ورکړې ددې غټه وجه دا ده چه د تسهیلات اولنې ماخذ مرقاة المفاتیح دې نود کوم بحث حواله چې تاسوته ملاؤ نه شی دا اوګڼرئ چې دا د مرقات نه اخستې شوې دې. البته د کومو نورو کتابونو نه چې نقل شوې دې نو هلته مونږه حواله ذکر کړې ده مثلا اشعة اللمعات وغیره.

**دعا:** د دې مقدمې څه حصه مې په حرم مکی کښې شروع کړې وه او بیا د ماخوستن د مانځه څخه روسته په تاخانه کښې ناست ووم او تکمیل ته مې اورسوله دا ۳۱ مارچ ۲۰۱۹ کال وو. په دغه وخت کښې لا په تسهیلات کار شروع وو. خود تبرک په غرض مې مقدمه هلته اولیکله چې الله تعالی په کښې برکت واچوی او مقبولیت ورته حاصل شی. اګرچې په مقدمه کښې نوی اضافات هم شوی دی خوشروع ئې په حرم مکی کښې شوې وه. ستاسو څخه دا سوال کوم که د تسهیلات څخه مو څه فائده واخستله نو ما احقر (شاه فیصل او ماسره په دې شرح کې ټول معاونین) په خپلو دعاګانو کښې یاد ساتئ دوه ورځې ژوند دې معلومه نه ده چې کله به راته د اجل فرښته راځی او د دې فانی دنیا څخه به د کفن په پرده کښې مخ پټوم. الله دې زمونږ ایمان نصیب کړی او دا تسهیلات دې راته د قبر او حشر په مشکلاتو کښې د تسهیلات سبب جوړ کړی.

ستاسو د دعاګانو محتاج   عاجز شاه فیصل   ۲۸ ستمبر کال ۲۰۲۰

## مقدمه

## (يعني د مشكاة المصابيح سره متعلقه ابتدائي مباحث)

**په مشكوة اومصابيح كښې د فرق وجوهات:**

① په مصابيح كښې دَحديث دَمتن نه وړاندې دَ صحابي ذكرنه وو. صاحب مشكوة رحمه الله دا التزام اوكړو چه دَهرحديث نه وړاندې ئې دَهغه صحابي رضي الله عنه نوم مبارك ذكركړو چاچه داحديث دَ رسول الله ﷺ نه روايت كړې دې.

② په مصابيح كښې دَحديث په آخره كښې دَمخرجينو حواله بالتعيين ذكر نه وه صاحب مشكوة رحمه الله دَهرحديث په آخره كښې دَ متعين مخرج حواله وركړې ده.

③ مصابيح اومشكوة دواړه خوپه دې امر كښې يوشان دى چه دَ احاديثو پوره سندونه په دې كښې ذكرنه دى فرق دا دې چه په مصابيح كښې تعيين دَمخرج هم نشته اوپه مشكوة كښې شته دې او تعيين دَمخرج په منزله دَ پوره سند ذكركولو دى.

④ په مصابيح كښې هرباب په دوو حصوكښې تقسيم وو دَړومبې حصې احاديث دَ من الصحاح په عنوان سره او دَ دويمې حصې من الحسان په عنوان سره شروع كړې شوى دى. په مشكوة كښې دابدلون كړې شوې دې چه ړومبې حصه الفصل الاول سره تعبير كړې ده او دويمه حصه الفصل الثاني سره احاديث هم هغه دى كوم چه په مصابيح كښې وو په فصل اول كښې دَ شيخينو او په ثاني كښې دَغيرشيخين روايات دى. دَ غيرشيخين احاديثو ته حسان وئيل ياخوتغليبًا دى يادَهغوى خپله اصطلاح ده

⑤ دَمصابيح دَهرباب صرف دوه حصې وې صاحب مشكوة رحمه الله په اكثرابواب كښې دَ دريمې حصې اضافه فرمائيلې ده كوم چه په الفصل الثالث سره تعبيركوى. په دې فصل كښې ئې چه كوم احاديث راوړى دى هغه په مصابيح كښې نه وودَې اضافه ده.

⑥ په مصابيح كښې أصالةً صرف مرفوع حديثونه ذكركړې شوى دى صاحب مشكوة رحمه الله په الفصل الثالث كښې موقوف اومقطوع احاديث هم ذكركړى دى.

⑦ په مصابيح كښې بعض احاديث مختصر وو صاحب مشكوة رحمه الله خو چرته دا هم مختصر پريخودل اوچرته ئې دَبعض اسبابو اودواعى په وجه دَدغه مختصر احاديثو تكميل كړې دې.

⑧ په مصابيح كښې بعض احاديث مكرر وو صاحب مشكوة رحمه الله تكرار ختم كړې دې.

⑨ صاحب مصابيح بعض احاديث الصحاح دَ عنوان لاندې ذكر كړى وو دَ كومې نه چه معلومه شوه چه دادَ شيخين حضراتو احاديث دى ليكن صحيح بخاري، صحيح مسلم، جمع بين الصحيحين للحميدي اوجامع الاصول نه په يو كښې هم دَ نه ملاويدو په وجه

صاحب مشكوة ﷫ په بعض احاديثو كښې دَغيرشيخين حواله وركړې ده.

⑩ بعض احاديث دَمصابيح په دويمه حصه كښې وو دكومې نه چه دامعلومه شوه چه دا احاديث به په صحيحين كښې نه وي ليكن په دې كښې بعض احاديث صاحب مشكوة ﷫ ته په صحيحين كښې ملاؤشو په دې وجه ئې دَ شيخين حواله وركړه.

⑪ اكثر په مصابيح كښې دَ حديث نور لفظ وي اومشكوة كښې نور. دَدې وجه داچه په مصابيح كښې پيش كړې شوې لفظونوحواله صاحب مشكوة ﷫ ته ملاؤنه شوه په دې وجه ئې دَحديث هغه الفاظ پيش كړل دكوم سند اوحواله چه هغوى ته ملاؤ شوه.

⑫ دَمصابيح بعض احاديث نقل كولوسره كله صاحب مشكوة ﷫ داسې وائي چه ما وجدت هذه الرواية فى كتب الاصول ياداسې وائي وجدت خلافهافيها. داهغه وخت فرمائي كله چه دَمصابيح روايت بعينها دَ تفتيش تام نه پس هم هغه ته ملاؤنه شي په دې صورت كښې چه دَ روايت كوم اختلاف وي هغه نقل كوي.

⑬ دَمصابيح دَ بعض احاديثومتعلق شيخ بغوى ﷫ داوئيلي دي چه داضعيف دې يا غريب دې يائې بل څه وصف بيان كړې دې. صاحب مشكوة ﷫ په داسې موقع باندې دا طريقه اختياركړې ده چه په عام توګه دَ ضعف يا دَ غرابة وغيره وجه ئې بيان كړې ده اوبعضې ځائې كښې ئې وجه نه ده بيان كړې دَ نه معلوميدو دَ وجې نه يا په دې وجه چه په هغې كښې اختلاف وو اوده طول ته نه تلل غوښتل.

⑭ په كتب اصول كښې كله دَ يوحديث متعلق صحيح يا حسن يا غريب ياضعيف يامنكروغيره څه صفت بيان كړې شوې وي ليكن صاحب مصابيح دا نه وي نقل كړې صاحب مشكوة هم په عدم نقل كښې دَهغوى اتباع كوي ليكن چرته چرته دَ څه غرض دَ وجې نه دانقل كوى هم.

⑮ صاحب مشكوة دَ بعض احاديثو په آخره كښې دَ مخرج حواله دَ نه معلوميدو دَ وجې نه بياض يعنى خالي ځائې پريخودې دې.

**دَذكرصحابى ﷛ فوائد:** صاحب مشكوة ﷫ دَهريو روايت په شروع كښې دَصحابى ﷛ ذكر كوى دَچانه چه دغه حديث روايت وي. دَصحابى نوم ذكركولوسره ډيرفائدې حاصليدې شى مثلاً ① دَ ناسخ اومنسوخ په پيژندګلوكښې امداد ملاويږى. مثلاً په يومسئله كښې دوه متعارض احاديث زمونږ مخې ته دى اوس به غور كولې شى چه په دې كښې كوم يوحديث متقدم دې اوكوم يو متاخر دې. متأخرناسخ وى. دَدغه وړانديوالي اوروستوالي پته لګولوكښې دَ صحابى په ذكرسره امداد ملاويدې شى **مثلاً** يوحديث روايت كونكې صحابى دَ پخوانه په اسلام دې اودويم حديث نقل كونكې

صحابي روستو اسلام راوړلې دې. په دې سره به څه اندازه اوشي چه کوم يوحديث وړاندې دې.

② بله داچه کله په دوو احاديثوکښې تعارض وي دَ صحابي په ذکرسره يوته ترجيح ورکولې شي هغه داسې چه مثلاً دَ يوحديث روايت کونکې صحابي فقيه وي اودَ دويم حديث روايت کونکې صحابي فقيه نه وي. تول په تول صحابه کرام عادلان خو دي ليکن دَهر صحابي فقيه کيدل ضروري نه دي. دَ فقيه روايت ته دَغيرفقيه په روايت باندې ترجيح ورکولې شي. دَصحابي په ذکرسره په دې کارکښې امدادملاويږي.

③ کله دَ صحابي په ذکرسره دَ حديث دَ قوت يا ضعف هم اندازه لګيدلې شي. هغه داسې چه دَ يوصحابي حديث کوم چه وړاندې تلې دې هغه خو په ښه سندسره رسيدلې دې. په طالبانوکښې مشهوردي چه دا دَ ښه سندوالا دې. اودَ بل صحابي حديث چه په کوم سندسره وړاندې رسيدلې دې هغه سند کمزورې دې اوطالبانوته دَدې خبرې هم پته ده چه دا حديث په کوم سندسره رسيدلې دې هغه کمزورې دې. دَصاحب مشکوة دَ صحابي ذکرکولوسره په دې پيژندګلو کښې امدادملاويږي.

**دَ مخرج دَ تعيين فوائد:** صاحب مشکوة دا التزام کړې دې چه دَمخرج تعيين کوي. په دې کښې ډيرفوائددي:

① په اجمالي توګه باندې دَ سند حالت معلوميږي څکه چه دکومو مخرجينو او مصنفينو حوالې ورکوي دَهغوي شرائط معروف دي مثلاً علماء اوطلباء پوهيږي چه امام بخاري رحمه الله دَ کوم شرط او معيار مطابق حديث راوړي. کله چه مصنف وائي رواه البخاري نوپه دې سره مونږ اندازه کولې شو چه دادَدې معيارحديث دې. على هذاالقياس.

② مخرجينو قلت اوکثرت معلوميږي کله کله صاحب مشکوة يوحديث نقل کوي او دَ متعدد مخرجينو حوالې ورکوي په دې سره دَدې حديث باره کښې اطمينان زياتيږي چه دَدې تخريج کونکي دومره حضرات دي.

**قواعدوفوائد "همزة ابن"**

په ديباچه کښې لفظ ابن ډير استعمال شوې دې او هسې هم دَحديث په کتابونوکښې لفظ ابن په کثرت سره استعماليږي. عموماً دَدې دَقواعدونه طالبان ناخبره وي. په دې وجه دَدې لفظ باره کښې اهم فوائد وړاندې کول مناسب دي.

① دَ لفظ ابن همزه وصلي ده اودَ همزه وصلي عام قاعده داده چه کله په وسط دَ کلام کښې واقع وي نو په ليکلو کښې پاتې کيږي او په لوستلوکښې پريوځي.

② په قاعده مذکوره باندې په درج کلام کښې دَ راتلو په صورت کښې دَ ابن همزه په کتابت کښې راتلل پکاردي صرف په تلفظ کښې پريوتل پکاردي ليکن دَابن دَ استعمال

يو خاص صورت دادې چه په کوم کښې دَدې همزه تحفيفاً دَ کتابت نه هم غورزولې شي. هغه صورت دَ استعمال دادې چه ابن دَ علمين متناسلين په مينځ کښې واقع وی يعنی رومبې علم څوئی اودَ ابن نه پس والا علم پلار يامور وی اودا «ابن» دَ رومبې علم صفت جوړيږی اودَ بل طرف ته مضاف وی. په داسې صورت کښې دَ ابن همزه په ليکلو کښې هم غورزولې شی لکه محمد بن اسماعيل محمد څوئی دې دَاسماعيل دا علمين متناسلين شو ابن دمحمد صفت او دَاسماعيل طرف ته مضاف دې په دې وجه به دلته دَدې همزه نه شی لوستلې اونه به ليکلې شی. په مشکوة شريف کښې چه دَ څومره محدثينو حضراتو نومونه ذکرکړې شوی دی په ټولو کښې داقاعده چليږی. په دې صورت کښې همزه خطاً غورزولو وجه داده چه دا ترکيب په عربو کښې په کثرت سره استعماليږی اوکثرت استعمال دَ خفت تقاضا کوی. په لوستلوکښې خودَدې همزه پريوتل وو نور تخفيف دا اوشو چه په ليکلوکښې ئی هم اوغورزوله.

③ که چرې لفظ دَ ابن دَ علمين متناسلين په مينځ کښې وی اومذکوره شرطونه هم پوره وی خولفظ ابن دَ کرخې په شروع کښې راځی نوبيادَدې همزه ليکلې کيږی.

④ په صورت مذکوره کښې يوتخفيف داهم کيږی چه دَابن نه وړاندې علم که قابلِ تنوين وی نودَدې تنوين هم غورزولې شی لکه محمد بن اسماعيل کښې محمد منصرف اَوقابلِ تنوين دې په دې باندې تنوين تخفيفاً غورزولې شوې دې.

⑤ که چرې ابن دَعلمين متناسلين په مينځ کښې خو راغلې دې ليکن دَ رومبې صفت نه وی بلکه دَ هغې نه خبر وی نودَ ابن همزه ليکلوکښې نه پريوځی ليکل ضروری دی لکه زيدٌ ابن عمرو کله چه ابن عمرو مرکب دَ زيد خبر جوړول مقصودوی «زيددَعمرو څوئی دې» اوس به دَ ابن همزه صرف په تلفظ کښې پريوځی په کتابت کښې به راځی.

⑥ محمدبن يزيدابن ماجه دَ مشکوة شريف په دې عبارت کښې دوه ابن دی دَ رومبې ابن الف ليکلوکښې غورزول پکاردی ځکه چه ددَ علمين متناسلين په مينځ کښې دې محمدڅوئی دې دَ يزيد ليکن دَ دويم ابن الف ليکل پکار دی ځکه چه دا دَ علمين متناسلين په مينځ کښې نه دې. يزيددَ ماجه څوئی نه دې بلکه دَهغه عين دې دَ يوقول مطابق او خاوند دې دَدويم قول مطابق په دَې وجه دا ابن ماجه دَ يزيدصفت نه شی جوړيدې په دې وجه په دې باندې دَتخفيف قاعده مذکوره نه شی لګيدې. دَدې الف ليکل پکاردی لکه چه ملاعلی قاری رحمه الله په مرقات [ص٢٥ج١] کښې فرمائی «باثبات ألف ابن خطاً فإنه بدل من ابن يزيد ففي القاموس ماجه لقب والد محمدبن يزيد صاحب السنن لاجده وفي شرح الأربعين إن ماجة اسم أمه»

حاصل دادي چه دويم ابن دَ يزيدصفت نه شي جوړيدي بلکه ابن يزيدنه بدل دي محمدځوئی دَ يزيد يعنی ځوئی دَ ماجه دانبه ذهن کښې اوساتئی. محمدبن يزيدابن ماجة غونډې تراکيب دَ حديث په کتابونوکښې نور هم ډير ملاويږی مثلاً

① عبدالله بن عمرو ابن ام مكتوم ﷺ عمرو دَام مكتوم ځوئی نه دې بلکه خاوند دې، عمرو دَعبدالله دَ پلار نوم دې اوام مکتوم دَ مور دَ دويم ابن الف ليکل پکاردی.

② عبدالله بن ابی ابن سلول. سلول دَعبدالله مور او ابی ښځه ده.

③ عبدالله بن مالك ابن بحينة. بحينة دَعبدالله مور دَمالك ښځه ده.

④ محمد بن علی ابن الحنفية. حنفيه دَ محمدمور اودَ حضرت علی ﷺ بی بی ده.

⑤ إسمعيل بن ابراهيم ابن عُلَيّة. عليه دَ ابراهيم بی بی اودَ اسمعيل مور ده.

⑥ إسحاق بن ابراهيم ابن راهويه. راهويه هم دَ ابراهيم لقب دې. (١)

**دَ لفظ ماجه تحقيق:** لفظ ماجه دَجيم په تخفيف سره دې په دې باندې تشديدلوستل غلط دی. محمدبن يزيد ابن ماجه متعلق په عام توګه دَ ناخبرئی دَ وجې نه داګنړلې کيږی چه ماجه دَمحمد نيکه او يزيدئی پلار دې حالانکه داغلط دی يزيدخودَمحمد پلار دې ماجه دَ يزيدپلار اودَ محمدنيکه نه دې نو بيادَ ماجه دَ يزيداو دَهغه دَ ځوئی محمدسره څه رشته ده؟ په دې کښې دوه رائې دی يودا چه ماجه دَ يزيد ښځه اودَمحمد (صاحب سنن ابن ماجه) مور ده په دې صورت کښې په يزيد اوماجه کښې علاقه دَ زوجيت ده. دويمه رائې داده چه ماجه دَمحمد دَ پلار يزيد لقب دې په دې صورت کښې ماجه او يزيدهم دَ يوسړی دوه نومونه دی. يزيد دَ محمددَ پلار علم دې اوماجه هم دَدې لقب اوعرف دې اوس په يزيداوماجه کښې علاقه دَ عينيت ده.

په تاريخی حيثيت سره په دې کښې کومه يوه رائې صحيح اووزنی ده دَدې دَمکمل تفصيل خودا موقع نه ده البته مختصراً دومره خبره ياد لرئی چه په دې کښې هم اختلاف دې دواړو طرفونه تصحيح ملاويږی. علامه سيد مرتضی زبيدی ﷫ دَ بعض حکماء نه دَ قول اول (ماجه دَ صاحب سنن محمدمورده) تصحيح نقل کړې ده. چنانچه په تاج العروس شرح قاموس کښې فرمائی: ((**وهناك قول آخروصححوه وهي أن ماجة اسم لأمه والله أعلم**)) (٢) او په دې باره کښې يوبل قول هم دې اودَهغې هم علماؤ تصحيح کړې ده چه ماجه دَهغوی دَ مور نوم وو. والله اعلم

---

١) شرح مسلم للنوی ص۶۸ ج۱.

٢) امام ابن ماجه اوعلم حديث مؤلفه حضرت مولانا عبدالرشيدنعمانی ص ۱.

شاه عبدالعزیز محدث دهلوی رحمه الله بستان المحدثین [۱] کښې هم داصحیح ګرځولې دی. نواب صدیق حسن خان صاحب هم خپل کتاب الحطة بذکر الصحاح الستة او اتحاف النبلاء المتقین کښې بعینه هم دغه فرمائیلی دی. (چه ماجه دَ محمدمورده) مګر شاه عبدالعزیز محدث دهلوی رحمه الله په عجاله نافعه کښې په صفا لفظونو کښې تصریح کړې ده چه ماجه دَهغه دَ پلار یزید لقب دې دَمحمددَمور نوم نه دې [عجاله نافعه ص۲۳]
شاه صاحب رحمه الله چه په عجاله نافعه کښې کوم څه لیکلی دی دَاکثرعلماؤ تصریحات هم دَدې موافق دی. حقیقت دادې چه دَدې بحث دَ فیصله کولوحق دَ ټولونه زیات مؤرخین قزوین ته دې ځکه چه امام ابن ماجه رحمه الله پخپله قزوینی دې. صاحب البیت ادری بما فیه دوې (مؤرخین قزوین) بیانات هم دَدې تصویب کوی چه ماجه دَیزیدلقب دې. چنانچه محدث رافعی رحمه الله په تاریخ قزوین کښې دَامام ابن ماجه رحمه الله په تذکره کښې لیکی چه ((أنه محمدبن یزیدوأن ماجة لقب یزید)) [۲]
دَهغه نوم محمدبن یزید دې اوماجه دَ یزید لقب دې. اوحافظ ابن کثیر رحمه الله په البدایه والنهایه کښې دَحافظ خلیلی په حواله چه دَ قزوین مشهور مورخ دې نقل کړی دی چه ماجه دَ یزید عرف اولقب وو.[ البدایه والنهایهص۵۲ج۱۱]
دَ ټولو نه زیات دا چه په دې باره کښې پخپله دَ امام ابن ماجه رحمه الله دَ ټولونه مشهورشاګرد دَ حافظ ابوالحسن بن القطان بیان موجود دې په کوم کښې چه هغه په ډیر زیات جزم سره تصریح کوی چه ماجه دَهغوی دَ پلار لقب وو. ښکاره خبره ده چه دَدې تصریحاتو په موجودګئ کښې اوس په دې باره کښې هیڅ شبه نه پاتې کیږی چه ابن ماجه په حقیقت کښې دَ هغوی دَپلار لقب وو. هم په دې وجه امام نووی رحمه الله تهذیب الأسماء واللغات کښې اوعلامه مجد الدین فیروز آبادی القاموس المحیط کښې اوعلامه ابوالحسن سندهی شرح ابن ماجة کښې صفا تصریح کړې ده چه ماجه دَهغوی دَ پلار لقب وو نیکه ئې نه وو. په داسې صورت کښې دَ املاء دَ قواعدو مطابق ابن ماجه کښې ابن الف سره لیکل پکاردی دې دَپاره چه دادَ محمد صفت اوګنړلې شی دَ یزیدیا دَ عبدالله صفت اونه ګنړلې شی

**دَ"الجمع بین الصحیحین للحمیدی" تذکره:** دیباچه مشکوة کښې "الجمع بین الصحیحین للحمیدی تذکره کړې شوې ده. دَحمیدی نه مراد ابوعبدالله بن ابی نصر حمیدی اندلسی دې. دَ ظاهریه مذهب طرف ته نسبت په وجه دوی ته ظاهری هم وائی. دوی په اندلس مصر شام عراق او حرم شریف کښې دَ حدیث سماعت کړې دې. دَابن حزم ظاهری هم

---

۱) دَتفصیل دَپاره ص۲۹۸.
۲) تهذیب التهذیب ص۵۳۲ج۹.

شاګرد دې. دَ ابوعبدالله قراعي، ابن عبدالبر، ابوبکر الخطيب او دَنورو محدثينونه ئې استفاده کړې ده. [بستان المحدثين فارسي اردو ص۲۱۲]

دوی ډير پرهيزګار اوعفيف الطبع وو. دَدوی دَ عفت اندازه په دې واقعه سره لګولې کيدېشي چه يوځل ابوبکربن ميمون دَهغوی حجرې ته راغلو اودروازه ئې اوټکوله. دَهغوی دَ څه مشغولتيا په وجه هغه ته خبر اونه شو اوڅه جواب ئې ورنه کړې شو ابوبکربن ميمون دا اوګنړل چه ممانعت اونه شو نو هم اجازت به وی. دننه ئې تشريف يوړو. دَ حميدی رحمه الله پتون ښکاره وه. په هغوی دا ډير بد اولګيدل اوتر ډيره وخته پورې ئې داسې وينا کوله او ژړل ئې چه دَ کله نه ماته تميز اوهوش راغلې دې تردې وخته پورې زما پتون چا بربنډ نه دې ليدلې. [ايضاً ص۲۱۳]

**ولادت:** دَهغوی دَ ولادت په سلسله کښې په بستان المحدثين کښې دی: *قوله وور عشرهٔ اولی از قرن خامس است* يعنی دَهغوی پيدائش دَ قرن خامس په عشره اولی کښې شوې. حاشيه بستان المحدثين کښې دَ ابن خلکان په حواله نقل کړې شوی دی چه ۴۲۰هجری نه وړاندې پيدا شوې دې.

**وفات:** دَهغوی وفات ۱۷ذوالحجه ۴۸۸هجری کښې شوې دې. هم دغه تاريخ وفات بستان المحدثين (۱)کښې نقل کړې شوې دې. اومرقات [ص۳۴ج۱. کښې او دَ لمعات اودَ التنفيح په حاشيه کښې په حواله دَتعليق الا لبانی دَهغوی دَوفات کال ۴۸۰ليکلې شوې دې.

**کرامت:** دَهغوی (۲) دَوفات نه وړاندې څوځل دَ ښار لوئی افسر مظفر ته وصيت کړې وو چه ما بشرحافی سره خښ کړئی ليکن هغه دَ څه وقتی عذر دَ وجې نه هغوی هلته خښ نه کړې شو بلکه چرته بل ځائی کښې ئې دفن کړو. يوه ورځ هغه په خوب کښې حميدی رحمه الله اوليدو چه هغه دَدې خبرې ګيله کوله. چنانچه هغه دَ مجبوراً دَ صفرمياشت کال ۴۹۱ هجری کښې هغه دَ دغه ځائی نه منتقل کړو او بشر حافی سره ئې خښ کړو. هغه وخت دَهغوی داکرامت ښکاره شو چه دَهغوی کفن بالکل تازه وو اوبدن ئې بالکل صحيح سالم وو اودَهغوی دَبدن مبارك نه تر ډيره لرې پورې خوشبوئی خوريدله.

**دَ هغوی مفيد اشعار:** بستان المحدثين کښې دَهغوی ډير زيات مفيد اشعار نقل کړې شوی دی. په هغې کښې دوه شعرونه دلته نقل کولې شی چه په حقيقت کښې ډير نافع او مفيد دی:

لقاء الناس ليس يفيد شيئا … سوى الهذيان من قيل وقال
فأقلل من لقاء الناس إلا … لأخذ العلم أو إصلاح حال

---

۱) بستان المحدثين ص ۲۱۴. عمدة القاری ص۱۸ج۱.
۲) بستان المحدثين ص ۲۱۴.

یعنی دَ خلقو ملاقات څه نفع نه رسوی سوا دَتاوئیلو ما وئیلو اودَ فضول خبرونه، نودَ خلقو ملاقات کم کړه مګر هغه ملاقات چه دَعلم حاصلولودَپاره وی یادَ اصلاح احوال دَپاره وی.

تنبیه: داحمیدی دَ چا تذکره چه کولې شی اوچاچه الجمع بین الصحیحن تصنیف کړې دې. دې دَامام بخاری رحمه الله نه ډیره موده پس تیر شوې. یوبل حمیدی هم دې چه دَ امام بخاری رحمه الله استاذ دې. امام بخاری رحمه الله په خپل صحیح کښې دَټولونه اول هم دَهغه حدیث راوړلې دې دَهغه نوم عبدالله بن الزبیر رحمه الله دې دَدوی انتقال ۲۱۹هجری کښې شوې دې. په دې دواړو کښې په عام توګه اشتباه راځی.

**دَ جامع الاصول تذکره:** په دیباچه دَمشکوة کښې دَ جامع الاصول هم ذکرراغلې دې. دادَ ابن الاثیر الجزری تصنیف دې په کوم کښې چه هغه دَ صحاح سته احادیث راجمع کړی دی او دَ ابواب ترتیب ئې دَ حروف تهجی په لحاظ سره کیخودې دې. دا ډیر جامع اومفید کتاب دې اودَ دې نه استفاده هم آسانه ده. علامه یاقوت رومی دَدې کتاب دَ تعارف نه پس لیکلی: «**أقطع قطعًا أنه لم يصنف مثله قط ولا يصنف**» (۱) یعنی زما پوخ یقین دې چه دَدې په شان کتاب نه مخکښې تصنیف کړې شوې اونه به اوشی.

دَهغوی نوم مبارك داسې دې مجدالدین ابوالسعادات مبارك بن محمد الجزری. ډیر مشهور په ابن الاثیر الجزری سره دې دَهغوی انتقال ۶۰۴هجری کښې شوې دې.(۲) هغوی لغات الحدیث باندې یومفید کتاب لیکلې دې دکوم نوم چه النهایه دې.

**دَ مصنف حالات**

داکتاب دَ حدیث یوډیر دَ برکت نه ډك او ډیر دَ فائدې کتاب مشکوة المصابیح دې. په سلف کښې یوه لویه ډله داسې تیره شوې ده چه دَ نبی کریم ﷺ دَمبارکو احادیثو خدمت ئې دَخپل ژوند تیرولو مصرف ګرځولې وو اوخپل ټول وختونه اوصلاحیتونه ئې هم دَدې کاردَپاره وقف کړل او تحریراً تقریراًئې دَحدیث دَ حفاظت عظیم کارنامه سرته اورسوله. هم دَدغه شان شخصیاتو نه یوصاحب مشکوة رحمه الله هم دې.

په یوعلم کښې دَتصنیف دوه طریقې وی یودا چه په دغه علم کښې یومستقل کتاب اولیکلې شی بل دا چه یوبل کتاب دَخپل محنت میدان کړې شی اولو په هغې کښې څه اضافات کولوسره هغې ته یونوې شکل ورکړې شی. په کوم سره چه دَ دغه کتاب په افادیت کښې نوره اضافه اوشی. صاحب مشکوة رحمه الله دا دویم انداز خپل کړې دې.

---

(۱) فوائدجامعه ص۱۰۷۳ ناقلاً عن معجم الابارص۱۴۱ج۶

(۲) مرقا۲) دَتفصیل دَپاره ص۲۹۸.

(۲) تهذیب التهذیب ص۵۳۲ج۹.ت ص۲۴ج۱. حاشیه لمعات ص ۱۸ ناقلاً عن کشف الظنون.

چنانچه هغوی دامام بغوی رحمه الله دکتاب المصابيح انتخاب اوکړو او په دې کښې ئې مناسب اواهم اضافات کولوسره دا کتاب جامع ترين جوړکړو اوددې نوم ئې مشکوة المصابيح کيخودو. چونکه داکتاب د دوو عظيم شخصياتو د محنت نتيجه ده. په دې وجه دلته ددغه دواړو حضراتو مختصر حالات ذکرکولې شي.

## ترجمه د صاحب مصابيح

**نوم اونسب:** محی السنة رکن الدين ابومحمد ابوحسين بن مسعود الفراء البغوی محی السنة لقب ابومحمد کنيت او حسين ئې نوم دې. مسعود دهغوی دپلار نوم دې. البغوی د صاحب مصابيح نسبت دې. الفراء دهغوی د پلار صفت دې دا مشتق دی د الفرو د الفراء معنی ده څرمن يا د څرمن خرڅونکې دهغوی پلار حضرت مسعود رحمه الله به هم دغه کار کولو.

دهغوی دلقب محی السنة وجه داده چه هغوی د حديث يوکتاب شرح السنة تاليف کړې دې. کله چه ددې دتاليف نه فارغ شو نو په خوب کښې ئې د رسول الله ﷺ زيارت نصيب شو حضورپاك ارشاد اوفرمائيلو «أحياك الله كما أحييت سنتي» دحضورپاك هم ددغه ارشاد مبارك په وجه د هغوی لقب محی السنة مشهورشو.

البغوی دا بغ يا بغشور طرف ته نسبت دې دا علاقه خراسان کښې دهرات او مرو په مينځ کښې يوکلې دې ده ته بغا هم وئيلی شی ددې طرف ته د نسبت په وجه هغوی ته بغوی وائی. که چرې دا د بغشور طرف ته نسبت دې نوبغشور مرکب امتزاجی دې. د بغ او شور نه مرکب دې. د مرکب امتزاجی طرف ته دنسبت کولو دوه طريقې دی يو دا چه د پوره مرکب امتزاجی په آخره کښې يا نسبت اولګولې شی. نوددې مطابق بغشوری پکار وو دويمه طريقه داده چه دمرکب امتزاجی دويم جز حذف کړې شی يا د نسبت د جز اول په آخر کښې اولګولې شی لکه د معديکرب طرف ته نسبت کولوپه وخت کښې معدی وئيلې شی. ددې قسم مثالونه دعربو په کلام کښې په کثرت سره ملاويږی. دلته هم په دغه طريقه سره د بغشورنه بغوی جوړشو.

البته په بغوی کښې يوخبره د غور قابل ده هغه دا چه دبغ په آخره کښې د ياء نسبت لګولوسره بغی جوړيږی نه چه بغوی. نو بيا بغوی څنګه جوړشو؟ ددې حل دادې چه لفظ بغ يوشان دې لفظ دم سره اودم د اسماء محذوفة الاعجاز نه دې. اسماء محذوفة الاعجاز هغه نومونو ته وائی د کوم چه آخری حرف حذف شوې وی. د ا سماء محذوفة الاعجاز باره کښې ضابطه داده چه کله دهغې په آخره کښې ياء نسبت اولګولې شی نوهغه پريوتلې حرف واپس راځی چنانچه د دم په آخره کښې ياء نسبت اولګولې شی نودموی به جوړشی اوبغ سره ددې چه د اسماء محذوفة الاعجاز نه نه دې ليکن چونکه دې سره يوشان دې په

دي وجه دې سره هم دغه شان معامله اوکړې شوه په دې وجه بغوی جوړشو اوداسې کولوکښې یوحکمت داهم دې که چرې هم بغی پریخودې شوې وې نو په معنی کښې د التباس خطره وه دَ بغی معنی بدکار ده او په بغوی کښې دَدې التباس خطره نشته دې.

**ولادت او وفات:** دَهغوی (۱) ولادت ۴۳۶هجری کښې شوې دې اووفات (۲) دَ راجح قول مطابق ۵۱۶هجری ماه شوال کښې شوې دې اودَ خپل استاذ قاضی حسین په خواکې طالقان کې دفن کړې شو (۳) یوقول داهم دې چه ۵۱۰هجری کښې دَهغوی وفات شوې دې.

**مناقب:** الله تعالی هغوی ته په علم اوعمل دواړو کښې لوړ مقام نصیب کړې وو اودې سره هغوی ډیر لوئی زاهد هم وو خوراك (۴) به ئی ډیر کم کولو په عام توگه به ئی دَ روټۍ په اوچو ټکړو باندې گذاره کوله کله چه دَ عمر په آخری حصه کښې کمزوری ډیره زیاته شوه نودَشاگردانو په اصرار باندې ئی روټۍ سره دَ روغن زیتون استعمال شروع کړو.

**هغوی متبحر علمی شهادتونه:** لویولویو اکابر محدثینو اوعلماء کرامو دَهغوی دَ اوچتې مرتبې شهادت ورکړې دې. مثلاً

① حافظ ذهبی رحمه الله (۵) فرمائی البغوی الإمام الحافظ إبورك له في تصانيفه لقصده الصالح فإنه كان من العلماء الربانيين كان ذاتعبد ونسك وقناعة باليسير يعنی دَهغوی دَنیکې ارادې دَ وجې نه دَهغوی په تصانیف کښې برکت ورکړې شوې وو ځکه چه هغوی دَعلماء ربانیین نه دې. هغوی عبادت کونکې حج کونکې او په لږ څه باندې قناعت کونکې وو.

② حافظ البدایه والنهایه ص۱۹۵ج۱۲. ابن کثیر رحمه الله فرمائی "كان علامة زمانه فيها أي في العلوم، وكان ديناً ورعًا زاهداً عابداً صالحاً" یعنی هغوی په علوم کښې دَخپلې زمانې علامه وواو دیندار متقی زاهد عبادت گذار اونیك وو.

③ علامه (۶) سبکی رحمه الله فرمائی "كان إماماً جليلاً ورعًا زاهدًا فقيهاً محدثاً مفسراً جامعًا بين العلم والعمل سالكا سبيل السلف له في الفقه اليد الباسطة" یعنی هغوی جلیل القدر امام متقی پرهیزگار فیقه محدث مفسر دَعلم اوعمل جامع اودَ سلفو دَ طریقې تابعدار وو. هغوی ته په فقه کښې ید طولی حاصل وو

④ امام بغوی رحمه الله ته په حدیث فقه اوتفسیر دریواړو فنون کښې ډیر کمال حاصل وو.

۱) فوائدجامعه ص۱۹۳.
۲) فوائدجامعه ص۱۹۴البدایه والنهایه ص۱۹۳ج۱۲.تذکرة الحفاظ ص: ۵۴ج ۴.
۳) البدایه والنهایه ص۱۹۵ج۱۲.
۴) تذکرة الحفاظ للذهبی ص:۵۵ج ۴ بستان المحدثین فارسی اردو ص۱۳۷.
۵) تذکرة الحفاظ ص ۵۴ج ۴.
۶) فوائدجامعه ص ۱۹۴ بحواله الطبقات الکبری للسبکی ص: ۲۱۴.

شاه عبدالعزیز محدث دهلوی رحمه الله فرمائی دي جامع است در رسائل. ویکے را بکمال رسانیده است. محدث بےنظیر وطرفه عالی رتبه عالی صاحب قلم است (۱) یعنی هغوی په دریواړو فنونوکښې جامعیت لرلو اوهریوتی کمال ته رسولې وو هغوی بې مثال محدث او بې مثال مفسر اودَفقه شافعی فقیه وو.

**تصانیف:** ① المصابیح
② إرشاد الأنوار فی شمائل النبی المختار
③ ترجمة الأحکام فی الفروع
④ التهذیب فی الفروع
⑤ الجمع بین الصحیحین
⑥ شرح السنة
⑦ الکفایة فی الفقه
⑧ الکفایة فی القراءة
⑨ معالم التنزیل
⑩ معجم الشیوخ. په دې کښې ډیر مشهور المصابیح معالم التنزیل اوشرح السنة دی.

**ترجمه دَ صاحب مشکوة:** دَمشکوة المصابیح مصنف ابوعبدالله محمدبن عبدالله الخطیب العمری التبریزی دې. ابو عبدالله دَهغوی کنیت دې ولی الدین ئی لقب دې محمد دَهغوی نوم مبارك دې. دَمشهور قول مطابق دَهغوی دَ پلار نوم عبدالله دې. لیکن صاحب مشکوة پخپله په خپله رساله الإکمال فی أسماء الرجال بالکل آخره کښې دَخپل پلار نوم عبیدالله لیکلې دې. چونکه هغوی په تبریزکښې خطیب ووپه دې وجه په خطیب تبریزی باندې مشهور دې اونسبًا عمری دې.

هغوی په کال ۷۳۷هجری کښې دَ مشکوة المصابیح دَ تالیف نه فارغ شو. دَمشکوة دَ تالیف نه دَ فارغیدونه پس هغوی یوه رساله تصنیف کړه دکوم نوم چه الإکمال فی أسماء الرجال دې. په دې کښې ئی دَهغه صحابه کرامو، تابعینو او أئمۀ حالات مختصراً او جامع انداز کښې لیکلی دی دکومو تذکره چه په مشکوة کښې شوې ده. هغوی دَ دې رسالې دَتالیف نه ۷۴۰هجری کښې فارغ شو او غالبًا هم دغه دَهغوی دَ وفات کال هم دې. هسې دَ تحقیق باوجود دَهغوی دَ وفات کال په تعین سره معلوم نه شو البته دومره خبره یقینی ده چه دَ ۲۰ رجب ۷۴۰هجری نه پس دې ځکه چه هغوی پخپله په

---

۱) بستان المحدثین فارسی اردو مطبوعه ایچ ایم سعید کراچی ص۱۳۷.

خپله رساله الاکمال فی أسماء الرجال کښې لیکلی دی چه دَدې دَ تالیف نه فراغت په ورځ دَ جمعه ۲۰ رجب ۷۴۰هجری شوې دې.

په علم اوفضل کښې هغوی ته کوم لوړ مقام حاصل وو هغه دَهغوی تالیف مشکوة المصابیح دَ مقبولیت اونافعیت نه واضح کیږی. ملاعلی قاری رحمه الله دَهغوی تذکره په دې الفاظوسره کړې ده. ((لما کان کتاب مشکوة المصابیح الذي ألفه مولانا الحبر العلامه والبحر الفهامة مظهر الحقائق وموضح الدقائق الشیخ التقی النقی...... )) یعنی کتاب مشکوة المصابیح چه تالیف کړې دې مولانا لوئی عالم علامه اودَعلم او دانش دریاب دَحقائق ښکاره کونکې اودقائق وضاحت کونکې شیخ چه متقی دې پاك صاف دې.

دَهغوی دَ لوړمقام اندازه دَدې نه کیدې شی چه دَهغوی جلیل القدر استاذ علامه طیبی رحمه الله دَهغوی تذکره بقیة الاولیاء قطب الصلحاء الفاظو سره کړې ده.(۱)

**شروح مشکوة شریف:** مشکوة شریف ته دَالله تعالی دَ طرف نه ډیر زیات قبولیت نصیب شو دَتالیف نه واخله تر اوسه پورې دَدې نه افاده اواستفاده په مختلف انواع سره په پوره عالم اسلام کښې عوام اوخواص، علماء، طلباء، خطباء اومصنفین غرض دا چه هره طبقه کښې ډیر په عموم اوشیوع سره جاری دې. ذالك فضل الله یؤتیه من یشاء. دَامت علماؤ په مختلف اطوار سره دَدې کتاب مقدس خدمت کړې دې. یوقسم خدمت دَدې شروح اوحواشی لیکل دی. نو په دې باندې په مختلف انداز سره شروح کثیره وحواشی لیکلې شوی دی په کوم کښې چه مونږ دَ یوڅو تذکره تبرکاً کوو.

①**الکاشف عن حقائق السنن:** دادَ صاحب مشکوة دَ استاذ علامه طیبی رحمه الله لیکلې شوې شرح ده. دادَ مشکوة شریف دَ ټولونه ړومبې شرح ده. داشرح دَ شرح طیبی په نوم سره مشهوره ده. دَعلامه طیبی رحمه الله انتقال دَ صاحب مشکوة رحمه الله دَ انتقال نه درې کاله پس ۷۴۳هجری کښې شوې دې. لکه چه دا شرح دَتالیف مشکوة نه پس دَ شپږ کالوپه موده کښې دننه لیکلې شوې ده. په دې شرح کښې علامه طیبی رحمه الله زیات تر دَ فصاحت اوبلاغت دَنکاتوبیانولوطرف ته توجه ګرځولې ده.

علامه طیبی رحمه الله دَ شرح مشکوة نه علاوه نور هم ډیرمفید کتابونه لیکلی دی مثلاً په فن بلاغت کښې ئی ((التبیان فی علم المعانی والبیان)) په اصول حدیث کښې ئی یوکتاب الخلاصة فی اصول الحدیث لیکلې دې. دَ قرآن پاك یوتفسیرئی لیکلې دې دَ کوم نوم چه کشاف دې. دادَ زمخشری دکتاب نه علاوه دې. په دې کښې ئی دَزمخشری دَمعتزلانه

---

۱) بحواله فوائد جامعه ص ۵۱۵

نظریات تردید کړې دي. آخر عمر (۱) کښې هغوی یو مبسوط تفسیر لیکل شروع کړې وو. دَ سحر او ماسپښین دَ مونځونو په مینځ کښې به ئې دَدې تفسیر لیکلې شوې حصې روزانه په لویه مجمع کښې درس ورکولو. دَ ماسپښین او مازیګر په مینځ کښې دَ بخاری شریف اورولو معمول وو. دَ منګل په ورځ ۲۳ شعبان ۷۴۳هجری حسب معمول دَ درس بخاری دَپاره قبلې ته ئې مخ وو دَ فرضو په انتظار کښې دَ مراقبې په حالت کښې ناست وو چه هم په دې حالت کښې انتقال شو.

②**لمعات التنقیح فی شرح مشکوة المصابیح** دَ مشکوة شریف داشرح په عربی ژبه کښې ده. دَهندوستان مشهور محدث شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله لیکلې ده. دَ شیخ ولادت ۹۵۸هجری او وفات ئې ۱۰۵۲هجری کښې شوې دې. دَدې شرح رومبې قلمی نسخې چرته ناچرته موجود وې اوس دا شرح چهاپ شوی ده.

③**اشعة اللمعات**: داهم دَ شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله لیکلې شوې شرح ده. په دې کښې ئې دَاحادیث مشکوة سلیس اونفیس فارسی ژبه کښې ډیره فصیح ترجمه کړې ده اودې سره سره ئې دَ ضروری تشریحاتو او فوائدو اهتمام کړې دې دَمشکوة دَ حل دَپاره ډیره کافی ده.

④**مرقاة المفاتیح شرح مشکوة المصابیح**: داشرح په عربی ژبه کښې ده مشهورمحدث اوفقیه حنفی علامه علی بن سلطان محمد چه دَ ملاعلی قاری په نوم سره مشهور دې دَهغوی تصنیف دې. دَ ملاعلی قاری رحمه الله انتقال ۱۰۱۴ هجری کښې شوې دې مبسوط شرح ده دَ روایاتو دَضبط ئې په خصوصیت سره ډیراهتمام کړې دې. په هرلحاظ سره مفید او جامع ده.

⑤ دَحضرت شاه محمد اسحاق محدث دهلوی رحمه الله مشهورشاګرد علامه قطب الدین خان دهلوی رحمه الله په قدیم اردو ژبه کښې دَ مشکوة شریف بهترین شرح لیکلې ده دکوم نوم چه مظاهرحق دې. په علماؤ کښې ډیره مستند اومقبول شرح ده. دَدې مضامین زیات تر دَ أشعة اللمعات نه ماخوذ دي.

⑥ علامه سید شریف رحمه الله په مشکوة شریف باندې حاشیه لیکلې ده چه دَعلامه طیبی رحمه الله دَ شرح نه اختصار کړې شوې ده.

⑦ مشهورمحدث حضرت مولانا محمدادریس کاندهلوی رحمه الله دَخپل استاذ محترم دَحضرت علامه محمدانورشاه کشمیری رحمه الله په ایماء باندې په عربی ژبه کښې دَ مشکوة شریف شرح اولیکله دَ کوم نوم چه التعلیق الصبیح علی مشکوة المصابیح دې. په اتو جلدونو کښې ده.

۱) فوائدجامع ص ٤ ۲۳ناقلاعن الدررالکامنة للحافظ ابن حجر.

## مقدمه د اصول حدیث

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لله والصلاة والسلام علی أفضل الرسل وسید البشر.

**هندوستان ته احادیث څنګه راورسیدل او بیا پاکستان ته:**

**اما بعد:** الله تعالی لکه څنګه چې د خپل کتاب د حفاظت وعده کړې ده.دغه شان یې د خپل حبیب د ارشاداتو د حفاظت دپاره هم اسباب جوړ کړی وو.که تاسو نورو د پیغمبرانو په سیرت باندې نظر واچوئ نو د هغوی د ژوند حالات د جهل په تیرو کښې پټ پراته دي.

خو زمونږ دخوږ پیغمبر د ژوند هره یوه لمحه او هره یوه ادا محفوظ ده.دا څکه چې حضرات صحابه کرامو ﷺ دخپل پیغمبر اراشادات او فرامین په خپل عمل او زړه سره محفوظ اوساتل.او د دنیا ګوټ ګوټ ته یې اورسول.د دنیا په دغه ګوټونو کښې د هندوستان زمکه هم ده.هسې خو په ۹۳ هجرئ کښې هندوستان ته د نبی کریم ﷺ احادیث رارسیدلی وو.او دلته د احادیثو رواج شروع شوي وو.خو بیا روستو په دې کښې تعطل پیدا شوي وو.او بیا څه موده پس دوباره د هندوستان فضاء د احادیثو مبارکو په درس او تدریس سره روښانه شوه.مونږ په هندوستان کښې د احادیثو ترویج او اشاعت په پنځو دورونو تقسیمو.تفصیل یې دا دي.

**اولنې دور:** څنګه چې وړاندې اجمالا ذکر اوشو چې په ۹۳ هجرئ کښې د عربو څخه عالمان هندوستان ته راغلی وو او دلته یې دنبی کریم ﷺ احادیث خلقو ته بیان کړی وو.دغه شان دا سلسله د دریمې هجری صدئ پورې جاری وه.

**دویم دور:** په دویم دور کښې هم په هندوستان کښې د علم د نشر او اشاعت سلسله شروع وه.د عربو څخه به د سوداګرو په حیثیت عربیان راتلل اودهغوی په وجه به په هندوستان کښې احادیث خوریدل.

**دریم دور:** د څلورمې صدئ څخه واخله تر لسمې صدئ اولنئ حصې پورې د هندوستان څخه د علم حدیث رڼاګانې ختمیدې.دلته به صرف د مشکاة المصابیح درس کیدو.باقی کتابونه هډو چا پیژندل هم نه.په دې دور کښې دلته معقولاتو ته یعنی منطق فلسفه وغیره علومو ته توجه ورکړې شوې وه.او د مدرسو څخه فارغین به یو طرف ته ډیرلوئې منطقی او فلسفی وو.خو بل طرف ته به هغه د احادیثو په باب کښې د مکتب ماشوم وو.اودا زمانه په هندوستان کښې د احادیثو دپاره د خزان زمانه وه.

**څلورم دور:** بیا د لسمې هجرې صدئ دنیمې څخه د بعضې ملکونو څخه عالمان هندوستان ته راغلل.او د ځان سره یې دعلم حدیث رڼا راوړه.او د دې ځائې عالمان یې د حدیث طرف ته متوجه کړل.د هغوی د کوشش میوه وه.چې یو ځل بیا په هندوستان کښې

د احادیثو درس او تدریس شروع شو بلکه بعضې عالمان حرمینو شریفینو ته لاړل. او د
هغه ځائې د عالمانو څخه یې علوم حدیث زده کړل. اوواپس چې خپل ملك ته راغلل نو د
دې نشر واشاعت یې شروع کړل.

**پنځم دور:** په یو لسمه صدئ کښې د علم حدیث رواج شروع شو. هم په دې دور کښې
حضرت مولانا شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله د علم حدیث خدمات کړی دی. او په
علم حدیث کښې یې دومره مهارت پیدا کړې وو. چې په مشکاة یې دوه شرحې لیکلې
وې. دغه شان دا دور د حضرت مجدد الف ثاني د خدماتو دور وو. هغوی په خپله د علم
حدیث ډیر لویې خدمت کړې وو. دغه شان د هغوی د مجددیه سلسلې یو عالم په جامع
ترمذی باندې په فارسئ ژبه کښې یوه شرح لیکلې وه. او د مجدد رحمه الله نمسی ته اویا زره
احادیث د سند او جرح او د تعدیل سره یاد وو.

**د شاه ولی الله رحمه الله دور:** په هندوستان کښې دعلم حدیث بهار په هغه وخت کښې شروع
شو. کله چې په کال ۱۱۷۲ هجرئ کښې حضرت شاه ولی الله رحمه الله په مسند حدیث باندې
جلوه گر شو. نو د هندوستان گوټ گوټ یې د حدیثو په انواراتو روښانه کړه. حضرت شاه
رحمه الله حرمینو شریفینو ته د علم حدیث د زدکړې دپاره تشریف اوړې وو. او هلته ئې د
شیخ ابوطاهر الکوراني رحمه الله څخه علم حدیث زده کړې وو. هغوی به د شاه صاحب په
تعریف کښې پخپله فرمائیل چې شاه صاحب زما څخه د حدیث الفاظ زده کوی. اوزه د ده
څخه د حدیث معانی او اسرار زده کوم.

**هندوستان ته تشریف راوړل:** استاذ محترم ابو طاهر الکوراني خپل ټول علوم د حضرت شاه
صاحب سینې ته منتقل کړل. او هغه ورځ هم راغله چې حضرت شاه صاحب د حرمینو
شریفینو څخه هندوستان ته تشریف راوړلو. او دلته یې د علم حدیث هغه خدمت شروع
کړو. چې لا تراوسه پورې د هندوستان په زمکه چا نه دې کړې. دوی صرف د مشکاة په
تدریس باندې اکتفاء اونکړه. بلکه دې سره یې د صحاح سته د درس آغاز هم اوکړو. او
دغه شان باقاعدگئ سره دهندوستان په مدارسو کې دصحاح سته ددرس طریقه شروع شوه.

**د شاه صاحب رحمه الله د درس حدیث خصوصیات:** حضرت شاه رحمه الله به د احادیثو صرف ظاهری په
ترجمه باندې اکتفاء نه کوله بلکه هغوی به د حدیثو د ظاهری معانیو سره سره د دې
احادیثو څخه مستنبط مسائل، په هغې کښې د فقهاؤ مسالك، د احادیثو علل او د
احادیثو حکمتونه او د تصوف رموزات وغیره هم بیانول. او حضرت شاه صاحب خپل
باطنی فیوضات د خپلو شاگردانو سره سره خپل اولاد ته هم منتقل کړل. هسې خو د
حضرت شاه رحمه الله ټول ځامن عالمان وو. خو خصوصاً په علم حدیث کښې حضرت شاه
عبدالعزیز رحمه الله هغه مقام حاصل کړې وو. چې دهندوستان راتلونکې هر فاضل به د دوی

په روحانی اولاد کښې شامل وی.دوی ته په علم حدیث کښې د خصوصی مقام د حاصلیدو په وجه عالمانو دوی ته د،،سراج الهند او حجة الله،، القاب ورکړل.حضرت شاه عبدالعزیز رحمه الله دعامیانو دپاره تقلید ضروری اوګرځول.او په فقهی مسالکو کښې یې مسلك حنفی ته ترجیح ورکړه.او د عالمانو د اجتهاد دپاره یې دومره سخت شرطونه مقرر کړل چې هرچا ته ئې د اجتهاد دعوی کولو دروازه بنده کړه.اوپه دې طریقه هغوی د خواهش پرستئ او دین دخپلو خواهشاتو تابع کونکو خلقو په باطلو امیدونو خاورې واړولې.

**د شاه عبدالعزیز رحمه الله هغه د روڼړو زده کړه:** دغه شان حضرت شاه عبدالعزیز د خپل پلار علمی میراث خپلو روڼړو ته منتقل کړو. د دوی روڼړه حضرت شاه عبدالقادر،حضرت شاه رفیع الدین اوددوی نمسي حضرت شاه محمد اسحاق رحمهم الله وو.په دوی کښې حضرت شاه محمد اسحاق صاحب ته په علمَ حدیث کښې خصوصی مقام حاصل وو.د دوی ځخه روسته د دوی شاګرد حضرت شاه عبدالغنی متوفی ۱۲۹۲ هجری د احادیثو منصب سنبال کړو.اوهغوی د احادیثو په ګلونو د هندوستان هریو باغ تازه او روښانه کړو.

**د حضرت شاه عبدالغنی رحمه الله د علوم وارثان:** د دې ځخه پس په هندوستان کښې حضرت شاه عبدالغنی رحمه الله هغه شاګردان پریخودل.په کومو کښې چې د خپل وخت ابوحنیفه یعنی رشید احمد ګنګوهی رحمه الله غوندې مخلص او باعمله شخصیت هم وو.دغه شان د دارالعلوم دیوبند بانی حضرت قاسم نانوتوی هم وو اود دوی ځخه علاوه نورهم ډیر عالمان د حضرت شاه عبدالغنی رحمه الله د علم وارثان جوړ شول.

**د حضرت رشید احمد ګنګوهی رحمه الله شاګردان:** حضرت رشید احمد ګنګوهی رحمه الله چې په علم حدیث کښې کوم مقام لرلو، نو هغه د نورو محدثینو ځخه په دې ممتاز وو چې دوی یواځې محدث نه بلکه فقیه هم وو.د دوی حلقهٔ درس وسیعه شوه او د دوی ځخه علوم نبوت حضرت خلیل احمد سهارنپوری رحمه الله،شیخ الهند محمود حسن، اوحضرت محمد یحی کاندهلوی رحمه الله حاصل کړل.دحضرت شیخ الهندمحمود حسن، حضرت مولانا خلیل احمد سهارنپوری رحمه الله او د محمد یحیی کاندهلوی رحمه الله ځخه دا علوم نبوت حضرت مولاناعبدالرحمن کاملپوری رحمه الله محدث العصر حضرت مولانا انور شاه کشمیری رحمه الله حضرت مولانا محمد زکریا رحمه الله حضرت مولانا حسین احمد مدنی رحمه الله شیخ الاسلام حضرت مولانا شبیر احمد عثمانی رحمه الله وغیره حاصل کړل.

**پاکستان کښې د احادیثو اشاعت:** دا خو دهغه وخت خبره وه.څه وخت چې متحده هندوستان وو.کله چې هندوستان تقسیم شو.نو څه عالمان په بهارت کښې پاتې شول.او څه عالمانو پاکستان ته هجرت اوکړو.پاکستان ته چې کوم عالمان راغلی وو.نو هغوی هم د

دغه جیل القدر محدثینو شاگردان دی چا چې د حضرت شیخ الهند محمود حسن رحمه الله ځخه احادیث زده کړی وو. البته زیات شاگردان د حضرت حسین احمد مدنی رحمه الله، مولانا محمد زکریا کاندهلوی، مولانا حسین علي الوانی، مولانا انور شاه کشمیری وغیره شاگردان دی.

اوما احقر شاه فیصل ته چې د احادیثو اجازت ملاؤ شوې دې نو په هغې کښې زما محترم استاذ شهید ملت حضرت مولانا حسن جان مدنی نور الله مرقده دې. د دوی استاذ حضرت شیخ الحدیث مولانا محمد ادریس الکاندهلوی او د هغوی استاذ حضرت خلیل احمد سهارنپوری رحمه الله وو. دغه شان دویم استاذ چې ماته یې په احادیثو کښې اجازت کړې دې په پاکستان کښې د وفاق المدارس صدر او د جامعه فاروقیه شیخ الحدیث حضرت سلیم الله خان مدظله العالی دې. د دوی په استاذانو کښې شیخ الاسلام حسین احمد مدنی دې.

**د علم حدیث مباحث:**

دعالمانو دا طریقه ده. چه د هرعلم خاص کر دعلم حدیث په شروع کښې ددې علم دمبادیؤ متعلق ځه مباحث بیانوی. اودې مباحثوته رؤ وس ثمانیه وائی. چه په اتوخبرومشتمل دی.

① دعلم تعریف ② موضوع ③ غرض ④ وجه دتسمیه ⑤ دعلم فضیلت ⑥ ددې علم دمصنفاتو اقسام ⑦ دتدوین دعلم تاریخ ⑧ په اجناس العلوم کښې ددې مقام.

مونږ ددې علمِ حدیث په مقدمه کښې چه کومې خبرې بیانول غوارو. دې کښې به دا اته خیزونه هم وی او دې ځخه علاوه ځه نورې خبرې به په کښې هم شامل وی. په د دې وجه به ددې مقدمې د مباحثو د رؤوس ثمانیؤ ترتیب لږ مختلف وی.

**د حدیث لغوی معنی:** د عربی لغت امام علامه جوهری رحمه الله په صحاح کښې دحدیث معنی داسې بیان کړې ده: ((الحدیث هو الکلام قلیله وکثیره وجمعه احادیث)) حدیث کلام دې که کمې او که زیاتې وی او د دې جمع احادیث ده دا د حدیث لغوی معنی ده ددې حاصل دادې چه حدیث دلغت په اعتبار هرقسم کلام ته وئیلې کیږی.

**په اصطلاحی معنې کښې د اصولینو او محدثینو په تعریف کښې فرق:** د حدیث په اصطلاحی معنی کښې د عالمانو عبارتونه مختلف دی. خودا اختلاف داقوالو یا خو لفظی دې یا اعتباری په دې موضوع د ټولو ځخه بهترین بحث علامه طاهر بن صالح الجزائری په خپل کتاب "توجیه النظر فی اصول الاثر" کښې کړې دې. علامه طاهر بن صالح الجزائری رحمه الله د خوارلسمې صدئ دشروع یو مشهور عالم دې. او د دوئی کتاب د توجیه النظر په علم اصول حدیث کښې یو جامع کتاب دې! فرمائی چه اصل کښې د اصولِ حدیث دعلماؤ په

اصطلاح کښې په یوه معنی دې او د محدیثنو په اصطلاح کښې په بله معنی دې. هم په دې وجه د دوارو په تعریفونو کښې فرق دې.

**د اصولیانو په نیز د حدیث تعریف:** د اصولیانو په نیز د حدیث تعریف دا دې ((اقوال رسول الله صلی الله علیه وسلم وافعاله)) یعنی د رسول الله ﷺ اقوال او افعال. په دې تعریف کښې تقریر هم داخل دې. ځکه چه لفظ د افعال دې ته هم شامل دې دغه شان احوال اختیاریه هم په لفظ د افعالو کښې داخل دې. البته د دې تعریف په رڼا کښې هغه روایات په حدیث کښې نه شاملیږی کومو کښې چه دنبی کریم ﷺ داحوال غیر اختیاریه بیان شویدې. مثلاً د نبی کریم ﷺ دحلیه مبارك، دنبی کریم ﷺ د ولادت او د وفات د واقعاتو بیان. خو د اصول فقه د عالمانو په نقطهٔ نظر سره داسې روایات که د حدیث دتعریف ځخه خارج شی نو څه مضرنه دې ځکه چه د اصول فقه د عالمانو مقصد د حدیث ځخه استنباط د احکامو دې او د دوئ په نظرکښې حدیث صرف هغه دې چه دهغې ځخه څه حکم مستنبط کیږی. اوپه کومو روایتونو کښې چه دنبی کریم ﷺ احوال غیر اختیاریه بیان شوې دې د هغې ځخه څه حکم نه مستنبط کیږی په دې وجه د حدیث د تعریف ځخه خارجیدل د اصول فقه د عالمانو په نیز مضر نه دې.

**د محدثینو په نیز د حدیث تعریف:** ددې په خلاف محدثین دنبی کریم ﷺ په احوال اختیاریه اوغیراختیاریه کښې څه فرق نه کوی او ددوئ مقصود استنباط داحکامونه وی بلکه دوئ هرهغه روایت جمع کوی چه هغه نبی کریم ﷺ ته په څه نا څه حیثیت منسوب وی په دې وجه ددوئ په نیزدحدیث تعریف دادې [اقوال رسول الله صلی الله علیه وسلم وافعاله واحواله)) دا تعریف احوال غیراختیاریه ته هم شامل دې هم داتعریف حافظ سخاوی په فتح المغیث کښې داسې بیان کړې دې

((والحدیث لغة ضد القدیم واصطلاحاً ما اضیف الی النبی صلی الله علیه وسلم قولاً اوفعلاً اوتقریراً اوصفة حتی الحرکات والسکنات فی الیقظه والمنام))

**دحدیث په وجهٔ تسمیه کښې مختلف اقوال:** دحدیث په وجه دتسمیه کښې یعنې ددې د لغوی او اصطلاحی معنی په مینځ کښې د مناسبت په باره کښې هم څواقوال دی. ① حافظ ابن حجرپه فتح الباری کښې فرمائی چه حدیث دقدیم ضد دې، کلام الله قدیم دې. ددې په مقابله کښې کلام رسول ته حدیث اووئیلې شو. حافظ سخاوی هم په فتح المغیث کښې دې ته اشاره کړې ده. خودا وجه دتسمیه بعیده معلومیږی.

② علامه عثمانی رحمه الله په مقدمه ((فتح الملهم)) کښې یوه لطیفه توجیه ذکرکړې ده فرمائی: لفظ دحدیث ((وَأَمَّا بِنِعْمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثْ)) ځخه ماخوذده. په اصل کښې الله تعالی په

دې سورة کښې په نبی کریم ﷺ باندې د خپلو دریو انعاماتو ذکر کړې دې او په هر انعام ئې د شکر ادا کولو یوه طریقه ښودلې ده.

(۱) ((أَلَمْ يَجِدْكَ يَتِيمًا فَآوَىٰ)) آیا ته یې یتیم نه وې موندلې نو تاسو ته یې ټکانه درکړه. ددې انعام په شکریه کښې نبی کریم ﷺ ته حکم ورکړې شویدې چه ((فَأَمَّا الْيَتِيمَ فَلَا تَقْهَرْ)) نو یتیم ته مه غصه کیږه.

(۲) ((وَوَجَدَكَ عَائِلًا فَأَغْنَىٰ)) او ته یې غریب موندلې وې نو مالدار یې کړې ددې په مقابله کښې داحکم دې چه ((وَأَمَّا السَّائِلَ فَلَا تَنْهَرْ)) نو ته سوال کونکې مه رټه.

(۳) ((وَوَجَدَكَ ضَالًّا فَهَدَىٰ)) او ته یې د شریعت د احکامو څخه بې خبره موندلې وې نو هدایت یې درته اوکړو، په دې کښې د ضال څخه مراد د احکامو او شرائعو نه بې خبره کیدل دی. او دهدایت څخه مراد شرائعو تعلیم دې، ددې نعمت دشکریه باره کښې یې وئیلی دی ((وَأَمَّا بِنِعْمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثْ)) نو د خپل رب د نعمت یادګیرنه کوه دلته دنعمت څخه مراد دشرائعو تعلیم دې او مطلب دادې چه الله تعالی تاته دکوموشرائعو تعلیم درکړې دې. ته نبی کریم ﷺ هغه نوروخلقوته اورسوه او نبی کریم ﷺ دخپل قول اوفعل په ذریعه دقرآن ددې حکم تعمیل اوکړو په ددې وجه دنبی کریم ﷺ داقوالواوافعالونوم حدیث کیښودې شو

**د مفتی تقی عثمانی د دې قول په باره کښې رائې:** مفتی تقی عثمانی مدظله العالی فرمائی دعلامه عثمانی رحمه الله داتوجیه اګرچه یوه لطیفه توجیه ده لیکن دا نکته بعدالوقوع ده. د مفتی محمد تقی عثمانی صاحب په نیز صفا او واضحه خبره داده چه دنبی کریم ﷺ داقوالواو افعالودپاره دحدیث لفظ خاص کول داستعارة العام للخاص دقبیلې څخه دی اود استعارې ماخذپخپله درسول الله ﷺ بعضې ارشادات دی کوم کښې چه نبی کریم ﷺ پخپله د خپلو اقوالو او افعالودپاره د حدیث لفظ استعمال کړیدې. لکه ارشاددې ((حدثوا عنی ولا حرج))(۱)

❁ دغه شان دحضرت علی رضی الله عنه څخه روایت دې چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل ((اللهم ارحم خلفائی قلنا یا رسول الله ومن هم خلفاءك؟ قال الذین یأتون من بعدی یروون احادیثی

---

(۱) صحیح مسلم ۴۱۴/۲ کتاب الزهد باب التثبت فی الحدیث وحکم کتابة الحدیث فی حدیث ابی سعید الخدری رضی الله عنه)

(۲) اخرجه ابو نعیم احمد بن عبدالله الحافظ من طریق الطحاوی هذا فی اخبار اصفهان ۸۱/۱ وفیه احادیثی وسنتی والهیثمی فی مجمع الزوائد ۱۲۶/۱ عن طبرانی فی الاوسط والغزالی فی الاحیاء ۱۱/۱، والسیوطی فی مفتاح الجنة ۱۲ فی تعلیقات الالماع الی معرفة اصول الروایه وتقیید السماع /۱۷)

ویعلمونها الناس)) () دا حدیث بعضې محدیثنو ضعیف بلکه بعضو موضوع گڼلې دې.
لیکن قاضی عیاض په ((الالماع الی معرفة اصول الروایة وتقیید السماع)) کښې (۲) دا حدیث په ډیرو سندونو سره روایت کړې دې. چه د هغې ځخه معلومیږی چه دا حدیث بې اصل نه دې یعنی اصل ئې شته

✿ هم ددې مفهوم یو بل روایت په ډیرو طرقو سره منقول دې چه ((من حفظ علی امتی اربعین حدیثا فی امردینها بعثه الله فقیها وکنت له یوم القیامة شافعا وشهیدا (۳) دا حدیث هم اگرچه د سند په لحاظ سره ضعیف دې او حافظ سخاوی په ((المقاصد الحسنة)) کښې ددې تحقیق کړیدې لیکن د مختلفو طرقو په وجه دې ته حسن لغیره وئیلې کیدې شی دارنگ په مشکاة کښې د حضرت سمره بن جندب ﷺ او د مغیره بن شعبه حدیث مروی دې ((قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من حدث بحدیث یُری انه کذب فهواحدالکاذبین رواه مسلم ()

(د) وعن ابن عباس رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم اتقوا الحدیث علی الاماعلمتم فمن کذب علی متعمدًا فلیتبوأ مقعده من النار (۴)
بهر حال ددې روایاتو نه معلومیږی چه د نبی کریم ﷺ د اقوالو او افعالو دپاره د حدیث دلفظ استعمال د د وروستو زمانو اصطلاح نه ده بلکه په خپله ذ رسول الله ﷺ ځخه ثابته ده ددې وجې په دې سلسله کښې د بې ځایه توجیهاتو هیڅ ضرورت نشته

**د حدیث هم معنی یوڅو متقارب الفاظ:** د حدیث په معنی کښې یوڅو نور الفاظ هم مستعمل دی یعنی (۱) روایت ② اثر (۳) خبر (۴) سنت.
صحیح خبره داده چه دا ټول الفاظ د حدیث د علماؤ په اصطلاح کښې مترادف او هم معنی اودا د یو بل په معنی کښې ډیر استعمالیږی خو بعضې حضراتو په دې اصطلاحاتو کښې فرق کړې دې البته ترکومه حده پورې چه د روایت تعلق دې نو ددې تعلق په اتفاق سره روایت وائی. صرف د باقی ځلورو الفاظو حدیث، اثر، خبر او سنت په باره کښې اختلاف دې.
**د حدیث او خبر وضاحت:** ① حافظ ابن حجر ﷫ فرمائی چه صرف د نبی کریم ﷺ اقوالو او احوالو ته حدیث وائی

۲) باب فی شرف علم الحدیث و شرف اهله۱۸))
۳) مشکاة کتاب العلم فی الفصل الثالث ((۳۱۱)
۴) مشکاة المصابیح کتاب العلم الفصل الاول ۲۱۱ ۳)
) رواه الترمذی (مشکاة ۱۱\۳۵ فی الفصل الثانی من کتاب العلم )

② بعضې حضرات خبر هم په دې معنی استعمالوی

③ ليکن دبعضوپه نيزباندې په دواړوکښې دتباثن نسبت دې داسې چه حديث دنبی کريم ﷺ داقوالواوافعالونوم دې اونبی کريم ﷺ څخه علاوه دنورو خلقو افعالو او اقوالوته خبر وائی

④ اودبعضې حضراتوپه نيزباندې ددواړوپه مينځ کښې د عموم او خصوص نسبت دې، خبرعام دې يعنی دنبی کريم ﷺ او د نورو حضراتو اقوالو او افعالو لره شامل دې او حديث مبارک صرف حضرت نبی کريم ﷺ سره مخصوص دې

**د اثر وضاحت:** ① دخراسان دفقهاؤ اصطلاح داده ((ان الحديث اسم للمرفوع والاثر اسم للموقوف على الصحابة والتابعين)) هم په دې مناسبت امام محمد ابن الحسن رحمه الله د خپل کتاب نوم کتاب الاثار ايښې دې په کوم کښې چه هغوی اثارموقوفه ذکرکړې دی امام غزالی رحمه الله هم په احياء العلوم کښې دخراسان دفقهاؤ اصطلاح اختيارکړې ده

② ليکن امام نووی رحمه الله دصحيح مسلم په شرح کښې ليکلی دی چه د جمهورو سلفواوخلفوپه نيزباندې په حديث او اثرکښې هيڅ فرق نشته دې ددواړو اطلاق،په مرفوع، موقوف،اومقطوع ټولوحديثونوباندې کيږی علامه لکهنوی رحمه الله هم په ظفرالامانی ص:۴، ۵ کښې داخبره غوره کړې ده.

**د سنت وضاحت:**

① دسنت په باره کښې دبعضې حضراتوخيال دا دې چه دا د نبی کريم ﷺ او د صحابؤ صرف عمل ته وائی او دا احاديث په دې کښې شامل نه دی ليکن څرنګه چه مخکښې بيان شوچه په عام استعمال کښې په حديث خبر، آثر او سنت کښې څه فرق نشته.

دحديثو په مشهورکتاب ((منتقى الاخبار من كلام سيد الابرار صلى الله عليه وسلم)) کښې دخبرلفظ حديث هم معنی شوې دې

دا رنګ امام طحاوی رحمه الله دخپل کتاب نوم شرح معانی الآثارايښې دې حالانکه په دې کتاب کښې مرفوع احاديث ډيرزيات دی د دې څخه دامعلومه شوه چه په لفظ آثر کښې مرفوع احاديث هم شامل دی دا رنګ حافظ ابن جريرطبری رحمه الله هم دخپل کتاب نوم تهذيب الآثارايښې دې په کوم کښې چه مرفوع اوموقوف هرقسمه احاديث شته دې

هم داسې امام ترمذی رحمه الله، امام ابوداود رحمه الله، نسائی رحمه الله،ابن ماجه رحمه الله، بيهقی رحمه الله، دارقطنی رحمه الله اودارمی رحمه الله وغيره خپل کتابونه د "السنن" په نوم سره ذکر کړی دی، حالانکه په دې کښې ډير قولی احاديث موجوددی

**نتيجه د بحث:** د محدثينو دا طرزعمل دا خبره ښائی چه تحقيق ته رسيدلې خبره داده

چه په عام استعمال کښې دا ټول الفاظ مترادف او هم معنی دی او ديوبل په ځائې ډيراستعمالولې شي.

دا بحث دحضرت مولانا ظفراحمد عثمانی په "انهاء السکن" کښې دحضرت شيخ عبدالفتاح ابوغده الحلبی دتحقيق او حاشيې سره موجود دې.[1]

**د علم حديث تعريف:** تردې ځايه صرف دحديث تعريف بيان شو اوس دعلم حديث د تعريف د زده کولو هم ضرورت دې. دعلم حديث دتعريف په باره کښې دعلماؤ مختلف اقوال دی.

① علامه بدرالدين عينی په عمدة القاری کښې دعلم حديث داتعريف نقل کړې دې ((علم يعرف به اقوال رسول الله صلى الله عليه وسلم وافعاله واحواله)).

② حافظ سخاوی رحمه الله په فتح المغيث کښې داتعريف کړې دې ((معرفة ما اضيف الى النبى صلى الله عليه وسلم قولاً اوفعلاً اوتقريرًا اوصفة))

دا دواړه تعريفونه په ظاهره خوجامع دی ليکن اشکال پرې دا دې چه په دې کښې موقوف اومقطوع احاديث نهٔ شامليږی حالانکه په علم حديث کښې د دوئ متعلق هم بحث کيږی؟

③ ددې اشکال ځخه دبچ کيدو دپاره په فتح الباقی شرح الفية العراقی کښې دعلم حديث داسې تعريف شويدې ((معرفة ما اضيف الى الرسول الله صلى الله عليه وسلم اوالى صحابى اوالى من دونه قولاً اوفعلاً اوصفة اوتقريرًا))

**په دې تعريف اشکال:** دا تعريف اګرچه جامع دې ځکه چه په دې کښې موقوف اومقطوع احاديث هم شامل دی. ليکن اشکال دادې چه دا مانع نه دې ځکه چه په دې کښې د ((من دونه)) الفاظ ډيرعام دی چه پکښې دصحابو رضي الله عنهم او تابعينو رحمهم الله ځخه علاوه بادشاهان امراء اود هغوئ ځخه روستوخلق شامل دی. ددوئ دوجې په علم حديث کښې تاريخ هم شامليږی.

**د تاريخ د شامليدو وجه-** داسې معلوميږی چه تعريف کونکی هم داغوښتل چه په علم حديث کښې علم تاريخ هم شامل کړې شی اوداحقيقت دې چه تر ډيرې زمانې پورې په علم حديث اوعلم تاريخ کښې ځه فرق نه وو هم په دې وجه حاجی خليفه په کشف الظنون کښې اوشيخ محمدعلی تهانوی رحمه الله په کشاف اصطلاحات الفنون کښې چه دعلم حديث کوم تعريف ذکرکړې دې. دهغې په رڼا سره علم تاريخ هم په دې کښې داخليږی هغوئ ليکلې دې ((جملة الاخبار المرويات حديث))ليکن داخبره ترهغه وخته صحيح وه ترکومې

[1] داعلاء السنن دامقدمه د قواعد فی علوم الحديث په نوم سره د ادارة القرآن والعلوم الاسلامية کراچۍ ځخه شائع شويده ۱۲۱_

چه علم حديث اوعلم تاريخ يوړو اوترکومې چه ددوارو ځان ځان له تدوين نه ووشوې. ليکن کله چه روستوتاريخ له خپله مستقل حيثيت ورکړې شونودعلم حديث داسې تعريف په کاردې چه علم تاريخ په کښې شامل نه وی.

**په تعريف کښې د يو قيد اضافه:** نو بهتره خبره داده چه مخکښې ذکرشوی تعريف کښې د يو قيد اضافه اوشی او داسې اووئيلې شی. چه ((هومعرفة ما اضيف الى رسول الله صلى الله عليه وسلم اوصحابي اوالى من دونه ممن يقتدى بهم فى الدين قولاً اوفعلاً اوصفة اوتقريرًا)) په دې قيد سره به دعلم حديث دتعريف نه دبادشاهانو او دغيرعلماء واقعات خارج شی. او د مقتدی حضراتو اقوال به په کښې داخل پاتې شی.ځکه چې د احاديثو کتابونه د دې ځخه ډک دی.

**تنبيه:** دعلم حديث يوځونور تعريفونه هم منقول دی اوپه ظاهره په هغې کښې تضاد او تعارض ښکاری. ليکن ددې وجه داده چه دعلم حديث ګڼرقسمونه دی چا د يوقسم تعريف کړې دې اوچا د بل قسم اوچا په کښې ټول قسمونه راجمع کړې دی کوم تعريف چه مونږ ذکرکړې دې په دې کښې دحديث ټول قسمونه شامل دی بياهم هريوقسم ځان ځان له پيژندل ضروری دی.

**د علم حديث قسمونه:** علامه ابن الاکفانی رحمه الله په "ارشادالقاصد" کښې ليکلی دی چه دعلم حديث ابتدائی قسمونه دوه دی (۱) علم رواية الحديث ② علم دراية الحديث.

① دعلم رواية الحديث تعريف:((هوعلم بنقل اقوال النبى صلى الله عليه وسلم وافعاله واحواله بالسماع المتصل وضبطها وتحريرها.))

② اودراية الحديث. دعلم تعريف دې ((هوعلم يعرف به انواع الرواية واحكامها وشروط الرواة واصناف المرويات واستخراج معانيها))

**د دوارو علومو ميدان:** لهذا ديوحديث په باره کښې دامعلومول چه دا په فلانکی کتاب کښې فلانکی سندسره په فلانکی الفاظو سره مروی دې دا علم رواية الحديث دې او ددې حديث په باره کښې دامعلومول چه داخبرواحددې يامشهور، صحيح دې يا ضعيف، متصل دې يامنقطع، ددې رجال ثقه دی ياغيرثقه اوددې حديث ځخه دکومو کومو احکامواستنباط کيږی اوځه تعارض خونشته دې که چرته وی، نو هغه به څنګه لرې کولې شی. داټولې خبرې علم دراية الحديث سره تعلق ساتی.

**د دراية الحديث او اصول حديث د ترادف قول:** بعضې علماؤعلم دراية الحديث او اصول حديث مرادف ګرځولی دی چنانچه علامه عثمانی رحمه الله دفتح الملهم په مقدمه کښې دارائې ظاهره کړې ده.مولانامحمدزکرياصاحب رحمه الله هم په اوجزالمسالك کښې دې طرف ته ميلان ښکاره کړيدې.

**د مفتی تقی عثمانی مدظله رائې:** مفتی صاحب په درس ترمذی کښې فرمائیلی دی چه دا خبره د غور قابله ده وجه ئې دا ده چه بره مونږ دعلم درایة الحدیث کوم تعریف ذکر کړې دې هغه دعلامه ابن الاکفانی رحمه الله څخه نقل کړې شوې دې او زمونږ د علم مطابق په اول ځل باندې علامه موصوف دعلم حدیث تقسیم کړیدې. روستو راتلونکو حضراتود هغه تابعداری کړیده. هم دغه شان علامه سیوطی رحمه الله په تدریب الراوی کښې هم دا تقسیم دعلامه ابن الاکفانی رحمه الله په واسطه بیان کړې دې. په دې تعریف که چرې غوراوکړې شی نو داخبره واضحه کیږی چه علم درایة الحدیث اوعلم اصول حدیث مترادف او هم معنی نه دې ځکه چه په دې تعریف کښې د استخراج معانی هم ذکردې چه د هغې څخه معلومیږی چه دروایت چه داحکامواستنباط هم دعلم درایة الحدیث یوه حصه ده حالانکه په علم اصول حدیث کښې د استخراج معانی متعلق بحث نه کیږی لهذا داخبره صحیح ده چه علم درایة الحدیث اوعلم اصول حدیث په مینځ کښې دعموم او دخصوص نسبت دې علم درایة الحدیث عام او علم اصول حدیث خاص دې. ددې تجزیې په رڼړا کښې دا وئیلې شی چه دعلم درایة الحدیث هم دوه شاخونه دی:

① علم اصول حدیث: په دې کښې دروایت داسنادی حیثیت په باره کښې بحث کیږی.

② علم فقه الحدیث: په دې کښې چه دیوحدیث څخه داحکامواودمسائلو استنباط نه بحث کیږی.

**د علم حدیث موضوع:** ① بعضو وئیلې دی. چه سند او متن دعلم حدیث موضوع ده

② بعضې علماؤ وئیلې دی دعلم حدیث موضوع دنبی کریم ﷺ اقوال، افعال او احوال دی.

③ خودتولونه مقبول قول دعلامه کرمانی رحمه الله دې هغوی وئیلی دی چه دعلم حدیث موضوع درسول الله ﷺ ذات دې.

**اشکال:** علامه سیوطی رحمه الله په تدریب الراوی کښې لیکلې دی. چه زمااستاذعلامه محی الدین کافیجی به دعلامه کرمانی رحمه الله په دې قول اعتراض کولو او وئیل به ئې چه درسول الله ﷺ ذات خودعلم طب موضوع کیدې شی دعلم حدیث نه؟

**د اشکال جواب:** علامه سیوطی رحمه الله فرمائی: چه زه دخپل شیخ په دې خبره ډیرحیرانیږم ځکه چه علامه کرمانی رحمه الله ذات لره ((من حیث هی هی)) دعلم حدیث موضوع نه ده نیودلې بلکه ((من حیث انه رسول الله صلی الله علیه وسلم)) ئې موضوع ګرځولې ده اوظاهره خبره ده چه هغه دعلم طب موضوع نه ده نودکافیجی دا اعتراض صحیح نه دې.

**تحقیقی قول:** تحقیق ته رسیدلې خبره داده چه د رسول الله ﷺ ذات ((من حیث انه رسول

الله صلى الله عليه وسلم)) مطلق علم حديث موضوع ده اوسند او متن د علم دراية الحديث موضوع ده

**دعلم حديث غرض وغايت:** دعلم حديث غرض و غايت دادي ((الاهتداء بهدى النبي صلى الله عليه وسلم)) او اخروى غايت د ټولودينى علوموبيودي يعنى ((الفوزبسعادة الدارين))

**د علم حديث شرف اوفضيلت:** ترکومې چه دعلم حديث دشرافت اوفضيلت تعلق دې نودې دپاره دخه اوږد بيان ضرورت نشته دې د قرآن او د حديث بې شميره نصوص ددې علم فضيلت ثابتوى دلته نه ددې استيعاب مقصوددې اونه ممکن دې که ضرورت وى نو دحافظ ابن عبدالبر اندلسى کتاب "جامع بيان العلم وفضله" طرف ته دې رجوع اوکړې شى البته ددې علم دفضيلت دپاره دومره خبره هم کافي ده چه ددې په وجه د ډيردرودشريف دلوستو موقع ملاويږى. ځکه چې کله هم د نبى کريم ﷺ نوم يا صفت راشى نو درود پرې لوستلې شى اود درود فضائل بې شميره دى

**د علومو دوه قسمونه:**

**اول قسم:** علماء فرمائى چه دعلوموبو قسم علوم نقليه دى

بيا دغه شان دا علوم نقليه په دوه قسمه دى

① علوم نقليه عاليه ② علوم نقليه آليه،

په اول قسم يعنى علوم نقليه عاليه کښې تفسير، حديث اوفقه وغيره شامل دى

او په ټولو کښې اشرف ترين دا قسم دى اوعلم حديث هم دى سره تعلق لرى

په دويم قسم يعنى په علوم آليه نقليه کښې علوم عربيت لکه صرف اونحو اوبلاغت شامل دى

**دويم قسم:** اود علومو دويم قسم علوم عقليه دى.

بيا دا علوم عقليه هم په دوه قسمه دى ①علوم عقليه عاليه ② علوم عقليه آليه،

په اول قسم يعنى په علوم عقليه عاليه کښې فلسفه، رمل [1]، جفر، [2] نجوم وغيره شامل دى اوپه دويم قسم يعنى په علوم عقليه آليه کښې منطق وغيره شامل دى

---

[1]) دا يو داسې علم دې چې په دې کښې په شړو باندې کرښې راښکلې شى اود راروانې زمانې حالات معلومولى شى دا علم د يو قول مطابق دحضرت دانيال عليه السلام اود بل قول مطابق حضرت ادريس عليه السلام ته ښودلې شوې وو خوپه دې زمانه کښې د دې علم پوهيدونکې څوک نشته اوکه څوک د دې دعوى اوکړى نو دروغژن به وى

[2]) ((په دې علم کښې د حروف د اسرارو څخه بحث کولې شى د دې د ماهرينو دعوى ده چې هغوى د دې په مدد سره د راروانې زمانې حالات اوواقعات معلومولى شى خو د شريعت په رڼړا کښې د دې هيڅ څه حيثيت نشته او نه د دې زده کول صحيح دى)).

## حجية الحديث:

**د مغربی تهذيب څخه متاثرين:** دامت محمديه علی صاحبها الصلاة والسلام په دې باندې اجماع ده چه دقرآن مجيد څخه روستو ددين دوئم اهم ماخذحديث دې ليکن دشلمې صدئ په شروع کښې چه کله په مسلمانانوباندې دمغربی قومونوتسلط زيات شو نو دکم علمه مسلمانانويوه داسې ډله پيدا شوه چه د مغربی افکارونه ډيرمتاثره وه هغوئ دا ګڼړله چه دمغرب د تقليد څخه بغيرپه دنياکښې ترقی نه شی حاصليدې ليکن داسلام ډير احکامات ددوئ په لاره کښې خنډ وو ددې وجې دوی په اسلام کښې دتحريف سلسله شروع کړه چه دادمغربی افکارومطابق جوړکړی دې طبقې ته اهل تجدد وائی

**د انکار حديث بانيان:** په هندوستان کښې سرسيداحمدخان، په مصرکښې طه حسين، په ترکی کښې ضيا ګوک الپ ددې طبقې مشران وو ددې ډلې مقاصد تر هغې پورې نه حاصليدل کومې پورې چه حديث دلارې نه لرې کړې شوې نه وی څکه چه په احاديثو کښې د ژونددهرې شعبې متعلق داسې مفصل هدايات موجود دی کوم چه د مغربی افکارو سره ښکاره ټکر خوری چنانچه ددې طبقې بعضې افرادوحديث لره دحجت منلو څخه انکاروکړو

**د سرسيد طريقه کار:** دا اوازپه هندوستان کښې دټولوڅخه مخکښې سر سيد احمد خان او دهغه ملګری چراغ علی پورته کړوليکن هغوئ دانکار حديث نظريه علی الاعلان ښکاره اوپه وضاحت سره دپيش کولوپه ځائې داطريقه خپله کړه چه چرته ورته يوحديث دخپلې مدعاخلاف په نظرراغې نو د هغې حديث دصحت نه ئې انکار اوکړو اګرچه ددې سندبه هرڅومره قوی وو کله کله به يې ددې خبرې هم اظهارکيدو چه په موجوده زمانه کښې دا احاديث حجت کيدل نه دی پکاراودې سره سره به ئې په بعضې مقاماتوکښې دخپل مطلب د احاديثوڅخه استدلال هم کولوهم په دې طريقه تجارتی سود حلال کړې شو، د معجزاتو نه انکار اوکړې شو، د پردې نه انکاروکړې شو او ډيرومغربی نظرياتو ته سند د جوازورکړې شو

**په انکار حديث کښې ترقی:** ددوئ څخه روستوپه نظريه انکارحديث کښې نوره هم ترقی اوشوه او دې نظرئې ته په منظم طريقې سره دعبدالله چکړالوی په مشرئ کښې ترقی اوکړه او دا د يوې فرقې بانی وو چه خپل ځان ته به ئې اهل قرآن وئيلودهغه مقصد دحديث نه کلية انکارکول وو د دې څخه روستواسلم جيراج پورې داهل قرآن نه علاوه دې نظرئې ته ترقی ورکړه تردې چه غلام احمدپرويز ددې فتنې واګې په خپلولاسوکښې واخستلې اودې ته ئې ديوې منظمې نظرئې او د مکتبِ فکر شکل ورکړو په نوجوانانو باندې دهغه په تحريرکښې ډير اثر وو ددې وجې نه دهغه په زمانه کښې دافتنه ډيره

خوره شوه دلته به مونږ د دې فتنې په بنيادي نظرياتو مختصرې خبرې کوو

**دمنکرين حديث درې نظرئې ؛**

دمنکرين حديث له طرفه چه کومې نظرئې تر اوسه مخې ته راغلې دی هغه درې قسمه دی ① درسول الله ﷺ فريضه صرف دقرآن رسول وو صرف دقرآن اطاعت واجب دې دنبي کريم ﷺ اطاعت ((من حيث الرسول)) نه په صحابو ﷺ باندې واجب وو اونه په مونږه باندې (معاذالله) او وحی صرف متلو ده وحی غيرمتلو هډو څه څيز نه دې اودقرآن دپوهې دپاره دحديث ضرورت نشته

② دنبي کريم ﷺ ارشادات په صحابو ﷺ باندې حجت وو په مونږه نه دې

③ دنبي کريم ﷺ ارشادات په ټولو انسانانو حجت دی ليکن موجوده احاديث مونږ ته په قابل اعتماد ذرايعو سره نه دی رارسيدلې د دې وجې مونږ ددې په منلو مکلف نه يو د منکرين حديث تعلق که دهرې ډلې سره وی دهغوئ ليك په دې دريو نظرياتو کښې خامخا د يو ترجماني کوی دې وجې مونږ به په دې متضاد نظرياتو کښې په هريو مختصرې خبرې کوو

**داولنۍ نظرئې ترديد:** ① ((وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ اَنْ يُّكَلِّمَهُ اللّٰهُ اِلَّا وَحْيًا اَوْ مِنْ وَّرَآئِ حِجَابٍ اَوْ يُرْسِلَ رَسُوْلًا فَيُوْحِيَ بِاِذْنِهٖ مَا يَشَآءُ)) په دې آيت کښې دارسال رسول الله ﷺ څخه علاوه وحياً يو مستقل قسم ذکر کړې شوې دې هم داوحی غيرمتلوده

② ((عَلِمَ اللّٰهُ اَنَّكُمْ كُنْتُمْ تَخْتَانُوْنَ اَنْفُسَكُمْ)) دې آيت کښې ئې د رمضان په شپو کی د جماع کولو څخه تعبيرپه خيانت سره اوکړو او روستوئې اجازت ورکړو دې څخه معلومه شوه چه قرآن کريم داواضحه کړله چه دې څخه وړاندې دحرمت دجماع حکم وو حال دا دې چه داحکم په قرآن کريم کښې چرته هم ذکرنه دې نو خامخا به داحکم دوحی غيرمتلوپه ذريعه وو او د دې مخالفت دقرآن کريم په نظرکښې خيانت وو

③ په قرآن کښې دی ((وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِيْ كُنْتَ عَلَيْهَآ اِلَّا لِنَعْلَمَ مَنْ يَّتَّبِعُ الرَّسُوْلَ مِمَّنْ يَّنْقَلِبُ عَلٰى عَقِبَيْهِ)) په دې کښې د "القبلة" څخه مرادبيت المقدس دې اودې طرف ته دمخ کولوحکم الله پاك د "جعلنا" په لفظ سره خپل ځان ته منسوب کړې دې حال دادې چه په پوره قرآن کښې چرته هم بيت المقدس ته د مخ کولوحکم ذکر نه دې نو خامخا دا حکم به د وحی غيرمتلوپه ذريعه وو او خپل طرف ته منسوب کولو سره الله تعالی دا واضحه کړله چه د وحی غيرمتلوحکم هم واجب التعميل دې څنګه چه دوحی متلو دې

④ ((وَاِذْ يَعِدُكُمُ اللّٰهُ اِحْدَى الطَّآئِفَتَيْنِ اَنَّهَا لَكُمْ)) دې کښې هم چه دکومې وعدې ذکردې هغه د وحی غيرمتلوپه ذريعه وو څکه چه قرآن کريم کښې چرته هم د دې وعدې ذکرنشته

⑤ ((وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللّٰهُ بِبَدْرٍ وَّاَنْتُمْ اَذِلَّةٌ)) ((الى قوله تعالى)) ((وَمَا جَعَلَهُ اللّٰهُ اِلَّا بُشْرٰى لَكُمْ وَلِتَطْمَئِنَّ قُلُوْبُكُمْ بِهٖ وَمَا النَّصْرُ اِلَّا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ)) دا آيت د غزوه احد په موقع نازل شوې وو اودې کښې داوئيلې شوې دی چه الله تعالی په غزوه بدرکښې د فرشتو د نازليدو پيشن گوئی کړې وه حال دا دې چه دا پيشن گوئی په قرآن کښې چرته هم ذکرنه ده ظاهره ده چه دا د وحی غيرمتلوپه ذريعه وه

⑥ ((سَيَقُوْلُ الْمُخَلَّفُوْنَ اِذَا انْطَلَقْتُمْ اِلٰى مَغَانِمَ لِتَاْخُذُوْهَا ذَرُوْنَا نَتَّبِعْكُمْ يُرِيْدُوْنَ اَنْ يُّبَدِّلُوْا كَلٰمَ اللّٰهِ قُلْ لَّنْ تَتَّبِعُوْنَا كَذٰلِكُمْ قَالَ اللّٰهُ مِنْ قَبْلُ)) په دې آيت کښې دا ذکردی چه دمنافقانوپه غزوه خيبرکښې دنه شريك کيدوپيشن گوئی الله تعالی دوړاندې نه کړې وه ظاهره ده چه داپيشن گوئی هم د وحی غيرمتلوپه ذريعه وه ځکه چه قرآن کريم کښې ددې چرته ذکرنشته

⑦ ((وَاِذْ اَسَرَّ النَّبِيُّ اِلٰى بَعْضِ اَزْوَاجِهٖ حَدِيْثًا فَلَمَّا نَبَّاَتْ بِهٖ وَاَظْهَرَهُ اللّٰهُ عَلَيْهِ عَرَّفَ بَعْضَهٗ وَاَعْرَضَ عَنْۢ بَعْضٍ فَلَمَّا نَبَّاَهَا بِهٖ قَالَتْ مَنْ اَنْۢبَاَكَ هٰذَا قَالَ نَبَّاَنِيَ الْعَلِيْمُ الْخَبِيْرُ)) دې کښې صفا ذکردی چه دحضرت عائشه رضي الله عنها او حضرت حفصه رضي الله عنها پوره واقعه الله تعالی په نبی کريم ﷺ ظاهره کړې وه اوقرآن کښې چرته هم داواقعه ذکرنه ده نو خامخا به دا د وحی غيرمتلوپه ذريعه وه

⑧ ((فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ حَتّٰى يُحَكِّمُوْكَ فِيْمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوْا فِيْۤ اَنْفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا)) دې آيت څخه صفاواضحه ده چه د نبی ﷺ د ارشاداتو اطاعت نه صرف واجب بلکه دايمان مداردې

⑨ دنبی کريم ﷺ د فرائضِ منصبی د بيانولو په موقع وئيلې شوې دی ((وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ)) ددې آيت څخه صفاواضحه ده چه د دوئ منصب معاذالله د ډاکی په شان صرف پيغام رسول نه وو بلکه تعليم دکتاب او د حکمت اوددې تشريح بيانول هم وو اوس سوال دادې چه ددوئ ﷺ ارشادات حجت نه دې نو دکتاب اودحکمت تبيين څنگه کيدې شی آيا دکتاب الله دتشريح او تبيين دپاره به دوئ ته دخپل طرف نه دخبرې کولوضرورت نه راتلو؟ اوظاهره ده چه دې څخه بغيرتعليم ممکن نه دې نو که د نبی ﷺ خبرې حجت نه شی نوبيادتعليم څه فائده

⑩ په قرآن کښې ځائې په ځائې د ((اَطِيْعُوا اللّٰهَ)) سره د ((وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ)) ذکردې چه صراحة په حجت حديث دلالت کوی

**په دې دليل بالدې يوه شبه:** دې باره کښې عموما منکرين دحديث داوائی چه دا اطاعت په حيثيت دحجت فی الشرع کيدونه دې بلکه په دې حيثيت دې چه دې مرکزدملت دې ياحاکم دملت دې يعنی ددوئ فرمان ديوحاکم په حيثيت د دغه زمانې په خلقوواجب العمل وو اوددوئ نه پس چه کوم حاکم هم راځی دهغه اطاعت به کيږی نه ددوئ ﷺ

**دوه جوابونه:** ① يو خو دا چه دحاكم داطاعت مستقل ذكر دې يعنى (( أُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ ))دې د وجې اطاعت رسول په دې نه شى محمول كيدې

② دويم دلته د اطيعوالرسول جمله استعمال شوې ده اودامسلم قاعده ده چه كله په يو اسم مشتق حكم اولګولې شى نوماده داشتقاق ددې حكم علت اومداروى لكه اكرم العالم كښې داكرام علت علم دې دغه شان اطيعوا الرسول كښې داطاعت علت رسالت دې نه حاكميت

④ په قرآن مجيد كښې په ډيرو ځايونو كښې د مخكينو انبياؤ خبرې او واقعات نقل دى او دهغوى ارشادات دهغوى د امتونو دپاره واجب العمل ګرځولې شوى دى، اوپه نه منلو پرې عذاب نازل كړې شوې دې دا خبره د حجيت حديث واضح دليل دې

③ په مخكينو انبياؤ كښې ډير حضرات داسې تيرشوى دى چه په هغوى باندې هيڅ كتاب نه دې نازل شوې، كه چرې دهغوى ارشادات واجب العمل نه وو نوهغوى بيا راليږلې شوى وو؟

④ په قرآن كريم كښې دحضرت ابراهيم عليه السلام د خوب واقعه ذكرده چه په هغې كښې د ځوى د ذبح كولو حكم وركړې شوې وو، ددې نه دا ثابتيږى چه د انبياء عليهم السلام خوب هم وحى وى، او ښكاره ده چه دا وحى غيرمتلو ده (درس ترمذى ص ۲۸، ۲۹)

**عقلى دلائل:** ① صرف رسول نه بلكه معلم كيدل ضرورى دى د مشركين مكه دا خواهش وو چه كتاب الله دې د رسول دواسطې په ځائې په مونږ براه راست نازل شى (( حَتَّىٰ تُنَزِّلَ عَلَيْنَا كِتَابًا نَّقْرَؤُهُ )) ظاهريده چه داسې صورت كښې به معجزه هم زيانه ظاهره وه او د مشركانو دايمان راوړوبه هم زيات اميد وو. خو الله تعالى داطريقه اختيارنكړه سوال دادې چه كه احاديث حجت نه وې نو په رسول راليږلوولې اصرارشوې دې ؟ په حقيقت كښې درسول ارسال ځكه شوې دې چه يواځې كتاب ديوقوم داصلاح دپاره كله هم نه شى كافى كيدې. تر څو چه داسې يو معلم نه وى چه ددې معانى متعين كړى اوپه خپله ددې عملى نمونه په خپل عمل اونښائى اوداترهغه وخته پورې ممكن نه ده ترڅو چه د ده هريوفعل اوقول واجب الاتباع نه وى

**قرآن اجمال او احاديث تشريح ده:** ②په قرآن كريم كښې چه دژوند دهرې شعبې متعلق كوم هدايات وركړې شوى دى هغه عموماپه خو بنيادى احكامومشتمل دى، ددې احكامو تفصيل اودعمل طريقه احاديثوبيان كړې ده. دمونځ كولوطريقه اوددې اوقات اوشمير د ركعتونودې كښې يوځيزهم په قرآن كښې ذكرنه دې، كه احاديث حجت نه منى نو په (( اقيموا الصلوة )) باندې د عمل كولوطريقه به څه وى؟ كه يوسړې دا اووائى چه دصلوة

معنی دعربی لغت په اعتبار تحریك الصلوین یعنی د کوناتو خوزول نو د "اقیموالصلوة" مطلب دادې چه درقص ادې جورې کړی. نو ددې به تاسره څه جواب وی؟

③ آیا ټول امت ترڅوارلس سوه کالو پورې په حجیت حدیث نه وو پوهه شوې؟ ټول امت بلااستثناء احادیث حجت منی که داټول خلق ګمراه وو اوڅوارلس سوه کالوکښې دپرویز صاحب څخه علاوه په اسلام پوهیدونکې پیدا شوی نه وو نو بیا د ا سوچ پکاردې چه آیا هغه دین قابل اتباع کیدې شی چه په کوم تر څوارلس سووکالو پورې یوفردبشرهم نه وی پوهه شوې

## د منکرینِ حدیث څو دلائل:

① **قرآن آسان دې:** منکرین حدیث دټولونه اول داآیت دلیل کښې وړاندې ((وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ)) دوئ وائی چه ددې آیت مطابق قرآن ډیرآسان دې د دې وجې په دې دپوهیدو اوپه دې دعمل کولودپاره دچادتعلیم اودتشریح حاجت نشته

**جواب:** دقرآن کریم مضامین په دوه قسمونومشتمل دی څه مضامین خوداسې دی چې دهغې مقصد د الله تعالی ویره، دآخرت فکر، الله تعالی ته د رجوع پیدا کول،او د عام نصیحت خبرې کول دی.اوڅه داسې دی چه هغې کښې احکام اوشرائع اودهغې اصول بیان شوې دی ((وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ ))د ړومبې قسم مضامینومتعلق دې ددوئم قسم سره نه دې اودهغې دلیل دادې چه ((وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرآنَ)) سره د للذکر قید لګولې شوې دې که استنباط د احکاموهم آسان وې نو دا قیدبه نه وو بیا وړاندې ((فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ)) وئیلې شوې دې ((هل من مستنبط،هل من مجتهد)) نه دی وئیلې شوې د دې څخه علاوه په څو آیتونو کښې وضاحت شوې دې چه په دې کتاب بغیر د رسول څخه پوهیدل نه شی کیدې مثلا ((وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ))

② **قرآنی آیاتونه واضح دی:** منکرین احادیث وائی چه قرآن ځائې په ځائې خپل آیات بینات ګرځولې دی دې څخه معلومیږی چه دا پخپله واضح دی اودتوضیح ضرورت نشته

**جواب:** دا مضمون همیشه دبنیادی عقائدوسره متعلق راوړې شوې دې. مطلب دا دې چه دتوحید، رسالت اورآخرت دلائل داسې واضح دی چه لږې توجه سره زړه ته ننوځی. نه د عیسیانو د عقیدهٔ تثلیث په شان چه ټوله دنیا پرې نه پوهیږی. د دې څخه دانه لازمیږی چه د احکامو په معامله کښې هم دابالکل آسان دې یا ګنی ددې دتوضیح دپاره دیورسول حاجت نشته

③ **نبی دعامو انسانانو پشان انسان دې:** ((إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوحَىٰ إِلَيَّ)) منکرین حدیث وائی چه

دې آيت کښې حضرت محمد ﷺ دنوروانسانانوپه شان انسان ګرځولې شوې دې. په دې وجه دا آيت صريح دې چه په دوئ نازل شوې وحی متلوخوواجب الاتباع ده. خوپخپله ددوئ ارشادات واجب عمل نه دی.

**جواب:** په حقيقت کښې د دوی دا استدلال آيت له د سياق نه جدا کولو سره کړې شوې دې په حقيقت کښې دا آيت دمشرکانو په جواب کښې راغلې دې، چه دنبی کريم ﷺ نه به ئې د معجزاتومطالبه کوله، جواب کښې ئې ورته اوفرمائيل چه زه ستاسوپه شان بشريم زه په خپلې مرضئ سره په معجزوخودلوقادر نه يم ترکومې چه الله تعالی اونه غواړی، دې څخه معلومه شوله چه مثلکم کښې تشبيه صرف په((عدم القدرة على المعجزة بغيرمشية الله)) کښې ده. من کل الوجوه نه ده.

بله دا چه هم دې آيت کښې دنوروانسانانوسره مابه الفرق وحی ګرځولې شوې ده.اود وحی لفظ مطلق استعمال شوې دې. کوم چه وحی متلواوغيرمتلودواړوته شامل ده لهذا د دې څخه واجب الاتباع نه کيدوباندې استدلال لغودې.

④ **د نبی په بعضې افعالو انکار خداوندی:** منکرين حديث دهغه واقعاتونه هم استدلال کوی چه په کوموکښې چه دنبی کريم ﷺ په څه عمل باندې قرآن کريم کښې عتاب نازل شوې دې، مثلاً په غزوه بدرکښې قيديان په فديه آخستوپريښودل. ددوئ وينا داده چه دې واقعه کښې قرآن کريم تصريح کړې ده، چه دنبی کريم ﷺ فيصله درضاء الهی موافق نه وه، دې وجې د نبی عليه السلام اقوال اوافعال على الاطلاق حجت نه شی کيدې

**جواب:** د دې جواب دا دې چه دې واقعاتوکښې بې شکه دوئ نه اجتهادی لغزش شوې وو، چه په هغې د وحی په ذريعه متنبه شو، خوکه غوراوکړې نوهم دا واقعه په حجيت حديث دلالت کوی، څکه چه ترکومې قرآن شريف په دې اجتهادی لغزش باندې تنبيه نه وه کړې ترهغې پورې صحابو رضی الله عنهم د دوئ ﷺ ددې حکم اتباع اوکړه، اوچه کله قرآنی تنبيه نازل شوه، نودې کښې په نبی کريم ﷺ د مينې په انداز کښې عتاب دې ((مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَكُونَ لَهُ أَسْرَىٰ حَتَّىٰ يُثْخِنَ فِي الْأَرْضِ ۚ..الخ))

خو په صحابه کرامو باندې دا اعتراض نه دې شوې چې په دې فيصله کښې تاسو ولې ددوئ اتباع اوکړله. دې څخه صفامعلوميږی چه دې معامله کښې صحابو رضی الله عنهم دنبی کريم ﷺ اتباع اوکړه او خپله فريضه ئې اداکړې وه اود نبی عليه السلام دفيصلې پوره ذمه واری هم په دوی ﷺ باندې پخپله وه

⑤ **دتابير د والغې نه استدلال:** منکرين حديث دهغه واقعه نه هم استدلال کوی، په کومه کښې چه دوی ﷺ انصارمدينه دتابيرنخل نه منع کړل. يعنی صحابه کرامو به په مدينه

کښې په قجورو کښې قلم لګول په دې سره به د قجورو په پيداوار کښې اضافه کيده نبی کريم ﷺ دوی د دې څخه منع کړل نو په راروان کال قجورې کمې اوشوې نبی کريم ﷺ د کمی د سبب پوښتنه اوکړه نو صحابو ﷺ ورته د تابير نه کولو سبب اوخودلو په دې باندې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل ((انتم اعلم بامور دنياکم)) يعنی دې معامله کښې ځما اتباع په تاسو واجب نه ده

**جواب:** د دې جواب دا دې چه دنبی کريم ﷺ دارشاداتودوه حيثيتونه دی يو هغه ارشادات چه دوی په حيثيت درسول الله ﷺ بيان کړې دی. اودويم هغه ارشادات چه دوی ﷺ دشخصی مشوروپه حيثيت بيان کړې دی نود((انتم اعلم بامور دنياکم)) تعلق د دوئم قسم سره دې اومحل دبحث رومبې قسم ارشادات دی د دې وجې دا استدلال صحيح نه دې.

**اشکال:** په دې دا اشکال کيدې شی چه داپته لګول زمونږ دپاره ګرانه ده چه کوم ارشاد په کوم حيثيت دې، د دې وجې د دوئ ﷺ افعال اواقوال علی الاطلاق حجت نه شې کيدې

**جواب:** ددې جواب دا دې چه د دوئ ﷺ اصل حيثيت د رسول د حيثيت دې د دې په وجه ددوئ ﷺ هرقول اوفعل به په دې حيثيت محمول وی اوحجت به وی مګردا چه څه دليل ياقرينه په دې قائمه شی چه دا ارشاد دشخصی مشورې حيثيت لری اوواقعه هم دا ده چه پوره ذخيره داحاديثو کې دشخصی مشورومثالونه دشمير يو څودی اوپه داسې مقاماتودا تصريح موجوده ده چه دا ارشاد شرعی حکم نه دې بلکه شخصی مشوره ده د دغه څومقاماتوڅخه علاوه نورټول ارشادات په حيثيت د رسول دی اوحجت دی

**د دويمې نظريې ترديد:**

د دې نظرئې مطابق احاديث د صحابو دپاره حجت وو زمونږ دپاره حجت نه دی. دا نظريه داسې بديهی البطلان ده چه ددې دترديد دپاره دتفصيل ضرورت نشته. ددې خلاصه خود اراوځی چه معاذ الله دنبی کريم ﷺ رسالت صرف عهد دصحابو ﷺ پورې مختص وو حال دا دې چه په لاندينی آيتونوسره ددې صراحة ترديد کيږی

① ((وَمَآ اَرْسَلْنٰكَ اِلَّا كَآفَّةً لِّلنَّاسِ بَشِيْرًا وَّنَذِيْرًا)) اومونږ ته د ټولو خلقو دپاره زيرې ورکونکې او ويرونکې ليږلې يې

② (( قُلْ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ جَمِيْعًا)) اې خلقو زه ستاسو ټولو طرف ته پيغمبر (راليږلې شوې) يم

③ ((تَبٰرَكَ الَّذِيْ نَزَّلَ الْفُرْقَانَ عَلٰى عَبْدِهٖ لِيَكُوْنَ لِلْعٰلَمِيْنَ نَذِيْرًا)) د برکت خاوند دې هغه ذات چې په خپل بنده باندې يې قرآن نازل کړې دې دې دپاره چې د ټولو خلقو دپاره ويرونکې شی

④ ((وَمَآ أَرۡسَلۡنَٰكَ إِلَّا رَحۡمَةٗ لِّلۡعَٰلَمِينَ﴿﴾)) او مونږه ته د ټول مخلوق دپاره رحمت رالیږلي یې دینه علاوه بنیادي سوال دا دې، چه دفهم القرآن دپاره دتعلیم درسول الله ﷺ حاجت شته اوکه نه ؟ که نه وی نورسول ئې ولې رالیږلي وو اوکه شته نوعجیبه خبره ده چه صحابو ته خودتعلیم ضرورت وو اومونږ ته نشته حال دادې چه صحابود نزول قرآن په خپله مشاهده کړې وه د اسبابو د نزول څخه پوره پخپله خبردارووه د نزول قرآن ماحول ددوئ وړاندې وو، اومونږ ددې ټولو څخه محروم یو

ددې په جواب کښې منکرین حدیث هم هغه زړه خبره کوی چه ددوئ ﷺ اطاعت په صحابو په حیثیت د مرکزِ ملت واجب وو نه په حیثیت درسول، خو ددې خبرې تردید شوې دې

**د دریمي نظریې تردید:**

داوئیل بالکل غلط دی چه احادیث حجت خودی خومونږ ته په قابلِ اعتماد ذریعې سره نه دی راغلی په دې دلائل دی

**الزامی جواب:** مونږ ته قرآن شریف هم په هغه واسطو رارسیدلي دې په کومو واسطو چه حدیث راغلي دې اوس که دا واسطې ناقابلِ اعتماددی نودقرآن شریف نه هم لاس وینځل پکار دی

**د منکرین حدیث جواب:** منکرین حدیث ددې جواب دا ورکوی، چه د قرآن شریف د حفاظت ذمه الله تعالی پخپله اخستې ده الله تعالی فرمائی ((انا له لحافظون)) دحدیث په باره کښې داسې ذمه واری نشته

**دجواب څخه جوابونه:** (ا) خوددې ړومبې جواب دادې چه ((إِنَّا نَحۡنُ نَزَّلۡنَا ٱلذِّكۡرَ وَإِنَّا لَهُۥ لَحَٰفِظُونَ﴿﴾)) آیت هم مونږ ته په دغه واسطورارسیدلي دې چه ستاسوپه قول ناقابلِ اعتماددی نو ددې څه دلیل دې چه دا آیات چادخپل خان څخه زیات کړې نه دې

(ب) بله دا چه په دې کښې دقرآن شریف دحفاظت ذمه واری اخستې شوې ده او قرآن د علماء اصول په اتفاق سره د نظم او معنی دواړو نوم دې ددې وجې دا آیت صرف د قرآن پاک د الفاظو د حفاظت دپاره نه دی بلکه د قرآن پاک د معانیود حفاظت ذمه واری هم اخلی اودقرآن شریف د معانیو تعلیم په احادیثو کښې شوې دی

**یواشکال:** اوکه دا اوئیلي شی چه دقرآن شریف منجانب الله کیدل مونږ ته په دغه واسطونه بلکه داعجاز او د بلاغت د وجه ظاهر شوې دې او احادیثو کښې دا اعجازنشته

**جواب:** نو ددې جواب دا دې چه اول خونن صبا دقرآن شریف اعجاز خلقوته دآیات تحدی

شخه ثابتیږي او آیات تحدي هم په دغه واسطورارسیدلې دي. آیا دا نشي کیدې چه آیات دتحدي دغه ناقابل اعتمادواسطودې دپاره زیات کړي وي چه خلق قرآن شریف منجانب الله اوګڼري.

دویمه خبره داده چه داعجازِ قرآن شریف ثبوت د دې واقعې په منلو موقوف دې چه دقرآن شریف دچیلنج په جواب کښې چا داسې کلام وړاندې نه کړې شو. او دا واقعه د احادیثو شخه سوابل ځائې کښې نه معلومیږي.

**احادیث واجب العمل:** چه کله تاداتسلیم کړه چه احادیث واجب العمل دي نودې نه پخپله داتیجه رااوځي چه دا به دقیام قیامته پورې محفوظ وي. ګنی دا به لازم شي چه الله تعالی احادیث خو واجب العمل کړل، خوددې دحفاظت انتظام ئې اونه کړو، ګویابندګان ئې په تکلیف مالایطاق کښې مبتلاءکړل. اوداخبره د((لاَ يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلاَّ وُسْعَهَا)) خلاف ده.

**احادیث اخبار احاد دي:** منکرین حدیث داهم وائي چه احادیث یعنی اخبارآحاد پخپله د محدثینو د تصریح مطابق ظني دي اود ظني تابعداری دقرآن شریف مطابق ممنوع ده ((اِن يَّتَّبِعُونَ اِلاَّ الظن واَنَّ الظَّنَّ لاَ يُغْنِي مِنَ الْحَقِّ شَيْئًا)) یعنی دوی صرف د ګمان تابعداري کوي او ګمان د حق په مقابله کښې هیڅ نه دې

**جواب: د ظن درې معانی:** خو د دوی دا قول هم دجل اوتلبیس دې. خبره داده چه ظن په عربۍ کښې په درې معانیو استعمالیږي

① داټکل اودتخمین په معنی② دظن غالب په معنی③ دعلم یقیني استدلالي په معنی پخپله په قرآن شریف کښې ظن په معنی دیقین مستعمل دې

(ا) ((الَّذِيْنَ يَظُنُّوْنَ اَنَّهُمْ مُّلٰقُوْا رَبِّهِمْ)) هغه خلق چې یقین کوي چې دوی به د خپل رب سره ملاقات کونکی دي

(ب)((قَالَ الَّذِيْنَ يَظُنُّوْنَ اَنَّهُمْ مُّلٰقُوا اللّٰهِ)) هغه خلق به اووائي چې یقین یې کولو چې دوی به د الله تعالی سره ملاقات کوي

(ج)((وَظَنَّ دَاوٗدُ اَنَّمَا فَتَنّٰهُ)) او داود علیه السلام یقین اوکړو چې مونږ په هغه باندې امتحان اوکړو

**احادیثو ته د ظني ویلو وجه:** اوس په دې پوهه شه چه احادیثوته چه ظني ویلې کیږي نو دا د اټکل اوتخمین په معنی کښې نه دي بلکه بعضې ځاینوکښې په معنی دظن غالب او بعضې ځایونو کښې په معنی دیقین راځي اوقرآن شریف کښې چه دکوم ظن دتابعداري نه منع شوې ده هلته دې نه مراداټکل اوتخمین دې ګنې ترکومې چه دظن غالب تعلق دې، شریعت په بې شمیره مسائلو کښې دا حجت ګرځولی دې اوحقیقت دادې چه ددې

دحجت منلو نه بغير انسان يوورځ هم ژوندي نه شي پاتې کيږي. ځکه چه ټوله دنيا په ظن غالب قائم ده، اوحافظ ابن حجرليکلي دي چه اخبار آحاد هم دا قسم ظن غالب پيداکوي البته بعضې اخبار آحاد چه کوم مؤيدبالقرائن وي دادعلم نظري يقيني فائده هم ورکوي، مثلاً هغه احاديث چه کوم مسلسل بالحفاظ والائمه وي.
احاديث چه په کوموواسطومونږ ته رارسيدلي دي په هغې دناقابل اعتمادکيدوفتوى لګول دبې خبرئ دليل دي، په حقيقت کښې داحاديثودحفاظت چه کوم انتظام شوي دي هغه بې نظيردي، چه دهغې تفصيل دتدوين حديث دتاريخ څخه معلوميږي.

**تدوين حديث:**

منکرين حديث وائي چه احاديث په دريمې صدئ هجري کښې مدون شوي دي په دې وجه دا اعتماد نشته چه دا په اصلي صورت به باقي وي، خودا مغالطه بالکل بې بنياده ده ځکه چه دټولونه وړاندې داکتل پکاردي، چه دحديث دحفاظت دعهدرسالت څخه راواخله تراوسه پورې څنګه اهتمام شوي دي
د حفاظت حديث لاره صرف کتابت نه دي بلکه نور قابل اعتماد ذرائع هم دي او دتحقيق څخه معلوميږي چه په عهدرسالت او عهد صحابه کښې دحفاظت حديث دپاره درې طريقې استعمال شوي دي چه لاندې ليك دي.

**د حفاظت حديث درې طريقې:**

**ړومبئ حفظ روايت**: دحفاظت حديث ړومبئ طريقه احاديث يادول دي اودا طريقه ددغه دور په لحاظ سره انتهائي قابل اعتماد وه، اهل عربو ته الله تعالى غير معمولي حافظې ورکړې وې هغوئ به صرف خپلې نه بلکه د خپلو آسونو نسب نامې هم يادې ساتلې، يويوسړي ته به په زرګونو اشعار ياد وو، او ډير کرتې به ئې يوه خبره صرف يو ځل اوليدله ياواوريدله اوپوره به ورته ياده شوه، تاريخ کښې ددې بې شميره مثالونه ملاويږي چه هغې کښې يو دوه دلته بيانيږي.
**دحضرت وحشي** ﷺ: صحيح بخاري کښې دحضرت جعفربن عمروالضمري بيان دې چه زه يوځل دعبيدالله بن عدى بن الخيارسره دحضرت وحشي ﷺ ملاقات ته لاړم، عبيدالله دهغوئ څخه تپوس اوکړوچه تاسوماپيژنئ؟ نو حضرت وحشي ﷺ اوفرمائيل چه زه خوتانه پيژنم البته ماته دومره ياددي چه د نن څخه څوکاله وړاندې زه يو ورځ دعدى بن الخيارنومې يوسړي ته ورغلي ووم، په دغه ورځ دعدى کره يوبچې پيدا شوې وو، مادغه بچې په څادرکښې انغښتي شوې دهغه مرضعې ته يوړو دبچې ټول جسم پټ وو، مائې صرف پښې ليدلې وې او ستاپښې د هغه بچي دپښوسره ډيرې مشابه دي.
**نتيجه**: دغورکولوخبره ده چه کوم قوم دومره معمولي خبرې په دومره اعتمادسره ياد

ساتي هغوئ به د حضرت محمد ﷺ د اقوالو اود افعالو دياد ساتلو څومره اهتمام کوي چه دوئ دا د نجات لار هم ګڼړي بيا خاص طور چه دنبي کريم ﷺ دا ارشادهم د دوي مخې ته راغلې وي. ((نضرالله عبدًا سمع مقالتي فحفظها ووعاها واداها الخ))[1]، نو داخبره واضح ده چه صحابو به ددې ډيرزيات اهتمام کولو

**دابوهريره ﷺ امتحان اخستل:** حافظ ابن حجر په خپل کتاب الاصابة کښې نقل کړې دی چه يوځل عبدالملك بن مروان دحضرت ابوهريره ﷺ دحافظې امتحان اخستلو، نودې ئې راوبللو او د احاديثو داورولو درخواست ئې اوکړو حضرت ابوهريره ﷺ ډير احاديث واورول،يو کاتب به هغه ليکل تردې چې ابوهريره ﷺ لاړلو عبدالملك په بل کال دې بيا راوغوښتواودوئ ته ئې اوونيل چه پروس کال تاسو کوم احاديث راباندې ليکلي وو هغه بيا واوروئ هم په دغه ترتيب، حضرت ابوهريره رضي الله عنه بيا احاديث شروع کړل اوکاتب د خپل کتاب سره ددې مقابله کوله په يوځائې کښې هم د يو حرف يا ديوې نقطې تبديلي اونه کړله خلاصه دا چه ترتيب هم هغه وو او يوحديث هم مقدم مؤخرنه شو.

**استدلال:** دا قسم حيرت انګيز واقعات ددې خبرې دليل دې چه الله تعالى دې حضراتو ته داسې حافظې صرف دحفاظت حديث دپاره ورکړې وې، بلاشبه داسې حافظې دحديث دپاره دومره قابلِ اعتماد ذرائع دی څنګه چه کتابت دې.

**دويمه طريقه تعامل:**

دحفاظت حديث دويمه طريقه چه کومه صحابو ﷺ اختيارکړې وه، هغه دتعامل وه يعنې دوئ به دنبي کريم ﷺ په اقوالو او په افعالو باندې بجنسها عمل کولو او هغه به ئ يادولو. د ډيروصحابو ﷺ نه منقول دی چه دوئ به څه اوکړل او دې نه پس به ئې اوفرمائيل ((هکذا رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم يفعل)) دا طريقه ډيره قابل اعتماد طريقه ده څکه چه په کومه خبره انسان عمل اوکړی هغه په ذهن کښې ((کالنقش على الحجر)) وی.

**دريمه طريقه دکتابت:**

د احاديثو د حفاظت دکتابت په ذريعه سره هم شوې دې اوتاريخي طور باندې کتابتِ حديث په څلورومراتبوتقسمولې شي.

① متفرق طورباندې احاديث ليکل

② ديوسرې په صحيفه کښې احاديث جمع کول. د کومې حيثيت چې دذاتي يادداشت وی.

---

[1]) رواه الشافعي والبيهقي في المدخل ورواه احمد والترمذي وابوداؤد وابن ماجه والدارمي عن زيد بن ثابت كذا في مشكاة المصابيح كتاب العلم الفصل الثاني ۳۵۱۱)

④ احاديث په كتابي صورت كښې بغير د تبويب نه جمع كول
⑤ احاديث په كتابي صورت كښې د تبويب سره جمع كول

**په عهد رسالت كښې رائج دوه طريقې:** په عهد رسالت او عهد صحابه كښې رومبې دوه طريقې د كتابت ښه رائج وې.

**د منكرين حديث په عهد رسالت كښې د كتابت حديث نه انكار:** منكرين حديث په عهد رسالت كښې كتابت حديث نه تسليموي او د مسلم (١) وغيره هغه حديث نه استدلال كوي كوم چې د ابو سعيد خدري نه مروي دې چه دوى ﷺ اوفرمائيل ((لاتكتبوا عني ومن كتب عني غير القران فليمحه)) تاسو زما نه ليكل مه كوئ او چا چې زما څخه د قرآن كريم نه سوا بل څه ليكلي وى هغه دې ورانې كړي

**د منكرين حديث استدلال:** منكرين حديث وائي چه نبي كريم ﷺ د كتابت حديث څخه منع اوكړله دا د دې دليل دې چه دغه زمانه كښې احاديث نه دى ليكلې شوې دغه شان دې څخه دا هم معلوميږي چه احاديث حجت نه دې

**جواب:** خو حقيقت دا دې چه د كتابت حديث دا ممانعت په ابتداء د اسلام كښې وو. او د هغې وجه دا وه چه دغه وخت قرآن كريم په يوه نسخه كښې مدون نه وو بلكه متفرق طور د صحابؤ سره ليكلې شوې وو بل طرف ته صحابه هم تردې وخته پورې د اسلوب قرآن سره مانوس نه وو چه هغوئ په قرآن كريم او غير قرآن كښې په اول نظر سره تميز اوكړي. نو دې حالاتو كښې كه حديث هم ليكلې كيدې نو خطره وه چه قرآن سره به گډوډ شوې وو د دې خطرې د وجې او د دې د انسداد د پاره دوى ﷺ د كتابت حديث ممانعت اوكړو خو چه كله صحابه كرام د اسلوب د قرآن كريم څخه پوره مانوس شو نو دوى ﷺ د كتابت حديث اجازت هم وركړې دې، چه د هغې متعدد واقعات د احاديثو په كتابونو كښې نقل دى

**په عهد رسالت كښې د كتابت حديث واقعات:**

① په جامع ترمذى كښې امام ترمذى په ابواب العلم كښې په دې يو مستقل باب منعقد كړې دې ((باب ما جاء في الرخصة فيه)) او د دې كښې ئې د حضرت ابو هريره ﷺ دا روايت نقل كړې دې چه ((قال كان رجل من الانصار يجلس الى رسول الله ﷺ فيسمع من النبي ﷺ الحديث فيعجبه ولا يحفظه فشكى ذلك الى لرسول الله ﷺ فقال يارسول الله ﷺ انى لاسمع منك الحديث فيعجبنى ولا احفظه فقال رسول الله ﷺ استعن بيمنك واومأ بيده لخط)) (٢)

(١) كتاب الزهد باب التثبت حكم كتابة العلم (٢/٤١٤).
(٢) جامع ترمذى جلد ٢ ص: ١٠٦ و ١٠٧)

④امام ابوداود په خپل سنن کښې او امام حاکم په مستدرك [۱] کښې د حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه نه روایت کوی چه ((کنت اکتب کل شئ اسمعه من رسول الله صلی الله علیه وسلم أرید حفظه فنهتنی قریش وقالوا اتکتب کل شئ تسمعه ورسول الله صلی الله علیه وسلم بشر یتکلم فی الغضب والرضاء فامسکت عن الکتابة فذکرت ذلك الی رسول الله صلی الله علیه وسلم فاومأ باصبعه الی فیه فقال اکتب فوالذی نفسی بیده مایخرج منه الاحق)) [۲]

⑤ عن أبی هریرة رضی الله عنه ان النبی صلی الله علیه وسلم خطب فذکر قصة فی الحدیث فقال أبوشاه اکتبوا لی یارسول الله صلی الله علیه وسلم فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم اکتبوا لابی شاه وفی الحدیث قصة )) هذا حدیث حسن صحیح» [۳]

⑥ مستدرك حاکم کښې هم د عبدالله بن عمرو څخه روایت دې چه نبی علیه السلام اوفرمائیل «قیدوا العلم قلت وما تقییده قال کتابته)) [۴]

**خلاصه د بحث:** دا قسم احادیث ددې خبرې واضح دلیل دې چه دکتابت ممانعت د څه عارض د وجې وو، اوچه کله دغه عارض ختم شو نو ددې صرف اجازت نه بلکه حکم اوشو

**د علامه نووی توجیه:** علامه نووی رحمه الله د کتابت حدیث د منع یوه بله توجیه ذکرکړیده، هغه دا چه مطلق کتابت په یوه زمانه کښې هم ممنوع نه وو، بلکه بعضې حضرات صحابؤبه هغه خائې کښې لیکلو چه د قرآن کریم د آیتونو لیکلو سره به ئې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم تشریح اوتفسیرهم لیکلو دا صورت ډیرخطرناك وو څکه چه دې سره دقرآنی آیتونو د التباس ډیره خطره وه نو صرف ددې صورت ممانعت شوې وو. دقرآن کریم څخه جُدا د حدیث د لیکلو ممانعت نه وو، دعلامه نووی رحمه الله دا توجیه ډیره قرین قیاس وه

**تائید:** ددې تائید دسنن نسائی دیو روایت څخه هم کیږی کوم چې امام نسائی [۵] نقل کړیده چه حضرت عائشه رضي الله عنها خپل یوغلام ته دقرآن کریم د لیکلو حکم اوکړو، اوچه کله هغه دې آیت ته را اورسیدلو «حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلَاةِ الْوُسْطَىٰ وَقُومُوا لِلَّهِ قَانِتِينَ )) [۶] نو عائشه رضي الله عنها د لفظ د وسطی څخه روسته د «وصلوة العصر» زیاتولو حکم اوکړو. او ښکاره ده چه لفظ "العصر" دقرآن کریم جزء نه وو بلکه په طور د تشریح زیات کړې شوې

---

[۱] ۱۰۴\۱ کتاب العلم الامر بکتابة الحدیث
[۲] ) لفظه لابی داؤد ۵۱۳\۲ او ۵۱٤ کتاب العلم.))
[۳] ) ترمذی ۱۰۷\۲ ابوب العلم باب ماجاء فی الرخصة فیه ورواه البخاری فی کتاب العلم تحت باب کتاب العلم ۲۱\۱، ۲۲)
[۴] ) مستدرک ۱۰۶\۱ کتاب العلم باب قیدوا العلم بالکتابة)
[۵] ) "کتاب الصلوة " ((باب المحافظة علی صلوة العصر))
[۶] ) البقرة: ۲۳۸

وو اوپه دغه زمانه کښې د شرح او متن د امتیازدپاره هغه علامات رائج نه وو کوم چې روستو رائج شول د دې څخه معلومیږی چه نورو صحابو کرامو رضی الله عنهم به د دوی ﷺ بیان کړې تشریحات هم داسې لیکل، ظاهره ده چه که دا رواج عام شوې وې نو دقرآن کریم د متن تعیین اوحفاظت به یولوې درد سر وو. نوحقیقت کښې دکتابت حدیث څخه دممانعت وجه ددې عظیم خطرې سدباب وو خو د قرآن کریم څخه بیل د حدیث دلیکلو رواج په هره زمانه کښې جاری وو بلکه په عهدصحابه کښې دحدیث څومجموعې چه کوم د ذاتی نوعیت وې تیارې شوې وې ددې څومثالونه لاندې لیکو

**په عهد نبوی کښې د کتابت حدیث ذاتی مجموعې:**

① **الصحيفة الصادقة** : مسند احمد کښې روایت دې چه حضرت عبدالله بن عمروبن العاص رضی الله عنه چه کومه د احادیثو مجموعه تیاره کړې وه. دهغې نوم ئې "الصحيفة الصادقة" ایښې وو دا په عهد صحابو کښې د حدیثو په مجموعه کښې د ټولو څخه زیاته ضخیمه وه، د دې د احادیثو پوره تعداد په یقینی طور نه دې معلوم خو د حضرت ابوهریره رضی الله عنه د یوروایت څخه چه په صحیح بخاری کښې موجود دې [۱] په دې څه رڼا پریوځی هغه فرمائی ((مامن اصحاب النبی صلی الله علیه وسلم أحد أكثرحديثا عنه،أي عن النبي صلى الله عليه وسلم مني الا ماكان من عبدالله بن عمروفانه كان يكتب ولا أكتب)) دې څخه معلومه شوه چې د حضرت ابن عمرو رضی الله عنه احادیثو د حضرت ابوهریره رضی الله عنه داحادیثو څخه زیاته وو دحضرت ابوهریره رضی الله عنه درواياتو تعداد پنځه زره درې سوه څلور شپیته یا پنځه زره درې سوه څلوراویا دی اوصحیح قول هم دا دویم دې. د دې وجې د ابن عمرو رضی الله عنه احادیث به ددې څخه یقیناً زیات وی بل طرف ته دعبدالله بن عمرو رضی الله عنه دا ارشادپه حواله دابوداود تیرشوې دې چه ((کنت اکتب کل شئ اسمعه من رسول الله صلی الله علیه وسلم)، د دې څخه اندازه کیدې شی چه د "الصحيفة الصادقة" احادیث دپنځه زره درې سوه څلورشپیتو څخه زیات وو

**اشکال:** په دې دا اشکال کیدې شی چه دعبدالله بن عمرو رضی الله عنهما مرویات چه د مختلفو کتابونو په ذریعه مونږ ته رارسیدلې دی هغه د حضرت ابوهریره رضی الله عنه د مروياتو نه لږ دی نو بیاحضرت ابوهریره رضی الله عنه څنګه فرمائی چه ده ته څما څخه زیات احادیث یاد وو؟

**جواب:** ددې جواب دا دې چه د احادیثو دیادیدو مطلب دا نه دې چه ده کوم احادیث یادکړې دینوهغه دې د نوروخلقو وړاندې هم روایت کړی وی واقعه داده چه حضرت ابوهریره رضی الله عنه په مدینه منوره کښې وو او هغه د علم دین دطالبانومرکز وو د دې وجې

---

۱) ۲۲\۱ " کتاب العلم، باب کتابة العلم " وغیره

دوئ ته د روايت حديث زياته موقع ملاؤشوه، ددې په خلاف حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما په شام کښې وو او هلته د حديث دطالبانودومره رجوع نه وه نو اګرچه دوی ته احاديث زيات ياد وو خو د مروياتو تعداد ئې دحضرت ابوهريره رضي الله عنه د مروياتو نه کم دې، بهرحال صحيفۀ صادقه په دغه زمانه کښې ضخيم ترين مجموعه دحديثو وه او حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما به دا ډيره په حفاظت سره ساتله ددوئ د وفات څخه پس د دوئ کړوسې حضرت عمرو بن شيعب ته دا صحيفه منتقل شوه کوم چې اکثر د ((عن ابيه عن جده)) په سند سره روايت کوی بلکه حافظ ابن حجر رحمه الله په "تهذيب التهذيب" کښې د امام يحيى بن معين او دعلی بن المدينی قول نقل کړې دې چه کوم حديث د ((عن عمروبن شعيب عن ابيه عن جده)) په سند سره راشی نو پوهه شه چه دا د صحيفه صادقه حديث دې

۲ كتاب الصدقة دا د هغه احاديثو مجموعه ده کوم چې نبی کريم ﷺ املاء فرمائيل وه دې کښې د زکوة، صدقاتو، عشر وغيره احکام وو او دسنن ابی داؤد څخه معلوميږی چه داکتاب نبی عليه السلام خپلو عمالو ته دليږلو دپاره ليکلې وو خودوئ لا دا ليږلې نه وو چه دوئ ﷺ وفات شو ددوئ ﷺ د وفات څخه پس دا د حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه سره وو او بيا د حضرت عمر رضي الله عنه سره اوبيا د دوئ دوؤ ځامنو حضرت عبدالله اوعبيدالله ته راورسيدو بيا ددوئ څخه حضرت عمربن عبدالعزيز حاصل کړو اود دې نقل ئې اوکړو او ددوئ څخه بيا حضرت سالم بن عبدالله ته منتقل شو، د حضرت سالم څخه دا امام ابن شهاب زهری رحمه الله حفظ کړو او نورو ته به ئې لوستلو

۳ **صحيفة علی:** ابوداودکښې دحضرت علی رضي الله عنه دا قول نقل دې ((ماکتبنا عن رسول الله صلى الله عليه وسلم الاالقرآن ومافى هذه الصحيفة الخ))[1] هم دا روايت په بخاری کښې په څلورو مقاماتو اوپه مسلم کښې په دوه مقامونو کښې دې اوپه نسائی اوترمذی کښې ئې هم تخريج شوې دې د حضرت علی رضي الله عنه صحيفه به ددوئ دتورې په تيکی کښې وه او ددې روايت د ګڼرو الفاظوڅخه معلوميږی چه دې کښې ديات، معاقل، فديه اوقصاص، احکام داهل ذمه،نصاب د زکوة اودمدينې طيبې دحرم کيدو متعلق ارشادات نبوی ليک وو

۴ **صحف انس بن مالک رضی الله عنه :** حضرت سعيد بن هلال رضي الله عنه فرمائی ((کنا اذا اکثرنا علی انس بن مالك رضی الله عنه فأخرج الينا محالاعنده فقال هذه سمعتها من النبی صلى الله عليه

---

[1]) ابوداود ۱\۲۷۸ كتاب المناسک باب فی تحريم المدينة))

وسلم فكتبتها وعرضتها)) () د دې څخه معلومېږي چه دحضرت انس بن مالك رضي الله عنه سره دحديث څو مجموعې وې

⑤ **صحيفه ابن عباس رضی الله عنه :** په طبقات ابن سعد كښې دحضرت كريب ابن ابی مسلم چه دابن عباس مولی وو دا واقعه نقل ده چه دوئ ته د حضرت ابن عباس رضي الله عنه دكتابونو دومره ذخيره ملاؤشوې وه چه دپوره يو اوښ بار وو

⑥ **صحيفة عمروبن حزم رضی الله عنه :** كله چې حضرت نبی كريم ﷺ عمروبن حزم رضي الله عنه د نجران عامل جوړ كړو او دئ ليږلو نو دوئ ته ئې يوه صحيفه حواله كړه چه د حضور عليه السلام په احاديثو مشتمله وه اودا حضرت ابی بن كعب رضي الله عنه ليكلې وه، ابوداؤد وغيره كښې ددې صحيفې چه كوم اقتباسات راغلې دی د هغې څخه معلومېږی چه دې كښې د طهارت، صلاة، زكاة، حج، عمرې، جهاد، سير او مغانم وغيره متعلق احاديث ليك وو

⑦ **صحيفة جابربن عبدالله رضی الله عنه :** صحيح مسلم كښې روايت دې چه حضرت جابربن عبدالله رضي الله عنه دحج په احكامويوه رساله تاليف كړې وه امام بخاری په تاريخ كبيركښې دحضرت معمر څخه نقل كړې دی ((قال رأيت قتادة قال لسعيدبن أبي عروبة أمسك على المصحف فقرأ البقرة فلم يخط حرفا فقال ياأباالنضر لأنا لصحيفة جابر أحفظ مني لسورة البقرة()

⑧ **صحيفة ابن مسعود رضی الله عنه :** علامه ابن عبدالبرپه خپل كتاب "جامع بيان العلم وفضله" كښې نقل كړې دی چه حضرت عبدالرحمن بن مسعوديوكتاب راويستلو او وې فرمائيل چه زه قسم خورم چه دا عبدالله بن مسعود ليكلې دې

⑨ **صحيفه سعدبن عبادة رضی الله عنه :** امام ابن سعدپه طبقات كښې نقل كړې دی چه حضرت سعدبن عبادة يوه صحيفه مرتب كړې وه چه په هغې كښې ئې احاديث جمع كړې وو

⑩ **صحيفه سمره بن جندب رضی الله عنه :** حافظ ابن حجرپه "تهذيب التهذيب" كښې نقل كړې دی چه سليمان بن سمره بن جندب رضي الله عنه د خپل پلار سمره بن جندب نه يوه لويه نسخه روايت كړې ده، اوامام محمدبن سيرين فرمائی چه ((ان الرسالة التي كتبها سمرة لاولاده يوجد فيها علم كثير))

⑪ **صحف ابی هريره رضی الله عنه :** امام حاكم په مستدرك كښې اوعلامه ابن عبدالبرپه "جامع بيان العلم" كښې د حضرت حسن بن عمرو دا واقعه نقل كړې ده چه هغه فرمائی چه ما د حضرت ابوهريره رضي الله عنه په وړاندې يوحديث بيان كړو حضرت ابوهريره رضي الله عنه ددې

[1]) تدوين حديث مولانا سيد مناظراحسن گيلانی (ص ۴۷، ۴۸) بحواله د مستدرک حاکم ج/۳، ص/۵۷۳، ۵۷۴ ذکرانس بن مالک رضي الله عنه کتاب معرفة الصحابة ۱۲) _

[2]) "كتاب التاريخ الكبير ۱۸۶/۷)

حديث څخه د لاعلمئ اظهاراوكړو، ماعرض اوكړو چه ما دا حديث هم ستاسو څخه اوريدلې دې، حضرت ابوهريره رضي الله عنه اوفرمائيل كه ما دا حديث بيان كړې وى نوما سره به ليك وى چنانچه دوئ څه كتابونه را اوويستل اورائې وړل چه هغې كښې احاديث ليک وو په هغې كښې موتلاش كړل نودا حديث ملاؤشو

دې څخه معلومه شوه چه دحضرت ابوهريره رضي الله عنه سره د هغوى ټول مرويات ليكلې موجود وو ګويا هغوى څخه د پنځو زرو درې سوو څلورشپيتو احاديثوليكلې شوې ذخيره موجود وه

**اشكال:** خوپه دې داسوال راځي چه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه دا قول وړاندې تير شو چه ما به احاديث نه ليكل بيا د دې روايت څه توجيه ده ؟

**جواب:** ددې جواب دا دې چه داسې معلوميږي چه حضرت ابوهريره رضي الله عنه په عهدرسالت اود خلفاؤ په ابتدائي دوركښې حديث نه ليكل خو آخرى عمركښې به ئې دا خيال راغلې وې چه هسې نه دا روايات رانه هير شي نوخپل مرويات ئې جمع كړل. د دې وجې څه تعارض پاتې نشو چنانچه حضرت ابوهريره رضي الله عنه ته څوصحيفې منسوب دى

**حضرت ابوهريره رضي الله عنه ته منسوب شوې صحيفې:**

① **مؤلف بشيربن نهيك:** د حضرت ابوهريره رضي الله عنه شاګرد دې او امام دارمي نقل كړى دى چه دې فرمائي چه مابه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه څه اوريدل هغه به مې ليكل روستوما دا مجموعه دحضرت ابوهريره رضي الله عنه په خدمت كښې وړاندې كړه اوعرض مې اوكړو چه دا هغه احاديث دى كوم چې ما ستاسو څخه اوريدلى دى حضرت ابوهريره رضي الله عنه اوفرمائيل آو دا هغه احاديث دې كوم چې تا زما څخه اوريدلى دى

② **مسندابى هريره رضى الله عنه:** امام ابن سعدپه طبقات كښې نقل كړى دى چه دحضرت عمربن عبدالعزيزپلار عبدالعزيزبن مروان دمصر دګورنرئ په زمانه كښې كثيربن مره ته خط اوليكو چه تاسره د صحابوچه څومره مروى احاديث وى هغه ټول ماته راوليږه ((الا ماكان من حديث ابى هريرة رضي الله عنه فانه عندنا)) دې څخه معلوميږى چه دحضرت ابوهريره رضي الله عنه مرويات ده سره كتابى شكل كښې موجود وو

③ **صحيفة عبدالملك بن مروان:** وړاندې ذكرشوې دى چه عبدالملك بن مروان امتحاناً دحضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه څه روايات ليكلې وو

④ **صحيفه همام بن منبه رحمه الله:** حضرت همام بن منبه رحمه الله هم د حضرت ابوهريره رضي الله عنه شاګرد دې دوئ د حضرت ابوهريره رضي الله عنه د رواياتويوه مجموعه مرتب كړې وه چه د هغې نوم حاجى خليفه په "كشف الظنون" كښې الصحيفة ذكركړې دې، امام احمدپه خپل مسندكښې

دا صحيفه ټوله نقل کړې ده امام مسلم هم په صحيح مسلم کښې هم ډيراحاديث ددې صحيفې په واسطه نقل کړي دي چه کله دې ددې صحيفې څه حديث ذکرکوی نو فرمائي:
((عن همام بن منبه رحمه الله قال هذا ماحدثنا به ابوهريره رضى الله عنه عن رسول الله صلى الله عليه وسلم فذکراحاديثا منها وقال رسول الله صلى الله عليه وسلم)) يعنى همام بن منبه فرمائي چه دا هغه احاديث دي کوم چې مونږ ته حضرت ابوهريره رضی الله عنه د رسول الله ﷺ څخه روايت کړي دي

**د صحيفه همام دريافت کيدل:** په حسن اتفاق سره څوکاله وړاندې د دې صحيفې اصل مخطوطه پيدا شوه، ددې يوه نسخه په جرمنې کښې د برلن په کتابخانه کښې موجوده ده دويمه نسخه ددمشق په کتب خانه مجمع علمى کښې ده د سيرت او د تاريخ مشهور محقق ډاکټرمحمدحميدالله ددې دواړونسخوموازنه اوکړه اوشائع ئې کړله دې کښې يوسل اته ديرش احاديث دي اوچه مسنداحمدسره ئې مقابله اوشوله نو يوحرف يايوه نقطه کښې هم فرق نه وو

**خلاصه د کلام:** دا څومثالونه د دې خبرې واضح کولودپاره کافى دى چه عهدرسالت او عهد صحابؤکښې کتابت حديث بنه رائج وو دلته مونږ صرف د لويو مجموعو ذکر کړې دې. دې څخه علاوه چه رسول الله ﷺ کوم انفرادى خطوط ليکلې دى يائې چاته څه خبره ليکلې ده او ورکړې ده، يائې فرامين جارى کړې دى هغه دې څخه علاوه دى اوپه اوږدو کتابونوکښې ددې تفصيل کتلې شى

**دتدوين حديث کوششونه انفرادى وو:** البته دا صحيح ده چه دتدوين حديث دا کوششونه د انفرادى نوعيت وو، اوپه سرکارى سطح د درې واړه خلفاؤ په دورکښې دتدوين او د اشاعت حديث څه داسې خاص اهتمام نه وو شوې لکه څنګه چې د جمع دقرآن شوې وو، حضرت ابوبکرصديق رضی الله عنه او حضرت عمرفاروق رضی الله عنه په خپلوخپلوزمانوکښې دا اراده اوکړله چه د قرآن پاك پشان داحاديثويوه مجموعه هم دحکومت په نګرانئ کښې تياره کړې، خودوئ دواړو په دې اراده عمل اونه کړو ځکه چه دغه وخت دقرآن کريم صرف يوه نسخه د حکومت په نګرانئ کښې تياره شوې وه اباقي ۲۴] چه دې سره به د روستنو مسلمانانو د احترام اوعقيدت تعلق قريب قريب د قرآن کريم درجې ته رسيدلې ددې خطرې اظهارحضرت عمر رضی الله عنه په دې الفاظوکښې کړې دې ((انى کنت اردت ان اکتب السنن وانى ذکرت قوماکانواقبلکم کتبواکتبافاکبواعليهاوترکواکتاب الله الخ))(¹)

**دمنکرين حديث استدلال:** منکرين حديث دحضرت عمر رضی الله عنه په دې فيصله د مسرت

¹ ) (مقدمه فتح الملهم ۱\۲۳۱، بحواله مدخل للبيهقى)

اظهارکوی اودا د حجیت حدیث خلاف دلیل جوړه وی خو د دوئ دا دلیل بالکل بې بنیاده دی، اول خوددې وجې چه حضرت عمر ﷺ په سرکاری سطح دتدوین حدیث مخالفت کړې وو د انفرادی کتابت هم نه چنانچه دده په زمانه کښې انفرادی طورډیرو صحابو احادیث لیکلې وو

**دحضرت عمر رضی الله عنه د کثرت روایت څخه منع کول**، پاتې شو هغه روایت چه هغې کښې ذکردی چه حضرت عمر ﷺ د صحابو د احادیثوجمع کړې ذخیره اوسوزوله اوده به صحابه دکثرت روایت حدیث څخه هم منع کول

**دمنکرین د دلائل (شبهاتو) څخه جوابونه:**

نوپه دې موضوع علامه ابن عبدالبرپه جامع بیان العلم کښې تفصیلی بحث کړې دی د هغې خلاصه دا ده

① اول خو دا روایات ضعیف دی لکه علامه ابن حزم په "الاحکام" کښې په دې کښې په هر روایت جرح کړې ده، اوددې په راویانوئې تنقید کړې دی

② دویم که دا روایات صحیح هم وی نو د حضرت عمر ﷺ اصل منشاء دا وه چه په روایت حدیث کښې دې د ډیراحتیاط څخه کار واخستلې شی اودا هله ممکن وه چه په اکثار روایت باندې دابتداء څخه پابندی اولګی. ګنې ترکومې چه د احتیاط سره د روایت حدیث تعلق دی، حضرت عمر ﷺ نه صرف دا چه ددې مخالف نه وو بلکه ددې داعی وو همدغه وجه ده چه دوی دعالم اسلام هرې صوبې ته معلمین لیږلی وو او ددوئ مقصدئې دا ښودلو چه دوی به خلقوته فرائض او دسنتو تعلیم ورکوی اوپخپله حضرت عمر ﷺ دسوونو احادیثو راوی دې ددوی د مرویاتو تعداد د اووه سوونه زیات دې اوحافظ ابونعیم تعدد دطرقو لره لرې کولو سره او ددوئ د روایت کرده متون ئې د دوو سوو څخه زیات بیان کړې دی

**دازالة الخفاء عبارت:** د دې څخه علاوه حضرت شاه ولی الله صاحب په "ازالة الخفاء" کښې ددوئ دا خطبه نقل کړې ده چه ((سياتی اقوام ينكرون بالرجم وبالدجال وبالشفاعة وبعذاب القبر وبقوم يخرجون من النار بعد ما امتحشوا)) ظاهره ده چه ددې تولوځیزونوذکرصرف احادیثوکښې دی لهذا صرف د دوئ په تدوین د احادیثو د نه اماده کیدو یا د اکثار فی الروایت منع کولو څخه څنګه دانتیجه را اوباسئې چه دې دحجت حدیث خلاف وو بیادحضرت عثمان ﷺ په دورکښې هم دتدوین حدیث کار هم په هغه مرحله کښې ووچه کوم دحضرت شیخینو په دورکښې وو.

**دحضرت علی رضی الله عنه خدمات:** حضرت علی ﷺ هم په ابتدائی دورکښې د اکثارفی

الروايت مخالف وو . اوخپله صحيفه دحديثوبه ني هم خلفونه په مشكله بنودله خو د دوئ زمانه كښې دعبدالله بن سبا ، په مشرئ كښې عظيمه فتنه سبائيه ظاهره شوه چه د اسلام خلاف ديهوديانوسازش وو . دوئ مسلمانانو كښې گډشو او داسلام ختمولو كوشش ئې كولو . او د دې مقصدديپاره ئې دوه كارونه په يوځائې شروع كړل يودا چه خلق ئې د صحابه كرامو ﷺ نه بدگمانه كړل . دويم دا چه د دروغو احاديث به ئې جوړول نوې نظام عقائد ئې تيار كړې وو چه يو يه كښې حضرت على ﷺ د الوهيت درجې ته رسولې شوې وى خو د نورو صحابو په ايمان كښې هم شكوك پيدا كړى

**دحضرت على ﷺ په رواې كښې تبديلي:** حضرت على ﷺ ته ددې عظيمې فتنه احساس هله اوشو چه كله د سبائي فرقې افراد په مسلمانانوكښې بنه گډشو په دې موقع حضرت على ﷺ دا جمله اووئيله كومه چه ابن سعد وغيره نقل كړې ده ((قاتلهم الله أى عصابة بيضاء سودوا وأى حديث من حديث رسول الله صلى الله عليه وسلم أفسدوا)) يعنى الله تعالى دې دوى هلاك كړى څومره سپين (پاك) جماعت (د صحابو) دوى تور كړو او څومره د رسول الله ﷺ احاديث دوى خراب كړل نوحضرت على ﷺ ددې فتنې سدباب دپاره يو خو د فضائل صحابه اشاعت اوكړو اوبل طرف ته ئې د حديث په بابت كښې خپل طرزعمل بدل كړو او د اقلال روايت په ځائې ئې اكثار روايت اختياركړو چه طريقه ئې دا ده ، په قول د امام ابن سعد دوئ به په منبر اوختل اواعلان به ئې اوكړو ((من يشترى منى علما بدرهم فاشترى الحارث الاعور صحيفة بدرهم فكتب فيها علماكثيرا)) يعنى څوك به زما نه علم په يوه روپئ واخلى نو حارث اعور ترې صحيفه په يوه روپئ واخستله اودوى په هغې كښې ډيرې علمى خبرې اوليكلې

دغه شان حضرت على ﷺ صحيح احاديث په كثرت سره روايت شروع كړل اودسبائى موضوعاتو مقابله ئې اوكړله چنانچه ددوئ دشاگردانو سره ددوئ دروايت شوې احاديثومجموعى وې

**دحضرت عمربن عبدالعزيز ﷺ زمانه:** دحضرت عمربن عبدالعزيز ﷺ د زمانې پورې كتابت حديث په رومبو دوو مرحلوكښې وو خواوس هغه وخت راغلې وو چه د احاديثو باقاعده تدوين اوشى . ځكه چه اوس ئې دقرآن كريم سره د اختلاط او التباس خطره نه وه چنانچه په بخارى كښې دى چې حضرت عمربن عبدالعزيز ﷺ مدينه منوره كښې قاضى ابوبكربن حزم ته خط اوليكو اوپه هغې كښې ئې دوئ ته حكم كړې وو چه ((انظر ماكان من حديث رسول الله صلى الله عليه وسلم فاكتبه فانى خفت دروس العلم وذهاب العلماء)) ([1])

---

[1] ) صحيح بخارى ۱۱ ۱۰ باب كيف يقبض العلم

موطاامام مالك کښې هم داخط مروی دې او دې کښې د احادیث نبویه سره دخلفاء راشدینو دسُنت د راجمع کولوهم حکم دې خودې دواړو کتابونوکښې دا حکم صرف دمدینې د قاضی په نوم دې،

خوحافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباری کښې د حافظ ابونعیم رحمه الله په روایت سره نقل کړې دی چه دا خط صرف دقاضی مدینې په نوم نه وو، بلکه د ملك دهرې صوبې دقاضی په نوم ئې لیږلې وو، دهغوی الفاظ دا دی ((فکتب بها الی الافاق)) د دې ځخه معلومیږی چه حضرت عمر رضی الله عنه په ټول حکومت کښې په لویه پیمانه دتدوین حدیث کارشروع کړې وو چنانچه د دوئ د حکم مطابق درومبئ صدئ هجری په آخرکښې لاندې لیکلی شوی د حدیثو کتابونه په وجود کښې راغلل

## په عهد عمرثانی کښې د حدیثو کتابونه:

① **رساله سالم بن عبدالله فی الصدقات**: علامه جلال الدین سیوطی رحمه الله "تاریخ الخلفاء" کښې نقل کړې دې چه دا رساله د حضرت عمربن عبدالعزیز رحمه الله په فرمانش لیکلې شوې وه.

② **کتب ابی بکر**: قاضی ابوبکر ته چه کوم حکم ورکړې شوې وو ددې باره کښې علامه ابن عبدالبر په خپل کتاب "التمهید" کښې د امام مالك ځخه نقل کړې دی چه ابوبکر رحمه الله ځوکتابونه د حدیث جمع کړل خولا حضرت عمربن عبدالعزیز رحمه الله ته ئې لیږلې نه وو چه د هغوئ وفات اوشو

③ **کتاب السنن لمکحول**: دا کتاب امام ابن مکحول تحریرکړې دې ګویاددې کتاب په تالیف سره کتابت حدیث په ځلورمه مرتبه کښې داخل شو. علامه ابن ندیم په "الفهرست" کښې ددې ذکر کړې دې، په ظاهره دا کتاب هم دعمربن عبدالعزیز رحمه الله دحکم په تعمیل کښې لیکلې شوې وو ځکه چه حضرت مکحول ددوئ په زمانه کښې قاضی وو.

④ **دفاترالزهری**: علامه ابن عبدالبر په "جامع بیان العلم" کښې د امام زهری دا قول نقل کړې دې چه مونږته عمربن عبدالعزیز رحمه الله د تدوین حدیث یا د تدوین سنن حکم اوکړو نو مونږ دفترونه اولیکل اودا واقعی خبره ده چه په دغه زمانه کښې د امام زهری ځخه زیات دتدوین حدیث خدمات شایدچاکړې وې بیا د حضرت عمربن عبدالعزیز رحمه الله په خپل مملکت کښې هر اړخ ته ددې د دفترونو نه یو یو دفتراولیږلې شو

⑤ **ابواب الشعبی**: دا د حضرت عامربن شراحیل رحمه الله تالیف دې اوعلامه سیوطی په تدریب الراوی کښې دحافظ ابن حجر رحمه الله په حواله سره ذکرکړې دې چه دا د علم حدیث رومبنی مبوب کتاب دې حضرت شعبې هم په کوفه کښې دعمربن عبدالعزیز رحمه الله قاضی وو دې وجې په ظاهره دا کتاب هم د هغوئ په ارشادلیکلې شوې دې

دحضرت عمربن عبدالعزيز رحمه الله په سنه ۱۰۱ء کښې وفات شوې دې، نو داټول کتابونه ددې څخه وړاندې ليکلي شوې دی

**دويمه صدی هجری کښې د احاديثو تدوين:**

**په فقهي ترتيب د احاديثو تدوين:** دا د مبوب کتب حديث صرف ابتداء وه، په دويمه صدی هجری کښې دتدوين حديث کارپه زيات قوت سره شروع شو په دې دورکښې چه کوم کتب حديث ليکلی شوی دی، د هغوئ تعداد د شلو څخه هم زيات دې په هغې کښې څومشهورکتابونه دا دی

① **كتاب الاثار لابی حنيفه** رحمه الله: په دې کتاب کښې په ړومبی ځل احاديث په فقهي ترتيب سره مرتب شو، په علم حديث کښې ددې مرتبه ډيره اوچته ده، او امام ابوحنيفه رحمه الله په څلويښتو زرو احاديثو کښې ددې کتاب انتخاب کړې دې (۱) ددې کتاب څو نسخې دی په روايت د امام محمد رحمه الله، په روايت د امام ابويوسف رحمه الله، په روايت د امام زفر رحمه الله نقل شوی دی او دا کتاب د موطا امام مالك رحمه الله نه د زمانې په لحاظ سره مقدم دې دلته دا هم ثابته ده چه امام مالك رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله دتاليفاتو څخه استفاده کړې ده دې وجې دا کتاب پخپل طرز تدوين کښې د موطا امام مالك رحمه الله د اصل حيثيت لری ډيرو عالمانو ددې شروح ليکلې دی اوددې په رجالو ئې کتابونه تصنيف کړې دی په هغوی کښې حافظ ابن حجر رحمه الله هم شامل دې

دلته يوه خبره دا هم ياد ساتل پکاردی چه علم حديث کښې د امام ابوحنيفه رحمه الله بلا واسطه مرتب کړده کتاب هم دا کتاب الآثاردې دې څخه علاوه مسند ابی حنيفه رحمه الله په نوم چه کوم کتابونه ملاويږی هغه پخپله د امام صاحب تاليف نه دې بلکه دوئ رحمه الله څخه روستو ډيرو محدثينوحضراتوددوئ مسندات تيارکړې دی، دوئ کښې حافظ ابن عقده رحمه الله، حافظ ابونعيم اصفهانی رحمه الله، حافظ ابن عدی رحمه الله اوحافظ ابن عساکر رحمه الله مشهور دی روستو بيا علامه خوارزمی دا ټول مسانيد په يوه مجموعه کښې راجمع کړل چه د "جامع مسانيد الامام الاعظم" په نوم مشهوردې

② **الموطاء للامام مالك** رحمه الله: دې کتاب ته په خپله زمانه کښې "اصح الكتب بعد كتاب الله" وئيلې شو دې څخه پس دا لقب صحيح بخاری ته ملاؤشو، ځکه چه دې کښې دموطا تقريباً د ټولو احاديثو سره بې شميره نور احاديث موجود دی

③ **جامع سفيان ثوری** رحمه الله: امام شافعی رحمه الله ددې کتاب څخه استفاده کړې ده

④ **جامع معمربن راشد:** دا هم د امام مالك هم عصردې اوپه خپل دورکښې د دوئ کتاب ډيرمقبول وو خونن سبانايات دې

(۱) ذکره الموفق فی مناقب الامام ابی حنيفه رحمه الله

⑤ **السنن لوكيع بن الجراح**: دا كتاب د امام وكيع تاليف دي
⑥ **السنن لابن جريج** رحمه الله : دې ته "سنن ابي الوليد" هم وائي
⑦ **كتاب الزهدلعبدالله بن المبارك**: دا كتاب د مشهور زاهد او عالم عبدالله بن مبارك كتاب دې

## په دويمه صدۍ كښې تدوين حديث:

دې صدۍ كښې دتدوين حديث كار په خپله څوانۍ كښې وو سندونه اوږده شول. يو يوحديث په څوڅوطريقوسره روايت شو. اود علم د خوريدو په وجه په فن حديث كښې ليكلې شوې كتابونه په نوې نوې ترتيب اوتبويب سره وجود ته راغلل اودكتب حديث اقسام د شلوڅخه واوړيدل. داسماء الرجال علم باقاعده يوصورت اختياركړو اوپه دې ګڼړ كتابونه اوليكل شول، په دې دوركښې صحاح سته تاليف شول اوتركومې چه د صحاح سته تعلق دې دلته د هغې دتعارف ضرورت نشته. د دورۀ حديث د هركتاب په ابتدا كښې دهغې د تعارف ذكر كيګى البته د هغه څو كتابونو تعارف كول مقصود دې كوم چې د درسياتو څخه علاوه دى او د علم حديث په مباحثوكښې ددې حوالې ډيرې راځى

① **مسندابى داؤد طيالسى** : دا ابوداو د طيالسى دې، اود هغه ابوداؤد څخه مقدم دې د چا سنن چه په صحاح سته كښې شامل دې، بعض حضرات وائى چه دا كتاب په مسانيدو كښې د ټولو څخه ړومبې دې خو صحيح دا ده چه دټولوڅخه وړاندې "مسند عبيدالله بن موسى" دې او ابوداود طيالسى اګرچه ده څخه مقدم دې خو د ده مسند دده د وفات څخه ډير روستو بعضې خراسانى عالمانو مرتب كړې دې او دا هله مرتب شو چه كله مسندعبيد الله بن موسى وجود ته راغلې وو

② **مسنداحمد**: دې ته جامع ترين مسندوئيلې شوې دې دې كښې تقريباً څلويښت زره احاديث دى دا امام احمد په اووه نيم لكهو احاديثوكښې منتخب كړې دى. امام احمد په خپل ژوندكښې دا احاديث مرتب كړې خو وو خوددې ترتيب اوتبويب ئې اونه كړې شو د دوئ د وفات څخه پس ددوئ جليل القدر څوى عبدالله بن احمدد دې ترتيب او تهذيب اوكړو، اودې كښې ئې تقريباً دلسو زرو احاديثو اضافه اوكړه ددوئ څخه پس دې كښې حافظ ابوبكر قطيعى رحمه الله هم څه اضافه اوكړه چه هغې ته "زيادات المسند" وئيلې كيږى. په مسند احمدكښې صحيح حسن اوضعيف هرقسم احاديث شته اودې كښې اختلاف دې چه موضوع حديث په كښې هم شته اوكه نه؟ ډيره موده پس بعضې حضراتو مسند احمد د فقهى ابوابو مطابق مرتب كړو د متقدمينو دا كوششونه ناياب دى البته الفتح الربانى بترتيب الامام احمد بن حنبل الشيبانى په نوم سره د مسند احمدتبويب

اوس شته دي

③ **مصنف ابی بکربن ابی شیبه** دا هم د امام بخاري اود امام مسلم وغیره استاد دې او د ده د مصنَف ① رومبي خصوصیت دا دي چه دي کښې صرف احادیث احکام په فقهي ترتیب جمع شوي دی ②او دویم خصوصیت ئې دا دې چه دې کښې د احادیث مرفوعه سره د صحابؤاو د تابعینو فتاوی هم په کثرت سره منقول دی. ددې په وجه د اصولِ احناف مطابق په حدیث پوهیدل اسانیږی ③ دریم خصوصیت ئې دا دې چه دې کښې امام موصوف د هرمذهب مستدلات په پوره غیرجانبدارئ سره جمع کړې دی. ④څلورم خصوصیت ئې دا دې چه امام ابوبکر چه پخپله کوفی دی د دې وجې دوئ د اهل عراق مسلك ډیرښه بیان کړې دې. هم دغه وجه ده چه د حیفیه مستدلات په دې کتاب کښې ډیرموندلې کیږی اود دې وجې علامه زاهدالکوثری لیکلې دی چه دا((احوج مایکون الفقیه الیه کتاب ابن ابی شیبة))

④ **مصنف عبدالرزاق** په پخوا زمانه کښې به د لفظِ مصنف اطلاق هم په هغه اصطلاحی مفهوم کیدلود کوم دپاره چه نن سبا لفظ د "السنن" معروف دې دا مصنَف د امام عبدالرزاق بن الهمام الیمانی مرتب کرده دې اوپه څواعتباره لوې جلیل القدرکتاب دې ①یو خو په دې وجه چې عبدالرزاق د امام ابوحنیفه رحمه الله او د معمربن راشد پشان امامانو شاګرد دې او د امام احمدپه شان د امام استاذ دې د دې وجې دې مصنف کښې اکثر احادیث ثلاثی دې ②دوئم د دې وجې چه د امام بخاری دتصریح مطابق ددې مصنف ټول احادیث صحیح دی.

⑤ **المعاجم للطبرانی**: د امام طبرانی معاجم په درې قسمه دی کبیر، اوسط او صغیر کبیر په حقیقت کښې مسنددې یعنی دې کښې د صحابؤد ترتیب مطابق روایتونه جمع کړې شوې دی اومعجم اوسط کښې امام طبرانی د خپلوشیوخو دترتیب مطابق روایات جمع کړې دی، او دې کښې ئې صرف د خپلو شیوخو غرائب اوتفردات جمع کړې دی اوپه معجم صغیرکښې ئې د خپل هرشیخ یویو روایت ذکرکړې دې اوزیات هم دهغه شیوخو روایات دی چه دهغوی څخه امام طبرانی صرف یوروایت اوریدلې دې

⑥ **المستدرک للحاکم** ، داکتاب مستدرك علی الصحیحین دې خود نقداحادیث په معامله کښې امام حاکم ډیرزیات متساهل مشهوردې د دې وجې دوئ ډیرداسې احادیث علی شرط الشیخین یا علی شرط احدهما ګڼرلی دی اوپه خپل کتاب کښې ئې لیکلی دی کوم چه په حقیقت کښې ډیرضعیف دی. حافظ شمس الدین ذهبی رحمه الله په دې کتاب یوه حاشیه لیکلې ده په هغې کښې ئې د مستدرك تلخیص هم کړې دې او د امام

حاكم په مسامحت تنبيه هم دا حاشيه هم د مستدرك سره چهاپ شوې ده د امام حاكم په باره كښې بعضې خلقو دا خيال ظاهركړې دې چه دې شيعه وو خو محققينو دا الزام ردكړې دې

⑦ **مسند الدرمي**:دې كتاب ته هم د محدثينود اصطلاح خلاف مسندوئيلې شوې دې خو په حقيقت كښې دا سنن دې

⑧ **مسندالبزار**: دې ته المسند الكبير هم وائى دا د امام ابوبكربزار تصنيف دې اومعلل دې يعنى دې كښې امام د رواياتو اسباب قادحه په تفصيل سره بيان كړې دى دمعلل كتابونو دا اصول دى چه په كوم حديث دوئ خاموش پاتې شى د دوى په نيز صحيح ياقابل عمل گنړلې كيږى

⑨ **مسندابويعلى** داكتاب دمسندپه نوم مشهوردې حالانكه دامعجم دې

⑩ **سنن الدار قطنى** : [پيدائش كال ۳۰۲ هجرى وفات ۳۸۵ هجرى] دا كتاب په فقهى ابوابو مشتمل دې، په دې كښې دهرحديث طرق په نهايت تفصيل سره بيان شوى دى

⑪ **السنن الكبرى للبيهقى**:دا كتاب امام بيهقى رحمه الله دفقه شافعى د مشهورمتن "مختصرالمزنى" په ترتيب جمع كړې دې او چاپ شوې دې و الله اعلم

**انواع المصنفات فى الحديث:**

علم حديث داسې علم دې چې د دې ډير خدمت شوې دې دې كښې په مختلفو حيثيتونو باندې كتابونه ليكلې شوې دى. دحديثو د كتابونود خپلې موضوع اودترتيب په لحاظ سره ډيراقسام دى چه دې كښې د هريوقسم يوخاص اصطلاحى نوم دې د يو طالب حديث د مراجعت الى الكتب دپاره دې اقسامو لره په تفصيل سره پيژندل ضرورى دى

① **الجوامع**: دا د جامع جمع ده جامع د حديث هغه كتاب ته وائى چه په هغې كښې د اتو مضامينو احاديث جمع شوې وى دا اته مضامين په يوشعركښې بيان شوې دى

سيرآداب وتفسيروعقائدفتن اشراط واحكام مناقب

**د دې اتو مضامينو وضاحت**:"سير" دسيرت جمع ده يعنى هغه مضامين چه كوم د حضرت رسول الله ﷺ د حيات طيبه په واقعاتومشتمل وى "آداب"د ادب جمع ده مراد ترې آداب المعاشرت مثلاً د خوراك څښاك آدب "تفسير"يعنى هغه احاديث چه دقرآن د تفسير سره متعلق دى "عقائد" هغه احاديث يا مضامين چه د عقائدو سره تعلق ساتى "فتن" د فتنة جمع ده يعنى هغه لوې لوې واقعات چه دهغې پيشنگوئى رسول الله ﷺ كړې ده "اشراط"يعنى دقيامت علامات "احكام" يعنى عملى احكام چه په هغې فقه مشتمل ده دې ته "سنن" هم وئيلې كيږى، "مناقب" د منقبت جمع ده يعنى د صحابه كرامو او

صحابياتو اومختلف قبيلو اوطبقاتو فضائل غرض دا چه کوم کتاب په دې اتو مضامينو مشتمل وی هغې ته جامع وئيلې کيږی

**اولنی جامع**: د ټولو څخه ړومبی جامع "جامع معمربن راشد" دې [۱] چې د امام زهری د مشهور شاګرد د حضرت معمرتاليف دې اوپه ړومبئ صدئ هجرئ کښې مرتب شوې دې خو اوس "جامع معمر" ناياب دې

**دويم جامع**: دويم جامع سفيان ثوری دې څخه امام شافعی استفاده کړې ده دا کتاب هم ناياب دې

**دريم جامع**: دريم جامع عبدالرزاق دې چه د امام عبدالرزاق بن همام صنعانی تاليف دې اوپه دويمه صدئ هجری کښې معروف شوې وو دا د مصنف عبدالرزاق په نوم مشهور دې او اوس اوس په يوولسو جلدونوکښې شائع شوې دې

**جامع دارمی**: جامع دارمی هم يومشهورجامع دې [۲]

**جامع بخاری**: خودټولو څخه زيات مقبوليت جامع بخاری ته حاصل دی د دې څخه پس جامع ترمذی دې په صحاح سته کښې دبخاری او د ترمذی په جامع کيدو اتفاق دې

**د مسلم جامع کيدو کښې اختلاف**: البته د صحيح مسلم په باره کښې اختلاف دې بعضې دې ته جامع وائی ځکه چه دې کښې اته واړه بابونه شته خوبعضې حضرات ددې د جامع کيدو څخه انکارکوی ځکه چه دې کښې کتاب التفسيرډير مختصردې خوصحيح دا ده چه دا هم جامع دې ځکه چه دجامع کيدو دپاره ديوکتاب مفصل کيدل ضروری نه دی صرف د هغې وجود کافی دې اوصحيح مسلم کښې دکتاب التفسير احاديث اګرچه لږ دی خونفس کتاب به هرحال شته دغه شان د تفسير ډير احاديث امام مسلم د نورو ابوابو لاندې نقل کړې دی د دې وجې علامه فيروزابادی صاحب قاموس دا جامع ګرځولې دې او صاحب کشف الظنون هم دې په جوامع کښې شمارکړې دې .

۲ **السنن** : دا د هغه کتاب نوم دې چه هغې کښې احاديث د فقهی ابوابوپه ترتيب مرتب شوی وی دې نوع ته به په ابتداء کښې "ابواب" وئيلې کيدل روستوددې نوم بدل شو او مصنف شو او آخرکښې ورته سنن وئيل شروع شو ددې نوع ړومبی کتاب د امام ابوحنيفه رحمه الله استاذ حضرت عامربن شراحيل الشعبی ليکلې دې چه د ابواب الشعبی په نوم مشهور دې صحاح سته کښې نسائی ابوداؤد، ترمذی، او ابن ماجه سنن دی نو چه د سنن اربعه لفظ اووئيلې شی نوهم دا څلورکتابونه به مراد وی سنن اربعه څخه علاوه

[۱]) امام ابوحنيفه رحمه الله اوعلم حديث ازمولانامحمدعلی کاندهلوی رحمه الله
[۲]) (لامع الدارمی ۱۱/٤٤)

سنن بیهقی، سنن، دارمی، سنن دارقطنی اوسنن سعیدبن منصور ددې نوع مشهور کتابونه دی، دې څخه علاوه سنن ابن جریج اوسنن وکیع بن الجراح ددې نوع قدیم کتابونه دی دغه شان مصنف عبدالرزاق اومصنف ابن ابی شیبه وغیره هم ددې نوع کتابونه دی بعضې حضراتو د مکحول کتاب السنن هم دې کښې شماری.

۳ **المسانید**: د مسند جمع ده دا د حدیثو هغه کتابونو ته وائی چه هغې کښې احادیث د صحابه کرامو ﷺ په ترتیب جمع کړې شوې وی یعنی چه دیوصحابی ټول مرویات په یوځل ذکرشی که هغه هم د ي هر یو باب سره متعلق وی بیا د بل صحابی و هلم جراً.

**دمسانیدو دترتیب مختلف طریقې**: بیا دې کښې بعضې وخت د حروف تهجی دترتیب اعتبار وی او بعضې وخت د سابقیت فی الاسلام اعتبار وی اوبعضې وخت د فضیلت اعتبار وی دغه شان د مهاجرینو اود انصارو په طبقاتو باندې هم مسند مرتب کیږی.

**دمسانیدو مؤلفین**: دټولو څخه ړومبې مسند حضرت نعیم بن حماد لیکلې دې (۱)

دې څخه پس بې شماره مسانیدلیکلې شوی دی تردې چه دغه زمانه کښې دا مشهوره وه چه داسې یولوې محدث هم نشته چه هغه مسندنه وې لیکلې لکه د امام بخاری ډیر استاذان د مسانیدو مؤلفین دی دغه شان عثمان بن ابی شیبه او ابوبکربن ابی شیبه هم مسانید لیکلی دی دې کښې مسند اسدبن موسی، مسند عبد بن حمید، مسند البزار او مسند ابی یعلی مشهور دی.

**نن صبا مشهور مسانید**: نن صبا درې مسانید مطبوعه شکل کښې ملاویږی اومشهور دی

- مسند ابوداود طیالسی
- مسند حمیدی مصنف د امام بخاری استاد دې
- مسند امام احمدچه کوم نهایت جامع مسند دې اوټولوڅخه زیات متداول او مشهوردې د دې تعارف تیرشوې دې او حال کښې علامه ابن الساعاتی دا په ترتیب د ابوابو مرتب کړې اوشائع کړې دې چې د "الفتح الربانی لترتیب مسندالامام احمدبن حنبل شیبانی" په نوم مشهور دې لکه چه ړومبې هم د دې ذکر شوې دې

۴ **المعجم**: دا خبره عامه مشهوره ده چه معجم هغه کتاب ته وائی چه هغې کښې محدث د خپلو شیوخو او استاذانو په ترتیب سره احادیث جمع کړې وی یعنې د یو استاذ احادیث په یو ځائې کښې او د بل استاذ احادیث په بل ځائې کښې هم دغه شان وریسې

---

(۱) قال السیوطی رحمه الله فی التدریب قال الدار قطنی اول من صنف مسندا نعیم بن حماد وقال الخطیب وقد صنف اسدبن موسی مسنداً وکان اکبرمن نعیم سنة فی حداثته وقال الحاکم اول من صنف المسند علی تراجم الرجال فی الاسلام عبیدالله بن موسی العبسی وابوداود الطیالسی وقال بن عدی یقال ان یحی الحمانی اول من صنف المسند بالکوفة واول من صنفه بالبصرة مسدود و اول من صنفه بمصر اسدالسنة لا مع الداری (۴۵/۱)_

خه خو حضرت شيخ الحديث مولانا محمدزكريا صاحب ليكلي دي چه دا تعريف صحيح نه دي حقيقت كښې معجم د حديث هغه كتاب دي چه هغې كښې د حروف تهجي ترتيب قائم وي كه دا ترتيب په صحابه كرامو ﷺ كښې وي. اوكه شيوخو كښې نودمعجم او د مسند په مينځ كښې د عموم خصوص مطلق نسبت دي د دې نوعې هم گڼر كتابونه مشهور دي مثلا معجم اسماعيلي، معجم ابن الغوطي وغيره ([1])

**مشهورمعاجم:** خو دټولو څخه زيات مشهور د امام طبراني معاجم دي. دوئ درې معاجم ليكلي دي

- **المعجم الكبير** په دې كښې د صحابه كرامو په ترتيب سره احاديث جمع دي
- **المعجم الأوسط** په دې كښې د شيوخو په اعتبارسره احاديث جمع شوي دي
- **المعجم الصغير**: په دې كښې امام طبراني د خپل هريوشيخ يويوحديث ذكركړي دي رومبني دوه كتابونه ناياب دي البته د دوئ احاديث د علامه هيثمي ﷺ په مجمع الزوائد كښې ملاويږي البته المعجم الصغير رومبې په هندوستان كښې او بياپه مصركښې چاپ شوي دي

⑤ **المستدرك**: هغه كتاب ته وائي چه هغې كښې دحديثو د يو كتاب هغه پاتې شوى احاديث چې د دغه مذكوره كتاب په شرطونو برابر وي خو دهغه څخه پاتې شوي وي او په خپل كتاب كښې يې نه وي نقل كړي په صحيحينو يعني بخاري او مسلم گڼرو عالمانو "مستدرك" ليكلي دي په هغې كښې "كتاب الالزامات لدارقطني" او "المستدرك على الصحيحين" للحافظ ابي ذرعبدٌ مشهور دي ([2])

**مشهور مستدرك:** خومشهور ترين كتاب دامام ابوعبدالله حاكم نيشاپوري "المستدرك على الصحيحين" دي چه دټولوڅخه زيات پاتې شوي دي دې كښې دوئ هغه احاديث راجمع كړي دي چه كوم په صحيحينوكښې نه دي ذكرخو ددوئ په خيال كښې دبخاري يادمسلم په شرطونو برابر دي.

خو امام حاكم په تصحيح د احاديثوكښې ډيرمتساهل دي چنانچه دوي ډير حسن، ضعيف منكر، بلكه موضوع احاديث هم على شرط الشيخين گرځولي دي او په مستدرك كښې ني داخل كړي دي د دې وجې حافظ ذهبي ددې تلخيص كړي دي اود امام حاكم په غلطوئې تنبيه وركړې ده دا تلخيص دمستدرك حاكم سره شائع شوي دي ترڅوچه دې دحديث تصحيح اونه كړي ترهغې صرف د حاكم دتصحيح معتبر نه وي

[1] )وذكرت في الاتحاف المعاجم الكثيرة منها معجم ابي بكرالمقري وشهاب الدين القوصي وابن قانع وغير هم ) (الامع الدرسي ١١\١٥)_

[2] ) الرسالة المستطرفة ص ٢٢\ ) -

⑨ **المستخرج:** هغه کتاب ته وائی چې هغې کښې ديوبل کتاب احاديث په خپل داسې سند روايت شوې وی چه هغې کښې د مصنف واسطه نه وی لکه "مستخرج ابی عوانه علی صحيح مسلم" په دې کښې دوئ د صحيح مسلم روايات په داسې سند سره روايت کړې دی چه هغې کښې د مصنف واسطه نشته هغه شان مستخرج ابی نعيم علی صحيح مسلم

⑥ **الجزء:** هغه کتاب ته وائی چه هغې کښې د يوجزئی مسئلې سره متعلق ټول احاديث يوځائې ذکر شوی وی لکه·

- جزء القراءة للامام البخاری
- جزء القراءة للبيهقی
- وجزء رفع اليدين للبخاری
- جزء الجهر بسم الله للدارقطنی
- وجزء الجهر بسم الله للخطيب البغدادی
- كتاب القراءة للبيقهی

**په روستنی دورکښې د جزء تاليف:** په دې روستنی دورکښې دحضرت محمد انور شاه صاحب. اود حضرت مفتی شفيع صاحب. کتاب "((التصريح بما تواتر فی نزول المسيح)) او د شيخ الحديث حضرت مولانا محمد زکريا کاندهلوی جزء حجة الوداع هم دې قسم کښې داخل دی

**فائده:** بعضې حضراتو دې سره د کتب حديث يوه بله نوع "الرسالة" هم بيان کړې ده او د دې تعريف ئې کړې دې چه دا هغه کتاب دې چه دې کښې صرف د يو شيخ احاديث جمع کړې شوې وی خوصحيح دا ده چه دا څه مستقل نوع نه ده بلکه د الجزء مترادف ده

⑧ **المشيخه:** داهغه کتاب دې چه هغې کښې صرف ديو يا د څو شيوخو احاديث جمع شوی وی لکه "مشيخة ابن للبخاري وعليها ذيل للحافظ المذي، مشيخة بن شاذان الكبري، مشيخة ابن القاري([1])

⑨ **التجريد:** چه ديوکتاب د حديثونه سند او د دهغې مکررات حذف شی او صرف د صحابی نوم او د حديث متن بيان شی نودې ته "تجريد" وائی لکه

- تجريد البخاری للزبيدی
- "تجريد صحيح مسلم للقرطبی" او تجريد الصحيحين" وغيره

⑩ **الافراد والغرائب** : دا هغه کتاب دې چه دې کښې ديوکس تفردات جمع کړې شوې وې. "کتاب الافراد للدارقطنی"

[1]) ذکره الشيخ فی لامع الدراری کثير ص(۱، ۵۰، ۵۱)

⑪ **التخريج** : هغه كتاب دې چه دې كښې د يوبل كتاب د معلق يا د بې حواله احاديثو سند او حواله بيان كړى شى مثلاً هدايه كښې ټول احاديث بلاحواله دى د دې د احاديثو د سند او حوالې دتلاش په غرض چه څومره كتابونه ليكلې شوې دى هغې ته د هدايه تخريج وائى مثلاً

✿ نصب الرايه في تخريج احاديث الهداية" د امام زيلعى

✿ الدرايه في تخريج احاديث الهداية" د حافظ ابن حجر

✿ التلخيص الحبير في تخريج احاديث الرافعي الكبير" په نوم سره حافظ ابن حجر [1] يوتفصيلى كتاب ليكلې دې په كوم كښې چې فقه شافعي يو مشهور متن رافعى د احاديثو تخريج كړې دې د هغوى دا كتاب د احكام د احاديثو يوجامع ترين (ډيره لويه) ذخيره ګڼړلى شى

✿ الكافي الشافي في تخريج احاديث الكشاف" حافظ ابن حجر

✿ تخريج احاديث احياء العلوم" د حافظ زين الدين عراقى

⑫ **كتب الجمع**: هغه كتاب دې چه په كښې ديوڅخه زياتوكتابونو د حديث روايتونه په حذف د تكرار سره جمع كړې شوې وى

✿ ددې نوعې د ټولوڅخه ړومبې كتاب د امام حميدى "الجمع بين الصحيحين" دې

✿ د دې څخه پس حافظ رزين بن معاويه "تجريد الصحاح الستہ" ليكلې دې البته ددوئ په اصطلاح كښې دابن ماجه په ځائې موطاء امام مالك په صحاح سته كښې شامل وو ددې وجې څخه دوى په خپل كتاب كښې د ابن ماجه په ځائې د موطاء امام مالك احاديث راجمع كړې دى.

✿ د دوى څخه روستو حافظ ابن الاثير جزرى د "جامع الاصول" په نوم يوكتاب ليكلې دې چه هغې كښې ئې د صحاح سته احاديث راجمع كړې دى او د حافظ رزين بن معاويه څخه چه كوم احاديث پاتى شوى وو هغه ئې په كښې هم شامل كړى دى خو د دوئ په اصطلاح كښې هم موطا امام مالك په صحاح سته كښې شامل وو نه چې ابن ماجه

✿ د دوئ څخه روستوعلامه نورالدين هيثمى د "مجمع الزوئد ومنبع الفوائد" په نوم يو كتاب اوليكلو اودې كښې ئې د "مسنداحمد، مسندبزار، مسندابى يعلى او امام طبرانى د معاجم ثلاثه هغه زائد احاديث يوځائې كړل چه كوم صحاح سته كښې نه وو خو د علامه هيثمى په اصطلاح كښې ابن ماجه په صحاح سته كښې شامل وو، نه چې موطا امام مالك، په دې

---

[1]) هوتخريج الشرح الكبير للرافعي على وجيزالغزالي فى الفقه الشافعى وقدقام بتخريج احاديثه ايضا سراج الدين عمربن الملقن فى كتاب البدرالمنيرفي تخريج الاحاديث والاثارالواقعة فى الشرح الكبيرفى سبع مجلدات ۱۲ الرسالة المستطرفه ۱۵٤)_

وجه هغوی په مجمع الزوائد کښې د ابن ماجه احادیث را جمع نکړل ددې نتیجه دا شوه چه د ابن ماجه احادیث نه په جامع الاصول کښې جمع شو اونه په "تجرید الصحاح الستہ" کښې او نه په "مجمع الزوائد" کښې

✿ د دې څخه روستو علامه محمد بن محمد بن سلیمان د "جمع الفوائد من جامع الاصول ومجمع الزوائد" په نوم یو کتاب اولیکلو، چه هغې کښې ئې د "جامع الاصول" او د "مجمع الزوائد" روایات بحذف التکرار جمع کړل او د ابن ماجه روایتونه چه د دوی څخه پاتې شوی وو هغه ئې هم جمع کړل بلکه د دې څخه علاوه یې د سنن دارمی روایات هم جمع کړل دغه شان دا کتاب د څوارلسو کتابونو د احادیثو مجموعه شوه بلاشبه "جمع الفوائد" دخپل اختصار سره دحدیثو یوه لویه جامع مجموعه ده خو بیا هم په دې کښې ډیر احادیث پاتې شوی دی نو که یو حدیث په دې کښې اونه موندې شی نو دا خیال به غلط وی چه په دا څوارلسو کتابونو کښې هم نشته.

**دحروف تهجی په اعتبار سره د احادیثو جمع:** اوسه پورې دکتب الجمع لاندې چه مونږ دکومو کتابونو ذکر اوکړو دا ټول کتابونه د ابوابو په ترتیب لیکلې شوې دی بعضې حضراتو د حروف تهجی په اعتبار سره هم احادیث را جمع کړې دی ددې نوع دټولو نه رومبې کتاب "فردوس الدیلمی" دې. د دې څخه پس علامه سیوطی د "جمع الجوامع" په نوم یو کتاب لیکلې دې چه دې کښې ئې د احادیثو دپوره ذخیرې جمع کولو کوشش کړې دې په دې کښې دوی قولی احادیث د حروف تهجی په اعتبار سره جمع کړې دی او فعلی احادیث ئې د صحابه کرامو په ترتیب سره جمع کړی دی.

**د مذکوره کتاب تلخیص:** بیا علامه سیوطی ددې کتاب تلخیص کړې دې په "الجامع الصغیر فی احادیث البشیر النذیر" په نوم، په دې کتاب کښې یې د ټولو موجوده کتابونو د احادیثو قولی احادیث د حروف تهجی په اعتبار سره جمع کړې دی "الجامع الصغیر" ئې صبا په مارکیټ کښې ملاویږی دې کښې دهر حدیث سره د حوالې نه علاوه د هغې اسنادی حیثیت هم داسې متعین کړې شوې دې چه د صحیح دپاره حرف "صح" د ضعیف دپاره حرف "ض" او د حسن دپاره حرف "ح" لیکلې شوې دې خو مولانا عبدالحی لکهنوی رحمه الله په "الاجوبة الفاضلة" کښې په صفحه ۱۲۷ کښې لیکلی دی چه دا علامتونه علامه سیوطی رحمه الله نه دی لګولې بلکه د ده نه پس کوم بل عالم لګولې دی [۱]

---

[۱]) ولذالاینبغی ان یوثق بهذه الرموز قال المناوی واما مایوجد فی بعض النسخ من الرمز الی الصحیح والحسن والضعیف بصورة راس "ص" و "ح" و "ض" فلا ینبغی الوثوق به لغلبة تحریف النساخ علی انه وقع له ذلک فی بعض دون بعض کمارایته بخطه (فیض القدیر ۱\۱ ٤۰ باحالة الاجوبة الفاضلة مع تعلیقه ۱۲\۱۲۷_

**دجامع صغير شروحات:** د "الجامع الصغير" ګڼ شروحات هم ليکلی شوی دی چه هغې کښې دعلامه مناوی رحمه الله "فيض القدير" اود علامه عزيزی" السراج المنير" مشهور اومتداول دی دې دواړو کښې علامه مناوی دتصحيح احاديث په معامله کښې زيات محتاط دې دده په خلاف علامه عزيزی رحمه الله لږ متساهل دې.

**په جوامع کښې بهترين کتاب:** ددې سلسلې دټولوځخه زيات قابل قدراو جامع کارعلامه علی المتقی کړې دې ددوی ((کنزالعمال فی سنن الاقوال والافعال)) بغير د څه شك د احاديثو جامع ترين کتاب دې. دوی خپل کتاب د علامه سيوطی په "جمع الجوامع"، باندې مبنی کړې دې يعنی رومبې ئې د هرباب هغه قولی احاديث جمع کړی دی چې په "جمع الجوامع" کښې وو اودې ځخه پس ئې هغه قولی احاديث جمع کړی دی چه کوم د علامه سيوطی رحمه الله ځخه پاتې شوی وی. اوددې ئې نوم "الاکمال فی سنن الاقوال" کېښودو بيا د "جمع الجوامع" فعلی احاديث چه د صحابؤ په ترتيب مرتب وو هغه يې د ابوابو په ترتيب مرتب کړل او د دې مجموعې نوم "کنزالعمال" دې. دې کښې د هرحديث حواله په رموزو کښې ورکړې شوې ده. لکه د بخاری دپاره "خ" اود مستدرك حاکم دپاره "ك" وغيره علامه علی المتقی په خپل دې کتاب کښې تقريباً د احاديثو ديرش کتابونه جمع کړی دی. دغه شان دا کتاب د يوحديث دتحقيق دپاره د بې نظيرهنما حيثيت لری

**③ الاطراف:** د احاديثو هغه کتابونه چه هغې کښې د حديثوصرف د اول او د آخرلفظ ذکر شوې وی. چه په هغې سره ټول حديث پيژندلې کيږی اوآخرکښې ددې حديث حواله ذکر شوې وی چه دا حديث دفلانی فلانی کتابونوځخه اخستې شوی دی د دې فائده دا وی چه يوسړی ته د يو حديث اول او آخرلفظ يادوی خونه يې پوره حديث په ذهن کښې وی اونه ورته اسنادی حيثيت معلوم وی په داسې وخت د اطراف کتابونه ډيرښه کارو ورکوی

**په دې فن کښې اولنی کتاب:** په دې موضوع دټولوځخه رومبې حافظ ابن عساکر دمشقی رحمه الله کتاب اوليکوچه په دوه جلدونومشتمل دې ددې نوم ئې "الاشراف فی معرفة الاطراف" کيخودو دې کښې حافظ ابن عساکر د ابوداود، نسائی، ترمذی، اطراف ذکرکړې دی دا کتاب دوئ په حروف معجم باندې مرتب کړې دې خو دا کتاب ناياب دې

دې ځخه روستوحافظ عبدالغنی مقدسی "اطراف الکتب الستة" تحريرکړو نن صبا د دې نوع زيات متداول کتاب د حافظ مزی "تحفة الاشراف فی معرفة الاطراف" دې د "الفهارس" په ذيل کښې بيان شوې "المعجم المفهرس لالفاظ الحديث النبوی" او د دې تلخيص، مفتاح کنوزالسنة هم ددې نوع ترلاندې راځی

⑭ **الفهارس:** د احاديثو هغه كتابونه چه هغې كښې يو يا د زياتو كتابونود احاديثو فهرست جمع شوې وې چه د حديث راويستل آسان وى مثلاً دعلامه زاهد الكوثرى رحمه الله يوشاگرد د "فهارس البخاري" په نوم يو مفيد كتاب ليكلې دې چه د هغې د وجې دبخارى احاديث راويستل ډير آسان شوى دى

ددې سلسلې يوجامع اومفيد كار الله تعالى د مستشرقينو(۱) ديوجماعت څخه آخستې دې چه هغوى د ډاكټر وينسنك په مشرئ كښې په اووه ضخيم جلدونوكښې يومفصل كتاب مرتب كړې دې "المعجم المفهرس لالفاظ الحديث النبوى" چه دې كښې دوئ د صحاح سته موطا امام مالك سنن دارمى اود مسند احمد د احاديثو فهرست مرتب كړې دې اوددې طريقه دا ده چه د حروف تهجى په حساب سره دوئ د هرلفظ ترلاندې دا بيان كړى دى چه دالفظ كوم كوم حديث كښې راغلې دې اوهغه حديث كوم كوم ځائې ذكردې خودې كتاب كښې دا خلق د احاديثوپه استيعاب نه دى قادر شوې بلكه دې كښې ډير احاديث پاتې شوى دى. بيا د دې كتاب يوتلخيص هم «وينسنك» "دمفتاح كنوز السنة" په نوم سره شائع كړې دې چه د مختصركيدو دوجې ډيرمفيد دې اودهرطالب علم دپاره ضرورى دې

⑮ **الاربعينات:** جمع د "الاربعين" په معنى د څلويښت حديثونو هغه كتابونو ته وائى چه هغې كښې څلويښت احاديث ديوباب يادمختلفوبابونو جمع شوې وى((والمصنفات فى ذلك لاتعدولاتحصى)) بې شميره محدثينو اربعين. ليكلې دى او د دوئ د تاليف مقصد د امام بيهقى په دې حديث عمل كول دى چه هغوى په "شعب الايمان" كښې د حضرت ابودرداء رضى الله عنه څخه مرفوعاً نقل كړې دې «قال سئل رسول الله صلى الله عليه وسلم ما حد العلم الذى اذا بلغه الرجل كان فقيهاً فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم من حفظ على امتى اربعين حديثاً فى امردينها بعثه الله فقيهًا وكنت له يوم القيامة شافعًا وشهيداً)) (۲) دا حديث په عوام الناس كښې ډيرمشهوردې خود امام احمد رحمه الله قول دې ((حديث متنه مشهورفيمابين الناس وليس له إسناد صحيح)) چه دا يو داسې حديث دې چې متن يې دخلقو په مينځ كښې مشهوردې خو د دې سند صحيح نه دې (۳) چنانچه امام نووى رحمه الله دخپل اربعين

(۱) مستشرقين جمع د مستشرق ده د دې څخه هغه خوك مراد دى چې مسلمان نه وى خو د اسلامى تعليماتو مطالعه يې كړې وى او څه ډكرى يې په كښې اخستې وى د دې خلقو په اسلامى علومو تحقيق كول د دې دپاره نه وى چې د اسلام خدمت اوكړى بلكه د تنقيد دپاره د اسلام مطالعه كوى او د خپل مقصد حاصلولو دپاره دا كار كوى.
(۲) مشكاة المصابيح كتاب العلم فصل ثالث
(۳) كذا فى مشكاة المصابيح

په شروع کښې ددې حدیث په باره کښې تحریرفرمائی ((اتفق الحفاظ علی انه حدیث ضعیف وان کثرت طرقه)) نود احدیث سندا ضعیف دې خود تعدد طرقُ اودکثرت اسانیدو په وجه دیته حسن لغیره وئیلې کیدې شی ددې وجې دامت ډیروعالمانو اومحدثینوپه دې عمل کړې دې او اربعینات ئې لیکلې دی زمونږپه علم کښې د ټولوڅخه ړومبې اربعین عبدالله بن مبارک لیکلې دې بیا محمدابن اسلم طوسی روستوبیابې شمیره عالمانوپه مختلف موضوعاتواربعینات مرتب کړل مثلاً امام دارقطنی، حاکم، ابونعیم، ابوعبدالرحمن سلمی اوابوبکربیهقی وغیره [انظر مقدمة الاربعین النووي]

⑩ **الموضوعات**: یعنی هغه کتابونه چه هغې کښې احادیث موضوعه جمع کړې شوې وی یاد متهم بالوضع احادیثو تحقیق شوې وی شروع کښې به کتب موضوعه په دې انداز لیکلې کیدل چه د ضعیف راویانو تذکره به کیدله اودوی څخه چه به کوم موضوع یا ضعیف احادیث مروی وو هغه به په ښنه کولې شو د حافظ ابن عدی "الکامل" دامام عقیلی رحمه الله الضعفاء او د امام جوزقانی الاباطیل هم په دې انداز دی (١)

**د موضوعاتو روستئ طریقه**:روستو بیا د موضوعاتوطریقه دا شوه چه موضوع یا متهم بالوضع احادیث د ابوابو په ترتیب یا د حروف تهجی په ترتیب سره ذکرکول شروع شول او دابه ورسره بیانولې شی چه دا چا روایت کړې دې اودې کښې سنداً څه نقص دې

**په دې فن کښې اولنې کتاب**:دې باندې د ټولوڅخه ړومبې علامه ابن جوزی رحمه الله قلم اوچت کړو د دوئ دوه کتابونه دی یو ((العلل المتناهیة فی الاخبارالواهیة)) دویم ((الموضوعات الکبری خو اهل علم په دې اتفاق لری چه ابن الجوزی په احادیثود وضع حکم لګولو کښې متشدد دې اوده ډیرصحیح احادیث هم موضوع ګرځولی دی

**دابن جوزی د موضوعاتو تردید**:د دې وجې روستو عالمانو د دوئ په کتابونو تنقیدونه لیکلی دی حافظ ابن حجر رحمه الله د هغوی په تردید کښې ((القول المسدد فی الذب عن مسند احمد)) کښې ددوی ښه تردیدکړې دې دې کتاب کښې حافظ د مسند احمد رحمه الله د هغه احادیثوتحقیق کړې دې کوم نه چه ابن الجوزی رحمه الله موضوع وئیلې دی اوبیان ئې کړې دې چه په کوم احادیثو ابن الجوزی رحمه الله د موضوع کیدو حکم لګولې دې په هغې کښې یوحدیث په صحیح مسلم کښې هم شته اویو حدیث د بخاری احمدشاکر والانسخه کښې هم شته او داسې ډیر احادیث دی چه امام بخاری تعلیقاً روایت کړی دی اوابن الجوزی موضوع ګرځولې دی بیاعلامه سیوطی د ابن الجوزی په موضوعاتو یومفصل تنقید

(١) خوداکتاب هم متشددګرځولې شوې دې

لیکلې دي چه د هغې نوم ((النکت البدیعات علی الموضوعات)) دې. بیائې د دې تلخیص کړې دې اودې کښې ئې څه اضافه کړې ده چه د ((اللالی المصنوعة فی الاحادیث الموضوعة)) په نوم مشهوردې کوم چه په څو جلدونوکښې شائع شوې دې. خوعلامه سیوطی د حدیث په معامله کښې څه قدرې متساهل دې. د دې وجې بعضې ضعیف یا منکر احادیث هم صحیح ګرځوی.

**په دې فن کښې نورکتابونه:** دعلامه ابن الجوزی اوسیوطی څخه پس ډیرو حضراتو په موضوعاتو کتابونه لیکلې دی چه په هغې کښې دملاعلی قاری "الموضوعات الکبیر" ښه مقبول او مشهور دې. په آخری دورکښې قاضی شوکانی " الفوائد المجموعة فی الاحادیث الموضوعة" او د علامه طاهرپټنی "تذکرة الموضوعات" مختصر خو مفیدکتابونه دی.

**په دې فن کښې جامع ترین کتاب:** ددې نوع جامع ترین کارعلامه ابن عراقی کړې دې، دوئ پخپل کتاب " تنزیه الشریعة المرفوعة عن الاحادیث الشنیعة الموضوعة" کښې دابن جوزی، جوزقانی، عقیلی، ابن عدی، حافظ ابن حجر، علامه سیوطی، اود ملاعلی قاری ټول کتابونه را جمع کړې دی، اود هرحدیث ئې ښه تحقیق هم کړې دې نو ددوئ کتاب جامع ترین اومحقق ترین دې، چه کله کله د ړومبنوټولو کتابونو څخه استغناء راولی. دې کتاب کښې علامه ابن عراقی د ابن جوزی، جوزی جانی اود سیوطی په بیان کړی احادیثو کښې صرف هغه احادیث جمع کړی دی چه فی الواقع موضوع دی.

⑮ **غریب الحدیث:** یعنې هغه کتابونه چه هغې کښې په حدیثوکښې د راتلونکو کلماتو لغوی او اصطلاحی تحقیق اوتشریح شوې وی. ددې موضوع دټولو څخه ړومبې کتاب د امام نضربن شمیل او د ابوعبیده معمربن المثنی کتاب دې روستو امام اصمعی او علامه ابن قتیبة دینوری هم په دې موضوع قلم اوچت کړې دې. د دې څخه پس علامه خطابی رحمه الله دا ټول را جمع کړې دی. خوپه دې موضوع د ټولو څخه ړومبې جامع او مفصل کتاب د امام ابوعبید قاسم بن سلام "غریب الحدیث" دې البته دې څخه د څه لفظ معنی تلاش کول ډیرمشکل دی. ځکه چه دې کښې د حروف تهجی هیڅ لحاظ نشته. دې څخه پس علامه زمخشری رحمه الله "الفائق " په نوم یوکتاب اولیکوچه د حسن ترتیب په لحاظ سره په سابقه ټولو کتابونو فائق دې.

**په دې فن کښې جامع کتاب:** خوددې نوع دټولو څخه زیات جامع کار علامه مجد الدین ابن الاثیر الجزری رحمه الله کړې دې. چه د هغه کتاب "النهایة فی غریب الحدیث والاثر" ښه جامع هم دې او مرتب هم دې. دوې دا د حروف تهجی په ترتیب مرتب کړې دې، د دې وجې په دې موضوع کښې د دې کتاب فائده عامه شوه اودا په ماخذ کښې شمار شو.

په دې موضوع نورهم ډیر مفیدکتابونه دی لکه دعبدالغافر فارسی کتاب "مجمع الغرائب" او د قاسم سرقسطی "غریب الحدیث" وغیره

**مقبول ترین کتاب:** په آخری دورکښې علامه طاهر پټنی "مجمع بحار الانوار فی غرائب التنزیل ولطائف الاخبار" تالیف کړو چه ددې نوع مقبول او مستندکتاب دې علامه انور شاه کشمیری به دې کتاب لره د غریب الحدیث په ټولو کتابونوفوقیت ورکولود دې وجه دا وه چه دې کتاب کښې صرف د الفاظوتشریح نه ده بلکه هرلفظ چه په کومو احادیثو کښې راغلې دې دهغې احادیثوهم مختصر او ملخص تشریح موجوده ده او حضرت شاه صاحب فرمائی چه ددې مؤلف د الفاظوتشریح کولوکښې د لغت دکتابونو څخه علاوه ټول شروح حدیث هم ملحوظ ساتلې دی

⑱ **کتب الاحادیث المشتهرة:** یعنی هغه کتابونه چه په هغې کښې د هغې احادیثوتحقیق شوې وی کوم چه عام مشهور او د هرچاپه ژبه وی خو د هغې د سندعلم عام طور سره نه وی په دې موضوع د ټولوڅخه ړومبې علامه زرکشی رحمه الله د "التذکرة فی الاحادیث المشتهرة" په نوم یوکتاب لیکلې دې د دوئ څخه پس حافظ ابن حجر "اللالی المنثورة فی الاحادیث المشتهرة" روستو بیا علامه سیوطی "الدرر المنتثرة فی الاحادیث المشتهرة" اوعلامه ابن درویش "أسنى المطالب فی أحادیث مختلفة المراتب" هم دخپل اختصارسره کافی مشهورشو خو د دې نوعې د ټولو څخه مشهوراومتند اول کتاب دحافظ شمس الدین سخاوی "المقاصد الحسنة فی الاحادیث المشتهرة علی الالسنة" دې چه دا دوئ په حروف تهجی مرتب کړې دې او د هرحدیث ئې ښه تحقیق کړې دې

⑲ **الترتیب:** یعنی هغه کتاب چه په هغې کښې سره دیوبل غیر مرتب کتاب احادیثو لره په یوخاص ترتیب سره جمع کړې شی مثلاً "ترتیب مسند احمد علی الحروف لابن کثیر" او ((ترتیب مسند احمد علی الحروف لابن المجیب)) دغه شان په آخری دورکښې علامه ابن ساعاتی مسند احمد د "الفتح الربانی" په نوم د ابوابوپه ترتیب مرتب کړو

⑳ **اسباب الحدیث:** په حدیث کښې ددې هم هغه حیثیت دې کوم چه تفسیرکښې د اسباب النزول دې یعنی دې کښې د قولی احادیثوسبب ورود بیان شوې وی چې نبی کریم ﷺ کوم ارشادپه کوم حالت کښې فرمائیلې دې په دې نوع کښې ډیر لږ کتابونه لیکلې شوی دی خو په دې نوع کښې د ټولو څخه ړومبې تصنیف د امام ابوحفص العکبری دې دوئ څخه روستوعلامه حامدبن کزنی اوعلامه سیوطی پرې هم قلم اوچت کړې دې صاحب د کشف الظنون لیکی چه زمونږ په دورکښې ددې نوع صرف یو کتاب باقی دې چه د هغې

نوم "البيان والتعريف في اسباب ورود الحديث الشريف" دي اودا د علامه ابراهيم بن محمد الشهير بابن حمزه الحسيني الدمشقي الحنفي تاليف دي چه شائع شوي دي.

⑪ **مشكل الحديث:** دې نوعې ته شرح الآثار" او مختلف الحديث" هم وائي اودې څخه مراد د احاديثو هغه كتابونه دي چه هغې كښې د متعارض احاديثو تطبيق او د مشكل المراد احاديثو محمل متعين كړې شوې وي دې كښې څه خاص ترتيب نه وي بلكه مؤلف كيف ما اتفق [بغير د څه خاص طريقې او شرطونو څخه] احاديث ذكركوي اوتشريح ئې كوي په دې نوع هم ډيركتابونه ليكلي شوي دي. وئيلې كيږي چه دې نوع كښې د ټولوڅخه رومبې مصنف امام شافعي دې چه هغوئ د خپل "كتاب الام" په بعضې حصوكښې دا كاركړې دې. خو باقاعده طورباندې په دې د ټولو څخه رومبې قلم امام ابن جريج اوچت كړې دې. دغه شان ابو محمدبن قتيبه او امام ابن عبدالبر پرې هم كتابونه ليكلي دي. په موجوده دوركښې په دې موضوع دوه كتابونه معروف اومتداول دي. يود امام ابوجعفرطحاوي " مشكل الاثار" دويم دعلامه ابو بكربن الفورك،مشكل الحديث " دواړه كتابونه شائع شوي دي.

⑫ **العلل:** دحديثو هغه كتاب چه هغې كښې داسې حديث ذكر كړې شوې وي چه د هغې په سند كښې كلام وي لكه،كتاب العلل، دامام بخاري او "كتاب العلل، د امام مسلم او ،كتاب العلل الصغير والكبير، د امام ترمذي. دغه شان د امام دارقطني اود امام ابن ابي حاتم "كتاب العلل، هم معروف دي.

⑬ **الزوائد:** يعنې هغه كتاب چه هغې كښې ديوبل كتاب صرف هغه احاديث جمع كړې شوې وي چه كوم صحيحينوكښې نه وي مثلاً دعلامه نورالدين هيثمي " موارد الظمأن الى زوائدابن حبان" چه دې كښې د صحيح ابن حبان صرف هغه احاديث جمع كړې شوي دي چه په صحيحينوكښې نشته دغه شان،زوائدابن حبان على الصحيحين، ، د حافظ مغلطائي كتاب دې، بعضې وخت د زوائد لفظ د مستدرك مرادف ګڼړلې كيږي. لكه "زوائدمسنداحمد،لعبد الله بن احمد رحمه الله په دې معنى دې.

⑭ **التراجم:** د احاديثو هغه كتاب ته وائي چه په هغې كښې ديوطريق سندټول احاديث په يوباب كښې جمع كړې شوې وي. مثلاً باب داسې قائميږي،،ذكرما روي مالك عن نافع عن ابن عمررضي الله عنه، اوددې لاندې هغه ټول احاديث نقل كولې شي كوم ته چه ((من روى عن ابيه عن جده)) وئيلې كيږي.

⑮ **الامالي:** په وړاندې زمانه كښې دتدريس طريقه دا وه چه استاذ به خپل يادكړي

احادیث شاګردانو ته املاء کول دغه شان شاګردانو سره به چه کومه مجموعه تیاره شوه دې ته به د شیخ امالی ٠ ونیلې کیده لکه د حافظ ابن حجر امالي مشهوردی کله چه دطباعت رواج عام شو نو د احادیثود تدریس دپاره د املاء ضرورت باقی پاتې نشو خو د احادیثوتشریح او د دې متعلقات چه استاذ ئې په طور د تقریر بیانوی ددې دلیکلو رواج اوس هم جاری دې اونن صباهم دغه تقریرونو ته امالی وائی ددې نوع دیرتقاریرشائع شوی دی چه هغې کښې مفصل ترین کتاب،،فیض الباری،، دې چه په صحیح بخاری باندې دعلامه انورشاه کشمیری د تقریرونو مجموعه ده حضرت مولانابدرعالم صاحب میر تهی مرتب کړې ده، دغه شان دعلامه کشمیری تقریر ترمذی چه د "العرف الشذي" په نوم شائع شوې دې دغه شان،،الکوکب الدری،، د حضرت ګنګوهی د ترمذی امالی ده او "لامع الدراری" په بخاری باندې هم د دوئ امالی ده چه حضرت مولانا محمد یحیی سهارنپوری مرتب کړې ده په دې د حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله تعلیقات هم دیدغه تقریر الجنجوهي علي صحیح مسلم د ګنګوهي رحمه الله تقریر دې چه مولانا حسین علي رحمه الله جمع کړې دې او شایع شوې دې

⑮ **الوحدان:** یعنی د هغه راویانو د احادیثومجموعه چه د هغوئ څخه صرف یویوحدیث مروی دې

**الثنائیات:** په دې موضوع باندې د امام مالک اوامام ابو حنیفه ثنائیات موجود دې

⑯ **الثلاثیات:** یعنی داحادیثوهغه کتابونه چه کوموکښې صرف هغه احادیث ذکرشوې وی چه مصنف ته په درې واسطو رارسیدلې وی یعنی چه دهغې په سندکښې د مصنف څخه د نبی کریم ﷺ پورې تولې درې واسطې وی لکه ثلاثیات البخاری ٠ ثلاثیات الدارمی ٠ ثلاثیات عبدبن حمید ٠ ثلاثیات امام احمد وغیره

⑰ **شروح الحدیث:** یعنی هغه کتابونه چه هغې کښې دیوکتاب د حدیثوشرح شوې وی مثلاً فتح الباری ٠ عمدة القاری ٠ وغیره

⑱ **الترغیب والترهیب:** دا د حدیثو هغه کتابونه دی چه هغې کښې صرف دترغیب اوترهیب احادیث جمع شوی وی دې کښې دټولو څخه زیات جامع کتاب دحافظ منذری ٠ الترغیب والترهیب دې

⑲ **الاذکار،** دا د احادیثو هغه کتابونه دی چه دې کښې د نبی کریم ﷺ څخه منقول دعاګانې او ذکرونه جمع شوې وی لکه د امام نووی "کتاب الاذکار" دعلامه ابن الجزری "الحصن الحصین من کلام سید المرسلین صلی الله علیه وسلم" وغیره

⑳ **المسلسلات،** دا هغه کتابونوته وائی چه هغې کښې داسې احادیث ذکر شوی وی چه

دهغې روايت کښې ټول راويان په يوصفت ياپه خاص لفظ ياپه خاص فعل متفق شوې وی مثلاً ديوحديث ټول راويان فقهاء يا محدثين وی يا د هغې هرراوی د روايت حديث په وخت څه خاص کارکړې وی مثلاً هر راوی د روايت په وخت مصافحه کړې وی وغيره (په دې موضوع باندې د شاه ولی الله رحمه الله کتاب ,,الفضل المبين،، شته

⑭ **کتب المصاحف**: دا هغه کتابونه وائی چه هغې کښې دقرآن پاك جمع او ترتيب، اختلاف قراءت اود اختلاف نسخه تاريخ بيان شوې وی. مثلاً دابن عامر «کتاب المصاحف» دې څخه علاوه ډيرو خلقود "کتاب المصاحف" په نوم کتابونه ليکلې دی، په هغې کښې د ابن اشته "کتاب المصاحف" اود ابن ابوداود "کتاب المصاحف" او د ابن الانباری "کتاب المصاحف " زيات مشهور دی.

**طبقات کتب الحديث باعتبار الصحة**

دحديث دطالب علم دپاره په دې پوهيدل هم ضروری دی چه د حديث کوم کتاب د صحت په اعتبارکومه درجه لری؟ حضرت شاه عبدالعزيزخپل يوشاګردته خط اوليکوچه د يو مختصرې رسالې حيثيت ئې لرلو د هغې نوم "مايجب حفظه للناظر" دې. دې کښې حضرت شاه عبدالعزيز د حديثو کتابونه په پنځو طبقاتومنقسم کړې دی. مونږ دلته ددغه پنځوطبقاتو په باره کښې څه ضروری معلومات بيانوو

**اوله طبقه**: ړومبئ طبقه د حديثو د هغه کتابونوده چه د هغې مصنفينو د دې خبرې التزام کړې وی چه ددوئ دکتاب ټول احاديث د صحيح په شرائطوپوره وی داسې کتابونوته صحاح مجرده وائی. چنانچه د دې طبقې دکتابونو د هر حديث په باره کښې دا وئيلې شی چه دا د دې د مؤلف په نيز صحيح دې. دې طبقه کښې لاندې ليکلی شوی کتابونه شامل دې

① صحيح بخاری ② صحيح مسلم ③ مستدرك حاکم ④ صحيح ابن حبان⑤ صحيح ابن خزيمه ⑥ المنتقی لابی محمدعبدالله ابن الجارود⑦ المنتقی للقاسم ابن اصبغ، ⑧المختاره لضياء الدين المقدسی ⑨ صحيح ابن السکن ⑩ صحيح ابن العوانه.

**نوټ**: خو دا ياد ساتل پکاردی چه دا کتابونه په صحاح مجرده کښې شمارل په دې اعتباردی چه ددی مؤلفينوصرف هغه احاديث نقل کړی دی کوم چه ددوی په ګمان کښې صحيح دی خوپه نفس الامرکښې ددی صحيح کيدل ضروری نه دی ترکومې چه د صحيحينو او د مؤطا امام مالك تعلق دی ددوی په باره کښې اتفاق دې چه د دوی ټول احاديث په نفس الامرکښې هم صحيح دی.

**د دارقطنی تنقيد**: صرف امام دارقطنی دې څخه اختلاف کړې دی او په خپل کتاب "التتبع

علی الصحیحین" کښې ئې د صحیحینو په ډیرو احادیثو تنقید کړې دې او داني غیرصحیح ثابت کړي دی

**جواب:** خو حافظ ابن حجر په ((هدی الساری مقدمه فتح الباری)) کښې هغه ټول احادیث کوم چه امام دارقطنی داعتراض دپاره منتخب کړی دی هغه نقل کړی دی او بیايې د امام دار قطنی د اعتراض کافي شافي جواب کړې دې. چنانچه د دوئ نه روستو ټول امت عالمانو د صحیحینو د هر حدیث په صحت باندې متفق دی

**دمستدرک حاکم درجه،** البته دمستدرك حاکم په باره کښې دا ونیل صحیح دی چه دا په نفس الامر کښې صحیح مجرد نه دې. چنانچه تقریباً ټول و اهل علم په دې اتفاق دې چه حقیقت کښې مستدرك حاکم د دريمې طبقې سره تعلق لری. ځکه چه امام حاکم د تصحیح حدیث په معامله کښې ډیر متساهل دې. او دوئ صرف ضعیف او منکر نه بلکه موضوع حدیث هم صحیح گرځولې دې. ترکومې چه دوئ لره په ړومبئ طبقه کښې د شمارلو تعلق دې. نو هغه صرف ددې وجې دې چه ددې مصنف د خپل زعم مطابق ټول احادیث دبخاری او د مسلم د شرائطو مطابق صحیح جمع کړې دی. اگرچه هغه په دې کوشش کښې قطعاً کامیاب شوې نه دې. چنانچه د امام حاکم تساهل دومره مشهور او معروف دې چه ابوسعید المالینی رحمه الله خو به دا اونیل چه مستدرك کښې یو حدیث هم صحیح نه دې

**دمستدرک حاکم باره کښې انصافي خبره:** خو حقیقت دا دې چه د دې ډیر احادیث صحیح دی چنانچه حافظ شمس الدین ذهبی رحمه الله چې د حاکم د مستدرك د ټولو ځخه زیات نقاد دې. د دوئ دا قول علامه سیوطی رحمه الله په تدریب الراوی کښې نقل کړی دی چه د مستدرك حاکم خو تقریبا نیم احادیث بیشکه د بخاری او دمسلم په شرائطو پوره دی، او څلورمه حصه داسې ده چه د هغې د راویانو نقل قابل د استدلال دی. خودوی کښې څه علت موندلې کیږی داسې احادیث دوه سوه یا د دې ځخه لږزیات دی په هغې عمل کول مناسب نه دی. او باقی څلورمه حصه انتهائی ضعیف منکر او موضوع احادیثو باندې مشتمله دو(١)

حافظ ذهبی دمستدرك تلخیص کښې چه دمستدرك سره چاپ شوې دې په هرحدیث خانله خانله تبصره کړې ده.

**د امام حاکم دتساهل اسباب :** بیا عالمانو کښې دا خبره زیربحث پاتې شوې ده چه د امام حاکم غوندې حافظ دحدیثو ځخه داسې تساهل ولې اوشو؟ ددې ډیر وجوه بیان شوی دی ① بعضې حضراتو په ده دتشیع الزام لگولې دې خو دا صحیح نه ده.

(١) اوگورۀ تدریب الراوی فی شرح تقریب النواوی تساهل الحاکم فی المستدرک ١٢ـ

② بعضې وائی چه د روافضو سره د اختلاط د وجې ده نه ډيرو احاديثو د ضعف احساس اونه شو ( [1] )

③ خوددې سوال دټولو ښه بهترين او فاضلانه جواب حافظ جمال الدين زيلعې په نصب الرايه کښې د جهربسمله دبحث ترلاندې ور کړې دې

**دامام زيلعى په نيز د امام حاكم د تساهل اسباب:** هغه فرمائی چه دحاکم دتساهل څواسباب دی.

① **د متابعت په وجه غلطى:** امام بخاری رحمه الله اوامام مسلم رحمه الله کله ديو متکلم فيه راوی روايت هم نقل کوی خودا هله کوی چه کله دده ډيرمتابعات اوشواهد موجود وی مثلاً ابو اويس متکلم فيه دې خوامام مسلم ده حديث ((قسمت الصلوة بيني وبين عبدى نصفين ﷺ))نقل کړې دې ( [2] )

ځکه چه حديث د نورو قوی راويانو مثلاً د امام مالك، شعبه او ابن عينيه وغيره څخه هم مروی دی په داسې مواقع حاکم صرف دا ګوری چه ابواويس د مسلم راوی دې اودې (حاکم) د هغوئ هغه احاديث هم نقل کوی چه د هغې متابعات نه وی ددې باوجود دې دا وائی چه ((هذا صحيح على شرط مسلم))

② **دشيخ په وجه غلطى:** ډيرکرتې داسې وی چه د يو راوی احاديث د يو شيخ څخه قوی اوصحيح وی. خو د بل شيخ څخه قوی نه وی. داسې موقع باندې بخاری او مسلم د ده صرف هغه احاديث راخلی کوم چې د ړومبنی شيخ څخه مروی وی مثلاً بخاری اومسلم د خالد بن مخلد القطوانی هغه احاديث روايت کړی دی کوم چه د سليمان بن بلال څخه مروی دی. حاکم صرف د خالدبن مخلدنوم اوليدو اودې ئې د شيخينوراوی خيال کړو او د دوئ هر حديث ئې صحيح على شرط الشيخين ورته اووئيل سره د دې چې د نورو شيوخو څخه د دوی روايات ددې درجې نه دی دکومې درجې چه د سليمان بن بلال څخه دی. نوکه يوسړې په يوبل روايت کښې خالدبن مخلدعن عبدالله بن المثنى اووينی اودا خيال اوکړی چه خالد او عبدالله دواړه دبخاری راويان دی. ددې وجې دا حديث هم صحيح على شرط البخاری دې نو دا به سخته غلطی وی ځکه چه دخالدبن مخلدروايت

---

[1] ) وقال الامام الكشميرى رحمه الله لا ادرى ما وقع للحافظ الحاكم وأى امر دعاه الى وضع الموضوعات فى كتابه ؟ وكيف ساغ له ذلک ؟ وقد اعتذرعنه الناس وذكروا فى التفصى عنه وجوهًا لاترجع الى كثيرطائل ثم اعلم انى أرى فيه أحاديث فى أسانيدها رجال البخارى من أعلاها والوضاعون والكذابون من طرف آخرومع ذلک يحكم عليها الحاكم أنها على شرطه ثم ظهرلى أن حكمه هذا ينسحب على قطعة دون قطعة فكانه اصطلاح جديد منه والا فالظاهر أن يحكم باعتبار مجموع الاسنادلاباعتبارجزء منه أهه (مقدمة فيض البارى ۱\۳۶) _

[2] ) صحيح مسلم ۱\ ۱۲۹، ۱۷۰ كتاب الصلوة باب وجوب قراءة الفاتحة فى كل ركعة وانه اذلم يحسن الفاتحة ولا امكنه تعلمها قرا ما تيسر له غيرها_

د عبدالله بن المثنى څخه مقبول نه دي.

③ **د زمانې د بدليدو په وجه غلطي:** بعضې وخت د يوراوي احاديث د څه زمانې پورې صحيح او مقبول وي اودې څخه پس روايت ئې ضعيف اومردود وي امام بخاري په داسې موقع ددې خبرې خيال ساتي چه د داسې راوي د رومبنې زمانې روايات راواخلي لکه د مروان بن الحكم په باره کښې د علماء رجال كلام مشهوردې خودده باره کښې قول فيصل دا بيان شوې دې چه دده د حاكم كيدو څخه مخکښې روايات مقبول دې او د حاكم جوړيدو څخه پس دده عدالت اوثقاهت مشكوك شو نوامام بخاري چه د ده كوم روايات راوړې دي هغه د حاكم كيدو څخه وړاندې دي اوس كه يوسړې د مروان بن حكم نوم اووينى او دا خيال اوكړي چه دا د بخاري راوي دې د دې وجې د ده هر حديث صحيح دې نودا به غلطه وي امام حاكم ته داسې مغالطې راغلې دي.

④ **د ثقه راوي د ضعيف سره په روايت کښې د ملګرتيا په وجه غلطي:** بعضې وخت امام مسلم يوضعيف راوي ديوثقه راوي سره يوځائې کوي. مثلاً امام مسلم عبدالله بن لهيعه دعمروبن الحارث سره يوځائې کړې دې او ذکرکړې ئې دې. يعنى عن عمروبن الحارث وعبدالله بن لهيعه، ددې مطلب د عبدالله بن لهيعه توثيق نه دې بلکه هغوى د روايت مدار عمروبن الحارث ګرځولې دې اوعبدالله بن لهيعه ئې ضمناً ذکر کړې دې اوس که يوسړې په دې بناء ابن هيعه دمسلم راوي ګڼړي اودده هرحديث ته صحيح على شرط مسلم وائى نودا سخت تساهل دې.

⑤ **صرف د سند راوي ته د کتلو په وجه غلطي:** دحاكم دتساهل يوسبب دا هم دې چه امام حاكم د سند بعضې راويانوته ګوري چه دا د بخاري راويان دي او بعضي نورو ته ګوري چه دا د مسلم راويان دي او دا سند صحيح على شرط الشيخين ګرځوي حال دا دئ چه داصحيح نه ده

⑥ **د سند د راويانو په وجه غلطي:** يو سبب دا دې چه حاكم ډيركرتې ديو سند اكثر راويانوته ګوري چه دا د صحيحنو راويان دي خو دوئ کښې يوراوي يادوه راويان ضعيف وي اودده ددوئ په ضعف نظر نه وي.

بله وجه علامه كتاني مغربى رحمه الله "الرسالة المستطرفه" کښې د امام حاكم د تساهل يوبل عذرهم بيان کړې دې او هغه دا چه امام حاكم د مسودې تيارولو څخه پس نظرثانى اونه کړې شوه اود تصحيح اوتنقيح څخه وړاندې د دوى وفات اوشو هم دا وجه ده چه كتاب په رومبې خُمس چه ئې نظرثانى کړې ده هغې کښې تسامحات ډيركم دى. بهرحال د دې اسبابو د وجې امام حاكم د تصحيح په باره کښې متساهل دې اوددې وجې حافظ ذهبى

په " تلخيص المستدرك " کښې په بعضې ځايونو کښې په دوئ سخت نکير کړې دې

**دويم کتاب صحيح ابن حبان:** ددې طبقې دويم کتاب صحيح ابن حبان دې بعضې حضرات فرمائي چه دا کتاب هم د مستدرك په شان صحت ته نه رسي ځکه چه ابن حبان هم دحاکم په شان دتصحيح په معامله کښې متساهل دې خوعلامه سيوطي رحمه الله (۱) ليکي چه صحيح ابن حبان په دې لحاظ د مستدرك نه فائق دې ځکه چه ابن حبان چه کوم شرائط مقرر کړې دی دوئ د هغې پوره پابندی کړې ده

**د ابن حبان د شرائطو د نرموالي وجوه:** البته دا صحيح ده چه دتصحيح په معامله کښې د ابن حبان شرائط د نورو په مقابله کښې ډيرنرم دی د هغې دوه وجې دی

① **حسن د صحيح يو فرد دې:** يوخودا چه ابن حبان حسن احاديث هم صحيح ګرځوی د دوئ په نيز حسن څه جُدا قسم نه دې بلکه د صحيح يوفرد دې د دې وجې دوئ په خپل کتاب کښې داسې ډير احاديث روايت کړې دی چه د نورو محدثينو په نيزدې مرتبې ته نه رسي خو ابن حبان د حسن کيدو په بناء دا صحيح ګرځولې دی

② **د استاذ او شاګرد معلوميدل د راوی جهالت نه دې:** دويمه وجه دا چه د ابن حبان په نيز چې د يومجهول راوی استاد اوشاګرد دواړه معلوم اوثقه وی نودده جهالت مضرنه دې بلکه د ده حديث ددوی په نيز صحيح دې اونور محدثين دا حديث د جهالت د راوی په بناء ردکوی د ابن حبان دا دستور دده په " کتاب الثقات " کښې هم جاری دې ځکه چه ددوی په نيز دثقه تعريف دا دې چه په چا څه سبب دجرح ثابت نه وی د دې وجه دوئ ډير مجهول راويان دثقاتو په فهرست کښې شمار کړی دی د دې وجې عام محدثين د يوراوی توثيق صرف په دې بناء نه کوی چه ابن حبان په ثقاتو کښې شمار کړې دې تر څو چه دده غير مجهول کيدل ثابت نه وی به هرحال صحيح ابن حبان خوپه دې لحاظ په مستدرك بې شکه فائق دې چه ابن حبان دخپلو شرطونو پابندی کړې ده خو دا شرائط دومره نرم دی چه حسن بلکه ضعيف احاديث هم د صحيح ترلاندې راځی نوده ته خوپه مستدرك اګرچه فوقيت حاصل دې خو د نورو صحاح مجرده مقام ته نه رسيږی

**دريم کتاب:** دريم کتاب صحيح ابن خزيمه دې دې ته د صحت په يو اعتبار سره په صحيح ابن حبان فوقيت ورکړې شوې دې خو حافظ سخاوی په " فتح المغيث " کښې ليکی چه د صحيح ابن خزيمه ټول احاديث صحيح نه دی بلکه بعضې احاديث په کښې ضعيف هم شته مثلاً دې کښې يوحديث مروی دې ((عن کثيربن عبدالله المزنی عن ابيه عن جده قال سئل رسول الله صلى الله عليه وسلم عن هذه الآية ((وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّىٰ×الأعلى: ١٥))) قال

---

(۱) تدريب الراوی ۱۱ ۱۰۸

انزلت فی زکوة الفطر))
خوحافظ منذری په ترغیب او ترهیب کښې (۱) دا حدیث د صحیح ابن خزیمه په حواله سره نقل کولونه پس فرمائي چه [کثیربن عبدالله واه] حافظ سخاوی داسې څو مثالونه نور هم ورکړې دی د دې وجې دې څخه ثابته شوه چه صحیح ابن خزیمه صحیح مجرده ګرځول د دې مؤلف دزعم مطابق دې په نفس الامر کښې ددې بعضې احادیث ضعیف دی.
حافظ ابن فهد مالکی رحمه الله په "لحظ الالحاظ فی طبقات الحفاظ" کښې د حافظ ابن حجر رحمه الله تذکره کښې لیکی چه د صحیح ابن خزیمه درې حصې د حافظ ابن حجر د وخت نه وړاندې نایاب شوې وې. اوصرف یو څلورمه حصه ملاویده حافظ سخاوی په "فتح المغیث" کښې لیکی چه دا څلورمه حصه هم زمونږ په زمانه کښې ډیره نایابه ده دې نه پس څو کالو پورې ددې کتاب هیڅ څه پته نه لګیده.
**څلورم کتاب المنتقی**: دا د ابو محمدبن الجارود کتاب دې چې د څلورمې صدئ هجری تصنیف دې او ددې اکثر احادیث صحیح دی البته د شمیر په یو څو احادیثو تنقید شوی دې خو دا یومختصر کتاب دې اودې کښې زیات هغه احادیث دی چه کوم صحیحینو کښې مروی دی. تقریبًا دا حال د المنتقی للقاسم بن اصبغ هم دې
**شپږم کتاب المختاره**: دا د ضیاء الدین المقدسی کتاب دې. چه د اوومې صدئ هجرئ تصنیف دې دا د حروف تهجی په اعتبار سره د صحابؤپه ترتیب مرتب دې اوضخیم کتاب دې خود نفس الامر په اعتبار سره دیته صحیح مجرد وئیل مشکل دی څکه چه دې کښې هم غیرصحیح احادیث راغلې دی اګرچه دهغې تعداد ډیرکم دې
**اووم کتاب صحیح ابن سکن**: دا کتاب صحیح ابن سکن دې. د مذکوره تفصیل څخه دا ثابته شوه چه د طبقهٔ اولی په کتابونو کښې صرف بخاری او مسلم داسې دی چه دوئ ته د نفس الامر په اعتبار سره صحیح وئیلې شې باقی یو کتاب ددې درجې نه دې د حدیثو د باقی کتابونو په باره کښې دا ضرور وئیلې شی چه دا د دوئ د مؤلفینو په نیز صحیح دی. اوډیرکرتې د حدیث دتصحیح اودتضعیف په باره کښې د محدثینو اختلاف پیدا کیږی داسې صورت کښې ددې حضراتو تصحیح قابل لحاظ وی
**دویمه طبقه** : دې طبقه کښې هغه کتابونه راځی چه دهغې مؤلفینو دا التزام کړې وی چه یو حدیث به د درجې د حسن څخه کم نه راوړی اوکه یو حدیث ضعیف راشی نو دوئ د هغې په ضعف تنبیه ورکوی د دې وجې چه دکوم حدیث څخه دا خلق سکوت او خاموشی اختیار کړی نو دا به کم ازکم د دوئ په نیز صحیح وی

(۱) ((الترغیب والترهیب" الجزء الثانی ۱۵۲\ الترهیب فی صدقة الفطروبیان تاکیدها رقم الحدیث ۴\

**په دې طبقه کښې د ټولو څخه اعلی کتاب:** په دې طبقه کښې د ټولو څخه اوچت مقام د سنن نسائی دي چنانچه دې کښې داسې حديث نشته کوم چې د امام نسائی په نيز د حسن څخه کم وی مګر دا چه دوئ پخپله ددې د ضعف تصريح کړې وی

**په دې طبقه کښې د دويم نمبر کتاب:** په دويم نمبر سنن ابی داؤد دې په دې کښې هم ابوداود چه په کوم حديث سکوت اوکړی هغه ددوئ په نيز قابل استدلال وی البته بعضې وخت د حديث په سند کښې معمولی ضعف وی خو امام ابوداود ددې پروا نه ساتی او په دې سکوت کوی د ابوداود تلخيص حافظ منذری ليکلی دی په هغې کښې دې دغه معمولی ضعف هم بيانوی دې وجې چه په کوم حديث د ابوداؤد څخه علاوه منذری پرې هم سکوت کړې وی ددې درجه د قوت زياتيږی

**د ابوداود څلور قسمه احاديث:** حافظ ذهبی ليکی چه ابوداؤد کښې

① تقريبًا نيم احاديث خو هغه دی چه د هغې تخريج شيخينوهم کړې دې

② اوبعضې احاديث هغه دی چه ((على شرط الشيخين يا على شرط احدهما)) دی

③ او بعضې احاديث داسې دی چه هغې کښې ديوراوی په حافظه کښې کمې موندلې کيږی چه د هغې دوجې دې د صحيح د مرتبې څخه رانښکته شی اوحسن کښې داخل شی په دې دريو واړه قسمونو امام ابوداود عام طور سکوت کړې دې

④ البته څلورم قسم دهغه احاديثودې چه هغې کښې واضح ضعف اونکارت وی داسې احاديثوباندې امام ابوداؤد عام طور سکوت نه کوی البته شاذونادر په يوموقع کښې په داسې حديث څکه سکوت کوی او کلام پرې نه کوی چه د دهغې نکارت بې حده مشهور وی

**اشکال:** دلته دا اشکال واردېږی چه دفقهی اختلافاتوپه مباحثوکښې ذېرکرتې په چه هغه ابوداؤد په سکوت سره روايت کړی وی؟ چه هغه ابوداؤد په سکوت سره روايت کړی وی؟

**جواب:** ددې جواب دا دې چه د ابوداؤد سکوت صرف د دې خبرې علامت دې چه دا حديث د ابوداؤد په نيز قابل استدلال دې خو يو محدث چه په علوم حديث کښې د اجتهاد په درجه فائزوی دابوداؤدد رائی څخه اختلاف کولې شی

**په دريمه درجه کښې جامع کتاب:** په دريمه درجه کښې جامع ترمذی دې هغه په دې لحاظ د حديثو په ټولو کتابونو کښې منفرد دې چه دې کښې د هر حديث سره د ده د صحت مرتبه هم صراحة بيان شوې ده چنانچه امام ترمذی رحمه الله يو ضعيف حديث هم بغير د تنبيه علی الضعف نه ذکر کوی

**دامام ترمذی په تحسين اوتصحيح کښې تساهل:** البته بعضې عالمان دې دتحسين اودتصحيح په مقابله کښې نسبة متساهل ګرځوی دهغې وجه دا ده چه دوئ د بعضې داسې احاديثو تصحيح ياتحسين کړې دې چه دنوروپه نيز ضعيف دی

**سنن دارمی لره په دې طبقه کښې په شاملولو کښې اختلاف:** دا درې واړه کتابونه په اتفاق سره په دويمه طبقه کښې شامل دی بعضې حضراتو دې کښې سنن دارمی هم داخل کړې دې او بعضودا په دريمه طبقه کښې شمير کړې دې

**د مسند احمد په دې طبقه کښې شاملولو کښې اختلاف:** او شاه ولی الله فرمائی چه مسند احمدهم دې طبقه کښې شامل دې يعنی دې کښې هيڅ يو حديث د حسن څخه کم نشته خو د حضرت شاه صاحب دا ارشاد صحيح نه دې حقيقت دا دې چه د مسند احمد ډير روايات ضعيف اومنکردی د دې وجې بعض عالمانودا په طبقه ثالثه کښې شمارکړې دې اوحقيقت هم دا دې

**تنبيه:** دلته دا خبره خيال کښې اوساتئ چه دا اختلاف د اصل مسندپه باره کښې دې د مسنداحمديوه حصه زيادات هم ده کومه چه ددوئ دوفات نه پس ددوی ځوئ عبدالله ابن احمدجمع کړې ده او د مسندسره ئې لګولې ده ددې حصې په باره کښې اتفاق دې چه دا په دريمه طبقه کښې شامل ده يعنی دې کښې احاديث ضعيفه هم شته

**دريمه طبقه** : دې طبقه کښې هغه کتابونه راځی کوموکښې چه هرقسم احاديث وی. صحيح او حسن هم اوضعيف اومنکراوموضوع دې ددې طبقې دکتابونو مختصر تعارف ضروری دې

① **سُنن ابن ماجه** : دا اګرچه صحاح سته کښې شامل دې خودې کښې د ضعيف اود منکر احاديثو تعداد ډير زيات دې تردې چه دې کښې کم نه کم نورلس ۱۹ احاديث موضوع هم دی. په دې وجه د عالمانويوې لوې ډلې دا په صحاح کښې شامل کړې نه دې ددې په ځائې يې موطا، امام مالك شامل کړې دې اوبعضو سنن دارمی

② **سُنن دارقطنی:** دا د امام ابوالحسن دارقطنی تصنيف دې چه د لوې درجې حافظ دې دوئ دې کتاب کښې دهر فقهی باب ترلاندې ټول متعلقه احاديث د متن اود سند سره د جمع کولواهتمام کړې دې د دې وجې دا کتاب د احکامو د احاديثو جامع ذخيره ده امام دارقطنی دهرحديث سره ددې په سندمختصرکلام هم کړې دې.دې کښې هم هر قسم رطب يابس احاديث شته خوعام طور امام دارقطنی د احاديثوپه ضعف تنبيه ورکوی په دې کتاب مولاناشمس الحق عظيم آبادی [چه مشهور اهل حديث عالم دې] يوحاشيه ليکلې ده چه د هغې نوم ((التعليق المغنی علی سنن الدار قطنی)) دې د امام دارقطنی څخه چه دکوم حديث په سندپه کلام کولوکښې کمې راځی هغه عموماً دې پوره کوی دا

حاشیه د اصل کتاب سره چاپ شوې ده

③ **السنن الکبری للبیهقی:** امام بیهقی د امام دارقطنی شاگرد دې او دوی دا کتاب د فقه شافعی مشهور متن "مختصرالمزنی" په ترتیب لیکلې دې او دد وئ اصل مقصد د شافعی دلائل بیانول دی نودې د خپلو مستدلاتو توثیق او د مخالفینو د دلائلو تضعیف اوتوهین کوی په دې حافظ علاء الدین الماردینی چه د ابن الترکمانی په نوم مشهوردې یوه حاشیه لیکلې ده چه د هغې نوم "الجوهرالنقی فی الردعلی البیهقی" دې دې حنفی المسلک دې اوعلم حدیث کښې ئې اوچت مقام حاصل کړې دې د دې وجې د امام بیهقی په دلائلو مستحکم تنقید کوی او دې کښې د احنافو د دلائلو ډېره ښه ذخیره ملاویږی

④ **مصنف عبدالرزاق:** دا د امام عبدالرزاق بن همام الصنعانی تالیف دې چه د امام ابوحنیفه رحمه الله شاګرددې اود امام بخاری استاذ دې دې کښې دوئ د احادیث مرفوعه څخه علاوه د صحابؤ اودتابعینو فتاوی هم په کثرت نقل کړې دی او دې کښې هر څنګه احادیث ملاویږی

⑤ **مصنف ابن ابی شیبه:** دا د امام ابوبکربن ابی شیبه تالیف دې چه د صحاح سته په مؤلفینو کښې د زیاتو استاذ دې او د ده طرزتالیف د مصنف عبدالرزاق پشان دې دې دوارو کتابونو کښې د احنافو د دلائلو یوه لویه ذخیره ملاویږی

⑥ **مسندالطیالسی** رحمه الله : دا د امام ابوداود الطیالسی تالیف دې چه د امام ابوداؤد سجستانی څخه وړاندې دې بعضې حضرات فرمائی چه دمسند په تالیف کښې د اولیت شرف ده ته حاصل دې خودا خبره صحیح نه ده. [۱]

⑦ **سُنن سعیدبن منصور:** دې کتاب کښې معضل ومنقطع او مرسل احادیث ډېرموجود دی

⑧ **مسندالحمیدی:** د دې مؤلف د امام بخاری استاذدې اود امام ابوحنیفه رحمه الله سخت مخالف دې

⑨ **معاجم طبرانی:** د دوئ تعارف وړاندې تیر شوې دې

**په دې طبقه نور کتابونه:** دا څوکتابونه هغه وو چه د دوئ حوالې ډېرې راځی د دې څخه علاوه نور زیات کتابونه هم په دې طبقه کښې داخل دی چه هغې کښې ① مسند بزار② مسندابویعلی الموصلی ③ مسندعبدبن حمید ④ مسند احمدبن منیع ⑤ حلیة الاولیاء لابی نعیم ⑥ دلائل النبوة لابی نعیم ⑦وللبیهقی ⑧ مسندابن جریر⑨ اوددوئ تهذیب الاثار⑩ ⑪ تفسیرالقرآن ⑫ اوالتاریخ ⑬ تفسیرابن مردویه

دغه شان دتفسیرډېرکتابونه هم په دې طبقه کښې داخل دی. البته تفسیر ابن کثیر

---

[۱]) دتفصیل دپاره اوګوره "الرسالة المستطرفة "

مستثنى دي ځکه چه حافظ ابن کثيردحديث محقق نقال دي اودي عموماپه ضعيف احاديثو دتنبيه کولوعادى دي

**تنبيه**:ددي دريمي طبقې کتابونوکښې ديوحديث په ليدلوترهغې اطمينان نه دى کول پکارترکومې چه ددي د سند مکمل تحقيق اونشى اګرچه ددي مؤلف ډيرجليل القدر وى

**څلورمه طبقه :**

**په دې طبقه کښې شامل کتابونه**: دا هغه کتابونودى چه دهغې احاديث زيات ضعيف وى بلکه حضرت شاه عبدالعزيز خو تردې ليکلي دى چه ددي هرحديث ضعيف دي

① لکه د ابوعبدالله محمدبن على بن الحسن بن بشر [١] چه دحکيم ترمذى په نوم معروف دي. ((نوادرالاصول فى احاديث الرسول الله صلى الله عليه وسلم))

② اوابن عدى "الکامل چه په شپيتو(٦٠) حصو مشتمل دي او دولسو جلدونوکښې دي دمرتضى په شرح قاموس کښې دى چه دا په اتو جلدونوکښې دي د جرحې په کتابونو کښې دکامل ابن عدى مقام ډيراوچت دي اودا جامع ترين کتاب ګڼلي کيږى ابن طاهرددې احاديث دمعجم په ترتيب مرتب کړي دى او ابن الروميه ابوالعباس احمدبن محمدبن معرج الاموى الاندلسى الاشبيلى په الکامل "باندې حاشيه هم ليکلې ده چه د "الحافل فى تکملة الکامل "په نوم معروف ده اوپه يوضخيم جلدباندې مشتمل ده

③ دغه شان "کتاب الضعفاء للعقيلى"

④ دعلامه ديلمى رحمه الله مسندالفردوس " چه هغې کښې ئ لس زره (١٠٠٠٠) مختصر قولى احاديث د حروف تهجى په ترتيب جمع کړى دى

⑤ اودعلامه سيوطى "تاريخ الخلفا"

⑥ دحافظ ابن عساکرتاريخ دمشق " چه په اتيا جلدونوکښې دي

⑦ اودخطيب بغدادى تاريخ بغداد چه تقريباپه شلو جلدونوکښې دي داټول کتابونه هم په ددې طبقې کښې راځى

**داول الذکر درې کتابونوباره کښې تبصره**: ترکومې چه د اول الذکر يعنى دنوادر الاصول للحکيم الترمذى رحمه الله اودالکامل لابن عدى اودکتاب الضعفاء للعقيلى رحمه الله تعلق دي ددې په باره کښې حضرت شاه عبدالعزيز صاحب دا فرمائيل "تړډيرحده صحيح ده چه ددوئ هرحديث ضعيف دي" د دې وجه دا ده چه دې حضراتودا کتابونه د ضعيف راويانوپه تذکره کښې ليکلي دى او د دوى احاديث ئي هم بيان کړي دى نوظاهره ده چه ددوئ هر[illegible] يت به ضعيف وى [illegible] هغه وخت چه د صحت نه قوى دلائلو سره ثابت نه شى

[١] ) المؤذن الصوفى احد الاوتاد الاربعة وصاحب التصانيف المتعددة مقتولا ببلخ قبل سنة خمس وتسعين ومائتين

**د مؤخر الذکر څلورو کتابونو باره کښې تبصره:** خو د باقی کتابونوپه باره کښې د حضرت شاه صاحب د قول مطلب غالبًا دا دې چه دې کتابونوکښې هغه روایات ضعیف دی کوم چه ددې کتابونوڅخه علاوه په نوروکتابونوکښې مروی نه وی ګنی دې کښې بعضې احادیث داسې هم شته چه صحاح سته کښې مروی دی داسې احادیثوته علی الاطلاق ضعیف نشی وئیلې کیدې

**پنځمه طبقه:**

داپه هغه کتابونومشتمل ده چه د موضوعاتوپه تذکره کښې لیکلی شوی دی لکه

① موضوعات کبری لابن الجوزی

② الموضوعات للصنعانی

③ الالی الموضوعة للسیوطی

ددې په باره کښې ظاهره داده چه دا د موضوعاتومجموعې دی

**دعلم حدیث کثیرالتالیف مصنفین:**

دحدیثودکتابونود طبقاتوسره د هغه عالمانو اود محدثینوحال معلومول هم ضروری دی چه کوم خپلوتصانیفوکښې احادیث په کثرت سره تعلیقا نقل کوی مثلا امام غزالی. علامه ابن الجوزی، حافظ منذری حافظ ابن حجر. حافظ ذهبی علامه سیوطی، علامه ابن تیمیه، علامه ابن قیم. علامه قرطبی. علامه نووی

**امام غزالی:** ترکومې چه دامام غزالی تعلق دې هغه دکلام. تصوف، معقولات و او د اصول فقه امام دې خود علم حدیث سره دده اشتغال ډیرکم پاتې شوې دې دوی پخپله پخپل یوکتاب کښې ددې اعتراف داسې کړې دې "بضاعتی فی الحدیث مزجاة" یعنی په احادیثو کښې زما سرمایه ډیره کمه ده چنانچه امام غزالی رحمه الله په کثرت سره په خپلوکتابونوکښې ضعیف. منکر او موضوع احادیث ذکر کوی

**د احیاء علوم احادیث:** خاص کر ددوئ مشهورکتاب احیاء العلوم الدین" کښې ډیرداسې احادیث ذکر دی چه دمحدیثنوپه معیارډیرکمزورې دی د دې وجه ګنړو محدثینود احیاء العلوم د احادیثو تخریج هم کړې دې چه دې کښې د حافظ زین الدین عراقی تخریج ډیر مشهوردې دې کښې ئې د داسې احادیثوپه سندکلام کړې دې دغه شان علامه مرتضی زبیدی په. "اتحاف السادة المتقین بشرح احیاء علوم الدین" کښې هم ددې احادیثوتخریج کړې دې اوپه دې احادیثوئې محدثانه کلام کړې دې

**علامه ابن جوزی:** بل کثیرالتصنیف محدث علامه ابن الجوزی دې مخکښې بیان شوی دی چه دې د حدیث په تنقید کښې ډیرمتشدد دې چنانچه په علم حدیث کښې ددوئ کتابونه د ضرورت څخه زیات متشدد دی او دوئ ډیرصحیح احادیث هم موضوع

کرخولې دی خو دا عجیبه خبره ده چه د خپل تشدد باوجود دوی چه د وعظ اونصیحت دپاره کوم کتابونه لیکلي دی مثلاً تلبیس ابلیس ذم الهوی او التبصره وغیره کښې د نقد حدیث دغه معیار باقی پاتې نه دې، بلکه دې کښې ډیر ضعیف منکر او موضوع احادیث بغیر د څه تنبیه څخه یې هم ذکرکړی دی، د دې وجې ددوئ په کتابونو اعتماد صحیح نه دې

**حافظ منذری:** دریم کثیرالتصنیف عالم حافظ منذری دې دا جلیل القدر محدث دې اود حدیث محقق نقال (نقل کونکې) دې دې یو ضعیف حدیث بغیردتنبیه څخه نه نقل کوی د دې وجې د دوئ یو حدیث بغیرد څه تنقیدنه نقل کول ددې خبرې دلیل دې چه دا حدیث د دوی په نیز قابل استدلال دې

**په ترغیب کښې یوه خاصه اصطلاح:** خودوئ په خپل مشهورکتاب "الترغیب والترهیب" کښې یوخاص اصطلاح مقررکړې ده چه دهغې څخه د ناواقفیت په سبب اکثر خلق په دهوکه کښې پریوځی هغه اصطلاح دا ده چه کوم روایت ددوئ په نیز صحیح یا حسن وی دا دې په لفظ د ،،عن،، سره روایت کوی مثلاً عن ابی هریرة خو کوم حدیث چې د دوی په نزد ضعیف وی هغه په رُوِیَ عن " سره روایت کوی مثلاً" ((روی عن ابن عمر کذا)) اوپه سند باندې څه کلام نه کوی چه کوم خلق ددې اصطلاح نه ناواقفه دی هغوئ دا دویم قسم احادیث هم په دې اعتمادقابل استدلال ګنړی چه داحافظ منذری بغیر دڅه کلام نه ذکرکړیدې حال دا دې چه هغه صحیح نه وی

**ابن حجر عسقلانی:** څلورم کثیرالتصنیف عالم ابن حجرعسقلانی رحمه الله دې دا د حدیثو امام او مشهور حافظ اونقاددې عالمان لیکی چه ددوی کتاب فتح الباری او التلخیص الخبیرکښې چه کوم حدیث بغیرد څه کلام څخه راشی نو داکم نه کم حسن ضرورروی

**شمس الدین ذهبی:** پنځم کثیرالتصنیف عالم حافظ شمس الدین ذهبی دی دا بې شکه د علم حدیث بهترین نقاددې د دې وجې ددوی په کتابونوکښې هم ډیوضعیف حدیث بغیر د څه کلام نه راتللواحتمال ډیرکم دې البته د دوی،،کتاب الکبائر،،کښې ضعیف احادیث هم راغلی دی

**جلال الدین سیوطی:** شپږم عالم علامه جلال الدین سیوطی دې، دې اګرچه په هرعلم اوفن کښې مجتهدانه مقام لری خودتصحیح احادیث په معامله کښې ډیرمتساهل دې د دې وجې په علم حدیث کښې د دوی لقب حاطب لیل مشهور دې دی چه کله یوموضوع احادیث نقل کوی نو هرقسم رطب او یابس احادیث راوړی اوپه هغې څه تنقیدنه کوی د دوی کتاب،،الخصائص الکبری،، او تفسیر،،الدرالمنثور،، او،،الاتقان فی علوم القرآن،، د هرقسم رطب او یابس احادیثومجموعی دی اګر چه دوی پخپله په ابتداء

دکتاب کښې دا لیکلی دی چه زه به دې کتاب کښې د کذاب یا د وضاع حدیث نه نقل کوم خود دې باوجود دوی په ،،الجامع الصغیر،،کښې ډیر موضوع احادیث راوړیدي دی. تردې چه دې کښې ډیراحادیث داسې هم شته چه علامه سیوطی په ،، اللالی المصنوعة،،کښې دا موضوع ګرځولی دی. اوس یا خو د دی وجه دا ده چه دوئ څخه یا خو سهوه شوې ده او یا روسته د دوی رائې بدل شوې ده. اودا خبره وړاندې ذکرشویده چه جامع صغیرکښې د هرحدیث سره چه صح،خ،یا د ض،کوم رموز لګیدلی شوی دی دا قابل اعتمادنه دی. محاکمه علامه عبدالرؤف مناوی په ،،فیض القدیرشرح الجامع الصغیر،،کښې لیکلې دی چه دې کښې ډیر رموز د دوی څخه روسته خلقو لیکلی دی او چه کوم پخپله علامه سیوطی لیکلی دی په هغې کښې ډیر تحریف شوې دې

**علامه ابن تیمیه:** اووم کثیرالتصنیف عالم علامه ابن تیمیه دې دې د احادیثوپه معامله کښې د ضرورت څخه زیات متشدد دې اوصحیح اوحسن احادیث هم کله ناکله ضعیف ګرځوی. حافظ ابن حجر،،لسان المیزان،، کښې د یوسف بن حسین مطهرالحلی په ترجمه کښې لیکی چه علامه ابن تمیه په منهاج السنن کښې ډیر احادیث صحیح هم ناقابل استدلال ګرځولی دی

**علامه ابن قیم:** اتم عالم علامه ابن القیم دې دا د علامه ابن تیمیه شاګرد او په علم حدیث کښې د اوچت مقام حامل دې زیات د احادیثو نقل کولوکښې د صحت اهتمام کوی خوکله د ضعیف احادیثونه صرف توثیق کوی بلکه دا د متواتر په شان قطعی ګرځوی اوکله قابلِ استدلال احادیث هم ضعیف ګرځوی

**علامه قرطبی:** نهم عالم علامه قرطبی دی ددوې په باره کښې عبدالفتاح ابوغده الحلبی د،،الاجوبة الفاضلة،،په حاشیه کښې لیکی چه ددوی طریقه دا ده چه دې کوم حدیث قابل اعتمادګنړی. هغه د حوالې سره ذکرکوی اود چه کوم په باره کښې دوی ته شك وی نوهغه بغیرد حوالې څخه ذکرکوی د دې وجې د ده په دویم قسم احادیثو بغیر د تحقیق څخه اعتمادکول نه دی نه پکار

**علامه نووی:** لسم عالم علامه نووی دی. دې د احادیثوپه معامله کښې ډیرمحتاط دې عام طور ضعیف اوموضوع حدیث بغیردتنبیه څخه نه ذکرکوی چنانچه د حدیث په معامله کښې ددوی په کتابونو اعتمادکیدې شی البته،،کتاب الاذکار،،دې څخه مستثنی دې ځکه چه دې کښې ضعیف احادیث هم شته.

**نوټ:** آخر کښې دا هم یاد ساتل پکار دی چه د وعظ،تصوف،تاریخ، سیر، علامات قیامت، بدء الخلق اوتفسیر وغیره روایاتو کښې عام طور ضعیف او موضوع احادیث ډیرزیات وی نوپه دې ابوابو کښې پورا احتیاط او تحقیق کول پکار دی.

## د راويانو طبقات:

**د راويانو دوه قسمه تقسيم:** دحديث د راويانو طبقات په دوهٔ مختلفو حيثيتونو سره بيان کړې شوې دي

① د راروېانو د قوت حفظ اود شيخ د صحبت په اعتبارسره

② د دوئ د زمانې او دتاريخ په اعتبارسره

**اول تقسيم:** په ړومبي حيثيت سره د راويانوپنځه طبقې دي زمونږ د علم مطابق دا پنځه طبقات دټولو ځخه ړومبي علامه ابوبکرحازمي رحمه الله په خپل کتاب..شروط الائمة الخمسة..کښې ذکرکړيدي هغه پنځه طبقات دا دي

① **قوي الضبط، کثيرالملازمة** يعنې چه حافظه ئې هم قوي وی ا و د خپل استاذ او شيخ سره ئې صحبت هم زيات تير کړې وی

② **قوي الضبط قليل الملازمة** چه حافظه ئې قوي وی خو د استاذ او د شيخ سره ئې صحبت زيات نه وی تير کړې

③ **قليل الضبط کثيرالملازمة:** چه حافظه ئې کمزورې وی خود استاذ او د شيخ سره ئې صحبت زيات تير کړې وی

④ **قليل الضبط قليل الملازمة:** چه حافظه ئې هم کمزورې وی اود شيخ سره ئې صحبت هم کم کړې وی

⑤ **الضعفاء والمجاهيل.** په دې طبقه کښې ضعيف او مجهول راويان وی

**د صحاح ستة استنادي مراتب:**

د دې پنځو طبقاتو په اعتبارسره دصحاح ستـه استنادي درجه متعين کړې شوې ده

① د امام بخاري رحمه الله معمول دا دی چه مستقلا صرف د ړومبئ طبقې احاديث نقل کوی البته کله کله د استشهاد په طور د دويمې طبقې حديث هم نقل کوی د دې وجې د صحت په اعتبارسره د دوی جامع په ټولو مقدم دې

② امام مسلم د ړومبو دواړو طبقوځخه خو بلاتکلفه روايات نقل کوی البته دوی کله کله شاذ اونادر په طور د استشهاد د دريمې طبقې ځخه هم روايات نقل کوی

③ امام نسائي د اولنو دريو طبقوځخه مستقلا روايات نقل کوی په دې وجه د دوی کتاب په دريم نمبرکښې دې

④ امام ابوداود دړومبودريوطبقوځخه مستقلا اود استشهاد په طور د څلورمې طبقې روايات هم ذکرکوی د دې وجې د دوی سنن په څلورم نمبر دې

⑤ امام ترمذي څلورمه طبقه مستقلا اوپه بعضې مقاماتوکښې د پنځمې طبقې ځخه هم

روايات نقل کوی د دي وجي د دوی د کتاب پنځم نمبر دي

⑥ امام ابن ماجه دېنځو واړو طبقاتو روايات بلاتکلفه اومستقلا نقل کوی د دي وجي دي به شپږم نمبر دي لهذا د قوت سند په اعتبار سره د صحاح سته مراتب په لاندينی ترتيب سره دی

① صحيح بخاری ② صحيح مسلم ③ سنن نسائی ④ سنن ابي داؤد ⑤ جامع ترمذی ⑥ سنن ابن ماجه

**په ابن ماجه تبصره:** په ابن ماجه کښي د ضعيف اود منکررواياتويوه لويه برخه ده بلکه دي کښي بعضي موضوع روايات هم شته چي د هغي تعدادبعضو اوولس بعضونورلس بعضويوويشت اوبعضو پنځويشت ښودلي دی ددي وجي د محدثينويوه طبقه داپه صحاح کښي نه شماری بلکه ددي په ځاي موطاء امام مالك اوبعضي مسند دارمی شماری خو د ابن ماجه دحسن ترتيب په بناء دجمهورو رجحان دي ته دي چه دا په صحاح کښي شامل دي د راويانودا طبقات د اسناد د معيار په اعتبارسره وو

**په تاريخي لحاظ سره د راويانو تقسيم:**

په تاريخي اعتبارسره د راويانو دولس طبقات مقرر شوي دی اوچه کله د رجالو په کتابونوکښي دراوی طبقه بيانيږی نو دي څخه مراد دا تاريخي طبقات وی دا تاريخي طبقات دېولوڅخه ړومبي حافظ ابن حجريه " تقريب التهذيب " کښي بيان کړی دی روستنوحضراتوددوی اتباع کړي ده هغه طبقات دا دی

① **طبقة الصحابة:** په دي کښي د مرتبو د فرق څخه بغير ټول صحابه کرام داخل دی

② **طبقة التابعين:** په دي کښي جليل القدر تابعين شامل دی لکه حضرت سعيدبن المسيب وغيره

③ **الطبقة الوسطى من التابعين:** په دي کښي د تابعينو درميانه راويان شامل دی لکه حسن بصری رحمه الله اومحمدبن سيرين رحمه الله وغيره

④ **د درمياله څخه روسته طبقه:** دا د راويانو هغه طبقه ده چه د هغوی روايات د صحابه کرامو څخه کم اودکبارتابعينو څخه زيات وی لکه امام زهری رحمه الله قتاده وغيره

⑤ **الطبقة الصغرى من التابعين:** دا د تابعينو هغه طبقه ده چه دوی ديويا ددوو صحابو زيارت کړي وی خو دوی څخه ئي روايت نه وی نقل کړي لکه سليمان الاعمش

⑥ **الطبقة الأخيرة من التابعين:** دا هغه تابعين دی چه د پنځمي طبقي معاصرين دی خو دوئ د صحابی زيارت نه وي کړي لکه ابن جريج په حقيقت کښي دا تابعی نه دی خودتابعينود معاصرکيدو د وجي دوئ دتابعينوپه طبقات کښي شمارلي کيږی

⑦ **طبقة كبار أتباع التابعين**: په تبع تابعينو كښې د اكابرينو طبقه لكه امام مالك او سفيان ثوری

⑧ **الطبقه الوسطى من أتباع التابعين**: په تبع تابعينو كښې درميانه طبقه لكه اسماعيل بن عليه او سفيان بن عيينه

⑨ **الطبقه الصغرى من اتباع التابعين** : په تبع تابعينو كښې وړه طبقه لكه امام شافعی امام عبد الرزاق وغيره

⑩ **اخذ الاكابر عن تبع الاتباع** د تبع تابعينو څخه د اكابرينو روايت كونكو طبقه لكه امام احمد بن حنبل رحمه الله وغيره

⑪ **الطبقة الوسطى منهم** :دتبع تابعينو څخه روايت كونكو كښې درميانه طبقه لكه امام بخاری رحمه الله امام ذهلی وغيره

⑫ **الطبقة الصغرى منهم** :د تبع تابعينو څخه روايت كونكو كښې صغرى طبقه لكه امام ترمذی رحمه الله او ددوئ معاصرين

دې دولسو طبقوكښې د ړومبي دوه طبقوزيات راويان د ړومبئ صدئ هجرئ دی او د دريمې طبقې څخه تر داتمې طبقې پورې زيات رايان د دويمې صدئ هجرئ دی او د نهمې طبقې څخه تر دولسمې پورې راويان د دريمې صدئ هجری دی

**د طبقاتو د تقرر فائده**: ددې طبقاتو په مقرركولو سره داسماء الرجال مصنفينوته اسانتيا شوه څكه چه د كتب الرجال د مصنفينو دستور دې چه دوئ د هر راوی سره د ده د استاذانو او شاګردانو يو اوږد فهرست نقل كوی د استاذانو په ذكركښې د دوئ عبارت داسې وی ((روى عن فلان وعن فلان)) او دشاګردانو تذكره كښې ددوئ عبارت داسې وی ((روى عنه فلان وفلان))خو چه كله څخه مختصر كتب رجال اوليكلې شو نو په هغې كښې د استاذانو اود شاګردانو د اوږد فهرست په ځائې دراوی صرف په تاريخی طبقه بيانولو باندې اكتفاء كولې شی، دا طريقه دټولوڅخه ړومبئ حافظ ابن حجر په ،،تقريب التهذيب، كښې شروع كړې ده روستنوحضراتو ددوئ تابعداری كړې ده د دې وجې اوس صرف د راوی سره دومره ليكل كافی دی ((ثقة من الثالثة)) وغيره يعنی دې دمتوسط تابعينوڅخه دې د استاذانو او شاګردانو د طويل فهرست ليكلو ضرورت پاتې نشو

**د حديث د تحمل (حاصلولو) كولو قسمونه:**

دشيخ څخه احاديث حاصلولوته د محدثينو په اصطلاح كښې ،تحمل، وائی. او د دې پنځه قسمونه دی ددې قسمونو مختصر تعارف لاندې بيانولی شی اګرچه عام طور د دې

اته قسمونه دی يعنی درې په کښې مزيد دا دی(۸ اقسام هي اجازت، وصيت، اعلام)

① **السماع:** ددې مطلب دا چه استاذ حديث وائی او شاګرد ئې اوری دې صورت کښې شاګرد ته د،،حدثنی، اخبرنی،، سمعت فلانايقول،، صيغو وئيلواجازت دې بيا دې کښې اختلاف دې چه دې کښې کومه صيغه افضل ده بعضې حضرات د" سمعت" صيغې ته ترجيح ورکړې ده اوبعضې "حدثنی" ته.

② **القراة على الشيخ:** يعنی چه شاګرد حديث وائی او استاذ ئې اوری دې صورت کښې هم د شاګرد دپاره د استاذ څخه روايت جائزدې اودې کښې د "اخبرنی" انبانی" اوقرآت عليه" صيغې استعماليږی. که جماعت ديوڅخه زياته وی نو " اخبرنا " او انبانا" وئيل پکار دی. بعضې حضرات دې دواړوکښې هم فرق بيانوی چه جماعت کښې کوم شاګرد لولی هغه به اخبرناوائی اوچه کوم شاګرد اوری هغه به "انبانا" وائی. د،،انبانا،، په صورت کښې د" قرآت عليه" وانا اسمع" الفاظو اضافه مستحسن ده بيا دې کښې اختلاف دې چه " سماع او" قرآءت علی الشيخ،، کښې کومه طريقه افضل ده. د امام مالک رحمه الله اود امام شافعی رحمه الله څخه منقول دی چه دوی سماع ته افضل وائی. اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز" قرآءت علی الشيخ،، افضل دې. د دې وجه دا ده چه دې صورت کښې احتياط اوثبت زيات دې څکه که شاګرد څه غلطی کوی نواستاذ د ده اصلاح کولې شی. حافظ سخاوی رحمه الله قول فيصل بيان کړې دې چه اصل څيز د خطاء د امکان څخه بچ کيدل دی.اودا څيز چه په کومې طريقه کښې زيات حاصليږی هغه افضله ده او د حالاتوپه اعتبارسره کله دا خبره په سماع سره حاصليږی اوکله په قراءت سره.

③ **المراسلة يا المكاتبة:** يعنې په خط کښې ليکل اوچاته روايت ليږل دې کښې اختلاف دې چه داسې صورت کښې شاګرد لره روايت کول کله جائزکيږی د بعضې حضراتو په نيز چه ترڅودشيخ څخه دروايت ښکاره اجازت نه وی. شاګرد دپاره روايت کول جائز نه دی. خومعتمده خبره دا ده چه که شاګرد د شيخ خط پيژنی نو روايت جائز دې که د اجازت تصريح وی اوکه نه البته دې صورت کښې د"اخبرنی" يا د" حدثنې،، صيغه نشی استعمالولې بلکه،،کاتبنی ياکتب الی،، الفاظ به استعمالوی.

④ **المناولة :** يعنی شيخ د خپلو مروياتويوه مجموعه شاګرد ته حواله کړی بعضې حضرات دې څخه د روايت کولودپاره هم د شيخ ښکاره اجازت ضروری ګرځوی. خو دلته هم قول فيصل دادې چه د صريح اجازت ضرورت نشته که د شاګرد اعتماد وی چه استاذ دا مجموعه د روايت کولودپاره راکړېده نودې روايت کولې شی البته دلته هم اخبرنی" يا حدثنی وئيل جائز نه دی بلکه " ناولنی " وئيل پکار دی.

⑤ **الوجادة**: يعني ديوشيخ د مروياتومجموعه د شيخ څخه علاوه په بله څه طريقه ملاويدل په دې باره كښې د اكثرو حضرات محدثينو مسلك دا دې چه دې څخه روايت جائزنه دې ځکه چه ممكن ده چه د شيخ دا مجموعه د موضوعاتو يا د معلولاتو د يادولودپاره تياره كړې وى بعضې حضرات دې څخه هم روايت جائز گنړى اوفرمائى چه دې صورت كښې د شيخ په خطاكه اعتماد وى نو په ((وجدت خط فلان)) سره روايت كښې څه حرج نشته

**د احاديثو دتصحيح اوتضعيف اُصول اوقواعد:**

اگرچه د احاديثو تصحيح اوتضعيف يو مستقل فن دې كوم چې علم اصول حديث او جرح وتعديل كښې مدون شوې دې اودلته ددې پوره تفصيل بيانول ممكن نه دى خودې سلسله كښې څوقواعدبيانيږى كوم چه عام طور د خلقو د نظر څخه پناه وى او د حديث په بحث كښې د هغې ضرورت پيښيږى او د هغې څخه د جهالت په وجه خلق په احنافو دا اعتراض كوى چه د احنافو زيات مستدلات ضعيف دى

**اولنۍ قاعده: صحيح احاديث صرف په صحيحينو كښې منحصر نه دى** : بعضې خلق دا خيال كوى چه صحيح احاديث صرف په بخارى اومسلم كښې منحصردى دغه شان د بعضې خلقو خيال دا دې چه كوم حديث صحيح نه وى هغه به خامخا كمزوري وى او په هيڅ حال كښې هم د صحيحينودحديث مقابله نشي كولې، حال دا دې چه دا خيال بالكل غلط دې ځکه چه د حديث د صحت اعتبارپه بخارى ياپه مسلم كښې په كيدوباندې نه دې بلكه د صحت اعتبار د هغې په خپل سند دې پخپله امام بخارى فرمائى چه ماپه خپل كتاب كښې د صحيح احاديثو استيعاب نه دې كړې د دې وجې دا ممكن ده چه يو حديث په بخارى كښې نه وى خوهغه دې د سندد صحت په اعتبارسره دصحيحينود حديث څخه هم اوچت وى مثلاً مولانا عبدالرشيدنعمانى رحمه الله «ماتمس اليه الحاجة» كښې د ابن ماجه بعضې داسې روايات نقل كړې دى چه د هغې په باره كښې د محدثينو فيصله دا ده چه د هغې سند دبخارى د سند څخه هم افضل دې او صحيحينوته چې ((اصح الكتب بعد كتاب الله)) ونيلې كيږى نودا په مجموعى اعتبارسره دې د هريوحديث په اعتبارسره نه ونيلې كيږى د دې مسئلې دزيات تفصيل دپاره دعلامه ظفراحمدعثمانى صاحب رحمه الله «انهاءالسكن الى من يطالع اعلاءالسنن)) دكتوقابل دې

**دويمه قاعده: تصحيح اوتضعيف د يوې زمانې پورې مخصوص نه دې**: د احاديثو تصحيح او تضعيف ډيرنازك كاردې د دې دپاره د ښه وسيع اوعميق علم ضرورت دې. د دې وجې ددې اهل هغه خلق دى كوم چې په دې علم كښې د اجتهادپه درجه فائز وى. ددې وجې

حافظ ابن صلاح په خپله مقدمه کښې دا خیال ظاهرکړي دي چې دپنځمې صدۍ هجرۍ څخه پس چاته دا حق نشته چه هغه دې دیوحدیث دنوي سره څخه تضعیف یاتصحیح اوکړي خو جمهورو د دې خیال مخالفت کړي دي اومحققه خبره داده چه تصحیح او تضعیف یوې زمانې پورې مخصوص نه دي بلکه دعلم اودفهم مطلوبه شرائط چه چا کښې هم وی هغه دتصحیح اودتضعیف فیصله کولې شي لکه دپنځمې صدۍ هجرۍ څخه پس ډیروعالمانو دتصحیح اودتضعیف کار کړي دي او دا امت معتبر گنړلې دي مثلاً حافظ ذهبی، حافظ ابن حجر رحمه الله، علامه عینی رحمه الله، حافظ سخاوی رحمه الله، حافظ زیلعی رحمه الله اوحافظ عراقی پشان محدثین چه دپنځمې صدۍ هجرۍ څخه روستنی دی او ددوئ تصحیح او تضعیف معتبر دې آخری دور کښې حضرت علامه انور شاه کشمیری رحمه الله هم په دې منصب فائز وو

**دریمه قاعده: په تصحیح او تضعیف کښې اختلاف:** بعضې وخت دیو حدیث یا د یو راوی په باره کښې د عالمانو مختلف اقوال ملاویږی بعضې حضرات دده تضعیف کوی اوبعضې توثیق سوال دا دې چه په داسې موقع باندې به د چا قول اختیارولې شی ؟ د دې سوال جواب حضرت مولاناعبدالحی په "الاجوبة الفاضلة" کښې په تفصیل سره ذکر کړې دې چه د هغې خلاصه دا ده چه دې اقوالوکښې دترجیح درې طریقې دی [۱]

**(ا) دمتساهل تصحیح به غیرمعتبر وی:** دا ده چه که په دوؤ عالمانوکښې یوعالم دتصحیح په معامله کښې متساهل وی اوبل محتاط نود دویم په قول به عمل کیږی مثلاًدیوحدیث حاکم تصحیح کوی اوحافظ ذهبی ورته ضعیف وائی نود حافظ ذهبی قول به معتبر وی ځکه چه حاکم متساهل دې دغه شان یوراوی ته ابن حبان ثقه وائی اونور حضرات ورته غیرثقه وائی نود ابن حبان قول به معتبرنه وی ځکه چه دې مجاهیلُ هم ثقۇ کښې شماری

**(ب) د متشدد تضعیف به غیر معتبر وی:** دویمه طریقه داده چه که دوه محدثین وی یو متشدد او بل معتدل نود دویم قول به معتبروی مثلاً ابن الجوزی ډیرمتشدد دې او حافظ ابن حجر یا حافظ ذهبی معتدل دې د دې وجه د ابن الجوزی په مقابله کښې به ددې دوؤ حضراتو قول معتبر وی

**څوک متشدد او څوک معتدل دی؟:** مولاناعبدالحی لکهنوی رحمه الله دحافظ ابن حجر څخه نقل کوی چه د جرح اوتعدیل امامانو کښې د زمانې په اعتبارڅلورطبقات دی دې طبقاتو کښې ابن حجربیان فرمائی چه په دوی کښې کوم معتدل اوکوم متشدد دي؟

**پړومبۍ طبقه:** د سفیان ثوری اود شعبه رحمه الله ده دوئ دواړوکښې شعبه اشد(سخت) دي

---

[۱] الاجوبة الفاضلة " ۱۶۱ تر ۱۸۰..

**دويمه طبقه:** ديحيى بن سعيد القطان اودعبدالرحمن بن مهدي ده دې دواړوکښې يحيى اشد (سخت) دې.

**دريمه طبقه:** ديحيى بن معين اودعلي بن المديني ده دې دواړوکښې يحيى بن معين اشددې.

**څلورمه طبقه:** د ابن ابي حاتم او د امام بخاري ده دوئ کښې ابن ابي حاتم اشد (سخت) دې نوچه کله ددې حضراتو اختلاف راشي نو د اشد قول به پريخودې شي او د معتدل قول به اختيارولې شي.

**نور متشددين:** مولانالکهنوي رحمه الله فرمائي چه دې حضراتو څخه روستو عالمانو کښې علامه ابن الجوزي رحمه الله، عمر بن بدرالموصلي علامه جوزقاني حافظ صنعاني او صاحب سفرالسعاة اوابوالفتح ازدي اوعلامه ابن تيميه هم متشددين دي. د دې وجې د حافظ ابن حجر رحمه الله، حافظ ذهبي رحمه الله، حافظ عراقي رحمه الله اوحافظ زيلعي رحمه الله پشان معتدلو عالمانو په مقابله کښې به د دوئ قول پريښودې شي.

**③ د قوي دلائلو قول اختيارول:** دريمه طريقه دا ده چه دفريقينو په د لائلو غور اوکړې شي اوچه د چا دلائل قوي معلوم شي د هغه قول اختيار شي خو دا کار هغه کس کولې شي چه د چا د علم حديث په متعلقاتومکمل عبوروي دمعتدل عالمانود اختلاف په صورت کښې دا دريمه طريقه اختيارولې شي يعني که يوسړى کښې د دواړو فريقينو د دلائلو د موازنه کولو صلاحيت وي نوهغه دې موازنه اوکړي اويوقول ته دې ترجيح ورکړي نو چې د چا په قول ئې زيات اعتماد وي هغه دې اختيارکړي.

**څلورمه قاعده: د يو مجتهد قول د بل مجتهد په مقابله کښې حجت نه دې:** د احاديثو تصحيح يا تضعيف يو اجتهادي کار دې لکه چه محقق ابن همام ددې تصريح کړې ده دې کښې د مجتهدينو آراء مختلف کيدې شي او داسې صورت کښې په يومجتهدهم ملامتيا نشته دغه شان ديومجتهد د يوحديث څخه استدلال کول ددې خبرې دليل دې چه دا حديث دده په نيز قابل استدلال دې د دې وجې دده په مقابله کښې د بل مجتهد دا قول وړاندې کول صحيح نه دې چه دا حديث ناقابل استدلال دې ځکه چه ديومجتهدقول دبل مجتهد خلاف حجت نه دې.

**پنځمه قاعده: ضعف په روستني زمانه کښې راغلې وي:** بعضې وخت داسې کيږي چه يومتقدم مثلاً امام ابوحنيفه رحمه الله ته يوحديث بالکل په صحيح سندسره رسيدلې وي خو ده څخه روستو د دې حديث په سند کښې ضعيف راوي راغلې وي او روستو خلقو دې ضعيف ګرځوي ظاهره ده چه د روستنوخلقو دا تضعيف په امام ابوحنيفه رحمه الله حجت نشي جوړيدې د احنافو څخه علاوه نورو عالمانوهم ددې قاعدې تصريح کړې ده، د دې وجې

دا ضروري نه ده چه يوحديث د امام بخاري رحمه الله په زمانه کښې ضعيف شو هغه دې په پخوانۍ زمانه کښې هم ضعيف وی

**شپږمه قاعده :تصحيح او تضعيف يقيني نه دي:** حافظ ابن صلاح په مقدمه کښې ليکلي دی چه کله مونږ يوحديث صحيح اوګرځوو. نو د دې مطلب به دانه وی چه دا په نفس الامرکښې هم يقيناً صحيح دې بلکه مطلب دا دې چه دې کښې د صحيح هغه فنی شرائط موجود دی کوم چه محدثينو د صحيح دپاره مقررکړی دی د دې وجې ظن غالب به دا وی چه دا به په نفس الامرکښې هم صحيح وی ځکه چه په نفس الامرکښې د صحت يقين بغيردتواتر څخه نه وی د دې وجې صحيح کښې دااحتمال شته چه نفس الامر کښې په دې کښې څه غلطی پاتې وی. ځکه چه خطا اونسيان دثقه څخه هم ممکن ده او د دې امکان شته چه يو راوی ته څه وهم شوې وی البته په دې احتمال عمل ترهغې جائزنه دې ترکومې چه ددې احتمال ثبوت په نورو قرائنو او قوی دلائلو سره اونشی د دې وجې که دلائل قويه په دې خبره دلالت کوی چه دې حديث صحيح کښې يو راوی ته وهم شوې دې نودا حديث به ترک کولې شی مثلاً دا چه زيات صحيح احاديث د دې معارض وی يا دا حديث د قرآن کريم د يو واضح آيت خلاف وی دغه شان چه مونږ اووايو چه فلانې حديث ضعيف دې نود دې مطلب به دانه وی چه نفس الامرکښې ضعيف دې بلکه مطلب دا دې چه دې کښې د صحيح يا د حسن فنی شرائط نشته دهغې په وجه دې دومره قابل اعتماد نه دې چه په دې دڅه شرعی مسئلې بنيادکيښودې شی ګنې دا احتمال شته چه يوضعيف راوی بالکل رښتيا خبره نقل کړې وی ځکه چه ضعيف راوی هميشه غلطی نه کوی خوپه دې احتمال عمل ترهغه وخته پورې جائز نه دې ترکومې چه په نورو قوی دلائل سره داثابته نشی اوس ديرکرتې داسې وی چه يو مجتهدسره داسې قوی دلائل وی چه دهغې په بناء دې ضعيف لره راجح اوګرځوی او يو صحيح حديث ترک کړی نودې صورت کښې ده ته د صحيح حديث تارک يا په ضعيف حديث عامل نشې ګڼيلې دا خبره به يومثال سره واضح شی

**بغيرد څه عذر څخه په حضر کښې جمع بين الصلاتين:** امام ترمذی په خپل کتاب العلل کښې ليکلی دی چه خما کتاب کښې دوه حديثونه داسې دی چه په دې د هيڅ يوفقيه عمل نشته يود حضرت ابن عباس رضي الله عنهما روايت «قال جمع رسول الله صلى الله عليه وسلم بين الظهر والعصر وبين المغرب والعشاء بالمدينة من غير خوف ولا مطر الخ» (۱) حالانکه د سند په اعتبارسره دا حديث قابل استدلال دې

---

(۱) ترمذی ۱/۸۱، باب ماجاء في الجمع بين الصلوتين

**په څلورم ځل د شرابو په څکلو باندې قتلول:** دويم حديث د امير معاويه ﷺ دي «قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من شرب الخمر فاجلدوه فان عاد في الرابعة فاقتلوه»[1] حال دا دې چه دا حديث هم قابل استدلال دې او د دې دواړو حديثونو ظاهر په اجماع دامت ترك شوي دې ځكه چه نور دلائل قويه د دې معارض شته خو د دې حديثونو دترك په بناء چا نه هم تارك السنة نه دى ونيلې شوې

**مشرك زوجين په سابقه نكاح برقرار ساتل:** دغه شان امام ترمذى د ابن عباس روايت نقل كړې دي «رد النبي صلى الله عليه وسلم ابنته زينب على أبي العاص بن الربيع بعد ست سنين بالنكاح الاول ولم يحدث نكاحاً»[2] د دې صريح تقاضا دا ده چه يو مشركه ښځه اسلام راوړى او د هغې زوړ خاوند شپږ كاله پس هم مسلمان شى نو دتجديد دنكاح ضرورت نشته حال دا دې چه په دې يو فقيه هم عمل نه دې كړې چنانچه امام ترمذى د دې حديث دنقل نه پس فرمائى «هذا الحديث ليس باسناده بأس ولكن لا نعرف وجه الحديث ولعله قدجاء هذا من قبل داؤد بن الحصين من قبل حفظه» دلته امام ترمذى يو صحيح حديث د راوى دوهم احتمال لره دنورو دلائلو په وجه راجح گرځولې دې

**په ضعيف حديث د امامانو عمل:** د دې په عكس كله كله په ضعيف حديث دنورو دلائلو د وجې عمل نه كيږى لكه هم د دې باب كښې امام ترمذى دعمرو بن شعيب روايت نقل كړې دي «عن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده ان رسول الله صلى الله عليه وسلم رد ابنته زينب على أبي العاص بن الربيع بمهر جديد ونكاح جديد» د دې حديث په باره كښې امام ترمذى ليكى «هذا حديث في اسناده مقال والعمل على هذا الحديث عند أهل العلم الخ، ثم قال وهو قول مالك بن أنس والاوزاعي والشافعي وأحمد واسحاق» آيا د دې ټولو امامانو په باره كښې دا ونيلې شى چه دوى په ضعيف حديث باندې عمل كونكى دى ظاهره ده چه د دې حضراتو دا حديث ځكه مختار گرځولې دې چه د دې په نورو دلائلو سره تائيد كيږى نو كه امام ابو حنيفه رحمه الله په يو مقام په ضعيف حديث د نورو دلائلو په وجه عمل اوكړى نو صرف هغه ولې د ملامتيا نښه گرځولې شى؟[3]

دا بحث په تفصيل سره د مولانا ظفر احمد عثمانى صاحب په كتاب. .انهاء السنن. . كښې كتلې شى

---

[1] ) ترمذى ۲۰۹۱ ابواب الحدود باب ماجاء من شرب الخمر فاجلدوه فان عادفي الرابعة فاقتلوه

[2] ) ابواب النكاح باب ما جاء في الزوجين المشركين يسلم احدها

[3] ) باب ماجاء ان طلاق الامة تطليقتان_

**دوېمه قاعده: ضعيف په تعامل سره قابلِ استدلال ګرځي:** که یو ضعیف حدیث موید بالتعامل وی یعنی د صحابوو او د تابعینو عمل ددې مطابق ثابت وی نودې د ضعف باوجود قابل استدلال ګرځی ((کما صرح به الجصاص فی احکام القرآن وغیر واحد من المحدثین والاصولیین" امام جصاص په احکام القرآن کښې او ډیرو محدثینو او اصولینو د دې تصریح کړې دې

① مثلاً ((حدیث" طلاق الامة تطلیقتان وعدتها حیضتان )) یعنی د وینزې طلاق دوه دی او د دې عدت دوه حیضه دی دا حدیث ضعیف دې خو تعامل د وجې قابل استدلال شو.
چنانچه امام ترمذی ددې ترلاندې لیکی ((حدیث عائشة رضی الله عنه حدیث غریب لانعرفه مرفوعاً الامن حدیث مظاهر بن أسلم ومظاهر لایعرف له فی العلم غیر هذا الحدیث والعمل علی هذا عند أهل العلم من أصحاب النبی صلی الله علیه وسلم وغیرهم))[1] یعنی د عائشې ﷺ حدیث مونږ ته سوا د مظاهر بن اسلم د حدیث څخه مرفوع معلوم نه دې او د مظاهر په علم حدیث کښې د دې حدیث څخه سوا بل حدیث نشته اوپه دې حدیث باندې اهل علم د نبی کریم ﷺ د صحابؤ کښې او د نورو کسانو عمل شته

② دغه شان حدیث ((لاوصیة لوارث والقاتل لایرث)) [2] یعنی د وارث دپاره وصیت نشته یعنی قاتل به میراث نه اوړی د دې سندونه ضعیف دی خو تلقی بالقبول دوجې قابل استدلال ګنړلی شویدی

③ دغه شان حدیث ((هوالطهور ماؤه والحل میتته)) یعنی د سمندر اوبه پاکې دی او د دې مرداره حلاله ده ډیرو محدثینو ضعیف ګرځولې دې خو تلقی بالقبول د وجې قابل استدلال دې ددې اصل مطابق امام ابوحنیفه او نور احناف کله داسې ضعیف احادیث اختیاروی چه مؤید بالتعامل وی که ضعیف حدیث په متعدد طرقو سره مروی وی نودې صورت کښې دا حسن لغیره او قابل استدلال ګنړلې شی

**اتمه قاعده: د شریعت د اصولو موافقت وجه د ترجیح ده** که دوه قابل استدلال احادیثو کښې تعارض شی نودفقهاؤ او محدثینیوه ډله مطلقاً قوت د سند وجه دترجیح ګرځوی او ((اصح ما فی الباب)) اختیاروی خو امام ابوحنیفه مسلك په داسې مواقع کښې دا دې چه دې هغه حدیث لره ترجیح ورکوی چه دقرآن یا د شریعت دکلی اصولو موافق وی اګرچه هغه د قوتِ سند په بناء راجح نه وی والله سبحانه اعلم

[1] ترمذی جلد اول ابواب الطلاق باب ماجاء ان طلاق الامة تطلیقتان
[2] ترمذی ۲/۱۰۴ ابواب الفرائض باب ماجاء فی ابطال میراث القاتل عن ابی هریرة مرفوعاً ۱۲_

**د قواعدو د حفظ فائده:** که دا قواعد په ذهن کښې وي نو ډېرو اعتراضونو جوابونه به معلوم شي کوم چه عام طور په حنفیانو باندې کیږي

**اصحاب الحدیث او اصحاب الرائی څوک دي؟**

دمتقدمینو دزمانې څخه د دوؤ مختلف قسم عالمانو دپاره دا اصطلاحات معروف دي چه یو طبقې ته اصحاب الحدیث او بلې طبقې ته اصحاب الرائی وائی بعضې معاندین دې ته داسې شهرت ورکوي چه اصحاب الحدیث هغه دي چه دوي صرف د حدیث اتباع کوي او قیاس او رائی ددې مقابله کښې ترك کوي د عهد حاضر بعضو مستشرقینو هم دې خیال ته شهرت ورکړې دې حال دا دې چه دا خبره د حقیقت څخه بلکل خلاف ده او دا دواړه طبقې اُصولی طور څخه لوې اختلاف نه لري، نه اصحاب الحدیث دقیاس څخه منکردي، اونه اصحاب الرائی د حدیث د اهمیت څخه منکر دی بلکه دې کښې دواړه په دې خبره متفق دي چه نصوص په قیاس مقدم دی اوچه کوم ځائې نصوص نه وی هلته به د قیاس څخه کار اخستې شي.

**سوال:** په دې سوال کیدې شي چه په دې دواړوکښې څه اختلاف نشته نودا دوه اصطلاحات ولې جدا جدا دي.

**جواب:** ددې جواب دا دې چه ابتدائی زمانه کښې به هغه کسانو ته چې په حدیثو کښې به مشغول وو اصحاب الحدیث وئیلې کیدل او چې څوك به په علم فقه کښې مشغول وو هغوی ته به اصحاب الرائی وئیل ګویا دوه فرقې یا دوه مکتب فکرنه وؤ بلکه د علوم دین دوه جدا جدا ځانګې وې محدثینوته اصحاب الحدیث په دې بناء وئیلې کیدل چه دوی د حدیث حفظ او روایت خپل شغل جوړکړې وو او دوی ټول طاقت په دې کښې لګولو، د احادیثونه احکام مستنبط کولوته ددې خلقوتوجه کمه وه او فقهاوو ته اصحاب الرائی په دې بناء وئیلې کیدل چه دوی استنباط احکام خپل شغل جوړکړې وو اود دوئ زیاته توجه د احادیثوکتابونه تالیف کول اوحدیثو نشر واشاعت په ځائې د احادیثوڅخه مسائل مستنبط کولو ته اود هغې نشرواشاعت ته وه. بیا دې حضراتوبه د استنباط د احکامو دپاره د قیاس څخه زیات کار اخستلونوپه دې وجه دوئ ته اصحاب الرائی اووئیلې شول نو دا د علم دوه جُدا جُدا ځانګې دی چه حقیقت کښې په دواړو کښې څه تضاد نشته.

**یوه پروپیګنډه:** په عام طورددې خبرې تشهیر کولې شي چه اصحاب الرائی صرف احنافو او اهل کوفه ته وئیلې کیږي

**حقیقت څه دې؟:** خو واقعه داده چه دالقب دټولو فقهاوؤ د پاره استعمالیدلو لکه ابن قتیبه په خپل کتاب "المعارف" کښې دټولو فقهاوؤ تذکره د اصحاب الرائی په

عنوان سره کړې ده. اودې کښې دوئ امام مالک ﷫، امام شافعی ﷫، امام اوزاعی ﷫، اودسفيان ثوری ﷫ غوندې محدثين هم شامل کړی دی
دغه شان علامه محمدبن الحارث الخشنی خپل کتاب "قضاة القرطبة" کښې د مالکی عالمانو تذکره "داصحاب الرأى" په عنوان سره کړيده. د مالکيانو تذکره کوی دغه شان حافظ ابوالوليد الفرضی المالکی په خپل کتاب "تاريخ علماء أندلس" کښې د مالکيانو تذکره کوی اودوی ته اصحاب الرائی وائی.
علامه ابوالوليد باجی مالکی دموطاء په شرح منتقی کښې دټولو فقهاؤ دپاره د اصحاب الرائی لفظ استعمال کړيدې علامه ابن عبدالبرهم د مالکيانو عالمانو دپاره دا لفظ په کثرت سره استعمال کړې دې تردې چه دوئ چه دموطاء کومه شرح ليکلې ده د دې نوم دې "((الاستذکار لمذاهب الامصار فيما تضمنه الموطاء من معانی الرأى والاثار)) د دې څخه ښکاره واضحه ده چه د اصحاب الرائی لقب دټول فقهاوؤ دپاره استعماليدو

**اهل رائې د کوفيانو دپاره متعارف کيدل:** البته دا صحيح ده چه روستوپه قلار قلار دا لفظ داهل عراق او کوفيانو دپاره استعماليدل شروع شو اودې څخه روستو د امام ابوحنيفه ﷫ اودده دمتبعينودپاره مخصوص شو.

**د شهرت وجه:** د دې وجه دانه وه چه دوئ قياس اورائې په نصوصومقدم کولو بلکه ددې وجه دا وه چه د نوروعالمانو په مقابله کښې به اهل کوفه خاص طورسره امام ابوحنيفه ﷫ او د دوئ متبعينوبه د احکامو استنباط ډيرزيات کولو اودا ئې خپله خصوصی مشغله جوړه کړې وه د نورو حضراتوخودا کاروو چه روزانه به کومې مسئلې راتللې صرف هغه به يې دقرآن کريم اوحديث څخه مستنبط کولې خو امام ابوحنفه ﷫ وغيره صرف دروزمره په مسائلواکتفاء نه وه کړې بلکه ديومسئلې چه څومره صورتونه عقلاً ممکن وو ددې ټول احکام يې منضبط کړل اوظاهره ده. چه د دې کار دپاره دقياس استعمال په وسيع پيمانه اوشو د دې وجې دوئ ته په خاص طورسره اصحاب الرائی اووئيلې شو او د احنافوپه حق کښې دا څه عيب نه وو بلکه دوئ دپاره دا خبره باعث فخروه چه ړومبی دوئ فقه مدون کړله

**د پروپيګنډې موقع په لاس ورتلل:** چونکه د "اصحاب الرأى" لفظ زيات د احنافو دپاره استعماليږی د دې وجې د احنافو بعضې دښمنانوته دپروپيګنډې موقع په لاس ورغله چه دا خلق رائې لره په نصوصوترجيح ورکوی. دې پروپيګنډې څخه بعضې اهل علم متاثرشو. او ددوئ زړه کښې هم دا غلط فهمی راغله چه دحنفيانو د اصحاب الرائی کيدو مطلب دا دې چه دوئ رائې په نصوصومقدم ګڼړی. د دې وجه د بعضې اهل علمو

څخه د احنافو خلاف سختې جملې هم نقل دی. ګنې حقيقت صرف هغه وو کوم چې پورته بيان شو څکه چه احناف خو احاديث مرفوعه بلکه اثار د صحابؤ او اقوال د تابعينو هم په قياس مقدم ګڼړی. ددې تفصيل به انشاء الله وړاندې راشي

**د شافعي المسلک عالم تصريح:** هم دا وجه ده چې بې شميره مخالفين دا لقب څه د تنقيص اود مذمت دپاره نه استعمالوی اوچه کوم عالمان ددې حقيقت څخه واقف وو هغوی د حنفيانو خلاف ددې امرپوره ترديد کړې دې لکه علامه ابن حجرمکی چه شافعي المسلك دې پخپل ((الخيرات الحسان فی مناقب ابی حنيفة النعمان)) کښې په صراحت سره ليکلی دی چه چا حنفيان اصحاب الرائی ګرځولی دی. ددې منشا څه عيب لګول نه وؤ بلکه دې خبرې ته اشاره وه چه دوی د احکامو په استنباط پوره توجه ساتله

**حقيقت څه دې؟:** نو دې څخه دا نتيجه راويستل چه امام اعظم صاحب رحمه الله به قياس ته په نصوصو ترجيح ورکوله يا دا چه دې او دده ملګری په علم حديث کښې کمزورې وو. يا دا چه دوی سره د حديث د رواياتو تعداد کم وو دا ټولې خبرې کول لويه نادانی ده حقيقت دا دې چه امام ابوحنيفه رحمه الله په خپله يو جليل القدرمحدث وو او په علم حديث کښې د دوئ مرتبه دلويو لويو محدثينو څخه اوچته وه. خو دوئ خپله مشغله روايت حديث نه وه جوړه کړې. د دې وجې د حديث په مشهورو کتابونو کښې ددوی مرويات کم دی ګنې ترکومې چه په حديث کښې ددوئ د مهارت تعلق دې دايو مسلم امر دې او د دې د اندازې کولو دپاره دټولو څخه وړاندې د امام صاحب رحمه الله دوطن دکوفې په علمی حالاتو يونظرا چول مناسب وی

**په کوفه کښې د حديثو علم:**

**کوفه د عبدالله بن مسعود د علم غورولو مرکز:** د صحابؤ او دتابعينوپه زمانه کښې کوفه دعلم حديث اودعلم فقه دټولو څخه لوې مرکز اومخزن وو. دا ښارحضرت عمرفاروق رضی الله عنه آبادکړې وو او دا د نومسلم افرادو مسکن وو. د دې وجې ئې دې کښې دتعليم وتربيت طرف ته خصوصی توجه ورکړې وه او دې کښې يې د صحابؤ ډير تعداد آباد کړې وو تردې چه صحابؤ کښې دټولو څخه لوې فقيه عبدالله بن مسعود رضی الله عنه يې دلته معلم مقررکړې وو اواهل کوفه ته يې فرمائيلي وو «اثرتکم بعبدالله علی نفسی» زه تاسو ته د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په درليږلو په خپل ځان باندې ترجيح درکوم

**دعبدالله بن مسعود فضائل:** د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په باره کښې د حضرت حذيفه رضی الله عنه دا ارشاد مشهور دې چه «ماکان رجل اشبه برسول الله صلی الله عليه وسلم هديا ودلا وسمتا من عبدالله بن مسعود رضی الله عنه)) (۸۹) دغه شان حضرت عمر رضی الله عنه ددوئ په باره

کښې فرمائيلې وو. ((کنیف ملئی علماً)) نو حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ ترآخرعمره پورې په کوفه کښې مقيم وو. اودا ښارېې د علم حديث اوعلم فقه مرکز جوړکړو. او د نبوت د انواراتو يې ښه په تيزئ سره اشاعت اوکړو. اودلته يې دداسې شاګردانو يو داسې لوې جماعت تيارکړو چه شپه ورځ به دعلم په تحصيل اوتدريس کښې مشغول وو. ددوی د داسې شاګردانو تعداد څلور اويا (۷٤) بيان کړې شوې دې.

**په کوفه کښې نور صحابه کرام:** بيا د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ څخه علاوه نورفقهاء صحابه هم دلته راغلل اومقيم شول چه هغوئ کښې حضرت سعد بن ابی وقاص ﷺ، حضرت ابوموسی اشعری ﷺ، حضرت حذيفه بن اليمان ﷺ، حضرت سلمان فارسی ﷺ، حضرت عمار بن ياسر ﷺ، حضرت عبدالله بن ابی اوفی او حضرت عبدالله بن الحارث بن الجزء په خاص طورقابل ذکر دی. دې څخه علاوه په سوونونور صحابه هم په کوفه کښې مقيم وو. تردې چه کوفې لره د وطن جوړونکی صحابو تعداد امام عجلی ﷺ پنځلس سوه بيان کړې دې. او دې تعدادکښې هغه صحابه شامل نه دی کوم چه به عارضی طور باندې کوفې ته راغلې وو او بيا بل ځائې ته منتقل شوې وو. ظاهره ده چه د صحابؤ د دومره لوې تعداد په موجودګئ کښې به کوفه کښې د علم اوفضل څومره چرچا او شهرت ووا

**کوفه دارالخلافه جوړول:** هم دا وجه وه چه حضرت علي کوفه خپله دارالخلافه جوړه کړې وه. اوکله چې دغلته يې دعلم اوفضل چرچا اوليدله نوډېرخوشحاله شو اووې فرمائيل ((رحم الله ابن امرعبد قد ملاء هذه القرية علماً)) يعنی الله تعالی دې په حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ باندې رحم اوکړی چې دا کلې يې د علم څخه ډک کړې دې.دغه شان يې اوفرمائيل ((اصحاب ابن مسعود سُرُج هذه الامة)) د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ شاګردان د دې امت ډيوې دی. د حضرت علي دتشريف راوړوڅخه روسته دکوفې په علمې شهرت کښې نوره هم اضافه اوشوه. ځکه چه دې پخپله جليل القدرصحابی وو او عبدالله بن مسعود ﷺ هم په صحابؤکښې د فقاهت او دعلم په اعتبار ډيرمشهوروو. د دې اندازه د دې څخه لګيدې شی چه حضرت معاذبن جبل ﷺ غوندې فقيه صحابی خپل شاګرد حضرت عمروبن ميمون ته حکم اوکړو چه ته لاړشه او دعبدالله بن مسعود ﷺ څخه علم حاصل کړه. د حضرت ابن مسعود ﷺ سره چې حضرت علي هم ملاؤشو نودې سره دکوفې علمې مقام په نورو ټولو ښارونو اوچت شو ځکه چه دا دوه حضرات د صحابه کرامو دعلومو خلاصه وه.

**د مسروق قول:** لکه حضرت مسروق بن اجدع فرمائی ((درت فی الصحابة فوجدت علمهم ينتهی

الی ستة ثم نظرت فوجدت علمهم ینتهی الی اثنین علی وعبدالله رضی الله عنهما)) د حضرت مسروق ددې قول مطابق حضرت علی او حضرت عبدالله بن مسعود ﷠ د صحابؤ د علومو جامع وو. او دا دواړه حضرات په کوفه کښې وو. ددې وجې وئیلې شی چه کوفه کښې د صحابؤ د علومو خلاصه جمع وه.

**کوفه او علم حدیث:** کوفه کښې دعلم حدیث داسې بازارګرم وو چه په هرکورکښې دعلم حدیث چرچا وه. اوپه محله محله کښې دعلم حدیث درس ګاهونه وو. لکه علامه ابو محمد الرامهرمزی په "المحدث الفاصل" کښې د حضرت انس بن سرین ﷫ دا مقوله نقل کړې ده.((اتیت الکوفة فوجدت بها اربعة آلاف یطلبون الحدیث واربع مائة قد فقهوا)) زه کوفې ته راغلم نو هلته مې څلور زره کسان بیا موندل چې د حدیث طلب یې کولو او څلور سوه کسان مې اولیدل چې فقیهان جوړ شوی وو.

**په یو میاشت کښې دیرش زره احادیث لیکل:** دغه شان علامه تاج الدین ابن سبکی په طبقات الشافعیه الکبری" کښې د حافظ ابو بکر بن داؤد قول نقل کوی چه زه کوفې ته اورسیدم نو ما سره یو درهم وه ما په دې دیرش مده لوبیا واخسته. هرورځ به مې یو مد لوبیا خوړله او د حضرت اشبح څخه به مې زرحدیثونه لیکل تردې چه په یومیاشت کښې دیرش زره احادیثو مجموعه تیاره شوه. اندازه اوکړئ چه په یومیاشت کښې صرف دیو استاد سره دیرش زره (۳۰۰۰۰) احادیث لیکلې کیږی هلته به دعلم د وسعت څه حال وی هم دا وجه ده که صرف د یو بخاری په رجالو نظر واچولې شی نودې کښې درې سوه کسان صرف د کوفې دی. هم دا وجه وه چه امام بخاری به بیا بیا دکوفې سفرکولو.

**د حضرت امام اعظم ﷫ په علم حدیث کښې مهارت:**

حضرت امام اعظم ابوحنیفه ﷫ هم دې ښارکښې پیدا شوې وو کوم چې په دغه دور کښې د حدیث اوفقه مرکز وو اودلته یې پرورش شوې وو او د دې خائې د استاذانو څخه یې علم حاصل کړې وو. چونکه په صحاح سته کښې د امام اعظم ابوحنیفه ﷫ څخه څه حدیث نه دې مروی. د دې وجې بعضې تنګ نظره خلقو دا خیال اوکړو چه امام ابوحنیفه ﷫ په علم حدیث کښې کمزورې وو. خودا ډیره دجهالت خبره او بې بنیاده افتراء ده. د دې څه اصل نشته. حقیقت دادې چه صحاح سته کښې صرف د امام ابوحنیفه ﷫ نه بلکه د شافعی هم څه حدیث مروی نه دې بلکه امام احمد ﷫ چه د امام بخاری خاص استاد دې. د هغوی احادیث هم په بخاری کښې صرف درې خایه راغلې دی. اود امام مالك ﷫ هم یو څو روایات دی.

**د ائمه اربعؤ څخه د روایاتو د کمی وجوهات:** ددې وجه دا نه ده چه معاذالله دا حضرات په علم

حدیث کښې کمزورې وو. بلکه وجه دا ده چه ① اول خو دا حضرات فقهاؤ وو نوددوئ اصل مشغله احکام اومسائل بیانول وو ② دویم دا حضرات ائمه مجتهدین وو په سوونو شاګردان اومتبعین موجود وو د دې وجې اصحاب صحاح سته خیال اوکړو چه ددوئ علوم به د دوئ دشاګردانو په ذریعه محفوظ وی نو دوئ د هغې حضراتو د علومو حفاظت اوکړو چه د هغوی د علومو د ضائع کیدو خطره وه.

**امام ابوحنیفه بالاتفاق مجتهد وو:** ګنی ترکومې چه په علم حدیث کښې د امام ابوحنیفه رحمه الله د جلالت قدر تعلق دې نو دا یو مسلم اوناقابل انکارحقیقت دې خکه چه دې بالاتفاق امام اومجتهد دې. او د مجتهد په شرائطو کښې دا شرط لازمی دې چه ده ته به په علم حدیث کښې پوره بصیرت حاصل وی. که په دې اعتبار سره په امام ابوحنیفه رحمه الله کښې څه کمزوری وې نو بیا دې مجتهد څنګه منلې شی. چنانچه لوې لوې محدثینو دده د اوچت مقام اعتراف کړې دې. که د هغوی اقوال نقل کړې شی نو پوره کتاب به تیارشی. د امام ابوحنیفه رحمه الله د مناقبو په کتابونو کښې دا اقوال کتلې شی.

**د امام ابوحنیفه په حقله د محدثینو اقوال:** دلته صرف څو اقوال بیانوو:

① یوقول: دحضرت مکې بن ابراهیم دې. دا د امام بخاری هغه جلیل القدر استاذ دې چه ده څخه د امام بخاری اکثرثلاثیات مروی دی. دې دامام ابوحنیفه رحمه الله شاګرد دې په تهذیب التهذیب کښې دده دا قول د امام ابوحنیفه رحمه الله په باره کښې مروی دې ((کان أعلم أهل زمانه)) [1] واضحه دې وی چه دغه زمانه کښې دعلم اطلاق به په علم حدیث کیدلو نوددې مقولې مطلب دا شو چه امام ابوحنیفه رحمه الله په خپله زمانه کښې د علم حدیث کښې د ټولو نه لوې عالم وو.

② دویم قول دمشهورمحدث حضرت یزیدبن هارون دې دې فرمائی چه ((أدرکت ألفا من الشیوخ وکتبت منهم فما وجدت أفقه ولا أورع ولا أعلم من خمسة أولهم ابوحنیفة)) [2]

ترجمه: ما زر شیوخو سره ملاقات کړې دې او دهغوی نه مې احادیث لیکلی دی نو په هغوی کښې د پنځونه زیات فقیه، او زیات پرهیزګار او زیات پوهه بل څوک نه دی لیدلی چه په هغه پنځو کښې ړومبې امام ابوحنیفه رحمه الله وو.

③ حافظ ذهبی په خپل سند سره د سفیان بن عیینه قول ذکر کړې دې. ((لم یکن فی زمان

---

[1] ) وذكرالموفق المكى بسند إلى إسمعيل بن بشرقال كنافى مجلس المكى فقال حدثنا أبوحنيفة فصاح رجل غريب حدثنا عن ابن جريج ولا تحدثناعن ابى حنيفه رحمه الله فقال المكى إنا لانحدث السفهاء حرمت عليك أن تكتب عنى قم عن مجلسى فلم يحدث حتى اقيم من مجلسه ثم قال حدثنا أبوحنيفة ومرفيه. وفى رواية إبراهيم ابن أبى بكرالمرابطى فغضب غضبًا شديدا حتى رؤى ذلك فى وجهه فقال الرجل تبت وأخطات فابى أن يحدثهم (مناقب الامام الاعظم للموفق ١١\٢٠٤) _

[2] ) ذكرهاالذهبى فى تذكرة الحفاظ "

أبي حنيفه بالكوفة رجل أفضل منه ولا أورع ولا أفقه عنه)) (۱) ترجمه: په كوفه كښې د امام ابوحنيفه رحمه الله نه زيات افضل، پرهيزګاره او فقيه بل څوک نه وو.

④ اوهم حافظ ذهبي د امام ابوداؤد قول ذكر كړې دې ((ان اباحنيفه كان اماما))(۲)
ترجمه: امام ابوحنيفه رحمه الله امام وو.

**د امام ابو حنيفه د استاذانو او شاګردانو كثرت:** د امام ابوحنيفه رحمه الله د علم حديث اندازه دده په شيوخو اوپه شاګردانو باندې يو نظر اچولو سره كيدې شي. حافظ ابوالحجاج مزى په تهذيب الكمال' كښې د امام ابوحنيفه رحمه الله څلوراويا شيوخ شماركړې دى. اوحافظ سيوطى په ((تبييض الصحيفة لمناقب ابي حنيفة رحمه الله)) كښې د دغه شيوخو نومونه ذكر كړې دى. او عالمانو ته معلومه ده چه حافظ مزى د يو راوى دټولو شيوخو استيعاب نه كوى بلكه صرف يوڅوپه طورد نمونه بيانوى. هم دا وجه ده چه ملاعلى قارى د "مسندابى حنيفة" په شرح كښې د امام ابوحنيفه رحمه الله د شيوخ تعداد څلورزره بيان كړې دې او بيا د دوى شيوخ هم د هغه درجې دى چه د دې درجې شيوخو روستنى معروف او مشهور محدثينو كښې چاته نه دى نصيب شوې ځكه چه د امام صاحب شوخو يا خو صحابه وو يا تابعين يا تبع تابعين د دې ځخه لاندې يو شيخ يې هم نشته.

**دحضرت امام اعظم رحمه الله تابعيت:** تركومې چه د صحابؤ تعلق دې نود امام صاحب تابعيت يومسلم اوناقابل انكارحقيقت دې. ① حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى: چه د امام ابوحنيفه رحمه الله ولادت په سنه ۸۰ هجرى كښې اوشواودغه وخت په كوفه كښې حضرت عبدالله بن ابى اوفى رضي الله عنه موجود وو نامكن ده چه امام ابوحنيفه رحمه الله ددوئ زيارت نه وې كړې.

② دغه شان امام ابن سعد په طبقات كښې نقل كړې دى چه امام ابوحنيفه رحمه الله د حضرت انس بن مالك رضي الله عنه زيارت كړې دې.

③ دې ځخه علاوه علامه سيوطى په ((تبييض الصحيفه لمناقب ابي حنيفه)) كښې متعدد روايات نقل كړې دى. د هغې ځخه معلوميږى چه امام ابوحنيفه رحمه الله دحضرت انس رضي الله عنه، حضرت عبدالله بن ابى اوفى رضي الله عنه، حضرت عبدالله بن الحارث بن الجزء رضي الله عنه، حضرت عبدالله بن انيس رضي الله عنه، حضرت واثله بن اسقع رضي الله عنه، او د حضرت عائشه بنت عجرد رضي الله عنها ځخه روايات اوريدلې دى.

④ حافظ ابومعشرعبدالكريم بن عبدالصمد الصابرى يومستقله رساله په دې موضوع ليكلې ده اودې كښې يې د امام ابوحنيفه رحمه الله هغه روايات راجمع كړى دى كوم روايات

---

(۱) تذكرة الحفاظ ۱\۱۹۵
(۲) تذكرة الحفاظ ۱\۱۶۰

چه نې بلاواسطه د حضرات صحابه کرامو څخه اوریدلې دی. دې کتاب کښې د نورو صحابو څخه علاوه د حضرت جابربن عبدالله او د حضرت معقل بن یسار رضی الله عنهما څخه یې هم د امام ابوحنیفه رحمه الله سماع ثابته کړې ده. اګرچه حافظ ابن حجر لیکلي دی چه د دې ټولو روایاتو په سند کښې ضعف دې خو ددې قطعي باطل کیدو حکم چا هم نه دې لګولې که فضائل او مناقب کښې ضعیف روایات قبلیږي. نود دې روایاتو څخه به د امام ابوحنیفه رحمه الله علمي فضیلت ولې نه ښکاره کیږي.

⑤ د دې څخه علاوه علامه سیوطی په " تبییض الصحیفه" کښې یو روایت د حافظ ابومعشر په حواله نقل کړې دې. ((ابوحنیفه رحمه الله عن انس مالك رضی الله عنه قال سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول طلب العلم فریضة علی کل مسلم)) ددې روایت په باره کښې علامه سیوطی فرمائی: چه دا د صحیح برابردې. او حافظ مزی رحمه الله خیال دې چې دا روایت د تعدد طرق په وجه د حسن په درجه کښې شامل شوې دې. که دا صحیح وی نو بیا په دې کښې شک نه پاتې کیږی چې د امام ابوحنیفه رحمه الله د صحابه کرامو څخه سماع هم ثابته ده. او که بالفرض سماع ترې ثابته هم نه وی نو د صحابو سره د زیارت ثبوت خو یقیني دې.

**د محققینو په نیزد امام ابوحنیفه تابعیت:** ددې وجې ددوئ تابعي کیدل د محققینو په نیز مسلم دی. ① لکه امام ابن سعد په طبقات کښې ② حافظ ذهبي په تذکرة الحفاظ کښې، ③ حافظ ابن حجر رحمه الله د علامه سیوطی دقول مطابق دیو سوال په جواب کښې ④ حافظ مزی په تهذیب الکمال کښې ⑤ علامه قسطلاني په شرح بخاری کښې ⑥ علامه نووی په تهذیب الاسماء واللغات کښې ⑦ علامه سیوطی په تبییض الصحیفه کښې دامام ابوحنیفه رحمه الله د تابعي کیدو په وضاحت سره اعتراف کړې دې.

**د امام اعظم رحمه الله اکابرین استاذان:** بیا د امام صاحب خاص استاذانو کښې هغه حضرات شامل دی چه هغوی د تابعینو په دور کښې د علم ستنې ګڼړلې کیدې هغې کښې یو څو لاندې لیک دی.

① **عامربن شراحیل:** امام صاحب د حضرت عامربن شراحیل (امام شعبی) څخه علم حدیث حاصل کړو. حافظ ذهبی لیکی چه ((هو اکبر شیوخ ابی حنیفة رحمه الله)) امام شعبی د پنځوسو صحابو څخه علم حدیث حاصل کړې دې ددوئ د حافظې دا حال وو چه کله یې یو حدیث هم په لیکلو نه وو یادکړې. ده به فرمائیل چه زما د شعر سره زیات شوق نشته خو ((لوأردت لانشدت شهرا وما أعدت)) یو ځل ده د حضرت ﷺ په غزواتو بیان کولو چه دې کښې حضرت عبدالله بن عمر یې په خوا کښې تیر شو چه د امام شعبی خبرې یې

واوریدلې نو وې فرمائیل چه زه د حضرت ﷺ سره په غزواتو کښې شامل شوې یم خو شعبی ته د غزواتو په باره کښې زما څخه زیات علم دې
خطیب بغدادی د حضرت علی بن المدینی قول نقل کړې دې چه د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه علوم په علقمه اسود، حارث، عمرو، اوپه عبیده بن قیس باندې ختم دی. او ددوئ ټولو علوم په دوؤکسانوکښې جمع شویدی یو ابراهیم نخعی اوبل عامر شعبی او دا دواړه په دواړه دامام ابوحنیفه رحمه الله استاذان دی.

② **حمادبن سلیمان:** دامام صاحب بل خصوصی استاذحضرت حماد بن سلیمان دې چه دې بالاتفاق دحدیث اودفقه امام منلې شوې دې دوی د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه دعلوموحافظ ګڼړلې کیږی. صحیح مسلم، ابوداؤد، ترمذی، کښې ددوئ روایات موجود دی. دوئ د حضرت انس رضی الله عنه، حضرت زیدبن اوهب، سعیدبن المسیب، عکرمه، ابووائل، ابرهیم نخعی اوعبدالله بن بریده څخه علوم حاصل کړې وو. حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله دوئ څخه دوه زره احادیث روایت کړی دی. امام اعظم رحمه الله به د دوئ دومره قدر او احترام کولوچه ددوئ کور طرف ته به یې په ملامسته کښې پښې نه غزولې

③ **ابواسحاق سبیعی:** دامام صاحب دریم استاذ ابواسحاق سبیعی دې چه دوئ داته دیرش صحابؤنه علم حاصل کړې دې. او دابوداؤد طیالسی دقول مطابق دې ((اعلم الناس بحدیث ابن مسعود رضی الله عنه وعلی رضی الله عنه)) وو. دې دصحاح سته راوی هم دې. د دوئ نه علاوه دامام اعظم رحمه الله په استاذانو کښې ابراهیم نخعی، قاسم بن محمد، قتادة، نافع، طاوس بن کیسان عکرمه، عطاء بن ابی رباح، عمرو بن دینار، عبدالله بن دینار، حسن بصری، امام شیبان سلیمان الاعمش رحمه الله غوندې جلیل القدرتابعین اواساطین الائمه داخل دی.

**دامام صاحب جلیل القدرشاګردان :** اوس د امام صاحب شاګردانوته راځو په دې فهرست کښې خود لویو لویو محدثینونومونه په نظر راځی:

① **عبدالله بن مبارک:** د دوئ په خصوصی شاګردانو کښې عبدالله بن مبارک موجود دې چه دوئ فرمائی ((لولااعاننی الله بأبی حنیفه رحمه الله وسفیان لکنت کسائرالناس)) که چرته الله تعالی د حضرت امام ابوحنیفه او سفیان په ذریعه زما مدد نه وو کړې نو زه به هم دعامو خلقو پشان وم.

② **یحیی بن سعید القطان:** دغه شان دجرح اوتعدیل مشهورامام یحیی بن سعید القطان هم د امام صاحب شاګرد دې. حافظ ذهبی وغیره لیکی چه ده به دامام صاحب په قول فتوی ورکوله. حافظ ابن حجرپه تهذیب کښې د یحیی بن سعید القطان نه نقل کړې دې

چه دې فرمائی ((قد اخذنا باكثراقواله)) او حافظ عبد القادر قریشی په «الجوهر المضیئة فی طبقات الحنیفة» کښې اوموفق په مناقب الامام ۱۹۱۱۱ کښې دیحیی بن معین څخه د یحیی بن سعید القطان دا قول نقل کړې دې، «جالسنا والله اباحنیفه رحمه الله وسمعنا منه وکنت والله إذانظرت إلیه عرفت فی وجهه انه یتقی الله عزوجل))[1]

③ **وکیع بن الجراح:** دغه شان د امام شافعی خاص استاذ حضرت وکیع بن الجراح هم د امام صاحب شاګرد دې. اود امام صاحب څخه دوئ نهه سوه احادیث روایت کړی دی.
ابن عبدالبر په «الانتقاء» کښې دیحیی بن معین څخه نقل کړی دی چه ده به هم د امام صاحب رحمه الله په قول فتوی ورکوله چه واضح دې وی چه د امام صاحب په قول فتوی ورکول د مقلد مطلق په شان نه وو بلکه د مجتهد فی المذهب په شان وو. لکه څنګه چه به امام ابویوسف رحمه الله اوامام محمد رحمه الله وغیره په بعض مسائلو کښې د امام ابو حنیفه رحمه الله څخه خلاف کولو. دغه شان بعضې مسائلو کښې به ده هم اختلاف کولو لکه د اشعارفی الحج مسئله کښې داسې شوې ده. ((کما سیاتی فی کتاب الحج ان شاء الله))

**نور مشهور شاګردان:** دې څخه علاوه مشهورمحدثینو کښې ④ مکی ابن ابراهیم رحمه الله ⑤ زیدبن هارون ⑥ حفص بن غیاث النخعی ⑦ یحیی بن زکریا بن ابی زائده ⑧ مسعربن کدام ⑨ ابوعاصم بن النبیل⑩ قاسم بن معین، ⑪ علی بن المسهر⑫فضل بن دکین ⑬عبدالرزاق بن همام په شان جلیل القدر محدثینو د امام صاحب شاګردی کړې ده. اوچه په شاګردانو کښې داسې حضرات موجود وی. نود هغه باره کښې دا وئیل چه علم حدیث کښې د ده مرتبه اوچته نه وه څومره لوې ظلم دې؟

دتاریخ اوسیرېه کتابونوکښې د امام ابوحنیفه رحمه الله دحفظ حدیث متعلق حیرانونکی واقعات نقل دی. دنمونې په طوردلته دوه واقعات لیکو.

①**امام اعمش د ابوحنیفه د علمیت اقرار کوی:** ملاعلی القاری په مناقب الامام الاعظم رحمه الله کښې نقل کړې دی چه یو ځائې کښې امام صاحب او امام عمش دواړه موجود وو چا د مسئلې تپوس اوکړو او دوئ جواب ورکړو. امام اعمش چه جواب واوریدلو وې وئیل «من این اخذت هذا» امام ابوحنیفه رحمه الله سمدست جواب ورکړو ((أنت حدثتنا عن أبی صالح عن أبی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم کذا وأنت حدثتنا عن أبی ایاس عن أبی مسعود الانصاری وأنت حدثتنا عن أبی وائل عن عبدالله قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم کذا وأنت حدثتنا عن أبی مجلزعن حذیفة رضی الله عنه بن الیمان

---

[1] ) تاریخ بغداد ۳۵۲\۱۳

قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم وأنت حدثنا عن ابى الزبير عن جابر رضى الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم كذا)) په دې امام اعمش حيران شو اووې فرمائيل ((حسبك ما حدثت به في مائة يوم حدثتني به في ساعة واحدة)) بس كافى ده ما چې تا ته په سلو ورځو كښې څومره احاديث بيان كړى وو تا ماته هغه په يو ساعت كښې بيان كړل بيايې اوفرمائيل ((يامعشر الفقهاء أنتم الاطباء ونحن الصيادلة وأنت أيها الرجل أخذت بكلا الطرفين)) اې د فقهاؤ جماعته تاسو طبيبان يې او مونږ پنساريان يو.او اې سړيه تا دواړه لارې خپلې كړى دى.

② **د احاديثو په ضعف پوهيدل**: دويمه واقعه د امام ابويوسف ده هغه فرمائى چه كله به امام ابو حنيفه رحمه الله يو شرعى مسئله بيانوله نوزه به د كوفې د حديثو ټولو استاذنوته ورتلم او ددوئ څخه به مې هغه احاديث جمع كول چه كومو به دامام ابوحنيفه رحمه الله دقول تائيد كولو. اوپه دې خيال به مې امام اعظم رحمه الله ته اورول چه دوئ بې واورى نوخوشحاله به شى. خوچه كله به ما احاديث واورول اوفارغ به شوم نو امام صاحب به اوفرمائيل چې دې كښې په فلانى حديث كښې فلانى نقص دې اوفلانى حديث كښې فلانې راوى ضعيف دې اوفلانې علت په كښې موندلې كيږى ددې وجه دا قابل استدلال نه دې. او بيا به امام اعظم رحمه الله اوفرمائيل ((أنا عالم بعلم أهل الكوفة)) زه د اهل كوفه په علم باندې پوهه يم.

**كتاب الآثار**: دامام ابوحنيفه رحمه الله په مآثر علميو كښې ددوئ كتاب، ،كتاب الآثار، ، په علم حديث كښې د دوئ د اوچت مقام ګواه دې. داكتاب په فقهى ابوابو باندې په حديثو كښې دټولو څخه رومبى مرتب كتاب دې. چنانچه علامه سيوطى په "تبييض الصحيفه" كښې ليكلې دى چه علم حديث كښې د امام ابوحنيفه رحمه الله دا فضيلت څه لږ نه دې چه دټولو څخه رومبې د فقه په ابوابو باندې مرتب كتاب ئ تاليف كړو. دا فضيلت بل چاته نه دې حاصل دې. د امام اعظم رحمه الله داكتاب د "موطا امام مالك" دپاره د ماخذ حيثيت لرى. ځكه چه حافظ ذهبى په مناقب كښې دقاضى ابوالعباس محمد بن عبدالله بن ابى العوام د"اخبار ابوحنيفه رحمه الله" په حواله سره په سندمتصل سره د مشهورمحدث عبدالعزيز دراوردى دا قول نقل كړې دې ((كان مالك ينظر في كتب أبى حنيفة وينتفع بها)) د دې څخه واضحه ده چه امام ابوحنيفه رحمه الله "كتاب الآثار" مقام د مؤطا امام مالك په نسبت داسې دې لكه دمؤطا مقام چه دصحيحين په نسبت دې.

**دكتاب الآثار راويان**: دحديث دنورو كتابونو په شان د ، ،كتاب الآثار، ،هم ډيرراويان دى.په هغې كښې څلورمشهور دى.

① حضرت امام ابويوسف رحمه الله　　② حضرت امام محمد رحمه الله

③ حضرت امام زفر رحمه الله ④ حضرت امام حسن بن زیاد رحمه الله

**ه کتاب الآثار انتخاب:** بیا چه څنګه امام بخاری په شپږو لاکهو احادیث کښې خپل صحیح منتخب کړې او مرتب کړې دې دغه شان امام ابوحنیفه رحمه الله هم د خپلو ډیرو احادیثو څخه د دې انتخاب کړې دې. او دایې مرتب کړو. چونکه امام ابوحنیفه رحمه الله د امام بخاری وغیره څخه ډیر وړاندې دې. او د دوی په زمانه کښې د اسانیدو په طرقو کښې دومره وسعت نه وو پیدا شوې.د دې وجې د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله دا انتخاب د څلویښتو زرو احادیثو څخه دې.

① چنانچه علامه موفق مکی رحمه الله په،،مناقب الامام الاعظم،، کښې[1] د ابو بکر بن محمد الزرنجری قول نقل کړې دې.((انتخب أبوحنيفة الاثار من أربعين ألف حديث))

② او هم علامه موفق د حافظ ابویحیی زکریابن یحیی نیشاپوری د ،، مناقب ابی حنیفه رحمه الله،، په حواله د دوئ په سند دیحیی بن نصر بن حاجب څخه نقل کړې دې چه ((سمعت أبا حنيفة رحمه الله يقول عندي صناديق من الحديث ما أخرجت منها الا الشئ اليسير الذي ينتفع به))

③ دغه شان علامه زبیدئ په،،عقود الجواهر المنیفة،، کښې د حافظ ابونعیم اصفهانی په سند سره دیحیی ابن نصر دا قول نقل کړې دې چه زه یو ځل امام ابوحنیفه رحمه الله ته ورغلم نو اومې لیدل چه د هغه کمره د حدیثو د کتابونو څخه ډکه وه. ماتپوس اوکړو دا څه دی؟ نو دوئ جواب راکړو چه د حدیث کتابونه دی.

**کتاب الآثار ته شرفِ اولیت حاصل دې:** د دې واقعاتونه دا واضح کیږی چه کتاب الآثار کښې څومره احادیث هم دی.نو دا د امام صاحب ټول احادیث نه دی بلکه داد دوئ یو مختصر انتخاب دې. بهرحال د امام اعظم رحمه الله فضیلت دا دې چه د حدیث څومره کتابونه اوس متداول دی دې کښې دټولونه وړومبې مبوب کتاب ددوئ تالیف دې.

**شاګردانو ته د کتاب الآثار د مطالعې مشوره:** په علم حدیث کښې ددې کتاب مقام څه وو؟ ددې اندازه د محدثینو د هغه اقوالو څخه کیږی چه هغوئ خپلو شاګردانو ته صرف د دې د مطالعې مشوره نه وه ورکړې.بلکه تاکید ئې ورته هم کړې وو او فرمائیلی یې وو ورته چه بغیر ددینه علم فقه نشی حاصلیدې. دا اقوال د امام اعظم رحمه الله د مناقبو په کتابونو کښې په تفصیل سره منقول دی.

**د کتاب الآثار شروحات:** بیامحدثینو چه دکتاب الاثارکوم خدمت کړې دې. دهغې څخه اندازه کیږی چه دې کتاب ته ددوئ په نیز یو اهم مقام حاصل دې. هم دغه وجه ده چه د دې کتاب الاثار ډیر شروحات لیکلی شوی دی.

[1] مناقب الامام الاعظم ۱\۹۵ مطبوعه دکن سنة ۱۳۲۱هـ

① دعلامه ابن همام شاګرد ، ،حافظ زین الدین بن قطلوبغا ، ، دکتاب الاثار شرح لیکلې ده اویو مستقل کتاب ئې ددې په رجالو تصنیف کړې دې.

② دغه شان حافظ ابوبکرابن حمزه الحسینی یوکتاب "دالتذکرة لرجال العشرة " په نوم لیکلې دې چه دې کښې یې دصحاح سته او دائمه اربعه رجال راجمع کړې دی. دې کښې دکتاب الاثار ټول رواة موجود دی.

③ دغه شان حافظ ابن حجرعسقلانی یوکتاب دکتاب الاثارپه رجالو لیکلې دې چه د هغې نوم "الإیثار لذکر رواة الاثار" دې. ددې کتاب تذکره هغوی پخپله په ((تعجیل المنفعة بزوائد رجال الاربعة)) کښې کړې ده.بیا حافظ ابن حجر په خپل مشهورکتاب ((تعجیل المنفعة بزوائد رجال الاربعه)) کښې دکتاب الاثار ټول روات را جمع کړی دی. ځکه چه داکتاب حافظ د ائمه اربعه یعنی د امام ابوحنیفه رحمه الله، امام شافعی رحمه الله، امام مالك رحمه الله، اود امام احمدبن حنبل رحمه الله په رجالو لیکلې دې.

**تنبیه:** دلته دې دا خبره هم واضحه وی چه دنواب صدیق حسن خان صاحب په " اتحاف النبلاء" کښې دا خبره بالکل غلطه لیکلی ده چه د حافظ ابن حجرکتاب ، ،تعجیل المنفعه د سنن اربعه په رجال دې. داسې معلومیږی چه نواب صاحب پخپله د تعجیل المنفعه، مطالعه نه ده کړې ګنې داسې غلطه خبره به یې نه کوله. ځکه چه حافظ ابن حجر دکتاب په مقدمه کښې داتصریح کړې ده چه د دوئ مقصد دائمه اربعه د رجالِ زوائد تذکره ده.

**دامام ابوحنیفه د مرویاتو مسانید:** داخوکتاب الاثاروو چه د امام صاحب واحد تصنیف دې. د دې څخه علاوه لوې لوې محدثینود امام ابوحنیفه رحمه الله مرویات د مسند ابی حنیفه رحمه الله په نوم جمع کړې دی. ددې مسانیدو تعداد شلو ۲۰ ته نزدې دې. مسند لیکونکو کښې ① ابونعیم اصفهانی ② حافظ ابن عساکر③ حافظ ابوالعباس الدوری ④ حافظ ابن منده ⑤ تردې چه حافظ ابن عدی شامل دې کوم چه په شروع کښې دامام صاحب لوې مخالف وو روستوچه کله دامام طحاوی شاګرد شو نو د امام صاحب د لوړ مقام اندازه ورته اوشوه. او بیا یې د خپلوسابقه خیالاتود تلافی دپاره مسندابی حنیفه رحمه الله مرتب کړو. دارنګه مسند ابی حنیفه رحمه الله په نوم اوولس یاددې څخه زیات کتابونه لیکلی شوی دی دا روستو بیاعلامه ابن خسرو د جامع مسانید الاعظم په نوم جمع کړل.

**په امام اعظم د قلیل الحدیث الزام:** حقیقت دادې چه په امام ابوحنیفه رحمه الله دا الزام چه دې قلیل الحدیث وو یاده سره ټول اوولس احادیث وو.[1] نو داداسې ښکاره دروغ دی چه د دې دتعصب یا دناواقفیت څخه علاوه بل هیڅ توجیه نشی کیدې

[1] ((کما نقله ابن خلدون عن بعض الناس))

**د ابن خلدون د قول تردید:** ابن خلدون پته نشته په څه بناء دا لیکلی دی چه د امام ابوحنیفه رحمه الله د صحت حدیث شرائط چونکه ډیر سخت وو د دې وجې ددوئ په نیز اوولس احادیث صحیح وو. په اصل کښې ابن خلدون د امام ابوحنیفه رحمه الله نه دومره لرې پاتې شوې دې چه ده ته د حقیقت حال علم اونشو. حقیقت خو هغه دې چه د کوم اظهار علامه زاهد الکوثری د ((شروط الائمة الخمسة للحازمی)) په حاشیه ۵۰ کښې کړې دې چه په حقیقت کښې دامام ابوحنیفه رحمه الله مروج احادیث داسې اوولس دفترونوکښې دی چه هغې کښې دټولوڅخه وړوکی دفتر هم د«سنن الشافعی بروایة الطحاوی» اود«مسند الشافعی بروایت ابی العباس الاصم)) څخه لوې دې. اود امام شافعی د احادیثو مدار هم په دې دوؤ کتابونو باندې دې.

**د امام اعظم د مروياتو تعداد:** د امام صاحب دیوشاګردقول دې چه دامام صاحب په تصانیفو کښې اویازره احادیث ملاویږی بعضې خلق په دې دتعجب اظهارکوی او دا مبالغه ګڼړی ځکه چه دامام صاحب په تصانیفوکې دومره احادیث په ظاهره په نظرنه راځی.

**د متقدمینو د روایت حدیث دوه طریقې:** خوکه د متقدمینو طریقه کار په ذهن کښې وی نو ددې مقولې صداقت به واضح شی، په حقیقت کښې د محدثینوپه نیز د حدیث د بیانولودوه طریقې وې:

① کله به دوئ حدیث نبی کریم ﷺ ته منسوب کولو اومرفوعًا به یې بیانولو

② اوکله به دوئ د احتیاط د وجې ددې نسبت نبی کریم ﷺ ته د کولوپه ځائې خپل قول ګرځولو اودفقهی مسئلې په طوربه یې بیانولو. دا د دوئ ډیراحتیاط وو که په نقل روایت کښې څه خطاوی نو چه هغه د نبی کریم ﷺ ته منسوب نه شی.

**حضرت عمر رضی الله عنه په متوسطینو کښې شمارل:** په صحابه کرامو اوتابعینوکښې به چه کوم حضرات زیات محتاط وو هغوی به عمومًا دا دویمه طریقه اختیاروله لکه د حضرت عمر رضی الله عنه زیات روایت هم ددې قسم دی. دهغې دلیل دا دې چه د حضرت عمر رضی الله عنه څخه کوم احادیث مرفوع مروی دی دهغې تعداد دپنځوسوڅخه زیات او زروڅخه کم دې د دې تقاضا دا ده چه دمحدثینود اصطلاح مطابق دې به متوسطینو صحابؤ کښې او شمارلې شی لکه چه محدثینو دې په متوسطینوکښې شمارکړې دې.

**د شاه ولی الله رحمه الله رائې:** خو شاه ولی الله په ،،ازالة الخفاء٬٬ کښې لیکلې دی چه دوئ په مکثرینوکښې شمارل پکار دی. مکثرین د محدثینو په اصطلاح کښې هغه حضراتو ته وائی چه د هغوئ مرویات د زروڅخه زیات وی. شاه صاحب حضرت عمر رضی الله عنه په مکثرینو کښې دشمارلو وجه دا بیانوی چه ددوئ زیات روایات پخپله ددوئ دقول په

طور مروی دی. دغه شان دبعضې تابعینو مقوله مشهوره ده. ((لان نقول قال علقمة قال عبدالله أحب إلينا من أن نقول قال رسول الله صلى الله عليه وسلم)) دغه شان نورهم څو واقعات دی چه مولاناظفراحمدعثمانی صاحب په "إنجاء الوطن عن الازدراء بإمام الزمن» کښې په تفصیل سره بیان کړی دی.

**دبحث نتیجه**: دې څخه دا خبره واضحه کیږی. چه متقدمینو ډیراحادیث مرفوعه خپل اقوال ګرځولې دی اود فقهی مسئلې په طور یې بیان کړی دی که دې لحاظ سره اوګوری نو د امام ابوحنیفه رحمه الله دمرویاتوتعداد اویازرو ۷۰۰۰۰ ته رسیدل څه لرې نه ده، څکه چه امام ابوحنیفه رحمه الله هم دا طریقه اختیارکړې وه. دا حقیقت چه خیال کښې وساتې اود هغه مسائلو مطالعه اوکړئ کوم چه امام محمد وغیره د امام ابوحنیفه رحمه الله نه روایت کړی دی نودې کښې د داسې مسائلوتعداد بې شمیره په نظر راځی کوم چه براه راست دحدیث څخه منقول دی. دې صورت کښې دامام اعظم رحمه الله دمرویاتو تعداد د اویا زروڅخه زیاتیدل څه لرې نه دی.

**دامام اعظم رحمه الله مشغله استنباط احکام وه**: دې څخه علاوه مسئله په حقیقت کښې دانه ده چه امام ابوحنیفه رحمه الله څومره روایات د نورونه بیان کړی دی. بلکه مسئله داده چه څومره روایات دوئ ته رسیدلې دی واقعه داده چه امام صاحب خپله مشغله د روایت حدیث په ځائې استنباط احکام جوړه کړې وه. د دې وجې ددوې روایات په خپل حیثیت باقې پاتې نه شو بلکه د فقهی مسائلو په حیثیت باقی پاتې شو والله سبحانه تعالى اعلم بالصواب

**په امام ابوحنیفه رحمه الله داعتراضاتو منصفانه جائزه:**

اوس یونظرپه هغه اعتراضاتو واچوئ کوم چه عموماً په امام ابوحنیفه رحمه الله کیږی:

① **امام اعظم ضعیف راوی دې**: دټولونه رومبې اعتراض دا دې چه امام نسائی په خپل کتاب الضعفاء کښې دامام ابوحنیفه رحمه الله تذکره کوی اولیکی چه «نعمان بن ثابت ابوحنیفه لیس بالقوی فی الحدیث»)

**هیڅ څوک هم بغیر د جرح پاتې نه دې**: ددې جواب دادې چه علماؤ دجرح اوتعدیل څه قاعدې مقررکړې دی. او د یو راوی په باره کښې د جرح اودتعدیل فیصله کولوکښې د دې قواعدو خیال ساتل ضروری دی ګنې دلوې څخه لوې محدث عدالت اوثقاهت به هم ثابت نشی څکه چه په ټولو لویو امامانو باندې د چانه چا جرح شته دې لکه امام شافعی رحمه الله باندې ابن معین اوپه امام احمد رحمه الله باندې امام کرابیسی رحمه الله، امام بخاری رحمه الله باندې ذهلی او په امام اوزاعی رحمه الله باندې امام احمد رحمه الله جرح کړې ده. که د دې ټولو اقوالو اعتبار اوکړې شی نو دوی کښې به یو هم ثقه پاتې نشی. انتهاء دا ده چه ابن حزم

امام ترمذی او امام ابن ماجه ته مجهول هم ونیلی دی پخپله امام نسائی باندې هم دومره عالمانو د تشیع الزام لګولی دې او په دې بناء یې دوئ ته مجروح ونیلې دی.

**موصوف بتواتر العدالة شخصیت باندې د جرح حیثیت:** حقیقت دا دې چه علماؤ د جرح اوتعدیل څه اصول مقرر کړی دی په هغې کښې رومبې اصل دا دې چه دکوم کس امامت اوعدالت تواترته رسیدلی وی نودهغه باره کښې د یو دوه کسانو جرح معتبره نه ده. د امام ابو حنیفه رحمه الله امامت اوعدالت هم حدتواترته رسیدلې دې د حدیثو لویو امامانو ددوئ دعلم او تقوی صفات بیان کړی دی. ددې وجې په امام صاحب هم د آحادُو جرح معتبر نه ده.

**په دې قاعده یو اعتراض:** په دې جواب کښې زمونږ دزماني بعضې جاهلان دا اعتراض کوی چه د محدثینو مشهوره قاعده ده. ((الجرح مقدم علی التعدیل)) نوچه دامام صاحب په باره کښې جرح اوتعدیل دواړه منقول دی نوجرح به راجح وی؟

**د اعتراض جواب:** خودا اعتراض دجرح اودتعدیل د اصولو څخه د ناواقفیت په بناء دې ځکه چه د حدیثو امامانو ددې تصریح کړې ده چه د((الجرح مقدم علی التعدیل)) قاعده مطلق نه ده بلکه څو شرائطو سره مقیده ده.

**د ترجیح دوه طریقې:** ددې تفصیل دادې چه که د یو راوی په باره کښې د جرح اودتعدیل اقوال متعارض وی نو دې کښې د ترجیح دپاره اولاً علماؤ دوه طریقې اختیار کړی دی.

**اوله طریقه:** دا طریقه د جرح اوتعدیل ددویم اصل حیثیت لری خطیب بغدادی په ((الکفایة فی اصول الحدیث والروایة)) کښې دا بیان کړې دی چه په داسې مواقعو به داکتلی شی چه د جارحینو تعداد زیات دې اوکه دمعدلینو، چه دکوم طرف تعداد زیات وی هغه به اختیارولې شی. شوافعو کښې علامه تاج الدین سبکی هم ددې قائل دې، که دا طریقه اختیارشی نو بیا هم د امام ابوحنیفه رحمه الله په تعدیل کښې هیڅ شبه نه پاتې کیږی. ځکه چه په امام صاحب باندې جرح کونکې یو څو کسان دی یعنی امام نسائی، امام بخاری، امام دارقطنی اوحافظ ابن عدی. اومونږ وړاندې بیان کړی دی چه حافظ ابن عدی د امام طحاوی د شاګرد کیدو څخه پس د امام صاحب دعظمت قائل شوې دې اوبل طرف ته دامام صاحب د مادحینو تعداد دومره دې چه په شمیرکښې نشی راتلې. دنمونې په طور مونږ څو اقوال پیش کوو:

**دامام اعظم مادحین:** ① دعلم جرح اوتعدیل دټولو څخه لوې عالم چه هغه دټولو څخه رومبې باقاعده په رجالو کلام کړې دې امام شعبه بن الحجاج دې چه د امیرالمومنین فی الحدیث په لقب مشهوردې دې دامام ابوحنیفه رحمه الله په باره کښې فرمائی: (کان والله ثقة)

② دجرح اوتعديل دويم لوي عالم يحيى بن سعيد القطان دي دي پخپله د امام ابوحنيفه رحمه الله شاګرد دي. اوحافظ ذهبي په تذکره الحفاظ کښې اوحافظ ابن عبدالبر په الانتقاء کښې نقل کړي دي چه ده به دامام ابوحنيفه رحمه الله په اقوال وفتوي ورکوله اوددوي مقوله ده.[1] ((جالسنا والله أباحنيفة وسمعنا منه فكنت كلما نظرت إليه عرفت في وجهه أنه يتقي الله عزوجل)) اوهم د يحيى بن سعيد القطان دويمه مقوله علامه سندهي دکتاب التعليم په مقدمه کښې نقل کړي ده. (إنه لاعلم هذه الامة بما جاء عن الله ورسوله صلى الله عليه وسلم)

③ دجرح تعديل دريم امام ديحيى بن سعيد القطان شاګرد يحيى بن معين دي دي دامام ابوحنيفه رحمه الله په باره کښې فرمائي: ((كان ثقة حافظا لايحدث إلا بما يحفظ ما سمعت أحدا يجرحه)) يوبله موقعه کښې دوئ نه دامام صاحب په باره کښې تپوس اوشو ((أثقه هو؟)) نودوئ جواب ورکړو ((نعم ثقة ثقة هو أورع من أن يكذب وأجل قدرا من ذلك" كذا في مناقب الامام الاعظم للكردي))

④ دجرح اوتعديل څلورم لوي امام علي بن المديني دي چه د امام بخاري استاذ او دنقد رجال په باره کښې ډيرمتشدد دي ((كما صرح به الحافظ في مقدمة فتح الباري)) دي فرمائي:((ابوحنيفة رحمه الله روى عنه الثوري وابن المبارك وهشام ووكيع وعباد بن العوام وجعفر بن عون وهو ثقة لاباس به))

⑤ دغه شان عبدالله بن المبارك فرمائي: ((لولا أعانني الله بأبي حنيفة رحمه الله وسفيان لكنت كسائر الناس))

⑥ اودمکي بن ابرهيم داقول وړاندې تېر شو، ((كان اعلم اهل زمانه))

**نور مادحين:** دې څخه علاوه ديزيد بن هارون سفيان ثوري، سفيان بن عيينه، اسرائيل بن يونس، يحيى بن آدم، وکيع بن الجراح، امام شافعي اوفضل بن دکين رحمه الله پشان ائمه دحديثو څخه هم دامام ابوحنيفه رحمه الله توثيق منقول دي دعلم حديث ددې لوي لوي اساطين په مقابله کښې ددوه درې کسانو جرح څنګه قابل قبول کيدې شي؟ نوکه فيصله په کثرت تعداد وي نوبيا هم دامام صاحب دتعديل تله درنه وي.

**دويمه طريقه:** دجرح اودتعديل دتعارض رفع کولودويمه طريقه چه دجرح اودتعديل ددريم اصل حيثيت لري داحافظ ابن صلاح په مقدمه کښې بيان کړې ده او د جمهورو محدثينو مذهب بې ګرځولې دې. هغه داده چه که جرح مفسرنه وي يعني دې کښې سبب د جرح نه وي بيان شوې نو تعديل به هميشه په دې راجح وي که تعديل مفسر وي اوکه

---

[1] دا مقوله دتاريخ بغداد ٣٥٢\١٣ په حواله تيره شوې ده ١٢ـ

مبهم. که دې اصل نه او کتلې شی نو په امام ابوحنیفه رحمه الله چه څومره جرح شوې دی نو ټولې مبهم دی او یو هم مفسر نه ده. د دې وجې د دې اعتبار نشته او تعدیلات ټول مفسر دی څکه چه دې کښې ورع، تقوی او حفظ د ټولو څیزونو اثبات شوې دې. خاص طور سره که تعدیل کښې د اسبابو د جرح تردید شوې وی نو دا به د ټولو څخه زیات مقدم وی او د امام صاحب په باره کښې داسې تعدیلات هم شته مثلا حافظ ابن عبدالبر ((الانتقاء فی فضائل الائمة الثلاثة الفقهاء)) کښې لیکلې دی ((واکثر ما عابوا علیه الإغراق فی الرئی والقیاس ولیس ذلك بعیب)) خلاصه دا چه د، ،الجرح مقدم علی التعدیل،، قاعده هله معتبره ده چه کله جرح مفسر وی او د دې سبب هم معقول وی. او د بعضې عالمانو په نیز دا شرط هم دې چه د معدلینو تعداد د جارحینو څخه زیات نه وی که معدلینو تعداد زیات وو نو بیا جرح مقدم نه وی.

۲ **دویم اعتراض: په میزان الاعتدال کښې د امام اعظم رحمه الله تضعیف:** په امام ابوحنیفه رحمه الله دویم اعتراض دا کیږی چه حافظ شمس الدین ذهبی رحمه الله په،، میزان الاعتدال فی اسماء الرجال، کښې د امام ابوحنیفه رحمه الله تذکره په دې الفاظو سره کړې ده. ((النعمان بن ثابت الکوفی إمام أهل الرأی ضعفه النسائی وابن عدی والدارقطنی واخرون))

**د ضعف قول الحاقی دې:** ددې جواب چه دا دې چه د ((میزان الاعتدال)) کښې بلاشبه الحاقی دې یعنی د مصنف نه دې بلکه بل چا دا په حاشیه کښې لیکلې او روستو بیا دامتن کښې شامل شوې دې. یا خود کاتب د غلطۍ د وجې یا قصداً داخل شوې دې. ددې دلائل لاندینې دی:

۱ **په میزان کښې د امام اعظم رحمه الله د نه ذکر کولو صراحت:** حافظ ذهبی رحمه الله د میزان الاعتدال په مقدمه کښې دا تصریح کړې ده چه زه به دې کتاب کښې د هغه لویو لویو امامانو تذکره نه کوم چه د چا جلالت قدر حد د تواتر ته رسیدلې وی اګر چه د دوئ باره کښې یو کس څه کلام هم کړې وی بیا دې لویو امامانو کښې دوی د امام ابوحنیفه رحمه الله نوم په صراحت سره ذکر کړې دې نو بیا دا څنګه ممکن ده چه دوئ به دې کتاب کښې د امام صاحب ذکر کړې وی.

۲ **په تذکرة الحفاظ کښې د امام اعظم توصیف او مدح:** بیا چه د کومو لویو لویو امامانو تذکره حافظ ذهبی په میزان الاعتدال کښې نه ده کړې د هغوی د تذکرې د پاره دوئ یو مستقل کتاب تذکره الحفاظ لیکلې دې او د دې کتاب کښې نه صرف د امام ابوحنیفه رحمه الله تذکره شته بلکه د دوئ یې ډیر مدح او توصیف بیان کړې دې

۳ **په لسان المیزان کښې د امام اعظم عدم ذکر:** حافظ ابن حجر خپل کتاب لسان المیزان

په،،ميزان الاعتدال،، بنا کړې ده يعنى چه دکوم رجالو تذکره په ميزان الاعتدال کښې نشته د هغوئ تذکره په لسان الميزان ' کښې هم نشته سوا ديوځونه اوپه لسان الميزان کښې د امام ابوحنيفه رحمه الله تذکره نشته نودا ددې خبرې صريح دليل دې چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په باره کښې دا عبارت په اصل،،ميزان الاعتدال ' کښې هم نه وو. روستوبيازيات کړې شوې دې.

③ **د ميزان الاعتدال د اصلى نسخو سره موازنه:** عبدالفتاح ابوغده الحلبى رحمه الله د،،الرفع والتکميل،،په حاشيه کښې ليکلي دى چه ماددمشق په،،مکتبه ظاهريه،، کښې د،،ميزان الاعتدال ' يوه نسخه اوليدله "تحت الرقم ۳۲۸ حديث" چه ټوله دحافظ ذهبى رحمه الله د يوشاګرد علامه شرف الدين الوانى په قلم ليکلي شوې وه. اودې کښې داتصريح وه چه ما دا نسخه د خپل استاذ حافظ ذهبى رحمه الله په وړاندې درې ځله لوستلې ده او د هغوى دمسودې سره مې ددې مقابله کړې ده. دې نسخه کښې دامام ابوحنيفه رحمه الله تذکره نشته. دغه شان ما د مراکش دارالحکومت،،رباط،، په مشهوره کتب خانه ' الخزانه العامره' کښې ۱۳۹ق نمبر ترلاندې د،،ميزان الاعتدال،، يوه قلمى نسخه اوليدله چه په هغې باندې د حافظ ذهبى رحمه الله د ډيرو شاګردانو د لوستلو تاريخونه ليکلى شوى دى اوپه هغې کښې دا تصريح هم شته چه دحافظ ذهبى رحمه الله يو شاګرد د دوئ د وفات نه صرف يوکال مخکښې د دوى په وړاندې لوستلې وه چې دې نسخه کښې هم د امام ابوحنيفه رحمه الله تذکره نشته.

**نتيجه:** دا ددې خبرې د ستاويزى ثبوت شو چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په باره کښې دا عبارت چا روستو زيات کړې دې اصل نسخه کښې نه وو نو ثابته شوه چه د حافظ ذهبى لمن دامام ابوحنيفه رحمه الله دتضعيف او دتنقيض نه بلکل پاکه ده. بله دا چه حافظ ذهبى داسې خبره څنګه ليکلې شى حالانکه دوئ پخپله دامام ابوحنيفه رحمه الله په مناقبوکښې مستقل کتاب ليکلې دې. ترکومې چه د حافظ ابن عدى تعلق دې نو د دوى په باره کښې وړاندې ذکر اوشو چه بې شکه په شروع کښې دوى د امام ابوحنيفه رحمه الله مخالف وو. اودغه زمانه کښې دوئ په امام صاحب جرح هم کړې وه. خو روستو چه کله دې د امام طحاوى شاګرد شو نو د امام صاحب دعظمت احساس ورته اوشو نو دوئ د سابقه غلطئ دکفارې په طور د امام ابوحنيفه رحمه الله مسند مرتب کړې دې. د دې وجه نه د دوئ پخوانئ قول دامام ابوحنيفه رحمه الله خلاف حجت نه دې اودامام نسائى دجرح جواب وړاندې شوې دې.

④ **دريم اعتراض: د دارقطنى جرح:** داکيږى چه امام دارقطنى په خپل سنن کښې دحديث

نبوی ﷺ (۱) ((من كان له إمام فقراءة الإمام له قرأءة)) يعنی چې د چا امام وی نو د امام قراءت د هغه دپاره قراءت دې دې لاندې ليكلی دی چه ((لم يسند عن موسى بن ابی عائشة غير أبی حنيفة والحسين بن عمارة وهما ضعيفان))

**جواب: د دې جواب دا دې چه** بې شكه دامام ابوحنيفه رحمه الله په باره كښې دامام دارقطنی جرح ثابته ده خوددې جواب هم هغه دې كوم چې د امام نسائی د جرح دې د غور كولو خبره ده چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په باره كښې به د امام شعبه، يحيی بن سعيد القطان، يحيی بن معين، علی بن المدينی، عبدالله بن المبارك، سفيان ثوری، وكيع بن الجرح، مكی بن ابرهيم اسرائيل بن يونس او يحيی بن آدم په شان ائمه د احاديثو قول معتبروی چه د امام ابوحنيفه رحمه الله معاصر دی. او يا د دوئ زمانې ته نزدې دی اوكه د امام دارقطنی قول به معتبر وی چه د امام صاحب نه دوه سوه كاله پس پيدا شوې وو بلكه ديحيی بن معين دقول څخه خو دا معلوميږی چه د ده د زمانې پورې چا هم په امام صاحب جرح نه وه كړې څكه چه دې وائی ((ما سمعت أحدا يجرحه))

**بې تحقيقه جرح څنګه شوې ده:** اوس سوال دا دې چه د امام نسائی او د امام دارقطنی غوندی د حديثو امامانو د امام صاحب په باره كښې داسې بې بنياده خبره څنګه كړې ده؟

**جواب:** ددې جواب دا دې چه زمونږه ددې بزرګانو په اخلاص هيڅ بدګمانی نشته خو واقعه دا ده چه امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله ته الله تعالی كوم مقام وركړې وو د هغې په بناء ددوئ حاسدين بې شميره وو اودوئ د امام صاحب په باره كښې قسما قسم خبرې مشهورې كړې وې.

**د پروپيګنډې شهرت:** مثلا داخبره عامه وه چه امام صاحب قياس لره په احاديثو ترجيح وركوی دا پروپيګنډه دومره زياته شوه چه بعضې داسې اهل علم هم د دې څخه متاثرشول چه كوم د امام ابوحنيفه رحمه الله دحالاتو څخه ذاتی طور باندې واقف نه وو. دې اهل علمو كې چه چاته د حقيقت حال علم اوشو هغوئ روستوبيا دامام صاحب دمخالفت نه رجوع هم اوكړله لكه د حافظ ابن عدی مثال تيرشو دويم مثال د امام اوزاعی دې.

**د امام اوزاعی رحمه الله پخوانې قول:** علامه كردری رحمه الله د صيمری رحمه الله څخه په خپل سند سره دعبدالله بن المبارك دا قول په،، مناقب الامام الاعظم،، (۲) كښې نقل كړې دې چه زه شام ته راغلم او داوزاعی سره مې ملاقات اوشو. دوئ چه كله واوريدل چه زه دكوفې نه راغلم نو زما نه يې تپوس اوكړو. ((من هذا المبتدع الخارج بالكوفة يكنى بأبی حنيفة رحمه الله)) دا په

(۱) ۳۲۳|۱ باب ذكر قوله ﷺ من كان كاله امام فقراء ة الامام له قرأة واختلاف الروايات ۱۲_
(۲) مناقب الامام الاعظم صحفه ۳۹|۱

کوفه کښې کوم بدعتی څرګند شوې دې چې د ابوحنيفه په کنيت ياديږي؟

**دعبدالله بن مبارک رحمه الله حکمت عملی:** عبدالله بن المبارك فرمائی چه مادغه وخت ځه تفصيلی جواب ورکول مناسب اونه ګڼړل او خپل ځائې ته واپس راغلم البته روستو مې دا اوکړل چه د امام ابوحنيفه رحمه الله مستنبط کړې فقهی مسائل کوم چه ما سره موجود وو درې ورځوکښې مې د هغې يوه مجموعه تياره کړله او د دې په شروع کښې مې دقال ابوحنيفه رحمه الله په ځائې قال النعمان بن ثابت اوليکل اودا مې په دريمه ورځ امام اوزاعی ته راوړل دوی ددې مطالعه اوکړله اوځمانه يې تپوس اوکړو ((من النعمان؟ قلت أبوحنيفة الذي ذكرته)) دې څخه پس مې اوليدل چه امام اوزاعی د امام ابوحنيفه رحمه الله سره ملاقات اوشو دواړو کښې په هغه مسائلو خبرې اوشوې چه د کومو مسائلو ذکر ما اوزاعی ته وړاندې کړې وو امام اعظم رحمه الله دا مسائل زما د بيانولو نه په زيات وضاحت سره بيان کړل نو چه کله امام ابوحنيفه رحمه الله لاړلو نو ما د امام اوزاعی څخه تپوس اوکړو ((كيف رايته)) تاسو دوی څنګه اوليدل؟ نو دوئ جواب راکړو ((غبطت الرجل لكثرة علمه ووفور عقله أستغفر الله لقد كنت في غلط ظاهر الزمه فانه بخلاف ما بلغني عنه)) يعنی ما د دې سړی سره د هغه د زيات علم او د کامل عقل د وجې غبطه اوکړه.يقينا زه په ښکاره غلطئ کښې وم او د الله تعالی څخه د هغه غلطئ بښنه غواړم چې ما په امام ابوحنيفه بآندې کومې تړلې وې ته دې لازم اونيسه ځکه چې دې د هغه خبرو په خلاف وو کومې چې ماته رارسيدلې وې (يعنی په هغوی کښې هغه خبرې نه وی کومې چې ماته رارسيدلې وې چې د قياس ته په حديث ترجيح ورکوی)

البته چه کومو اهل علم ته دامام صاحب باره کښې حقيقت معلوم نه شو هغوئ په خپل پخوانی موقف قائم پاتې شول د خپل اخلاص د وجې هغوی به انشاء الله معذور وی خو د دوئ قول د داسې خلقوپه مقابله کښې حجت نشی جوړيدې چه کوم د امام صاحب حقيقت څخه واقف وو.

**د بحث خلاصه:** خلاصه دا چه په علم حديث کښې د امام ابوحنيفه رحمه الله مقام ډير اوچت دې او چه د کومو حضراتو ده څخه کدورت وو هغه د غلطې پروپيګنډې په وجه وو. هم دغه وجه ده چه کومو حضراتو په انصاف سره د امام صاحب د حالاتومطالعه کړې ده. هغوی دې نتيجې ته رسيدلی دی چه علم حديث کښې هم امام صاحب د اوچت مقام خاوند وو او په ده اعتراضات صحيح نه دی.

**دامام اعظم باره کښې د نواب صديق حسن خان رائې:** بلکه نواب صديق حسن خان صاحب په خپل کتاب ..التاج المكلل،، کښې د امام ابوحنيفه رحمه الله تذکره کوی او د دوئ د فقه او د

ورع تعریف کوی او اخر کښې لیکی ((ولم یکن یعاب بشئ سوی قلة العربیة)) په ده باندې د عربیت د علم د کمی څخه سوا بل څه عیب نه وو لګیدلې

**د نواب صاحب ۵ جرح عدم صحت:** دلته نواب صاحب دعلم حدیث په اعتبارسره په امام ابوحنیفه رحمه الله هیڅ الزام نه دې لګولې، البته دقلت عربیت الزام پرې لګولې دې، اودا الزام هم څه صحیح نه دې په اصل کښې دا جمله د نواب صاحب نه ده بلکه د قاضی ابن خلکان ده. "وفیات الاعیان" نه ئې رانقل کړې ده خوورانډې پخپله قاضی ابن خلکان د دې الزام تردیدې کړې دې

**په امام اعظم د قلت عربیت الزام لیګیدو واقعه:** قاضی ابن خلکان لیکلي دی چه په امام صاحب چه کوم د قلت عربیت الزام لګیدلې دې ددې بنیاد صرف یوه واقعه ده او هغه دا چه یو ځل امام ابوحنیفه رحمه الله په مسجدحرام کښې ناست وو. نو دلته یو مشهورنحوی د دوئ څخه تپوس اوکړو چه که یوسړې څوك په کاڼړې اولی اوهلاك یې کړی نو په ده به قصاص وی اوکه نه؟ امام صاحب اوفرمائیل نه په دې دې نحوی په تعجب سره اووئیل: ((ولو رماه بصخرة)) که هغه په غټه ګټه اولی نو بیا څه حکم دې؟ په دې امام صاحب اوفرمائیل ((نعم ولو رماه باباقبیس)) آو هم دغه حکم دې اګرکه په ابی قبیس غر یې اولی په دې څخه دې نحوی دا مشهوره کړه چه امام صاحب په عربیت کښې مهارت نه لری ځکه چه بابی قیس وئیل پکار وو

**د قاضی ابن خلکان تصویب:** خوقاضی ابن خلکان لیکی چه په امام صاحب دا اعتراض صحیح نه دې ځکه چه بعضې قبائیل عرب کښې د اسماء سته مکبرؤاعراب په حالت جری کښې هم په الف سره وی لکه دیوشاعر مشهور شعر دې.

إن أباها أبا أباها　　قد بلغا في المجد غايتاها

دلته دقاعدې په بناء ((أبا أبيها)) وئیل پکار وو خو شاعرحالت جری کښې هم اعراب په الف سره ظاهرکړو د دې وجې د امام ابوحنیفه مذکوره قول د عربو د دې قبیلې د لغت مطابق وو. صرف دا واقعه بنیاد جوړول او په امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله غوندې شخصیت باندې د قلت عربیت الزام لګول ناانصافی ده. دلته د دې بحث مختصرخلاصه ذکر شوه. تفصیل د علامه ظفراحمدعثمانی کتاب ((إنجاء الوطن من الازدراء بامام الزمن رحمه الله)) کښې کتلې شی.

④ **د امام اعظم رحمه الله په باره کې د سفیان ثوری قول:** څلورم اعتراض دا کیږی چه امام بخاری

په تاريخ صغير كښې د نعيم ابن حماد په حواله روايت كړې دې. [1] چه كله د امام ابوحنيفه رحمه الله وفات شو خبر د سفيان ثورى مجلس ته اورسيدو نو دوئ اوفرمائيل ((الحمدلله كان ينقض الإسلام عروة عروة ما ولد في الإسلام أشئم منه)) الله تعالى لره تعريف دې چه دې مړ شو ځكه ده به د اسلام يوه يوه كړئ ماتوله په اسلام كښې د ده څخه سپيره ځوك نه دې پيدا شوې.

**جواب: د ابوحنيفه رحمه الله په باره كښې د نعيم موضوعى روايت:** ددې جواب دا دې چه دا روايت بلا شبه غلط دې ددې په باره كښې امام بخارى خومتهم نه شې كيدې دوئ چه څنګه اوريدلې وو هم هغه شان ئې نقل كړې دې دا نعيم بن حماد د امام ابوحنيفه رحمه الله په باره كښې سخت متعصب دې. د دې وجې د دې روايت دتكذيب دپاره دومره وئيل كافى دى چه دا د نعيم بن حماد څخه مروى دې ځكه چه حافظ ابن حجر په،،تهذيب التهذيب،،كښې د حديث د ځو امامانو څخه نقل كړى دى. چه اګر چه بعضې خلقو د نعيم توثيق كړې دې خو دې د امام ابوحنيفه رحمه الله په باره كښې دروغ روايات نقل كوى. حافظ فرمائى ((يروى حكايات في ثلب أبي حنيفة كلها كذب)) ددې جملې څخه پس ددې حكايت جواب وركولو ته هډو ضرورت نشته.د سوچ خبره ده چه سفيان ثورى دا خبره څنګه كولې شى. ځكه چه دې پخپله د امام صاحب شاګرد دې. لوتقريبا نوى فيصده مسائلو كښې د امام ابوحنيفه رحمه الله موافق وو.

**د سفيان ثورى د امام اعظم دپاره اودريدل:** پخپله امام ابوحنيفه د دوئ د رور دتعزيت دپاره دوى له راغلونو سفيان ثورى په خپله حلقهٔ درس كښې اودريدو او ددوئ استقبال يې اوكړو. بعضې حاضرينوپه دې تعظيم اعتراض اوكړو. نو امام سفيان ثورى جواب وركړو ((هذا رجل من العلم بمكان فان لم اقم لعلمه قمت لسنه وان لم قم لسنه قمت لفقهه وان لم اقم لفقهه قمت لورعه [2]) دا سړې د علم هغه مقام ته رسيدلې دې چې مادپاره پكار وو چې زه د ده د علم د وجې اودريدلې وې اوكه علم هم نه وو نو زه به د ده د مشرئ د وجې اودريدم اوكه د مشرئ د وجې هم نه اودريدم نو زه به د ده د فقاهت د وجې اودريدم اوكه د ده د فقاهت د وجې هم نه اودريدم نو د ده د پرهيزګارئ د وجې به اودريدم. دې څخه ظاهره ده چه سفيان ثورى به د امام ابوحنيفه رحمه الله خومره عزت كولو.

**امام بخارى رحمه الله ولې دروغ قصه نقل كړه:** دلته دا سوال كيدې شى چه د امام بخارى غوندې جليل القدر محدث داسې دروغ قصه څنګه روايت كړه؟

[1]) ذكرالبخارى فيمن مات فيما بين اربعين اومائة الى خمسين ومائة من التاريخ الصغير ص.١٧١) طبعة المكتبة الاثرية شيخوپوره ١٢

[2]) تاريخ بغدادى ٣٤١\١٣

**جواب:** د دې جواب دا دې چه د امام ابوحنیفه رحمه الله خلاف تعصب لرونکو امام بخاری د امام ابوحنیفه رحمه الله خلاف مکدرکړې وو د دې وجې دوئ ته دنعیم بن حماد په روایاتوکښې هیڅ خرابی نه محسوسیده. دحاسدینودسازش نه علاوه د امام بخاری د تکدریو سبب دا هم دې چه د امام بخاری رحمه الله استاذ حمیدی ظاهری المسلك وو. او ظاهریه د همیشه راسې د احنافو خلاف غیظ او غصه لری نو امام بخاری هم د خپل استاذ د اثراتوڅخه خالی نه وو.

**د سفیان ثوری د خپلې سابقه رائې څخه رجوع:** شیخ عبدالوهاب شعرانی رحمه الله په،،المیزان الکبری،، کښې نقل کړی دی چه شروع کښې سفیان ثوری رحمه الله هم د بعضې خلقو ددې خیال څخه متاثر وو. چه امام صاحب قیاس لره په نصوصو ترجیح ورکوی چنانچه یو ورځ سفیان ثوری رحمه الله مقاتل بن حیان، حماد بن سلمه او جعفرصادق رحمه الله دوئ ته ورغلل اوپه ډیرو مسائلو باندې یې د سحر څخه ترماسپخین پورې خبرې اوکړې په دې کښې امام صاحب د خپل مذهب دلائل پیش کړل. آخرکښې دې ټولوحضراتود امام صاحب لاسونه ښکل کړل.او دوی ته ئې اووئیل «أنت سید العلماء فاعف عنا فیما مضی منا من وقیعتنا فیك بغیرعلم» ته د عالمانو سرتاج ئې مونږ ته هغه څه معاف کړه چې مونږ ستا په باره کښې وئیلی وو اود هغې دحقیقت مونږ ته علم نه وو.

⑤ **د ولید بن مسلم جرح:** یواعتراض داهم کیږی چه ولیدبن مسلم وائی ((قال مالك بن انس ایذکرابوحنیفة رحمه الله فی بلادکم قلت نعم فقال ماینبغی لبلادکم ان تسکن)) آیا د ابوحنیفه ستاسو په علاقه کښې ذکر کیږی ما ورته اوئیل آوهغوی اوفرمائیل مناسب نه دی چې ستاسو په علاقه کښې اوسیدل مناسب نه وی.

**جواب:** ددې جواب کښې شیخ عبدالوهاب شعرانی رحمه الله په،،المیزان الکبری،، کښې وائی چه حافظ فرمائی ددې روایت راوی ولیدبن مسلم ضعیف دې اوکه بالفرض د امام مالك دا قول ثابت هم شی نو د دې مطلب به دا وی چه په کوم ښارکښې د امام ابوحنیفه رحمه الله غوندې عالم وی نو هلته دبل عالم ضرورت نشته.

⑥ **په صحاح سته کښې د امام اعظم عدم ذکر:** یو اعتراض دا کیږی چه د امام ابوحنیفه رحمه الله روایات په صحاح سته کښې نشته د دې څخه معلومیږی چه د صحاح سته د مصنفینو په نیز دې قابل استدلال نه وو.

**عدم ذکر عدم صحت لره مستلزم نه دې:** ددې جواب دا دې چه دا ډیرعامیانه اعتراض دې ددې حضراتودیوجلیل القدرامام څخه روایات په خپل کتاب کښې نه ذکرکول د هغه تضعیف لره مستلزم نه دی ښکاره خبره ده چه ① امام بخاری رحمه الله د امام شافعی رحمه الله یو

روايت هم نه دي راغستي.

② بلکه امام احمد بن حنبل رحمه الله چه د امام بخاري رحمه الله استاذ دي اودوئ سره يې ډير صحبت کړي دي. د هغوی هم په ټول بخاري کښې صرف دوه روايتونه دي يو تعليقاً منقول دي او بل امام بخاري رحمه الله د ځاپه واسطه روايت کوی.

③ دغه شان امام مسلم خپل صحيح کښې د امام بخاري رحمه الله نه هيڅ روايت نه دې نقل کړي حال دا دي چه دي ددوئ استاذ دي.

④ دغه شان امام احمد رحمه الله په خپل مسند کښې د امام مالك رحمه الله صرف درې روايتونه ذکر کړی دی. حال دا دې چه د امام مالك سند "اصح الاسانيد،، دې آيا د دې څخه دا نتيجه راوځی چه امام شافعي رحمه الله، امام مالك رحمه الله، امام احمد رحمه الله درې واړه ضعيف دی.

**د ضائع کيدونکو احاديثو دروايت کولو زيات اهتمام کول:** په دې معامله کښې حقيقت هغه دې کوم چه علامه زاهد الکوثري رحمه الله د «شروط الائمة الخمسة للحازمي» په حاشيه کښې ليکلی دی چه حقيقت کښې د صحاح سته د مصنفينو مقصد دا خبره وه چه هغه احاديث زيات نه زيات محفوظ کړی شی چې دکومو د ضائع کيدو خطره وه. په خلاف د امام ابوحنيفه رحمه الله، امام مالك رحمه الله، امام شافعي رحمه الله او د امام احمد رحمه الله په شان حضراتو چه ددوی دتلامذو او مقلدينو تعداد دومره زيات وو چه ددوئ درواياتو ضائع کيدو يره نه وه. د دې وجې دوئ ددې دحفاظت زيات ضرورت محسوس نکړو.

⑤ **قياس ته په نصوصو ترجيح ورکول:** په امام ابوحنيفه رحمه الله دټولونه لوې اعتراض دا کيږی چه دې قياس په نصوصوباندې مقدم کوی.

**جواب: ضعيف حديث ته هم په قياس ترجيح ورکول:** ددې جواب دا دې چه دا خبره د واقعه څخه بالکل خلاف ده. د دې په عکس امام صاحب خوکله کله د متکلم فيه حديث د وجې هم قياس پريږدی. لکه د نقض الوضوء بالقهقه په مسئله کښې دوئ قياس ترك کړې دې حال دا دې چه دې باب کښې احاديث متکلم فيه دی. او نورو امامانو دا پريښې دې اوپه قياس يې عمل کړې دې.

**دامام اعظم په باره کښې د امام شعرانی قول:** دې مسئله کښې شيخ عبدالوهاب شعراني رحمه الله چه پخپله شافعي المسلك دې پخپل کتاب "الميزان الکبری" کښې يو مستقل فصل قائم کړې دې ((فصل فی بيان ضعف قول من نسب الامام اباحنيفة إلى انه يقدم القياس على حديث رسول الله صلى الله عليه وسلم)) دې فصل کښې دې ليکی:

پوهه شه چې دا کلام چې امام ابوحنيفه د نصوصو په مقابله کښې قياس اخلی د هغه چا څخه نقل شوې دې چې دامام ابوحنيفه سره تعصب ساتی او په خپله خبره کښې پرهيزګار

نه دي او د الله تعالى د دې قول څخه غافل دی ((إِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ كُلُّ أُولَٰئِكَ كَانَ عَنْهُ مَسْئُولًا○)) بې شکه غوږ، سترګه او زړه د دې ټولو په باره کښې به تپوس کولې شي او د الله تعالى د دې قول څخه غافله دې، ،انسان چې څه هم د خلې څخه راوباسي نو د ده سره ليکونکي فرښته تياره موجوده وي،،

**د دې نسبت په ترديد کښې پخپله د امام اعظم قول:** او امام ابوجعفر الشيزاماري (د بلخ يو کلي ته نسبت دې) په متصل سند سره د امام ابوحنيفه څخه نقل کړې دی چې په الله قسم هغه کس په مونږ باندې دروغ جوړ کړې دی څوک چه زمونږ باره کښې دا وائي چې مونږ د نص په مقابله کښې قياس وړاندې کوو.آيا د نص څخه پس قياس ته څه ضرورت پاتې کيږي او امام ابوحنيفه رحمه الله به فرمائيل مونږ صرف د سخت ضرورت په وخت کښې قياس کوو.اودا په دې طريقه چې د ټولو څخه وړاندې مونږ د يوې مسئلې دليل په قرآن يا په سنت يا د صحابؤ په فيصلو کښې ګورو.که مونږ په دې کښې دليل بيا نه مومو نو په دغه وخت کښې مونږ قيا س کوو.او په يو روايت کښې دی چې دوی به فرمائيل کوم روايت چې مونږ ته د رسول الله ﷺ څخه راشي نو په سرسترګو ئې منو او زما مور او پلار دې د هغوی څخه قربان شی.او زمونږ هيڅ څه مخالفت نه وی.او کوم روايت چې مونږ ته د صحابؤ څخه راشی نو مونږ په هغې کښې اختيار لرو.اوکوم روايت چې مونږ ته د صحابؤ څخه علاوه د بل چا څخه راشي (لکه تابعين او تبع تابعين) نو هغوی هم سړی دی او مونږ هم سړی يو (هغوی ته نه د نبی ﷺ صحبت حاصل شوې دې.اونه پيغمبران دی چې په مونږ باندې د هغوی هره خبره منل ضروری دی) (۱)

دې نه علاوه شيخ شعرانی رحمه الله ليکی: ((اعلم يا أخي أني لم اجب عن الامام بالصدر واحسان الظن فقط كما يفعل بعض وانما اجبت عنه بعد التتبع والفحص في كتب الادلة ومذهبه اول المذهب تدوينا واخرها انقراضا كما قال بعض اهل الكشف))

⑧ **د امام اعظم اکثر مستدلات ضعيف دی:** په امام ابوحنيفه رحمه الله دا اعتراض هم کيږی چه ددوئ اکثر مستدلات د علم حديث په رڼا کښې ضعيف دی.

**دامام شعرانی قول:** ددې تفصيلی جواب خوبه دهرې مسئلې لاندې انشاء الله راشی. د دې

(۱) اعلم أن هذا الكلام صدر من متعصب على الإمام المتهم في دينه غيرمتورع في مقاله غافلا عن قوله تعالى ((إِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ كُلُّ أُولَٰئِكَ كَانَ عَنْهُ مَسْئُولًا)) وعن قوله تعالى " مايلفظ من قول إلا لديه رقيب عتيد وقد روى الإمام ابوجعفرالشيزاماري نسبة إلى قرية من قرى بلخ " بالسند المتصل إلى الامام ابی حنيفة رحمه الله كذب والله وافترى علينا من يقول عنا إننا نقدم القياس على النص وهل يحتاج بعد النص الى قياس وكان رضی الله عنه يقول نحن لانقيس إلا عند الضرورة الشديدة وذلك إننا ننظر أولا في دليل تلك المسئله من الكتاب والسنة وأقضية الصحابة فان لم نجد دليلا قسنا حينئذ وفي رواية أخرى كان يقول ما جاء عن رسول الله صلى الله عليه وسلم فعلى الراس والعين بابي وامي وليس لنا مخالفة وماجاءنا عن أصحابه تخيرنا وما جاءنا عن غيرهم فهم رجال ونحن رجال)

څخه علاوه ددې مجموعی جواب شيخ عبد الوهاب شعرانی رحمه الله ورکړې دې. هغه ليکی چه ما د ابو حنيفه رحمه الله په دلائلو بنه غور اوکړو. چه د امام صاحب دلائل يا خو د قرآن څخه ماخوذ دی. يا د صحيح احاديثو څخه يا د احاديث حسنو څخه يا د داسې ضعيف احاديثو څخه چه د تعدد طرق په وجې په درجه دحسن کښې دی. دې څخه علاوه هيڅ دليل نشته دې. انتهى كلامه،

د دې څخه علاوه د حديث دتضعيف او دتصحيح چه کوم اصول وړاندې بيان شوی دی که هغه په ذهن کښې اوساتلې شی نو د دې اعتراض اوپه احنافوباندې د نورو اعتراضونو جوابونه په آسانه معلوميدې شی د امام اعظم رحمه الله په باره کښې دومره خبرې ديو منصف دپاره کافی کيدې شی.

**دامام ابو حنيفه د تعارف كتابونه:** زيات تفصيل دپاره به لاندې ليک کتابونه مفيد وی.

① إنجاء الوطن عن الإزدراء بإمام الزمن لمولانا الشيخ ظفر أحمد عثمانی نور الله مرقده

② الرفع والتكميل فی الجرح والتعديل "للإمام عبد الحی لكهنوی رحمه الله مع تعليقه للشيخ عبد الفتاح أبی غدة الحلبی رحمه الله

③ مقدمة التعليقات الممجد على الموطاء للإمام محمد "للشيخ لكهنوی رحمه الله

④ الانتقاء فی فضائل الثلاثة الائمة الفقهاء للحافظ ابن عبد البر الاندلسی رحمه الله

⑤ تبييض الصحيفة فی مناقب الامام ابی حنيفه رحمه الله لجلال الدين السيوطی رحمه الله

والله سبحانه وتعالى اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب

**داماماتو د تقليد مسئله:**

**اطاعت بالذات صرف د الله تعالى پکار دې نه د بل چا:** په هرمسلمان اطاعت په اصل کښې د الله او د هغه د رسول الله ﷺ فرض دې بلکه درسول الله ﷺ اطاعت هم صرف دې وجې کيږی چه دوی ﷺ د الله د احکامو تشريح کړې ده. ګنې د بالذات د تابعدارئ مستحق الله تعالى دې بل څوک نشته خو ظاهره ده چه يو عامی سړی لره خودا ممکن نه ده. چه د الله تعالى سره براه راست خبرې اوکړی اود هغه مرضی معلومه کړی. اونه دا ممکن ده چه رسول کريم ﷺ څخه براه ست رجوع اوکړی. اود الله تعالى د احکامو علم حاصل کړی. د دې وجې د الله تعالى او دهغه د رسول الله ﷺ د اطاعت لاره د دې څخه علاوه بله نشته چه د الله تعالى کلام يعنی قرآن کريم او د نبی کريم ﷺ اقوالو اوافعالو يعنی سنت ته رجوع اوکړې شی.

**قطعی الثبوت اوقطعی الدلالت مسائل:** اوس دقرآن کريم اود سنت بعضې احکام خوداسې دی چه قطعی الثبوت اوقطعی الدلالة دواړه دی. اودې کښې هيڅ ابهام اواجمال نشته

اونه د دلائلو څه تعارض شته، مثلا د زنا حرمت د پنځو مونځونو فرضيت، د روژې، زکاة او حج فرضيت، د محرماتو سره د نکاح عدم جواز وغيره. دا قسم احکام هرسړې دقرآن کريم اوسنت څخه معلومولې شی. د دې وجې دا مسائل خونه د اجتهاد محل دي اونه دتقليد. البته دقرآن اوسنت دويم قسم هغه دې چه هغې کښې څه ابهام يا اجمال يا د دلائلو تعارض وی.

① **د قروء په لفظ کښې تعارض:** مثلاً دقرآن کريم ارشاد (( وَالْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ ثَلَاثَةَ قُرُوءٍ)) دې کښې قروء په لغوی اعتبارسره مشترك دې. د دې معنی حيض هم راځی او طهر هم. دلته دا سوال پيدا کيږی چه دلته د دې په کومه معنی عمل اوشی.

② **د مزارعت په جواز اوعدم جواز کښې تعارض:** دغه شان حديث کښې ارشاد دې: ((من لم يذر المخابرة فليوذن بحرب من الله ورسوله)) [١] يعنی کوم کس چې مزارعت نه پريږدی نو هغه دې د الله تعالی او د هغه د رسول جنګ ته تيار شی. دې کښې د "مخابرة" يعنی د مزارعت ممانعت شوې دې. اوس دمزارعت څوصورتونه دی او حديث کښې د دې بيان نشته چه کوم صورت جائز اوکوم ناجائز دې؟

③ **په قراءت خلف الامام کښې تعارض:** يا مثلاً يوطرف ته حديث کښې ارشاد دې ((لا صلاة لمن لم يقرأ بفاتحة الكتاب)) [٢] دهغه چا مونځ نه کيږی څوك چې سورة فاتحه اونه وائی. د دې حديث د ظاهر تقاضا دا ده چه قراءت فاتحه په امام مقتدی اومنفرد ټولوفرض ده خو دويم حديث کښې ارشاد دې ((من كان له إمام فقراءة الإمام له قراءة)) [٣] چې د چا امام وی نو د امام قراءت د هغه قراءت دې. ددې تقاضا دا ده چه په مقتدی باندې هيڅ قسم قراءة واجب نه دې.

**د قراءت په مسئله کښې د تعارض رفع کول:**

① ددې ظاهری تعارض رفع کولو دپاره يو صورت خو دا دې چه داسې اووئيلې شی چه رومبې حديث اصل دې او دويم حديث کښې د قراءت څخه مراد قراءت فاتحه نه ده بلکه قراءت سورة مراد دې.

② او دويم صورت دا دې چه داسې اووئيلې شی چه دويم حديث اصل دې او رومبی حديث کښې خطاب صرف امام اومنفرد ته دې مقتدی ته نه دې. اوس په دې دواړو

[١] لفظه لابی داؤد ٢\٤٨٣ باب فی المخابرة ورواه الطحاوی فی شرح معانی الاثار ٢\فی كتاب المزارعة والمساقاة ١٢_

[٢] بخاری ١\١٠٤ كتاب الصلوة باب وجوب القراءة للامام والماموم والصلوة كلها فی الحظر والسفرومايجهرفيها ومايخافت ١٢_

[٣] رواه الطحاوی فی شرح معانی الاثار ١\١٠٦ فی باب القراءة خلف الامام_

صورتونو كښې كوم صورت اختيارکړې شي ؟ دغه شان مسائل دقرآن او سنت په تشريح كښې په كثرت پيدا كيږي.

**په متعارض صورت كښې په خپل عقل اعتماد كول:** په داسې موقعو عقلاً دوه صورتونه ممكن دي يوصورت دادې چه داسې معاملاتوكښې مونږ په خپل عقل اوخپل علم باندې اعتماداوکړو اويوجانب متعين کړو اوپه هغې عمل اوکړو.

**په متعارض صورت كښې د مجتهد په اجتهاد اعتماد كول:** اودويم صورت دا دې چه مونږ په خپل عقل اوعلم باندې د اعتمادکولو په ځائې ديته اوګورو چه زمونږ جليل القدر اسلافو دې معاملاتوكښې څه طرز عمل اختيارکړې وو.اوپه اسلافو كښې چه زمونږ دكوم مجتهد عالم په علم زيات اعتما د وى د هغه په قول عمل اوکړو دې دويمې طريقې ته اصطلاحاًتقليد وائي.

**زمونږ علم او تقوى د اسلافو په مقابله كښې:**كه انصاف سره غوراوكړې شي نودې كښې هيڅ شبه نه پاتې كيږي چه دې دواړو طريقوكښې رومبئ طريقه زياته خطرناكه ده. او دې كښې د ګمراهئ زيات امكانات دى. ځكه چه دې حقيقت نه څه خوك بد ترين جاهل انكاركولې شي چه زمونږ د علم اوتقوى د اسلافو دعلم اودتقوى سره هيڅ نسبت نشته

**دمجتهدينو عهد رسالت ته نزديكت:**ائمه مجتهدين خو اول زمونږ په مقابله كښې عهد رسالت ته ډيرزيات نزدې وو د دې وجې هغوى زمونږ په نسبت د قرآن پاك د نزول د ماحول څخه ښه واقف وو.او دغه شان د نبى كريم ﷺ د ارشاداتو دپوره پس منظر څخه هم ښه واقف وو.

**د مجتهدينو قوت حافظه:** دويم دې حضرات ته چه الله تعالى كوم قوت حافظه اوكوم علم وفضل وركړې وو. زمونږ علم اوحافظه هغې ته نشى رسيدې. د دې امتحان او معلومات هر هغه وخت لګيدې شي.

**دمجتهدينو ورع او تقوى:** دريمه الله تعالى دخپل او د خپل رسول الله ﷺ دكلام حقائق او معارف هغه كس ته نه ښكاره كوى كوم چه دده نافرمانوته ملا تړلې وى د دې وجې د قرآن او سنت په صحيح مرادپوهيدو دپاره دعلم سره سره دتقوى زيات ضرورت دې په دې لحاظ هم چه كله مونږه دخپلوحالاتوموازنه دائمه مجتهدينو سره كوو. نو بلاشبه د زمكې او د آسمان نسبت دې.

**د منصف مزاج طريقه كار:** ددې وجې به هر انصاف پسند سړې په دغه دوؤ لاروكښې لازماً هم دغه د احتياط لاره اختياروى چه پخپل عقل اوپه علم د اعتمادكولو په ځائې په ائمه مجتهدينوكښې د چاپه عقل اوپه علم اعتماد اوكړى او د دې مطابق عمل اوكړى. او دې ته په اصطلاح كښې تقليد وائي

**د تقلید تعریف:** دتقلید تعریف اصولیانو داسې کړی چه ((العمل بقول إمام مجتهد من غیرمطالبة دلیل)) د امام مجتهد په قول باندې بغیر د دلیل د غوښتلو څخه عمل کولو ته تقلید وائی.

**د غیر مقلدینو اعتراض:** غیرمقلدین په دې تعریف دا اعتراض کوی چې هرکله بغیر د دلیل څخه د چا قول باندې عمل کولې شی نو دا خو هغه ته د شارع حیثیت ورکول دی.او دا خو یو قسم شرك دې چې د مجتهد قول ته د شارع د قول حیثیت ورکولې شی.

**د اعتراض څخه جواب:** خودتقلید چه کوم حقیقت پورته بیان شو د دې په بناء دا اعتراض پخپله ختمیږی ځکه چه دمجتهدقول په دې خیال نشی اختیارولې چه دې مُطاع یا شارع دې بلکه د شارح په حیثیت دده په شرح اعتماد کولې شی.

**په غیر صریحی مسئلو کښې تقلید کولی شی:** ددې واضح دلیل دا دې چه دقرآن اوسنت چه کوم احکام قطعی الثبوت اوقطعی الدلالت دی. هغې کښې مونږ یو امام مجتهدته رجوع نه کوو بلکه مجتهدته رجوع صرف په هغه معاملاتوکښې کوو چه کوم ځائې د اجمال یا ابهام یا دتعارض په بناء دقرآن اوسنت په تشریح کښې څه مشکل راپیښ شی.

**دمجتهد بالذات اطاعت نشی کولې:** اودتقلید په تعریف کښې د((من غیرمطالبة دلیل)) د الفاظوڅخه دې څوك په دې مغالطه کښې نه پریوځی چه ګنی د مجتهد بالذات اطاعت کیږی بلکه حقیقت دا دې چه مجتهدته رجوع صرف په دې وجه کیږی چه زمونږ پرې اعتماد وی چه ده سره په خپل قول دقرآن یا د حدیث څخه څه مضبوط دلیل شته. البته مونږ د دوئ څخه د دلیل د بیانولو مطالبه ځکه نه کوو چه په دلائلوکښې د فیصلې د پاره چه کوم قوت اجتهادی پکار دې هغه په مونږ کښې نشته ددې وجې مونږ د مجتهد دقول اختیارولو دپاره د ده په دلیل پوره پوهیدل شرط نه ګرځوو چنانچه په ډیرو معاملاتو کښې د مجتهد دلیل زمونږ په پوهه کښې راځی اوډیرو معاملاتو کښې نه راځی په دې سره د غیر مقلدینو دا اعتراض هم ختمیږی چه کله تقلید د بې دلیل عمل نوم دې نو بیا مقلدین په خپلو تصنیفاتو اوتقریرونوکښې د دلائلوڅخه بحث ولې کوی؟

**جواب:** دجواب حاصل دا دې چه د مجتهد په دلائلو ځان پوهه کول دا دتقلید منافی نه دې البته په مطالبه ددلیل باندې دامام پیروی موقوف ساتل دتقلید منافی دې په دې وجه د دلائلو علم حاصلولو کښې چه څومره کوشش هم اوشی.د دې څخه د تقلید مخالفت نه لازمیږی.

**تقلید غیرشخصی:** بیا دتقلید دوه قسمونه دی یو صورت خودا دې چه دتقلید دپاره یو امام او مجتهد متعین نه کړې شی بلکه په یوه مسئله کښې دیوامام دقول تقلید اوشی اوپه

بله مسئله کښې دبل امام دقول تقلید اوشی دې ته تقلید مطلق یا تقلید غیر شخصي وائی
**تقلید شخصی:** اودویم صورت دا دې چه دتقلید دپاره دیوامام تعین اوشی اوپه هره مسئله کښې ده ته رجوع کولې شی. دې ته تقلید شخصي وائی د دې دواړو قسمونو حقیقت ددې څخه زیات نه دې چه کوم سړې براه راست دقرآن اوسنت څخه د احکامو داستنباط صلاحیت نه لری هغه د داسې امام په قول اعتماد کوی چه دعلم اوتقوی په لحاظ سره دده په نظرکښې قابل اعتماد وی، اودا هغه څیز دې چه د دې جواز بلکه وجوب دقرآن وسنت څخه ثابت دې.

## قرآن کریم اوتقلید:

دتقلید دپاره اصول هدایت خو پخپله قرآن کریم کښې شته.

① **د،،اولی الامر،، څخه مراد مجتهدین:** سورة نساء کښې ارشاد دې ((يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ)) دې آیت کښې د ،،اولی الامر،، داطاعت حکم شوې دې.

**د آیت اول تفسیر:** د ،،اولوالامر،، تفسیر بعضې حضراتوپه امیرانو اوحکمرانانو سره کړې دې.

**د آیت دویم تفسیر:** خو د مفسرینویوې لوې ډلې فرمائیلی دی چه دې څخه مراد علماء مجتهدین دی، حضرت عبدالله بن عباس، حسن بصری، عطاء بن ابی رباح، عطاء بن السائب اوابوالعالیه رحمهم الله وغیره څخه هم داتفسیر منقول دې.کمافی تفسیرابن جریر اوامام رازی په تفسیرکبیر کښې هم دا راجح ګرځولې دې. د دې تفسیر مطابق دا آیت د تقلید واضح دلیل دې ځکه چه دې کښې د الله تعالی او د رسول د اطاعت سره د مجتهدینو عالمانو د اطاعت هم حکم ورکړې شوې دې. نوګویا د آیت مفهوم دا دې چه دالله تعالی اودهغه درسول د اطاعت طریقه داده چه د عالمانو اطاعت دې اوکړې شی.

**اعتراض:** په دې بعضې غیرمقلدین دا اعتراض کوی چه هم دې آیت کښې وړاندې ارشاد دې((فَإِن تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ)) یعنی که ستاسو په یوه مسئله کښې څه اختلاف راشی نو هغه مسئله الله او رسول ته یوسئ، نو ددې تقاضا دا ده چه په علماؤ کښې اختلاف وی نو هلته د یو د تقلیدکولو په ځائې د الله تعالی او ذهغه رسول ته رجوع کول پکار وی یعنی داکتل پکار دی چه کوم یوقول دقرآن اوسنت زیات مطابق دې اودا کتل دتقلید منافی دی.

**جواب:** ددې جواب دادې چه((فَإِن تَنَازَعْتُمْ)) کښې خطاب مجتهدینوته دې عواموته نه دې یعنی دا د مجتهدینو کار دې چه دوی په اختلا فی مسائلوکښې دا اوګوری چه کوم حکم اوفق بالکتاب والسنة دې لکه مشهور اهل حدیث عالم نواب صدیق حسن خان صاحب

په خپل تفسیر "فتح البیان" کښې ددې آیت لاندې لیکی ((والظاهر أنه خطاب مستأنف موجه للمجتهدین)) یعنی ظاهره دا ده چې دا د ابتداء څخه مجتهدینو ته خطاب دې، او چه کله دا خطاب مجتهدینو ته شو نو ددې د تقلید سره هیڅ تعارض پاتې نشو.

② **د اولی الامر څخه مراد فقهاء دی:** په سورة نساء کښې ارشاد دې ((وَاِذَا جَآءَهُمْ اَمْرٌ مِّنَ الْاَمْنِ اَوِ الْخَوْفِ اَذَاعُوْا بِهٖ ؕ وَلَوْ رَدُّوْهُ اِلَى الرَّسُوْلِ وَاِلٰٓى اُولِى الْاَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِيْنَ يَسْتَنْۢبِطُوْنَهٗ مِنْهُمْ ؕ))

**د آیت پس منظر:** ددې آیت پس منظر دادې چه د جنګ په زمانه کښې به منافقینو رنګ په رنګ افواه ګانې خورولې او بعضې ساده مسلمانانو به په دې افواه ګانو اعتماد کولو او وړاندې به یې خورولې. دغه شان به غلطې افواه ګانې په ښار کښې خورې شوې او دې سره په بدنظمې پیدا شوه. قرآن کریم کښې ارشاد اوشو. چه مسلمانانو لره پکار دی چه کله څه افواه واوری نو ددې د خورولو څخه وړاندې دې فقهاؤ اصحابو ته رجوع کوی او هغوی ته دې اووائی چه هغوی د معاملې تل ته اورسیږی او مناسب کاروائی اوکړی.

**استدلال:** دا آیت اګرچه دیوې خاص واقعې سره متعلق دې خود اصول تفسیر مسلمه قاعده ده چه ((العبرة لعموم اللفظ لالخصوص السبب)) یعنی اعتبار د لفظ عموم لره وی د خاص سبب نه وی. د دې وجې په دې آیت کښې د تقلید اصولی جوازشته لکه امام رازی رحمه الله په تفسیر کبیر کښې او امام ابوبکر جصاص رحمه الله په احکام القرآن کښې ددې څخه د تقلید په مشروعیت استدلال کړې دې. بعضې غیر مقلدین دا هسې لرې اوبعید استدلال ګڼړی. خو پخپله نواب صدیق خان صاحب په تفسیر "فتح البیان" کښې ددې آیت څخه په حجیت قیاس استدلال کړې دې که د دې نه په قیاس استدلال کول بعید نه دې نو په تقلید هم استدلال کول بعید نه دی.

③ **په معلمینو د حاضرینو د خبرې منلو وجوب:** (( فَلَوْلَا نَفَرَ مِنْ كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَآئِفَةٌ لِّيَتَفَقَّهُوْا فِى الدِّيْنِ وَلِيُنْذِرُوْا قَوْمَهُمْ اِذَا رَجَعُوْۤا اِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُوْنَ ))

په دې آیت کښې تعلیم دې چه ټولو خلقو د پاره په یو کار کښې مشغوله کیدل نه دی پکار بلکه څه خلق دې جهاد اوکړی او څه دې علم حاصل کړی بیا علم حاصلونکی دې ړومبې قسم خلقو ته ددین مسائل اوښائی او ظاهره ده چه په ړومبې قسم خلقو به واجب وی چه ددې خلقو خبره اومنې او هم دا تقلید دې.

④ **غیر عالم به عالم ته رجوع کوی:** (( فَسْئَلُوْۤا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ )) دې آیت کښې دا اصولی تعلیم ورکړې شوې دې چه بې خبره سړې دې خبر دار ته رجوع اوکړی. دلته هم دا آیت اګرچه د اهل کتابو په باره کښې نازل شوې دې خو د((العبرة بعموم اللفظ)) مطابق دا قاعده را اوځی چه غیر عالم دې عالم ته رجوع اوکړی او د دې نوم تقلید دې

## تقليد او حديث:

① **د شيخينو د تابعدارئ حکم:** د حضرت حذيفه رضي الله عنه څخه روايت دې چه ((قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم إني لا أدري مابقائي فيكم فاقتدوا بالذين من بعدي أبي بكر وعمر))[1] ماته علم نشته چې زه به څومره وخت په تاسو کښې موجود يم نو تاسو زما څخه پس د ابوبکر او عمر اقتداء کوئ.

په دې حديث کښې د اقتداء حکم ورکړې شوې دې او لفظ د اقتداء په انتظامي امورو کښې د اطاعت د پاره نه بلکه ديني امورو کښې د اطاعت حکم دې.

② **تابعين دې د صحابؤ اتباع اوکړي:** په صحيح بخاري کښې مروي دي چه بعضې صحابه کرام به جماعت ته روستو راتلل نو نبي کريم ﷺ دوی ته د زر راتلو اوپه ړومبي صفونو کښې د مونځ کولو تاکيد اوکړو او ورته يې ارشاد اوکړو ((ائتموا بي وليأتم بكم من بعدكم))[2]

**يو مطلب:** د دې حديث يو مطلب دا دې چه د ړومبي صفونو خلق دې نبي کريم ﷺ ته ګوري او د نبي عليه السلام اقتداء دې کوي.

**دويم مطلب:** خو د دې دويم مطلب دا هم دې چه صحابه کرام دې د نبي کريم ﷺ مونځ ښه اووينې څکه چه راتلونکې نسلونه به د صحابؤ تقليد او اتباع کوي لکه حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباري کښې د دې حديث شرح کښې ليکلي دي ((وقيل معناه تعلموا مني أحكام الشريعة وليتعلم منكم التابعون بعدكم وكذلك أتباعهم إلى انقراض الدنيا)) او وئيلي شوي دي چې تاسو زما څخه د شريعت احکام زده کړئ او ستاسو څخه پس دې تابعين ستاسو څخه زده کړه اوکړي او د غه شان د هغوی څخه پس خلق دې د هغوی نه تر دنيا ختميدو پورې.

③ **د عامي کس د تاويل ترديد:** په مشکاة کښې د امام بيهقي د "المدخل" په حواله د حضرت ابراهيم بن عبدالرحمن العذري څخه روايت دې چه نبي کريم ﷺ اوفرمائيل ((يحمل هذا العلم من كل خلف عدوله ينفون عنه تحريف الغالين وانتحال المبطلين وتأويل الجاهلين))[3].

**استدلال:** دې حديث کښې د جاهلانو د تاويلاتو مذمت شوې دې او بيان يې کړې دې چه د دوئ د تاويلاتو ترديد په عالمانو فرض دې. دې څخه معلومه شوه چه کوم خلق د قرآن

---

[1] رواه الترمذي وابن ماجه وأحمد (مرقاة المفاتيح ٥٤٩١٥ باب مناقب ابي بكروعمر رضي الله عنهما ١٢_
[2] ((الصحيح البخاري ٩٩١١ كتاب الصلوة باب الرجل يأتم بالإمام و يأتم الناس بالمأموم))
[3] مشكوة المصابيح ٣٦١١ كتاب العلم الفصل الثالث

اوسنت په علوموکښې مجتهدانه بصيرت نه لري هغوئ لره په خپل فهم اعتماد کول اوقرآن اوسنت کښې تاويلات نه دي کول پکار بلکه عالمانوته دې رجوع اوکړي. هغوي څخه دې د دين مسائل معلوم کړي او ددې نوم تقليد دې.

**په دويمه طريقه استدلال:** بيا دلته دا خبره هم قابل غور ده. چه قرآن او سنت کښې تاويلات هغه سړې کولې شي چه دکوم قرآن اوسنت سره څه مناسبت وي خوحديث کښې داسې سري ته هم جاهل وئيلې شوی دی دې څخه معلومه شوه چه دقرآن او سنت څخه د مسائلو د استنباط دپاره لږ ډيرمعلومات کافي نه دي.

## د صحابؤ په زمانه کښې تقليد مطلق

**د عامو صحابؤ فقهاؤ صحابؤ ته رجوع کول:** هم دغه وجه ده چه دصحابؤ په زمانه کښې که د اجتهاد ډيرمثالونه ملاوېږي نو د تقليد هم ډير مثالونه موجود دي يعنې چه کومو صحابؤ به دقرآن اوسنت څخه براه راست د مسائلو استنباط نشوکولې هغوئ به فقهاؤ صحابؤ ته رجوع کوله او د هغوی څخه به يې مسائل معلومول. اوفقهاء صحابؤ به ددې جواب په دوه طريقو ورکولو. کله به يې دليل بيانولو او کله بغيردليل بيانولو څخه. البته دصحابه کرامو ﷺ په زمانه کښې تقليد شخصي ضروري نه ګڼړلې کيدلو. بلکه دتقليد مطلق اوتقليد شخصي دواړو رواج وو.

**په صحابؤ کښې د فتوی رواج:** دتقليد مطلق مثالونه د صحابه کرامو په زمانه کښې بې شميره دي ځکه چه هرفقيه صحابی به په خپله خپله حلقهٔ اثرکښې فتوی ورکوله اونورو حضراتوبه د هغه تقليد کولو. لکه علامه ابن القيم په خپل کتاب "اعلام الموقعين" کښې ليکي ((والذين حفظت عنهم الفتوى من أصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم مائة ونيف وثلثون نفسا ما بين رجل وامرأة)) ترجمه: هغه صحابه کرام چه د هغوی د فتوی ورکولو معلومات محفوظ دی د هغوی تعداد يو سل ديرش نه هم زيات دی په هغوی کښې سړی هم وو او ښځې هم.

**د صحابؤ د عمل تقليد:** ددې حضراتوعامې فتاوی دتقليد مطلق مثال دې بلکه د متعددو رواياتو څخه معلوميږي چه د صحابه کراموصرف د قول نه بلکه دعمل هم تقليد کيدلو. مثلا مؤطا امام مالك کښې روايت دې چه حضرت عمرطلحه ﷺ په حالت د احرام کښې رنګينه جامې اغوستې اوليدلونوپه دوی ئې اعتراض اوکړو. نودوئ جواب ورکړو چه دې رنګ کښې خوشبونشته په دې حضرت عمر ﷺ اوفرمائيل چه ((إنكم أيتها الرهط أئمة يقتدى بكم الناس فلو أن رجلاً جاهلاً رأى هذا الثوب لقال أن طلحة بن عبيدالله قدكان

يلبس الثياب المصبغة في الإحرام فلاتلبسوا أيها الرهط شيئاً من هذ الثياب المصبغة)) [1]
اې د امامانو جماعته په تاسو پسې خلق اقتداء کوی که چرته يو جاهل سړې دا جامې اووينی نو هغه به وائی چې طلحه بن عبيد الله ﷺ به په حالت احرام کښې رنګ شوې جامې اغوستې نو اې جماعته تاسو ددې رنګ شوې جامو څخه هيڅ مه اغوندئ.

**استدلال:** ګورئ په دې روايت کښې حضرت عمر ﷺ حضرت طلحه ﷺ ته فرمائی چې خلق ستاسو په عمل پسې اقتداء کوی او هغه خپل دليل جوړوی معلومه شوه چې د صحابؤ عمل هم قابل تقليد ګڼړلې شو.

**په عهد صحابه کښې تقليد شخصی:**

دغه شان عهد صحابه کښې دتقليد شخصی هم ګڼړ مثالونه ملاويږی د هغې څخه څو لاندې ليکلی شی:

① **د زيد بن ثابت ﷺ تقليد:** په بخاری کښی د حضرت عکرمه ﷺ نه روايت دې ((إن أهل المدينة سألوا ابن عباس رضى الله عنه عن امرأة طافت ثم حاضت قال لهم تنفر قالوا لانأخذ بقولك وندع قول زيد)) [2] يعنی اهل مدينه د ابن عباس ﷺ څخه د هغه ښځې په باره کښې تپوس اوکړو چې طواف اوکړی او بيا حائضه شی. نو ابن عباس ورته اوفرمائيل چې لاړه دې شی هغوی ورته اووئيل مونږ ستا په قول عمل نه کوو چې ستا په قول عمل اوکړو اود حضرت زيد قول پريږدو. اوهم داروايت په معجم اسماعيلی کښې د عبدالوهاب الثقفی په سند سره نقل دې هغې کښې د اهل مدينه دا الفاظ مروی دی ((لانبالي افتتينا أولم تفتنا زيد بن ثابت يقول لاتنفر)) [3] يعنی مونږ څه پرواه نه کوو که ته مونږ ته فتوی راکوئ اوکه نه راکوئ (مونږ ستا په فتوی عمل نه کوو ځکه چې) زيد بن ثابت فرمائی (چې په مذکوره صورت کښې) ښځه به نه ځی. اومسند ابی داؤد طيالسی کښې ددوئ داالفاظ مروی دی ((لانبايعك يا ابن عباس وأنت تخالف زيدا)) [4] يعنی اې ابن عباس مونږ تا سره بيعت نه کوو. حالانکه ته د حضرت زيد مخالفت کوې.

**استدلال:** د دې څخه ښکاره معلوميږی چه دوئ د حضرت زيد بن ثابت ﷺ تقليد شخصی کولو. ددې په بناء دوئ د حضرت ابن عباس ﷺ غوندې صحابی فتوی قبول نه کړله اوددوئ د قول ردکولو وجه ئې ماسوا د دې څخه بله بيان نکړه چه د دوئ دا قول د زيد

---

[1] ) اخرجه الموطا فی الحج فی باب لبس الثياب المصبغة فی الاحرام واحمد فی مسنده ۱۹۳\۱ فی احاديث عبدالرحمن بن عوف ﷺ
[2] ) صحيح بخاری ((۲۳۷\۱ کتاب الحج باب اذا حاضت المراة بعد ما افاضت)
[3] ) فتح الباری ۴۶۸\۳ طبع ميريه ۱۳۰۰ هـ وعمدة القاری ۷۷۷\۴ ۱۲.
[4] ) مسند ابوداؤد طيالسی ۲۲۹\۱ مرويات ام سليم ۱۲_

ﷺ دفتوی خلاف وو. او حضرت ابن عباس ﷺ هم په دوی اعتراض اونکړو. چه تاسو تقلید شخصی کوئ دګناه یا د شرك مرتکب شوئ بلکه دوی دا هدایت اوکړو چه د حضرت ام سلیم ﷺ څخه د مسئلې تحقیق اوکړئ او حضرت زیدبن ثابت ﷺ ته بیا رجوع اوکړئ. اوهمداسي اوشوه او حضرت زید ﷺ د حدیث تحقیق اوکړو اود خپلې سابقه فتوی څخه ئې رجوع اوکړه دمسلم وغیره روایتونوکې دهغوی درجوع بیان شته (۱) بهرحال ددې واقعې څخه داخبره معلومیږی چه اهل مدینه د حضرت زید بن ثابت تقلید شخصی کولو.

② **دعبدالله بن مسعود ﷺ تقلید شخصی:** په بخاری کښې د حضرت هذیل بن شرحبیل څخه مروی دی چه د حضرت ابوموسی اشعری ﷺ څخه څه خلقودیوې مسئلې تپوس اوکړو. دوئ جواب خو ورکړو خوورسره ئې دا هم اووئیل چه ((لاتسئلونی مادام هذا الحبر فیکم)) ترڅو پورې چې په تاسو کښې دا د علم سمندر (یعنی عبدالله بن مسعود ﷺ) موجود وی نو تاسو زما څخه تپوس مه کوئ. (۲)

اود مسند احمد دروایت داالفاظ دی ((لاتسئلونی عن شئ ما دام هذا الحبر بین اظهرکم)) (۳) تاسو زما څخه د یوې مسئلې تپوس هم مکوئ ترڅو چې دا دعلم سمندر په تاسو کښې موجود وی. دلته دحضرت ابو موسی اشعری ﷺ دا مشوره ورکول چه تاسو هره مسئله د ابن مسعود ﷺ څخه تپوس کوئ داتقلید شخصی وو.

③ **د معاذبن جبل ﷺ تقلید شخصی:** په ابوداؤد اوترمذی وغیره کښې مشهوره واقعه ده چه نبی کریم ﷺ حضرت معاذبن جبل ﷺ یمن ته اولیږلو اودوئ ته ئې د شریعت د مآخذو هدایت اوکړلو. په دې واقعه کښې ئې حضرت معاذ ﷺ صرف ګورنرنه وو مقررکړې بلکه قاضی اومفتی ئې هم مقررکړې وو. د دې وجې د یمن دخلقو دپاره د دوی د تقلید کولو څخه سوا بله لاره نه وه نو اهل یمن دده تقلید شخصی کولو.

**اعتراض:** په دې بعضې غیرمقلیدین وائی چه حضرت معاذ ﷺ قاضی وو مفتی نه وو.

**جواب:** خودا خیال بالکل غلط دې په بخاری کښې د حضرت اسود بن یزید ﷺ روایت دې چه ((أتانا معاذبن جبل بالیمن معلمًا أوأمیرًا فسألناه عن رجل توفی وترك ابنة وأخته فاعطی الابنة النصف والاخت النصف)) (۴) دې څخه ښکاره معلومیږی چه دوی د مفتی په حیثیت

---

(۱) ۴۲۷۱۱ کتاب الحج باب وجوب طواف الوداع وسقوطه عن الحائض ۱۲_
(۲) صحیح بخاری ((۹۹۷۱۲ کتاب الفرائض باب میراث ابنة ابن مع ابنة)
(۳) مسنداحمد ۴۶۴۱۱ فی أحادیث عبدالله بن مسعود رضی الله عنه
(۴) صحیح بخاری ((۳۹۷۱۲ کتاب الفرائض باب میراث البنات)

فتوی ورکوله. اوزیربحث مسئله کښې دوی په خپله فتوی څه دلیل هم نه دې بیان کړې او اهل یمن دا قول صرف د تقلید په وجه قبول کړو.

**خلاصه د بحث:** غرض په عهد صحابه کښې دتقلید مطلق اودتقلید شخصی نظائر ډیر دی او واقعه هم دا ده چه د اصل په اعتبارسره دواړه جائزدی. اوپه قرون اولی کښې په دواړو طریقو بغیر د څه انکار عمل کیدلو خوروستنی عالمانو دیوعظیم انتظامی مصلحت په بناء دتقلید مطلق په ځائې دتقلید شخصی التزام کړې دې.

**د هوی تابعداری:** په دې مصلحت دپوهیدودپاره په ذهن کښې دا راوستل ضروری دی چه اتباع هوی دقرآن کریم دبې شمیره تصریحاتومطابق ډیرسخت مرض دې. بیا اتباع هوی یوخو دا ده چه انسان حرام حرام اوګڼړی اوارتکاب یې اوکړی. اودې څخه هم بدترین صورت دا دې چه انسان داتباع هوی د وجې د حرام د حرمت څخه انکاراوکړی. دا شکل ځکه ډیر خراب دې چه دې کښې انسان ته په خپل فعل ندامت هم نه وی.

**د تقلید مطلق ممانعت:** فقهاء کرامو دا محسوس کړه چه په قرون اولی کښې دیانت عام وو نو دغه وخت په تقلید مطلق کښې داتباع هوی څه خطره نه وه خو روستو د دیانت هغه معیار باقی پاتې نشو. نوکه دتقلید مطلق دا دروازه بالکل لرې پرینښودې شی نوخلقو به خپل نفس د خواهشاتو مطابق چه دکوم امام په قول کښې ډیره آسانی وینی هغه به ئې اختیاروی او دا لویه ګمراهی ده چه په دې کښې د چا شك هم نه راځی چې دا د اسلام څخه خلاف دی بکله هر یو کس په دې باندې پوهیږی چې دا طریقه د اسلامی تعلیماتو بالکل خلاف ده. پخپله علامه ابن تیمیه رحمه الله دا طرز عمل ډیر مذموم ګرځولې دې چه دنفسانی خواهشاتوپه اتباع کښې کله دیوامام قول اختیارشی اوکله دبل.

حقیقت دا دې چه که ددې خبرې آزادی ورکړې شی چه دکوم مجتهدقول دې خوښ شی هغه اختیارکړه. نو ددین څخه به توقې جوړې شی ځکه چه اکثرو مجتهدینو په اقوالو کښې څه ناڅه منفرد اقوال داسې ملاویږی چه د خواهشات نفس مطابق وی

**په سهولت مبنی منفرد اقوال:** ① مثلاً د امام شافعی رحمه الله په نیز دشطرنج لوبه جائزده.

② حضرت عبدالله بن جعفر طرف ته د موسیقی د جواز نسبت شوې دې.

③ حضرت قاسم بن محمد ته منسوب دې چه ده به بې سوری تصویر ته جائز وئیلې.

④ مالکیانو کښې امام سحنون ته منسوب دی چه دې د خپلې زوجې سره وطی فی الدبر ته جائز وائی.

⑤ دامام اعمش څخه منقول دی چه دده په نیز روژه د نمر ختلو څخه نیول شروع کیږی.

⑥ د ابن حزم ظاهری مذهب دا دې چه دکومې ښځې سره دې د نکاح اراده وی هغې ته په برینډه کتل هم جائزدی.

⑦ دغه شان د دوی مسلك دا دې چه که دیوې ښځې دیوسړې څخه پرده کول مشکل وی نو هغې لره جائزدی چه دې بالغ سړې باندې دخپل تې پئې اوڅکی داسې به حرمت رضاعت ثابت شی اوهغه ښځه به د ده دپاره رضاعی محرمه اوګرځی اود پردې کولو حکم به ختم شی.

⑧ د حضرت عطاء بن ابی رباح مسلك دا دې چه که د جمعې په ورځ اختر راشی نو په دغه ورځ به د ماسپخین مونځ اوجمعه دواړه ساقط شی.

**په آسان قول دعمل کولو مذمت:** غرض داکه یوسړې داسې اقوال تلاش کړی نو یوداسې دین به تیارشی چه د هغې بانی به ماسوا د شیطان اونفس څخه بل څه نه وی د دې وجې د بعضې اسلافو قول دې چه ((من أخذ بنوادر العلماء خرج من الاسلام)) یعنی کوم کس چې د عالمانو په نوادراتو عمل اوکړو نو دې به د اسلام څخه خارج شی. اوحافظ ابن حجر په تلخیص الحبیر کښې د حضرت معمر قول نقل کړې دې. چه ((لو أن رجلاً أخذ بقول أهل المدينة في استماع الغناء وإتيان النساء في أدبارهن وبقول أهل مكة في المتعة والصرف وبقول أهل الكوفة في المسكر كان شرالرجال))()

**د تقلید شخصی وجوب:** خلاصه داچه دتقلید مطلق په اجازت ورکول کښې د دې قسم اتباع هوی شدید خطره وه. د دې وجې عالمانو په څلورمې صدئ هجری کښې تقلید شخصی واجب اوګرځولو. حضرت شاه ولی الله صاحب رحمه الله په حجة الله البالغه کښې د عالمانو د دې فیصلې ذکر کوی اولیکی چه ((وکان هذا هو الواجب في ذلك الزمان)) یعنی دا تقلید شخصی په هغه زمانه کښې واجب وو.

**اشکال:** په دې اشکال راځی چه کوم څیز د صحابؤ په زمانه کښې واجب نه وو هغه روستو څنګه واجب شو؟

**جواب: د واجب دوه قسمونه:** د دې جواب حضرت شاه ولی الله صاحب په، الانصاف فی بیان سبب الاختلاف، کښې ورکړې دې چه واجب دوه قسمه دې ① یو واجب لعینه ② دویم واجب لغیره.

① واجب بعینه خوهغه څیز دې چه کوم عهد رسالت کښې واجب شوې دې اودې څخه روستو دې کښې اضافه نشی کیدې.

② واجب لغیره: په واجب لغیره کښې اضافه کیدې شی او هغه داسې چه مقصود د یو

[1]) دا مقدمه ما د درس ترمذی څخه رانقل کړې ده په هغې کښې دا عبارت هم داسې دې. څنګه چې تاسو ته ښکاری ما په تلخیص الحبیر کښې دا عبارت اوکتل خو ماته ملاؤ نشو کیدې شی په درس ترمذی کښې په حواله کښې غلطی وی احقر شاه فیصل

واجب اداء کول وی خو که ددې واجب د اداء کولو په څه زمانه کښې یوه طریقه پاتې شي نو دا طریقه هم واجب ګرځی.
**مثال:** مثلاً عهد رسالت کښې حفاظت د حدیثو واجب وو کتابت واجب نه وو ځکه چه دحفاظت حدیث فریضه صرف په حافظه هم اداء کیدې شوه خو روستو چه کله په حافظو باندې اعتماد پاتې نشو. نو د حفاظت حدیث طریقه ما سوا دکتابت څخه بله پاتې نشوه نو ځکه کتابت واجب شو.
**استدلال:** دغه شان په عهد صحابه اوتابعین کښې دغیرمجتهد دپاره تقلید مطلق واجب وو خو چه کله دتقلید مطلق لاره خطرناکه شوه نو اوس صرف تقلید شخصی واجب اوګرځولې شو. هم دې خبره ته حضرت شیخ الحدیث په دې الفاظو کښې اشاره کړې ده چه تقلید شخصی څه شرعی حکم نه دې بلکه یو انتظامی فتوی ده.
**د یو مصحف اتباع واجب ګرځول:** ددې یو واضح نظیر دا دې چه دحضرت عثمان ﷺ څخه وړاندې قرآن کریم په هر رسم الخط کښې لیکل جائز وو خو حضرت عثمان ﷺ دیوې سختې فتنې د سدباب دپاره ټول امت په یو رسم الخط جمع کړو اوپه بل رسم الخط لیکل یې ناجائز اوګرځول نو په دې د امت اجماع منعقد شوه. په دې باندې څوك دا اعتراض نشی کولې چه یو غیر واجب څنګه واجب اوګرځولې شو بالکل هم دا معامله د تقلید شخصی هم ده چه دیو عظیم فتنې د سدباب دپاره دا واجب اوګرځولې شو
**د تقلید مختلف درجات:** تردې خو د تقلید مطلق اثبات وو البته د مقلد د علمي صلاحیت په لحاظ سره د تقلید مختلف درجات وی ددې درجاتو څخه د ناواقفیت په وجه بعضې وخت سړې په افراط او تفریط کښې واقع کیږی. اودغیرمقلدینو د زیاتو اعتراضاتو وجه فرق مراتب د نه پیژندو نتیجه ده نو یاد ساتل پکار دی چه د تقلید څلور درجې دی او د هغې احکام جُدا جُدا دی.
①**دعوامو تقلید:** دټولو څخه ړومبۍ درجه دعوامو د تقلید ده د عوامو څخه مراد زمونږ درې قسمه خلق دی:
① یو خو هغه خلق چه دعربۍ او اسلامی علومو څخه بالکل خبر نه وی په بل فن کښې چه هر څو مره ماهر وی.
② دویم هغه خلق چه په عربۍ ژبه خوښه پوهیږی خو اسلامی علوم دوئ باقاعده نه وی وئیلې.
③ اودریم هغه خلق چه په رسمې طور خو فارغ التحصیل دی خو په اسلامی علومو کښې ورته بصیرت تجربه او مهارت حاصل نه وی.
**په درې واړه قسمه د تقلید وجوب:** ددې درې واړو حکم دا دې چه په دوئ په هرحال کښې

تقلید واجب دي د خپل امام یا د مفتی قول نه ورته خروج جائز نه دي. اګرچه ده ته دده قول په ظاهره دحدیث خلاف معلومیږي په ظاهره ورته دا خبره عجیبه معلومیږي چه دانسان وړاندي دي یوحدیث وي اوهغه دي دغه حدیث پریږدي. اود خپل امام اویا مفتی په قول عمل دي کوي. خو دکومو عوامو چې مونږ خبره کوو د هغوئ دپاره د دې څخه سوا بله څه چاره نشته ځکه چه دا خلق دقرآن اواحادیثو په دلائلوکښې د غور او د رڼا کښې ددې محمل بل وي داسې صورت کښې که داسې عواموته ددې خبرې اجازت ورکړې شي چه تاسوکه یوحدیث د خپل امام دقول خلاف بیا مومی نو د امام قول پریږدئ نو د دې نتیجه به ډیرکرتې د سختې ګمراهئ څخه علاوه بل څه نه وي بلکه بې شماره خلق په دې طریقه ګمراه شوی دي.

**د فرضیت استقبال الی القبله څخه انکار:** مثلاً بعضې خلقودقرآن کریم د آیت ((وَلِلَّهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ فَأَيْنَمَا تُوَلُّوا فَثَمَّ وَجْهُ اللَّهِ )) یعنی مشرق او مغرب ټول اړخونه دالله تعالی دپاره دی نو چې کوم طرف ته تاسو (په مانځه کښې) مخ کوئ هم هغه طرف ته دالله تعالی ذات دې (اوستاسو مونځ کیږي) څخه استدلال کړې دې. اوپه مونځ کښې ئې د استقبال قبلې د فرضیت څخه انکارکړې دې.

**بغیر د آواز اوریدو څخه په هوا خارجیدو د اودس نه ماتیدل:** مثلاً په حدیث ((لاوضوء إلا من صوت أو ريح)) یعنی نشته اودس مګر د آواز او هوا څخه مطلب دا دې چې اودس نه ماتیږي مګر په دې صورت کښې چې د سړی نه هوا خارجه شی او آواز هم اوځی. نو که یوعام سړې ددې متبادره معنې باندې عمل اوکړی اود امامانو قول پریږدی نو په اجماع سره به ګمراه وی.

**په حجامت سره د روژې ماتیدل:** لکه امام ابو یوسف رحمه الله فرمائی : چه که یوسړې دروژې په حالت کښې احتجام اوکړی او دې حدیث ته اوګوری ((أفطر الحاجم والمحجوم))[1] نو په ده کفاره واجب ده اوکه یومفتی ده ته غلطه مسئله اوښائی چه په حجامت سره روژه

۱) (رواه ابوداؤد ۱\۳۲۲ ) عن ثوبان مرفوعافی کتاب الصیام باب فی الصائم یحتجم دا حدیث سندا صحیح دي خوصحیح بخاری کښې یوبل حدیث مروی دې چه نبی کریم ﷺ پخپله د روژې په حالت کښې ښکر اولګولو. اونسائی کښې د حضرت ابوسعید خدری څخه روایت دې چه دوئ روژه دارته دښکرلګولو اجازت ورکړو د دې په بناء جمهور عالمان ددې خبرې قائل دی چه د ،،افطر الحاجم والمحجوم،، حکم یا منسوخ دې یا دوئ دغه خاص کسان داسې په یوبل کاراولیدل چه هغې سره د دوی روژه ماته شوله. ددې حدیث نورهم توجیهات شوې دی تفصیل به انشاء الله ((ابواب الصوم باب ماجاء فی کراهیة الحجامة للصائم)) کښې راشی.

ماتیږي. اوده د دې وجې خوراك څښاك اوکړو نو په ده کفاره واجب نه ده. اوددې وجه بيانوی «لان على العامي الاقتداء بالفقهاء لعدم الاهتداء فى حقه إلى معرفة الاحاديث» (١)یعنی ځکه چې د عامی دپاره په فقهاؤ پسې اقتداء کول پکاردی ځکه چې د احادیثو په مفهوم باندې دې نه پوهیږی. نو هر کله چې ده په حدیث باندې پخپله عمل اوکړو. اود عالم څخه يې تپوس اونکړو. نوپه ده باندې کفاره واجب ده. ځکه چې ده د حدیث په مفهوم پوهیدو کښې کوتاهی اوکړه چې عالم ته يې رجوع اونکړه. اوپه کوم صورت کښې چې ده ته فقیه غلط ه فتوی ورکړه نو په ده کفاره ځکه نشته چې ده خپله ذمه واری پوره کړه چې عالم ته يې رجوع اوکړه نو ځکه به په ده باندې فدیه نه واجبیږي.

②**دویمه درجه د متبحر عالم تقلید:** دویمه درجه دمتبحرعالم دتقلید ده. دمتبحرعالم څخه مراد زمونږ هغه کس دې چه درجه د اجتهاد ته نه وی رسیدلې خودقرآن اوسنت په علومو کښې ورته کافی مهارت اوبصیرت حاصل وی. اوکم نه کم د خپل مذهب د مسائلو استحضار اوملکه ورته پیدا شوې وی. د داسې سړی تقلیدد عوامو د تقلید څخه مختلف دې یعنی داسې سړې به لاندې لیکلی شوی امورو کښې ممتاز وی.

① د خپل امام په مذهب کښې يې که دیوڅخه زیات اقوال وی نوپه دې کښې د ترجیح یاتطبیق کولو استعداد او صلاحیت ورته حاصل وی.

② چه په کومومسائلوکښې د امام څخه څه صراحت منقول نه وی. په هغې کښې د امام د أصولو مطابق احکام مستنبط کوی.

③ د ابتلاء عام اودضرورت شدیده په موقع بعضې وخت دې دیوبل مجتهد په قول فتوی ورکوی چه دهغې شرائط د اصولِ فتاوی په کتابونو کښې مذکور دی.

④ داسې سړی ته که د امام یوقول د څه صحیح او صریح حدیث خلاف معلوم شی او د هغې معارض څه بل حدیث هم نه وی اود امام په قول دده شرح صدر نه وی شوې نو داسې صورت کښې به دې د امام قول پریږدی اوپه حدیث به عمل کوی. مثلاد مزارعت په مسئله کښې د حنفیانو مشائخو د امام ابوحنیفه رحمه الله قول پریښې دې اود جواز فتوی ئې ورکړې ده.

دغه شان اشر به اربعه څخه علاوه نورو شرابونوکښې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د مقدار مسکر څخه کم څکل د قوت حاصلولو دپاره جائز دې خو احنافو مشائخو د صریح احادیثوپه بناء ددوی قول ترك کړې دې.

---

١) كذافي الهدايه ١/٢٢٦ باب مايوجب القضاء والكفارة)

**③دریمه درجه دمجتهد فی المذهب تقلید:** دریمه درجه د مجتهدفی المذهب دتقلیدده مجتهدفی المذهب هغه کس ته وائی چه د اجتهاد مطلق په منصب خو فائز نه وی یعنی اصول استدلال پخپله وضع کولې نه شی خو د استدلال د اصولو په رنړا کښې په استنباط احکام باندې قادر وی. داسې سړې اصولوکښې مقلد وی او فروع کښې مجتهد لکه ابویوسف رحمه الله، امام محمد رحمه الله، امام زفر رحمه الله، اوشوافعو رحمه الله کښې امام ابوثور رحمه الله امام مزنی رحمه الله اومالکیانوکښې سحنون بن القاسم رحمه الله اوحنابلو کښې خرقی او ابوبکرالاثرم وغیره.

**④څلورمه درجه دمجتهدمطلق:** دتقلیددټولوڅخه آخری درجې ته د مجتهدمطلق هم ضرورت پیښیږی. هغه اګرچه بذات خود مجتهد وی خو بعضې ځایونوکښې دې هم تقلید کوی یعنی هغه مقامات چه هلته قرآن کریم کښې څه صراحت موجود نه وی دغه ځائې کښې ائمه مجتهدین عمومًا داسې کوی چه په خپل قیاس او رائی باندې دعمل کولوپه ځائې خپلو اسلافوکښې دیوقول اختیاروی. مثلاً امام ابوحنیفه رحمه الله عمومًا د ابرهیم نخعی رحمه الله پیروی کوی امام شافعی رحمه الله د ابن جریج په قول عمل کوی. امام مالك رحمه الله په فقهاء مدینه کښې د چا اتباع کوی.

## په تقلید باندې دغیر مقلدینو اعتراضات:

**① د قرآن په مقابله کښې تقلید:** بعضې حضرات په تقلید پورې دا آیت لګوی چه ((وَاِذَا قِیْلَ لَهُمُ اتَّبِعُوْا مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ قَالُوْا بَلْ نَتَّبِعُ مَآ اَلْفَیْنَا عَلَیْهِ اٰبَآءَنَا)) یعنی کله چې دوی ته اوئیلی شی چې الله تعالی کوم کتاب نازل کړې دې د هغې تابعداری اوکړئ نو دوی وائی بلکه مونږ د هغه دین تابعداری کوو چې په کوم باندې مونږ خپل پلاران موندلی دی.

**درې جوابونه:** ① خوجواب بالکل ښکاره دې هغه داسې چه قرآن کریم دې آیت کښې دکوم تقلیدمذمت کړې دې هغه په ایمانیاتوکښې وو.او دا وړاندې بیان شوی دی چه ایمانیات اوقطعیات د تقلید محل نه دې.

② بله دا چې هغوی به د ((مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ)) څخه صراحةً اعراض کولو او د خپلو آباؤ عمل به ئ ددې په مقابله کښې دحجت په طور پیش کولو. او مقلدین ائمه د ((مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ)) څخه اعراض نه کوی بلکه ددې دتشریح دپاره د مجتهدپه قول اعتمادکوی اود مجتهدقول مستقل حجت نه ګڼړی. لکه علامه ابن نجیم وغیره دتقلید تعریف په دې الفاظوکښې کړی دې ((العمل بقول من لیس قوله من إحدی الحجج بلاحجة)) ترجمه: تقلید د هغه چا په قول عمل کول دی چې د هغه قول د شریعت په دلائلو کښې څه شرعی دلیل نه وی. او دا عمل پرې بغیر د دلیل څخه اوکړی.

③ دریم قرآن کریم دتقلید آباء دممنوع کیدلوعلت هم وړاندې بیان کړې دې. یعنی «أَوَلَوْ كَانَ آبَاؤُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ شَيْئًا وَلَا يَهْتَدُونَ» دې څخه معلومه شوه چه د دوی د اتباع د عدم جواز اصل علت د دوئ غیر عاقل او غیر مهتد کیدل دی او د ائمۀ اربعه باره کښې غیر مقلد هم دا منی چه دوئ عاقلین او مهتدین وو.

④ **مجتهدینو ته د تحریم او تحلیل منصب ورکول:** په جامع ترمذی کښې دحضرت عدی بن حاتم رضي الله عنه روایت دې چه نبی کریم ﷺ دقرآن کریم آیت «اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللَّهِ» یعنی دوی خپل عالمان او راهبان دالله تعالی څخه سوا خدایان جوړ کړی وو. د دې په تفسیر کښې ارشاد اوفرمائیلو چه «أما إنهم لم يكونوا يعبدونهم ولكنهم كانوا إذا أحلوا لهم شيئاً استحلوه وإذا حرموا عليهم شيئاً حرموه» (۱) یعنی اهل کتاب داسې نه وو چې د هغوی عبادت به ئې کولو بلکه کله چې به ئې د هغوی دپاره یو څیز حلال کړو نو دوی به هغه حلال ګڼړلو او کله چې به ئې په دوی باندې یو څیز حرام کړو نو دوی به هغه حرام ګڼړلو.

**جواب:** ددې جواب هم دادې ① چه اهل کتابو به خپل عالمان صرف شارح نه بلکه شارع او قانون ساز ګرځولو لکه نن هم د رومن کیتالك عیسایانوپه کتابونو کښې دا تصریحات شته چه پوپ ته د قانون سازئ اوشریعت سازئ مکمل اختیاردې. ② بله دا چه کله چې هغوی د شریعت په باره کښې څه قانون نافذکوی نودوی معصوم عن الخطاء وی. د دې په خلاف ائمه مجتهدینو ته نه څوك معصوم وائی اونه هغوی ته د شارع حیثیت ورکوی هم دغه وجه ده چه کله کله متبحرعالمان ددوئ قول ترك کوی هم. کمامر.

③ **قرآن کریم آسان دې:** بعضې خلق دتقلید خلاف دا دلیل پیش کوی چه دقرآن کریم ارشاد دې «وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ» د دې څخه معلومیږی چه قرآن کریم بالکل آسان دې. د دې وجې ددې په احکامودپوهیدودپاره د یو مجتهد دتقلید ضرورت نشته.

**جواب:** ددې جواب بالکل ښکاره دې اوهغه دا چه دقرآن کریم آیتونه دوه قسمه دی:
① یوهغه چه کوم په احکامومشتمل دی. ② او دویم هغه چه ذکرمو مقصد نصیحت او عبرت دې دا دویم قسم آیتونه بالکل آسان دی اوهرسړې دې څخه نصیحت حاصلولې شی. د دې وجې مذکوره آیت کښې د دویم قسم بیان دې. او د دې دلیل دا دې چه قرآن کریم پخپله د ،،للذکر،، قید لګولې دې او وړاندې هم،، فهل من مدکر،، دې فهل من مستنبط نه دې.

۱) جامع ترمذی ۱۲ ابواب التفسیرومن سورة التوبه

**د تقليد د په موضوع يو څو مفيد كتابونه:** دلته دومره بحث كافي دې. ددې مسئلې د زيات تفصيل اوتحقيق دپاره لاندې كتابونه اوګورئ:

① الاقتصاد في التقليد والاجتهاد مولفه حكيم الامت حضرت مولانا اشرف علي صاحب تهانوي رحمه الله

② خير التنقيد في سير التقليد مولفه حضرت مولانا خير محمد صاحب رحمه الله

③ إنهاء السكن جلد دوم، مؤلفه حضرت مولانا حبيب احمد صاحب كيرانوي

④ سبيل الرشاد' مولفه حضرت مولانا رشيد احمد ګنګوهي صاحب رحمه الله

⑤ تقليد شخصي ' مولف حضرت مولانا مفتي محمد شفيع صاحب نور الله مرقده

⑥ تقليد كي شرعي حيثيت مولفه مفتي تقي عثماني مد ظله العالي

⑦ د تقليد په موضوع د ټولو څخه جامع كتاب،،الكلام المفيد في إثبات التقليد،، مؤلفه شيخ محمد سرفراز خان صفدر رحمه الله دې

## صحاح سته او د هغې اغراض اوشروط

**شپږ مآخذ:** داسې خود حديثوبې شميره كتابونه ليكلى شوي دي. خودې كښې شپږو كتابونوته دمآخذ حيثيت حاصل دې. چه هغې ته،،الامهات الستة،، يا،،الاصول الستة،، يا،، صحاح سته،، يا كتب سته وئيلې كيږي.

**دوه غلطې نظريې:** ① د صحاح سته دنوم څخه بعضې خلق دا خيال كوي چه دې كښې هرحديث صحيح دې ② اود بعضوخلقو دا خيال دې چه دې څخه علاوه بل صحيح حديث نشته.

**د صحاح سته د اصطلاح مطلب:** خو دا دواړه خبرې غلطې دى حقيقت دا دې چه نه د صحاح سته هر حديث صحيح دې اونه د دې څخه بهرهرحديث ضعيف دې بلكه د صحاح سته د اصطلاح مطلب دا دې چه كوم سړې دا شپږكتابونه اووائى. دده وړاندې د اصول دين سره متعلق د صحيح روايتونو يوه لويه ذخيره راشى كومه چه ددين په معاملاتو كښې كافي ده.

**دابن ماجه په صحاح كښې شموليت:** شروع كښې د صحاح خمسه اصطلاح مشهوره وه اوابن ماجه په صحاح كښې شامل نه وو په دې بناء امام ابوبكرحازمي رحمه الله،،شروط الائمة الخمسة،، تاليف كړو.

اوددې وجې علامه ابن الاثيرجزري رحمه الله په،،جامع الاصول،،كښې ابن ماجه نه ده شامله كړې خو روستو زياتو حضراتو ابن ماجه د حسن ترتيب د وجې په صحاح سته كښې شامله كړله.

بعضې حضراتو د ابن ماجه په ځائې موطاء امام مالك رحمه الله اوبعضو سنن دارمي په صحاح سته کښې داخل کړې دې. خو مقبوليت ابن ماجه ته حاصل شو. نو اوس صحاح سته کښې صرف ابن ماجه شامل ګڼړلې کيږی.

**دصحاح سته دمؤلفينو داغراضو اختلاف:**

**د بخاری غرض تاليف استنباط احکام:** د امام بخاری مقصدتاليف دا دې چه دې د صحيح احاديثوڅخه فقهی احکام، عقائد، سير اوتفسير مستنبط کړی. دوی چه ديوحديث څخه کوم حکم مستنبط کوی. دا په ترجمة الباب کښې ذکرکوی. کله کله دده استنباط دومره دقيق وی چه حديث اوترجمة الباب کښې مطابقت نه معلوميږی.اود دې وجې اکثر هغه داسې کوی چې يو اوږد حديث ټکړې ټکړې کړی او د مختلفو تراجمو لاندې يې ذکر کوی. دغه شان د دوئ په نيز د حديث ټول طرق يوځائې نه وی. بلکه مختلفو بابونوکښې منتشروی.هم دغه وجه ده چه په بخاری کښې ديوحديث تلاش کول ډيرمشکل وی.

**د مسلم غرض د تاليف د يوې موضوع احاديث په ټولو طرقو سره جمع کول:** ددې په خلاف د امام مسلم مقصدتاليف دا دې چه ديوې موضوع احاديث د هغې د ټولو طرقو سره په يوځائې مرتب شکل کښې جمع کړی. نو د دوئ په کتاب کښې ديوموضوع احاديث يوځائې ملاويږی. استنباطِ احکام سره د دوئ څه غرض متعلق نه دې هم دغه وجه ده چه د خپل کتاب تراجم ابوابَ هم دوئ خپله نه دی قائم کړی بلکه روستوعالمانو لګولی دی. د حسن ترتيب په لحاظ سره د امام مسلم کتاب بې نظيره دې. اودې کښې حديث تلاش کول ډير آسان دی.

**د نسائی غرض د تاليف د اسانيدو علل بيانول:** د امام نسائی رحمه الله د تاليف مقصد د اسانيدو علل بيانول دی. نو د دوئ طريقه دا ده چه دې عمومًا دهر باب په شروع کښې هغه حديث راوړی چه په کوم کښې د دوی په نيز څه علت وی.دعلتونوبيانولوڅخه روستو هغه حديث راوړی چه کوم د دوئ په نيز صحيح وی ددې سره د دوئ لږه توجه استنباط احکام ته هم وی.ددوئ تراجم ابواب ددقت نظرپه اعتبارسره دبخاری څخه پس په دويم نمبردی.

**د ابوداؤد غرض تاليف د فقهاؤ مستدلات جمع کول:** د امام ابوداؤد مقصد د تاليف هغه احاديث جمع کول دی چه په هغې باندې يوفقيه په څه فقهی مسئله استدلال کړې وی. اوهغه داسې احاديث د هغې د ټولو طرقو سره يوځائې ذکرکوی. په دې لحاظ د دوئ طريقه د امام مسلم مشابه ده چونکه دوی دټولو فقهاؤ مستدلات ذکرکوی د دې وجې دې د امام مسلم په شان د صحيح احاديثو التزام اونکړې شو. بلکه ددوی کتاب کښې حسن او ضعيف احاديث هم راغلل البته دې په ضعيف او مضطرب احاديثو باندې دکلام کولوهم عادې دې او د هغې ضعف بيانوی په دې شرط چه ضعف زيات وی او چه

په کوم حدیث دې سکوت اوکړي نوددې مطلب دا دې چه دا حدیث د دوئ په نیز قابل استدلال دې البته کله کله چه ضعف معمولي وي نوهغه نظر اندازکوي په هغې کلام نه کوي او امام ابوداؤد د امام نسائی په عکس د باب آغاز په هغه روایت سره کوي کوم چه د دوئ په نیز اصح مافي الباب وي بیا روستو هغه روایت ذکرکوي کوم چه د دوئ په نیز مرجوح وي.

**د ترمذی غرض د تالیف د هر فقیه مستدل ذکر کول:** امام ترمذی رحمه الله د امام ابوداؤد رحمه الله، او د امام نسائی رحمه الله طریقې جمع کړې دي، د دوئ مقصد دتالیف د هرفقیه مستدل په جُدا باب کښې ذکر کول دي خودې دیوموضوع د احادیثو استیعاب نه کوي. بلکه هرباب کښې عام طور صرف یوحدیث راوړي اوحدیث هم حتی الامکان هغه منتخب کوي چه کوم نورو امامانو نه وي تخریج کړې. اوددې موضوع سره متعلق باقي احادیثوته «وفي الباب عن فلان عن فلان» سره اشاره کوي. اودې د امام نسائی په شان په علتونوهم تنبیه ورکوي. دې څخه علاوه دې دفقهاؤمذاهب په صراحت سره بیانوي. دترمذی د نورو خصوصیاتو بیان به مستقل راشي.

**دابن ماجه غرض د تالیف:** د امام ابن ماجه رحمه الله طریقه د امام ابوداؤد مشابه ده فرق دا دې چه دده په نیز دصحت یا د حسن هغه اهتمام نشته کوم چې د ابواؤد په نیز دې.

**د صحاح سته شروط:**

**د صحاح سته په شرائطو د دوؤ رسالو تالیف:** د صحاح سته د تالیف اغراضو څخه پس د دې د مصنفینو د شرطونو وضاحت دې. یعنی چې دې حضراتو یوحدیث په خپل کتاب کښې د درج کولو دپاره کوم شرطونه په نظرکښې ساتلي دي. دا یوډیر ګران سوال دې. ځکه چه دې حضراتو دا شرطونه په صراحت سره نه دي ذکر کړي. البته روستنی عالمانو د دوئ دکتابونو دکتلو څخه پس د دوئ د طرز عمل څخه دا شرطونه معلوم کړي دي. اوپه دې مسئله یې بحث کړې دې. په دې موضوع دوه رسالې متداولې او مشهورې دي. د امام ابوبکر حازمی رحمه الله ،،شروط الائمة الخمسة،، او د حافظ ابوالفضل مقدسی " شروط الائمة " علامه زاهد الکوثری رحمه الله دا دواړه رسالې د خپلو تعلیقاتو سره شائع کړي دي په دې رسالوکښې په دې موضوع تفصیلي بحث شوې دې دلته د هغې خلاصه پیش کوو.

**د ټولو څخه سخت شرائط:** دټولو څخه سخت شرائط د امام بخاری دي د هغوئ بنیادي شرط دا دې چه زه به په صحیح بخاری کښې صرف هغه احادیث نقل کوم کوم چې د صحیح په شرائطو پوره وي. او دوي د راویانو په پنځو طبقاتو کښې صرف د ړومبئ طبقې احادیث مستقلاً ذکرکوي او د دویمې طبقې احادیث کله کله صرف د استشهاد دپاره راوړي

**د امام حاکم په نیز د بخاری یو شرط:** امام حاکم رحمه الله بیان کړې دي چه د امام بخاری رحمه الله یو

شرط دا هم دي چه دا حدیث غریب نه وي. یعنې په هره طبقه کښې ددې راویان کم از کم دوه وي.

**د دې قول تردید:** خو حافظ مقدسي رحمه الله او امام حازمي دواړو د دې خیال په سختئ سره تردید کړې دې. ځکه چه صحیح بخاري کښې ډېر احادیث غریبه موجود دي بلکه دبخاري رومبې حدیث ((إنما الاعمال بالنيات)) هم غریب دې ځکه چه د حضرت عمر رضي الله عنه څخه راواخله تر د یحیی بن سعید انصاري پورې ددې ټول راویان متفرد دي داسې د بخاري آخري حدیث ((کلمتان حبيبتان الخ))هم غریب دې.

**د حافظ مقدسي په نیز د بخاري شرط:** حافظ مقدسي رحمه الله یوشرط د امام بخاري رحمه الله دا بیان کړې دې چه دې صرف دهغه راویانو روایات نقل کوي چه دهغه په ثقه کیدو باندې د پوره امت اتفاق وي

**د دې قول تردید:** خودا خبره هم صحیح نه ده امام حازمي رحمه الله ددې هم تردید کړې دې. بلکه واقعه دا ده چه دبخاري اتیا راویان داسې دي چه په هغوئ چا کلام کړې دې. خاص طور امام نسائي. مثلاً خالدبن مخلد القطواني او ابواویس وغیره راویان البته دا صحیح ده چه دا جرح د امام بخاري په نظر کښې صحیح نه وه یا صحیح وه خو امام بخاري د دوی څخه صرف هغه احادیث راغستي دي چه هغې کښې سبب د جرح نه وو موجو. د دې تفصیل د امام حاکم دتساهل په اسبابو کښې د نصب الراية په حواله تیر شوې.

امام مسلم اګرچه دصحیح التزام کوي یعنې یوحدیث لره په خپل کتاب کښې ددرج کولو د پاره دده صحت لازمي ګرځوي خوددې شرائط د امام بخاري په مقابله کښې نرم دي. په درې وجوه سره واضح کیدې شي.

① **د رومبئ طبقې څخه نقل کول:** امام بخاري رحمه الله د راویانو په پنځو طبقاتو کښې صرف د رومبئ طبقې یعنې د قوي الضبط کثیر الملازمة طبقې راویات نقل کوي اوکله د تائید دپاره د دویمې طبقې څخه هم روایات نقل کوي. دده په مقابله کښې امام مسلم درومبې دوه طبقو څخه بلاتکلیفه روایات نقل کوي. اود دریمې طبقې نه هم د تائیددپاره روایات نقل کوي[1]

② **د حدیث معنعن دپاره د راوي او مروي عنه معاصر کیدل:** د امام مسلم رحمه الله په نیز دحدیث معنعن د صحت دپاره د راوي او مروي عنه صرف معاصرکیدل کافي دي. ثبوتِ لقاء او سماع ضروري نه ده اوامام بخاري ثبوت لقاء اوسماع دواړه ضروري ګرځوي.

③ **د تنقیدِ رواة په باره کښې د مسلم طریقه:** امام مسلم رحمه الله دتنقیدرواة په معامله کښې د

---

[1] (کذا حققه الحازمي في شروط الائمة الخمسة

امام بخاری رحمه الله څخه نرم دي دوئ د داسې ډيرو متكلم فيه راويانوروايت ذكركړي دي. كوم چه امام بخاری رحمه الله پريښى دى مثلاً حمادبن سلمه، حسن بن صالح، عبدالرحمن بن العلاء او ابوالزبير وغيره د دې وجې حافظ مقدسى رحمه الله دا بيان كړې دي چه امام مسلم رحمه الله د دې راويانو په باره كښې د ښه تحقيق كولونه پس دافيصله كړې ده. چه په دوئ جرح صحيح نه ده په هرحال په صحيح مسلم كښې د متكلم فيه رواة تعداد د صحيح بخاری په مقابله كښې دوچنده يعنى يوسل شپيته دي

**آيا د صحيحينو روايات په حقيقت كښې صحيح دى؟:** بيا په دې هم كلام شوې دې چه دصحيحينو احاديث فى الواقع صحيح دى. اوكه نه ؟

① **د امام دارقطنى رائې:** امام دارقطنى رحمه الله يوه مستقله رساله ليكلې ده چه دې كښې يې د صحيحينو احاديثو تعاقب كړې دې اوددې د ثابتولوكوشش يې كړې دې چه د صحيحينو دوه سوه اولس احاديث صحيح نه دى په كوم كښې چې دوه ديرش احاديث متفق عليه دى. اواته اويا صرف دبخارى اوسل صرف د مسلم دى.

② **د امام طحاوى رائې:** دغه شان امام طحاوى هم د صحيحينوپه بعضې احاديثوكلام كړې دې. مثلاً د تورك په باب كښې د حضرت ابوحميد ساعدى رضي الله عنه حديث امام طحاوى ضعيف گرځولې دې حال دا دې چه دا په صحيح مسلم كښې موجود دې.

③ **د حافظ عبدالقادر قرشى رائې:** دغه شان حافظ عبدالقادرالقرشى رحمه الله په خپل كتاب طبقات كښې ددې كليه تسليم كولو څخه انكاركړې دې چه د صحيحينو هر حديث صحيح دې

**د حافظ ابن حجر رحمه الله جوابات:** خو حافظ ابن حجر رحمه الله په،،هدى السارى مقدمة فتح البارى،، كښې د امام دارقطنى رحمه الله د يويو اعتراض تفصيلى جواب وركړې دې او هغه ټول احاديث يې صحيح ثابت كړى دى. چه كوم په بخارى يا مسلم كښې راغلې دى. د نورو حضراتو محدثينو رجحان هم دې ته دې چه د صحيحينوهرحديث صحيح دې. البته دومره ضرور ده چه د امام دارقطنى رحمه الله په دې احاديثوباندې دكلام كولو د وجه څخه دا احاديث متكلم فيه شول.

**د نورو ځلورو امامانو شرائط:** د صحاح سته د باقى امامانو شرائط هم هغه دى چه د طبقات خمسه په بحث كښې بيان شوى دى. د رجال په باره كښې نسائى رحمه الله د ابوداؤد رحمه الله څخه او ابوداؤد رحمه الله د ترمذى رحمه الله څخه اوترمذى رحمه الله د ابن ماجه رحمه الله څخه زيات سخت دى.

## آغاز کتاب

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ
اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ

**ترجمه:** ټول تعریفونه الله تعالی ﷻ لره ښايي مونږ د هغه تعریف کوو او د هغه څخه مدد او بخښنه غواړو.

**تسهیلات:**

**قوله:** بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ:

**د تسمیه او تحمید د راوړلو وجه:** حضرت مصنف قدس سره د قرآن پاك ترتیب کتابی، د حضور پاك ﷺ د حدیث پاك او طریقې د سلفو صالحینو د اتباع کولو په وجه د خپل کتاب مقدس شروع په تسمیه او حمد سره کړې ده. حدیث، "کل أمر ذی بال" په مختلفو الفاظو سره راغلې دې په بعض روایاتو کښې دا الفاظ دې:

کل امر ذی بال لم یبدأ فیه بسم الله الرحمن الرحیم فهو ابتر رواه الخطیب بهذا اللفظ فی کتاب الجامع. (۱)

یعنی هر قابل د اهتمام کار کوم چه بسم الله الرحمن الرحیم سره شروع نه کړې شی هغه بې برکته دې.

د بعضې روایاتو الفاظ دا دی: کل کلام ذی بال لا یبدأ فیه بالحمد لله فهو اجذم رواه ابوداؤد والنسائی فی عمل الیوم اللیلة. (۲)

یعنی هر یو ذی شان کار کوم چه د الحمد لله سره شروع نه کړې شی هغه بې برکته دې.
په دې لاندینی الفاظو سره هم دا حدیث ملاویږی:

کل امر ذی بال البیدأ فیه بالحمد لله فهو اقطع رواه ابن ماجه. (۳)

د دې ټولو روایاتو حاصل هر مهتم الشان کار یا کلام په بسم الله او الحمد لله سره د شروع کولو ترغیب ورکول دی. دا حدیث په دې لاندینو الفاظو سره هم راغلې دې:

کل امر ذی بال لا یبدأ فیه بذکر الله فهو اقطع رواه الرهاوی فی اربعینه وحسنه ابن الصلاح. (۴)

یعنی هر یو ښه کار د کوم شروع چه د الله تعالی په ذکر سره نه وی هغه به د برکت نه خالی وی.

---

(۱) کذاء فی المرقاة ص:۳ ج:۱.
(۲) کذاء فی المرقاة ص:۳ ج:۱.
(۳) کذاء فی المرقاة ص:۳ ج:۱.
(۴) کذاء فی المرقاة ص:۳ ج:۱.

علامه رهاوی دَدې حدیث الفاظ دا لاندینی هم نقل کړی دی:

**کل امرذی بال لم یبدأ فیه بذکر الله ثم بالصلوة علی اقطع ممحوق من کل برکة اخرجه الرهادي عن ابی هریرة مرفوعا.** (۱)

یعنی دَ هرذی احترام کار کوم چه دَ الله تعالی په ذکر سره او بیا په ما باندې درود وئیلو سره شروع نه کړې شی هغه دَ هربرکت نه خالی دی

**اشکال:** د بعضې احادیثو څخه معلومیږی چه دهرکارشروع په بسم الله سره کول پکار دی اودبعضې راو ایاتو څخه معلومیږی چې دهرکارپه شروع کښې دالله تعالی تعریف اوحمد وئیل پکاردی حالانکه شروع په یوځیزسره کیږی په دوو سره نه کیږی نودا تعارض دی؟

**داشکال دوه جوابونه:** ① علامه رهاوی فرمائیلی دی چې دَحضرت شارع ﷺ اصلی مقصددادې چه دَهرذی بال کار په شروع کښې دَ برکت پیداکولودَپاره دَالله تعالی ذکر کول پکاردی که هغه دَبسم الله وئیلو په صورت کښې وی اوکه دَ الحمدلله وئیلو په شکل کښې وی. که دَمقصودنه وړاندې دواړه ذکرکړې شی نو نورعلی نوردې. دَ برکت دَحاصلولودَپاره دَدې دواړو نه یو یا دَ الله تعالی دَ ذکردَ قبیل نه څه بله کلمه وئیل هم کافی کیږی په دې تقریر سره د تعارض چې کومه شبه ده هغه پخپله ختمه شوه ځکه چه دَدواړو احادیثو مقصد دَالله تعالی په ذکرسره دَ یوکار دَ شروع کولوترغیب ورکول دی.

② که چرې علی سبیل التنزل تعارض تسلیم کړې شی نوآسان او صفا جواب دادې چه حقیقی شروع اګرچه امربسیط غیرممتددې هم په یوځیزسره کیدې شی لیکن دَ رسول الله ﷺ کلام دَ محاورات عامه او دَعرف مطابق وی په عرف کښې دَمقصودنه وړاندې دَ مقام مناسب هر کیدونکی کار ابتدائی کارګڼړلې شی. ابتدائې عرفی امر ممتد اوموسع دې په دې کښې ډیراموروواقع کیدې شی. په دې وجه دَ شروع فی المقصودنه وړاندې تسمیه، تحمیداو صلاة علی النبی ﷺ وغیرها امور ټول دَعرف په اعتبارسره ابتدائی اموردی

**دتسمیه په حمد د تقدیم وجوهات:** ① الحمدلله دَ الله تعالی شکرلره متضمن ده. تکلم بالحمدپورې څومره نعمتونه چه الله تعالی ورکړی دی په ټولو باندې اجمالاً شکرکول مقصود دی دَ کتاب شروع په بسم الله سره دکولوتوفیق ملاویدل هم ډیرلوئی نعمت دې. په دې وجه ئې حمد دَتسمیه نه پس راوړلو. دې دَپاره چه په دغه ورکړې شوی نعمت باندې هم شکراداکړې شی.

② بله دا چه دَبسم الله لوستلو ترغیب دَهربنه کارنه وړاندې ورکړې شوې دې که هغه دَ جنس کلام نه وی اوکه دَ جنس طعام او دَ خوراك څښاك وغیره نه وی او حمد (عادةً

(۱) من المرقاة ص:٤ ج:۱ مع ترضیح.

خطبو او جنس كلام سره خاص گنړلې شی لهذا تسميه عام شوه اوحمدخاص اوعام دَخاص نه مقدم وی. په دې وجه تسميه په حمدباندې مقدم كړې شوه.

**قوله: اَلْحَمْدُلِلّٰهِ:**

**حمد په دوو جملو كښې د راوړلو وجه:** ① شيخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله فرمائيلی دی چه حضرت مصنف رحمه الله دَحمددپاره دوه جملې ذكركړی دی. يوه اسميه يعنی الحمدلله او دويمه فعليه مضارعيه يعنی نحمده اوس دلته ظاهر دادې چه په الحمدلله سره دَدې خبرې خبر وركول مقصود دی چه ټول محامدذات پاك سره مخصوص دی او په نحمده سره انشائي حمد مقصوددې لكه چه ړومبې جمله صورةً اومعنًی خبريه ده اودويمه صورةً خبريه ده اومعنًی انشائيه ده. په دې صورت كښې به تكرارپاتې نه شی.

② داهم احتمال دې چه دواړه معنًی انشائيه وی. دويمه جمله اگرچه ظاهراً تكراردې ليكن دې نه پس نستعينه وئيلو سره به تجديدفائده شی چه مونږ انشائي حمد د الله تعالی د مدد څخه بغير چرته كولې شو.

**په دواړو جملو كښې فرق:** الحمدلله جمله اسميه ده. اسميت جمله په استمرار او دوام باندې دلالت كوی. دَ اسميه جملې معنی ده "عدول الجملة عن الفعلية الی الاسمية" نحمده جمله فعليه مضارعيه ده. فعل په حدوث او تجديد باندې دال دې او مضارعيت په استمرار باندې دلالت كوی. دغه شان جمله فعليه مضارعيه په استمرار تجددی باندې دال وی.

**په دوو جملو ذكر كولو كښې حكمتونه:** ① جنس نعم باری تعالی مستمرد دائم دې. يوه لمحه داسې نه ده په كوم كښې چه په مونږ دَ هغه جنس نعمت دَ يو نه يو قسم يا كس په ضمن كښې فائض كيږی نه. البته دَ منعم پاك دَ نعمت انواع جزئيات فوری ټك په ټك قسم په قسم ترو تازه رانازليږی. دَ جنس نعم دَ دوام او استمرار په وړاندې ئی جمله اسميه راوړله او انواع او جزئيات دَنعم دَ تجدد په مخكښې ئی جمله مضارعيه راوړله. مطلب دادې لكه څنگه چه دَ هغه نعمتونه نوی په نوی قسم په قسم په مونږ باندې فائض كيږی هم دَ هغې مطابق زمونږ دَ طرف نه قسم په قسم دَ حمد سلسله جاری وی.

② الله تعالی پاك ذات چه دَ ثنا اوتعريف لائق او واحد دئم لم يزل او لا يزال دې اودَ هغه نعمتونه متجدد دی. دَ امر اول په رڼړا كښې جمله اسميه اودَ دويم په رڼړا كښې جمله مضارعيه راوړله.

③ دَ حمد دوه قسمونه دی: (الف) دَ الله تعالی حمد په خپل ذات باندې، دا دائم او مستمر دی اصل حمد هم دغه دې. حامد چه څومره اوچت وی اودَ محمود چه څومره پيژندگلو كونكې وی هم په دغه اندازه باندې به دَ هغه حمد اوچت وی. ښكاره خبره ده چه دا حمد دَ الله تعالی دَ ذات برابر په چا كښې هم نشته. (ب) حمد دَ مخلوق دَ خالق دَ

پاره قسم اول دائم دې دوام دَ حامد دَ وجې نه دَ هغه په مناسبت سره اولنۍ جمله ئې اسمیه راوړله او دویم قسم حادث او متجدد دې. حدوث دَ حامد دَ وجې نه دَ هغه په مناسبت سره ئې دویمه جمله فعلیه مضارعیه راوړله.[1]

**د جمع صیغه راوړلو کښې حکمتونه:** په ظاهره حمد کونکې دَ تصنیف کولو په وخت ځان له مصنف دې مقتضی ظاهرًا حمده بصیغة الإفراد وو. مصنف رحمه الله نحمده وئیلې دې دَ عدول عن مقتضی الظاهر ډیروجوهات دی.

① صیغه دَ جمع متکلم راوړل عظمت شان حمد طرف ته اشاره ده چه دَهغه جامع الکمالات پاك ذات حمد دومره لوئی کاردې چه دا پوره کول دَ بنیادمونه دَ یو کس کارنه دې په دې وجه دَ جمع صیغه راوړلو سره هرحامد شریك کړې شوې دې که دَهغه حمد حالی وی که قالی. دارنګ دې سره نستعینه وئیلو کښې ئې اوخودل چه ټول مخلوق یوځائې شی نو بیا هم دا لوئی کار نه شی اداکولې ترکومې چه دَهغه اعانت شریك حال نه وی.

② حضرت مصنف رحمه الله تواضعًا صیغه دَ جمع اختیار کړې ده چه ځان له زما حمد کول دَدې قابل نه دې چه دې ته دَ الله تعالی په لوئی دربار کښې شرف قبولیت حاصل شی. خپل حمد دَ انبیاء کرامو علیهم السلام اولیاء عظامو او صالحین مخلصین رحمهم الله دَ حمدسره یوځائې کولوسره پیش کړو دې دَپاره چه دَ دغه نفوس قدسیه دَمخلصانه محامد په ضمن کښې داعیبناکه سودا هم اوخې. مسئله داده چه که چرې صفقه واحده کښې دَډیرو څیزونو سودا شوې وی بیا په هغې کښې په بعض کښې نقص یا عیب راوځی نو په دې صورت کښې دَ شریعت حکم دادې چه که ردکوی ئې نو ټول به رد کوی اوکه ساتی ئې نوټول به ساتی. عیبناك ردکول او صحیح سالم څیزساتل جائزنه دی. نو چه الله تعالی کمزور بندیګانو ته داتعلیم ورکړې دې نو هغه کریم ذات به پخپله په درجه اولی مخلوط څیزونونه صحیح سالم کېخودو سره عیبناك څیز نه ردکوی بلکه دَ صحیح سالم په برکت به عیبناك څیزونه هم قبلوی. دَ جمع په مونځ کښې یوحکمت داهم دې چه ادنی به دَ اعلی په برکت مقبول شی.

③ په خپلو رونړو او ملګرو باندې دَ شفقت اوهمدردئی دَ وجې نه دَ جمع صیغه راوړلې ده دې دَپاره چه دې اهم عبادت کښې هغوی هم شریك کړې شی. دَ ایمان دَ کامل والی تقاضا داده چه کوم څیزخپل ځان دَپاره خوښ کړې شی چه هم هغه دَ نورو دَپاره هم خوښ کړې شی. (کمافی الحدیث)

[1] التقریرات الثلاثه من رقوم الشیخ قدس سره مع ایضاح.

**قوله: وَنَسْتَعِيْنُهٗ:**

**دالله تعالی څخه مدد غوښتل:** یعنی دالله تعالی دحمد په عظیم امرکښې اونورو ټولو امورو کښې مونږ دخپل عاجزئی او قصور اعتراف کوؤ او په هرکارکښې دهغه پاك ذات اوقادر مطلق ذات نه دامداد طلبګاریو.

**دحصر صیغه نه ذکر کولو وجه:** دلته حضرت مصنف رحمه الله ایاه نستعین (مونږ ټول هم دهغه نه امداد غواړو) په عنوان دحصرئی ذکر نه کړو ځکه چه دمقام اختصاص ادراك وظیفه د خواصو ده. دهرچا دامقام نه دې چه د زړه په صدق سره دا اوونیلې شی چه دقدرت مشاهده په مونږ باندې دومره غالب راغلې ده چه زمونږ د هیڅ یو غیرطرف ته هډو خیال نه ځی. مطلب دادې چه عقیده خوددې امر هرمؤمن ته حاصله ده لیکن ددې استحضار صادق وظیفه د خواصو ده. په دې وجه ابن دنیار رحمه الله فرمائی ((لولا وجوب قرأة الفاتحة لما قرأتها لعدم صدقی فیها))(مرقات ص۷ ج۱)

**قوله: وَنَسْتَغْفِرُهٗ:**

**دالله څخه بښنه غوښتل:** یعنی چه په حمدکښې کوم غفلتونه اوتقصیرات زمونږ نه واقع شوی دی دارنګ ددې نه علاوه دکومو اسرافونو او ګناهونو مونږ ښکارشوی یو دټولونه معافی غواړو.

| وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ اَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّئَاتِ اَعْمَالِنَا. مَنْ يَّهْدِهِ اللّٰهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ. |
|---|

**ترجمه:** او مونږ د خپل نفس د بدو څخه او د خپلو بدو عملونو څخه د الله جل جلاله پناه غواړو. چاته چې الله تعالی جل جلاله نیغه لار وښودله هغه څوک بې لارې کولې نشي او څوک چې الله تعالی جل جلاله بې لارې کیدو ته پرېښودې وي هغه ته نیغه لار ښودونکې هیڅوک نشته.

**تسهیلات:**

**قوله: وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ اَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّئَاتِ اَعْمَالِنَا.**

**په شرور او سیئات کښې اشاره:** شرور أنفس او اعمال سیئه کښې ټول محرمات او مکروهات ظاهری اوباطنی بالعموم اودحمداوتصنیف دموقع بې اعتدالئی بالخصوص داخل دې مثلاً دحمدنه غفلت، په دې کښې ریاء او سمعه اود شوائب نفس اختلاط. قلت، عدم اخلاص، په خپل استعداد اوقابلیت باندې نظر. د الله تعالی توفیق هیرول اومسائلو دتفصیل په وخت قلت تدبر او د اعتدال دحد نه تجاوز وغیره امور

**قوله: مَنْ يَّهْدِهِ اللّٰهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ:**

**هدایت اوضلالت من جانب الله:** د کلام دا صورت خوددې خبري خبر دې چه د هدایت او اضلال په وصف کښې الله تعالی منفرددې د هیڅ خیراوشر خالق دهغه نه علاوه بل څوك

نشته لیکن معنی داجمله انشائیه او دعائیه ده. مطلب دا دې چه هدایت او اضلال هم دهغه په قبضه دَ قدرت کښې دې په دې وجه مونږ دهغه نه سوال اودرخواست کوو چه مونږ دهر قسم ضلالت نه په حفاظت کښې اوساتی او هدایت راته نصیب کړی.

وَأَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ شَهَادَةً تَكُوْنُ لِلنَّجَاةِ وَسِيْلَةً وَلِرَفْعِ الدَّرَجَاتِ كَفِيْلَةً وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ

**ترجمه:** زه شاهدي اداکوم چې د الله جل جلاله څخه ماسوا بل هیڅوک د عبادت لایق نشته هغه گواهي چې هغه د نجات د پاره وسیله او د درجاتو د اوچت والي د پاره ضامن ده او زه شاهدي اداکوم چې محمد ﷺ د الله جل جلاله بنده او د هغه رسول دي.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَأَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ شَهَادَةً تَكُوْنُ لِلنَّجَاةِ وَسِيْلَةً وَلِرَفْعِ الدَّرَجَاتِ كَفِيْلَةً

**د جملې ترکیب:** شهادةً دَ اشهد مفعول مطلق دي او جمله تکون للنجاة وسیلة الخ دَ شهادت صفت دي.

یعنی زه دَالله تعالی دَتوحید داسې گواهی ورکوم چه ① دَ نجات دَپاره وسیله وی ② په جنت کښې دَ درجات عالیه دَحصول ضامن وی

**د توحید د شهادت دوه مرتبې:** ① دَتوحید دَ شهادت دوه مرتبې دی اول دا چه عقیده او یقین خو صحیح دې لیکن لا دَهغه زور او طاقت نه دې چه دَ اعمال صالحه ارتکاب اودَاعمال طالحه څخه دَ اجتناب موجب جوړشی دا درجه دَ خلود فی النار نه دَ نجات سبب دي

② دویمه درجه دا ده چې چه یقین قلبی په اعضاؤ او جوارحو باندې دَ اعمال حسنه او طاعاتو په صورت کښې ښکاره کیږی نو دا درجه که صرف دَ طاعات واجبه پورې وی نو د دخول اولی فی الجنة سبب به وی اوکه دَ طاعات نافله پورې رسونکی وی نو دَدې په برکت به په جنت کښې دخول اولی هم وی او درجات عالیه به هم حاصلیږی.

غرض دا چه وسیلهٔ نجات کیدل دَ شهادت درجه اولی دَ دنیا او ضامن دَ رفع درجات کیدل دَ دې دویمه درجه او د علیا ثمره ده. نیکا اعمال. طاعات او پاك اخلاق هم دَ دغه دویمې مرتبې ثمرات او نتائج دی وبما قررنا ان رفع ما یرد علی المصنف من أن دخول الجنة بالإیمان ورفع الدرجات بالأعمال فكیف اضاف رفع الدرجات الی الشهادة. [1]

**قوله:** وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ

**دعبد اضافت دپاره د شرافت:** دَالله تعالی طرف ته دَ عبد اضافت تشریفی دي چه دَ حقوق ربوبیت په اداکولو کښې په ټول کائنات باندې فوقیت لرلو په وجه دَالله تعالی سره دَ قرب

[1] ) كذافي المرقاة ص۸ج۱.

اومحبت په منازلو کښې اګرچه رسالت د ټولو نه اوچته مرتبه ده لیکن چونکه دَعبد اصل موضوع هم عبدیت اوبندګی ده په دې وجه ئې دا مقدم اوفرمائیلو.

عبدیت دَنبی ﷺ په اوصافو کښې دَ ټولونه قیمتی او اشرف وصف دې. په دې وجه دَحضورپاك دَ ډیرو اهمو اودَعزت دَ مقاماتواومناصبو تذکرې په موقع کښې قرآن پاك دَ رسول الله ﷺ ذکرخیر په عنوان دَ«عبد» سره کړې دې.

**قرآن کښې نبی علیه السلام ته د عبد نسبت:** ① مثلاً دَمعراج عظیم واقعه ذکرکولوسره یې فرمائیلی دی ﴿ سُبْحٰنَ الَّذِیْٓ اَسْرٰی بِعَبْدِہٖ ﴾

② دَ فرقان غوندې عظیم الشان نعمت په نبی کریم ﷺ باندې د نازلو ذکر کوی نو د نبی کریم ﷺ د نورو صفاتو په ځائې ئې د عبدیت صفت ذکر کړې دې، فرمائی: ﴿ تَبٰرَكَ الَّذِیْ نَزَّلَ الْفُرْقَانَ عَلٰی عَبْدِہٖ ﴾.

③ د وحی په موقع ئې فرمائیلی دی: ﴿ فَاَوْحٰٓی اِلٰی عَبْدِہٖ مَآ اَوْحٰی ﴾.

دَعشق مجازی په مذهب کښې هم چه دَعبدوصف کله دَ محبوب طرف ته منسوب شی نوهغه ته ډیر خاص شرافت او حلاوت حاصلیږی. هم دَدې مزاج یوشاعر وائی:

لاتدعني إلا بيا عبدها　　فإنه أشرف سمائيا

یعنی ماته چه کله هم آواز کوې نوصرف دَهغه محبوبې دَ عبد وئیلوسره آواز کوه ځکه چه دَ دې سره برابر په شرافت کښې زمابل څه نوم نشته دې. (۱)

قاضی عیاض رحمه الله شارح مسلم او صاحب الشفاء رحمه الله فرمائی:

ومما زادني عجبا وتيها　　وكدت بأخمصي أطأ الثريا

دخولي تحت قولك يا عبادي　　وأن صيرت أحمد لي نبيا

یعنی ستا ارشاد پاك یاعبادی کښې داخله او دَاحمدمجتبٰی ﷺ زمونږ دَپاره نبی او زمونږ دَهغه په امت کښې کیدل داسې انعامات دی دکوم دَ خوند اومزې دَ وجې چه دَ خپو تلی په زمکه باندې نه لګی. (۲)

**د عبدیت په نسبت کښې فوائد:** ① په وصف عبدیت ذکر کولوکښې دا فائده ده چې که یوطرف ته نبی کریم ته رسالت ورکړې شوې دې معراج ته بوتلې شوې دې خو د دې لویومرتبو ورکولو باوجود رسول د عبدیت نه نه اوځی بلکه هم دَ عبدیت په صفت موصوف وی بلکه مقامات عالیه دَهغوی په عبدیت کښې نوره هم ترقی او خوند پیداکوی.

---

(۱) کذا فی المرقاة:ص۸ج۱.

(۲) کذا فی المرقاة:۸ج۱.

② په دې کښې د اعتقاد صحیح کول دی چه دَ رسول الله ﷺ په باره کښې دَ نصارى په شان افراط اونکړې شی چه دَ عبدیت څخه اوویستلې شی او الوهیت ته اورسولې شی. دغه شان چې دیهودو په شان تفریط اونکړې شی چه رسول الله ﷺ دَ الله تعالى رسول اومقبول بنده هم اونه ګنړلې شی.

**الَّذِي بَعَثَهُ وَطُرُقُ الْإِيمَانِ قَدْ عَفَتْ آثَارُهَا وَخَبَتْ أَنْوَارُهَا وَوَهَنَتْ أَرْكَانُهَا وَجُهِلَ مَكَانُهَا.**

**ترجمه:** چې الله تعالى جَلَّ جَلَالُهُ هغه وخت خپل رسول جوړلو سره راولیږلو چې د ایمان د لارو نښاني وراني شوې وې د هغه رڼا ګاني مړې شوې وې د هغه آثار کمزوري شوې وو او د هغه بنودل شوې منزلونه د نظرونو څخه غائب شوې وو.

**تسهیلات: قوله: الَّذِي بَعَثَهُ:**

**د جملې ترکیب:** «الَّذِي» اسم موصول دې «بَعَثَهُ» څخه واخله دَ «وَجُهِلَ مَكَانُهَا» پورې دَدې صله ده «وَطُرُقُ الْإِيمَانِ» کښې واؤ حالیه دې. «فَبَيَّنَ» او «شَفَى» «او» «أَوْضَحَ» او «أَظْهَرَ» هم په دې فعل صله باندې مرتب دی. موصول خپلې صله سره دَ «رَسُولُهُ» صفت دې.

**دعبارت مقصود:** په دې عبارت سره مقصود دا خودل دی چه دَ حضورپاك ﷺ دنیا ته تشریف راوړل دَ ډیر سخت ضرورت په موقع شوی دی ځکه چه دَ رسول الله ﷺ دَ بعثت په وخت خلق دَ جهالت او ضلالت آخرى حد ته رسیدلی وو. چرته یوداسې صحیح قیادت موجودنه وو چه دَ لارڅخه بې لارې شوی خلقو لره دَ عقائدو، اعمالو او دَ اخلاقو صحیح منزل ته اورسوی لکه چه په قرآن پاك کښې ارشاد مبارك دې: ﴿لَمْ يَكُنِ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ وَالْمُشْرِكِينَ مُنْفَكِّينَ حَتَّى تَأْتِيَهُمُ الْبَيِّنَةُ ۝ رَسُولٌ مِنَ اللَّهِ يَتْلُو صُحُفًا مُطَهَّرَةً ۝﴾ (سورة البينة الآيه:۲-۱.)

یعنی کوم خلق چه دَاهل کتاب اومشرکینو نه کافران وو هغوی دَ (خپل کفرنه هیڅ کله) منع کیدونکی نه وو ترکومې چه هغوی له واضح دلیل نه وو راغلې (یعنی) دَ یو الله تعالى رسول چه هغوی ته پاکې صحیفې تلاوت کولو سره واؤروی.

**قوله: وَطُرُقُ الْإِيمَانِ قَدْ عَفَتْ آثَارُهَا:**

**دطرق الایمان څخه مراد:** دَدې شیخ قدس سره په أشعة اللمعات :ص۲۴ج۱ کښې دوه مطلبونه بیان کړی دی:

① دَ طرق الایمان څخه مراد حضرات انبیاء کرام علیهم السلام اودَ هغوی نائبین علماء عظام رحمهم الله دی

② طرق الایمان نه مراد عقائد، اعمال، اخلاق، آداب اوریاضات دی چه دَانسانیت دَتکمیل ذریعې دی.

**قوله**: عَفَتْ اٰثَارُهَا

**آثار ختميدو څخه مراد**: دَ نخښو ورانيدو او رنړاګانو مړه کيدو يعنی دَ نخښو نخښانو ختميدل

**قوله**: وَخَبَتْ اَنْوَارُهَا:

**د رڼاګانو مړه کيدو څخه مراد**: اورڼا ګانې مړه کيدلونه مراد په علمی او عملی توګه باندې دَدغه کارونو مشهورنه پاتې کيدل دی

**قوله**: وَهَنَتْ اَرْكَانُهَا:

**دارکانو د کمزورئ څخه مراد**: دَ ارکان کمزورې کيدو نه مراد دادې چه دَ دغه شخصيات مقدسه تعليمات اودَ هداياتو سلسله دَتعليم اوتعلم ختمه شوې وه. اودَ هغې دَمقتضٰی مطابق دَ عمل رواج باقی نه وو پاتې شوې

**قوله**: وَجُهِلَ مَكَانُهَا:

**د جهل مکان څخه مراد**: دَ« وَجُهِلَ مَكَانُهَا.» څخه مراد دادې چه دَهغوی دَ علومو اومعارفو دَقدر اومنزلت نه ناواقفيت اوناخبری عامه وه.

مطلب دا چه زمونږ دَمحبوب پيغمبر ﷺبعثت په هغه وخت کښې شوې دې کوم وخت چه د انبياء سابقينو تعليمات بالکل ختم شوی وو صحيح لارخودنه بالکل معدوم شوې وه چرته يو نه يو کس به دَحضرت عيسی ﷷ په تعليم باندې عمل کونکې څوك وو خوهغه غريبانان دَ زمانې دَ حالاتو نه مجبوره وو خپل ځان اوايمان ئی چرته په يو ګوټ کښې پټ کړې ناست وو دَعامو خلقو قيادت ئی نه شوکولې

| فَشَيَّدَ صَلَوَاتُ اللهِ عَلَيْهِ وَسَلَامُهُ مِنْ مَعَالِمِهَا مَاعَفَى وَشَفَى مِنَ الْعَلِيْلِ فِي تَأْيِيْدِ كَلِمَةِ التَّوحِيْدِ مَنْ كَانَ عَلٰى شَفَا. وَاَوْضَحَ سُبُلَ الْهِدَايَةِ لِمَنْ اَرَادَ اَنْ يَسْلُكَهَا وَاَظْهَرَ كُنُوْزَ السَّعَادَةِ لِمَنْ قَصَدَ اَنْ يَمْلِكَهَا. |
|---|

**ترجمه**: نو نبي کريم ﷺ هغه وراني شوې نښاني د نوي سره راسرګندې کړې او د کلمهٔ توحيد سره يي هغه بيمار (ناجوړه) ته شفاء ورسوله، کوم چې هلاکت غاړي ته رسيدلي وو. او د هغه سړي د پاره يي د هدايت لاره روښانه کړه چې په هغه دتلو اراده وکړي او د هغه سړي د پاره يي د نيک بختي خزاني ظاهري کړي چې د هغوئ د مالک کيدو اراده وکړي.

**حل اللغات**: ① فَشَيَّدَ معنی پورته کول ښکاره کول اوقوی کول ده ② مَعَالِمِ، دا جمع د معلم ده علامه اونښه جمع معلم، ③ شَفٰى «دا د ماضی صيغه ده د شفاء بکسر الفاء څخه ماخوذ ده تندرسته کولوته وائی اوپه فتح الفاء سره دهريوځيز اړخ او طرف ته وائی ④ الْعَلِيْلِ «دا بيمار او رنځور ته وائی

## د مشكاة مدون كولو ضرورت

أَمَّا بَعْدُ فَإِنَّ التَّمَسُّكَ بِهَدْيِهِ لَا يَسْتَتِبُّ إِلَّا بِالْإِقْتِفَاءِ لِمَا صَدَرَ مِنْ مِشْكٰوتِهِ وَالْاِعْتِصَامَ بِحَبْلِ اللهِ لَا يَتِمُّ إِلَّا بِبَيَانِ كَشْفِهِ.

**ترجمه:** د دې څخه وروسته پوهيدل پكار دي چې: د نبي كريم ﷺ اسوهٔ (طريقه) اختيارول هغه وخت معتبره كيدي شي چې: د هغه شي كامل اتباع (پيروي) وشي چې د نبى كريم ﷺ د سيني مباركې څخه ظاهر شوې وو، يعنى د نبى كريم ﷺ ارشادات او احكام، دغسې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسي يعنى په قرآن كريم باندې اعتماد او په هغه عمل هلته ممكن كيدي شي چې د هغه تشريح او وضاحت د احاديثو نبويو څخه وي.

**حل اللغات:** ① لَا يَسْتَتِبُّ دا لفظ د استفعال نه دې، بمعنى لايستقيم او لايستمر ② الْإِقْتِفَاءِ: د تلاش كولو او لټولو په معنى دې، ددې نه مراد اتباع ده. ③ مِشْكٰوتِهِ: مشكاة غير نافذه طاقچې ته وائي، ④ الْاِعْتِصَامَ يو څيز په موټى كښې مضبوطيا سره رانيولو ته وائي ⑤ حَبْلِ اللهِ ددې نه مراد قرآن كريم دې ⑥ بِبَيَانِ كَشْفِهِ: دبيان اضافت كشفه طرف ته اضافت بيانيه دې

**تسهيلات:**

**د دوو مقاصدو د حصولو دپاره دمشكاة د ليكولو ضرورت:** دلته صاحب مشكوة دا بيانول غواړي چې ددې باوجود چې د كتاب مصابيح په شان يو عظيم او قابل اعتماد كتاب موجود وو، بيا يې د مشكوة المصابيح د تاليف ضرورت ولې محسوس كړو.

① د حضرت نبى كريم ﷺ په نقش قدم باندې تلل ممكن نه دى تر كومې چې د احاديثو علم حاصل نه كړې شي.

② د قرآن كريم په تفصيلى احكاماتو عمل كول بغير د احاديثو نه ممكن نه دى

ددې دواړو اهمو مقاصدو دحصول دپاره دحديثو ضرورت وو او د حصول حديث دپاره د يو جامع كتاب ضرورت وو چې په هغې كښې هر قسمه ضروري احاديث جمع كړې شوى وى. داشان جامع كتاب د امام حديث شيخ محى السنة كتاب مصابيح وو كوم چې دخپل فن يو شاهكار كتاب وو

**د مذكوره عبارت مطلب:** د قرآن كريم د مجملاتو تفصيل د احاديثو نه بغير ممكن نه دې قرآن كريم كښې اصول وقواعد دى احاديثو د هغې وضاحت اوكړو كه د احاديثو تفصيلات د قرآن كريم نه جدا كړې شي نو قرآن كريم به معطل پاتې شي. څكه چې داحكاماتو فرائض وواجبات وسنن او ددې د اوقاتو اوكيفياتو تفصيلات په قرآن كريم كښې نشته دې، ملحدينو هم دا كوشش كړې دې چې احاديثولره دقرآن كريم نه جدا كړى چې د دين اسلام جرړې پريكړې شى.

## د کتاب المصابیح ستائنه

وَكَانَ كِتَابُ الْمَصَابِيْحِ الَّذِيْ صَنَّفَهُ الإِمَامُ مُحْيِ السُّنَّةِ قَامِعُ الْبِدْعَةِ اَبُوْ مُحَمَّدِنِ الْحُسَيْنُ ابْنُ مَسْعُوْدِنِ الْفَرَّاءُ الْبَغَوِيْ رَفَعَ اللهُ دَرَجَتَهُ اَجْمَعَ كِتَابٍ صُنِّفَ فِيْ بَابِهٖ وَاَضْبَطَ لِشَوَارِدِ الاَحَادِيْثِ وَاَوَابِدِهَا.

**ترجمه**: امام محي السنة (سنت ژوندي کونکي) قامع البدعة (بدعت لرې کونکي) ابو محمد حسين الفراء بغوي الله تعالى ﷺ دي د هغه درجې او چتې کړي (آمين) چې کوم کتاب (مصابیح) تالیف فرمایلي وو هغه د خپل فن یو جامع کتاب وو چې په هغه کې امام صاحب ډیر په حسن او ښکلا سره منتشر او متفرق احادیث را جمع کړي وه.

**حل اللغات**: ① اَضْبَطَ: أضبط: دا د مرتب په معنی کښې دي. یعني دا کتاب د حفظ و ضبط تولو نه زیات لائق وو ② شَوَارِدِ: دا د شاردة جمع ده، یعني تښتیدونکي اوښ، ③ اَوَابِدِهَا: دا د أبدة جمع ده. تریدونکي ځناور،

**د مذکوره عبارت مطلب**: په دې دوارو لفظونو کښې دا وئیلې شوی دی چې خینې احادیث چې د حدیث په کتابونو کښې په مختلفو ځایونو کښې مذکور دی، هغه د یو طالب علم نه لکه د تښتیدونکی اوښ په شان دی کوم چې په لاس نه رازی. او د خینې احادیثو معنی د طالب علمانو نه پټې وی، دهغې تشبیه یې داسې ځناورو سره ورکړه کوم چې متوحش او آموخته نه دی. دوارو لفظونو کښې تشبیه ده. او دا استعاره ده، او أوابد، د شوارد دپاره عطف تفسیر دي.

**ځناورو سره د احادیثو د تشبیه وجه**: ملا علی قاری رحمة الله علیه لیکلی دی چې د احادیثو د تښتیدونکی وحوش سره ئې تشبیه ځکه ورکړې ده چې ځنګه یو وحشی ځناور ته موقع ملاؤ شی او اوتښتی. همداشان احادیثو نه هم که لږ شان غفلت هم اوکړې شی نو هغه د حافظې نه اوځی او غائبیږی. هم ددې وجې وئیلې شوی دی چې: العلم صید والکتابة قید.

**اشکال**: د احادیثو تشبیه ئې غیر مانوس وحوشو سره ولې ورکړې شوې ده. دا یو قسمه بې ادبی ده. کوم چې د مصنف د شان سره نه ښائی.

**داشکال جواب**: په تشبیه کښې د ټولو صفاتو او ټولو کیفیاتو لحاظ نه دې. نودلته هم دا هم ضروری نه دی چې د مشبه نه مشبه به همیشه اعلی وارفع وی، خینې وخت کښې مخصوص وضاحت دپاره د یو مخصوص اړخ لحاظ ساتلو سره تشبیه ورکړې کیږی. حالانکه مشبه به ادنی وی، لکه ځنګه چې: اَللّٰهُ نُوْرُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ آیت کښې كَمِشْكٰوةٍ فِيْهَا مِصْبَاحٌ دی.

## د صاحب مصابيح اسناد حذف کول

وَلَمَّا سَلَكَ رَضِيَ اللهُ تَعَالٰى عَنْهُ طَرِيْقَ الإِخْتِصَارِ وَحَذَفَ الْأَسَانِيْدَ تَكَلَّمَ فِيْهِ بَعْضُ النُّقَّادِ. وَإِنْ كَانَ نَقْلُهُ وَإِنَّهُ مِنَ الثِّقَاتِ كَالْإِسْنَادِ لٰكِنْ لَيْسَ مَافِيْهِ أَعْلَامٌ كَالْأَغْفَالِ فَاسْتَخَرْتُ اللهَ تَعَالٰى وَاسْتَوْفَقْتُ مِنْهُ فَأَوْدَعْتُ كُلَّ حَدِيْثٍ مِنْهُ فِيْ مَقَرِّهٖ

**ترجمه:** او کوم وخت چې مصنف رحمه الله د نقل حديث په وخت د اختصار طريقه اختيار کړله او اسنادونه يې حذف کړنو په دې بعضو محدثينو او ناقدينو اعتراض وکړې. اګرکه د مصنف حديث بې له سنده نقل کول داسې دي لکه چې د سند سره يې نقل کړي وي، ځکه چې هغوئ د نقل حديث په معامله کې معتبر او قابلِ اعتبار محدثينو کې شميرل کيږي ليکن بيا هم کوم شي چې بې نښاني وي هغه د نښاني والا شي په درجه کې نشي کيدي، ځکه ما د الله تعالىٰ ﷻ ځخه مدد وغوښتې او د هغه د توفيق طلبګار شوم.

**حل اللغات:** ① أَعْلَامٌ: أعلام د علم جمع ده، دنخښې په معنی دې. دهمزه په فتحې سره، اوددې ترجمه اثر هم ده. ② أَغْفَالٌ: د همزې په فتحې سره دې، دا د غفل جمع ده. او غفل هغه زمکې ته وائی په کومه چې علامت، اثر يا نخښه نه وی.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَمَّا سَلَكَ رَضِيَ اللهُ تَعَالٰى عَنْهُ طَرِيْقَ الإِخْتِصَارِ:

**د مصابيح د اختصار طريقه:**

① صاحب د مصابيح امام بغوی رحمه الله د حديث سند نه وو ذکر کړې

② هغوی د کتاب حواله هم نه وه ورکړې چې دا حديث په فلانی کتاب کښې دې.

③ هغوی په شروع کښې دهغه صحابی نوم هم نه وو ليکلې دچا نه چه دا حديث روايت شوې دې.

**قوله:** وَحَذَفَ الْأَسَانِيْدَ تَكَلَّمَ فِيْهِ بَعْضُ النُّقَّادِ:

**په مذکوره طريقه باندې اعتراض:** صاحب د مشکاة فرمائی چې د مذکوره درې واړه خبرې داسې خبرې دی چې په فن حديث کښې ډيرې خطرناکې وې، ځکه چې ماهرين حديث او حفاظ حديث نه علاوه نورو خلقو لره ددې نه فائده اخستل ډير مشکل وو، صاحب مصابيح پخپله سل په سل فيصده ثقه او قابل بهروسه وو مګر دنورو معامله خو بيله وه. او د حديث د صحت او غير صحت دپاره چې محدثينو کومه ضابطه قائمه کړې وه په هغې پورا ختل هم ضروری وو. ځکه چې الإسناد من الدين ولولا الإسناد لقال من شاء ماشاء: دا يو هم قانونی ضابطه وه، او په دې پورا ختل ضروری وو، هم په دې وجه صاحب مشکوة ته موقع په لاس ورغله چې په مصابيح کښې ترميم او اضافه اوکړی او يو نوې تصنيف پيش کړی نو هغوی هم داشان اوکړل.

**قوله**: لٰكِنْ لَيْسَ مَافِيْهِ أَعْلَامٌ كَالْأَغْفَالِ:

**په مشكاة كښې نوې كار**: دأعلام نه صاحب مشكوة خپل كتاب مشكوة مراد اخستې دې او أغفال نه مصابيح مراد دې. ځكه چې په مشكوة كښې د صحابى د نوم نخښه لګيدلې ده د سند علامت پرې اولګيدو، كوم چې مصابيح كښې نه وو.

**دصاحب مشكاة په عبارت كښې عاجزى**: دلته د عبارت تقاضا دا وه چې مصنف داشان عبارت راوړې وې ليس ما فيه أغفال كالأعلام. يعنى بې نخښنو مصابيح ددې درجې نه وو لكه څنګه نخښنو والا مشكاة دې. ليكن د هغه صلحاء كرامو د آدابو نه قربان شم چې صاحب د مصابيح د صاحب مشكوة استاذ هم نه دې او د دواړو په زمانو كښې د پيړو فاصله ده مګر بيا هم صاحب مشكوة د قصور نسبت خپل خان طرفته كوى چې په كوم كتاب كښې نخښې لګيدلې دى هغه د هغه درجې نه دې كوم كښې چه نخښې نشته دې. په دې كښې يئ د كسر نفسى او آدابو پورا پورا خيال ساتلې دې.

## دمشكاة كښې د مشهورو محدثينو د كتابونو څخه احاديث نقل كول

فَأَعْلَمْتُ مَا أَغْفَلَهُ كَمَا رَوَاهُ الْأَئِمَّةُ الْمُتْقِنُوْنَ وَالثِّقَاتُ الرَّاسِخُوْنَ مِثْلُ ① أَبِيْ عَبْدِ اللّٰهِ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْمَاعِيْلَ الْبُخَارِيِّ ② وَأَبِي الْحُسَيْنِ مُسْلِمِ بْنِ الْحَجَّاجِ الْقُشَيْرِيِّ ③ وَأَبِيْ عَبْدِ اللّٰهِ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ الْأَصْبَحِيِّ ④ وَأَبِيْ عَبْدِ اللّٰهِ مُحَمَّدِ بْنِ إِدْرِيْسَ الشَّافِعِيِّ ⑤ وَأَبِيْ عَبْدِ اللّٰهِ أَحْمَدَ بْنِ حَنْبَلٍ الشَّيْبَانِيِّ ⑥ وَأَبِيْ عِيْسٰى مُحَمَّدِ بْنِ عِيْسٰى التِّرْمِذِيِّ ⑦ وَأَبِيْ دَاوٗدَ سُلَيْمَانَ ابْنِ الْأَشْعَثِ السِّجِسْتَانِيِّ ⑧ وَأَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَحْمَدَ بْنِ شُعَيْبٍ النَّسَائِيِّ ⑨ وَأَبِيْ عَبْدِ اللّٰهِ مُحَمَّدِ بْنِ يَزِيْدَ ابْنِ مَاجَةَ الْقَزْوِيْنِيِّ ⑩ وَأَبِيْ مُحَمَّدٍ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الدَّارِمِيِّ ⑪ وَأَبِي الْحَسَنِ عَلِيِّ ابْنِ عُمَرَ الدَّارَقُطْنِيِّ ⑫ وَأَبِيْ بَكْرٍ أَحْمَدَ بْنِ الْحُسَيْنِ الْبَيْهَقِيِّ ⑬ وَأَبِي الْحَسَنِ رَزِيْنِ ابْنِ مُعَاوِيَةَ الْعَبْدَرِيِّ وَغَيْرِهِمْ وَقَلِيْلٌ مَّا هُوَ.

**ترجمه**: ماهر حديث چې د كوم باب سره د هغه تعلق وو په هغه باب كې نقل كړي او عالمانو او محدثينو چې څنګه هغه روايت كړي ما هم د سند او د كتاب د حوالي سره د هغه ذكر وكړي، مثلاً: امام بخاري رحمه الله، امام مسلم رحمه الله، امام مالك رحمه الله. امام شافعي رحمه الله، امام احمد بن حنبل رحمه الله، امام ترمذي رحمه الله، امام ابو داود رحمه الله، امام نسائي رحمه الله، امام ابن ماجه رحمه الله، امام دارمي رحمه الله، امام دارقطني رحمه الله، امام بيهقي رحمه الله، امام رزين بن معاويه عبدري رحمه الله، دي امامانو او محدثينو چې څنګه په خپلو كتابونو كې حديث نقل كړي دي دغسې ما د هغې كتابونو څخه حديث اخستو سره په دي كتاب كې جمع كړل، د دې امامانو او محدثينو څخه علاوه څه نور محدثين هم شته چې د هغوئ د كتابونو څخه احاديث نقل شوې دي خو د هغوئ تعداد ډير كم دي.

## په مشکاة کښې د سند نه ذکر کولو وجه

وَاِلَى اِذَا نَسَبْتُ الْحَدِيْثَ اِلَيْهِمْ كَاَنِّىْ اَسْنَدْتُ اِلَى النَّبِىِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ لِاَنَّهُمْ قَدْ فَرَغُوْا مِنْهُ وَاَغْنَوْنَا عَنْهُ.

**ترجمه:** او حقیقت دا دي چې هر کله ما د دې احادیثو هغه امامانو او محدثینو طرف ته نسبت وکړي نو لکه چې د هغه سند مي د نبي کریم ﷺ پورې رسولي دي. او ما و دي کتاب ته هغه ترتیب ورکړي کوم چې صاحب د مصابیح ایښي وو او په دي سلسله کې مي د هغه د نقش قدم پیروي کړي ده.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَاِلَى اِذَا نَسَبْتُ الْحَدِيْثَ اِلَيْهِمْ:

**اشکال:** څنګه صاحب مصابیح سند نه دې ذکر کړې، نو صاحب مشکوة هم سند ترك کړې دې، لهذا کوم اعتراض چې محدثینو په مصابیح کړې وو هغه په صاحب مشکوة هم تر اوسه باقی دې؟

**داشکال جواب:** په دې عبارت سره صاحب مشکوة هم ددې اعتراض جواب ورکړې دې د هغې خلاصه داده چې صاحب مشکوة د کومو أئمه محدثینو د کتابونو نه احادیث راجمع کړی دی او د حدیث نسبت یې هغه کتاب طرف ته کړې دې نو ګویا چې دا حدیث ئې د سند په اعتبار سره نبی کریم ﷺ ته اورسولو. ځکه چې دغه محدثینو او ددې کتابونو محدثینو ډیر محنت او مشقت کړې دې او ددې احادیثو سندونه یې ذکر کړی دی یعنی دې حضراتو دا احادیث د تلاش، تحقیق و تدقیق او بحث و تمحیص او جرح و تعدیل د مرحلونه پس راجمع کړی دی. لهذا هغوی طرف ته صرف نسبت کول او حواله ورکول سند دپاره کافی دی

## دمشکاة د فصلونو تقسیم

وَسَرَدْتُ الْكُتُبَ وَالْاَبْوَابَ كَمَا سَرَدَهَا وَاقْتَفَيْتُ اَثَرَهُ فِيْهَا. وَقَسَمْتُ كُلَّ بَابٍ غَالِبًا عَلٰى فُصُوْلٍ ثَلَاثَةٍ اَوَّلُهَا مَا اَخْرَجَهُ الشَّيْخَانِ اَوْ اَحَدُهُمَا وَاكْتَفَيْتُ بِهِمَا وَاِنِ اشْتَرَكَ فِيْهِ الْغَيْرُ لِعُلُوِّ دَرَجَتِهِمَا فِي الرِّوَايَةِ. وَثَانِيْهَا مَا اَوْرَدَهُ غَيْرُهُمَا مِنَ الْاَئِمَّةِ الْمَذْكُوْرِيْنَ وَثَالِثُهَا مَا اشْتَمَلَ عَلٰى مَعْنَى الْبَابِ مِنْ مُلْحَقَاتٍ مُنَاسِبَةٍ مَعَ مُحَافَظَةٍ عَلَى الشَّرِيْطَةِ وَاِنْ كَانَ مَاْثُوْرًا عَنِ السَّلَفِ وَالْخَلَفِ.

**ترجمه:** او ما هر باب په دري فصلونو کې تقسیم کړي دي، په اول فصل کې مي هغه احادیث جمع کړي دي چې: شیخینو یعنی بخاري او مسلم روایت کړي دي یا په دي دواړو کې یوه روایت کړي دي که څه هم په هغه احادیثو کې بعضې داسې هم دي چې هغه نورو محدثینو هم روایت کړي دي لیکن په دي فصل کې ما یوازي د شیخینو په

ذکر باندې اکتفاء کړي ده ځکه چې د شیخینو درجه په ټولو محدثینو باندې اوچته ده. او په دویم فصل کې مې هغه احادیث جمع کړي دي چې د شیخانو یعنی بخاري او مسلم څخه علاوه په نورو ذکر شوو امامانو کې چې چا روایت کړي وي او په دریم فصل کې مې د احادیثو څخه علاوه د صحابؤ او تابعینو هغه اقوال او آثار مې هم راجمع کړي دي چې د باب مناسب او لایق وو، لیکن آثار او خبر شاملولو سره د حدیث شرطونه په نظر کې ساتل شوې دي.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَسَرَدْتُ الْكُتُبَ وَالْأَبْوَابَ كَمَا سَرَدَهَا وَاقْتَفَيْتُ أَثَرَهُ فِيهَا:

**دمشکاة په تدوین کښې دامام بغوی متابعت:** دمصنفینو دا دستور دې چې په خپل تالیف کښې د مسائلو ذکر دپاره د کتاب عنوان لیکی. لکه کتاب الطهاره، بیا ددې په ضمن کښې مختلف قسمه مسائل دابوابو په صورت کښې ذکر کوی کوم چې ددې عنوان سره مناسب وی. لکه باب الوضوء، باب الحیض، هم داشان د ابوابو په ضمن کښې د فصل ذکر کوی. او د ټولو مسائلو د راجمع کولو کوشش کوی. صاحب مشکوة فرمائی چې زه د محی السنة په نقش قدم تلې یم

**قوله:** وَقَسَمْتُ كُلَّ بَابٍ غَالِبًا عَلَى فُصُولٍ ثَلَاثَةٍ:

**په مشکاة کښې د دریم فصل اضافه:** په مصابیح کښې د فصل اول او فصل دوم یوه نوې اصطلاح وه، چې اول کښې د بخاری او مسلم روایتونه ذکر کوی او فصل ثانی کښې د حسان احادیث وی. لیکن صاحب مشکوة په دې کښې د یو دریم فصل اضافه کړې ده چې د احادیث مرفوعه نه علاوه اقوال صحابه او آثار هم په دې کښې د موقعې مناسبت سره ذکر کړې شی. د بخاری او مسلم روایات اګر چې نورو محدثینو هم ذکر کړی دی خو صاحب مشکوة فرمائی چې ما په ذکر کولو کښې صرف د بخاری او مسلم نوم اخستې دې. ځکه چې د هغوئ یو خانګړې شان دې.

**قوله:** مَعَ مُحَافَظَةٍ عَلَى الشَّرِيطَةِ وَإِنْ كَانَ مَأْثُورًا عَنِ السَّلَفِ وَالْخَلَفِ:

**د دریم فصل داحادیثو کیفیت:** صاحب مشکاة فرمائی چې ما دریم فصل کښې مناسب د موضوع سره دسلف صالحینو آثار هم د مرفوع احادیثو سره جمع کړې شوی دی. لیکن اول او دویم فصل کښې چې کوم شرائط وو، په دریم فصل کښې هم د هغې لحاظ ساتلې شوې دې. یعنی دصحابی راوی نوم ذکر کول، دکتاب او مخرج حواله ورکول او د روایت د صحت خیال ساتل.

## د مصابیح د بعضي حدیث د حذف او تکمیل وجه

ثُمَّ اِنَّكَ اِنْ فَقَدْتَ حَدِيْثًا فِيْ بَابٍ فَذٰلِكَ عَنْ تَكْرِيْرٍ اُسْقِطُهٗ. وَاِنْ وَجَدْتَ اٰخَرَ بَعْضُهٗ مَتْرُوْكًا عَلٰى اِخْتِصَارِهٖ اَوْ مَضْمُوْمًا اِلَيْهِ تَمَامُهٗ فَعَنْ دَاعِيْ اِهْتِمَامٍ اَتْرُكُهٗ وَاُلْحِقُهٗ.

**ترجمه:** بیا په تحقیق سره که ته په یو باب کې څه حدیث پیدا کوي نه شی نو ودي ګڼل شی چې هغه ما د تکرار په وجه نه دي نقل کړي. او که ته یو حدیث پیدا کړي چې د هغه بعضې حصه د اختصار په وجه حذف شوې ده یا په هغه کې د هغه حدیث بقیه حصه یو ځای شویده نو دا حذف کول او یو ځای کول دیو خاص مقصد لاندي دي. او که په دواړو فصلونو کې اختلاف په نظر درشي یعنی غیر د شیخینو احادیث خو په اول فصل کې ذکر شوې وي او د شیخینو احادیث په دویم فصل کې نقل شوې وي نو پوهیدل پکاردي چې اختلاف د غلطي یا د غفلت په وجه نه دي شوې بلکه د امام حمیدي د کتاب (جمع بین الصحیحین) او کتاب (جامع الاصول) کې د ډیر تلاش او تحقیق او تفتیش څخه وروسته کړي دي او په دي سلسله کې ما د بخاري او مسلم په اصل نسخو او د هغه په متن اعتماد کړي دي.

**تسهیلات:**

**قوله:** ثُمَّ اِنَّكَ اِنْ فَقَدْتَ حَدِيْثًا فِيْ بَابٍ فَذٰلِكَ عَنْ تَكْرِيْرٍ اُسْقِطُهٗ:

**د مصابیح حدیث په مشکاة کښې د نه ذکرکولو وجه:** صاحب مشکوة فرمائی چې صاحب مصابیح د مکررو احادیثو ذکر کړې وو. نوکه تاسوته داسې په نظر راشی چې په مصابیح کښې یو حدیث شته او هغه په مشکوة کښې نشته نو د هغې وجه داده چې په مصابیح کښې د احادیثو تکرار وو او مشکوة کښې دا تکرار ختمولو دپاره دغه حدیث ترک کړې شوې دې او باب سره زیات مناسبت والاحدیث درج کړې شوې دې.

**قوله:** وَاِنْ وَجَدْتَ اٰخَرَ بَعْضُهٗ مَتْرُوْكًا عَلٰى اِخْتِصَارِهٖ اَوْ مَضْمُوْمًا اِلَيْهِ الخ:

**د مصابیح په احادیثو کښې حذف او تطویل:** دمذکوره عبارت په تشریح کښې علامه طیبی رحمة الله علیه فرمائی چې صاحب مصابیح کله کله د یو اوږد حدیث یوه حصه د باب مناسبت سره ذکر کوی او طویل حدیث پریږدی، صاحب مشکوة هم د اختصار په طور هم دا طریقه خپلوی او کله کله داسې هم کوی چې مختصر حدیث باندې د پوهیدو دپاره د هغه طویل محذوف حدیث ذکر ضروری وی، نو صاحب مشکوة هغه ذکر کوی. غرض دا چې ضرورت حدیث او د مناسبت مقام په وجه دا حذف او اثبات او دا ترک کول او ذکرکولې کیږی دې ته یې: أترکه وألحقه فرمائیلی دی.

ملا علی قاری رحمة الله علیه فرمائی چې أترکه وألحقه کښې واؤ، د اؤ په معنی دې. یعنی د

داعی او ضرورت پیش نظر کله په ترك او حذف باندې عمل کیږی او کله ذکر کولو او الحاق کولو باندې عمل کیږی.

## د صحیحینو په متن باندې اعتماد کول

> وَاِنْ عَثَرْتَ عَلٰى اِخْتِلَافٍ فِي الْفَصْلَيْنِ مِنْ ذِكْرِ غَيْرِ الشَّيْخَيْنِ فِي الْاَوَّلِ وَذِكْرِهِمَا فِي الثَّانِي فَاعْلَمْ اَنِّي بَعْدَ تَتَبُّعِي كِتَابَيِ الْجَمْعِ بَيْنَ الصَّحِيْحَيْنِ لِلْحُمَيْدِي وَجَامِعِ الْاُصُوْلِ اعْتَمَدْتُ عَلٰى صَحِيْحَيِ الشَّيْخَيْنِ وَمَتْنَيْهِمَا.

**ترجمه:** او که په دواړو فصلونو کې اختلاف په نظر درشي یعنی غیر د شیخینو احادیث خو په اول فصل کې ذکر شوې وي او د شیخینو احادیث په دویم فصل کې نقل شوې وي نو پوهیدل پکار دي چې اختلاف د غلطي یا د غفلت په وجه نه دي شوې بلکه د امام حمیدي د کتاب (جمع بین الصحیحین) او کتاب (جامع الاصول) کې د ډیر تلاش او تحقیق او تفتیش څخه وروسته کړي دي او په دې سلسله کې ما د بخاري او مسلم په اصل نسخو او د هغه په متن اعتماد کړي دي.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَاِنْ عَثَرْتَ عَلٰى اِخْتِلَافٍ فِي الْفَصْلَيْنِ مِنْ ذِكْرِ غَيْرِ الشَّيْخَيْنِ فِي الْاَوَّلِ الخ

**د مذکوره عبارت مطلب:** صاحب مصابیح دا طریقه خپله کړې ده چې فصل اول کښې د بخاری او مسلم روایات ذکر کوی او فصل ثانی کښې هغه احادیث راجمع کوی کوم چې د بخاری او مسلم نه علاوه ائمۀ حدیث په خپلو کتابونو کښې ذکر کړی دی لیکن صاحب مشکوة څینو ځایونو کښې داسې کړی دی چې مصابیح کښې چې کوم احادیث شیخینو ته منسوب کړې شوی او نقل شوی دی، دوی هغه احادیث نورو أئمه کرامو طرف ته منسوب کړی دی. لکه کتاب فضائل القرآن کښې په صفحه نمبر ۱۸۵ د انس حدیث کښې: رواه الترمذی. دی. لیکن فصل اول کښې دی. همدا شان صاحب مشکوة څینې مقاماتو کښې د فصل ثانی حدیث لره د شیخینو بخاری او مسلم طرف ته منسوب کړې دې. لکه باب مایقرأ بعدالتکبیر ص/۷۸ باندې د سمره بن جندب ﷺ روایت ئې فصل ثانی کښې د مسلم طرف ته منسوب دې. آخر دا تغیر وتبدل او دا اختلاف ولې دې؟

صاحب مشکوة ددې ردوبدل او ددې فرق باره کښې فرمائیلی دی چې دا زما د غلطي یا سهوې په بناء نه دی بلکه ما کتاب الجمع بین الصحیحین او کتاب جامع الاصول او داشان د بخاری او مسلم اصل نسخې او ددې کتابونو متون ډیر غور او ژور تحقیق سره اوکتلې، نو په دې کتابونو کښې چې کوم احادیث شیخینو طرف ته منسوب کړې شوی دی او صاحب مصابیح هغه په فصل اول کښې شیخینو طرف ته منسوب کړی دی نو ما هغه احادیث په مشکوة کښې شیخینوطرف ته دمنسوب کولو په ځائې دهغې اصل راوی او ناقل طرف ته منسوب کړی دی لکه څنګه چه ما په باب سنن الوضوء کښې کړی دی.

او هم داشان کوم احادیث چې صاحب مصابیح د شیخینو نه علاوه نورو ائمه کرامو طرف

ته منسوب کړی دی او هغه يې په دويم فصل کښې نقل کړی وو، او ما ته هغه احاديث په مذکوره کتب اربعه کښې د شيخينو طرف ته منسوب په نظر راغلل نو ما هغه د شيخينو طرف ته منسوب کړل.

اوچونکه زما په خپل تحقيق او خيرنه باندې بهروسه وه، بيا راته ددې کتب اربعه تائيد هم ملاؤ شو نو ما صاحب مصابيح سره اختلاف اوکړو او دا خيال مې اوکړو چې کيديشی چې صاحب مصابيح ددې په نقل کولو کښې سهوه شوې وی.

**د مصابيح او مشکاة داحاديثو په الفاظو کښې دا ختلاف وجه**

وَاِنْ رَأَيْتَ اِخْتِلَافًا فِي نَفْسِ الْحَدِيْثِ فَذٰلِكَ مِنْ تَشَعُّبِ طُرُقِ الْاَحَادِيْثِ. وَلَعَلِّي مَا اطَّلَعْتُ عَلٰى تِلْكَ الرِّوَايَةِ الَّتِي سَلَكَهَا الشَّيْخُ رَضِيَ اللهُ تَعَالٰى عَنْهُ وَقَلِيْلًا مَا تَجِدُ اَقُوْلُ مَا وَجَدْتُ هٰذِهِ الرِّوَايَةَ فِي كُتُبِ الْاُصُوْلِ اَوْ وَجَدْتُ خِلَافَهَا فَاِذَا وَقَفْتَ عَلَيْهِ فَانْسِبِ الْقُصُوْرَ اِلَيَّ لِقِلَّةِ الدِّرَايَةِ لَا اِلٰى جَنَابِ الشَّيْخِ رَفَعَ اللهُ قَدْرَهُ فِي الدَّارَيْنِ حَاشَا لِلّٰهِ مِنْ ذٰلِكَ. رَحِمَ اللهُ مَنْ اِذَا وَقَفَ عَلٰى ذٰلِكَ نَبَّهَنَا عَلَيْهِ وَاَرْشَدَنَا طَرِيْقَ الصَّوَابِ. وَلَمْ آلُ جُهْدًا فِي التَّنْقِيْرِ وَالتَّفْتِيْشِ بِقَدْرِ الْوُسْعِ وَالطَّاقَةِ وَنَقَلْتُ ذٰلِكَ الْاِخْتِلَافَ كَمَا وَجَدْتُ.

**ترجمه**: او که اختلاف په اصل حديث کې په نظر درشي نو دا به د احاديثو په سندونو کې د اختلاف په وجه وي. او کيدي شي چې کوم روايت شيخ رحمه الله نقل کړي دي هغه ماته نه وي حاصل شوې خو داسې کم کيږي چې هغه روايت دي ماته نه وي حاصل شوې يا ماته د اصول په کتابونو کې د شيخ د نقل شوې روايت خلاف هغه روايت رارسيدلي وي ليکن که چرته دا اختلاف معلوم وي نو د خطا او قصور نسبت دي زما دکوتاهئ د علم په وجه زما طرف ته وشي او شيخ رحمه الله دي د غلطي څخه پاک وګڼل شي، الله تعالی جل جلاله لره پاکي ده د دې کار څخه.

**تسهيلات:**

**قوله**: وَاِنْ رَأَيْتَ اِخْتِلَافًا فِي نَفْسِ الْحَدِيْثِ فَذٰلِكَ مِنْ تَشَعُّبِ طُرُقِ الْاَحَادِيْثِ:

**دمصابيح اومشکاة د احاديثو په الفاظو کښې د اختلاف وجه**: يعنی صاحب مصابيح يو حديث نقل کړو او هم هغه روايت چې کله صاحب مشکوة ذکر کړو نو ددې دواړو په الفاظو کښې فرق بيا موندې شو، يو کښې يو شان الفاظ دی او بل کښې نور الفاظ دی. ددې متعلق صاحب مشکوة فرمائی چې دا فرق په حقيقت کښې دسندونو د اختلاف په وجه دې. يعنی صاحب مصابيح ته چې هغه روايت په کوم سند سره ملاؤ شو نو هغه هم هغه الفاظو سره نقل کړو، او ماته چې هغه روايت په کوم سند سره راورسيدو نو ماهم هغه الفاظو سره نقل کړو، او شايد چې ماته هغه روايت ملاؤ نشو کوم چې شيخ اختيار کړې دې.

**قوله**: وَقَلِيْلًا مَا تَجِدُ اَقُوْلُ مَا وَجَدْتُ هٰذِهِ الرِّوَايَةَ فِي كُتُبِ الْاُصُوْلِ:

**دمذکوره عبارت مطلب**: صاحب مشکوة په ځينې مقاماتو کښې د فصل اول يا فصل ثانی روايات واحاديث نقل کوی او د حديث د مآخذ ومخرج حواله ورکولو په ځائې وائی ما

وجدت هذه الروایة في کتب الأصول أو وجدت خلافها: ماته په کتب اصول کښې دا روایت نه دې ملاؤ نشو، یا راته د هغه برعکس ملاؤ شو کوم چې صاحب مصابیح نقل کړې دې. ددې متعلق ډیر د ادب خیال ساتی او فرمائی چې دا زما د تتبع او لټون نقص دې، په دې کښې د شیخ هیڅ قصور نشته. حاشا وکلا! هغوئ ددې قصور نه بریٔ الذمه دی. ما په لټون کښې ډیره خواری اوکړه خو ماته ملاؤ نشو، نو چې څنګه مې اختلاف اوموندو د هغې اظهار مې اوکړو او هم هغه شان مې نقل کړې دې اوس که یو کس ته هغه روایت په صحیح طریقه معلوم شی کوم چې صاحب مصابیح نقل کړې دې او ماته معلوم نشو نو هغه کس دې زما په ژوندې ماته خبر اوکړی. ګنی روستو دې په کتاب کښې اضافه اوکړی. الله تعالی دې په هغه رحم اوکړی. دې کمال ادب او کمال دیانت ته لږ پام اوکړئی چې د ډیرو صدیانو روستو هم دهغه په زړه کښې څومره احترام دې.دا ټول د دینی علومو برکت دې. په هغه سړي دې دالله ﷻ رحمت وي چې هغه ته روایت معلوم وي او مونږ ته په خبرولو سره حقه لار وښايي. ما په خپل تحقیق او لټون کې هيڅ کمي پري نه ښوده او د خپل وس او طاقت مطابق مي دا اختلاف چې ما څنګه پیدا کي هغسي مي نقل کي.

## د مصابیح د ضعیفو احادیثو ذکر

وَمَا أَشَارَ إِلَيْهِ رَضِيَ اللهُ تَعَالٰى عَنْهُ مِنْ غَرِيبٍ أَوْ ضَعِيفٍ أَوْ غَيْرِهِمَا بَيَّنْتُ وَجْهَهُ غَالِباً وَمَا لَمْ يُشِرْ إِلَيْهِ مِمَّا فِي الْأُصُولِ فَقَدْ قَفَّيْتُهُ فِيْ تَرْكِهِ إِلَّا فِيْ مَوَاضِعَ لِغَرَضٍ.

**ترجمه:** او په کومو احادیثو باندې چې شیخ د ضعیف یا غریب وغیره حکم لګولي دي ما د هغه سبب بیان کړي دي او د کومو احادیثو او اصولي خبرو طرفته چې شیخ څه اشاره نه ده کړي نو ما هم د شیخ پیروي کولو سره هغه پریښي دي خو په بعضې ځایونو کې دمجبوري په وجه ما دهغه وضاحت کړي دي.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَمَا أَشَارَ إِلَيْهِ رَضِيَ اللهُ تَعَالٰى عَنْهُ مِنْ غَرِيبٍ أَوْ ضَعِيفٍ أَوْ غَيْرِهِمَا:

**دصاحب مصابیح د حدیث ضعیف وجه نه بیانول:** په دې عبارت کښې صاحب مشکاة فرمائی چې یو ځائې کښې یو حدیث ته ضعیف یا غریب یا منکر وئیلی دی او د هغې وجه اوسبب یې نه دې بیان کړې، نو صاحب مشکوة په اکثرو مقاماتو د هغې وجه بیانوی چې دا په دې وجه منکر، شاذ، ضعیف یا غریب دې. لیکن ځینې مقاماتو کښې صاحب مصابیح پخپله سکوت اختیار کړې دې. نه یې ورته ضعیف وئیلی دی اونه غریب. حالانکه د اصولو په کتابونو کې دهغې د نوعیت په باره کې لیکلی دی چې دا ضعیف دې یامنقطع یا مرسل.

**د صاحب مشکاة د حدیث دضعف وجه بیانول:** نوصاحب مشکوة فرمائی چې ما هم په داسې مقاماتو کښې دصاحب مصابیح لاره اختیاره کړې ده او سکوت مې اختیار کړې دې. البته

ځینو ځایونو کښې مې د مجبورئی نه څه بیان کړې دې. ځکه خلقو حدیث ته موضوع اووئیل یا یې ورته باطل اووئیل نو ما د خلقو د الزام د تردید دپاره داسې اوکړل او د ترمذی وغیره حوالې سره مې د هغه حدیث د نوعیت تعین کړې دې. مثلاً: المرأ علی دین خلیله فلینظر أحدکم من یخالل. (مشکوة ص: ۴۲۷) ځینې خلق دې حدیث ته موضوع وائی. حالانکه ترمذی دې ته حسن وئیلی دی. نو صاحب مشکوة د هغې وضاحت کړې دې. او اگرچې مصابیح سکوت اختیار کړې دې. علامه نووی رحمة الله علیه فرمائی: اسناده صحیح.

**دمشکاة د بعضې احادیثو حوالې نه ذکر کول**

وَرُبَّمَا تَجِدُ مَوَاضِعَ مُهْمَلَةً وَذٰلِكَ حَيْثُ لَمْ أَطَّلِعْ عَلٰى رَاوِيْهِ فَتَرَكْتُ الْبَيَاضَ فَإِنْ عَثَرْتَ عَلَيْهِ فَأَلْحِقْهُ بِهِ أَحْسَنَ اللّٰهُ جَزَاءَكَ.

**ترجمه:** او حتّي داسې ځایونه به هم پیداشي چې هلته د احادیثو څخه وروسته ما د کتاب حواله نه ده ورکړي ځکه چې باوجود د تحقیق او تلاش زه د روایت کونکي د نوم څخه خبر نه شوم نو هغه ځاي به ما پرینبودي وي که تاسو ته د روایت کونکي نوم معلوم وي نو په هغه ځاي کې د هغه حواله ورکړي په دي به الله ﷻ جزايي خیر درکړي.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَرُبَّمَا تَجِدُ مَوَاضِعَ مُهْمَلَةً وَذٰلِكَ حَيْثُ لَمْ أَطَّلِعْ عَلٰى رَاوِيْهِ:

**د بعضې احادیثوحوالې نه ذکر کولو وجه:** صاحب مشکوة ځینو ځایونو کښې دحوالې ځائې خالی پریښودې دې، ځکه چې دا حواله ورته نه ده ملاؤ شوې. ځکه دلته فرمائی چې چا ته حواله ملاؤ شی نو هغه دې دې ځائې کښې اولیکی. دې خالی ځائې ته یې د بیاض نوم ورکړې دې. مشکوة کښې به په ډیرو مقاماتو کښې بیاض په نظر راځی چنانچه په صفحه ۲۲۷ بیاض دې او همداشان په صفحه ۴۶۸ بیاض دې. بیا په صفحه ۴۷۰ بیاض دې. همداشان په ډیرو نورو ځایونو کښې دی اوهلته محدثینوحواله ورکړې ده اوپه هغه ځائې کښې یې د لیکلو محنت کړې دې.

**دمشکاة وجه تسمیه:**

وَسَمَّيْتُ الْكِتٰبَ بِمِشْكٰوةِ الْمَصَابِيْحِ وَأَسْأَلُ اللّٰهَ التَّوْفِيْقَ وَالْإِعَانَةَ وَالْهِدَايَةَ وَالصِّيَانَةَ وَتَيْسِيْرَ مَا أَقْصُدُهُ وَأَنْ يَنْفَعَنِيْ فِي الْحَيٰوةِ وَبَعْدَ الْمَمَاتِ وَجَمِيْعَ الْمُسْلِمِيْنَ وَالْمُسْلِمَاتِ حَسْبِيَ اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ.

**ترجمه:** او ددي کتاب نوم ما مشکوٰة المصابیح ایښي دي، د دي کتاب د تصنیف دپاره زه دالله تعالی ﷻ څخه نیک توفیق د هغه مدد او د هدایت خواستګاریم او د خپل تصنیف د مکمل کولو دخطا او قصور څخه دحفاظت او دمشکلاتو دآساني دپاره دعا کوم. او دعا

کوم چې خداوند قدوس دي په دي ژوند کې او د مرګ څخه وروسته ماته هم او هر مسلمان سړي او ښځي ته نفع ورسوي او الله تعالی جَلَّ جَلَالُهُ زما دپاره کافي او ښه کار سازدي او دبدي څخه دبچ کیدو طاقت او دنیک کار کولو قوت دالله تعالی جَلَّ جَلَالُهُ د طرف څخه دي چې په ټولو کارونو باندي غالب او دحکمت خاوند دي.

**د مشکاة په وجه تسمیه کښې بلاغی نکته:** مشکوة د دیوال هغه تاخ یا طاقچې ته وائی کومې کښې چې مشال یا ډیوه ایښودې کیږی. او مصابیح د مصباح جمع ده، مشال ته وائی. د المصابیح نه مراد د شیخ محی السنة کتاب هم کیدیشی. او احادیث نبوی هم کیدیشی. ځکه چې کتاب او حدیث دیندارو دپاره د مشال په شان دی. د مشکوة المصابیح په نوم کښې یوه لطیفه اشاره هم ده، هغه دا چې کله مشال په یو میدان کښې پروت وی نو د هغې رڼرا خوریدو سره سره کمزورې کیږی. خو که دا په تاخ یا طاقچه کښې کیخودې شی نو د هغې رڼرا مجتمع او تیزه شی. همداشان دا کتاب یا احادیث رسول هم نافع وو لیکن مشکوة المصابیح کښې د راتلو نه پس ددې خلا او پړق نور هم دوچند شو. او ددې په افادیت کښې د دې خاص ترتیب په وجه اضافه اوشوه.

## [۱] دَ نیت د اخلاص حدیث

۱ –( )[۱] [۱] عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«إِنَّمَا الْأَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ، [۳] وَإِنَّمَا لِامْرِئٍ مَا نَوَى، [۴] فَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ، [۵] فَهِجْرَتُهُ إِلَى اللَّهِ، وَرَسُولِهِ، [۶] وَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ إِلَى دُنْيَا يُصِيبُهَا، [۷] أَوِ امْرَأَةٍ يَتَزَوَّجُهَا [۸] فَهِجْرَتُهُ إِلَى مَا هَاجَرَ إِلَيْهِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] د عمربن الخطاب رضی الله عنه څخه روایت دې فرمانی رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمانیلی دی [۲] د عملونو دارومدار په نیتونو دې [۳] اویقینا هرسړی ته به هغه څه ملاویږی د څه چې ئې نیت کړې وی [۴] نود چا هجرت چې د الله تعالی اود هغه د رسول (د رضا) دپاره وی [۵] نودهغه هجرت الله تعالی اودهغه رسول ته مقبول دې [۶] اود چا هجرت چې د دنیا دپاره وی چې دنیا حاصله کړی [۷] یا د ښځې دپاره وی چې هغې سره نکاح وکړی [۸] نود هغه هجرت د هغه څه دپاره دې د څه دپاره چې ئې هجرت کړې وی

**حل اللغات:** ① هِجْرَتُهُ: هجرت په لغت کښې ترک یعنی پریخودلو او جدا کیدو ته وائی. وَهُوَتَرْكُ الْوَطَنِ الَّذِي بِدَارِ الْكُفْرِ إِلَى دَارِ الْإِسْلَامِ: دلته ددې نه مراد دار کفر پریخودل او داراسلام ته ورتلل دی (د هجرت ضد وصل دې) ② يُصِيبُهَا: أَيْ: يُحَصِّلُهَا: چه اورسیږی هغې ته یعنی حاصل ئې کړی

---

[۱] اخرجه البخاری کتاب الإیمان /باب: ما جاء إن الأعمال بالنیة والحسبة. ولکل امرئ ما نوی رقم(٥٤) ومسلم فی کتاب الإمارة/باب باب قوله صلی الله علیه وسلم: «إنما الأعمال بالنیة»، وأنه یدخل فیه الغزو وغیره من الأعمال(رقم-١٩٠٧) والنسائی کتاب الطهارة/باب النیة فی الوضوء(رقم-٧٥) وابوداود فی کتاب الطلاق/باب فیما عنی به الطلاق والنیات(رقم-٢٢٠١) والترمذی کتاب فضائل الجهاد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فیمن یقاتل ریاء وللدنیا (رقم-١٦٤٧) وابن ماجه کتاب الزهد/باب النیة (رقم-٤٢٢٧) واحمد فی مسنده ٢٥/١.

**د راوي مختصر تعارف :**

د هغوی نوم عمر، کنیت ابو حفص، لقب فاروق اعظم او د پلار نوم ئې خطاب دې. دویم خلیفه راشد دې، دا امتیاز هم هغوی ته حاصل دې چه هغوی د ټولو نه مخکښې د امیر المومنین په لقب سره مشهور شو. د نبوت په شپږم کال باندې ورته د اسلام دولت نصیب شو. د هغوی په اسلام قبلولو باندې مسلمانانو ډیر مضبوط شو، د دې نه مخکښې به مسلمانانو په پټه باندې د فرائض ادائیګی کوله خو د سیدنا عمر ﷛ د اسلام راوړلو نه پس د فرائضو ادا کول او د اسلام تبلیغ ښکاره شروع شو. د سنن ابن ماجه یو روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د عمر ﷛ په اسلام راوړلو باندې په آسمانونو کښې هم خوشحالئ اوکړې شوې. د سیدنا ابوبکرصدیق ﷛ نه پس هغوی متفقه طور سره د اسلام دویم خلیفه منتخب کړې شو او ټولو مسلمانانو د هغوی په حق پرست لاس باندې بیعت اوکړو. د هجرت په څلیرشتم کال په ۲۷ ذی الحجة د چارشنبې په ورځ ئې په مسجد نبوی ﷺ کښې د سحر مونځ ورکولو چه ابولؤلؤ نومې یو بدبخته نصرانی په هغوی باندې خنجر سره حمله اوکړه او هغوی شهید شو. د شهادت په وخت د هغوی عمر مبارک ۶۳ کاله وو. د جنازې مونځ پرې سیدنا صهیب رومی ﷛ اوکړو. د عمر ﷛ نه د مرفوع احادیث تعداد ۵۳۷ بیانولې شي.

**تسهیلات:**

**د باب نه وړاندې د دې حدیث په بیان کښې حکمتونه:** ړومبې خبره داده چې دا حدیث عموماً دباب د مناسب څخه بغیردَ باب څخه وړاندې درج کیږی، ددې څه وجه ده؟

① سلفاً وخلفاً مصنفینو او محدثینو دا حدیث پاك بې ربط او بې جوړ په ابتداء کښې لیکلې دې چې د هر لوستونکی اول نظر په اصلاح احوال و افعال او دنیت اودَ قول دَ صحیح والی په روښانه مینار باندې پریوځی او د وړاندې ټول سفر په صحیح نیت او خلوص افعال و اعمال سره اوشی. چنانچه ددې حدیث پاك جلالت شان ا و عظمت مقام متعلق علماء کرام او ائمه عظام، عظیم الشان رائې لری.

② ددې یوه وجه داده چې دې حدیث طرفته د لوستونکو توجو رااړول غرض دی او د مناسبت څخه بغیر په ابتداء کښې درج کیږی لکه څنګه چې ددنیا والو دستور دې چې هغوئ د خلقو د توجهاتو حاصلولو دپاره عجیبه عجیبه او مهیب شکلونه اختیاروی. نو خلق دې کښې دلچسپی اخلی او غور په کښې کوی. دا حدیث پاك هم جدا رااوړلې شو چې د طلباء کرامو او علماء کرامو توجه حاصله کړی څکه چې دلته د احادیثو بحر دخار دې، چې په دې غوټه اووهی او لالونه حاصل کړی.

**ددې حدیث عظمت شان:**

① عبدالرحمان بن مهدی رحمه الله فرمائی چې: [من أراد أن یصنف کتابا فلیبتدأ بهذا الحدیث] یعنی کوم کس چې د کتاب د تصنیف کولو اراده اوکړی نو په هغه لازم دی چې ددې حدیث پاك څخه کتاب شروع کړی.

② امام ابوداود رحمه الله فرمائی. داسلام دارومدار په څلور احادیثو دے. (۱)

① ((إنما الأعمال بالنیات))

② ((من حسن إسلام المرء ترکه مالا یعنیه)) (۲)

③ ((الحلال بین والحرام بین..)) (۳)

④ ((أزهد فی الدنیا یحبك الله..)) (۴)

دا خبره طاهر بن مفوز رحمه الله په نظم کښے بیان کړې ده.

عمدة الدین عندنا کلمات ... أربع من کلام خیر البریة

أتق الشبهات، و، ازهد، و، دع ... مالا یعنیك، و، اعملن بنیة (۵)

③ امام احمد رحمه الله فرمائی چه اصول داسلام په درے احادیثو باندے دی.

① ((إنما الأعمال بالنیات)) ② ((الحلال بین والحلام بین..))

③ ((من أحدث فی أمرنا هذا ما لیس منه فهو رد)) (۶)

④ امام شافعی رحمه الله دې حدیث ته نصف العلم وئیلی دی. ځکه چې علم قلب سره تعلق لری یا ژبې او جوارحو او قالب سره تعلق لری. او د حسن نیت تعلق نیت او زړه سره دې

---

(۱) اوګورئ الفتوحات الربانیة (۱/ ٦٤) وعمدة القاری (۲۲/۱) خوبه عمدة القاری کښے د څلورم حدیث ((أزهد فی الدنیا..)) په ځائے ((لایکون المؤمن مؤمناً حتی یرضی لأخیه ما یرضی لنفسه)) ذکر دے.

(۲) أخرجه الترمذی فی جامعه فی کتاب الزهد باب (بلاترجمة)) بعد باب فیمن تکلم بکلمة یضحک بها الناس رقم ۲۳۱۷ وابن ماجة فی کتاب الفتن باب کف اللسان فی الفتنة رقم ۳۹۷۶)_

(۳) أخرجه البخاری فی صحیحه فی کتاب الإیمان باب فضل من إستبرأ لدینه رقم ۵۲، وفی کتاب المساقاة باب الحلال بین والحرام بین وبینهما مشتبهات رقم ۲۰۵۱، ومسلم فی صحیحه فی کتاب المساقاة باب أخذ.......الحلال وترک الشبهات رقم (۱۵۹۹) والنسائی فی سننه فی کتاب البیوع باب إجتناب الشبهات فی الکسب والترمذی فی جامعه فی کتاب البیوع باب ماجآء فی ترک الشبهات رقم (۱۲۰۵) وابن ماجة فی سننه فی کتاب الفتن باب الوقوف عند الشبهات (۳۹۸٤)_

(۴) أخرجه ابن ماجه فی سننه فی کتاب الزهد باب الزهد فی الدنیا رقم ٤١٠٢)_

(۵) عمدة القاری (۲۲/۱) والفتوحات الربانیة (۱/ ٦٤)_

(۶) أخرجه البخاری فی صحیحه فی کتاب الصلح باب إذا إصطلحوا علی صلح جور مردود رقم(۲٦۹۷) ومسلم فی صحیحه فی کتاب الأقضیة باب نقض الأحکام الباطلة ورد محدثات الأمور رقم (۱۷۱۸) وابوداود فی سننه فی کتاب السنة باب لزوم السنة رقم ٤٦٠٦، وابن ماجه فی سننه فی المقدمة باب تعظیم حدیث رسول الله ﷺ والتغلیظ علی من عارضه رقم ١٤)_

نو دا نصف العلم دی.

⑤ علامه خطابی رحمه الله فرمائی چې زمونږ استاذانو او متقدمینو به په هر ښه کار او دینی امورو کښې دا حدیث په شروع کښې ذکر کول خوښول

⑥ امام ابوحنیفه رحمه الله دې حدیث ته ربع العلم وائی، ځکه چې دین اسلام په څلورو شعبو کښې تقسیمولې شی.

① اتقاء الشبهات ② زهد فی الدنیا ③ ترک مالا یعنیه ④ خلوص النیة

نو څلورمه حصه په دې حدیث کښې ده کوم چې خلوص نیت دې.

**دحدیث شانِ ورود:** امام طبرانی په صحیح سنده سره دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه ددے حدیث شان ورود ذکر کړے دے.چه په مونږ کښے یو کس ام قیس نومے ښځے ته د نکاح پیغام اولیږلو.نوهغے ورته شرط اولګولو.چه هجرت اوکړه.نو نکاح به درسره اوکړم. دے کس مدینے منورے ته هجرت اوکړلو.اوهغه ښځے سره ئے نکاح اوکړه.مونږ به هغه ته ,,مهاجرام قیس، ,وئیل.(۱)نبی صلی الله علیه وسلم ته چه کله داخبره اورسیدله.نودا حدیث ئے اوفرمائیل.

**یو اشکال:** دلته یو اشکال دا کیږی.چه حضرت ابوطلحه رضی الله عنه چه حضرت ام سلیم رضی الله عنها (دحضرت انس رضی الله عنه مور) ته دنکاح دپاره اووئیل.نوحضرت ام سلیم رضی الله عنها ورسره شرط لګولے وو.چه ایمان راوړه.نونکاح به درسره اوکړم.نوحضرت ابوطلحه رضی الله عنه ایمان راوړلو. او ددے نه پس نکاح هم اوشوه.(۲)

داسلام معامله خودهجرت نه هم اهمه اومعززه ده.نبی صلی الله علیه وسلم دنکاح دپاره په هجرت باندے انکار کړے دے.او ((فمن کانت هجرته إلی دنیا یصیبها أو إمرأة ینکحها فهجرته إلی ما هاجر إلیه)) ئے اوفرمائیل.اود ناخوښئ اظهار ئے اوکړلو.خو د حضرت ابوطلحه رضی الله عنه د اسلام په باره کښے د دوی صلی الله علیه وسلم نه څه نکیر منقول نه دے.دا لرے خبره ده.چه نبی صلی الله علیه وسلم ته به د دے خبر نه وی شوے.ځکه چه ام سلیم رضی الله عنها ته په دربار رسالت کښے ډیر نزدیکت حاصل وو.(۳)

**د اشکال جواب:** داسلام عالمانو فرمائیلی دی.چه په اصل کښے دحضرت ابوطلحه رضی الله عنه د وړاندے نه داسلام راوړولو اراده وه.هغوی هم په هغه طریقه اسلام قبول کړلو.لکه څنګه چه عاموخلقو علی وجه البصیرة اسلام قبول کړے وو.(۴)خو ورسره ورسره هغوی د تزویج

(۱) اوګورئ عمدة القاری (۱/۲۸) بیان السبب والمورد)_

(۲) عن انس رضی الله عنه قال تزوج أبوطلحة ام سلیم رضی الله عنها فکان صداق ما بینهما الإسلام.أسلمت ام سلیم. قبل أبی طلحة فخطبها فقالت إنی قد أسلمت فإن أسلمت نکحتک فأسلم ابوطلحة فکان صداق ما بینهما))_

(۳) حضرت انس رضی الله عنه فرمائی.(( أن النبی صلی الله علیه وسلم کان یزور أم سلیم فتتحفه بالشئ تصنعه له)) دغه شان حضرت انس رضی الله عنه نه منقول دی.((لم یکن رسول الله صلی الله علیه وسلم یدخل بیتاً غیر بیت أم سلیم إلا علی أزواجه فقیل له فقال إنی ارحمها قتل أخوها وأبوها معی)) اوګورئ الإصابة (۴/۴۶۱)_

(۴) د لاندینی روایت نه ددے تائید کیږی.((عن انس بن مالک رضی الله عنه انا أباطلحة رضی الله عنه خطب........

مباح يعنې جائز نكاح نيت هم شامل كړے وو.
اودا داسې ده.لكه چه يو سړے روژه نيسي.نيت ئې د روژے نيولو وي.خو ورسره ورسره دپرهيز خيال هم كوي.
يا يو كس د بيت الله طواف كوي.نيت ئې هم د طواف وي.خو ورسره ورسره ئې دا نيت هم وي.چه زما مديون چه هغه هم طواف كوي.هغه به هم د نظر لاندے ساتم. نو لكه څنګه چه د پرهيز په خيال باندے په روژه كښې نقصان نه راځي.او د «ملازمة الغريم» په اراده په طواف كښې فرق نه راځي.دغه شان د ابوطلحه ﷺ د تزويج مباح په نيت سره دهغه په اسلام كښې څه خرابي نه راځي.
**په جواب باندې اشكال:** خودلته دا سوال كيدے شي.چه هم دا توجيه هم تاسو د مهاجر ام قيس په باره كښې هم كولے شئ.خوهلته تاسو دا توجيه نه كوئ؟
**د اشكال جواب:** د دے جواب دا دے.چه دمهاجر ام قيس په باره كښې دنبي كريم ﷺ نه د «ومن كانت هجرته إلى دنيا يصيبها أو إمرأة يتزوجها فهجرته إلى ما هاجر إليه» په الفاظو سره نكير راغلے دے.نودهغه په قصه كښې به څه تاويل يا توجيه نشي كولے.او د ابوطلحه ﷺ په قصه كښې نكير موجود نه دے.نوهلته د تاويل ګنجائش شته.په دے باره كښې به څه تفصيل وړاندے راشي.انشاء الله والله اعلم

**قوله: إِنَّمَا:**

**د كلمه: إنما تحقيق:**

اهل لغت او اصوليانو په دې اتفاق كړې دې چې واضع انما لره دَ حصر دپاره وضع كړې ده. او دې څخه د حكم تاكيد مقصود وي. لكه [إِنَّمَا عَلَى رَسُوْلِنَا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ﴿ومز إِنَّمَا اللّٰهُ إِلٰهٌ وَّاحِدٌ﴾] بهر حال انما څخه د مذكور اثبات كيږي، او د غير مذكور نفي كيږي. دحصر معنى به دا شان وى [انما الأعمال تعتبر بالنية ولا تعتبر بغيرها] يا به دا شان وى [ليست الأعمال حاصلة إلا بالنية]

**قوله: الْأَعْمَالُ:**

**د الأعمال تحقيق:**

اعمال د عمل جمع ده. ددې په مقابله كښې النيات مذكور دى، او كله چې د جمع مقابله جمع سره اوشى نو تقسيم په آحاد باندې وى. نو نتيجه دا شان شوه چې هر هرعمل دَ نيت

........ ام سليم رضى الله عنها يعنى قبل ان يسلم فقالت:يا أباطلحة ألست تعلم أن إلهك الذي تعبد نبت من الأرض؟ قال بلى قالت أفلا تستحي تعبد شجرة إن أسلمت فإني لا أريد منك صداقاً غيره.قال حتى أنظر في أمري فذهب ثم جاء فقال أشهد أن لا إله إلا الله وأن محمداً رسول الله ﷺ. اوګورئ الإصابة (٤/٤٦١) ترجمه ام سليم بنت ملحان)

سره وابسته دي. عمل او فعل کښې لږشان فرق دي. علماء کرامو ښودلی دی هغه دا چې د عمل اطلاق صرف په اختیاری کارونو باندې کیږی او غیر اختیاری کارونو ته عمل نشی وئیلې. او فعل عام دي. اختیاری وی او که غیر اختیاری وی، نو [اَعْمَلُوا صَالِحًا] راغلي دي [افعلوصالحا] نه دي راغلي. دویم فرق دادي چې د عمل په مفهوم کښې دوام او استمرار پروت دي او فعل کښې داسې نشته دي.

**قوله: بِالنِّيَّاتِ:**

**د نیت لغوی او شرعی معنی:** اَلنِّیَّات د نیة جمع ده، په لغت کښې د نیت معنی د ارادې او قصد راځی او د شریعت په اصطلاح کښې د نیت معنی **( یوجه القلب نحو الفعل ابتغاء لوجه الله )** خو په حدیث کښې معنی لغوی مراد ده، ځکه چه روستنې تقسیم او تفصیل کښې هجرت **( هجرت لوجه الله ولغیر الله )** د دواړو بیان دي. لهذا نیت په معنی د قصد به په دواړو باندې منطبق وی نه معنی شرعی. (فتح الباری، التعلیق الصبیح)

**په نیت او اراده کښې فرق:** بیا په نیت او اراده کښې فرق دا دي چه اراده هغه مراد صادرولو ته وائی چه په هغې کښې د غرض اعتبار نه وی، په خلاف د نیت چه په دې کښې د غرض اعتبار وی. اوچونکه دافعال باری تعالی معلل بالاغراض نه کیدل مسلم مسئله ده په دې وجه **(نوی الله تعالی)** به نه شی وئیلې کیدې بلکه **(اراد الله)** مستعمل دي. (فیض الباری)

**د نیت دوه قسمونه:** بیا نیت په کلام د عربو کښې په دوه قسمه مستعمل دي ۱: د پاره د تمیز د یو عمل د بل عمل نه، ۲: د پاره د تعمیر د یو معبود د بل معبود نه. لکه تمیز د اهل اخلاص او اهل ریاء او شهرت ترمینځه، (یعنی نیت یو عبادت لره د بل عبادت نه د ممتاز کولو دپاره وی. د یو مخلص د عبادت نیت د الله پاک د راضی کولو دپاره وی او د ریا کار او د شهرت دپاره د عبادت کونکی نیت د شهرت او ریاء دپاره وی) او دا حدیث د خپل عمومیت د وجې نه دواړو ته شامل دي، خو بالقصد استعمال ثانی معتبر دي، ځکه چه رسول الله ﷺ د مخلص کوم چه د الله پاک د رضا طالب دي او د غیر مخلص کوم چه د دنیا او ښځې طالب دي ترمینځه فرق کړې دي د عمل ئې د عمل سره فرق نه دي کړې. (التعلیق الصبیح)

**په ((إنما الأعمال بالنیات)) کښې لغوی معنی مراد ده او که شرعی؟**

په دے خبره د پوهیدلو نه پس دا هم په زړه کښے کینوئ چه په دے مقام کښے د نیت نه لغوی معنی مراد ده. ددے وجه دا ده چه نبی کریم ﷺ په دے حدیث کښے دوه قسمه اعمال ذکر کړی دی. یو **((فمن کانت هجرته إلی الله ورسوله))** او دویم **((ومن کانت هجرته إلی دنیا

يصيبها أو امرأة يتزوجها فهجرته إلى ما هاجر إليه» په دے کنبے په اولنی عمل کنبے «ابتغاء مرضاة الله» ملحوظ ده.او په دویم عمل کنبے ملحوظ نه ده.نودا به وئیلی شی.چه دلته د جنس نیت ذکر دے.په دے کنبے لغوی معنی مراد ده.شرعی معنی مراد نه ده.[۱]

**په فعل او عمل کښې فرقونه :** ① د فعل معنی د کولو راځی او د عمل معنی د بار بار کولو ده، په فعل کښې دوام او استمرار نه وی او په عمل کښې د دوام او استمرار مفهوم موندلې شی. په دې وجه په قرآن کريم کښې ﴿ واعملوا صالحا ﴾ فرمائيلې شوې دې چه په عمل صالح باندې مواظبت او دوام مطلوب دې.

②دويم فرق دا دې چه د عمل صدور صرف د ذوی العقول نه کيږی، د څناورو په افعالو باندې د عمل اطلاق نه کيږی، په دې حديث کښې مطلق هغه افعال اختياريه مراد دی کوم چه د مکلفين نه څادر کيږی ځکه چه کلام شرعی په هم داسې قسم افعالو کښې وی.

**بالنيات کښې دباء متعلق څه څيز دې**؟: اوس سوال دادې چې ډير داسې اعمال دی کوم چې حساً او صورة د نيت څخه بغير نه حاصليږی. او کوم چې غير اختياری اعمال دی لکه چت وغيره څخه راغورزيدل دا ټول بغير دنيت څخه وجود کښې رازی. لهذا دلته بالنيات دپاره يو داسې عبارت مقدر کول پکار دې چې دهغې څخه د حديث مفهوم واضح شی. داشان بالنيات کښې د جار مجرور متعلق معلوم شی؟

**د تقدير راويستلو دوه صورتونه :**

① **فعل عام مقدر منل:** اوس يو صورت دادې چې يا خو په افعال عامۀ کښې يو فعل مقدر راوويستلې شی يعنی [کون، ثبوت، حصول، وجود] دې څلورو افعال عامه کښې يو فعل مقدر رااويستلې شی ليکن په دې کښې نقصان دادې چې د افعال عامه تعلق حسی افعالو سره وی. لهذا په دې کښې يو فعل مقدر منلو سره دا لازميږی چې د اعمالو حسی وجود بغير د نيت څخه نه کيږی. دا خبره صحيح نه ده، ځکه چې د افعال حسی وجود خو بغير دنيت څخه کيدې شی.

② **د خاص فعل د تقدير ضرورت:** اوس ضروری شوه چې دلته يو فعل خاص مقدر اومنلې شی، اوس به کوم يو فعل خاص راوستلې کيږی؟ نو جمهور آئمه ددې متعلق [صحة يا تصح يا منوطة بالنيات] منلې دی. يعنی هيڅ يو عمل بغير د نيت نه صحيح کيږی. د هر عمل دارومدار په نيت باندې دې. ائمه احناف کاملة او ثواب فعل مقدر منی. يعنی [إنما الأعمال تثاب بالنيات] يعنی که نيت نه وی نو عمل باندې به ثواب نه مرتب کيږی، خود

(۱) اوګورئ فتح البارى (۱۳/۱)_

نفس عمل وجود به وی.

**په دوارو مقدراتو اعتراضات:** په دې دوارو مقدراتو باندې په خپل خپل ځائې خپل خپل انداز سره اعتراضات دی. احناف د ثواب مقدر منلو ته ترجیح ورکوی او وائی چې د ثواب مقدر منلو سره ټولو ته فائده ده. خو که صحة اومنو نو دا د جمهورو خلاف دی. ځکه چې ډیر افعال داسې دی چې ددوئ په نیز بغیر د نیت نه متحقق کیږی.

**د ملا علی قاری تحقیق:** د ملاعلی قاری رحمه الله په نزد [تعتبراومعتبرة] مقدر منل زیاد واضح دې چې ټولو عباداتو ته په آسانۍ سره شامل شی. یعنی [انما الاعمال معتبرة] او [تعتبرة بالنیات] په دې کښې ټول اعمال راغلل.

① که عبادات مقصوده وی لکه صوم وصلوة، زکوة او حج وغیره. دلته [انما الاعمال تعتبرلصحتها النیة] یعنی ددې عباداتو فرضیو صحت دپاره نیت ضروری دې بغیر د نیت څخه فرض عبادت صحیح نه دې.

② یا به هغه اعمال دَعبادات فرضیه دپاره د شرائط په درجه کښې وی لکه طهارت، سترعورت، وغیره نو دلته لحصول ثوابها مقدر منلې کیږی. لکه [انما الاعمال تعتبر لحصول ثوابها النیة] یعنی ترکومې پورې چې دشرائط د درجې اعمال لکه غسل، اودس، تیمم، طهارت دَ مکان وبدن، طهارت دَ لباس وغیره کښې د ثواب نیت نه وی نو ثواب بهٔ نه ملاویږی. اګر چې عمل به صحیح وی.

③ یا هغه اعمال بهٔ امور مباحه وی نو هلته تعتبرڅخه وروستو تصیروتنقلب به مقدر منلې کیږی. [انما الاعمال المباحة تعتبراي تصیروتنقلب بالنیة الحسنة حسنات وبالنیة السیئة سیئات]

بهر حال تعبر عام لفظ دې. ددې عموم پیش نظر دموقع او محل مناسبت سره به فعل راویستلې کیږی. نو عبادات مقصوده او غیر مقصوده او مباح ټولوته به شامل شی. بلکه متروکاتو لکه خمر، زنا وغیره ترک کولو ته به هم شامل شی چې دا په نیت حسنه سره پریښودلو باندې اجر و ثواب ملاویږی. ابن دقیق العید ددې تائید کړې دې چې د متروکات په ترک کولو ثواب ملاویږی.

امام غزالی رحمه الله د اعمال متعلقه بالنیات تفصیل داسې بیان فرمائیلې دې:

① **معاصی**: معصیت کښې نیت سره هیڅ تغیر نه راځی، د ګناه کار په ښه نیت سره نیک کار نه جوړیږی. لکه حرام مال خرچ کولو کښې د ثواب نیت ئې اوکړو، یا ئې په دې مسجد جوړ کړو، یا ئې په دې مدرسه جوړه کړه، یا ئې په یو بل نیک کار کښې اولګولو نو دې ټولو صورتونو کښې به ثواب نه ملاویږی.

② **طاعات او عبادات مقصوده کښې د نیت ضرورت**: دا عبادات په اصل صحت کښې هم د نیت محتاج دی، او په زیات فضیلت کښې هم د نیت محتاج دی. اصل نیت کښې خو په دې وجه چې عبادت ضائع نه شی. او اکثار فضیلت دَ رفع درجات دپاره په دې کښې دې داشان نیت اوکړې شی چې ډېر نیتونه په یو عمل کښې شامل کړې شی او ډېر ثوابونه حاصل کړې شی. لکه مونځ دپاره مسجد ته راغلو، د قبله رخ کیدو نیت ئې اوکړو، د اعتکاف نیت ئې هم اوکړو، د انتظار صلوات نیت ئې هم اوکړو، د غریب د مدد کولو نیت ئې هم اوکړو، وغیره وغیره نو په دې ټولو نیتونو باندې به ثواب ملاویږی.

③ **په مباح عمل کښې نیت کول**: مباح کار د ښه نیت احتمال لری. لکه عطر لګول په ښه نیت سره یو مبارح امر دې، خو د فخر او مباهاتو او تکبر په طور ناجائز دی. خو که د اقتداء سنت رسول ﷺ نیت اوکړی نو ثواب به پرې ملاویږی ګنی هسې مباح عمل باندې ثواب نه ملاویږی. یا د مسجد د احترام نیت اوکړی نو په دې مباح عمل کښې هم ثواب ملاویږی بلکه په یو عمل کښې که په ډېرو نیکو عملونو نیت اوکړی نو په دې بهٔ ډېر ثوابونه ملاویږی.

**داحنافو په نیزېه وسائلو کښې د نیت عدمِ ضرورت**: ددې ټولو بحثونو څخه وروستو په دې پوهه شی، چې دَ احنافو په نیزېه وسائط او وسائلو کښې نیت ضروری نه دې، او په مقاصدو کښې ضروری دې. خو د شوافعو په نزد مقاصد او وسائل او وسائط دواړو کښې نیت ضروری دې. په دې باندې یو اختلافی مسئله متفرع ده کومه چې به په راتلونکی درس کښې راشی.

**قوله**: «وَإِنَّمَا لِامْرِءٍ مَا نَوَى»:

**په دواړو جملو کښې فرق**: دلته کښے دا بحث دے،چه په «إنما الأعمال بالنيات» اوپه «إنما لكل إمرئٍ ما نوى» کښے څه فرق دے؟ په دے سلسله کښے د عالمانو څو اقوال دی.

① دعلامه قرطبی رحمه الله رائے دا ده،چه دویمه جمله د اولنۍ جملے دپاره تاکید دے. د نیت معامله چونکه مهتم بالشان وه،څکه نبی ﷺ د «إنما الأعمال بالنيات» جمله اوونیله،اوهم دا مضمون ئے په بل انداز کښے بیان کړلو،حالانکه خبره یوه ده،د اولنۍ جملے مطلب دا دے،که نیت صحیح وی،نو عمل به مقبول وی،اوکه نیت صحیح نه وی،نوعمل به مقبول نه وی،او د دویمے جملے مطلب دا دے،چه نیت ښه وی،نو عمل د ښه جزاء سبب جوړیږی. اوکه په نیت کښے فتور او خرابی وی،نوعمل د خرابی بدلے سبب جوړیږی،لکه چه عنوان

بدل شو. او معنون یو دے.[۱]

② نور حضرات فرمائی چه په اولنئ جمله کښے داعمالو په باره کښے خودلی شوی دی چه ددے تعلق د نیت سره دے. اود حکم ترتب به په دے کیږی. او په دویمه جمله د عامل دحالت بیان دے چه ده ته به دخپل نیت مطابق جزا ملاویږی.[۲]

③ علامه نووی رحمه الله فرمائی چه په اوله جمله کښے د نیت اوعمل په مینځ کښے ربط بیان شوے دے چه داعمالو تعلق دنیت سره دے. او ددے دحسن او قبح مدار په نیت دے. اوپه دویمه جمله کښے د تعین منوی داشتراط فائده حاصلیږی. مثلاً د یوکس په ذمه د ماسپخین اومازیګر د مونځونه قضا ده. اوس که هغه مطلق نیت اوکړی. اود ماسپخین مازیګر مونځ نه ادا کیږی. بلکه د ماسپخین د ادا کولو دپاره د ماسپخین او د مازیګر دادا کولو دپاره د مازیګر تعین ضروری دے. لکه چه په دویمه جمله کښے دا خودلے شوی دی چه عامل ترڅو منوی متعین نکړی. نودهغه دعمل اعتبار به نه وی.[۳]

④ د ابن السمعانی رحمه الله توجیه دا ده چه په اوله جمله کښے هم د هغه «ربط بین العمل والنیة» بیانول دی. اوپه دویمه جمله کښے دهغه مباح اعمالو بیان دے کوم چه په عبادات کښے شامل نه دی. اوپه هغے کښے د نیت نه بغیر اجر او ثواب نه ملاویږی. چه نیت ئے د ثواب وی. اود خیر نیت اوکړی. نوثواب به ورته ملاؤ شی. ګنی نه.[۴]

مثلا خوراك څکاك په مباحاتو کښے دی. په دے باندے به ثواب په هغه وخت کښے ملاویږی. کله چه د «تقوی علی العبادة» نیت وی. یعنی چه زه دا خوراك ددے دپاره کوم چه زما په بدن کښے طاقت پیدا شی. اوهغه قوت زه دالله تعالی په عبادت کښے خرچ کړم.

⑤ علامه ابن دقیق العید رحمه الله دا توجیه فرمائیلے ده چه اوله جمله د «ربط بین العمل والنیة» دپاره ده. اوپه دویمه جمله کښے دا خودلے شوی دی چه په عمل باندے به اجر اوثواب په هغه وخت کښے مرتب کیږی چه په دغه عمل کښے نیت هم وی. او ورسره ورسره د شرطونو خیال هم ساتلے شوے وی. که صرف د شرطونو خیال اوساتلے شی. اونیت نه وی. نواجربه نه ملاویږی. دغه شان چه دعمل نیت اوکړی. اود هغے د پوره کولوپخه اراده ئے هم وی. خو د څه شرعی عذر د وجے هغه کار اونکړے شی. نوده ته به د هغے کار ثواب ملاویږی. خو

---

(۱) فتح الباری (۱۴/۱)_
(۲) فتح الباری (۱۴/۱)_
(۳) عمدة القاری (۲۷/۱)_
(۴) فتح الباری (۱۴/۱) وعمدة القاری (۲۷/۱)_

صرف دهغه عمل چه نیت ئے کړے وی.([1])

⑥ بعضے شاحینو دا توجیه کړے ده.چه په دویمه جمله کښے د ((نیابة فی النیة))نه منع شوے ده.چه بغیر دعذر نه د بل دطرفه نیت کول معتبر نه دے.بلکه هرسړے دے دخپل عمل په خپله نیت کوی.([2])

⑦ شیخ عزالدین عبدالسلام رحمه الله فرمائی.چه داولنئ جملےمقصد دا دے.چه کوم عمل معتبر دے.او د دویمے جملے مقصد دا دے.چه په اعمالو به نتائج کله مرتب کیږی.نو په اوله جمله کښے دا خودلے شوی دی.چه هغه عمل معتبر دے.چه په هغے کښے نیت وی. او چونکه په یو عمل کښے ښه نیت او بد نیت هم کیدے شی.نوځکه ئے په ((إنما لکل إمرئ ما نوی)) کښے اوخودل.چه د عمل په وخت کښے څنګه نیت اوکړی.نتیجه به هم هغه مرتب کیږی.([3])

⑧ اتمه توجیه دا ده.چه په اولنئ جمله کښے هم هغه د نیت او عمل په مینځ کښے ربط بیان شوے دے.چه د عمل دارومدار په نیت دے.چه څنګه نیت وی.هغه شان به عمل وی.او د دویمے جملے مقصد دا دے.که په یوعمل کښے ګڼ نیتونه جمع کیدے شی.نود ټولو ثواب به ملاویږی.مثلاً یو سړے جمات ته ځی.اوصرف د مونځ نیت کوی.نوصرف یو ثواب یعنی د مانځه ثواب به ورته ملاویږی.اوکه هغه کس جمات ته دتلو په وخت کښے د مانځه د نیت سره دا نیت هم اوکړی.چه د جماعت انتظار اوکړم.اوتلاوت به اوکړم.نفلی اعتکاف به اوکړم.د مسئلے د زده کولو او بل ته دخودلو نیت هم اوکړی.د نیکانو سره د ملاقات اود هغوی د لیدونیت هم اوکړی.د ګناهونو نه د بچ کیدو قصد هم اوکړی.نو په دے ټولو نیتونو به ورته مستقل او ځانله ځانله ثواب ملاویږی.([4])

⑨ علامه سندهی رحمه الله فرمائی.چه اولنئ جمله مقدمه تجربیه عرفیه عقلیه ده.او دویمه جمله د شرعی حکم بیان دے.یعنی په اوله جمله کښے دا خودلے شوے دی.چه عقلاً اوعرفاً دا خبره منلے شوے ده.او ټولو ته معلومه ده.چه داعمالو دارومدار په نیت وی.اوپه دویمه جمله اولنئ جملے ته شرعی استناد ورکوی.اودا ښائی.چه شرعاً هم دا عرف او عقلی فیصله معتبر ده.([5]) په احادیثو کښے ددے ځو مثالونه موندلی شی.

د حضرت ابوعبیده رضی الله عنه په منقبت کښے رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمانیلی دی.((لکل أمة أمین، وأمین

---

([1]) فتح الباری پورتنئ حواله_
([2]) عمدة القاری (۲۷/۱)_
([3]) فتح الباری (۱۴/۱)_
([4]) تقریر بخاری ازشیخ الحدیث مولانا محمد زکریا صاحب کاندهلوی قدس سره (۷٤/۱)_
([5]) اوګورئ حاشیه علامه سندهی رحمه الله برصحیح بخاری (۸/۱)_

هذه الأمة أبوعبيدة بن الجراح»(¹)په دے حديث كښے «لكل أمة أمين» يو جمله عرفيه تجربيه ده.او«أمين هذه الأمة أبوعبيدة بن الجراح» دا جمله شرعيه ده.شريعت دے عرف ته استناد وركړلو.

⑩ علامه طيبي رحمه الله فرمائي.چه داولنۍ جملے تعلق د اصل عمل سره دے.يعني اعمال به په هغه وخت كښے محبوب اومعتبر وي.چه د نيتونو سره د هغے اقتران وي.او په دويمه جمله كښے ددے بيان دے.چه نيابت به په هغه وخت كښے معتبر وي. چه د اخلاص سره اقتران وي.خلاصه دا چه په دويمه جمله كښے د نيت نه مراد،،اخلاص،، دے.(²)

⑪ يوه توجيه دا شوے ده.چه په دے كښے اولنۍ جمله په منزله د علت فاعليه ده.اودويمه جمله علت غائيه.يعني په اولنۍ جمله كښے دا خودلي شوي دي.چه څنګه فاعل په فعل كښے موثر وي.دغه شان نيت به عمل كښے موثر وي.او په دويمه جمله كښے غايت بيان شوے دے.چه څنګه نيت وي.دعمل ثمره به هم هغه شان وي.(³)والله اعلم

**قوله: فَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ:**

**دهجرت لغوي تعريف:** هجرت او ددے قسمونه په لغت كښے د،،هجرة،، معني ده. پريخودل. اوپه عرف كښے هجرت ترك وطن ته وائي.

**دهجرت صورتونه:** بيا د وطن د پريخودلو مختلف صورتونه دي.

① كله خو سړے د دنياوي غرض دپاره وطن پريږدي.لكه ډيرخلق دتجارت په غرض يا د ملازمت په نيت په نورو ملكونو كښے اوسيږي.

② بعضے وخت كښے ترك وطن ددے وجے كيږي.چه په خپل وطن كښے امن او اطمينان نه وي.نو سړے د خوف د ځائے نه د امن ځائے ته منتقل شي.لكه چه د حبشه په دواړو هجرتونو كښے داسے شوي وو.مسلمانانو ته په مكه كښے امن حاصل نه وو.هروخت به په ويره كښے وو.نوهغوي دغه وطن پريخودلو.اوحبشه ته لاړل.چه هلته كښے امن وو.

③ دغه شان په اول كښے چه مسلمانانو مدينے منورے ته هجرت اوكړلو.نو مدينه دارالامن وو.خو چه كله نبي ﷺ مدينے ته تشريف يوړلو.اوهلته ورسره قرار ملاو شو.نو بيا دالاسلام شو.ددے نه پس چه كومو خلقو هجرت كړے وو.نو دا هجرت من دارالكفر الي دارالاسلام وو.دا هجرت د ترك وطن يو دريم صورت شو. (⁴)

④ بيا په آخره زمانه كښے به يو بل هجرت وي.كوم چه به شام طرف ته وي.په مسند احمد

(¹) صحيح بخاري كتاب المغازي باب قصة أهل نجران رقم ٤٣٨٢)_
(²) الكاشف عن حقائق السنن المعروف بشرح الطيبي (٩٠/١)_
(³) امدادالباري (٢١٧/٢)_
(⁴) اوګوره فتح الباري (١٦/١)_

([1]) و ابوداود ([2])کښې یو حدیث دے.((ستکون هجرة بعد هجرة، فخیار أهل الأرض ألزمهم مهاجرا إبراهیم علیه السلام...))

**د هجرت شرعی تعریف:** او په شریعت کښې هجرت د ترك معاصی نوم دے.اوهم دا حقیقی هجرت دے. نبی ﷺ فرمائیلی دی.((المهاجرمن هجرمانهی الله عنه))([3])

لکه چه د هجرت درے اهم قسمونه دی.

① هجرت لغوی ② هجرت عرفی ③ هجرت حقیقی شرعی. د تجزیه کولو په صورت کښې ددے په شمار کښې زیادت راځی.

**قوله:** إِلَى دُنْيَا يُصِيبُهَا:

**د دنیا لغوی معنی:** ،،دنیا،، د ،،دنو،، نه مشتق دے.ددے معنی ،،نزدیکت،، دے.

**د دنیا وجه تسمیه:** ①چونکه دا زوال ته نزدے ده.ځکه ورته ،،دنیا،، وائی.

② اوبعضو ونیلی دی.چه ،،دنیا،، ورته ځکه وائی.چه دا دآخرت په نسبت نزدے ده.([4])

③دبعضے حضراتو رائے دا ده.چه دا د ((دناءة)) نه ماخوذ ده.ددے معنی خست او رذالت دے.چونکه دا د آخرت په نسبت خسیسه او ذلیله ده.ځکه ورته ،،دنیا،، وائی.([5])

**د دنیا تعریف:** د دنیا په تعریف کښې دوه اقوال دی.

① ((ماعلی الأرض من الهواء والجو)) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.دا تعریف غوره دے.خو په دے کښې د ((قبل قیام الساعة))قید لګولو ضرورت دے.

② دویم قول دے.((کل المخلوقات من الجواهر والأعراض الموجودة قبل الدار الآخرة)) علامه عینی رحمه الله د علامه نووی رحمه الله نه ددے دویم قول ترجیح نقل کړے ده.([6])

**قوله:** أَوِامْرَأَةٍ يَتَزَوَّجُهَا:

**امرأة مستقل ولې ذکر شوه؟** : دلته کښې په ،،دنیا،، کښې ښځه داخله وه.ددے باوجود ئے مستقلاً ښځه ولے ذکر کړه؟

**جوابونه:** د دے څو جوابونه ورکړے شوی دی.

① امام نووی رحمه الله فرمائی.چه ،،دنیا،، نکره ده.اوتحت الاثبات ده.او په نکره تحت النفی

---

([1]) مسنداحمد (٢٠٩/٢) مسند عبدالله بن عمروبن العاص رضی الله عنهما)_
([2]) سنن ابی داود کتاب الجهاد باب فی سکنی الشام رقم ٢٤٨٢)_
([3]) صحیح بخاری کتاب الإیمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده رقم:١٠)_
([4]) فتح الباری (١٦/١)_
([5]) امدادالباری (٤٢٥/٢)_
([6]) اوګورئ فتح الباری (١٦/١) وعمدة القاری (٢٤/١)_

کښې عموم وی.په دے صورت کښې د«امرأة» په،،دنیا،، کښې دخول یقیني وو.اوس چونکه نکره تحت الاثبات ده.نود «امرأة» د،،دنیا،، په مفهوم کښې دخول متیقن نه وو. ځکه ئے دا ذکر کړله.(۱)

خود امام نووي رحمه الله په دے جواب باندے اعتراض شوے دے.چه لکه څنګه په نکره تحت النفي کښې د عموم مفهوم وی.نو دغه په نکره في سیاق الشرط کښې هم عموم وی.او دلته هم داسې ده.نو عموم راغلو.او په دے کښې،،ښځه،، هم داخله ده.(۲)

② دا د قبیلے د ذکرالخاص بعدالعام دے.او دا زیادت د اهتمام دپاره وی.(۳)

③ ابن بطال رحمه الله د ابن سراج رحمه الله نه نقل کړی دی. چه د ښځے تخصیص ذکر ځکه راغلو. چه عربیانو به د اسلام نه وړاندے د غلام سره دعربی ښځے نکاح نه کوله.او دکفاءت اعتبار به ئے کولو.کله چه اسلام راغلو.نو دا ئے باطل کړلو.نو مدینے منورے ته ډیرو غلامانو په دے نیت باندے هجرت اوکړلو.چه دلته به دعربی ښځے سره نکاح اوکړی.(۴)

④حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.چه دلته خو اول ددے خبرے دثبوت ضرورت دے. چه هجرت کونکے سړے غلام وو.اوهغه ښځه عربیه وه.بیا دا چه څه وئیلی شوی دی.چه عربیانو به د موالیو سره د عربی ښځو نکاح نه کوله.دا هم نه ده منلے شوے.ځکه چه د اسلام نه وړاندے د موالیو سره د نکاح ډیر واقعات ثابت دی.بیا دا هم مطلقاً نشی منلے. چه اسلام مطلقاً کفاءت باطل اوګرځولو.(۵)«وسیأتي البحث عنه في موضعه إن شاء الله تعالى»

⑤ مهاجرینو رضي الله عنهم کله مدینے منورے ته تشریف راوړلو. نوانصارو د ایثار بے مثاله مظاهره اوکړله.اود همدردئ انتها ئے اوکړله. دخپلو مهاجرینو رونړو دپاره دخپلو زمکو او مالونو تقسیم ته غاړه کیخودله.بعضو په کښې خپلو مهاجرینو رونړو ته تر دے پورے اووئیل.چه زما په نکاح کښې دوه بیبیانے دی.په هغوی کښې زه یوه ستا دپاره پریږدم.چه کومه غواړے.نوخوښه ئے کړه.نودا خطره پیدا شوه.چه د انصارو د دے قربانو او ښه اخلاقو په باره کښې څوك واوری.اوڅوك دا سوچ اونکړی.چه زه غریب او تنګ حاله یم.هجرت به اوکړم.او مدینے منورے ته به لاړ شم.هلته به راته مال هم ملاؤ شی.او ښځه هم.نو نبی ﷺ «سدأللباب»او د تنبیه دپاره دواړه څیزونه ذکر کړل.(۶)

---

(۱) فتح الباری (۱/۱۷)_
(۲) پورتنئ حواله)_
(۳) اوګورئ شرح نووی علی صحیح مسلم (۲/۱٤۱) کتاب الإمارة باب قوله ﷺ إنما الأعمال بالنیة وفتح الباری (۱/۱۷)
(۴) فتح الباری (۱/۱۷)_
(۵) پورتنئ حواله)_
(۶) فضل الباری (۱/۱٤۹) وامداد الباری (۲/۲۲۵، ۲۲۶)_

# [١] كِتَابُ الْإِيمَانِ

## د ایمان ابواب

**د كتاب الإيمان د تقديم وجه:** دعملونو او عبادتونو قبوليت او صحت په ايمان باندې موقوف دې. كه هغه اعمال او عباداتود قبيل څخه وى يا دمعاشرت معاملات واخلاقياتو دَ قبيل څخه وى. اوكه ددې تعلق شخصى عملونو سره وى يا اجتماعى عملونو سره وى. كه ددې تعلق احوالو دَ غم سره وى اوكه خوشحالۍ سره وى. دټولو دقبوليت دارومدار په ايمان باندې دې. په دې وجه ئې كتاب الايمان په ټولوعملونو باندې مقدم كړو.

**دحديثِ جبريل د اول ذكركولو دوه وجوهات:** ① دحديث جبرئيل دتقديم وجه او ددې مناسبت دَ حديث [انما الاعمال بالنيات] سره څه وو نو ددې متعلق علامه طيبى رحمه الله، قاضي عياض رحمه الله، ملا علي قارى رحمه الله او شيخ عبدالحق محدث دهلوى رحمه الله ليكلى دى چې داحديث جبرئيل چونكه په هر قسم عبادات ظاهره وباطنه باندې مشتمل دې. عقائد قلبيه طرفته لفظ د ايمان سره اشاره ده. او دَ اعضاء ظاهريه متعلق امورو طرفته په لفظ دَ الاسلام سره اشاره ده، اودَ اخلاص وسرائر طرفته په لفظ دَ الاحسان سره اشاره كړې شوې ده.

غرض دا چې دا حديث په شريعت وطريقت او حقيقت باندې په اجمالى توګه مشتمل دې او سنن نبويه او آداب شرعيه باندې په توګه دَ اختصار حاوى او محيط دې، هم په دې وجه دا حديث په ام السنة په نوم سر ه ياديږى. لكه څنګه چې سورة فاتحه دپورا قران كريم په مضامينو باندې مشتمله ده. نو دې ته ام القرآن وئيلې كيږى. اوس ربط او ترتيب داشان جوړ شو چې حديث [انما الاعمال بالنيات] بمنزله بسم الله دې او حديث جبرئيل دَ جامعيت او دَ ام السنة كيدو په وجه بمنزله سورة فاتحة دې.

② علامه طيبى رحمه الله ليكلى دى چې امام بغوى خپل كتاب مصابيح لره دې داواړه حديثونو څخه شروع كړو چې فى الجمله دقرآن كريم اتباع وى. بيا حديث جبرئيل پوره دين دپاره بمنزل خلاصه او نچوړ دې چې په ديرويشت كاله كښې كوم شريعت د آسمان څخه نازل شوې وو دهغې خلاصه ا و اجمال حديث جبرئيل كښې دې. هم دا وجه ده چې قرآن پاك كښې تصريح ده چې جبرائيل عليه السلام نبى كريم صلي الله عليه وسلم څخه په آخرى عمر كښې دا سوالات كړى وو. فتح الملهم كښې دى چې ممكن دى چې د اسوال وجواب

د حجة الوداع څخه ورستوی شوی وی.

**د کتاب، باب او د فصل تعریف:**

① الكتاب هو طائفة من المسائل اعتبرت مستقلة اشتملت أنواعا أولم تشتمل.

② الباب نوع من المسائل اشتمل عليها الكتاب وليست بفصل.

③ الفصل طائفة من المسائل تغيرت أحكامها بالنسبة الى ما قبلها غير مترجم بالكتاب والباب.

کتاب بمعنی متکوب و مجموع دې، ځکه چې الکتاب والکتبیه جمع او د مجموعې په معنی کښې دې. نو د کتاب الایمان ترجمه به دا شان وی:

«هذا المجموع ومكتوب فى الأحاديث الواردة فى الإيمان»

مناسب معلومیږی.چه دایمان د مباحثو شروع کولو نه وړاندے د اسلامی ډلو مختصر تعارف اوکړے شی.

**داسلامی ډلو تعریف:** اسلامی فرقے هغے ته وائی.چه داسلام دعوی کوی.اوخپل ځان اسلام طرف ته منسوب کوی.که ګمراه وی اوکه په صحیح لاره وی. معتزله، خوارج، مرجیه، جهمیه، وغیره ټولے علی سبیل التشکیك، ،فرق ضاله، ، دی.صحیح اسلامی فرقه،اهل السنة والجماعة، ، ده. کوم چه د«ما أنا عليه وأصحابي» مصداق دے[۱]

**د اهل سنت والجماعة دوه ډلې:** بیاپه اهل سنت والجماعة کښے څلورډلے په صحیح اسلام باندے دی.

① **محدثین:** دا حضرات په عقائدو کښے د امام احمد رحمه الله متبعین دی.

② **متکلمین:** دا دوه ډلے دی.

**(الف) اشاعره:** دا خلق عام طور د امام مالك اوامام شافعی رحمهما الله نه د منقولو عقائدو تشریح اوترویج کوی.

**(ب) ماتریدیه:** دا حضرات د امام اعظم رحمه الله اود دوی نه دمنقولو عقائدو تائید اوتفصیل کوی.په اشاعره او ماتریدیه کښے لږ غوندے اختلاف دے.ابوالحسن اشعری رحمه الله د اولنئ اود ابومنصور ماتریدی رحمه الله د دویمے ډلے امام دے.دا دواړه د امام طحاوی رحمه الله هم عصر دی.[۲]

**په لغت کښې د ایمان د استعمال څلور طریقې:**

د ایمان استعمال په څلورو طریقوسره کیږی.

---

[۱] هذا جزء من حديث أخرجه الترمذي في جامعه عن عبدالله بن عمروبن العاص رضي الله عنهما في كتاب الإيمان باب ماجاء في إفتراق هذه الأمة رقم.(۲٦٤١)_

[۲] فضل الباری(۲۳۵/۱)_

① دا متعدی بنفسه وی.که یو مفعول طرف ته متعدی وی.اوکه مفعولینو ته وی.بل مفعول ته په واسطه د حرف جر سره لاړ شی.اوکه بغیر د واسطه دحرف نه.
② ایمان په معنی د ،،تصدیق،،شی.او د باء په صلة سره راغلی وی.
③ دا د انقیاد معنی لره متضمن شی.اود په صلة د لام سره استعمال شوے وی.
④ دا د اعتماد معنی لره متضمن وی.په دے صورت کښے به ددے صله ،،علی،، راځی. او دا ډیره کمه ده.والله اعلم

**دایمان په شرعی تعریف کښې مختلف اقوال:** د ایمان اصطلاحی تعریفات دالفاظو اختلاف سره شپږ دی. اگر چې مفهوم او مرجع د ټولو یوه ده. بیا هم څه فوائد په تعدد دَ تعریفاتو کښې شته. په دې وجه څه شپږ تعریفات مکمل نقل کوم. اگر چې یو هم کافی دې خو انشاء الله نقل کولو کښې به برکت وی.

① علامه سید محمود بغدادی رحمه الله دایمان تعریف داشان کړې دې:
[الإيمان هوالتصديق بما علم مجئ النبي ﷺ به ضرورة وتفصيلا فيما علم تفصيلا وإجمالا فيما علم اجمالا](روح المعاني: جلد ا:۱ ص: ۱۱۰)

یعنی ایمان دَ هغه څیزنوم دې چه سړې دَ هغه څیزونو تصدیق اوکړی دَ کومې ثبوت چه دَ رسول الله ﷺ نه په یقینی توګه باندې متحقق وی. کوم څیزونه چه په تفصیل سره ثابت اومعلوم وی دَ هغې په تفصیلی توګه باندې اقرار اوتصدیق او کړی اوکوم څیزونه چه په اجمالی توګه ثابت وی دَهغې اجمالی اقرار اوکړی. مثلاً دَمانځه حکم، دَ هغې دَ رکعتونوحکم په تفصیل سره قوی او ضروری دې. اودَ قبر دَ عذاب دَ تفصیلاتو ذکر دَعلم اخبار آحاد نه ثابت دې اوضروری نه دې. دَ تصدیق نه مراد انقیاد باطنی دې صرف زبانی نه دې. هم په دې وجه دَ هرقل اسلام معتبرنه شو. بل دَ تصدیق نه منطقی تصدیق مراد نه دې.

**د ضرورةً د قید مفهوم:** نه مراد دادې چه هرخاص اوعام ته معلومه وی یا دَدې ثبوت یقینی وی اودَ دین دَ ضروریاتونه وی.

② امام غزالی رحمه الله [فيصلة التفرقة بين الإيمان والزندقة] کښې دَ ایمان تعریف داسې کړې دې: [التصديق بجميع ما جاء به النبي صلى الله عليه وسلم والكفر تكذيب النبي ﷺ في شئ مما جاء به]

(په دې تعریف کښې یوه فائده دا اوشوه چه دَ ایمان په مقابله کښې دَ کفر تعریف هم په دې کښې راغلو او دویمه فائده دا اوشوه چه دَ ایمان دَپاره ضروری دی چه سړې دې پوره اسلام اومنی. لیکن دَ کافر جوړیدو دَپاره دَ پوره اسلام نه انکار کول ضروری نه دی

بلکه دَ هر یو ضروری حکم دَ انکار سره سړې دَ اسلام نه وتلو سره کافر کیدې شی.

③ شاه عبدالعزیز رحمه الله دَ ایمان تعریف داسې کړې دې ,,دَ کتاب الله ظاهراً او باطناً اقرار کول اودَ هغې معانې دَ قرآن او حدیث موافق استعمالول،،

④ علامه شاه انورشاه کشمیری رحمه الله داسې تعریف کړې دې [تصدیق النبی بما جاء به النبی بالاعتماد علی النبی]

دَدې تعریف نه دا فائده حاصله شوه چه کوم خلق دَ عقل په زور او په عقلی دلائلو دَ نبی کریم ﷺ تصدیق کوی هغه مسلمان کیدې نه شی. ځکه چه هلته اعتماد علی النبی نشته بلکه اعتماد په خپل عقل او دلیل باندې دې.

⑤ شیخ عبدالقادر جیلانی، مرزا مظهرجان جانان او قاضی ثناء الله پانی پتی رحمهم الله تعالی دَ ایمان په تعریف کښې فرمائی: [ دَ ایمان یو ظاهری صورت دادې اودادَدې حقیقت او باطنی صورت دې. ظاهری صورت خو دادې چه تصدیق بالجنان عمل بالارکان اقرار باللسان وی، اودَ ایمان حقیقت دا چه مقتضاء طبع دَ مقتضاء شرع تابع شی ]

⑥ امام محمد رحمه الله دَ ایمان تعریف داسې کړې دې:

[تصدیق النبی بما جاء به مع التبري عن جمیع ما سواه]

په دې تعریف کښې یوه ډیره ښه فائده داده چه په دې کښې بغیردَ اسلام نه دَ کفریه ټولو قوانینونه ویزاری هم دَ ایمان حصه ګرځولې شوې ده.

**دایمان پنځه قسمونه:**

دَ ایمان دَ دې تعریفاتونه پس دَ ایمان یوڅو اقسام هم اوګورئی:

① **ایمانِ مطبوع**: دا دَ فرښتو ایمان دې لکه چه دا مهرشوې ایمان دې. په دې کښې هیڅ فرق نه شی راتلې او په کښې بدلون راتلې شی.

② **ایمانِ معصوم**: (یعنی محفوظ ایمان) دا دَ انبیاء کرامو علیهم السلام ایمان دې.

③ **ایمانِ مقبول**: دا دَ عامو مؤمنانو ایمان دې.

④ **ایمانِ موقوف**: دا دَ اهل زیغ، بطلان او اهل بدعت ایمان دې کوم چه موقوف دې ځکه چه کیدې شی دَ بدعت نه توبه اوکړی اودَ ایمان طرف ته واپس راؤګرځی.

⑤ **ایمانِ مردود**: دادَ منافقانو ایمان دې کوم چه نامقبول او مردود دې.

## دَ کفر حقیقت اودَ هغې قسمونه

**کفر په لغت کښې**: کفر دَ ایمان مقابل اوضد دې په دې وجه دَ دې وضاحت هم ضروری دې. ,,وبضدها تتبین الاشیاء،، کفردَ لغوی معنې په اعتبارسره ستر اودَ پټولو په معنی کې دې.

**دکفرپه شرعی تعریف کښې اقوال:** ① په شریعت کښې دَ کفر تعریف او حقیقت امام غزالی رحمه الله دَ ایمان په تعریف کښې بیان کړې دې ,,والکفر تکذیب النبی فی شئ مما جاء به]
② یو مختصر تعریف دکافرانو داهم دې ,,الذین ستروا الحق عنادا] یعنی چا چه دَ عناد دَ وجې حق پټ کړو.

**یوه ضروری خبره:** دا خبره اول لیکلې شوې ده چه دَ اسلام راوړلودَپاره ضروری دی چه دَ پوره اسلام ټول احکاماتو سرې اقرار او تصدیق اوکړی لیکن دَ کافر کیدودَپاره صرف هم دومره کافی دی چه دَ دین دَ ضروریاتو نه دَ یو حکم انکار اوکړی شی. په دې سره دَعامو خلقو دَدې نظریې تردید کیږی چه دا ګڼړی چه دَ یو حکم دوو دَ انکار سره هیڅ هم نه کیږی مونږ خو کلمه هم وایو او مونځ هم کوو. کافر خو به هغه وی چه دَ شریعت دَ هر یو حکم نه انکار کوی اودَ اسلام نه اوتختی.

**د کفر قسمونه:**

① **کفرِ انکار:** کوم سړې چه دَ زړه او ژبې په سختئی سره دَ اسلام نه انکار کوی داکفرِ انکار دې هم په دې باندې عام کافران دی.

② **کفرِ جحود:** دا دې چه په زړه سره دین اسلام رښتونې ګڼړی دَ دې دَ حقانیت قائل دې لیکن په ژبه سره اقرار نه کوی بلکه انکار کوی. یعنی ښه ورته معلومه ده خو منی نه لکه کفر ابلیس، کفر یهود وغیره ﴿وَجَحَدُوا بِهَا وَاسْتَيْقَنَتْهَا أَنفُسُهُمْ ظُلْمًا وَعُلُوًّا﴾(سورة النمل)

③ **کفرِ عناد ومعانده:** دادې چه اسلام په زړه سره هم رښتونې منی او په ژبه سره هم اقرار کوی لیکن دَ دین حق نه علاوه دَ باطل ادیان نه ویزاره کیږی نه اودَ دین حق تابعداری نه کوی لکه دَ هرقل کفر اودَ ابوطالب کفر په دې دواړو کښې انقیاد ظاهری نه وو.

④ **کفرِ نفاق:** دادې چه په زړه کښې تکذیب اوانکاردې صرف دَ مصلحت او دنیاوی اغراضو دَ وجې نه په ژبه باندې اقرار کوی لکه عبدالله بن ابی ابن سلول اودَ هغه ډله که هرڅوك وی. دَ نفاق دَ دې شعبې لاندې نور هم ډیرزیات اهل باطل، زندیق، روافض، آغاخانی، قادیانی، بهائی، پرویزی او یو قسم کمیونسټ هم داخل دی چه دَ ضرورت په وخت کله خو وائی مونځ هم کوی خو بل طرف ته دَ دین دَ ضروریاتو نه یو امر ضروری نه انکارهم کوی. دَ دوی مختلف درجات دی بعضې په نفاق کښې دی او بعضې په واضحه کفرکښې پریوتلی دی.

**دایمان په حقیقت کښې مشهور مذهبونه**

**د شرعی ایمان دوه جهتونه:**

① جهت دنیوی کوم سره چې د ځان او مال حفاظت په هغه وخت کښې کیږی کله چې یو

کس په ژبې سره ددې اقرار اوکړي.

④ جهت اخروي هغه دې چې د مرګ نه پس عذاب او خلود في النار څخه حفاظت کيږي. جهت دنيوي دپاره اتفاقا صرف اقرار لساني کافي دې. او جهت اخروي دپاره ټول اووۀ مذهبونه دي. دوه مذهبونه داهل حق دي او پنځه مذهبونه د اهل باطل دي.

**دایمان په تعریف کښې مذاهب:**

**اول مذهب:** اهل باطل کښې اول مذهب د معتزلۀ دې. ددوئ په نزد د ایمان تعریف دادې: ,,الایمان هوالتصدیق بالجنان والإقرار باللسان والعمل بالأرکان] یعنی زړه سره تصدیق کول، ژبه سره اقرار کول او اعمال اسلام او ارکان اسلام باندې عمل کول،

یعنی معتزلۀ چې کوم تعریف کړې دې دا دهغوئ د عقیدې موافق دې ځکه چې ددوئ په نزد مرتکب کبیره اسلام څخه خارج دې. لیکن په کفرکښې داخل نه دی. دغه شان دَهغوی په نیز په دوزخ کښې هم دَ دوو درجو په مینځ کښې یوه درجه ده په کوم کښې چه به نه خالص کافران وی اونه خالص مسلمانان بلکه هم دغه به دَ کبیره مرتکب وی.

**دویم مذهب:** دویم مذهب د خوارجودې.د خوارجو په نزد د ایمان حقیقت دادې چې ,,الایمان هو التصدیق بالجنان والإقرار باللسان والعمل بالأرکان ویخرج بالکبیرة من الاسلام ویدخل فی الکفر فهوکافر]

**د دواړو مذهبونو د بطلان دلائل:** ① صحابه کرام تابعینو او سلف صالحین او ټول اهل اسلام په دې متفق دی چې د کوم کس په زړه کښې د مثقال برابر او د اوری د دانې برابر ایمان وی نو هغه به مخلدفی النار نه وی. (یعنی همیشه به دوزخ کښې نه وی).

② په دې هم اتفاق دې چې د نبی کریم ﷺ شفاعت اهل کبائر دپاره دې. ,,شفاعتی لأهل الکبائر] حدیث پاك کښې دی چې ,,یخرج من النار من کان فی قلبه مثقال ذرة من إیمان]

③ په قرآن پاك کښې دی چې: [وَاِنۡ طَآئِفَتٰنِ مِنَ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ اقۡتَتَلُوۡا فَاَصۡلِحُوۡا بَيۡنَهُمَا ۚ] دلته دواړه جنګیدونکو ته مسلمان اوويلې شو.

④ په سورة فاطرکښې دی. [يٰعِبَادِيَ الَّذِيۡنَ اَسۡرَفُوۡا عَلٰٓى اَنۡفُسِهِمۡ لَا تَقۡنَطُوۡا مِنۡ رَّحۡمَةِ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يَغۡفِرُ الذُّنُوۡبَ جَمِيۡعًا ؕ] دغه شان د توبې ویستلو نور آیتونه هم دی.

⑤ او دحضرت ابو ذر غفاری ﷺ وغیره احادیث ,,وإن زنی وإن سرق] په دې باندې دال دی چې مرتکب د کبیرې ناقص مؤمن دې. خو مخلد في النار نه دې بلکه د سزا تیرولو نه

پس به دوزخ نه راوځي.
نو دا د معتزلو او خوارجو د بدعاتو او واهياتو څخه دی چې معتزله د مسلم څخه د مسلمان نوم واخستو او خوارجو مسلمان د مؤمن خوږ لفظ څخه محروم کړو. او كافر ئې ترې جوړل کړل.

**دريم مذهب:** دجهميو په نيز دايمان تعريف دا دې. ,,الايمان هو معرفة القلب فقط] يعنى صرف قلبى معرفت كافى دې، د اقرار لسانى او عمل اركانى هيڅ حاجت اوضرورت نشته دې.

**د دريم مذهب د بطلان دلائل:** دا باطل مذهب د جهميه دې. دا د جهم بن صفوان د جماعت خلق دی. دا مذهب بالكل باطل دې.

① داهل كتابو باره كښې قرآن پاك اعلان كوى چې: [يَعْرِفُوْنَهٗ كَمَا يَعْرِفُوْنَ اَبْنَآءَهُمْ] نو آيا دا خلق مسلمانان شو؟

② هرقل ته معرفت قلبى حاصل وو حالانكه هغه په كفرباندې مړ شوې دې.

③ دغه شان د ابوطالب حال تاسو اولوستو نو آيا هغه دحصول معرفت سره مسلمان شو؟

د يهوديانومتعلق قرآن اعلان كوى چې: [فَلَمَّا جَآءَهُمْ مَّا عَرَفُوْا كَفَرُوْا بِهٖ فَلَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ] كه صرف معرفت قلبى دَ ايمان دپاره كافى وو نو هغوئ ته قرآن پاك ولې كافر اووئيل، او آيا دا مسلمانان دی؟

**څلورم مذهب:** اهل باطل ډلو كښې څلورم مذهب د مرجئو دې هغوئ وائى چې:
,,الايمان هوالتصديق فقط ولاتضر مع الايمان معصية كما لاتنفع مع الكفر طاعة]

يعنى ايمان صرف دتصديق نوم دې، تعريف هم دومره دې، اوس دوئ وړاندې ددې تعريف په رنړا كښې وائى چې ايمان سره كه څه معصيت او نافرمانى وى نو دا دې ته نقصان نه وركوى. لكه څنګه چې كفر سره يو طاعت فائده نه وركوى.

**دڅلورم مذهب د بطلان دلائل:** دا مذهب هم باطل دې ځكه چې د دخولِ جنت وعده عمل صالح څخه بغير قرآن كريم كښې چرته هم نه ده راغلې. بلكه تصديق قلبى آمنوا سره د امنوا وعملوا الصالحات لفظ هم هر ځائې كښې راغلې دې. او د نبى كريم ﷺ ژوند او د صحابه كرامو ژوند ددې مذهب نفى كوى. ځكه چې ددې حضراتو باره كښې دا هډو امكان نه وو چې دوئ به مونځ وغيره ترك كړې وى. معلومه شوه چې د دخولِ جنت دپاره د اعمال صالحه كيدل ضرورى دى.

**پنځم مذهب:** اهل باطل ډلو كښې څلورم مذهب د كراميؤ دې. ددوئ په نزد د ايمان تعريف دادې. ,,الايمان اقرار باللسان فقط،،

**د پنځم مذهب د بطلان دلائل:** دا تعريف هم غلط دې اودا مذهب هم باطل دې. ځکه چې قرآن کريم منافقان بدترين کافر ګرځولی دی حالانکه هغوئ په اقرار لساني کښې کمی نه وه کړې. ① [وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَبِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِيْنَ]
② [اِذَا جَآءَكَ الْمُنٰفِقُوْنَ قَالُوْا نَشْهَدُ اِنَّكَ لَرَسُوْلُ اللّٰهِ ۘ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اِنَّكَ لَرَسُوْلُهٗ ؕ وَاللّٰهُ يَشْهَدُ اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَكٰذِبُوْنَ]

که صرف لساني اقرار کافي وې نو الله تعالی به کله هم دوئ ته کافر نه وئيل.

دا خلق د محمد بن کرام پيروکار دی. ځينې علماء کرامو وئيلی دی چې دا خلق د [اَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ ؕ قَالُوْا بَلٰى] اقرار ايمان دپاره کافي ګڼړی.

**شپږم مذهب:** د اهل باطل د پنځو مذهبونو څخه وروستو دوه مذهبونه د اهل حق دی،نو مسلسل د شمير په لحاظ شپږم مذهب اهل حق کښې د احنافو او دَ جمهور متکلمينو دَ ابومنصور ماتريدی او دَ ابوالحسن اشعری وغيرهم دې، دوی د ايمان تعريف داسې کوی ,,الإيمان هوالتصديق بالجنان فقط] وړاندې ددې تعريف او نتيجه اوثمره ده چې: ,,والعمل بالأركان والإقرار باللسان شرطان لاشطر للإيمان]

دَ ايمان دپاره دوه شرطونه دی خو ايمان دپاره شطر يا جزء يا رکن نه دی. ددې مذهب مطابق ايمان تصديق قلبی امر بسيط ته وائی.

**اووم مذهب:** اهل حق کښې د جمهورمحدثينو اودَ شوافعو او دَ مالکيؤ په نزد د ايمان تعريف داشان دې: ,,الإيمان هوالتصديق بالجنان والإقرار باللسان والعمل بالأركان]

ددوئ په نزد درېو څيزونو څخه ايمان مرکب دې بسيط نه دې.

دَاهل حق دا دواړه جماعتونه داهل سنت والجماعة څخه دی. ددوئ خپلو کښې اختلاف حقيقی نه دې. بلکه لفظی اوظاهری دې. لکه څنګه چې دې پسې فصل کښې راروان دی. بهر حال د اهل حق په مينځ کښې دومره اختلاف خو يقينی دې چې احناف او جمهور متکلمين ايمان ته بسيط وائی. او شوافع او جمهور محدثين ايمان د دريو څيزونو مرکب ګڼړی. امام بخاری رحمه الله د ايمان په مرکب کيدو ډېر دلائل جمع کړی دی.

**يوه اهمه تنبيه:** دلته يوه اهمه خبره باندې پوهيدل ضروری دی او هغه دا چې حضرات شوافعو اوجمهور محدثينود ايمان کوم تعريف کړې دې، دا بعينه هم هغه تعريف دې کوم چې معتزلؤ اوخوارجو کړې دې. خو دا صرف لفظی مشابهت دې ګنی په حقيقت کښې ډېر فرق دې. ځکه چې معتزله او خوارج ايمان دَ اجزاء ثلاثه څخه مرکب منی چې ددې يو جز پريښودو سره ايمان ختميږی. او ددوئ په نزد تارك اعمال مخلد فی النار دې. داشان احنافو او متکلمينو چې د ايمان کوم تعريف کړې دې هغه بعينه هم هغه

تعریف دې کوم چې مرجئو کړې دې خو د لته هم صرف لفظی مشابهت دې گنې حقیقت کښې ډیر فرق دې. ځکه چې احناف او متکلمین د اعمالو ضرورت منی او تارك اعمال لره فاسق گڼړی،او د مرجئه په نزد د عملونو هیڅ حیثیت نشته دې،

بهرحال د تعریف د اشتراك په وجه محدثینو اوشوافعو لره معتزلؤسره یوشان گڼړل به داسې ظلم وی لکه څنگه چه تعریف د ایمان دَ اشتراك لفظی په وجه احنافو لره مرجئه پشان گڼړل ظلم عظیم دې.

**امام ابوحنیفه رحمه الله ته یوغلط نسبت:** بیاامام صاحب طرفته د ارجاء نسبت کول لویه غلطی ده او ډیره لویه گستاخی ده. د ایمان په تعریف کښې اشتراك لفظی لره بنیاد جوړول او دومره جسارت کول دا لویه بې انصافی ده. که معتزلؤ او خوارجو سره دایمان په تعریف کښې اشتراك لفظی حضرات شوافع او محدثینو لره معتزله او خوراج نه جوړوی نو احناف ولې مرجئه جوړولې شی؟

**دایمان په بساطت اوترکیب کښې دوه مذاهب:**

① د جمهور محدثینو او شوافعو او حنابلو او مالکیو ایمان لره د دریو څیزونو څخه مرکب کړې دې،

② احناف چې د ایمان کوم تعریف کړې دې هغه دادې چې ایمان تصدیق د قلب ته وائی. ددې څخه دا نتیجه اخذ کیږی چې ایمان بسیط دې او احناف ایمان لره بسیط منی، په دې باندې ددوئ په نزد چې کوم دلائل دی هغه لاندې ذکر کیږی:

**داول فریق دلائل:** ① [لَيْسَ الْبِرَّ أَنْ تُوَلُّوا وُجُوهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلَكِنَّ الْبِرَّ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالْكِتَابِ]

دې آیت مبارك کښې ډیر ابواب البر لره ایمان سره پیوسته کړې شوی دی چه دهغې څخه د ایمان د ترکیب پته لگی.

② [الْإِيمَانُ بِضْعٌ وَسَبْعُونَ - أَوْ بِضْعٌ وَسِتُّونَ - شُعْبَةً، فَأَفْضَلُهَا قَوْلُ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَأَدْنَاهَا إِمَاطَةُ الْأَذَى عَنِ الطَّرِيقِ، وَالْحَيَاءُ شُعْبَةٌ مِنَ الْإِيمَانِ]

دې حدیث پاك کښې هم دَ ډیرو شعبو ذکر کړې شوې دې او ددې څخه د ایمان د ترکیب مدعا ثابتیږی.

③ [بُنِيَ الْإِسْلَامُ عَلَى خَمْسٍ شَهَادَةِ أَنْ لا اله الا الله، وَإِقَامِ الصَّلَاةِ......الخ]

دې حدیث پاك ایمان لره دَ پنځو ارکانو نه مرکب خودلې دې. معلومه شوه چې مرکب دې بسیط نه دې ځکه چې احادیث مبارکؤ کښې نیك اعمال داشان ایمان سره تړلې شوی دی چې گویا ټول هم دَ یو څیز یعنی دایمان څو اجزاء دی او ایمان ددې څخه مرکب دې. امام

بخاري رحمه الله په صحيح بخاري کښې کتاب الايمان کښې داسې قسمه ډير آياتونو او احاديثو څخه باربار استدلال کړېدې.

**د دويم فريق دلائل:** قرآن پاك کښې ځائې په ځائې ايمان باندې د عمل صالح عطف راغلې دې. او عطف تغاير غواړي نو ايمان بيل څيز دې او اعمال بيل څيز دې.

① [إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ كَانَتْ لَهُمْ جَنَّاتُ الْفِرْدَوْسِ نُزُلًا] (الكهف: ۱۰۷)

[أُولَٰئِكَ كَتَبَ فِي قُلُوبِهِمُ الْإِيمَانَ] (المجادلة: ۲۲)

[وَلَمَّا يَدْخُلِ الْإِيمَانُ فِي قُلُوبِكُمْ] (الحجرات: ۱۴)

[قَالُوا آمَنَّا بِأَفْوَاهِهِمْ وَلَمْ تُؤْمِنْ قُلُوبُهُمْ] (المائدة: ۴۱)

[وَلَٰكِنْ لِيَطْمَئِنَّ قَلْبِي] (البقرة: ۲۲۰)

[وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ بِالْإِيمَانِ] (النحل: ۱۰۲)

دې ټولو آيتونو کښې زړه لره د ايمان محل ګرځولې شوې دې. او د ايمان نسبت زړه ته کړې شوې دې. زړه کښې دننه خو صرف عقيدهٔ جازمه راتلې شي او هغه امر بسيط دې، هلته د ترکيب امکان نشته.

② [مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَىٰ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهُ حَيَاةً طَيِّبَةً] (النحل: ۹۷)

دې آيت مبارك کښې د عمل د قبوليت دپاره ايمان شرط کړې شوې دې نو ايمان شرط دې او عمل مشروط دې، او شرط او مشروط کښې مغايرت ضروري دې نو ايمان د شرط په درجه کې بيل څيز دې او عمل د مشروط په درجه کې بيل څيز د ي. نو ايمان بسيط شو.

③ د ايمان ضد کفر دې. او د کفر محل قلب دې نو د ايمان محل به هم قلب وی. ,,وبضدها تتبين الاشياء" هرکله چې محل قلب شو نو ايمان بسيط شو

④ د حضرت اسامه بن زيد رضي الله عنه مشهوره واقعه ده چې يوکس کلمه اوونيله او حضرت اسامه هغه اوژلو، او بيا يې اوفرمائيل چې ده د ځان بچ کولودپاره کلمه وئيلې وه ګنې په زړه کښې ئې ايمان نه وو. نو نبی کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چې ,,فهلا شققت من قلبه" معلومه شوه چې د ايمان محل زړه دې نو دا بسيط دې.

⑤ حديث جبرئيل کښې د ماالايمان؟ په جواب کښې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې: ,,أن تؤمن بالله وملائكته الخ" او دا تصديق د قلب دې. ځکه چې ايمان راوړه په الله باندې او دهغه په فرښتو باندې او کتابونو باندې اورسولانو باندې، دا ټول تصديق قلبی دې.

⑥ کله چې به نبی کريم ﷺ چا ته فرمائيل چې آمنوا نو هغه بهٔ دا ګڼړله چې د امنوا څخه مراد دزړه څخه منل دی تصديق قلبی به ئې په ذهن کښې راتلو. معلومه شوه چې تصديق

قلبي ايمان نه وائي. او زړه کښې د ننه چې څه دي هغه به بسيط وي، مرکب نشي کيدې.

**د ايمان په زيادت او نقصان کښې مذاهب:**

① حضرات محدثين او شوافع او معتزله او خوارج د ايمان د زياتوالي قائل دي.

② دَ ائمه احنافو او دَ متکلمينو په دې په ايمان کښې کمې زياتې نه کيږي.

**دا اختلاف نوعيت:** امام رازی رحمه الله فرمائي چې دا اختلاف اصل کښې هم دې ماسبق اختلاف باندې متفرع دې کوم کښې چې دې حضراتو دايمان په مرکب او بسيط کيدو کښې اختلاف کړې دې. نو کوم خلق چې ايمان لره بسيط ګڼړي دهغوئ په نزد امر بسيط کښې زياتوالي او نقصان نه وي. ځکه چې بسيط حقيقي ,,الذي ما لا جزء له أصلا] ته وائي. او بسيط عرفي د ,,ما لا يركب من الأجسام المختلفة] نوم دې. نو په دې کښې دزياتوالي او نقصان امکان نشته دې. او کوم خلق چې ايمان لره مرکب من الاجزاء الثلاثة مني هغوئ د زياتوالي او نقصان قائل دي. لهذا دا اختلاف هم د اولني اختلاف پشان لفظي دې، اختلاف حقيقي نه دې.

**د اول فريق دلائل:** محدثينو او شوافع حضراتو د ايمان په زياتوالي او نقصان باندې د قرآن عظيم الشان دَ ډيرو آيتونو او حديثونونه استدلال کړې دی کوم کښې چې د زيادت لفظ راغلي دې. امام بخاری رحمه الله خپل کتاب صحيح بخاری کښې دا قسمه دلائل په شروع د کتاب الايمان کښې ډير زيات راوړی دی، د هغې څخه يو څو اوګورئ:

① [لِيَزْدَادُوٓا اِيْمَانًا مَّعَ اِيْمَانِهِمْ ط] (فتح: ۴)

② [وَاِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ اٰيٰتُهٗ زَادَتْهُمْ اِيْمَانًا وَّعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ] (انفال: ٢)

③ [وَيَزْدَادَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِيْمَانًا وَّلَا يَرْتَابَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ] (مدثر: ٣)

④ [فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فَزَادَتْهُمْ اِيْمَانًا وَّهُمْ يَسْتَبْشِرُوْنَ] (بقره: ١٢۴)

⑤ [اَلَّذِيْنَ قَالَ لَهُمُ النَّاسُ اِنَّ النَّاسَ قَدْ جَمَعُوْا لَكُمْ فَاخْشَوْهُمْ فَزَادَهُمْ اِيْمَانًا ۖ وَّقَالُوْا حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ] (آل عمران: ١٧٣)

⑥ [اِنَّهُمْ فِتْيَةٌ اٰمَنُوْا بِرَبِّهِمْ وَزِدْنٰهُمْ هُدًى] (کهف: ١٧٣)

⑦ [قال ابن عمر رضي الله عنه تعلمنا الايمان ثم تعلمنا القرآن فازددنا إيمانا]

⑧ [وقال ابن مسعود رضي الله عنه: اللهم زدنا إيمانا ويقينا وفقها]

**د اول فريق د دلائلو شپږ جوابونه:** ① شاه ولی الله رحمه الله فرمائي چې کومو نصوصو کښې د ايمان د زيادت او نقصان ذکر دې دهغې څخه مراد دَ ايمان په حلاوت کښې زياتوالي دې. نفس ايمان کښې زياتوالي مراد نه دې. دا دوه جدا جدا څيزونه دی. يعنی اجزء

تحسینیه، تزیینه، تخییلیه] کښې زیاتوالی مراد دی.

② یو ایمان اجمالی دی. او یو ایمان تفصیلی دی، ایمان اجمالی زیاتوالی او نقصان نه قبلوی او ایمان تفصیلی زیاتوالی او نقصان قبلوی، امام ابوحنیفه رحمه الله دیو سائل په جواب کښې فرمائی: ,,الایمان المجمل لایزید ولاینقص وأما المفصل فهو یزید]

③ دا زیاتوالی او نقصان د مؤمن به په وجه دی چې دوحی په ذریعه څومره مؤمن به زیاتیږی په دې باندې ایمان هم زیاتیږی. دوه آیتونو باندې ایمان رااوړو څخه وروستو په لسو آیتونو باندې ایمان نور هم زیاتیږی او د مؤمن به په وجه ایمان زیاتیږی.

④ د وحی د نزول په زمانه کښې خو یزید وینقص کیدې شو لیکن د وحی د بندیدو نه وروستو اوس خو لایزید ولا ینقص دی.

⑤ مشهور قول د امام مالک رحمه الله او یو بل قول د امام ابوحنیفه رحمه الله دی چې ..الایمان یزید ولاینقص] یعنی نصوص آیتونو او احادیثو څخه د ایمان د زیاتوالی پته لګی خو د نقص او نقصان پته نه لګی. لهذا نقصان نشته دی.

⑥ د زیاتوالی او کموالی د ایمان دنور په وجه دی. د اصل ایمان په اعتبار سره نه دی، ګویا اجزاء نورانیه کښې نقص او انبساط ځی راځی.

**دایمان او اسلام په نسبت کښې مذاهب:**

**نوټ:** دلته کښې اګرچې په شروحاتو کښې د مذاهبو ذکر نشته صرف د درې قسمه دلائلو ذکردې خومونږ چونکه په دې کښې د تحقیق دپاره د مذاهبو عنوان ورکوو. ددې وجې دلته کښې مو هم د ((دایمان او اسلام په نسبت کښې مذاهب))عنوان ورکړو. چې په رجوع کولو کښې آسانی وی.

**په ایمان او اسلام کښې فرق:** په نصوصو کښے ددے استعمال علی سبیل الترادف، علی سبیل التباین اوعلی سبیل التداخل درے قسمه راغلے دے.

**په ایمان او اسلام کښې د ترادف دلائل:** ① الله تعالی فرمائی. ﴿ فَأَخْرَجْنَا مَنْ كَانَ فِيهَا مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ۝ فَمَا وَجَدْنَا فِيهَا غَيْرَ بَيْتٍ مِّنَ الْمُسْلِمِينَ ۝﴾(١)

② الله تعالی په دویم ځائے کښے فرمائی ﴿وَقَالَ مُوسَىٰ يَا قَوْمِ إِن كُنتُمْ آمَنتُم بِاللَّهِ فَعَلَيْهِ تَوَكَّلُوا إِن كُنتُم مُّسْلِمِينَ ۝﴾(٢)

(١) سورة الذاريات: ٣٥،٣٦)_
(٢) سورة يونس: ٨٤)_

اونبی ﷺ فرمائیلی دی.((بنی الإسلام علی خمس: شهادة أن لا إله إلا الله...الخ)) (۱) بیا تقریباً هم دا څیزونه د وفد عبدالقیس په حدیث کښې (۲) دایمان په تفسیر کښې ذکر شوی دی.

**د ایمان اواسلام په مینځ کښې د تباین دلائل:** ① په قرآن کریم کښې دی.﴿قَالَتِ الْأَعْرَابُ آمَنَّا قُل لَّمْ تُؤْمِنُوا وَلَٰكِن قُولُوا أَسْلَمْنَا﴾ (۳)

② په حدیث جبریل ؑ کښې دایمان تفسیر په عقائد معینه معلومه سره شوے دے.اود اسلام تفسیر په اعمال معینه سره.(۴)

③ حضرت انس ؓ په حدیث کښې دی.((الإسلام علانیة والإیمان فی القلب)) (۵)

**د ایمان او اسلام په مینځ کښې د تداخل دلائل:** ① د نبی ﷺ نه چه کله تپوس اوشو.چه ((أی العمل أفضل)) نونبی ﷺ اوفرمائیل. ((إیمان بالله ورسوله)) (۶)

② دحضرت عمروبن عبسه ؓ په روایت کښې دی.((فأی الإسلام أفضل؟ قال الإیمان)) (۷)

**په نصوصو کښې تطبیق:** په اصل کښې خبره دا ده.چه د ایمان اواسلام جدا جدا حقیقت شرعیه دے.لکه څنګه چه ددے جدا جدا حقیقت لغویه دے.ایمان خو نوم دے د مخصوص اعتقاد ،اواسلام نوم دے داحکام شرعیه د ادا کولو،خود هر یو دبل سره دتکمیل تعلق دے.لکه څنګه چه یومعتقد کامل نشی کیدے.ترڅوچه اعمال اونکړی.دغه شان مسلمان مطیع کامل نشی کیدے.ترڅوچه ئے د زړه نه اعتقاد نه وی.اوس که دا دواړه کلمات په یوځائے راغلے وی.اوپه مقام د سوال کښې وی.نوددے حقیقت به متباین وی.په حدیث جبریل کښې هم دا صورت دے.اوکه یوځائے نه وی وارد شوے.یا په مقام د سوال کښې نه وی. نوبیا په دے صورت کښې کیدے شی.چه په یوبل کښې داخل شی.(۸)

(۱) صحیح بخاری کتاب الإیمان باب أعاءکم إیمانکم رقم ۸ وکتاب التفسیر،باب (؟) رقم (٤٥١٤) وصحیح مسلم کتاب الإیمان باب بیان أرکان الإسلام ودعائمه العظام رقم (۱۲۰، ۱۲۳)_

(۲) صحیح بخاری کتاب الإیمان باب أداء الخمس من الإیمان رقم(۵۳) وصحیح مسلم کتاب الإیمان باب الأمر بالإیمان بالله تعالی وشرائع الدین..رقم (۱۲٤)_

(۳) سورة الحجرات: ١٤)_

(٤) صحیح مسلم فاتحة کتاب الإیمان رقم(۱۰۲)_

(۵) مسند أحمد (۱۳۵/۳) مسند سیدنا أنس بن مالک ؓ)_

(۶) صحیح بخاری (۸/۱) کتاب الإیمان باب من قال إن الإیمان هوالعمل رقم،۲۶) وکتاب الحج باب فضل حج المبرور.رقم (۱۵۱۹)_

(۷) رواه الطبرانی وأحمد انظرمجمع الزوائد(۵۹/۱) کتاب الإیمان باب أی العمل أفضل وأی الدین أحب إلی الله)

(۸) فتح الباری(۱۱۵/۱) کتاب الإیمان باب سؤال جبریل ؑ النبی ﷺ عن الإیمان والإسلام والإحسان وعلم الساعة وبیان النبی ﷺ له)_

حافظ ابن رجب حنبلی رحمه الله فرمائی چه کله ایمان اواسلام دواړه جدا جدا ذکرکړے شی.نوپه دے دواړوکښے څه فرق نه وی.اوچه کله دواړه یوځائے ذکرکړے شی.نوبیا به فرق وی.هغوی فرمائی.«فالایمان والإسلام کإسم الفقیر والمسکین إذا اجتمعا إفترقا، وإذا إفترقا اجتمعا» یعنی ایمان او اسلام داړه د فقیر او مسکین په شان دوه نومونه دی کله چه جدا جدا ذکر شی نو معنی ئې هم جدا وی نو ددې حقائق متباین وی اوکله چه یو ځای ذکرشی نو معنی ئې هم یوه وی نویوپه بل کښې داخل وی.(١)

**په ایمان کښې د استثناء په بحث کښې مذاهب:**

دلته یوه مسئله د استثناء في الایمان ده.یعنی یوسړے به دخپل ځان په باره کښے «أنا مؤمن» مطلقاً وائی.اوکه د «إن شاء الله» قید به ورسره لګوی.اودا به وائی.چه «أنا مؤمن إن شاء الله»

① یوه ډله وائی.چه استثناء کول پکار دی.دا د ائمه ثلاثه،حضرت عبدالله بن مسعود، حضرت علقمه،حضرت ابراهیم نخعی،سفیان ثوری،سفیان بن عیینه،اویحیی بن سعید قطان رحمهم الله مذهب دے.

② یوه بله ډله وائی.چه استثناء کول جائز نه دی.د احنافواوددوی اکثرومتکلمینو رحمهم الله هم دا قول دے.هم دا مذهب مختار اوداهل تحقیق دے.

③ امام اوزاعی رحمه الله فرمائی.چه استثناء اوعدم استثناء دواړه صورتونه جائز دی. استثناء خوددے وجے جائز ده.چه د راروان وخت څه پته نه لګی.چه په ایمان به ثابت قدم پاتے شی که نه؟ اوعدم استثناء ددے وجے چه في الحال ایمان موجود دے.اوپه ده باندے حالاً د ایمان احکام جاری دی.

**داول فریق دلیل:** کوم حضرات چه دا وائی.چه «أنا مؤمن إن شاء الله» ونیل پکار دی.دا حضرات فرمائی.چه اصلی ایمان خوهغه دے.کوم چه د مرګ په وخت کښے وی.اودهغې څه نښه نشته.ځکه چه دانجام چاته علم نه وی.نوځکه سړی ته بطور تبرک (نه د شك په طور) «إن شاء الله» ونیل پکار دی.قال الله تعالی: ﴿وَلَا تَقُولَنَّ لِشَيْءٍ إِنِّي فَاعِلٌ ذَٰلِكَ غَدًا﴾(٢)

**د دویم فریق دلیل:** کوم حضرات چه دا وائی.چه «إن شاء الله» ونیل نه دی پکار.هغوی فرمائی.چه دا کلام دتعلیق دپاره استعمالیږی.اوس که یو کس دا اووائی.نوبل ته دهغه په ایمان کښے شك پیدا کیدے شی.هم داسے کیدے شی.چه په ونیلو ونیلو نفس ددے کلمے

(١) فتح الملهم (١/٤٢٨، ٤٢٩) البحث الأول في موجب اللغة_

(٢) سورة الكهف:٢٣)_

د وجې د شك اوشبه عادي جوړ شي.

**د ابن تيمية رحمه الله تحقيق:** علامه ابن تيميه رحمه الله رائې ده. چه «أنا مؤمن إن شاء الله» ونيل پکار دی. خوددې تعليق وجه دا ده. چه ايمان د سلفو رحمهم الله په نيز يوډير وسيع څيز دې چه په هغې کښې د زړه عقيده، د ژبې اقرار، اواعمال ارکان ټول داخل دی. اوس که يو کس «أنا مؤمن» مطلقاً وائي. نوددې دا معنی ده. چه هغه وائي. زه کامل مومن يم. اومؤمن کامل جنتي وی. په نوروالفاظو کښې داسې اووايه. چه هغه خپل خان ته جنتي وائي. اوڅوك دخپل خان په باره کښې دا ذمه واری نشي ورکولې. چه ده د ايمان ټول اعمال ادا کړی دی. په کومو باندې چه جنت مرتب کيږی. هم دا وجه ده. چه يوکس حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ته راغلو. اووئې ونيل. «إني مؤمن» نوحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ورته د انکار په طورسره اوفرمائيل. بياخوداسې وايه. چه «إني في الجنة» بيا ئې ورته ددې نه هدايت اوکړلو. چه داسې ونيل پکار دی. «لكنا آمنا بالله وملائكته وكتبه ورسله»(۱)

**تنبيه:** داخبره دې ياده وی. چه په سلفو کښې ددې مسئله په وجه ډيره فتنه پاتې شوې وه. يوې ډلې دحد نه زياته غلو کړې ده. او «إن شاء الله» ويونکو ته ئې، مستثنيه شکيه، پته نه لګی. چه څه څه ونيلی دی.

په دې مقام کښې علامه زبيدی رحمه الله صاحب د «إتحاف السادة المتقين» په هغې غلاة احنافو باندې انکار کړې دې. اوفرمائيلې ئې دی. چه حقيقت دا دې. چه په دې مسئله کښې ژبه بندول پکار دی. اوچه ضرورت پيدا شي. نوبه اعتدال سره خبره کول پکار دی. دامام اعظم رحمه الله نه اګرچه د «أنا مؤمن إن شاء الله» باندې انکار منقول دې. خودهغوی نه داسې تشديدی کلمات کوم چه د متاخرينونه صادر شوی دی. منقول نه دی. هسې هم د سوچ خبره ده. که د استثناء کونکو تکفير اوتضليل اوکړې شي. نوحضرت عبدالله بن مسعود، علقمه، ابراهيم نخعي، رحمهم الله په باره کښې به څه ونيلی شي. کوم چه د احنافو رحمهم الله د مذهب ستنې دی. اوبه چا باندې چه د احنافو رحمهم الله د مستدلاتو انتها کيږی. (۲)

**فائده: د ايمان محل:** دشوافعو په نيز د ايمان محل قلب دې ځکه چې نصوصو کښې د ايمان نسبت قلب طرفته شوې دې لکه [وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ بِالْإِيمَانِ]، امام ابوحنيفه رحمه الله طرفته

(۱) رواه الطبراني في الكبير ورجاله ثقات.. كذا في مجمع الزوائد (۵۵/۱) كتاب الإيمان باب في الإسلام والإيمان)

(۲) دمکمل بحث دپاره اوګورئ فتح الملهم (۴۵۷/۱، ۴۵۹) حکم الإستثناء في قول الرجل أنا مؤمن إن شاء الله)

منسوب دی چې محل د ایمان دماغ دی صاحب هدایه اشاره کړې ده چې محل د ایمان قلب دې نو د دماغو خبره او امام صاحب ته د دې نسبت کول صحیح نه دی. خو قلبی رڼا دپاره دماغ پشان د بلب دی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [٢] حدیث جبرائیل (ؑ)

٢ –()[١] «[١] عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: بَيْنَمَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ذَاتَ يَوْمٍ، [٢] إِذْ طَلَعَ عَلَيْنَا رَجُلٌ شَدِيدُ بَيَاضِ الثِّيَابِ، [٣] شَدِيدُ سَوَادِ الشَّعْرِ، لَا يُرَى عَلَيْهِ أَثَرُ السَّفَرِ، وَلَا يَعْرِفُهُ مِنَّا أَحَدٌ، [٤] حَتَّى جَلَسَ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -، فَأَسْنَدَ رُكْبَتَيْهِ إِلَى رُكْبَتَيْهِ، وَوَضَعَ كَفَّيْهِ عَلَى فَخِذَيْهِ، [٥] وَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ أَخْبِرْنِي عَنِ الْإِسْلَامِ. [٦] قَالَ: "الْإِسْلَامُ: أَنْ تَشْهَدَ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللّٰهِ، [٧] وَتُقِيمَ الصَّلَاةَ، وَتُؤْتِيَ الزَّكَاةَ، وَتَصُومَ رَمَضَانَ، وَتَحُجَّ الْبَيْتَ إِنِ اسْتَطَعْتَ إِلَيْهِ سَبِيلًا" [٨] قَالَ: صَدَقْتَ. فَعَجِبْنَا لَهُ يَسْأَلُهُ، وَيُصَدِّقُهُ! [٩] قَالَ: فَأَخْبِرْنِي عَنِ الْإِيمَانِ. [١٠] قَالَ: (أَنْ تُؤْمِنَ بِاللّٰهِ وَمَلَائِكَتِهِ، وَكُتُبِهِ، وَرُسُلِهِ، وَالْيَوْمِ الْآخِرِ، وَتُؤْمِنَ بِالْقَدَرِ خَيْرِهِ وَشَرِّهِ، [١١] قَالَ: صَدَقْتَ.

**ترجمه:** [١] د حضرت عمر بن الخطاب ؓ بیان دي چې یوه ورځ مونږ (صحابه) د رسول الله ﷺ په مجلس کې ناست وو [٢] چې ناګاه یو سړي زمونږ په مینځ کې راغې دهغه جامې ډیرې صفا او په سپینو کپړو باندې مشتمل وو [٣] او وریښتیان یې تک تور او ځلیدونکي وه په هغه سړي د سفر څه علامت نه وو (چې هغه یو ځایي څخه په سفر راغلي دي او اجنبي وګڼل شي) او نه په مونږ کې چا هغه پیژندي (د دي دا مطلب وو چې هغه ځایي سړي یا د چا میلمه هم نه وو) [٤] بهر حال هغه سړي نبي کریم ﷺ ته دومره نږدې کیناستل چې د حضور ﷺ د ځنګنونو سره یې خپل ځنګنونه ولګول او بیا هغه خپل دواړه لاسونه په خپلو ورنو کیښودل (ځنګه چې یو نیك بخته شاګرد د جلیل القدر استاذ په مخکې په ادب سره ناست وي او د استاد خبري اوریدو د پاره پوره پوره متوجه وي) [٥] د دې څخه وروسته هغه عرض وکړو اې محمد ﷺ ما د اسلام د حقیقت څخه خبر کړه، [٦] رسول الله ﷺ ورته وفرمایل اسلام دا دي چې ته د دې خبري اعتراف وکړې او ګواهي ورکړې چې د الله ﷻ څخه ماسوا بل معبود نشته او محمد ﷺ د الله ﷻ رسول دي [٧] او بیا ته په پابندئ سره مونځ کوې (که صاحب د نصاب یې نو) زکوٰة ورکوې درمضان روژې نیسې، که د لارې توښه درسره وي نو د بیت الله شریفې حج کوې [٨] هغه سړي دا اوریدلو سره اوویل تا رښتیا وویل، حضرت عمر ؓ وایې چې په دې باندې

[١]) اخرجه مسلم کتاب الایمان /باب معرفة الإیمان، والإسلام، والقدر وعلامة الساعة (رقم-١) وابوداود کتاب السنة/باب فی القدر (رقم-٤٦٩٥) وابن ما جه باب فی الإیمان (رقم-٦٣) واحمد فی مسنده ٥١/١.

مونږ ته تعجب وشو چې دا سړي (د يو بي علمه سړي په شان مخکې خو) د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه کوي بيا د هغه ﷺ د جواب تصديق هم کوي لکه چې د دې خبرو هغه ته دمخکې څخه علم وي [۹] بيا هغه سړي اوويل اي محمد ﷺ اوس د ايمان حقيقت ماته بيان کړه [۱۰] حضور ﷺ ورته وفرمايل ايمان دادي چې ته الله ﷻ او دهغه فرښتې او دهغه کتابونه او د هغه رسولان او د قيامت ورځ په زړه سره ومنې او په دې خبره يقين وکړې چې خير او شر څه چې پيښيږي هغه ټول دتقدير مطابق دي [۱۱] د دې اوريدو سره هغه سړي اوويل تا ﷺ رښتيا وفرمايل.

**حل اللغات:** ① طَلَعَ: بِمَعْنَى الظُّهُورِ: دظهور په معنی کښې دې يعنی راښکاره شو. ② سَوَادِ الشَّعْرِ: تک تور ويښته ئې وو. ③ فَأَسْنَدَ: د باب افعال نه دې، اوئې لګولې، جختې ئې کړې. ④ الْإِسْلَامِ: اسلام په لغت کښې مطلق انقياد او تسليم کيدو ته وائی. اوپه شريعت کښې ظاهری انقياد ته وائی په شرط ددې چه باطنی انقياد ورسره هم وی چه هغې ته ايمان وائی. ⑤ الْبَيْتَ: أَيِ الْحَرَامَ: د بيت نه مراد بيت الله يعنی مسجد حرام دې ⑥ بِالْقَدَرِ: مَا قَدَّرَهُ اللّٰهُ، وَقَضَاهُ: دقدر نه مراد دالله تقدير او فيصله ده.

[۱] قَالَ: فَأَخْبِرْنِي عَنِ الْإِحْسَانِ. [۲] قَالَ: " أَنْ تَعْبُدَ اللّٰهَ كَأَنَّكَ تَرَاهُ، فَإِنْ لَمْ تَكُنْ تَرَاهُ فَإِنَّهُ يَرَاكَ [۳] قَالَ: فَأَخْبِرْنِي عَنِ السَّاعَةِ قَالَ: "مَا الْمَسْئُولُ عَنْهَا بِأَعْلَمَ مِنَ السَّائِلِ " [۴] قَالَ: فَأَخْبِرْنِي عَنْ أَمَارَاتِهَا. [۵] قَالَ: "أَنْ تَلِدَ الْأَمَةُ رَبَّتَهَا، وَأَنْ تَرَى الْحُفَاةَ الْعُرَاةَ الْعَالَةَ رِعَاءَ الشَّاءِ، يَتَطَاوَلُونَ فِي الْبُنْيَانِ. [۶] قَالَ: ثُمَّ انْطَلَقَ، فَلَبِثْتُ مَلِيًّا، [۷] ثُمَّ قَالَ لِي: " يَا عُمَرُ أَتَدْرِي مَنِ السَّائِلُ؟ قُلْتُ: اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. [۸] قَالَ: " فَإِنَّهُ جِبْرِيلُ أَتَاكُمْ يُعَلِّمُكُمْ دِينَكُمْ» "رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

[۱] بيايې اوويل ښه اوس ماته دا وښايې چې احسان څه شي دي؟ [۲] ده ﷺ ورته وفرمايل احسان دادي چې ته دالله ﷻ عبادت داسې کوې لکه چې ته هغه وينې او که داسې ممکن نه وي (يعني دومره د زړه حضور ميسر نه وي) نو بيا (دا په خيال کې ساته چې هغه تاويني) [۳] بيا هغه سړي عرض وکړو د قيامت په باره کې ماته اووائي چې کله به راځي؟ ده ﷺ وفرمايل په دې باره کې جواب ورکونکي د سوال کونکي څخه زيات نه پوهيږي (يعني د قيامت علم چې کله به راځي زما علم ستا د علم څخه زيات نه دي څومره چې ته پوهيږې هغومره ماته معلوم دي) [۴] د دې څخه وروسته هغه سړي اوويل اوس ماته دقيامت څه نښاني وښايه! [۵] ده ﷺ ورته وفرمايل مينځه به خپل آقا يا مالك وزيږوي او ښکاره پښې او ښکاره بدن والا بې وسه او فقير او بزي (چيلئ) څرونکي به ته په ښايستو کورونو او عماراتو کې د فخر او غرور ژوند تيرونکي ووينې. [۶] حضرت عمر ﷺ وايي چې د دې څخه وروسته هغه سړي لاړلو او ما سمدستي د هغه په باره کې د حضور ﷺ څخه معلومات ونه کړ بلکه څه قدر توقف مې وکړو [۷] بيا ده ﷺ خپله زما

څخه پوښتنه وکړه اې عمره پو هيږې چې هغه پوښتني کونکي سړې څوك وو؟ ما عرض وکړو الله ﷻ او د هغه رسول ﷺ ښه پوهيږي ⑧ده ﷺ وفرمايل دا جبرائيل (ﷺ) وو چې په دې طريقه تاسو خلقو ته د دين ښودلو د پاره راغلي وو (مسلم) دا روايت ابوهريره ﷺ هم د ځينو الفاظو د اختلاف او فرق سره بيان کړي دي د هغه د روايت آخري الفاظ داسې دي (حضور ﷺ د قيامت دنښو په باره کې جواب ورکولو سره وفرمايل چې) هر کله چې ته خپې آبله پښې ښکاره بدن او کانړه ګونګيان خلق په زمکه حکمراني کونکي ويني (نو پوه شه چې قيامت نزدې دي) او قيامت خو د هغه پنځو ځيزونو څخه يو دي چې دغه علم د الله تعالى ﷻ څخه علاوه بل چاته نشته، بيا حضور ﷺ دا آيت وفرمايلي: إِنَّ اللهَ عِندَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ تر آخره پورې، چې د هغه ترجمه دا ده: الله تعالى ﷻ ته د قيامت علم دي او د باران چې کله به کيږي او هغه (د حاملي ښځې) د خيټي په ځيزونو پوهيږي (چې هلك دي يا جينئ) او يو چاته نه ده معلومه چې صبا به هغه څه کوي او يو چاته نه ده معلومه چې په کومه زمکه کې به دهغه مرګ راځي بيشکه الله ﷻ پو هيږي او خبرداره دي (بخاري ومسلم)

**حل اللغات:** ⑦أَمَارَاتِهَا: د أَمَارَةٍ جمع ده، علامت او نښې ته وائي. ⑧تَلِدَ: اوبه زيګوى. پيدا به کړي ⑨الْأَمَةُ: وينزه، ⑩رَبَّتَهَا: أي مَالِكَهَا وَمَوْلَاهَا: خپل مالک. خپل مولى ⑪الْحُفَاةَ: دا جمع د حَافِي دد. وَهُوَمَنْ لَانَعْلَ لَهُ: هغه چاته وائى چه پيزار ئې نه وى يعنى خپې آبله. ⑫الْعُرَاةَ: دا جمع د عَارِي دد. هغه چاته وائى چه د بدن څه حصه ئې بربنډه وى يعنى کپړې ئې نه وى ⑬الْعَالَةَ: جمع د عَائِل دد. د عال يعيل نه دې فقير او محتاج ته وائى. ⑭رِعَاءَ: د رَاعٍ جمع ده. شپونکى ته وائى څوک چه ګډې، بزې څروى. ⑮الشَّاءِ: جمع د شَاة ده، اسم جنس دې ګډو. بزو ټولو ته وائى. ⑯يَتَطَاوَلُونَ: أَيْ: يَتَفَاضَلُونَ فِي ارْتِفَاعِهِ وَكَثْرَتِهِ: ددې نه مراد يا حقيقى اوږدوالې دې يا ددې نه مراد زيادت دې يعنى اوچت اوچت کورونه به جوړوى يا دا چه ډير کورونه به جوړوى. ⑰انْطَلَقَ: أي ذَهَبَ: لاړلو، ⑱مَلِيًا: أَيْ: زَمَانًا: لږ وخت.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِذْ طَلَعَ عَلَيْنَا رَجُلٌ شَدِيدُ بَيَاضِ الثِّيَابِ:

**د عالمانو د اقوالو په رڼړا کښې دحديثِ جبريل عظمت:** ① دا يو جامع حديث پاك دي او د شريعت مطهره په ټولو شعبو باندې محيط دې چونکه ددې بنيادى خبرو سوالونه حضرت جبرائيل عليه السلام د نبى کريم ﷺ څخه کړى وو، په دې وجه دې حديث پاك ته حديث جبرئيل وئيلې کيږى. هرکله چې سوال کوونکې جبرئيل وى او جواب ورکوونکې خاتم النبيين ﷺ وى نو بيا ددې حديث بنيادى مضامين خپل تر خپله واضح کيږى.

② قاضی عیاض مالکی رحمه الله بیان کوی چې دا حدیث په ټولو ظاهری او باطنی عباداتو اوپه داسې احکاموباندې مشتمل دې کوم چې ایمان، اعمال، جوارح او اخلاص سرائر سره متعلق دی. تردې چې د شریعت ټول علوم دې طرفته راجع دی. او ټول ددې څخه رااوځی.

③ ددې جامعیت په وجه علامه قرطبی رحمه الله فرمائیلی دی چې ,,يصلح أن يقال له أم السنة] یعنی څنګه چې سورة فاتحه ته ام القرآن وئیلې کیږی، دا حدیث پاك ټولو احادیثو دپاره ام السنة دې.

④ علامه طیبی رحمه الله فرمائی چې همدا وجه ده چې امام بغوی رحمه الله د خپل کتاب مصابیح او شرح السنة ابتداء هم ددې حدیث مبارك څخه کړې ده. دې حدیث سره متعلق تیرشوی مباحثو کښې څو خبرې لیکلې شوی دی، هلته د کتلو وړ دی.

**قوله:** بَيْنَمَا: دا لفظ مفرد دې، او ظرفیت دپاره راځی. او جمله اسمیه او فعلیه دواړو طرفته مضاف کیږی. اذ او بینما دواړه ظرف مکان بمعنی مفاجاة راځی. او هم دا دمفاجاة معنی ددې ظرف عامل جوړیږی. د حدیث معنی دا شوه.

,,وقت حضورنا في مجلس النبي صلى الله عليه وسلم فاجأنا طلوع هذا الرجل]

ترجمه کښې د بینما ترجمه داشان کیږی، دې دوران کښې یا ددې په مینځ کښې او هم په دې دوران کښې.

**د جبریل دراتلو زمانه:** د حضرت جبرئیل علیه السلام د انسان په شکل دا راتلل کله شوی وو؟

① په دې سلسله کښې د ابن منده په روایت کښې دی. ((أن رجلاً في آخر عمر النبي جاء إلى رسول الله ﷺ......))(۱) ددې روایت نه معلومه شوه. چه د نبی کریم ﷺ دا راتلل د نبی کریم ﷺ په آخری عمر کښې شوی وو.

② د امام ابوحاتم ابن حبان بُستی رحمه الله رائې داده. چه دا قصه د حجة الوداع نه وړاندې راپیښه شوې وه. (۲) هم دا د علامه توربشتی رحمه الله رائې هم ده. (۳)

③ او د حافظ ابن حجر رحمه الله رجحان دې طرف ته دې. چه دا واقعه د حجة الوداع نه پس راپیښه شوې ده. څکه چه هم دا ((آخر عمر النبي ﷺ)) دې. حضرت جبرئیل علیه السلام په آخر عمر

---

(۱) فتح الباری(۱۱۹\۱) وعمدة القاری(۱\۲۹۲، ۲۹۳)

(۲) هغوی دحضرت جبرئیل علیه السلام د راتلو ددې واقعه ذکرکولونه پس فرمائی. ((ثم إن النبي ﷺ اراد أن يحج حجة الوداع )) اوګوری: الثقات لابن حبان(۱۲۳\۲، ۱۲٤)

(۳) فقال هذه الأسئلة والأجوبة صدرت قبيل حجة الوداع في السنة العاشرة من الهجرة، قريب انقطاع الوحي و إستقرار الشرع. أنظر شرح الطيبي(۱۱۱\۱)_

کښې ددې ټولو احکامو، مسائلو او د معتقداتو د خلاصې بیانولو دپاره تشریف راوړلې وو. چه دا په متفرق طور باندې دری ویشتو کالوکښې نازل کړې شوی وو. ګویا چه د حجة الوداع نه پس، چه نبی کریم ﷺ درې میاشتې هم نه وو پاتې شوې. د شریعت د استقرار نه پس ددې خلاصه او نچوړ د حضرت جبرئیل علیه السلام سوالونه او د نبی کریم ﷺ جوابونه د صحابه کرامو رضی الله عنهم په وړاندې راوستل مقصود وو.[1]

**قوله: ذَاتَ يَوْمٍ:**

**د ذات یوم څخه مراد:** لفظ ذات زیات کړې شوې دې. دا دَ دې وهم لرې کولو دپاره دی چې دلته مجازًا مطلق زمان مراد نه دې بلکه هم ورځ ترې مراد ده.

**د ذات په لفظ کښې دوه احتمالات:**

① د ذات لفظ دَ ذات د کلام دتحسین دپاره هم وئیلې کیږی.

② ځینو دې لره مقحم یعنی زائد ګرځولې دې.

**قوله: إِذْ طَلَعَ عَلَيْنَا:**

**د دخل په ځائې د طلع لفظ اختیارولو وجوهات:** ① د دخل په ځائې د طلع لفظ استعمال کړې شوې دې. ددې یوه وجه دا وه چې راتلونکې یو کس یکدم راغلې وو، او یکدم راتلو سره طلع زیات مناسب وو. ځکه چې طلوع الشئ یکدم کیږی.

② لفظ دَطلع ئی کمال ظهور، کمال عظمت او علومرتبت دپاره اختیار کړی دی لکه ,,طلع البدر علینا یا طلع الشمس] الفاظ د عظمت دپاره وئیلې کیږی.

③ جبرئیل امین او فرښتې نورانی مخلوق دی، ددې نور او رڼا دپاره د طلع لفظ زیات مناسب وو. رجل کښې تنوین دَ تعظیم دپاره دې. یعنی یو شان والا کس رانبکاره شو، فرښته همیشه کله چې د چا شکل خپلوی نو د سړو په شکل کښې راځی. د ښځې په شکل کښې نه راځی.

**قوله: رَجُلٌ شَدِيدُ بَيَاضِ الثِّيَابِ:**

**په اضافت کښې دوه ترکیبه:** ① دلته اضافت لفظیه د تخفیف دپاره دی. او مضاف الیه کښې الف لام عوض دَ مضاف الیه دې. یعنی ,,شدید بیاض ثوبه]

② شدید مضاف باندې تنوین دې. په دې صورت کښې بیاض ددې فاعل جوړدې. یعنی ,,شدید بیاض ثوبه]

**قوله: وَلَا يَعْرِفُهُ مِنَّا أَحَدٌ:**

**اشکال:** حضرت عمر فاروق رضی الله عنه څنګه اوفرمائیل چې په مونږ کښې چا هم هغه نه پیژندو.

---

[1] فتح الباری (۱۱۹/۱)_

ممكن ده چې په پورا ډله كښې چا پېژندلو؟

**داشكال جواب:** حضرت عمر فاروق ﷺ د خپل گمان مطابق ټولو طرفته دا نسبت اوكړو يا دا چې د حاضرينِ مجلس دَ قول او دَ تصريح مطابق ئې دا اوفرمائيل ځكه چې دا قول د ابن حجر عثمان بن غياث په روايت كښې شته.

**قوله:** وَوَضَعَ كَفَّيْهِ عَلَى فَخِذَيْهِ:

**د..فخذيه..د ضميرپه مرجع كښې دوه احتمالات:** ① دا ضمير پخپله..رجل..يعني جبرئيل ﷺ طرف ته راگرځي. امام نووي او علام توربشتي رحمهما الله راجح هم دا گرځولې دې. چه دا ضمير پخپله حضرت جبرئيل ﷺ طرف ته راگرځي.ځكه چه ددې نه وړاندې د..كفيه.. ضمير هم حضرت جبرئيل ﷺ طرف ته راگرځي.او د ادب تقاضه هم دا ده.چه لاسونه پخپلو كنډو باندې كيخودې شي.داسې نه چه د نبي كريم ﷺ په كونډو باندې كيخودې شي. (۱)

② دا ضميرنبي كريم ﷺ طرف ته راوگرځولى شي.او د امام بغوي، اسماعيل تيمي، او علامه طيبي ﷫ وغيره رجحان دې هم دې طرف ته دې.چه دا ضمير نبي كريم ﷺ طرف ته راگرځي.ځكه چه د سليمان تيمي په روايت كښې تصريح ده.چه..ثم وضع يده على ركبتي النبي ﷺ.. (۲)

**اشكال:** په ظاهره دا صورت د ادب خلاف معلوميږي؟

**داشكال دوه جوابونه:** ①په دې روايت كښې د يو راوي تصرف اومنلې شي.او اووئيلې شي.چه د ركبتيه» وئيلو په ځائې كوم يو راوي د خپلې پوهې مطابق ..ركبتي النبي» وئيلې وي.په دې صورت كښې به ضمير حضرت جبرئيل طرف ته گرځول متعين وي.او د خلاف ادب كيدو اشكال به نه كيږي.

② اصل كښې طالب علم دپاره ضروري ده.چه هغه استاذ طرف ته پوره متوجه وي.او دا صورت په مكمل توجه باندې دلالت كوي.(۳)

③ هغه دا غوښتل.چه دده حال بالكل مستور (پرده كښې) پاتې شي.چاته هيڅ پته اونه لگي. خلق اوگنړي.چه څوك عامي او بانډيچي سړې دې.چه دې د ادابو نه بالكل ناخبره دې.په دې غرض سره دا سړې د خلقو په ځېنونو (او اوگو) باندې راواوختو.او د نبي كريم ﷺ مخې ته كيناستو. (۴)او په دې وجه دوي خپل لاسونه د نبي كريم ﷺ په كونډو باندې كيخودل اوصحابو توجه مكمل طور باندې خپل طرف ته راگرځولو دپاره دوي

---

(۱) فتح الباري(۱۱۶\۱) وعمدة القاري(۲۸۷\۱) وشرح الطيبي(۹۵\۱)

(۲) فتح الباري(۱۱۶\۱) وعمدة القاري(۲۸۷\۱) دغه شان اوگورئ: شرح طيبي(۹۵\۱)

(۳) فتح الباري(۱۱۶\۱)-

(۴) عمدة القاري(۲۸۷\۱)

داسې اوکړل. والله اعلم.

**قوله:** وَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ:

**اشکال:** قرآن کريم داپه دې طريقه مخاطب کولو نه منع کړې ده چې دَ نبی کريم ﷺ ارشاد دې الَا تَجْعَلُوا دُعَآءَ الرَّسُوْلِ بَيْنَكُمْ كَدُعَآءِ بعضِكُمْ بعضـا] ددې باوجود جبرئيل عليه السلام يا محمد نبی عليه السلام ته ولې اووئيل ؟ دارنګ قرآنی ممانعت سره سره په داسې خطاب کنبې بې ادبی هم ده؟

**داشکال درې جوابونه:** ① ددې خطاب او ددې ممانعت مکلف او پابند انسانان دی فرښتې نه دی. دا يو ښه جواب دې. ځکه چې په نورو ډيرو مقاماتو کښې هم جبرئيل عليه السلام نبی کريم ﷺ ته په دې نوم سره خطاب کړې دې

② د محمد ځخه وصفی معنی بمعنی ستوده صفات، حميده خصال والا، مراد اخستې شوی دی. علمی معنی مراد نه ده.

③ جبرئيل امين خپل ځان پټولو، ددې دپاره داشان بلل ضروری وو. بهر حال هرکله چې شارحينو د حديث په دې کښې د بې ادبۍ احتمال راويستې دې نو اوس يا محمد وئيل حرام دی.

**قوله:** أَخْبِرْنِي عَنِ الْإِسْلَامِ:

**دامر د صيغې نوعيت:** دلته امر د استدعاء په معنی دی، استعلاء او د حکم په معنی کښې نه دی. ځکه چې انبياء کرام د فرښتو ځخه افضل دی.

**قوله:** أَنْ تَشْهَدَ:

**دمذکوره جملې ترکيب:** دلته أن مصدريه دې، کوم چې تشهد نه شهادة مصدر جوړ کړو. ,,أن لا إله إلا الله] کښې ,,ان مخففه من الثقيلة] دې. کوم چې د ,,انه] په معنی کښې دې او ضمير شان دې او ,,لا اله الا الله] کلمه د توحيد ده.

**قوله:** مُحَمَّدٌ رَسُوْلُ اللّٰهِ:

ددې جملې ځخه د نبوت او رسالت طرفته اشاره کړې شوې ده. او د شهاد مفهوم کښې د ,,مُحَمَّدٌ رَسُوْلُ اللّٰهِ] مفهوم پخپله پروت دې، ځکه چه که دا دواړه لازم او ملزوم دی نو کله دا ذکر کيږی او کله صرف د شهادت په لفظ باندې اکتفا کولې شی.

**قوله:** قَالَ: صَدَقْتَ. فَعَجِبْنَا لَهُ: يعنی په دې صحابه کرام حيران شو.

**د تعجب دوه وجې:** ① دا کس ځان ځخه سائل جوړوی او د خپلې لاعلمۍ اظهار کوی او بيا دَ تصديق نه پس خپل ځان عالم ظاهروی.

② دصحابه کرامو د تعجب بله وجه علامه قرطبی رحمه الله بيان فرمائيلې ده چې صحابه

کرامو ته معلومه وه چې د علم سرچشمه د نبی کریم ﷺ ذات مبارك دې، د نبی کریم ﷺ څخه د آؤریدو نه بغیر هیڅ یو کس ته دا علوم نه معلومیږي. دا سائل کله هم نبی کریم ﷺ سره ملاؤ شوې نه وو نو څنګه تصدیق کوی، ځکه چې تصدیق دپاره خو علم ضروری دې.

**قوله: قَالَ: أَخْبِرْنِي عَنِ الْإِيمَانِ:**

**دسوال نوعیت:** دلته هم امر دَ استدعاء معنی کښې دې. نبی کریم ﷺ ته معلومه شوه چې سوال دَ مؤمن به او متعلقاتو دَ ایمان باره کښې دې، حقیقت ایمان او تعریف باره کښې نه دې. په دې وجه نبی کریم ﷺ په جواب کښې ددې امورو مؤمن به ذکر اوفرمائیلو، ګنې حقیقی ایمان خو تصدیق بالقلب دې.

**اشکال:** نبی کریم ﷺ د [قَالَ: أَخْبِرْنِي عَنِ الْإِيمَانِ] په جواب کښې [أن تؤمن] اوفرمائیل. نو دا خو [تعریف الشئ بنفسه] شو؟

**داشکال جواب:** سوال کښې دایمان شرعی ذکر دې. او جواب کښې دایمان لغوی ذکر دې. نو حد او محدود جدا جدا دی. داشان ایمان چې کله په جواب کښې راغلو نو ددې په صله کښې باء راغله او ایمان ددې صلې په وجه د [تعترف] په معنی کښې شو. یعنی سائل تپوس اوکړو چې ایمان شرعی څه څیز دې؟ جواب اوشو چې د الله تعالی، دهغه درسول ﷺ او دَ ملائکو......... الخ اقرار کولول ته ایمان وائی.

**قوله: وَمَلَائِكَتِهِ:**

**د مَلَک لغوی معنی:** دا په اصل کښې [مألکة من الألوکة] څخه بمعنی الرسالة دې، بیا په همزه باندې لام مقدم کړې شو نو [مَلَائِكَة] شو، بیا د همزې فتح لام ته ورکړې شوه، او همزه حذف کړې شو، نو ملك پاتې شو، او ددې جمع ملائکة دې،

**د فرشتوسره متعلقه عقائد:** د امام بیهقی دتصریح مطابق دفرښتو متعلق دا عقیده او ایمان لرل پکار دی.

① دا عقیده دې وی چې ددوئ وجود شته دې، دا دالله تعالی عظیم مخلوق دې.

② الله تعالی ورته عظیمه مرتبه ورکړې ده، دوئ ئې په عالم بالا او عالم سفلی کښې په لوې کارونو باندې لګولي دی

③ دا عقیده دې وی چې [لَا يَعْصُونَ اللَّهَ مَا أَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ۝]

④ دا عقیده دې وی چې څینې فرښتې د انبیاء علیهم السلام طرفته دالله تعالی طرف نه سفراء دی،

**قوله: وَكُتُبِهِ:**

**د کتب څخه مراد:** ددې څخه صحیفې او کتابونه مراد دی. په دې باندې ایمان دادې چې دا دالله تعالی کلام دې، قدیم دې، مجرد از حروف وصوت دې.

**دآسمانی کتابونو شمار:**

① تورات عبرانی ژبه کښې په حضرت موسی علیه السلام باندې نازل شوې دی.
② انجیل په سریانی ژبه کښې په حضرت عیسی علیه السلام باندې نازل شوې دې.
③ زبور یونانی ژبه کښې په حضرت داؤد علیه السلام باندې نازل شوې دې.
④ فرقان حمید عربی ژبه کښې په محمد ﷺ باندې نازل شوې.

**دآسمانی صحیفو شمار:**

① پنځوس صحیفې په حضرت شیث علیه السلام باندې نازلې شوې وې
② دیرش په حضرت ادریس علیه السلام باندې نازلې شوې وې.
③ او لس په حضرت آدم علیه السلام باندې نازلې شوې وې
④ او لس په حضرت ابراهیم علیه السلام باندې نازل شوې وې.

**قوله:** وَرُسُلِهِ:

**په رسولانو دایمان راوړلو مطلب:** په رسولانو باندې به اجمالا یا تفصیلا ایمان راوړل وی چې الله تعالی دخلقو د هدایت دپاره نبیان لیږلی دی، دا د خالق او مخلوق تر مینځه په پیغام رسولو باندې مامور وو. دوئ ته معجزې ورکړې شوې وې. دوئ د نبوت څخه وړاندې د کبائرو څخه پاك او معصوم وو. او قرآن پاك چې د کومو لغزشونو ذکر کړې دې مونږ نه دی پکار چې هغه دخپل بحث موضوع جوړه کړو. الله تعالی خالق دې، که هغه په معمولی لغزش باندې سخت زورنه ورکوی نو هغه کولې شی.

**دپیغمبرانو شمار:** انبیاء کرام د یو معتمد روایت مطابق یو لاکھ څلیریشت زره دی. په دې کښې درې سوه دیارلس رسولان دی، د نبیانو علیهم السلام په شمیر کښې د کم وبیش کلمه ذکر کول پکار دی، چې په کلام کښې احتیاط راشی.

**قوله:** الْيَوْمِ الْآخِرِ:

**په یوم آخرت باندې دایمان راوړلو مطلب:** ددې څخه مراد د قیامت ورځ ده. ځکه چې هغه ددنیا آخری ورځ ده. بل دا چه ددې ورځې څخه روستو به شپه همیشه همیشه دپاره ختمه شی. نو هغه آخری ورځ شوه، په آخرت باندې ایمان دادې چې یوه ورځ به دا عالم ختم شی، د انسان جسم به روح سره یو ځائې کړې شی او د محشر میدان ته به د حساب دپاره راوستلې شی، بیا به جنت یا دوزخ کښې واچولې شی.

**قوله:** وَتُؤْمِنَ بِالْقَدَرِ خَيْرِهِ وَشَرِّهِ:

**په تقدیر باندې دایمان راوړومطلب:** دې جملې سره په هغه خلقو باندې رد اوشو کوم چې تقدیر نه مني یا ئې مني خو د شر خالق اهر من او د خیر خالق یزدان مني. لکه څنګه چې د مجوسیانو عقیده ده. د مؤمن عقیده دا پکار ده چې د خیر او شر مالك یو الله تعالی دې خلق خو کمال دې، خو اکتساب دَ شر کوم چې انسان کوی، هغه عیب دې او عقیده به دالرې چې کوم تفصیلات خارج کښې راځی، دهغې یو اجمالی خاکه ده، ددې خاکې مطابق ټول تفصیلات ښکاره کیږی. ددې مسئلې تفصیل به باب الإیمان بالقدر کښې به ان شاء الله راشی.

**قوله: فَأَخْبِرْنِي عَنِ الْإِحْسَانِ:**

**داحسان دوه معانی:** ① بغیر صله چې کله د احسان لفظ راشی نو ددې مفهوم اخلاص وی. یعنی د اخلاص په معنی کښې دې.

② او که صلې سره راشی نو بیا دا دَ نیکۍ او دَ انعام په معنی کښې راځی. [أحسن الیه أي أنعم علیه] لغت په توګه احسان د نیکۍ او ښیګړې په معنی کښې دې. او ددې اصطلاحی تعریف هم هغه دې کوم چې حدیث شریف کښې دې.

**قوله: أَنْ تَعْبُدَ اللَّهَ كَأَنَّكَ تَرَاهُ،**

**په حدیث کښې معنی مراده:** علامه ابن حجر رحمه الله فرمائی چې دلته د احسان ظاهری معنی مراد نه ده بلکه جمله اولی څخه مشاهدې د حق بیان مقصود دې د کوم مطلب چې دادې چې د عبادت په وخت په عابد باندې داسې کیفیت راتلل پکار دی. لکه چه واقعی دَ حق مشاهده کیږی او په عبادت کښې ذوق او شوق، عظمت او حیاء او د کامل درجې استغراقی کیفیت پکار دې. اګر چې په د نیا کښې فی الحقیقت د ذات حق مشاهده هیڅوك نشی کولې.

**فائده: په شریعت اوطریقت کښې فرق:** حضرت مولانا رشید احمد ګنګوهی رحمه الله د شریعت او طریقت فرق داشان بیان کړې دې چې کله د علم د کشمکش اودَ دلائلو دور وی نو دا شریعت دې. او کله چې طمانینت راشی نو دا طریقت دې. یا داشان پوهه شی چې کله احکامو د اسلام باندې بتکلف روان وی نو دا شریعت دې او کله چې طبعیت جوړ شی نو دا طریقت دې. احسان هم ددې طریقت د درجې نوم دې.

**قوله: فَأَخْبِرْنِي عَنِ السَّاعَةِ:**

**په سوال کښې د مسؤل عنها تعین:** دا سوال نفس وقوع د قیامت باره کښې نه دې ځکه چې وقوع دَ قیامت خو قطعی او یقینی ده بلکه دا سوال تعیین دَ وخت دپاره وو او یو روایت

کښې متى الساعة يعنی قیامت به کله راځی الفاظ راغلی دی کوم چې ددې خبرې تائید کوی چې سوال د تعیین دَ وخت متعلق وو.

**قوله:** السَّاعَةِ:

**د ساعة څخه مراد،** د زماني دهغه جزء غیر معین نوم دې. کوم کښې چې ځلیریشت اجزاء شپه ورځ کښې جوړیږی. دلته د ساعة اطلاق په قیامت باندې شوې دې.

**د قیامت درې مراحل:**

① قیامت کبری هغه دې کله چې د عالم خپل ټول کائناتو سره ختمه شی.

② دَ قیامت وسطیٰ ده. دا هغه ده چه يوقرن ختم شی مثلاً دَ صحابه کرامو قرن یا دَ تابعینو قرن یا دَ تبع تابعينو.

③ قیامتِ صغریٰ ده او هغه د هر کس ذاتی او شخصی مرګ دې. یعنی [من مات فقد قامت قیامته]

**د قیامت د عقیدې اهمیت:** دقیامت عقیده د اسلام په عقائدو کښې په بنیادی عقیدو کښې ده، په کومو قومونو کښې چه دا عقیده نه وی نو هغه قومونه دهغه ګاډی پشان وی دکوم چې بریك فیل شوې وی. لکه د یهود او نصاری عقیدهٔ آخرت دخپلو مشرانو او بزرګانو متعلق د غلطو خیالاتو او نظریاتو په وجه خرابه شوه چې دې بزرګانو موږ بخښلي يو. په دې باندې هغه خلق تباه شو. بیا د آغاخانیانو، روافضو او بیا د بریلیانو عقائد دآخرت باره کښې دومره کمزوری شو لکه څومره چې دوئ د عملونو څخه لرې شو. څکه چې دآخرت کښې دَ جواب ورکولو عقیدې دنیاوی ژوند کنټرول کړې دې.

**قوله:** مَا الْمَسْئُولُ عَنْهَا بِأَعْلَمَ مِنَ السَّائِلِ:

**د مذکوره جملې مفهوم:** د قیامت باره کښې چه دَ قیامته پورې د چا څخه سوال اوکړې شی هغه به دسائل څخه زیات پوهه نه وی. بلکه عدم علم کښې به دواړه برابر وی. بأعلم کښې باء تاکید دَ نفی دپاره ده.

**قوله:** فَأَخْبِرْنِي عَنِ السَّاعَةِ قَالَ: "مَا الْمَسْئُولُ عَنْهَا بِأَعْلَمَ مِنَ السَّائِلِ

**په مذکوره الفاظو سره جواب ورکولوکښې حکمت:** نبی کریم ﷺ لا أدری یا لا أعلم نه دی فرمائیلی بلکه يو طويله جمله ئې اختیار کړې ده، ددې وجه داده چې لا أعلم او لست أعلم، څخه زیات نه زیات د خپل ذات څخه دَ علم قیامت نفی کیږی لیکن ددې طویلې جملې څخه نبی يوه ضابطه جوړه کړې ده چې د قیامت باره کښې يو سائل کله هم سوال کوی نو عدم علم کښې به دواړه یعنی سائل او مسئول به دواړه برابر وی. د عدم علم مساوات صرف د قیامت باره کښې دی، باقی احکاماتو کښې نه دی.

**قوله: فَأَخْبِرْنِي عَنْ أَمَارَاتِهَا:**

**دقيامت دوه قسمه علامات:** ① علامت صغرى، او علامات صغرى تر ظهور مهدي پورې دي.

② علامات كبرى. ظهور مهدى، خروج دجال، نزول عيسىٰ او خروج ياجوج ماجوج تر قيامته پورې واقع كيدونكې علامات كبرى دى. په دې حديث كښې دَ ظهورمهدى نه وړاندې واقع كيدونكى علامات صُغرىٰ مراد دى.

**قوله: أَنْ تَلِدَ الْأَمَةُ رَبَّتَهَا:**

**اشكال:** دلته تول څخه اول دا امر دتشريح وړ دې چې لفظ ربتها كښې تانيث ولې راوړلې شوې دې. حالانكه دلته لفظ د رب بمعنى آقا او مولى دې؟

**داشكال جواب:** تانيث ئې دې دپاره ذكر كړو چې رب العباد سره لفظى اشتراك هم رانشى. اګر چې خصوصى اضافت سره د رب اطلاق غيرالله باندې هم كيږى.

**د مذكوره جملې په مفهوم كښې اقوال:** ① د دې جملې مطلب دا دې چې نافرمانى به زياته شى تر دې چې اولاد به مور پلار سره داسې رويه اختيار كړى لكه څنګه چې سردار خپلې وينځې سره كوى. هغه سردار دې ته كنځلې كوى، وهى يئ، يا پرې خپل خدمت كوى. هم دا سلوك به اولاد كوى. د جينى ذكر ئې په دې وجه اوكړو څكه دا اطاعت كوؤنكې وى. هركله چې دَ پرده دارې جينى دا حال وى نو دهلكانو به څه حال وى. دا د زمانې انقلاب او انعكاس طرفته اشاره ده. غلام به آقا جوړ شى، تربيت حاصلوؤنكې به مربى جوړ شى. په دې صورت كښې د ربتها لفظ مجازا والدينو دپاره استعمال كړې شو.

② لور به د مور پلارباندې د نافرمانۍ په وجه داسې حكم كوى لكه څنګه چې يو سرداره په خپلې وينځې باندې كوى.

③ دې كښې اشاره ده چې قيامت ته نزدې به شرفاء او باعزت خلق ذليله شى. او ذليل خلق به د عزت مقام باندې راشى. لكه څنګه چې د مور مقام دعزت مقام دې، بيا لور به آقا جوړ شى نو معامله به الټه شى.

④ دې كښې د اسلامى فتوحاتو كثرت طرفته اشاره ده چې غلام او آقا به زيات شى، د وينځو به كثرت شى، نو خلق به د فساد احوال په وجه خپلې وينځې خرڅول شروع كړى په دې اخستلو خرڅولو كښې به داسې هم اوشى چې چه مور به دَ خپل ځوئى په لاس كښې خرڅه شى. نو اوس ځوې آقا شو كوم چه دې وينځې مور زيږولې وو نو وينځې آقا اوزيږولو.

پنځم: دا چې دَ وينځو په اولاد كښې به بادشاهان پيدا شى. نو دا ميانډې به ددې بادشاه ځوې په رعيت كښې راشى.نو وينځې نه آقا پيدا شو.حافظ ابن حجر رحمه الله، علامه خطابى

رحمة الله، ملا علی قاری رحمه الله، علامه سندهي رحمة الله او مولانا ادریس کاندهلوی رحمه الله تولو دې پورتنی توجیهاتو کښې یو نه یو توجیه کړې ده.

**قوله:** وَأَنْ تَرَى الْحُفَاةَ الْعُرَاةَ الْعَالَةَ رِعَاءَ الشَّاءِ:

**د مذکوره جملې مطلب:** په دې جمله کښې د حالاتوبدلون ته اشاره ده یعنی د مال او دولت زیاتوالې به راشی.غریبانان خلق به مالداران شی.نیچ او کم نسبه خلق به مشران شی.په اوچتوعهدو به نا اهله خلق مقررشی په مختلفو احادیثوکښې ددې خبرو ذکر راغلط دې.نوحدیث ددې جملې مطلب دا شوچې په زمانه کښې به انقلاب اوبدلون راشی.

**قوله:** يَتَطَاوَلُونَ فِي الْبُنْيَانِ:

**د محلونو په اوچتولوکښې مقابله کول:** دعالیشان عمارتونو او محلاتو په وجه به په یو بل باندې فخر او تکبر کوی.د چیلو شپونکی کوم چې ,,أعجز خلق الله وضعفهم! وی په هغوی کښې به انقلاب او تغیر راشی چې هغوی به تکبر شروع کړی. صرف اوښانو والا نه کوم چې طبعی طور متکبر وی بلکه چیلو والا به هم متکبره شی، کوم چې طبعی طور متواضع وی. په کورنوکښې یوبل سره مقابله کول په موجوده وخت کښې دچا څخه پټ پناه نه دې.چې چاته لږه غوندې پیسه هم راشی نوهغه د ټولوڅخه اول کار دا وی چې زمکه اخستلو اود کور په جوړولوکښې لګیا شی.اود کورونو په ښائست او زیب او زینت کښې څه کوتاهی نه کوی.

**قوله:** فَلَبِثْتُ مَلِيًّا:

ملاء ډکیدو ته وائی. او ملیا د اوږدې زمانې په معنی کښې دې.

**اشکال:** د ابو داود په روایت کښې د ملیا تعین موجود دې چې نبی کریم صلي الله علیه وسلم درې ورځې پس حضرت عمر فاروق رضی الله عنه ته اوفرمائیل چې تا اوپیژندو چې دا څوك وو؟ بل طرفته دابوهریره رضی الله عنه روایت کښې دی چې په دې مجلس کښې نبی کریم صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل چې دا جبرئیل علیه السلا م وو. تاسو ته ستاسو ددین خودلو دپاره راغلې وو. دواړو روایتونو کښې تعارض په نظر راځی؟

**داشکال جواب:** د سائل په تلاش کښې ډیر صحابه کرام د مجلس څخه پورته شو لاړل. حضرت عمر فاروق رضی الله عنه هم لاړو. اوبیا خپل کور ته لاړو. او کله چې درې ورځې پس ئې نبی کریم صلي الله علیه وسلم سره ملاقات اوشو نو نبی کریم صلي الله علیه وسلم تپوس اوکړو چې آیا تا ته معلومه ده چې هغه سائل څوك وو؟ او د عمر رضی الله عنه دَ تللو نه پس نبی کریم صلي الله علیه وسلم مجلس ته حقیقت حال بیان کړو چې دا جبرئیل علیه السلام وو، لهذا په دې کښې هیڅ تعارض نشته دې.

**قوله: قُلْتُ: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ:**

**په حديث کښې د أعلم مفهوم:** دَ أعلم مطلب دا نه دې چې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه الله او رسول ته خو اعلم وائي او خپل ځان ته عالم وائي. بلکه د اعلم لفظ دا سم تفضيل په معنى کښې نه بلکه اصل د فعل په معنى کښې ر اغلې دې. لکه الصيف أحر من الشتاء. دلته احر د نفس حرارت په معنى کښې راغلى دى. ددې مطلب دا نه دې چې د ګرمئ موسم د يخنئ موسم څخه زيات ګرم دې. حالانکه دَ ژمي موسم هډو ګرم نه وى. صحابه کرامو هميشه دَ دې ادب خيال ساتلې دې.

**قوله: فَإِنَّهُ جِبْرِيلُ أَتَاكُمْ:**

**د فاء کلمې نحوى حيثيت:** أي إذا فوضتم العلم الى الله ورسوله فانه جبرئيل. دې عبارت کښې د فا جزئيه راتلو وجه معلومه شوه، د الله تعالى علم کلى او اصلى دې. د الله تعالى خودئ سره رسول ته علم اوشى. نو د ادب تقاضا داده چې الله ورسوله اعلم اووائي. او صحابه کرامو هميشه د ادب خيال ساتلې دې.

**قوله: يُعَلِّمُكُمْ دِينَكُمْ:**

**د دين څخه مراد:** دلته دين اسلام، ايمان او احسان ټول امور نبى کريم صلي الله عليه وسلم پخپله بيان کړل. خو چونکه جبرئيل عليه السلام امين وو او ښه سوال نيم علم وى، په دې وجه مجازى توګه دَ هغه طرفته دَ يعلمکم نسبت اوکړې شو.

**دبخارى زيادت:** په صحيح بخاري کښې په دې روايت کښې د دې کلماتو اضافه ده. «فِي خَمْسٍ لَا يَعْلَمُهُنَّ إِلَّا اللَّهُ ثُمَّ تَلَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللَّهَ عِنْدَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ الْآيَةَ ثُمَّ أَدْبَرَ فَقَالَ رُدُّوهُ فَلَمْ يَرَوْا شَيْئًا فَقَالَ هَذَا جِبْرِيلُ جَاءَ يُعَلِّمُ النَّاسَ دِينَهُمْ»

دبخارى په زيادت باندې اشکال: مغيبات صرف دا پنځه خو نه دى نه په دې کښې رابند دى بيا صرف هم دَ دې ذکر ولې اوشو؟

**تنبيه:** دا د سائل په جواب کښې د يو څو مغيباتو ذکر دې، حصر مقصود نه دې.

اوس د يو مسلمان دا عقيده پکار ده چې د الله تعالى علم کلى دې کوم چې الله تعالى سره دې، هيڅ يو فرښتې يا نبى ته ئې علم کلى نه دې ورکړې. او علم جزئى په شرعياتو کښې، الله تعالى نبى کريم ﷺ ته کثير مقدار کښې ورکړې وو. او علم جزئى تکوينياتو سره متعلق هم نبى کريم ﷺ ته دومره ورکړې شوې وو چې د ټولو نبيانو عليهم السلام علم د هغې په مقابله کښې يو قطره بنسبت د درياب دې، هم داشان د الله تعالى د علم کلى په مقابله کښې د ټولو اهل الله علم د يوې قطرې بنسبت د درياب دې

**د منصور بادشاه خوب:** منصور بادشاه خوب کښې د مرګ فرښته اوليده، نو د هغې څخه ئې تپوس اوکړو چې زما څومره عمر باقى دې؟ مرګ به راته کله راځى؟ فرښتې ورته پنځو

گوتو سره اشاره اوکړه. منصور پریشانه شو، چا ورته تعبیر اووئیلو چې ستا په عمر کښې پنځهٔ ورځې باقی دی، چا ورته اووئیل چې پنځه میاشتې باقی دی، چا ورته اووئیل چې پنځه کاله باقی دی، حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله څخه ئې چې کله تپوس اوکړو نو دوئ ورته اوفرمائیل چې دا اشاره ده چې د مرګ وخت د پنځو مغیباتو څخه دې، چې صرف دَ الله تعالی سره ددې علم دې.

### [۲] د اسلام بنیادی پنځه ستنې

۳-()[۲] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ تَعَالٰى عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ: [۲] بُنِيَ الْإِسْلَامُ عَلٰى خَمْسٍ شَهَادَةِ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ [۳] وَاِقَامِ الصَّلَاةِ وَاِيْتَاءِ الزَّكَاةِ [۴] وَالْحَجِّ وَصَوْمِ رَمَضَانَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ

**ترجمه:** [۱] حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما روایت کوي چې رسول الله ﷺ ارشاد وفرمایلي: [۲] د اسلام بنیاد په پنځو څیزونو دي اول: د دې خبري په زړه سره اقرار کول او ګواهي ورکول چې دالله جل جلاله څخه سوا بل معبود نشته او محمد ﷺ دالله جل جلاله بنده او رسول دي، [۳] دویم: په پابندي سره مونځ کول، دریم: زکوٰة ورکول، [۴] څلورم: حج کول، پنځم: د رمضان د میاشتې روژي نیول، بخاري او مسلم

**د راوي مختصر تعارف:** د حضرت ابن عمر نوم عبدالله دي. مکه مکرمه کښې خپل والد صاحب سره مسلمان شو، بعثت نبوی څخه یو کال وړاندې پیدا شو، او بالاتفاق جنګ خندق کښې شریك شو، جنګ بدر کښې وأحد کښې ددوئ عمر پنځلس کاله څخه کم وو. په دې وجه په دې جنګونو کښې شامل نشو.

حضرت جابر رضی الله عنه فرمائی چې مونږ کښې یو هم داسې نشته چې هغه طرفته دنیا په منډه راغله او هغه دې طرفته مائل شوې نه وی سوا د عمر او ابن عمر رضی الله عنهما څخه.

حضرت ابن عمر رضی الله عنه به علم او تقویٰ کښې په اعلی مقام باندې وو، صاحب احتیاط او صاحب فکر او متبع سنت صحابی وو. د حجاج بن یوسف په سازش په ایام حج کښې شهید کړې شو. په اووهٔ دیرشمه هجری کښې د څلوراتیاؤ کالو په عمر کښې وفات شو.

**تسهیلات:**

**قوله:** بُنِيَ الْإِسْلَامُ عَلٰى خَمْسٍ:

**د اسلام تشبیه دعمارت سره:** دې حدیث پاك کښې نبی کریم ﷺ د اسلام تشبیه د ارکانو دوام او استمرار کښې د یوې خیمې او مکان سره ورکړې ده کومې کښې چې یو اصل عمود یعنی ستن وی، او باقی رسئی او میخونه (موګی) وی. اصل عمود باندې خیمه

[۱] اخرجه البخاری کتاب الایمان/ رقم الحدیث ۵۰ ومسلم فی کتاب الایمان / رقم الحدیث ۹

ولاړه وی. او ددې په قطب باندې باقی ارکان ولاړ وی. هغه قطب او مرکزی ستن کلمه شهادت ده. او باقی ارکان اطناب واوتاد دی.
که دخیمې رسئی او موګی دَ غاړې نه ستن لرې کړې شی نو دغې طرف کښې نقصان راځی لیکن خیمه ولاړه وی. او که دَ غاړو ټولې ستنې پریوځی اودَ مینځ نیغه ستن ولاړه وی نودَ نوم خیمه به بیا هم ولاړه وی. اګر چې ددې څخه کار نه شی اخستې کیدې، نه به هغه د سیوری قابله پاتې شی، او به په کښې دګرمی. او یخنی نه دَ بچاؤ صلاحیت باقی پاتې شی. خوکه د خیمې عمود اعظم او مرکزی قطب ستن لرې کړې شی په کومې باندې چې دَ خیمې دَ قیام دارو مدار وی نو اوس به خیمه بالکل باقی پاتې نشی. اګرکه د اړخونو ستنې موجودې وی خو هغه به خیمه د غورزیدو څخه بچ نه کړې شی.اودا خیمه به راپریوزی.
**په تشبیه ور کولو کښې مناسبت:** همداشان دا تشبیه ا وهم دا صورت حال د اسلام دَ عالیشان عمارت دې، کوم کښې چې مونځ، زکوٰة، روزه او حج څلور ستنې دی، اودا په اړخونو باندې واقع دی، او کله شهادت د مینځ ستن او عمود دې که باقی ارکانو کښې نقص راشی نو عمارت کښې خو به نقص راځی خو عمارت به باقی پاتې وی، خو که د کلمې شهادت په رکن کښې نقص راغلو او ددې وجود باقی پاتې نشی او یا دَ قائمیدونه پس ختم شی نو اوس بهٔ د اسلام عمارت بالکل باقی پاتې نشی.
نو په دې حدیث پاك کښې پنځه مشهور اصول ددین او مشهور ارکان ذکر شوی دی کوم چې فرضیات عینیه دی، ددې څخه علاوه باقی ټول اعمال ددې په ضمن کښې دی، ځکه چې شهادت څخه مراد ,,تسلیم بجمیع ما جاء به النبی صلی الله علیه وسلم,,دی. په دې کښې د اسلام ټول احکام راغلل، خلاصه دا ده چې د مشهورو ارکانو ذکر اوشو، د باقی نفی مراد نه ده یعنی فرضیات عینیه ذکر شو، د فرضیات کفایه وغیره نفی مقصود نه ده.
**داسلام دقبلولو دپاره په شهادتینو باندې د اکتفا کولو وجه:** ددې حدیث څخه معلومه شوه چې د اسلام بناء په پنځو څیزونه ده خو فقهاء کرامو اسلام دپاره صرف شهادتینو لره کافی ګڼړلی دی ځکه چې د شهادتینو په ضمن کښې پورا اسلام دَ خپلو ټول محاسنو سره ملحوظ او مراد دې.

## [۵] د حیا عظمت

| ۵ـ ()[۳] [۱]وَعَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ تَعَالٰی عَنْهُ قَالَ [۲]قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ: اَلْاِیْمَانُ بِضْعٌ وَّسَبْعُوْنَ شُعْبَةً [۳] فَاَفْضَلُهَا قَوْلُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ [۴] وَاَدْنَاهَا اِمَاطَةُ الْاَذٰی عَنِ الطَّرِیْقِ [۵] وَالْحَیَاءُ شُعْبَةٌ مِّنَ |
| --- |

[۱] اخرجه البخاری کتاب الایمان (رقم-۹ ) ومسلم فی کتاب الایمان/باب بیان خصال من اتصف بهن وجد حلاوة الایمان (رقم ۵۸) وابن ماجه باب فی الایمان (رقم-۵۷) واحمد فی مسنده ۲/ ۳۷۹. والنسائی کتاب الایمان وشرائعه/زیادة الایمان(رقم-۵۰۰۵)

الْإِيمَانِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهريره ﷛ وايي [۲] رسول الله ﷺ ارشاد وفرمايلي: د ايمان ښاخونه (څانګي) د اوياوو څخه هم زيات دي [۳] په هغه کې د ټولو څخه د اعلي درجي ښاخ په ژبه او په زړه سره د دې خبري اعتراف او اقرار دي چې د الله ﷻ څخه ماسوا بل معبود نشته [۴] او د ټولو څخه کمه درجه ښاخ يو تکليف ورکونکي شي د لاري څخه لري کول دي [۵] او شرم او حيا هم د ايمان يو ښاخ دي. بخاري او مسلم

**حل اللغات:** ① بِضْعٌ: وَهِيَ الْقِطْعَةُ: ټکړې اوحصې ته وائی خوبيا ددې استعمال د عدد دپاره شوې دې چه ددرې نه نهوپورې عدد باندې ددې اطلاق کيږی. ② شُعْبَةٌ: دوونې څانګې ته وائی خودلته ترې ښه خوئی او صفت مراد دې. ③ إِمَاطَةُ: أَيْ: إِزَالَتُهُ: لرې کولو په معنی کښې دې. ④ الْأَذَىٰ: ضرر او تکليف ته وائی دلته ترې مرادهغه څيزدې چه ضرر او تکليف رسوی مثلاً ازغې، کانړې وغيره.

**د راوي مختصر تعارف:** د هرة تصغير دې، د حضرت ابوهريره ﷛ په نوم او نسب کښې ډير اختلاف دې. اصل نوم کښې تقريبا ديرش اقواله دی، مشهور دادی چې ددوئ نوم د جاهليت په زمانه کښې عبدالشمس يا عبد عمر وو.

**داسلام قبلول:** اسلام کښې داخليدو څخه وروستو ددوئ نوم عبدالله يا عبدالرحمان شو. احمد او حاکم وئيلی دی چې زمونږ په نزد صحيح ترين تحقيق د ادې چې ددوئ نوم په اسلام کښې عبدالرحمان بن صخر وو. ددوئ تعلق د دوس قبيلې سره وو. ددوئ کنيت دومره غالب شو چې ګويا ددوئ هډو بل نوم نه وو. دوئ په اوومه هجری کښې د جنګ خيبر په موقع اسلام قبول کړې وو. بيا نبی کريم ﷺ سره ډير نزدې پاتې شو. ملازمه او مواظبه ئې اوکړه، د دين علم زده کولو ډير شوقين وو، اوږې به وو. نبی کريم ﷺ چې به چرته تللو نو دوئ به ئې څان سره بوتلل. ددې ملګرتيا او د نبی کريم ﷺ ددعا برکت وو چې په ټولو صحابه کرامو کښې ددوئ حافظه د ټولو څخه تيزه وه. امام بخاری ﷫ فرمائی چې ددوئ نه اته سوؤ څخه زياتو صحابه او تابعينو علم حاصل کړې دې.

**دابوهريره وجه کنيت:** دابوهريره ﷛ د کنيت وجه پخپله د ابوهريره ﷛ روايت دې کوم چې ابن البر نقل کړې دې. فرمائی چې يوه ورځ ما په لستونړی کښې پيشو پورته کړې وه، نبی کريم ﷺ خه اوليدلم او تپوس ئې اوکړو چې دا څه دی؟ ما ورته اووئيل چې يارسول الله ﷺ! دا پيشو ده، يعنی هرة ده، نبی کريم ﷺ اوفرمائيل فأنت ابوهريرة، بس دا وئيل وو چې ددوئ اصل نوم غيب شو او کنيت پرې غالب شو. ددوئ ټول مرويات ٥٣٦٤ دی. په يو کم شپيته هجری کښې په مدينه منوره کښې د اووه اوتياؤ کالو په عمر کښې وفات شو، او جنت البقيع کښې مدفون شو.

**تسهيلات:**

**قوله: اَلْإِيْمَانُ:**

**تقديري عبارت:** ايمان خو بسيط دي وجې به دلته تقديرراويستل وي تقدير د عبارت داسې دې ,, ثمرات الايمان وفروعه ،،

**قوله: بِضْعٌ وَّسَبْعُوْنَ شُعْبَةً:**

**په رواياتو كښې تعارض:** ① په دې حديث پاك كښې د ,,بضع وسبعون[ ذكر دې.

② په بخاري كښې د ,,ستون[ ذكر دې.

③ يو روايت صرف ,,ستون[ دې.

④ يو كښې ,,اربع وستون[ ذكر شوى دى.

ټولو كښې تضاد دې، ددې څه جواب دې؟

**دتعارض درې جوابونه:** ① دا دهغه وخت خبره ده كله چې من جانب الله ټولې شعبې مكمل شوې نه وى. نو د شپيتو ذكر وو. بيا د وحى په ذريعه د اوياؤ حكم راغلو. قاضى عياض رحمه الله فرمائى چې راجح ,,بضع وسبعون[ والا روايت دې. ځكه چې دا كثرت سره راغلې دې.

② ځينو شعبو كښې تداخل كولو سره كم ذكر كيږى، او هركله چې تداخل نه وى نو د زيات ذكر كيږى. هسې كه دا اعداد په تكثير باندې حمل كړې شى نو بيا دتحديد مسئله نه پاتې كيږى. نو بيا تعارض نشته دې، تكثير دپاره دعدد راتلل معروف دى.

③ عدد اقل داكثر نفى نه كوى بلكه ساكت وى كوم كښې چې تعارض نه راځى.

**قوله: فَأَفْضَلُهَا:**

**د فاء كلمې په نوعيت كښې دوه احتمالات:**

① كلمه د فا تفريعيه تفصيليه ده.

② كلمه دفا جزائيه ده.

**قوله: قَوْلُ لَاإِلٰهَ إِلَّا اللهُ:**

**د كلمه توحيد افضليت:** كلمه توحيد چونكه د دين اسلام د ټولوتعليماتو نچوړ او خلاصه ده ددې ورته افضله شعبه وئيلې شوې ده.لكه څنګه چې په يوبل حديث كښې ورته افضل الذكر وئيلې شوې دې.

**قوله: وَأَدْنَاهَا إِمَاطَةُ الْأَذٰى عَنِ الطَّرِيْقِ**

**دادنى په ماده اشتقاق كښې دوه احتمالات:** ① كه ادنىٰ دَ دُنو څخه يعنى د قرب په معنى كښې وى. نو مطلب به داوى چې ,,أقربها منزلة[ يعنى د قرب و تقرب په حصول كښې

قريب تر ,,اماطة الأذي] دي، په يو روايت كښې د ,,أرفعها] هم دي كوم چې د دُنو بمعنى تقرب تائيد كوي.

②كه ادنى د دنائت څخه واخستې شي نو بيا به د كم تر او حقير په معنى كښې وي. يعنى كمتر شعبه ,,أماطة الاذى] دې سياق اوسباق سره دا زيات مناسب دى.

**دواړو شعبو متعلق:** ① حديث مبارک کښې اوله شعبهٔ د عبادت قوليه سره يا د معامله مع الحق سره تعلق لري

②دويمه شعبه دَ طاعاتو فعليه سره يا معامله مع الخلق سره تعلق لري.

**قوله:** وَالْحَيَاءُ شُعْبَةٌ مِنَ الإِيْمَانِ.

**حياء لره د مستقل ذكر كولو دوه وجوهات:** ① حياء اګرچه د ايمان په شعبو كښې داخله ده. خو د ,,تخصيص بعد التعميم] په طورددې عظمت په وجه مستقل ذكرشوه. هم دا وجه ده چې شعبة كښې تنوين دَ تعظيم دپاره دې، يعنى حياء د ايمان شعبو څخه يو عظيم الشان او اهمه شعبه ده.

② دمستقل ذكر كولووجه داده چې حياء د ايمان په ټولو شعبو باندې حاوى ده. او ټولو شعبو دپاره سبب او داعى دې څكه چې ددې په وجه انسان خصائل حميده كولې شي. او په دې باندې قائم اوسيدې شي.

**د حياء دوه ډېر قسمونه:** ① حياء ايمانى ② حياء طبعى.

**دحياء ايمانى په تعريف كښې درې اقوال:** ① ددې يو تعريف داشان دې: ,, هو خلق يمنع الشخص من الفعل القبيح بسبب الإيمان،، يعنى حياء دهغه ملكې او خلق نوم دې كوم چې يو كس د ايمان په وجه دَ قبيح فعل څخه منع كوي، لكه بربنډيدل، د خلقو په وړاندې فحش حركات، زناكول، وغيره وغيره، ددې څيزونو څخه ايمانى شرعى حياء منع كوي.

② دريم تعريف داسې شوې دې ,,الحياء أن لا يراك حيث نهاك،، ددې تعريف پيش نظر حياء بعينه د احسان مقام دې. په حديث حديث جبريل عليه السلام كښې اجمالاً ددې ذكر دې.

③ جنيد بغدادى رحمه الله د ايمانى حياء تعريف داسې كړې دې ,,د الله تعالى دنعمتونو نظاره كولو نه پس خپل تقصيرات او كوتاهيانې كتلو سره چې كوم كيفيت پيدا كيږى هم دا حياء ده،،.

**د حياء طبعي تعريف:** د حياء طبعى تعريف داسې شوې دې ,, هو تغير وانكسار يعتري المؤمن من خوف ما يلام عليه،، مطلب دا دې چې قابل دَ ملامت كار كولو سره د يو كس اندامونه

او بدن باندې انقباض راځي. هم دا طبعي حياء ده.

**په حدیث کښې د حیاء مصداق:** په دې حدیث کښې چې د کومې حیاء ذکر دې هغه ایماني حیاء ده طبعي حیاء نه ده.

**د حیاء درې قسمونه:**

① **حياء جنايت:** لکه چې د حضرت آدم علیه السلام حیاء وه چې ټيټ سر په جنت کښي منډه ګرځيدل، الله تعالى ترې تپوس او کړو چې ولې منډې وهې؟ وې فرمائيل چې حياء منك يا الله.

② حياء حشمت: لکه حضرت علي ﷺ د مذي متعلق مسئله د حشمت و حجاب په وجه پخپله د حضرت نبی کریم ﷺ څخه اونه پوښتله بلکه دَ حضرت مقداد ﷺ وغيره په واسطه ئې سوال کړې وو.

③ حياء إجلال: چې د جلال په وجه حياء راځي، لکه ,,تسربل إسرافيل بجناحيه حياء من الله لإجلاله،، شعب ايمان باندې ډيرو علماء کرامو تصانيف کړي دي.

**[٦] دمؤمن او مسلم مفهوم**

٦-(١)[٣]①وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: ②قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ( ③«الْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ، ④وَالْمُهَاجِرُ مَنْ هَجَرَ مَا نَهَى اللَّهُ عَنْهُ» " هَذَا لَفْظُ الْبُخَارِيِّ. ⑤وَلِمُسْلِمٍ قَالَ: «إِنَّ رَجُلًا سَأَلَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: أَيُّ الْمُسْلِمِينَ خَيْرٌ؟ ⑥قَالَ: " مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ» ).

**ترجمه:** ①او د حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ څخه روايت دې ②چې رسول الله ﷺ وفرمايل③ کامل مسلمان هغه دې چې د هغه د لاس او ژبې (د تکليف) څخه مسلمان محفوظ وي④ او اصل مهاجر هغه دې چې هغه ټول هغه څيزونه پريښودل د کومو څخه چې الله تعالى ﷻ منع فرمايلي ده، دا الفاظ دبخاري دي ⑤او مسلم دا روايت په دې الفاظو کې نقل کړي دي چې يو سړي د نبي کريم ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې په مسلمانانو کې د ټولو څخه بهتر څوك دې؟ ⑥حضور ﷺ ورته وفرمايل چې د هغه د ژبې او لاس (د ضرر) څخه مسلمانان محفوظ وي.

**حل اللغات:** ①سَلِمَ: چه سلامت او محفوظ شي. ②هَجَرَ: أَيْ: تَرَكَ: چه پريږدي.

**د راوي مختصر تعارف:** عمرو: واؤ سره لوستلې کيږي چې عمر او عمرو فرق اوشي. عبدالله بن عمرو بن العاص ﷺ قريشي دې. د خپل پلار څخه ئې وړاندې اسلام قبول کړې وو. د

---

۱) اخرجه البخاری کتاب الإیمان (رقم-۱۰) ومسلم فی کتاب الإیمان / رقم الحدیث (۶۵، ۴۱) وابوداود فی السنن رقم الحدیث ۲۴۸۱ واحمد فی مسنده ۲/۱۸۷. والنسائی کتاب الإیمان وشرائعه /زیادة الإیمان(رقم-۴۹۹۶)

پلار څخه يولس، دولس يا ديارلس كاله كشر وو. كثير العلم او كثير العبادة صحابي وو. د ډيري ژړا په وجه ئې په آخرى عمر كښې بينائى تلې وه. دډيرو احاديثو كاتب وو. مكه يا طائف او يا مصر كښې په شپږ پنځوستمه هجرى كښې وفات شو. رحمة واسعة.(١)

**تسهيلات:**

**قوله:اَلْمُسْلِمُ:**

**دمسلمان مصداق:** ددې څخه مراد كامل مسلمان اخستې كيږى چې دا اعتراض پيدا نشى چې د چا د لاس او ژبې څخه عام مسلمان محفوظ نه وى نو آيا هغه مسلمان پاتې نشو؟ نو عام شارحين كامل مسلمان مراد اخلى.

**په حديث كښې دحصرِ ادعائى قول:** ددې تقدير په راويستلو كښې د شارع عليه السلام غرض فوت كيږى. په دې وجه ددې ترجمه كامل سره نه دى كول پكار بلكه دا حصرادعائى دې چې مسلمان خوهم هغه دې چې دهغه دلاس او ژبې څخه بل مسلمان محفوظ وى.

**په حصرِ ادعائى باندې قرينه:** دلته مبتداء او خبر دواړه معرفه دى، ددې فائده هم دا حصر دې، د اشان د عربى محاوره هم ده چې ,,الناس العرب، المال الإبل] دا ټول د حصرادعائى قبيل څخه دې. يعنى ,,أفضل المال الإبل، أفضل الناس العرب] نو الف الام جنسى دَ مدح دپاره دى،

**دانورشاه كشميرى رحمه الله رائې:** شاه انور شاه كشميرى رحمه الله هم دا فرمائيلى دى چې دعلمى تحقيق اودَ قيوداتو د تدقيق و تعميق حد پورې خو دا قيد لګول درست دى خو دا تاويل په دې وجه مناسب نه دې چې دې سره په كلام كښې زور باقى نه پاتې كيږى. او مقصود دَ شارع فوت كيږى. دا قسمه دَ ټولو احاديثو هم دا مطلب اخستل پكار دى.

**دحصرِ ادعائى په صورت كښې دحديث ترجمه:** يعنى مسلم خو هم هغه دې چې په هغه كښې سلامتى وى، مهاجر خو هم هغه دې چې په هغه كښې هجرت عن المعاصى وى مجاهد خو هم هغه دې چې په هغه كښې جهد فى العمل وى، هغه به څنګه مسلمان وى چې په هغه كښې د سلامتيا ماده نه وى، هغه به لا څه مهاجر وى چې په هغه كښې د هجرت ماده نه وى. ، هغه به لا څه مهاجر وى چې په هغه كښې د هجرت صفت نه وى، هغه به څه مجاهد وى چې په هغه كښې جهد عمل نه وى او دعبادت مشقت نه وى (٢)

---

١) المرقات: ١٤٢، ١/١٤٣

٢) للكاشف : ١١١، ١/١١٢

**قوله**: مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ:

**اشكال**: د تكليف رسولو څخه حفاظت صرف د مسلمان دپاره خا ص كړې شوى دى حالانكه نا جائزه تكليف رسول خو يو كا فر او ځناور ته هم منع دى. لكه څنګه چې په احاديثو او قرآن كښې ددې تصريح ده نو د لته المسلمون ولې خاص كړې شوې دې؟

**داشكال جواب**: چونكه مسلمان ته الله تعالى تاكيد كړ ې دې چې د تكليف وركولو څخه به ځان ساتى. په دې وجه ددې ذكر اوكړې شو. دا قيد احترازى نه دې بلكه اتفاقى دې چې مسلمان سره زياته واسطه راځى. ګنى هسې خو په ناحقه تكليف رسول خو هيڅ يو سړى يا ښځې، مسلم غيرمسلم بلكه ځناور ته هم جائز نه دى. هم دا وجه ده چې ځينې رواياتو كښې د المسلمون په ځائې ,,من سلم الناس من لسانه ويده‚‚ الفاظ راغلى دى او دَ ,,المؤمن من أمنه الناس على دمائهم واموالهم‚‚ الفاظ ذكر دى. [1]

**بعضې مستثنيات**: دې نه پس ددې لحاظ ساتل پكار دى چې د حدود الله تنفيذ او اجراء، تعزيرات، ضرب اطفال، جهاد فى سبيل الله، دا ټول امور اصلاح دپاره دى، دا عرفًا ايذاء نه ده يا شرعًا مستثنى دى ا و المسلمون وئيلو سره جهاد جدا كړې شوې دې. ځكه چې جهاد كفارو سره كيږى، بهر حال حديث پاك كښې بلا وجه او بغيرد صحيح غرض نه ناحق توګه باندې ايذاء رسولو څخه منع كړې شوې ده، صحيح وجه ا ومعقول سبب سره سزا وركول منع نه دى.

**قوله**: مِنْ لِسَانِهِ:

**د ژبې تكليفونه**: ايذاء لسانى كښې ټول سب وشتم، لعن طعن، غيبت، چغل خورى، بهتان وغيره ټول داخل دى.

**د لسان په يد باندې د تقديم وجه**: ژبه په يد باندې مقدم كړې شوې ده، په دې وجه چې د ژبې ايذاء، ژوندو، مړو، حاضرينو، غائبينو، مخكينو، روستنو او ابراروفجار ټولو لره عام ده. يا ئې په دې وجه مقدم كړې ده چې د ژبې زخم ډير سخت وى. نو ددې ايذاء هم عام ده او تام هم ده. چا په عربى كښې وئيلى دى : [2]

په پښتو كښې غالباً د عبد الرحمن بابا شعر دې.

پرهرد تورې ښه دې چې رغيږى په مرهم بد پرهر د ژبې چې د عمر سره سم.

جراحات السنان لها التهام ولا يلتام ما جرح اللسان [3]

---

[1] )المرقات: ۱/۱۴۳

[2] )المرقات: ۱/۱۴۳

[3] ) المرقات: ۱/۱۴۳

**قوله:** وَيَدِهِ:

**د لاس تکلیفونه:** د لاس په ایذا رسولو کښې ضرب، قتل، هدم، دیکا ورکول او دچا خلاف ناجائز تحریر کول، یا د لاس په اشارې سره ایذا رسول ټول داخل دی.

**د لاس څخه مراد:** لاس ئې ذکر کړو خو کنایه ده دَ ټولو اندامو نه ځکه چې هم د لاس څخه د ټولو افعالو ظهور کیږی. په دې وجه خاص توګه سره د لاس ذکر اوشو. د لاس څخه مراد ظاهری لاس هم دې. او ددې معنوی لاس یعنی په یو څیز باندې قبضه کول او ناجائز طور اخستل هم داخل دی. (۱)

**قوله:** وَالْمُهَاجِرُ:

**دهجرت دوه قسمونه:** ① ظاهری هجرت: کوم چې ترك وطن لأجل الدین دپاره وی،
② باطنی هجرت: یعنی ,,ترك ما تدعو الیه النفس الأمارة ،،یا ,,ترك ما نهی الله عنه،، دا دویم اطلاق د لغوی مفهوم په رنړا کښې کیږی کوم کښې چې دَ مهاجر مبدأ اشتقاق حوالې سره خبره شوې ده.

**دظاهری هجرت حکم:** د هجرت ظاهری حکم دا دې.چه سړې په دارالکفر کښې اوسیږی.او هلته د اسلامی احکامو ادا کولو دپاره ده ته ګنجائش نه وی.نو دده دپاره هجرت کول فرض دے.اوکه هلته د اسلامی احکامو ادا کولو کښے څه خلل نه وی.نو دده دپاره هجرت فرض خو نه دې.البته خوښ او مستحب بیا هم دې.ځکه چه د مسلمانانو په یوځائې خومره زیاته اجتماع وی.نو هومره د اسلام او مسلمانانو په حق کښې زیاته خیګړه وی.

**د باطنی هجرت حکم:** د هجرت دویم قسم کوم چه هجرت باطنی دې.دې ته هجرت حقیقی هم وئیلی شی.یعنی هجرت «من الذنوب والمعاصی» ځکه چه هجرت « من دارالکفر إلی دارالإسلام» کیږی.دا بذات خود څه مقصود نه دې.دا خو ددې دپاره وی.چه د ګناهونو او د اسلام د احکامو پریخودلو نه سړې بچ شی.نوځکه دا هجرت «من الذنوب والمعاصی» حقیقی هجرت او باطنی هجرت دې.ښکاره ده چه دا هجرت په ټولو باندې لازم او ضروری دې.

**قوله:** أَيُّ الْمُسْلِمِينَ خَيْرٌ؟:

**اشکال:** په احادیثو کښې ,,أي المسلمین خیر؟] په شان ,,أي الإسلام احب] یا ,,أي الإعمال أفضل]وغیره مختلف سوالات دَ حضورپاك نه کړې شوې دی اودَ ټولو مقصد دا دې چه په اسلامی اعمالو کښې دَ ټولو نه افضل عمل کوم یو دې؟ دَدې ټولو جواب په ظاهره

---

(۱) المرقات: ۱/۱۴۳

باندې هم یو راتلل پکاردی. ځکه چه دَ ټولو نه افضل عمل خو هم یو کیدې شی لیکن په احادیثوکښې مختلف جوابات راځی؟

**دمختلفوجوابونومثالونه:** ① دلته په مذکوره حدیث کښې ,,من سلم المسلمون من لسانه] راغلې دې.

② بعضې کښې ,,برالوالدین] راغلې دې.

③ بعضې روایاتوکښې ,,أي الإسلام خیر] په جواب کښې ,,تطعم الطعام وتقرأ السلام] راغلې دې. ④ بعضې روایاتوکې ,,أي الأعمال أفضل] په جواب کښې ,,الصلوة لوقتها] راغلې دې

**داشکال ځلور جوابونه:** ① دَ زمانې دَ احوالو په اعتبارئی جواب ورکړې دې. دَ حج په زمانه کښې دَ حج دَ ترغیب دَپاره هم دې ته دَ ټولو نه افضل اووئیل. دَ جهاد په زمانه کښې جهاد ته دَ ټولو نه افضل اووئیل. دَ مونځونو په وختونو کښې دَ مونځ ترغیب ورکړې شو، دَ بل څه قربانئی او ایثار په وخت ئی دَ هغې ترغیب ته افضل وئیلې دې.

②دَسائلینودَاحوالو په اعتبارسره جواب ورکړې وې دې په چاکښې چه کوم کمې محسوس کړې شو هم دَهغې په ترغیب کښې جواب ورکړې شو. یا په چا کښې چه کوم استعداد اوکتلو هم دَ هغې موافق ئی جواب ورکړو.

③علامه شبیراحمد عثمانی رحمه الله اوفرمائیل چه دَ افضلیت اعتبارات مختلف دی مثلاً حضرت ابوبکر رضی الله عنه افضل دې دَ ,,ارحمامة] په اعتبارسره، حضرت عمر رضی الله عنه ,,اشدهم فی امرالله] اعتباسره افضل دې. حضرت عثمان رضی الله عنه ,,اصدقهم حیاءً] په اعتبار سره افضل دې او حضرت علی رضی الله عنه ,,اقضاهم] په لحاظ سره افضل دې نو هیڅ تضاد اوتعارض نشته دې. جهات فضیلت مختلف دی.

④ امام طحاوی رحمه الله اوفرمائیل چه افضل یو نوع دې دَ کوم لاندې چه یو کس نه بلکه ډیرکسان دی. اوس چه په کومو کومو څیزونو باندې دَ افضلیت حکم لګولې شوې دې هغه ټول هم دَدې نوع لاندې داخل دی. دا کسان دَ یو بل معارض نه دی بلکه معاون اوموافق دی.

### [۷] دکامل ایمان نښه او د نبی محبت

٧ ــ(١)[٥] ١ وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " ٢ «لَا يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ ٣ حَتَّى أَكُونَ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنْ وَالِدِهِ، وَوَلَدِهِ، وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

[١] اخرجه البخاری الإیمان /باب حب الرسول - صلی الله علیه وسلم - من الایمان. (رقم-١٥ ) ومسلم فی کتاب الإیمان/باب بیان خصال من اتصف بهن وجد حلاوة الإیمان (رقم-٦٩ - ٤٤) وابن ماجه باب فی الإیمان (رقم-٦٧) واحمد فی مسنده ٤٠٧/٣. والنسائی کتاب الإیمان وشرائعه/زیادة الإیمان(رقم-٥٠١٣)

**ترجمه:** [۱] انس بن مالك ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي [۲] چې په تاسو كې هيڅوك ترهغه وخته پورې پوره (كامل) مومن نشي كيداي [۳] ترڅو پورې چې هغه ته زه د خپل پلار او د خپل زوي او د ټولو خلقو څخه زيات خوښ نشم. بخاري اومسلم

**حل اللغات:** ① لَا يُؤْمِنُ: أَيْ: إِيمَانًا كَامِلًا: يعنى كامل ايمان والا نه دي.

**د راوي مختصر تعارف:** انس بن مالك بن نضر الانصارى الخزرجى ﷺ، د لسو كالو په عمر كښې ددوئ مور بى بى ام سليم ﷺ دوئ نبى كريم ﷺ ته په داسې وخت كښې راوستو چې دده پلار وفات شوې وو. او ددوئ مور بى بى د ابوطلحه ﷺ سره نكاح كړې وه. ام سليم ﷺ نبى كريم ﷺ ته اوفرمائيل چې : ,,خويدمك ادع الله له]نبى كريم ﷺ د مال او اولاد د بركت دپاره دعا ورته داشان اوفرمائيله: ,,اللهم بارك فى ماله وولده وأطل عمره واغفرذنبه] ددې دعا اثر دا شو چې پخپله فرمائى چې ما پخپل لاس دوه كم سل ماشومان دفن كړى دى. د ميوؤ دا حال وو چې په كال كښې به دوه ځل فصل كيدو. حضرت عمر فاروق ﷺ د تعليمِ حديث و فقه دپاره بطور معلم دوئ بصرې ته اوليږل، ورته ئې اوفرمائيل چې اوس د اوږد عمر څخه ستړې شوې يم، او د نبى كريم ﷺ د آخرى دعا د مغفرت په اميد كښې يم. لسو كالو پورې په طور خاص د نبى كريم ﷺ خادم پاتې شو او د سلو كالو څخه ځه زيات عمر ئې وو او د درې نوى هجرئى په بصره كښې وفات شو.

**تسهيلات:**

**قوله: أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنْ وَالِدِهِ وَوَلَدِهِ:** احب د محبوب په معنى كښې دې.

دعالمانوپه مينځ كښې اختلاف دې چې دلته محبت نه كوم محبت مراد دې؟ نواول تاسو د محبت معنى اوددې قسمونه زده كړئ. بيا به دې نه پس پوهه شئ چه دلته د محبت كوم قسم مراد دې.

**دمحبت تعريف:** امام راغب ﷺ نقل كړى دى چه محبت :,,إرادة ماتراه أوتظنه خيراً،،ته وائى. [۱] يعنى په كوم څيز چه ته د خيرگمان كوې اودهغې ته اراده اوكړې نودا محبت دې.

**دمحبت ښپږ قسمونه:**

① **محبت طبعى:** لكه د اولاد،مور پلار اويا خپل ځان سره محبت شو.د دې محبت منشا قرب دې.دخپل ځان سره قرب خو معلومه دې.دغه شان د خپل مور پلار سره،ځكه چه دې د هغوى جزء دې.اود بعضيت او جزئيت د وجې د دوى سره ډير زيات نزديكت وى. دغه شان په خپل اولاد كښې هم د جزئيت او بعضيت قرابت موجود دې.نود دوى سره هم

[۱] المفردات فى غريب القرآن (۱۰۵)_

محبت زیات وی.دې محبت ته محبت طبعي وائي.اودا غیر اختیاري دې.

④ **محبت احساني:** يو كس مونږ سره احسان اوكړی.مونږسره ښه سلوك اوكړی.نو زمونږ دهغه سره محبت پيدا شي. ځكه چې.الإنسان عبد الإحسان،، نواحسان كوم چه د دې محبت سبب دې.هغه اختياري فعل دې.نو ځكه دا محبت هم اختياري دې.

③ **محبت جمالي:** په دې محبت كښې د محبت سبب جمال اوښائست وی.او دا هم اختياري وی.ځكه چه ته په خپل اختيار باندې دغه ښكلي څيز ته ګورې.د هغې آواز طرف ته غوږ اږدی.او په خپل اختيار باندې د هغه سره ګډون او ربط قائم ساتې. نو هركله چه ته په خپل اختيار سره دا ټول كارونه كوې.نو وئيلي شي.چه دا محبت جمالي هم اختياري دې.

④ **محبت كمالي:** يعني دچا د څه كمال د وجې د هغه سره محبت كول وی، لوې لوې د كمال خاوندان تير شوی دی.اومونږ د هغوی واقعات،د هغوی د علومو او مهارتونوپه كتابونو كښې لوستنه كړې ده.دهغوی سره زمونږ محبت دې.چه دهغوی ذكر راشي.نود ادب خيال ساتو.په زړه كښې دننه هغوی ته ميلان پيدا كيږی.اوچه څوك هغوی په بدئ سره ياد كړی.نود دفاع دپاره تياريږو. اود هغوی په شان كښې ګستاخئ اوريدو ته بيخي تيارنه يو.نودهغوی دكمال د وجې مونږ ته دا محبت دهغوی سره پيدا شوې دې.دا هم اختياري دې. ځكه چه مونږ د هغوی كمالات اويدلو لوستلو او په هغې كښې مو غور او فكر كړی دی. اودا ټول كارونه اختياري دی.نودا محبت هم اختياري شو.

⑤ **محبت عقلي:** په دې محبت كښې چه نفع او نقصان سړې ويني.نوبيا هغه د فائدې په صورت كښې محبت كوی.يوسوداګريو كاروبار كوی اوهغه په دغه كاروباركښې ډيره ګټه كيږی نودې د دغه كاروبار سره محبت كوی.عقل ده ته حكم كوی چې ته دې كاروبار سره محبت كوه ځكه چې په دې كښې تاته ګټه كيږی.

⑥ محبت ايماني شرعي: د دې تعريف دا دې ايثار جميع اغراض المحبوب على اغراض غيره حتى القريب والنفس وهذا الحب هو الناشي عن الايمان والاجلال والتوقير والرحمة]

يعني د محبوب ټولو اغراضو لره د نورو ټولو په اغراضو ترجيح وركول تردې چې د خپل نفس او رشته دارانو په اغراضو هم،اود دې محبت منشا (سبب) ايمان ،اود محبوب تعظيم او په مهرباني او رحمت دې.

**د محبت په مصداق كښې دوه اقوال:** ① قاضي بيضاوي رحمه الله فرمائي. دلته د محبت نه عقلي محبت مراد دې.په كوم كښې چه د عقل سليم مقتضى ته ترجيح وركولې شي.

اگرچه د خپل خواهش خلاف وی.لکه مریض چه دوائی د خپل طبعیت په اعتبار سره نه خوښوی.اوددې نه تختی.(۱)

امام خطابی رحمه الله هم فرمائی چه دلته طبعی نه بلکه اختیاری محبت مراد دې.(۲) یعنی دا سوچ کول پکار دی.که د نبی ﷺ مونږ تابعداری اوکړو.اود نبی ﷺ سره محبت اوساتو.نوپه دې کښې زمونږ نفع او فائده ده.اوکه مونږ د نبی ﷺ تابعداری اونکړو.اود دوی سره محبت اونه ساتو.نوزمونږ نقصان دې.د دنیا فائده هم په دې کښې ده.چه د نبی ﷺ تابعداری اوکړې شی.چه دا سوچ اوکړې.نوته به دنبی ﷺ سره محبت شروع کړې.دا محبت عقلی دې.

④ بعضې حضراتودا هم فرمائیلی دی.چه دلته محبت طبعی مراد دې.ځکه چه مقابله د والد او ولد د محبت سره شوې دې.او دقران مجید په آیت کښې د آباء،ابناء،اخوان، ازواج،عشیره،اموال،تجارت،اوکورونوسره ورکړې شوې ده.اودا ټول محبتونه چونکه طبعی دی.نوځکه به دالله اود رسول د محبت نه هم طبعی مراد وی.(۳)

**اشکال:** خوبیا به هغه اشکال راځی.چه محبت طبعی خو غیر اختیاری وی. او د غیراختیاری امورو انسان نشی مکلف کولې.

**ته فیصله:** نوځکه غوره خبره هغه ده.کومه چه تاته د محبت د تعریف اوددې دقسمونو نه پس اوخودلې شوه.چه دلته خطابی او بیضاوی رحمه الله چه څنګه محبت عقلی او اختیاری مراد اخستې دې.هلته کښې ئې ترې ته مراد واخله.خودا کوتاهی اوستی مکوئ.چه په محبت عقلی باندې اکتفاء اوکړئ. بلکه منشاء او مقصد دا دې.چه د محبت عقلی سره نور محبتونه هم جمع وی.اوکله چه ورسره هغه جمع شی.نوبیا به دا محبت عقلی ترقی اوکړی.نوددې نه به محبت ایمانی اومحبت عشقی جوړ شی.اودا به په محبت طبعی باندې هم غالب شی.

**قوله: وَالِدِهِ:**

**د والد او ولد دتخصیص وجه:** دلته په روایت کښې د والد او ولد ذکردې.حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی. چه ددې وجه دا ده.چه د عاقل په نیزد دا دواړه د اهل اومال نه اوچت دی. بلکه بعضې دخپل ځان نه هم اوچت وی.ځکه خو د حضرت ابوهریره رضی الله عنه په حدیث کښې د ،،نفس،، ذکرنشته.(۴)

(۱) فتح الباری (۶۱/۱) باب حلاوة الإيمان )_
(۲) فتح الباری(۵۹/۱) باب حب الرسول من الإيمان )_
(۳) تقریر بخاری(۱۲۳/۱)_
(۴) فتح الباری(۵۹/۱)_

**د والد په مفهوم کښې د ام دخول:** كه د ،،والد،، نه،،من له الولد،، مراد وي.نوېه دې کښې، ،ام،، هم داخله ده.بلکه ددې معنی په اعتبارسره په کښې اجداد،جدات اوددې نه د پورته سلسلهٔ خلق هم داخلیږي.ځکه چه د ولادت تعلق ددې ټولو سره دې.داسې هم وئیلی شی.چه په والدینوکښې صرف په پلارباندې اکتفاء اوکړې شوه.خوېه دې کښې مور هم داخله ده.( [1] )

**عقلاً والدته په خپل ځان ترجیح ورکول:** دعاقل په نزد اهل و مال بلکه خپل نفس څخه هم والد او والده معزز وی. خپل ځان په هلاکت کښې اچوی خو دوئ بچ کوی. هم دا وجه ده چې دَ انس ﷺ په حدیث پاك کښې دنفس لفظ نشته دې او نورو روایتونو کښې شته دې. په دې کښې څه تعارض نشته دې. ځکه چې کله د والد لفظ راغلو نو والد خو د نفس څخه زیات عزیز دې لهذادَ نفس د ذکر کولو ضرورت نشته دې.

**د محبت اسباب:** ابن بطال ﷫ د اسابو په اعتبار سره محبت په دریو اقسامو تقسیم کړې دې.

① محبتِ اجلال و عظمت لکه چه مور پلار سره محبت وی. په دې حدیث په والد څخه دې اول قسم ته اشاره ده،

② محبتِ شفقت لکه د اولاد محبت. په دې حدیث کښې په ولد څخه دې دویم قسم ته اشاره ده.

③ محبتِ لذت لکه چه د ښځې خاوند محبت وی، په دې حدیث په [وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ] سره دې دریم قسم اشاره ده.

هم په دې باندې په نورو الفاظ کښې ځان داسې پوهه کړئی چې محبت یا خو لوې سره وی یا وړوکی سره او یا مساوی وی. حدیث پاك کښې والده څخه لوې، ولده سره وړوکې او [وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ] کښې مساوی طرفته اشاره شوې ده. درې واړه قسمه محبت په کښې راغلو.

**اشکال:** په دې حدیث پاك کښې محبتِ رسول لره د ایمان دپاره معیار ګرځولې شوې دې. خو طبعی محبت والدینو او اولاد سره زیات وی. نو بیا به څوك مؤمن پاتې شی، محبت غیر اختیاری څیز د ي، دې لره د ایمان معیار څنګه ګرځولې شوې دې؟

**داشکال جواب:** دلته د محبت څخه محبت ایمانی شرعی مراد دې د کوم تفصیل چې هم د دې حدیث په تسهیل کې د محبت په شپږو قسمونو کښې تیرشوې دې هغې ته رجوع اوکړئ.

[1] ) المصدرالسابق)_

## [۸] د ایمان د خوند حاصلولو دپاره درې څیزونه

۸-(۱)[۲] ① وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «ثَلَاثٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ وَجَدَ بِهِنَّ حَلَاوَةَ الْإِيمَانِ ② مَنْ كَانَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِمَّا سِوَاهُمَا ③ وَمَنْ أَحَبَّ عَبْدًا لَا يُحِبُّهُ إِلَّا لِلَّهِ ④ وَمَنْ يَكْرَهُ أَنْ يَعُودَ فِي الْكُفْرِ بَعْدَ أَنْ أَنْقَذَهُ اللَّهُ مِنْهُ كَمَا يَكْرَهُ أَنْ يُلْقَى فِي النَّارِ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت انس ﷺ روایت کوي چې رسول الله ﷺ ارشاد وفرمایلي ② چې په کوم سړي کې چې دا درې څیزونه وي هغه به د دې په وجه د ایمان په حقیقي خوند پوهیږي، ③ اول دا چې هغه ته به د الله ﷻ او د هغه د رسول محبت د دنیا د ټولو څیزونو څخه زیات وي ④ دویم دا چې دیو بنده سره به د هغه محبت محض د الله ﷻ د رضامندي دپاره وي ⑤ دریم دا چې هر کله الله ﷻ هغه دکفر دتیارو څخه را ویستي د ایمان او اسلام په رڼا سره او نمانځلي نو اوس به هغه داسلام څخه ګرځېدل دومره بد ګڼي لکه په اورکي غورځېدل. بخاري او مسلم

**حل اللغات:** ① حَلَاوَةَ : أَيْ لَذَّتَهُ وَرَغْبَتَهُ: دخوږوالی نه مراد خوند اوشوق دې. ② يَكْرَهُ: بد ګڼي، نه خوښوي. ③ يَعُودَ: أَيْ يَرْجِعَ: چه واپس شي، ④ أَنْقَذَهُ: أَيْ: أَخْلَصَهُ وَنَجَّاهُ: چه خلاص ئې کړو او نجات ئې ورکړو. ⑤ يُلْقَى: أي الرَّمْيُ وَالطَّرْحُ: غورځول او اچول.

**تسهیلات:**

**قوله:** ثَلَاثٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ:

**د مذکوره جملې ترکیب:** ثلاث مبتداء ده او من کن فیه پورا جمله شرطیه ددې خبر دې. اوس سوال دادې چې ثلاث نکره ده، دا څنګه مبتداء واقع شوه؟ ددې جواب دادې چې دا نکره محضه نه ده بلکه نکره مخصصه ده، دا پخپله صفت دې او موصوف خصال مخذوف دې، یعنی خصال ثلاث، نو اوس به اعتراض نه وي. دویم جواب دادې چې د ثلاث تنوین دَتعظیم دپاره دې یعنی درې لوې څیزونه دي.

**قوله:** حَلَاوَةَ الْإِيمَانِ:

**دحلاوت په مفهوم کښې دوه اقوال:** ددې حلاوت ایماني دوه مطلبونه دي.

① أي استلذاذ الطاعات وإيثار الطاعات على جميع الشهوات وتحمل المشقات في مرضاة الله ورسوله والرضا بالقضاء في جميع الحالات..

---

[۱] اخرجه البخاري كتاب الايمان /باب حب الرسول - صلى الله عليه وسلم - من الإيمان. باب حلاوة الإيمان. (رقم-۱۶) ومسلم في كتاب الإيمان/ باب بيان خصال من اتصف بهن وجد حلاوة الإيمان (رقم-۶۹ - ۴۳) والترمذي كتاب الإيمان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ما جاء في افتراق هذه الأمة (رقم-۲۶۲۴) وابن ماجه كتاب الفتن/باب الصبر على البلاء (رقم-۴۰۳۳) واحمد في مسنده ۱۷۲/۳. والنسائي كتاب الإيمان وشرائعه/حلاوة الإيمان(رقم-۴۹۸۸)

④ حلاوة ایمانی څخه مراد التذاذ قلبی دې، کوم ته چه په نورو روایتونو کښې بشاشت قلبی وئیلې شوې دې. د کوم په وړاندې چه دنیاوی لذتونه معمولی ښکاری او صرف په طاعات کښې اصلی حلاوت اولذت محسوسیږی، د الله تعالی اود هغه درسول ﷺ محبت په هر مسلمان کښې شته، خو عند المعارضه ظاهریږی. د حب فی الله اعلی درجه داده چې کثرت عطایا سره په دې کښې اضافه نه وی شوی او دَ مصیبتونو او سختو په وخت کښې په دې کښې کمی نه وی راغلې.

**دحدیث مفهوم:** په دې حدیث پاك کښې نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چې د ایمان حلاوت هغه کس محسوسولې شی دچا زړه چې روحانی صفاتو څخه منور وی،او هغه په روحانی اعتبار سره بالکل تندرست وی، که یو کس روحانی طور سره بیمار وی یعنی دده زړه د روحانی صفاتو څخه محروم وی نو هغه کس د ایمان حلاوت نشی محسوسولې.

**د حدیث مفهوم د مثال په رڼا کښې:** ددې مثال دیو تندرست او بیمار کس په شان دې.که یو کس تندرست او صحت مند دې نو هغه د شاتو حلاوت هغه شان موندلې شی لکه څنګه چې د شاتو حقیقت دې.خو که یو کس دصفراء مریض دې نو هغه به شاتو څکلو سره اعلان کوی چې دا تراخه دی. حالانکه شات تراخه نه وی. بلکه دا قصور د هغه د بیمارئ دې چې دصفراء په وجه په ده باندې یو لذیذ ترین څیز تریخ لګی. بالکل هم دغه شان که یو کس په روحانی مرض کښې اخته دې نو هغه به داسلام حقیقت او لذت هیڅ کله هم محسوس نه کړې شی، هغه به التهٔ دې لذیذ ترین څیز ته تریخ وائی. خوکه روحانی اعتبار سره دا کس تندرست دې نو هغه به دایمان اعلی ترین لذت مسحوسوی او ددې اعتراف به کوی او اعلان به هم کوی چې آؤ دَ روحانی تندرستی دپاره دا لذیذ ترین نعمت دې.

**د حلاوت محسوسولودپاره د دریو څیزونو ضرورت:** دې حدیث پاك کښې د ایمان حلاوت محسوسولو دپاره درې څیزونه ضروری ګرزولې شوی دی.

① د الله تعالی او د هغه دَ رسول ﷺ محبت په نورو ټولو محبتونو غالب وی،

② که چا سره محبت وی نو هغه به هم صرف دالله تعالی دپاره وی،

③ د مسلمانیدو نه پس کفر نه دومره نفرت وی څومره چې اور کښې غورزولو څخه دې،

**قوله:** مَنْ كَانَ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهُ أَحَبَّ إِلَيْهِ:

**تقدیری عبارت:** دلته تقدیری عبارت منل ضروری دی. یعنی [إحداهما محبة من كان الله ورسوله أحب الخ] احب څخه محبت اختیاری شرعی مراد دې.

**قوله: مِمَّا سِوَاهُمَا:**

**د سواهما عمومیت:** دا سواهما عام دي. ذوي العقول وی یا غیر دوي العقول وی، مال وی یا جاه ومنصب وی، یا دَ شهواتو څخه وی.

**اشکال:** نبی کریم ﷺ دلته دالله تعالی نوم او خپل نوم تثنیې سره په یو ضمیر کښې جمع فرمائیلی دی یعنی مما سواهما داشان د نکاح په خطبه کښې هم دواړه ضمیرونه هما کښې جمع فرمائیلي دی حالانکه نبی کریم ﷺ پخپله یو خطیب په دې الفاظو باندې رټلې وو کوم چې دا الفاظ وئیلی وو چې: [من یطع الله ورسوله فقد رشد ومن یعصهما فقد غوي، فقال علیه السلام بئس الخطیب أنت قم] اوس به دَ دې جواب څه وی؟

**داشکال درې جوابونه:** ① دا چې دا اعتراض نبی کریم ﷺ طرفته متوجه نه دې څکه چې کله یو څیز د امت دپاره منع وی خو نبی کریم ﷺ دپاره منع نه وی. ددې وجه داده چې مثلا د هما ضمیر کښې که نبی کریم ﷺ دواړه نومونه یو ځائې کړی دی نو دنبی کریم ﷺ نه خو د شرك، تسویه او برابرۍ وهم نشی کیدې خو په نورو خلقوکښې دا احتمال شته چې هغوی د اتحاد ضمیر په و جه د اشتراك او مساوات ګمان اوکړی، په دې وجه ئې منع اوفرمائیله.

② اطاعت کښې دواړه جمع کول خو صحیح دی څکه چې دَ یو اطاعت ناتمام دې، پاتې شوه د معصیت معامله نو په دې کښې دَ یو معصیت هم تباه کوونکې دې او خطیب د دواړو معصیت دَ تباهی او ګمراهۍ دپاره ضروری جوړ کړو.

③ د نبی کریم ﷺ په وړاندې بغیردَ اجازت نه دَ خطبې دپاره اودریدل او خطبه ورکول خومره بې آدبی ده، شاید چه هم په دې وجه نبی کریم ﷺ هغه ته په قهر شو. دا وجه په توضیحات شرح مشکاة کښې مولانا فضل محمد صاحب دام ظلهم العالی لیکلې ده.

**قوله: وَمَنْ يَكْرَهُ أَنْ يَعُودَ فِي الْكُفْرِ:**

**د عود دوه معانی:** ① یو کس اسلام باندې پیدا شو او هم په دې باندې ځوان شو، اوس دا کس کفر طرفته تلل بد ګنړی. نو دا د عود دَ صیرورت په معنی کښې دی، ګویا ددې معنی ابتداءً د یو څیز طرفته رجوع او واپس کیدو شوه.

② دعود دویمه معنی حالت اولی طرفته واپس کیدل دی. دا به د هغه خلقوباره کښې مناسب وی کوم چې اول په کفر باندې وو بیا مسلمانان شو، اوس دوباره حالت اولی حالت د کفر طرفته واپس تلل بد ګنړی.

**د حلاوت په نوعیت کښې دوه اقوال:** ① عام علماء کرامو معنوی حلاوت مراد اخستې دي.

② ابن حجر رحمه الله نقل کړی دی چې ددې څخه حلاوت حسی مراد دې اګرچې ملا علی

قاری رحمه الله په حلاوت حسی مراد اخستلو باندې ډیر سخت د تعجب اظهار کړې دې.خود صوفیاء کرامو اکثریت هم ددې قائل دی چې حسی ظاهری خوږوالې کیدیشی.بهر حال دباطن صفائی سره ددې تعلق دې، نو اصحاب کمال دا تشریح نه نظر اندازکوی.

**[٩] دایمان د خوند حاصلولو دپاره نور درې څیزونه**

٩-()[٧] [١] وَعَنِ الْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [٢] قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٣] «ذَاقَ طَعْمَ الْإِيمَانِ مَنْ رَضِيَ بِاللَّهِ رَبًّا، وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا، وَبِمُحَمَّدٍ رَسُولًا» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت عباس بن عبدالمطلب وایي [٢] چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٣] چې کوم سړي چې الله تعالی خپل پروردګار اسلام خپل دین او محمد ﷺ خپل رسول په خوښي سره ومني نو پوه شه چې هغه د ایمان خوند وکتلي. مسلم

**حل اللغات:** ① ذَاقَ: أَيْ: نَالَ وَأَدْرَكَ: یعنی بیائې موندو، حاصل ئې کړو خوند، اصل کښې د ذوق معنی ده: وُجُودُ أَدْقِ طَعْمٍ فِي الْفَمِ: په خوله کښې د یو څیز خوند او خوږوالې محسوسول، خو دلته ددې نه مراد ذوق معنوی دې. ② طَعْمَ: خوند، مزه.

**د راوي مختصر تعارف:** حضرت عباس رضي الله عنه دَرسول الله ﷺ تره دې دوه کاله دَهغوی نه په عمرکښې مشردې.چادَ هغوی نه تپوس اوکړو چه په تاسو کښې کوم یومشردې نوهغوی اوفرمائیل چه نبی کریم ﷺ لوئی دې البته زه "اسن" یم یعنی په عمرکښې زیات یم، دادَهغوی ذکاوت وو، قدیم الاسلام وو مګر اسلام به ئی پټولو، دَ فتح مکې نه ئی لږ شان وړاندې هجرت اوکړو اودَاسلام سره ئی اظهاراوکړو، په بدرکښې مجبورکړې شو اودَ جنګ دَپاره راوستلې شوې وو، په دې وجه حضورپاك مسلمانان دَهغه دَ قتل نه منع کړې وو.

دَهغوی مور ړومبې ښځه وه چاچه بیت الله ته دَغلاف اچولوطریقه شروع کړه دَهغې په بې درکه کیدوباندې ئی نذر منلې وو چه غلاف به ورته اغوندوم.

دَ حضرت عباس رضي الله عنه عمر ٨٨کاله وو ٣٢هجری کښې دَ ده انتقال شوې دې، په جنت البقیع کښې خښ شوې دې.

**تسهیلات:**

**قوله: ذَاقَ طَعْمَ الْإِيمَانِ:**

**د حلاوت په نوعیت کښې دوه اقوال:** ① ابن حجر رحمه الله دَ معنوی حلاوت په ځائې دَحسی حلاوت قول کړې دې ملاعلی قاری رحمه الله د دوی دا قول ډیرعجیبه ګرځولې دې.

② عام محدثین دلته د حلاوت څخه معنوی حلاوت اخستې دې.

---

[١]) اخرجه مسلم فی کتا ب الایمان/باب ذاق طعم الإیمان من رضی بالله ربا (رقم-٥٦ - ٣٤) والترمذی کتاب الإیمان عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-٢٦٢٣) واحمد فی مسنده ٢٠٨/١.

**قوله:** مَنْ رَضِيَ بِاللَّهِ رَبًّا:

**دالله تعالى په ربوبيت باندې راضى كيدل:** دَالله تعالى په ربوبيت باندې راضى داسې چه نه شكايت او نه حكايت، په هرحالت او دَزمانې په هرقسم حالاتو راضى،

**قوله:** وَبِالإِسْلَامِ دِينًا:

**په اسلام راضى كيدل:** په اسلام باندې راضى په داسې شان چه ټول احكامات بغيردَ څه كمى زياتې نه په ځاى راوړى،

**قوله:** وَبِمُحَمَّدٍ رَسُولًا:

**د نبى عليه السلام په رسول منلو باندې راضى كيدل:** په رسول الله ﷺ باندې داسې راضى چه په طبعى توګه دَ محبت دَوجې نه دَحضورپاك سنت اودَهغوى طريقې ئى خوښې وې اودَ الله تعالى په قضا باندې رضا وى.

**نوټ:** دَدې حديث مضمون هم دَ رومبى حديث په شان دې چه دَ شاتو خوند حسى او معنوى هم هغه سړې محسوسولې شى دَ چا ذائقه چه صحيح وى، صفراوى بيماروسره دَ هغه دَ ژبې خوندختم شوې او خراب شوې نه وى، دغه شان دَ ايمان خوند اومزه هم هغه سړې محسوسولې شى چه اسلامى عقائدو او صحيح اسلامى صفاتو سره متصف وى، هغه اسلام ايمان او نبى آخرزمان باندې داسې عقيده لرى څنګه چه ده ته دَ رب تعالى دَ طرف نه حكم ملاؤشوې دې.

## [۱۰] اسلام نه قبلونكې جهنمى دې

۱۰ ــ()[۸] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ([۲] «وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ، [۳] لَا يَسْمَعُ بِي أَحَدٌ مِنْ هَذِهِ الأُمَّةِ يَهُودِيٌّ وَلَا نَصْرَانِيٌّ [۴] ثُمَّ يَمُوتُ وَلَمْ يُؤْمِنْ بِالَّذِي أُرْسِلْتُ بِهِ إِلَّا كَانَ مِنْ أَصْحَابِ النَّارِ») رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ؓ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په هغه ذات مې دې قسم وي چې د چا په قبضه کې د محمد ﷺ ساه ده [۳] په دې امت کې چې کوم سړې هم برابره خبره ده كه هغه يهودي وي يا نصراني زما د نبوت خبر پيدا کې [۴] او زما په راوړې شريعت باندې ايمان راوړلو څخه بغير مړ شى نو هغه دوزخي دي. مسلم

**حل اللغات:** ① نَفْسُ: أَيْ رُوحُهُ: ساه، ② لَا يَسْمَعُ بِي: أَيْ: مَا يَسْمَعُ مُخْبِرًا بِعِثْنِي: نه آورى يوكس زما باره كښې يعنى چه زما د رسالت نه خبر شى. ③ أُرْسِلْتُ بِهِ: أَيْ: مِنَ الدِّينِ: څه سره چه زه راليږلې شوې يم، يعنى دين، شريعت.

[۱]) اخرجه مسلم فى كتاب الإيمان/ باب وجوب الإيمان برسالة نبينا محمد صلى الله عليه وسلم إلى جميع الناس، ونسخ الملل بملته(رقم-۲٤۰ - ۱۵۳)

**د راوي مختصر حالات:** نوم ئې عمر، کنیت ئې ابوهریره او د پلار نوم ئې عامر دې خاندانی نوم ئې عبدشمس وو کله چه نبی کریم ﷺ خیبر ته تلې وو نو په هغه وخت کښې د یو وفد سره د اسلام قبلولو په غرض حاضر شواو بیا خیبر ته اورسیدلو اوهم هلته مسلمان شو (۲).

د اسلام قبلولو نه پس ئې ترمرګه پورې د نبی کریم ﷺ لمن نه وه پریخودې او بیا حضرت عمر ؓ د بحرین عامل جوړ کړې وو.

**د علم شوق:** د حضرت ابوهریره ؓ د علم سره ډیر شوق وو عام صحابه کرام ؓ به د نبی کریم ﷺ نه په تپوس کولو کښې شرمیدل خو حضرت ابوهریره ؓ به د نبی کریم ﷺ نه ډیر تپوسونه کول هم دا وجه وه چه په ټولوصحابه کراموکښې ددوی نه زیات روایات منقول دی بعضې خلقو به ددوی په کثرت روایت باندې اعتراض کولو نو دوی به د هغې جواب دا ورکولو نوروخلقوبه خپل وخت په بازارونو کښې تیرولو او زه یو محتاج سړې ووم ما خپل ژوند د نبی کریم ﷺ مجلس ته وقف کړې وو. (۳)

**وفات:** دولید په زمانه کښې په مدنیه کښې ناجوړه شو او هم په مدینه کښې وفات شو ولید پرې د جنازې مونځ اوکړو دحضرت عثمان ؓ ځامنو د جنازې کټ ته اوږې ورکړې او جنت البقیع ته ئې اورسولو نور اکابرین صحابه کرام ؓ هم موجود وو (۴)

**عمر:** انتقال په وخت کښې د دوی عمر ۷۸ کاله وو

**مرویات:** د دوی د روایاتو تعداد ۵۳۷۴ وو په دې کښې ۳۲۵ په بخاری او مسلم دواړو کښې دی ۷۹ صرف په بخاری کښې او ۹۳ په مسلم کښې منفرد دی (۵)

**تسهیلات:**

**قوله: وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ:**

**د نبی علیه السلام د قسم خوړلو حکمتونه:**

① داقسم دې حضورپاك دَ امت دَتعلیم دَپاره قسمونه خوړلی دی. په کوم سره چه امت ته داتعلیم ملاؤشوې دې چه حضورپاك دَالله تعالی محبوب بنده وودَ خدائې مالك نه ووبلکه دَ حضورپاك ځان دَالله تعالی په قبضهٔ قدرت کښې وو.

② دا خودل مقصود وو چه قسم صرف دَالله تعالی په نوم باندې خوړل پکاردی.

③ دامعلومه شوه چه بغیردَ ضرورت نه دَ کلام دَ تاکیددَپاره قسم خوړلې شی حرام نه دې. امام شافعی ؒ فرمائیلی دی چه ما نه کله دَدروغوقسم خوړلې دې اونه دَ رښتیاؤ دادَ هغوی امتیازی شان دې.

**قوله:** نَفْسُ مُحَمَّدٍ:

**د نفس څخه مراد:** روح محمد ﷺ، ذات محمد ﷺ، حالات، حركات اوسكنات محمد ﷺ مراد دي.

**قوله:** بِيَدِهِ:

**په متشابهاتو كښې دوه نظريات:**

① "بيده" يعنى دَالله تعالى دَقدرت اودَالله تعالى دَنعمت اورحمت په لاسونو كښې دي. لفظ "يد" دَ متشابهاتو نه دي، دَمتشابهاتو يوقسم هغه دي دكوم معنې چه معلومه وى ليكن دَمراد علم ئى نشته لكه يد، وجه، ساق، جلوس، مجئ، استعلاء وغيره په دې كښې دَ سلف صالحينو مسلك دادې چه دَ ايمان راوړلودَپاره هم دغه ظاهرى الفاظ دى دَدې معنى مايليق بشانه ده. دَدې علم الله تعالى ته حواله دي لكه څنګه چه امام مالك رحمه الله فرمائى: "الاستواء معلوم والكيفية مجهولة والسؤال عنها بدعة" امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائى دَ "يد" تاويل په قدرت سره كول دَالله تعالى صفاتو كښې دَ تحريف مترادف دې هم په دې وجه چه كوم الفاظ راغلى دى په هغې باندې ايمان راوړلوسره مايليق بشانه وئيل او الله تعالى ته حواله كول پكاردي.

② متاخرينو دَ فتنو او بدعاتو دَ رابنكاره كيدو دَ وجې نه څه مناسب تاويلونه كړى دى. دَايمان او عقيدې دَ حفاظت په غرض سره دَزمانې دَ احوالودَ تغيردَ وجې نه دَدې هم ګنجائش شته مګردا صرف تاويلات دى يقينى مطلب نه دې.

**قوله:** لَا يَسْمَعُ بِي أَحَدٌ:

**د لايسمع نحوى تحقيق:** په دې حديث كښې "لايسمع" كښې لا په معنى دَ ليس دې او "احد" دَدې اسم دې او "يسمع من هذه الأمة" دَ "أحد" صفت دې او "يهودى ولانصرانى" دَ "أحد" نه بدل واقع دې اودَ ليس خبر محذوف دې عبارت داسې دې ليس أحد يسمع من هذه الأمة يهودى ولانصرانى الخ كانا من أصحاب شئ إلا كان من أصحاب النار.

**قوله:** مِنْ هَذِهِ الْأُمَّةِ:

**دامت دوه قسمونه:**

① **امت اجابت:** څوك چه اسلام قبول كړې دې دكلمهٔ توحيد اقرار ئى كړې دې،

② **امت دعوت:** دا د امت هغه خلق دى چه دَتوحيد اقرارئى نه دې كړې، دَ اسلام قبلولونه ئى انكاركړې دې دَ مسلمانانونه علاوه ټول انسانان امت دعوت دى.

**په حديث کښې درې قسمه خلق:**

① چا چه دَ حضورپاك دَ نبوت واؤريدو خو ايمان ئې رانوړو دا جهنميان خلق دی

② هغه څوك چاچه واؤريده او ايمان ئې هم راوړو دا دَ جنت والا خلق دی

③ هغه څوک چه نه ئې واوريده اونه ئې ايمان راوړودوی دَ مسکوت عنهم په درجه کښې دی.

**دحديث مفهوم:** دَحديث شريف مطلب داشو چه په حضورپاك باندې ايمان راوړل په ټولو باندې يوشان فرض دی. دَ يهودو او نصاریٰ ذکرئې دلته په خاص توګه څکه اوکړو چه هغوی صاحب کتاب او اهل کتاب وو. کله چه دَ اصحابِ کتاب نجات په حضورپاك باندې دَايمان راوړلونه بغيرممکن نه دې نوچاسره چه هيڅ هم نشته لکه هندو، سيکان، دهريه، ملحد، بې دين نودَدوی نجات بغيردَ ايمان نه څنګه کيدې شيٰ؟

**[١١] دوچنده اجرګټونکی درې کسان**

١١ –()[٩] [١]وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [٢]قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: «ثَلَاثَةٌ لَهُمْ أَجْرَانِ: [٣]رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ آمَنَ بِنَبِيِّهِ وَآمَنَ بِمُحَمَّدٍ، [٤]وَالْعَبْدُ الْمَمْلُوكُ إِذَا أَدَّى حَقَّ اللَّهِ وَحَقَّ مَوَالِيهِ، [٥]وَرَجُلٌ كَانَتْ عِنْدَهُ أَمَةٌ يَطَؤُهَا فَأَدَّبَهَا فَأَحْسَنَ تَأْدِيبَهَا، [٦]وَعَلَّمَهَا فَأَحْسَنَ تَعْلِيمَهَا، ثُمَّ أَعْتَقَهَا فَتَزَوَّجَهَا -فَلَهُ أَجْرَانِ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١]او حضرت ابو موسیٰ اشعري ﷺ وايي[٢] چې نبي کريم ﷺ وفرمايل درې سړي داسې دي چې هغوئ ته به دوه دوه اجرونه ورکول کيږي[٣] ① يو هغه اهلِ کتابو (يهوديانو او عيسايانو) ته چې اول يې په خپل نبي ايمان لري بيا يې په محمد ﷺ ايمان راوړو[٣]، ②دويم هغه غلام چې د الله حقوق هم ادا کوي او د خپلو بادارانو حق هم اداکوي[٥] ③ دريم هغه سړي چې د هغه يوه مينځه وه چې د هغه سره يې صحبت کوي بيا هغه ته يې د ښو اخلاقو تعليم ورکړي او د يو ښه ادب او اخلاقو خاونده يې جوړه کړه [٦]بيا وهغې ته ښه تعليم ورکړي بيا يې هغه آزاده کړه او نکاح يې ورسره وکړله نو دي به هم د دوچنده اجر حقدار وي. بخاري او مسلم

**حل اللغات:** ① مَوَالِيهِ: أَيْ أَسْيَادَهُ وَمُلَّاكَهُ: يعنی د سردارانو او مالکانو خپلو، ② أَمَةٌ: وينزه، ③ يَطَؤُهَا: أَيْ يُجَامِعُهَا: جماع يعنی صحبت ورسره کوی، ④ فَأَدَّبَهَا: أَيْ عَلَّمَهَا الْخِصَالَ الْحَمِيدَةَ: يعنی د ښه اخلاقو تعليم ئې ورکړو.

**د راوي مختصر تعارف:** حضرت ابوموسی اشعری ﷺ د نبی کريم ﷺ جليل القدر صحابیٰ

---

١) اخرجه البخاری باب فضل العلم، باب تعليم الرجل أمته واهله. ( ٣١ ) ومسلم فی کتاب الإيمان/باب وجوب إيمان أهل الكتاب برسالة الإسلام(رقم-٢٤١ - ١٥٤)) والترمذی کتاب النكاح عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الفضل فی ذلک (رقم-١١١٦) واحمد فی مسنده ٤٠٢/٤

دي، مکه مکرمه کښې ئې اسلام قبول کړې وو. بيائې حبشې ته هجرت اوکړو. بيا اهل سفينه سره په هغه وخت کښې مدينې منورې ته راغلو کله چې نبي کريم ﷺ غزوهٔ خيبر ته تلى وو. حضرت عمر فاروق ﷺ دوئ د بصرې ګورنر مقرر کړې وو. دوئ اهواز فتح کړو، دعثمان بن عفان ﷺ د خلافت دور پورې هم هلته وو، بيا کوفې ته راغلو، او هم دهغه ځائې والى پاتې شو. کله چې حضرت عثمان ﷺ شهيد شو نو دوئ مکې مکرمې ته لاړل او هم هلته په دوه پنځوستمه هجرى کښې وفات شو.

**تسهيلات:**

**قوله: ثَلَاثَةٌ لَهُمْ أَجْرَانِ:**

**اشکال:** دحديث ښخه خو دا معلوميږى چه درې کسانوته به دوه اجرونه ملاويږى. حالانکه د بعضې نصوصو ښخه ددې درې کسانوښخه علاوه د نور کسانودپاره هم د دوه اجرونوخوشخبرى راغلې ده. مثلاً

① په قرآن کريم کښې د ازواج مطهراتو په باره کښې راغلى دى. ﴿وَمَنْ يَقْنُتْ مِنْكُنَّ لِلّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَتَعْمَلْ صَالِحًا نُّؤْتِهَآ اَجْرَهَا مَرَّتَيْنِ﴾ ([1])

② «مثل الذى يقرأ القرآن وهو حافظ له مع السفرة الكرام، ومثل الذى يقرأ وهو يتعاهده وهو عليه شديد فله أجران» ([2])

③ «إذا حكم الحاكم فاجتهد ثم أصاب فله أجران» ([3])

**داشکال جواب:** ددې احاديثو په رڼا کښې غوره دا دى چه دا اوونيلى شى چه د دريو عدد د احتراز دپاره نه دې بلکه دصحيح قول مطابق دعدد مفهوم معتبرنه وى. نو د يو عدد تنصيص دهغې نه علاوه د نورو اعدادو نفى نه کوى. ([4])

**د درې کسانو د تخصيص وجوهات:** ① چونکه دوى دوه کارونه کړى دى. ددې وجې دوى ته دوه اجرونه ملاويږى.

خوپه دې باندې اشکال وارديږى چه په دې کښې ددوى څه خصوصيت دې؟ څوک چه هم دوه عملونه کوى. نوهغوى ته دوه اجرونه ملاويږى. ([5])

---

[1] الأحزاب: ٣١_

[2] صحيح البخارى (٧٣٥/٢) كتاب التفسير، سورة عبس رقم ٤٩٣٧)_

[3] صحيح البخارى (١٠٩٢/٢) كتاب الإعتصام بالكتاب والسنة باب أجر الحاكم إذا إجتهد فأصاب أو أخطاء رقم (٧٣٥٢) وصحيح مسلم كتاب الأقضية باب بيان اجر الحاكم إذا إجتهد فأصاب او أخطا ٤٤٨٧ و ٤٤٨٩) وسنن أبى داود كتاب القضاء باب فى القاضى يخطئ رقم ٣٥٧٤ وسنن ابن ماجه أبواب الأحكام باب الحاكم يجتهد فيصيب الحق رقم ٢٣١٤)_

[4] عمدة القارى (١٢٢/٢)_

[5] الكنز المتوارى (٣٢٩/٢)_

② دې درې واړو ته به په هريوکارباندې دوه دوه اجرونه ملاويږی.
خوبه دې باندې اشکال دا دې.چه دې درې واړو داسې څه لويه کارنامه نه ده کړې.چه اوس به دوی ته په هريوعمل باندې دوه دوه اجرونه ملاويږی.[1]
③ زمونږ دعالمانواومشائخو ﷺ دا رائې ده.چه په کومو اعمالو او افعالوکښې تزاحم وی.په هغې کښې به ورته دوه دوه اجرونه ملاويږی.[2]
④ د مشقت د زيادت په وجه دوه اجرونه ملاويږی.چې کله په يوعمل کښې مزاحم او رکاوټ وی.اوبيا هم سړې مجاهده کوی نوهغه ته يو د نفس عمل ثواب ملاويږی.اوبل ورته دهغه مشقت اومقابلې ثواب ملاويږی.کوم چې هغه د دغه عمل په کولو کښې کوی.
**داهل كتابوپه ايمان راوړلوكښې مشقت:** اهل کتاب د وړاندې نه په يو حق پيغمبر،اوآسمانی دين اوکتاب الهی باندې ايمان راوړونکی دی.په حقيقت کښې چه دهغوی ايمان هرڅنګه وی.که صحيح وی يا غيرصحيح،معتبر وی.اوکه غيرمعتبر،هغه خلق په خپل ګمان کښې خپل ځان داسې ګڼړی.چه مونږ داسې يو.چه زمونږ داسې پيغمبردې.اوداسې کتاب دې.داسې څيز عادةً دانسان په طبيعت کښې بعضې وخت روسته راتلونکی پيغمبر باندې ايمان راوړوکښې اودهغه په اتباع کولو کښې استغناء غوندې پيدا کوی. بلکه يوقسم استنکاف پيدا کوی.بيا خاص کرکه چه راتلونکې پيغمبرﷺ دهغوی د کتاب اوپيغمبرﷺ د صداقت اوحقانيت، عظمت او وجاهت، او جلالت اقرارکوی. او پخپله دهغې په مدح اوتعريف کښې دهغه ژبه لونه وی. څکه چه هغه داګڼړی.چه هرکله مونږ سره داسې عظيم الشان پيغمبراوداسې د اوچتې درجې کتاب شته.دکوم تصديق او تعظيم پيغمبرﷺ دهغوی قران هم کوی.نوبيا مونږته څه ضرورت دې.چه مونږ ددې دويم کس تابعداری اوکړی.ددې وجې به بعضې يهوديانونبی ﷺ ته (رسول الأمين)وئيل.[3]
**دغلام په خدمت كښې مشقت:** هم دغه حال دهغه غلام دې.چه دخپل مولی حق کماحقه ادا کوی.اودالله تعالی حقوق په اعلی اواکمله طريقه باندې ادا کوی. هريوکس ته معلومه ده.چه دا ته به دالله تعالی دحقوقو په ادا کولوکښې څومره مشقت اوتکليف وی.دهغه کس په نسبت سره چه هغه آزاد وی.اويا دخپل مولی دحقوقو پوره کولوڅه پرواه نه کوی. نوهرکله چه داغلام دا دواړه حقوق په ښه طريقه سره جمع کوی.چه دهغې جمع کول ډير ګران کاردې.څکه چه دمولی د حقوقو ادا کول د دالله تعالی دحقوقو په ادا کولوکښې مانع اورکاوټ وی.څوچه ددې مزاحم،مانع باوجود هغه دالله تعالی حقوق ادا کوی.نوده

[1] (المصدر السابق)_
[2] (المصدر السابق وفضل الباری(۱۲؍۱۰۴)_
[3] (كما في حديث ابن صياد،أنک رسول الأمين... أخرجه مسلم في صحيحه في كتاب الفتن باب ذكر ابن صياد رقم ۷۳۵۴)

ته دوه اجرونه ملاویدل بیخی مناسب اوپه خپل ځائي صحیح دی.

**دوینځې آزادول او ورسره نکاح کولوکښې مشقت:** دغه شان دریم کس دې چه اول خوهغه په وینځه باندې احسانات اوکړل اوبیا ئې په هغې باندې آخری احسان دا اوکړو چه هغه ئې په خپل زوجیت کښې واخستله. لکه چه خپل ځان سره ئې برابر کړه. قرآن کریم د بیبیانود دبرابری حقوق ذکر کړی دی. ﴿وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِيْ عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِ﴾[1] اوددې نکاح نه دده صرف شهوت پوره کول مقصود نه وو. ځکه چه رقیت موجود وو. نوبیا هم په دې کښې څه د وطی نه څه ممانعت موجود نه وو. بیا دا چه داسې نکاح په عرف کښې عار ګڼړلې شی. چه د آزادولونه پس ئې ورسره نکاح اوکړه. خودې کس هغه وینځه په خپله نکاح کښې واخسته. اوپه دې ئې خپل احسان مکمل کړو. اوپه دې کښې ئې څه شرم محسوس نکړو. چه یوه وینځه ئې ځان سره برابر کړه. نودې ته په دوو اجرونو ملاویدو کښې څه لرې والې نشته.[2]

**قوله:** رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ آمَنَ بِنَبِيِّهِ وَآمَنَ بِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**د کتاب په مصداق کښې دوه اقوال:** ① دکتاب اطلاق په لغت کښې په هرکتاب باندې کیږی. خوپه شریعت کښې د کتاب الطلاق په کتب سماویه باندې کیږی.[3]

② فقهاء چه کله دا اووائی. چه په کتاب اوسنت کښې دا دی. نوهلته دکتاب نه مراد قرآن کریم وی.

**په حدیث کښې د اهل کتابوپه مصداق کښې دوه مذاهب:**

① ابوعبدالملك بونی وعلامه توریشتی رحمهما الله وغیره وائی. چه ددې نه عیسایان مراد دی.[4]

② علامه طیبی، علامه کرمانی، حافظ ابن حجر، ملاعلی قاری رحمه الله وغیره رائې دا ده. چه اهل کتاب عام دی. یهود اونصارا دواړه ترې مراد دی.[5]

دامام بخاری رحمه الله رجحان هم دې طرف ته دې. ځکه چه هم دا حدیث دوی د حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه نه په کتاب الجهاد کښې تخریج کړې دې. اوپه هغې باندې ئې ترجمه قائمه کړې ده. ((باب فضل من أسلم من أهل الكتابين))[6]

**داول فریق دلائل:** ① هم د ددې حدیث په دویم سند کښې دا دی. ((وإذا آمن بعیسی ثم آمن

[1] )البقرة: ۲۲۸)_
[2] )دتفصیل دپاره اوګورئ فضل الباری (۱۲/۱۰٤ و ۱۰۷)_
[3] )فتح الباری (۱/۱۹۰)_
[4] )فتح الباری (۱/۱۹۱)_
[5] )فتح الباری (۱/۱۹۱) وشرح الطیبی (۱/۱۲٦) وشرح الکرمانی (۲/۸۸) والمرقاة (۱/۷۸)_
[6] )صحیح البخاری (۱/٤۲۲) کتاب الجهاد والسیر)_

لي..)) راغلې دي.[۱]

**داول فريق د اول دليل جواب:** دحضرت ابوموسى اشعرى رضی الله عنه د دې حديث يو سند دې. اوهغه سند مرجوح دې. ددې د مرجوحيت دپاره کشف البارى ته رجوع کولې شئ.

② يهوديت دعيسائيت په وجه منسوخ شوې وو. نوپه دين منسوخ باندې ايمان راوړل څه فائده نه ورکوى.[۲]

**داول فريق ددويم دليل جواب:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى. چه دلته د نسخې دشرط لګولو څه ضرورت نشته. ځکه چه حضرت عيسى علیه السلام هم بنى اسرائيلو طرف ته ليږلې شوې وو. په دې کښې څه اختلاف نه وو. په هغوى کښې چه چا په حضرت عيسى علیه السلام باندې ايمان راړو. هغه ته، مسيحى، وئيلې شى. اوچا چه پرې ايمان راونړلو. بلکه تکذيب ئې اوکړو. اوپه خپل يهوديت باندې قائم پاتې شو. نوهغه مومن نه دې. اودا حديث داسې کسانوته شامل نه دې. ځکه چه په دې کښې دا شرط دې. چه ((مؤمن بنبيه)) دې.

البته هغه کسان کوم چه په يهوديت کښې داخل شوى وى. اوهغوى په بنى اسرائيلو کښې نه وو. اويا هغوى حضرت عيسى علیه السلام سره نه وو. اونه ورته دحضرت عيسى علیه السلام دعوت رسيدې وو. نودداسې کسانو په باره کښې وئيلې شى. چه دغه يهوديان دى. اودحضرت عيسى علیه السلام د بعثت نه پس هم هغوى مومنان دى. ځکه چه هغوى په حضرت موسى علیه السلام باندې ايمان لرى. اودهغوى نه پس دوى د هيڅ پيغمبرتکذيب نه دې کړې. نوکه داسې يوکس دنبى صلی الله علیه وسلم نبوت بيا موندو (يعنى دده په ژوند پيغمبرد نبوت دعوه اوکړه). نوهغه به ددې خبرپه مصداق کښې داخل وى. ديمن بعضې قبائل هم داسې قسم وې. چه هغوى يهوديان وو. اودحضرت عيسى علیه السلام دعوت هغوى ته نه وو رسيدلې.

**د دويم فريق دلائل:** ① چه کله په کتاب اوسنت کښې داهل کتابوذکراوشو. نومراد ترې هم دا دواړه وى.

② په قرآن کريم کښې ﴿الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِهِ هُمْ بِهِ يُؤْمِنُونَ ۝ وَإِذَا يُتْلَى عَلَيْهِمْ قَالُوا آمَنَّا بِهِ إِنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَبِّنَا إِنَّا كُنَّا مِنْ قَبْلِهِ مُسْلِمِينَ ۝ أُولَٰئِكَ يُؤْتَوْنَ أَجْرَهُمْ مَرَّتَيْنِ بِمَا صَبَرُوا﴾[۳] آياتونودحضرت عبدالله بن سلام اوددوى دملګرو دايمان راوړوپه باره کښې نازل شوى دى.

په طبرانى کښې د رفاعه قرظى رضی الله عنه نه روايت دې ((نزلت هذه الآيات لي ولمن آمن معي))[۴]

---

[۱] صحيح البخارى (۱۱/۴۹۰) کتاب أحاديث الأنبياء باب واذکرفي الکتاب مريم إذا انتبذت من أهلها رقم ۳۴۴۶)
[۲] فتح البارى (۱۱/۱۹۰)_
[۳] القصص: ۵۲و ۵۴)_
[۴] فتح البارى (۱۱/۱۹۱) والمعجم الکبير للطبرانى (۵/۴۴۲) أحاديث رفاعة بن قرظة القرظى رقم ۴۵۶۳و ۴۵۶۴) والدرالمنثور (۵/۱۳۱) ومجمع الزوائد (۷/۸۸) کتاب التفسير سورة القصص)_

③ طبرانی دعلی بن رفاعه قرظی نه په صحیح سند سره نقل کړی دی.((خرج عشرة من أهل الكتاب منهم أبي رفاعة إلى النبي ﷺ فآمنوا به فأوذوا فنزلت ﴿الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ مِن قَبْلِهِ هُم بِهِ يُؤْمِنُونَ﴾))(١) دا ټول د بنی اسرائیلو سره تعلق ساتی.(٢)

**داهل کتابو څخه ټول که معرفین مراد دی په دې کښې دوه مذاهب:**

① امام طحاوی اوقرطبی رحمهما الله فرمائی.چه داهل کتاب نه صرف هغه خلق مراد دی.چاچه تحریف اوتبدیلی نه وه کړې.څکه چه اجر اوثواب د حق په اتباع باندې ملاویږی (٣)

② علامه سراج الدين بلقينی، حافظ ابن حجر،علامه عینی اوملا علی قاری ﷺ فرمائی. چه اهل کتاب عام دی.(٤)

**نوټ:** د فریقینودلائل د کشف الباری په اول جلد کتاب الایمان ((باب تعليم الرجل امته)) کښې اوګوری.

**د تضاعف د حکم په عهد نبوی پورې په تخصیص اوعدم تخصیص کښې مذاهب:**

① علامه کرمانی ﷫ فرمائی.چه دا د نبی ﷺ د زمانې پورې خاص دې.څکه چه د نبی ﷺ د بعثت نه پس خو دټولې دنیا پیغمبر هم نبی ﷺ دې.نودیوکس په حضرت عیسی ﷺ اوحضرت موسی ﷺ باندې ایمان راوړی.دا دهغه په خپل پیغمبر باندې ایمان نه دې.څکه چه دهغه نبی حضرت موسی اوحضرت عیسی علیهما السلام نه دی.بلکه دهغه پیغمبرحضرت محمد ﷺ دې.(٥)

**اشکال:** بیا خو د نبی ﷺ په زمانه کښې هم دا حدیث معمول به نشی کیدې.څکه چه کله د نبی ﷺ بعث اوشو.نو د ټولو پیغمبر به محمد ﷺ وی.نو د یوکس په حضرت موسی یا حضرت عیسی ﷺ باندې ایمان راوړل.پکار ده چه نافع نه وی.

**داشکال جواب:** که ددې جواب داسې ورکړې شی.چه د حدیث تعلق دهغه کسانو سره دې.چاته چه د نبی ﷺ د بعثت علم نه وو شوې.نوبیا د نبی ﷺ د زمانې پورې دخاص کولو څه ضرورت نشته. دنبی ﷺ نه پس هم که یوکس دا اووائی.چه دا هغه یهودی یا نصرانی دې.چه د نبی ﷺ د بعثت علم ورته نشته.اوبیا هغه مسلمان شی.نوپه دې صورت کښې به هغه ته په خپل پیغمبرباندې د ایمان راوړو ثواب ملاویږی.اوزمونږ په

(١) المصادر السابقة_
(٢) فتح الباری(١\١٩١)_
(٣) مشكل الآثار (٥\٢٢۶و ٢٢٨) كتاب بيان مشكل ما روى عن رسول الله ﷺ من قوله ((ثلاثة يؤتون أجرهم مرتين.. وإكمال إكمال المعلم للأبي ومكمل إكمال الأكمال للسنوسی (١\٢۶٣ و ) وفتح الباری(١\١٩١)_
(٤)فتح الباری(١\٣٨) كتاب بدء الوحي حديث هرقل و(١\١٩١) وعمدة القاری(٢\١١٩) ومرقاة المفاتيح (١\٧٨و ٧٩)-
(٥)شرح الكرمانی(٢\٨٨)_

پیغمبرد ایمان راوړو ثواب هم ملاویږی.[۱]

② علامه سراج الدین بلقینی رحمه الله فرمانی.چه دا حکم عام دي.ترقیامته پورې هم دا حکم دي.کوم کتابی چه هم ایمان راوړی.نوهغه ته به دوه اجرونه ملاویږی.[۲] کوم غلام چه هم د الله تعالی اود مولی حق ادا کوی.هغه ته به دوه اجرونه ملاویږی.دغه شان هریوکس چه خپلې وینځې ته تعلیم ورکوی.اوآزاده ئې کړی اوپه خپله نکاح کښې ئې راولی.نوهغه ددوو اجرونو مستحق دي.

صحیح قول هم د علامه بلقینی رحمه الله دې.هغوی فرمانیلی.چه دا حکم عام دې.د نبی ﷺ په زمانې پورې خاص نه دې.والله اعلم.

**قوله**: وَالْعَبْدُ الْمَمْلُوكُ إِذَا أَدَّى حَقَّ اللّٰهِ وَحَقَّ مَوَالِيهِ:

**عبد سره د مملوک د قید لګولونکته**: دلته کښې د«عبد»سره د مملوك قید ددې وجې لګولې شوې دې.ځکه چه هسې خو ټول خلق دالله تعالی بندګان اوهغه غلامان دی.خودلته دا خودل مقصود دی.چه دا کس دالله تعالی دغلامئ سره سره د خلقوغلام هم وی.[۳]

**د موالیه جمع صیغې راوړلودوه نکتې**:① بیانې دلته «حق موالیه» فرمانیلی دی.«حق مولاه» ئې نه دی فرمانیلی.یعنی د جمعې صیغه راوړې شوې ده.د مفرد صیغه نه ده.

① دلته د «العبد»نه مراد یوغلام نه دې.بلکه جنس مراد دې.په کوم کښې چه دکثرت هم احتمال شته.ددې وجې د «موالی» لفظ استعمال کړې شو.

② بعضې وخت یوغلام د څومالکانوپه مینځ کښې مشترك وی.هغه صورت ته هم د شاملولوپاره دلته د«موالی» جمع صیغه استعمال کړې شوه.[۴]

**نوټ**:عبدمملوك ته د دوه اجرونو ملاویدو تفصیل وړاندې هم په دې حدیث کښې د «د غلام په خدمت کې مشقت» په عنوان سره تیر شوې دې.

**قوله**: وَرَجُلٌ كَانَتْ عِنْدَهُ أَمَةٌ فَأَدَّبَهَا الخ

**وینځې سره څلور خیګړې کول**: یوهغه کس دې.چه هغه سره یوه وینځه وی.

① وینځې ته ښه ادب ورکول.

② وینځې ته ښه تعلیم ورکول.

---

[۱] فتح الباری(۱۹۱۱۱ر ۱۹۲)-
[۲] فتح الباری(۱۹۱۱۱و ۱۹۲)_
[۳] عمدة القاری(۱۲۱۱۲)_
[۴] المصدر السابق)_

③ وینځه آزادول.

④ آزادې کړې وینځې سره نکاح کول.

**اشکال:** دلته څلوراعمال مذکور دی نوپکارده چه اجر هم په دې مقدارسره وې.

**داشکال څلور جوابونه:** ① علامه عینی رحمه الله فرمائی چه اصل کښې د وینځوپه باره کښې
صرف د اعتاق اوتزویج اعتبار کړې شوې دې.ځکه چه دتادیب اوتعلیم په وجه اجر صرف
د وینځوسره خاص نه دې. بلکه دا خو د پردی اوخپل اولاد په باره کښې هم د اجرباعث دې.
② علامه عینی رحمه الله فرمائی چه چونکه دتعلیم یافته وینځې سره نکاح کول د زیات
برکت باعث وی.ځکه چه تعلیمافته اوادبناکه ښځه دخپل خاوند په دینی امورکښې ښه
اعانت کولې شی.نوځکه نې تادیب اوتعلیم د تمهید په طورسره ذکر کړل.(١)
③ علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه ددې کس دپاره دوه اجرونه د دوو متنافی امورو په
وجه دی.دوه متنافی امور رقیت اوحریت دې.درقیت تقاضې جدا وی.اودحریت تقاضې
جدا وی.په دې حیثیت ده ته دوه اجرونه ملاویږی.(٢)
④ امام بخاری رحمه الله په کتاب النکاح کښې دحضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه معلق حدیث
ذکرکړې دې.په هغې کښې دی.«ثم أعتقها ثم أصدقها» (٣)ددې مطلب دا دې چه دا آزده
کړی.اودې سره کومه نکاح اوکړی.په دې کښې عتق لره مهر اونه ګرځوی.بلکه مستقل
مهر ورته ورکړی.والله اعلم.

**قوله: فَلَهُ أَجْرَانِ:**

**داجران دتکرار په توجیه کښې دوه اقوال:** په شروع کښې «ثلاثة لهم أجران» راغلی وو.اواوس
نې دلته دوباره ذکرکوی.ددې وجه یاخوهغه ده.کومه چه
① علامه عینی رحمه الله فرمائی دلته تنبیه ورکول مقصود دی.چه د وینځو په تعلیم
اوتربیت اواعتاق اوتزویج باندې به دوه اجرونه ملاویږی. زیاتی نه،(٤) په دې صورت
کښې ددې جملې تعلق صرف ددې آخری صورت سره دې.
② ظاهره دا ده.چه ددې تعلق ددې ټولو سره دې.اودلته ددې تکرارد طول کلام اوپه
مینځ کښې د فصل په وجه راغلې دې.(٥)

---

(١) المصادرالسابقة)_
(٢) شرح الکرمانی(٩٠\١٢)_
(٣) صحیح البخاری (٧٦١\١٢) کتاب النکاح باب إتخاذ السراری ومن أعتق جاریته ثم تزوجها رقم ٥٠٨٣) ووصله أبوداود الطیالسی فی مسنده (٦٨) رقم ٥٠١) وانظرفتح الباری(١٢٧\٩و ١٢٨) کتاب النکاح باب إتخاذ السراری )_
(٤) عمدة القاری(١١٩\١٢)_
(٥) فتح الباری(١٩٢\١١)_

## [۱۲] د مال او جان د حفاظت اسباب

۱۲ -()[۱۰] ①وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②«أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتَّى يَشْهَدُوا أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ، ③وَيُقِيمُوا الصَّلَاةَ، وَيُؤْتُوا الزَّكَاةَ. ④فَإِذَا فَعَلُوا ذَلِكَ عَصَمُوا مِنِّي دِمَاءَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ، إِلَّا بِحَقِّ الْإِسْلَامِ، ⑤وَحِسَابُهُمْ عَلَى اللهِ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ، ⑥إِلَّا أَنَّ مُسْلِمًا لَمْ يَذْكُرْ إِلَّا بِحَقِّ الْإِسْلَامِ

**ترجمه:** ①د ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دي چې نبي کريم ﷺ ارشاد وفرمايلي ②چې ماته د الله تعالی د طرف څخه حکم را کول شوې دي چې زه (د دين دښمنه) خلقو سره تر هغه وخته پورې جنګ وکړم ترڅو پورې چې هغه د دې خبرې ګواهي ونه کړي چې د الله څخه ماسوا بل معبود نشته محمد ﷺ د الله تعالی رالیږل شوې رسول دی③ او مونځ کوي او زکوٰة ورکوي ④او هر کله چې هغه داسې کول شروع کړي نو هغوئ خپل ځان او مال زما څخه بچ کي، کومه پوښتنه چې د اسلامي ضابطي لاندي وي هغه به اوس هم باقي وي، ⑤د دې څخه وروسته دهغوئ د باطن معامله الله تعالی ته سپارل شوې ده، (هغه پوهيږي چې د هغوئ اسلام د زړه د اخلاصه وو او که محض د خپل ځان ومال د حفاظت دپاره نبودلي وو) بخاي او مسلم، ⑥د مسلم په روايت کې الا بحق الاسلام لفظونه نشته.

**حل اللغات:** ①عَصَمُوا: أَيْ: حَفِظُوا وَمَنَعُوا: دخپل ځان حفاظت ئې اوکړو، ځان ئې بچ کړو، ②بِحَقِّ الْإِسْلَامِ: أَيْ دِينِهِ: په اسلامی حقوقو کښې به بيا هم راګير وی، يعنی قصاص او حدود وغيره احکام به پرې جاری کولې شی. ③حِسَابُهُمْ: د حساب کتاب معامله ئې دالله سره ده، يعنی که څه نافرمانی او کفر وغيره ئې په زړه کښې پټ ساتلې وی نو الله به ورسره پوهه شی.

**تسهيلات:**

**قوله:** أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ:

**د آمر تعيين:** دا د مجهول صيغه ده. ځکه چې ددې فاعل متعين وو. چې الله تعالی دې. ځکه چې نبی ته حکم ورکونکې هم الله تعالی دې. لکه څنګه چې به صحابهٔ کرامو وئيل [أمرنا] نو هلته فاعل نبی کريم ﷺ متعين وو، نو د [أمرت] مطلب دا شو چې [أمرني الله بأن أقاتل الناس].

[1] اخرجه البخاری الإيمان /باب ( فإن تابوا وأقاموا الصلاة وآتوا الزكاة فخلوا سبيلهم ). ( رقم-۲۵ ) ومسلم فی كتاب الإيمان/باب الأمر بقتال الناس حتی يقولوا: لا إله إلا الله محمد رسول الله(رقم-۳۶ - (۲۲) و نسائيكتاب تحريم الدم(رقم-۳۹۷۳) وابوداود كتاب الجهاد باب علی ما يقاتل المشركون(رقم-۲٦٤۱) والترمذی كتاب الإيمان عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/ما جاء فی افتراق هذه الأمة (رقم-۲٦٤۱) وابن ماجه باب فی الإيمان (رقم-۷۱) واحمد فی مسنده ۲٤۵/۲

**په مزید درې څیزونو سره د مال او جان حفاظت:**

① د جزیه په ورکولو سره دذمی جان او مال محفوظ کیږی.

② معاهد بغیر د قتال څخه پاتې کیدې شی. د هغه مال او جان ته تعرض نشی کولې.

③ کافرانو سره صلح هم جائز ده په صلحې سره د هغوی مال او جان محفوظ پاتې کیږی.

**اشکال:** په زیربحث حدیث کښې مطلق د جنګ کولو حکم دې، حالانکه وړاندې مزید درې صورتونه هم بیان شو. چې د کافرجان او مال ته به تعرض نشی کولې.

**د اشکال درې جوابونه:** ① په الناس کښې الف لام عهد خارجی دپاره دې او ددې څخه مراد د جزیره عرب مشرکان دی کومو دپاره چې د [إما السیف أو الاسلام] تائید د نسائی په روایت کښې کیږی. په هغې کښې الفاظ دی چې [أمرت أن أقاتل المشرکین]

② دالناس څخه مراد اهل عرب دی، ذمی او معاهد پخپله ترې اووتل. ځکه چې دا عام حکم دې. او هر عام مخصوص البعضې وی، نو جنګ کوونکو سره به جنګ کوی. ذمی او معاهد د دې څخه مستثنی دی. (کذا قال الطیبی)، والکاشف: ۱/۱۲۷

③ په حدیث کښې تاویل شوې دې یعنی [یسلموا أو یستسلموا] چې یا اسلام په حقیقت کښې راوړئی یا دَ اسلام په مخکښې ټیټیدشئی او د استسلام په صورت کښې ذمی او معاهد داخل دی. ځکه چې اوس دوی اطاعت کړې دې، یعنی جهاد څخه مراد اعلاء کلمة الله ده او ددې دوه صورتونه کیدیشی، اسلام یا استسلام، کافر چې په کفر باندې اوسی او هر کله چې اسلامی حکومت قبول کړی نو اعلاء کلمة الله متحقق شو.

**د صوم او حج د عدم ذکر وجوهات:** ① په دې حدیث کښې د راوی د طرفه اختصار شوې دې ګنی په حقیقت کښې په دې حدیث کښې د صوم او حج ذکر موجود وو.

② دنبی ﷺ ددې حدیث د وینا تروخته پورې صوم او حج لافرض شوې نه وو.

③ نبی کریم ﷺ ټول ارکان نه بیانول بلکه دا خودل مقصود وو چې کوم مسلمان شی او د مونځ او زکوة اهتمام کوی، دا دهغه د مسلمانیدو علامت دې. اوس هغه سره تعرض نشته.

④ دلته د شهادتینو د اقرار ذکر دې او کوم کس چې د نبی کریم ﷺ د رسالت ګواهی ورکوی نو ددې مطلب دادې چې هغه د جمیع ماجاء به النبی ﷺ اقرار کوی. په دې کښې ټول شریعت راغلو.

**د تارک الصلاة دوه قسمونه:** په دې حدیث پاك کښې چونکه دَ حفظ جان دپاره د کلمهٔ شهادت نه پس د مونځ ذکر راغلې دې، په دې وجه شارحینو د تارك صلوة متعلق یو بحث رانیولې دې.

① هغه خلق دی کوم چې مونځ پرېښودو لره حلال ګڼي. دې پسې توقې کوی. اودې ته نزدې نه ورځي. دا خلق اتفاقا کافر مرتد او واجب القتل دی.
② هغه خلق دی کوم چې د سستۍ په وجه مونځ نه کوی خو ددې فرضيت مني، ددې پرېښودل ناجائز ګڼي،

**د دویم قسم تارک الصلوة په حکم کښې مذاهب:**

① د احمد بن حنبل بن مبارك رحمه الله او اسحاق بن راهويه رحمه الله مسلك دادې چې بغير د څه عذر څخه مونځ پرېښودلو والا کافر دې. داسې کس دې قتل کړې شي. او دا قتل د مرتد قتل دې.
② د امام مالك رحمه الله او امام شافعی رحمه الله مسلك دادې چې تارك صلوة کافر نه دې خو ددې جرم سزا قتل ده. اودا قتل د مرتد قتل نه دې بلکه د فاسق او فاجر قتل دې.
③ امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي چې تارك صلوة کافر نه دې او دده سزا قتل نه ده بلکه حاکم وخت دې داسې کس په جيل کښې واچوی او ترکومې چې توبه اونه کړی نو د مونځ په وخت کښې دې دا سړې په کوړو وهی. تر دې پورې چې دې توبه اوباسی اويا په جيل کښې مړ شي.
④ سلطان باهو رحمه الله فرمائي چې تارك صلوة دې د مسلمانانو په قبرستان کښې ښخ نه کړې شي.
⑤ بابا سعدی رحمه الله فرمائي چې تارك صلوة ته قرض مه ورکوئی. کوم کس چې د الله تعالی قرض نه ادا کوی هغه به ستا قرض څنګه ادا کړی.

**دتارك الصلاة د کفر دلائل:** کومو حضراتو چې تارك صلوة ته کافر مرتد وئيلی دی دهغوئ دلائل هغه آيات مبارکه او هغه احاديث مبارکه دی کومو کښې چې د تارك صلوة طرفته د کفر نسبت شوې دې.او دا ډير احاديث دی.

**د تارك الصلاة د کفرپه دلائلو کښې تاويل:** کوم حضرات چې د تارك صلوة د کفر قائل نه دی هغوئ فرمائي چې په دې احاديثو کښې به تاويل کولې شي چې دې کس کافرانو والا کار کړې دې، ده سره دې جنګ اوکړې شي، خووژلې به نشي ددې څخه دا نه لازميږی چې دا کس مرتد شو دا کس دې قتل کړې شي څکه چې د کبيرې د مرتکب باره کښې د امت فيصله داده چې هغه خارج از اسلام نه دې. نوداسې قسم احاديث به تشديد او تغليظ او تهديد باندې حمل کوو څکه چې اسلامی تاريخ ددې خبرې ګواه دې چې کله هم په امت کښې تارك صلوة نه دې قتل کړې شوې.

**قوله: إِلَّا بِحَقِّ الْإِسْلَامِ:**

**په دریو صورتونو کښې د مسلمان د وینې عدمِ حفاظت:** هغه کوم صورتونه دی په کومو کښې چې د مسلمان وینه محفوظ نه پاتې کیږی بلکه دې غیرمحفوظ الدم ګرځی هغه درې صورتونه دی.

① د قصاص په صورت کښې چې دې د بل مسلمان قاتل اوګرځی

② د ارتداد په صورت کښې چې والعیاذ بالله دې مرتد شی.

③ د زنا بعد الاحصان په صورت کښې چې دې واده شوې وی خوبیا هم زنا اوکړی. نو په رجم سره به هلاکولې شی.

**قوله: وَحِسَابُهُمْ عَلَى اللَّهِ:**

**د شریعت نظرظاهرته:** یعنی کله چې یوکس دغه مذکوره اعمال کوی نود ده ظاهری اعماتو په کتلو سره به دې مسلمان حسابیږی. اودده د مال اوجان حفاظت په مسلمانانو فرض دې. باقی که دې په باطن کښې کافر وی. نوهغه دده او دالله تعالی معامله ده. الله پوهه شه او دې چې الله تعالی ورسره څه کوی هغه صاحب اختیار دې.

**دتارک الصلاة د تکفیراوعدم تکفیر باره کښې عجیبه مناظره:** د تارك صلوة په تکفیر او عدم تکفیر کښې د امام شافعی رحمه الله او احمد بن حنبل رحمه الله یو ښکلې بحث شوې دې، اوهغه داشان دې چې امام شافعی رحمه الله د امام احمد بن حنبل رحمه الله څخه د تارك صلوة باره کښې تپوس اوکړو، نو امام احمد بن حنبل رحمه الله اوفرمائیل چې کافر دې. امام شافعی رحمه الله سوال اوکړو چې بیا به دې څنګه مسلمانیږی؟ دوئ اوفرمائیل چې کلمه دې اووائی. امام شافعی رحمه الله اوفرمائیل چې کلمه خو دې د اول څخه وایی خو مونځ نه کوی. دوئ اوفرمائیل چې مونځ دې اوکړی، امام شافعی رحمه الله اوفرمائیل چې هر کله هغه کافر دې نو بغیرد ایمان څخه څنګه مونځ اوکړی؟ په دې باندې امام احمد بن حنبل رحمه الله خاموش شو.

**[۱۳] دالله تعالی په حفاظت اوذمه واری کښې راوستونکی اعمال**

١٣ –(١)[١٣] ① وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② «مَنْ صَلَّى صَلَاتَنَا، وَاسْتَقْبَلَ قِبْلَتَنَا، ③ وَأَكَلَ ذَبِيحَتَنَا، فَذَلِكَ الْمُسْلِمُ الَّذِي لَهُ ذِمَّةُ اللَّهِ وَذِمَّةُ رَسُولِهِ، ④ فَلَا تُخْفِرُوا اللَّهَ فِي ذِمَّتِهِ» رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت انس رضی الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ② چې کوم سړي چې زمونږ په شان مونځ کوي زمونږ قبلي ته مخ کوي ③ او زمونږ ذبیحي (حلالي) خوري

---

[۱] ) اخرجه البخاري کتاب الصلاة/ باب فضل استقبال القبلة (رقم-۳۹۱) والنسائي کتاب الإيمان وشرائعه/باب صفة المسلم(رقم-۴۹۹۷)

هغه مسلمان دي او د الله او د الله د رسول په عهد او آمان کښې دي۴ نو کوم سړي چې د
الله عهد او امان کښې وی. تاسو د هغه سره عهد شکني مه کوئ. بخاري

**حل اللغات:** ① ذِمَّةُ اللّٰهِ وَذِمَّةُ رَسُولِهِ: أَيْ أَمَانُهُمَا وَعَهْدُهُمَا: د الله اود رسول د ذمې کیدو نه مطلب دا چه د
الله اود رسول په عهد او امان کښې به وی یعنی په دوی به احکام داسلام جاری کیږی. ②
فَلَا تُخْفِرُوا اللّٰهَ: دا د اخفار نه دې د باب افعال نه په معنی د بې لوظی کولو، أَيْ لَا تَخُونُوا اللّٰهَ فِي عَهْدِهِ:
یعنی دهغه په عهد کښې دالله سره خیانت او بې لوظی مه کوئ.

**تسهیلات:**

**قوله:** مَنْ صَلّٰى صَلَاتَنَا:

**په اسلامی شعائروکښې د مونځ اهمیت:** یعنی چا چې زمونږ مونځ ادا کړو، دا عمل یو
مسلمان موحد کولې شی کوم چې د نبی کریم ﷺ د نبوت اقرار کوی. هرکله چې د نبوت
اقرار اوشو نو د نبی کریم ﷺ د راوړلې شوی پورا شریعت اعتراف هم اوشو، هم دا وجه
ده چې ددې کس مونځ دده دایمان دپاره یو علامت جوړ کړې شو. دلته د شهادتینو ذکر
نشته دې ځکه چې شهادتین حقیقتًا یا حکمًا پخپله د مونځ په ضمن کښې راغلل.

**اشکال:** د دین اسلام خو ډیراحکامات دی. دلته په حدیث کښې صرف د دریواعمالوذکر
دې. نوکه یوکس دا درې واړه اعمال کوی. اود دین اسلام نوراعمال پریږدی. آیا هغه ته به
هم دا بشارت حاصل وی. داسې خونشی کیدې نوبیا ځنګه صرف دا درې اعمال دالله
تعالی د ذمه واری سبب جوړیدې شی.

**داشکال جواب:** دلته حدیث کښې د کوم کس ذکر دې او چا مسلم او مؤمن کیدو تعارف
کړې شوې دې، دا هغه کس دې کوم چه اوس په اسلام کښې داخلیدل غواړی او خپل
دین پریخودل غواړی او اسلام قبلول غواړی. په دې وجه په دې حدیث پاك کښې د مابه
الامتیاز اعمالو ذکر کړې شوې دې یعنی د نبی کریم ﷺ په زمانه کښې اهل کتاب او
اهل اسلام په مینځ کښې ما به الامتیاز هر یو که بل لره د ممتاز کولو والا اعمال که وو
نو هغه هم دا درې اعمال وو. ځکه چې ایمانی تصدیق قلبی په درجه کښې وی اوکه اقرار
لسانی سره وی، په دې کښې د غیر مسلم د ښکاره کولو دومره مواقع نه وې څومره چې
په دې مذکوره دریو عملونو کښې وې ځکه چې دا اسلامی شعائر او ممتاز اعمال دی.
تاسو غور اوکړئ چې مونځ په اسلامی شعائرو کښې ټولو څخه زیات واضح او
امتیازی عمل دې. داشان دقبلې معامله ده، چه ددې باره کښې یهود ونصاری ډیر
حساس دی، او ددوئ په نزد حقانیت دپاره قبلې ته معیاری مقام حاصل دې. دا خو د
عباداتو حوالې سره امتیازی علامتونه وو.

وړاندې د ذبیحې معامله هم یو امتیازی معامله ده. یهود ونصاری د خپل ځان نه ما سوا

د بل چا ذبیحه نه خوری، او ذبیحې لره هغه خلق معاشرتی لحاظ سره امتیاز او د جدائی لوې حد فاصل ګڼړی نو په دې حدیث پاك کښې د ا بیان کړې شو چې کوم کس اسلام کښې داخلیدل غواړی، بیا هغه د عبادت حوالې سره زمونږ په شان امتیازی مونځ کوی. او قبلې ته مخ کوی، او معاشرتی لحاظ سره زمونږ ذبیحه خوری، نو اوس دا کس د عبادتونو نه وروستو هم غیر مسلمو څخه ممتاز شو. لهذا اوس به دې ټولو صفاتو سره مسلمان ګڼړلې کیږی. الکاشف: ۱/۱۳۱

**د استقبال قبله په تکرارباندې اشکال:** په امن صلي صلوتنا کښې استقبال د قبلې داخل وو څکه چه زمونږ مونځ هم زمونږ قبلې طرف ته کیږی. بیا دَ دې جملې راوړل زیاتی معلومیږی حالانکه دلته دا دَ ایمان معیار خودلې شوې دې؟

**داشکال دوه جوابونه:** ① دَ مونځ په نسبت دَ قبلې معامله ډیره مشهوره وه څکه چه ډیرو زیاتو مسلمانانو مونځونه کول هم نه او پیژندل ئی هم نه لیکن قبله ئی پیژندله او منله ئی په دې وجه دَ مونځ نه پس دَ قبلې ذکر ضروری وو.

② په مونځ کښې دَ نورو مذهبونو خلق هم په یو نه یو طریقه کښې شریك دی نوپوره امتیازئی نشته لیکن په قبله کښې خو ښکاره امتیاز دې. دَ هرمذهب خپله قبله ده دَ یهودو بیت المقدس کښې ګنبد صخره دې اودَ انصارو بیت المقدس کښې مشرقی طرف دې اودَمسلمانانو په مکه مکرمه کې بیت الله دې په دې وجه دَدې ذکرکول ضروری وو.

**قوله:** فَذَٰلِكَ الْمُسْلِمُ الَّذِي لَهُ ذِمَّةُ اللَّهِ وَذِمَّةُ رَسُولِهِ:

**په مذکوره صفاتو موصوف دپاره د الله اورسول ذمه واری:** یعنی په چاکښې چه دادرې صفات وی هغه مسلم دې. چه دَ الله تعالی په ذمه کښې دې یعنی دَ الله تعالی دَ طرف نه په امن کښې دې دَ الله تعالی په عهد او ذمه وارئی کښې دې. نه دَ ده قتل جائز دې اونه دَ هغه دَ ننګ او ناموس بې عزتی جائز ده. په دې وجه دَ الله تعالی عهد شکنی نه بچ شئی.

**قوله:** فَلَا تُخْفِرُوا اللَّهَ فِي ذِمَّتِهِ:

**دالله تعالی د حفاظت په ذمه واری کښې د عدم خیانت حکم:** یعنی تاسو د هغه چا سره خیانت او دهوکه مه کوئ څوک چې الله تعال د خپل حفاظت په ذمه وارئ کښې اخستې وی. دلته د اخفار څخه بدعهدی اووعده ماتول، خیانت کول او دَ هغه جان اومال ته تعرض کول مراد دې چه دې نه ځان اوساتئی. دَ الله تعالی عهد شکنی دَ رسول عهدشکنی وه په دې وجه هم دَ یو ذکر کول کافی اوګنړلې شو.

**دقادیانانو اعتراض:** قادیانان وائی چه دا دري کارونه خو مونږ هم کوو بیا خو مونږ مسلمانان شو مونږ ته کافر ولې وئیلی شی؟

**د اعتراض جواب:** دَدې دریو کارونو خپلولوسره دا ضروری دی چه هغه سړې دَ ضروریات دین نه دَ یو امر ضروری نه انکار اونه کړی ځکه چه ایمان او اعمال هم هغه معتبر دی دَ کوم منافی چه یو بنیادی څه داسې عمل نه وی چه دَدې ټولو کارونو دَ تباهئی ذریعه جوړشی. قادیانان نوی نبوت راپیداکوی نودَهغوی ایمان په شریعت باندې څنګه باقی پاتې کیدې شی؟

**اشکال:** په دې حدیث کښې حضورپاك دَ زکوة، روژې، حج ذکراونه کړو؟

**دوه جوابونه:** ① دَ نبی کریم ﷺتول ارکان بیانول مقصود نه وو بلکه دَمسلمان دَ تعارف دَ حده پورې چه څومره مقصود وو هغه ئې بیان کړه.

② هغه وخته پورې دا احکام نه وو فرض کړې شوې.

**[۱٤] جنت ته بوتلونکي اعمال**

١٤ -()[١٣][١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢]«أَتَى أَعْرَابِيٌّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٣]فَقَالَ: دُلَّنِي عَلَى عَمَلٍ إِذَا عَمِلْتُهُ دَخَلْتُ الْجَنَّةَ،[٤] قَالَ: " تَعْبُدُ اللَّهَ وَلَا تُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا، وَتُقِيمُ الصَّلَاةَ الْمَكْتُوبَةَ، وَتُؤَدِّي الزَّكَاةَ الْمَفْرُوضَةَ، وَتَصُومُ رَمَضَانَ، [٥]قَالَ: وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا أَزِيدُ عَلَى هَذَا شَيْئًا وَلَا أَنْقُصُ،[٦] فَلَمَّا وَلَّى قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٧]مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى رَجُلٍ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَلْيَنْظُرْ إِلَى هَذَا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١]او حضرت ابوهریره ﷺ روایت دی[٢] یو صحرایي د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو [٣]او عرض یي اوکړو چې یا رسول الله ماته څه داسې عمل را وښایه چې د هغه په کولو سره زه په جنت کښې داخل شم [٤]حضور ﷺ ورته وفرمایل د الله عبادت کوه، د هغه سره څوک مه شریک کوه، فرض مونځ کوه، فرض زکوٰة اداکوه او د رمضان د میاشتې روژې نیسه [٥]په دې آوریدو سره هغه صحرایي اوویل په هغه ذات مې دې قسم وي چې د هغه په قبضه کښې زماه ساه ده زه به نه دې څخه زیات کوم نه کم، [٦]کوم وخت چې هغه صحرایي لاړلو نو نبی کریم ﷺ وفرمایل[٧] کوم سړي چې د جنتي سړي د لیدو سعادت او خوشحالي حاصلول غواړي نو هغه دې دا سړي ووینې. بخاري

[١] اخرجه البخاری کتاب الزکاة /باب وجوب الزکاة (رقم-١٣٩٧) ومسلم فی کتاب الإیمان/باب بیان الإیمان الذی یدخل به الجنة. وأن من تمسک بما أمر به دخل الجنة(رقم-١٥ - (١٤)

**حل اللغات:** ① دُلَّنِي : أَيْ أَرْشِدْنِي: راته اوښايه، ② تُقِيمُ: قائم كړه (مونځ، يعني د فرائضو او سنتو پوره لحاظ ساته). ③ لَا أَزِيدُ: أَيْ قَبِلْتُ قَوْلَكَ: نه به پكښې څه زياتې كوم نه څه كمې، يعني ستا قول زما قبول دې، ④ وَلَّى : أَيْ أَدْبَرَ: شا كړه باندېچې يعني لاړو روان شو.

**تسهيلات:**

**قوله: دَخَلْتُ الْجَنَّةَ:**

**ددخولِ جنت څخه مراد:** يعني په دخول اولى سره داخل شئى په كوم كښې چه دَ څه قسم سزا اوعذاب نه وى.

**قوله: تَعْبُدُ اللَّهَ:**

**د تعبد په تركيب كښې دوه احتمالات:** ① داخبر په معنى دَ امردې. [اي عبدالله]
② ان مصدريه مقدردې [أي أن تعبدالله]

**د توحيداوشهادتينو دنه ذكركولواشكال:** نبى عليه السلام دغه سړى ته دَ توحيد خپلولو حكم ورنه كړو، دَ شهادتين ذكر ئى ورته اونه فرمائيلو كوم چه دَ جنت دَ داخليدو او دَ صحت اعمال دَپاره ضرورى دې؟

**داشكال دوه جوابونه:** ① داسړې دَ اول نه مسلمان شوې وو. دَ بخارى شريف په روايت كښې دى چه هغه تپوس كړې وو [ماذا فرض الله عمل] يعنى په ما باندې دَ الله تعالى څه فرائض دى؟ په دې صورت كښې دَ توحيد او دَ شرك نه دَ ويزاره كيدو ذكر په توګه دَ تبرك او شرف او په توګه دَ تاكيد شوې دې.
② دَعبادت نه مراد توحيد او شهادتين دې. په دې صورت كښې به دغه سړې دې وخت كښې مسلمان شوې نه وى نوهغه ته حكم وركړې شو چه توحيد خپل كړه.

**قوله: وَلَا تُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا:**

**دعدمِ شرك څخه مقصود:** يعنى دَ شرك جلى او شرك خفى نه بچ شه، توحيد اوعبادتونه خپل كړه، ددې جملې نه معلوميږى چه دَ عبادت نه مراد دَ توحيد كلمه ده اودَ توحيد په ضمن كښې رسالت هم راغلو.

**دحج نه ذكركولو درې وجوهات:** ① دَنبى عليه السلام هم دومره اركان بيانول مقصود وو
② كيدې شى دغه وخته پورې حج نه وو فرض شوې
③ كيدې شى راوى اختصار كړې وى

**قوله: لَا أَزِيدُ عَلَى هَذَا شَيْئًا وَلَا أَنْقُصُ:**

**دعدمِ زيادت اوعدمِ نقصان په مفهوم كښې اقوال:** ① [لا ازيد فى السوال ولا انقص فى العمل]

یعنی زه به په تپوس کولو کښې زیادت نه کوم اوستاسود حدیث په نقل کولو کښې به کمې نه کوم.

② زه به دَدې تعلیم په تبلیغ کولو او نورو ته رسولو کښې هیڅ کمې زیاتې نه کوم. چونکه دا سړې دَ قوم مشر وو داد هغه ذمه واری وه

③ الازيدشيئامن تلقاءنفسي ولاانقص كذالك من نفسي] زه به ستاسو په حدیث کښې د خپل طرفه نه زیادت کوم اونه کمې کوم.

④ داکلام دَ محاورې په توګه وو مثلاً چه کله یو سړې څه څیز اخلی نو وائی په قیمت کښې به څه کمې زیاتې نه وی. دلته اصل مقصود کمې کول دی دَزیاتوالی لفظ خو تبعاً په خبره کښې راغلو. دغه شان په حدیث کښې [لا ازید] لفظ تبعاً راغلې دې مقصود [لا انقص] دې ګنی په عبادت کښې خو زیاتوالې مصود دې.

⑤ حق خبره داده چه دا عبارت او دا جواب دکمال اطاعت نه کنایه ده.

**قوله**: مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى رَجُلٍ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ:

**د مذکوره صحابی دپاره دجنت زیرې**: د دې جملې مطلب دا دې چې د چا خواهش وی چه هغه دې یوجنتی اوګوری نودې سړی ته دې اوګوری. حضورپاك ته دَ وحی په ذریعه معلومه شوه چه دَ دې سړی انجام محمود دې اودا مامون العاقبة دې اودې به بغیردَ سزا نه دخول اولی سره جنت کښې داخلیږی. (كما فى الطبرانى)

**قوله**: فَلْيَنْظُرْ إِلَى هٰذَا:

**د مشار الیه صحابی نوم**: دَدغه کلی وال نوم سعد بن الاحزم وو.

### [۱۵] دایمان څخه روستو استقامت اختیارول

> ۱۵ ـ( )[۱۳] [۱] وَعَنْ سُفْيَانَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ الثَّقَفِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] قُلْتُ: «يَا رَسُولَ اللّٰهِ، قُلْ لِي فِي الْإِسْلَامِ قَوْلًا لَا أَسْأَلُ عَنْهُ أَحَدًا بَعْدَكَ - [۳] وَفِي رِوَايَةٍ: غَيْرَكَ - [۴] قَالَ: "قُلْ آمَنْتُ بِاللّٰهِ، ثُمَّ اسْتَقِمْ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

[۱] او حضرت سفیان بن عبد الله الثقفي ﷺ وایي [۲] چې ما د رسول الله ﷺ په خدمت اقدس کې عرض وکړو چې یا رسول ﷺ ماته د اسلام څه داسې خبره را وښایه چې ستاﷺ څخه وروسته ماته د پوښتني کولو ضرورت پاتې نشي. [۳] او د یو روایت الفاظ داسې دي چې ستا څخه علاوه وبل چاته د پوښتني کولو حاجت پاتې نشي، [۴] رسول الله ﷺ ورته وفرمایل چې په ژبه او په زړه سره د دې خبرې اقرار وکړه چې ما په الله ایمان

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الایمان/ باب جامع اوصاف الإسلام (رقم-۶۲ - (۳۸) وابن ما جة کتاب الفتن/باب إذا التقى السلمان بسيفيهما(رقم-۳۹۷۲) واحمد في المسند ۳/ ۴۱۳.

راوړي بيا په دي اقرار او اعتراف قايم اوسه. مسلم

**حل اللغات:** ① اسْتَقِمْ: استقامت اختيار کړه، قائم او مضبوط اوسيږه، يعنی کامل تابعداری کوه او افراط تفريط مه کوه.

**د راوي مختصر تعارف:** دَ حضرت سفيان رضي الله عنه کنيت ابوعمر دي. داسړې صحابی دي اودَحضرت عمر فاروق رضي الله عنه دَ طرف نه گورنرمقرروو، بنوثقيف سره دَده تعلق دې اودَ طائف اوسيدونکې دې دوی نه صرف پنځه احاديث نقل دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** قُلْ لِي فِي الْإِسْلَامِ قَوْلًا لَا أَسْأَلُ عَنْهُ أَحَدًا بَعْدَكَ:

**دصحابی مطالبه:** "في الاسلام" يعنی تکميل اسلام سره متعلق يوجامع قول ارشاد اوفرمائيلو په دې جمله کښې توابع اسلام ټول په ټول راغلی لکه چه دَ پوره شريعت خبره اوشوه. "آمنت بالله" يعنی په هغه ټولوځيزونوباندې مې ايمان راوړې دې په کوموچه ايمان راوړل ضروری دی. په دې کښې هم پوره شريعت راغلو.

**قوله:** قُلْ آمَنْتُ بِاللَّهِ، ثُمَّ اسْتَقِمْ:

**داستقامت تعريف:** دَهرمامورامتثال اودَهرمحظوراوحرام څخه داجتناب نوم استقامت دې.

**د کرامت څخه د استقامت افضليت:** صوفياء کرامو وئيلی دی "الاستقامة خير من ألف كرامة" يعنی په دين باندې استقامت د زرو کرامتونوڅخه غوره اوافضل دې.که يوکس د شريعت متبع وی اودده څخه د کرامت ظهورهم‌و اونشی نودا کس دهغه چا څخه غوره دې چې هغه د شريعت کامل متبع نه وی اودهغه څخه د کراماتوظهور کيږی.معلومه شوه چې اصل ځيز استقامت دې.اودا گران کار هم دې.

**دَ استقامت په مفهوم کښې پنځه اقوال:** ① دَحضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه نه چه کله دَ استقامت باره کښې پوښتنه اوکړې شوه نووئی فرمائيل " أن لا تشرك بالله شيئًا" يعنی استقامت دَخالص توحيدنوم دې.

② امام غزالی رحمه الله فرمائی چه په دې دنياکښې په صحيح لارباندې استقامت دومره گران دې څومره چه په عالم آخرت کښې په پل صراط باندې استقامت گران دې په دې دنيا کښې دَ استقامت هريو ساعت دَ ويښته نه زيات نرې اودَتورې نه زيات تيره دې.

③ حضرت عثمان رضي الله عنه دَ استقامت باره کښې اوفرمائيل "أخلصوا العمل لله" يعنی خالص دَالله تعالی دَ رضادَپاره هرکارکول استقامت دې.

④ دَحضرت عمر رضي الله عنه نه تپوس اوکړې شو نو وئی فرمائيل "تستقيم على الأمر والنهي ولا تروغ

روغان الثعالب" يعنى دَحق اوباطل په وخت په حق باندې كلك اودرېږه اودَ لومبړې په شان اخوادېخوا اوړه راوړه مه.

⑤ حضرت علي ﷺ اوفرمائيل "داوموا الفرائض كلها" يعنى په ټولو فرائضوباندې دوام اواستمرار سره پاتې كيدل استقامت دي

**دحديث جامعيت**: داحديث دَجوامع الكلم څنې دې كوم چه په اصول اسلام توحيد اواركان اسلام يعنى طاعاتو باندې مشتمل دې دَتوحيد طرف ته اشاره "آمنت بالله" سره اوشوه او باقى دَ طاعاتو طرف ته اشاره "ثم استقم" سره اشوه.

**[١٦] په اسلامى فرائضو باندې عمل د فلاح ذريعه ده**

١٦ -()[٣] ⑴وَعَنْ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ⑵«جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنْ أَهْلِ نَجْدٍ، ⑶ثَائِرُ الرَّأْسِ، نَسْمَعُ دَوِيَّ صَوْتِهِ وَلَا نَفْقَهُ مَا يَقُولُ، ⑷حَتَّى دَنَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ⑸فَإِذَا هُوَ يَسْأَلُ عَنِ الْإِسْلَامِ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "⑹خَمْسُ صَلَوَاتٍ فِي الْيَوْمِ وَاللَّيْلَةِ". فَقَالَ: هَلْ عَلَيَّ غَيْرُهُنَّ؟ فَقَالَ: لَا، إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ". ⑺قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "وَصِيَامُ شَهْرِ رَمَضَانَ"، قَالَ: هَلْ عَلَيَّ غَيْرُهُ؟ قَالَ: "لَا إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ". ⑻قَالَ: وَذَكَرَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الزَّكَاةَ، فَقَالَ: هَلْ عَلَيَّ غَيْرُهَا؟ فَقَالَ": لَا إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ". ⑼قَالَ: فَأَدْبَرَ الرَّجُلُ وَهُوَ يَقُولُ: وَاللَّهِ لَا أَزِيدُ عَلَى هَذَا وَلَا أَنْقُصُ مِنْهُ. ⑽فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: أَفْلَحَ إِنْ صَدَقَ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ⑴او حضرت طلحه بن عبد الله فرمايي⑵ چې د اهلِ نجد څخه يو سړي د رسول الله ﷺ په خدمت مبارك كې حاضو شو ⑶چې د هغه د سر وېښتان بَېر وو مونږ د هغه د آواز ګنګې خو اوريدي ليكن (د څه ليروالي په وجه) په دي نه پو هيدو چې هغه رسول الله صلي الله علي وسلم ته څه وايي، ⑷تر دي چې هغه رسول الله ﷺ ته بيخي نزدي او رسيدي ⑸نو مونږ واوريدل چې هغه د اسلام (د فرائضو) په باره كې پوښتني كوي، رسول الله ﷺ په جواب كې ورته وفرمايل⑹ په شپه او ورځ كې پنځه لمونځونه (فرض) دي، (په دي اوريدو سره) هغه سړي اوويل آيا د دې لمونځونو څخه علاوه په ما څه نور لمونځونه هم فرض دي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې نه، مګر د نفل لمونځونه كولو تاته اختيار دي، ⑺بيا رسول ﷺ وفرمايل او د رمضان دمياشتي روژي (فرض) دي هغه سړي اوويل ايا ددي روژو څخه ماسوا څه نوري روژي په ما فرض دي، رسول

[١] اخرجه البخارى كتاب الإيمان /باب الزكاة من الإسلام. ( رقم-٤٦ ) ومسلم كتاب الايمان /باب بيان الصلوات التى هى احد أركان الإسلام(رقم-٨ - (١١) وابوداود كتاب الصلاة باب فرض الصلاة(رقم-٣٩١) والنسائى كتاب الصلاة /باب كم فرضت فى اليوم والليلة(رقم-٤٥٨) واحمد فى مسنده ١٦٢/١

ﷺ ورته وفرمايل چې نه، مګر د نفل روژو وتاته اختيار دي، ⑧روايت كونكي وايي چې رسول ﷺ د دې څخه وروسته د زكوة ذكر او كې، هغه عرض وكړو آيا د دې څخه علاوه هم په ما څه صدقه فرض ده؟ رسول ﷺ ورته وفرمايل چې نه، مګر د نفل صدقي تاته اختيار دي،⑨ د دې څخه وروسته هغه سړي د ي ويلو سره لاړلو چې په الله دي مي قسم وي چې زه به نه په دې كې څه زياتي كوم او نه به په دې كې څه كمي كوم، ⑩رسول الله ﷺ وفرمايل كه دې سړي رښتيا ويلي وي نو دخلاصی لار به پيدا كې او كا ميابه شو. بخاري او مسلم

**حل اللغات:** ①نَجْدٍ: مَا ارْتَفَعَ مِنَ الْأَرْضِ: اوچتې زمكې ته وائي، ددې په مقابل كښې تهامه راځي ښكته زمكې ته وائي. ② ثَائِرُ الرَّأْسِ: أَيْ مُنْتَشِرُ شَعَرِ الرَّأْسِ: چه د سر ويښته ئې ګډ وډ وی او ګومنز پوهيږي. ③ دَوِيَّ صَوْتِهِ : أَيْ شِدَّتَهُ وَبُعْدَهُ فِي الْهَوَاءِ: ګونړ ګونړ آواز چه په مفهوم ئې څوک نه پوهيږي. ④ دَنَا: أَيْ قَرُبَ: نزدې شو. ⑤ إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ: إِلَّا أَنْ تَشْرَعَ فِي التَّطَوُّعِ: مګر كه په نفلو ئې شروع اوكړه (نو ددې پوره كول به هم واجب وی). ⑥ أَفْلَحَ: أَي فَازَ وَظَفِرَ: كامياب شو.

**د راوي مختصر تعارف:** حضرت طلحه بن عبيد الله ﷺ كنيت ابو محمد دې، دوئ په عشره مبشره كښې شامل دى. د بدر څخه علاوه باقي په ټولو غزواتو كښې شامل شوی وو. بدر كښې نبی كريم ﷺ ذوئ د يوبل ملګری سره د ابو سفيان د خبرداری دپاره ليږلې وو. د احد په ورځ ئې د نبی كريم ﷺ دفاع كوله چې په غشی باندې اولګيدو او لاس ئې شل شو.ددوئ په بدن باندې پنځه اويا د تورې زخمونه وو. نبی كريم ﷺ هم په دې ميدان كښې دوئ ته دا اعزاز وركړو چې [أَوْجَبَ طَلْحَةُ]. يعنی طلحه خپل ځان دپاره جنت واجب كړو. د جمل په واقعه كښې حضرت عائشه صديقه ﷺ سره په شپږ ديرشمه هجرى كښې د څلوروشپيتو كالو په عمر كښې شهيد شو.

**تسهيلات:**

**قوله:** جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**درجل په مصداق كښې دوه اقوال:** ① علامه طيبی ﷫، حافظ تورپشی ﷫ او دَ قاضی عياض ﷫ وغيره رائې داده

چې د حضرت ابوهريره روايت په كوم كښې تپوس كونكې اعرابی وو اودهغه په باره كښې نبی ﷺ دا فرمائيلی وو,,, **من سره أن ينظره الغ**،، اوپه دې حديث كښې سائل يوكس دې چې ضمام بن ثعلبه دې.

② د امام قرطبی ﷫، امام نووی ﷫ او شاه انور شاه كاشميری ﷫ رائې داده چې دا دواړه جدا جدا واقعات دی

**داول فریق دلائل:** دوی په خپل تائید کښې قرائن اود ځینې احادیثو اشارات او دامام مسلم طرز بیان پیش کوی.

**د دویم فریق دلائل:** دوی فرمائی دواړو احادیثو طرز بیان هم مختلف دې. د دواړو ځایونو دَ سوالاتو انداز هم مختلف دی. او د نبی کریم ﷺ د طرفه د بشارت په کلماتو کښې هم فرق دې. لهذا دې حدیث پاك کښې دا واقعه د ضمام بن ثعلبه ده. او تیر شوی حدیث پاك کښې واقعه د سعد بن احزم وه.

**قوله:** ثَائِرَ الرَّأْسِ:

**په ثائر الرأس کښې دوه احتمالات:**

① دلته مضاف محذوف دې. یعنی منتشر شعر الرأس، ګډوډ ویښته،

② دا په توګه د مبالغې فرمائیلې شوی دی چې ویښته ئې دومره ګډوډ وو لکه چې سر ئې ګډوډ وی.

**قوله:** نَسْمَعُ دَوِيَّ صَوْتِهِ:

**د دوی مفهوم:** دا دَ روی النحل پشان دې، ګنړاری ترې مراد دې. علامه خطابی رحمه الله فرمائی چې دَ دوی نه مراد داسې کلمات دی چې دهغې آواز خو آورېدې شی خو مفهوم ئې په پوهه کښې نه راځی. لکه د شاتو د مچی آواز.

**قوله:** فَإِذَا هُوَ يَسْأَلُ عَنِ الْإِسْلَامِ:

**دتعجب کولووجه:** اذامفاجاتیه: تعجب دپاره رااوړلې شوی دی چې داسې کمزوری او ګډوډ ویښتو والا او داسې بدوی کلیوال د اسلام متعلق سوال کوی، دا د تعجب باعث وو او غیر متوقع وو

**قوله:** عَنِ الْإِسْلَامِ:

**داسلام د فرائضو متعلق تپوس:** یعنی د اسلام دهغه فرائضو متعلق ئې سوال کولو کوم چې رسول منونکی او موحد باندې فرض وی، د اسلام حقیقت او تعریف باره کښې سوال نه وو. هم په دې وجه د فرائضو او ارکانو ذکر راغلې دې،

**دشهادتینو دنه ذکر کولووجه:** د شهادتینو ذکر نشته دې. دا کس چونکه د اول ځخه مسلمان وو. په دې وجه د شهادتینو د ذکر کولو ضرورت نه وو. دبخاری شریف روایت ځخه ددې تائید کیږی هلته الفاظ دی چې: [ فَأَخْبِرْنِي مَاذَا فَرَضَ اللّٰهُ عَلَيَّ مِنَ الصَّلَاةِ؟:]

**دحج په عدمِ ذکر اشکال:** په فرائضِ اسلام کښې دلته د حج ذکر نشته دې ؟

①دا ممکن دی چې دا کس د حج قابل نه وو غریب وو نو نبی کریم ﷺ ورته د حج ذکر او نه کړو.

④ دا ممکن ده چې يو راوي نسيانًا يا د اختصار په طور ددې ذکر نه وي کړې. حالانکه د بخاري په روايت دا الفاظ هم شته.

⑤ ممکن دي چې په هغه وخت کښې حج فرض نه وو ځکه چې حج په شپږمه يا اتمه يانهمه هجري کښې د مختلفو اقوالو مطابق فرض شوې وو.

**قوله:** خَمْسُ صَلَوَاتٍ فِي الْيَوْمِ وَاللَّيْلَةِ

**د وتر په عدمِ ذکرباندې اشکال:** په دې روايت کښې د وترو ذکر نشته دې، بلکه د پنځو فرائضو څخه علاوه ټولوته نوافل وئيلې شوي دي. حالانکه د وترو وجود هم شته دې، او وجوب ئې هم شته دې؟

**داشکال درې جوابونه:** ①دې ځائې د فرائضو سلسله او بيان وو، د وترو سلسله د فرائضو نه ده بلکه د واجبو ده.

② په هغه وخت کښې دوترو وجوب نه وو. د اخترونو وجوب هم نه وو.

③ وتردعشاء تابع دي نو جدا ذکر ئې اونه کړو.

**قوله:** إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ:

**په استثناء کښې دوه احتمالات:** ① که په دې جمله کښې استثناء منقطع وي، يعني الا په معنی د لکن وي نو ددې جملې مطلب دادې چې ستا په ذمه خو صرف پنځه مونځونه دي، خو که نوافل ادا کول غواړې نو ادا کولې شې.

② که په دې جمله کښې استثناء متصل وي نو مطلب به دا وي چې ستا په ذمه د صلوات خمسه څخه علاوه هيڅ يو مونځ واجب نه دې. خو که نوافل دې شروع کړل نو ددې څخه وروستو به واجب شي. اوبيا ددې مکمل کول ضروري دي.

**دنفلو په فساد سره د هغې په وجوب کښې دوه مذاهب:**

① د شوافعو وغيره حضراتو په نيزکه يوکس نفل مونځ شروع کړل اوبيا ئې هغه فاسد کړل نو په ده باندې د هغې قضاء راوړل واجب نه دي

② داحنافو په نيزد نفلو په فساد باندې قضاء واجبيږي.

**داول فريق دليل:** د دوی په نيز په حديث کښې استثناء منفصل ده او ترجمه داسې کوی چې د اوقات خمسه څخه علاوه بل فرض نشته البته نفل کولی شی او ددې څخه دا ثابتوی چې د نفلو په شروع کولو سره اتمام فرض نه دې او په ماتولو سره د دې قضاء واجب نه ده.

**داول فريق د دليل جواب:** په استثناء کښې اصل اتصال دې اود مجبوری څخه بغير داصل څخه انحراف کول صحيح نه دی په خپله حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباري کښې فرمائی

((فمن قال انه متصل تمسك بالاصل)) او استثناء من النفي مفيده د اثبات وي نو په شروع کولو سره به نفل واجبيږي او په ماتولو سره به قضاء لازميږي.

**ددويم فريق دلائل:** ① د الله تعالی دا قول: [لَاتُبْطِلُوْٓااَعْمَالَكُمْ] د دوی دليل دې. په دې کښې الله تعالی د عمل باطلولو څخه منع فرمائيلې ده. نو دا ترې معلوميږي. که يو کس مونځ فاسد کړه. ده ناجائز عمل اوکړو. او د دې ناجائز عمل کفاره دا ده چې د دې قضاء به راوړلې شي.

② داشان د صحابه کرامو په نفلي حج باندې اجماع ده چې شروع في الحج نه پس د دې اهتمام واجب دی. شوافع حضرات پخپله هم نفلي حج او نفلي عمره شروع څخه وروستو د دې مکمل کول واجب ګنړي.

**اشكال:** چې کله نص قرآني او احاديثو څخه اتمام ثابت دې نو بيا د نوافلو دې اتمام ته فرض ولې نه وئيلې کيږي؟

داشکال جواب: [لَاتُبْطِلُوْٓااَعْمَالَكُمْ] دَ خپل دلالت کښې قطعي نه دې، اګر چې په ثبوت کښې قطعي دې، نو د دې څخه فرضيت نه ثابتيږي.

**قوله:** لَاأَزِيدُ عَلَى هَذَا وَلَا أَنْقُصُ مِنْهُ:

**نوټ:** دعدم زيادت او عدم نقصان په مفهوم کښې پنځه اقوال د حديث نمبر ۱۲ په تسهيل کښې تير شوي دي.

**قوله:** أَفْلَحَ الرَّجُلُ:

**د رجل څخه مقصود:** الف لام جنس د پاره دې، مراد هر هغه کس دې کوم چې دَ ده په شان دَ عزم بالجزم پابندی اوکړی.

**د فلاح دوه قسمونه:** ① دنيوی فلاح: دا هغه د ط چې ژوند هم ملاؤ شي او د ژوند ټول اسباب هم ملاؤ شي. ② اخروی فلاح: دا هغه دې چې نجات تام حاصل شي.

**قوله:** إِنْ صَدَقَ:

**د دواړو رواياتو په الفاظو کښې اختلاف:** په د ابوهريره په سابقه روايت کښې د رجل په باره کښې دا الفاظ دي ,,من سره أن ينظر إلى رجل من أهل الجنة فلينظر إلى هذا،، او دلته د رجل د فلاح خوشخبری ده خو د ,,إن صدق،، قيد سره.

**د واقعې د تعدد په صورت کښې عدم اعتراض:** کوم عالمان چې د واقعه د تعدد قائل دی نو دهغوی د پاره خو څه اشکال نشته. ځکه که په الفاظو کښې اختلاف دې نو واقعات خو دوه دی يو نه ده. لکه څنګه د علامه قرطبي وغيره نظر دې.

**د واقعې د وحدت په صورت کښې اشكال:** خودچا په نيزچې د ابوهريره رضي الله عنه د روايت او طلحه بن عبدالله د روايت واقعه يوه وی نو په هغوی باندې اعتراض راځي. که واقعه يوه وی،

يو سړي وي، نو بيا سوال دا دي چې رومبی حديث کښې جزم سره او دې حديث کښې شك سره حکم ولې راغلې دې؟

**د اشکال دوه جوابونه:** ①په جزم او يقين سره حکم په هغه وخت کښې واورولې شو کله چې دا کس موجود نه وو، او کله چې موجود وو شك کښې ئې واچولو چې هسې نه دا کس په غرور، تکبر او سستئ کښې اخته نشي.

② دخلقود احوالو تغير سره به د وحی په ذريعه نوې نوې حکم راتلو، کله د يقين حالت وو، کله د شك حالت.

## [۱۷] وفد عبد القيس ته د امور اربعو حکم او د امور اربعو ممانعت

(۱) [۱۵] ۱ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: «إِنَّ وَفْدَ عَبْدِ الْقَيْسِ لَمَّا أَتَوُا النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۲ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "مَنِ الْقَوْمُ؟ أَوْ: مَنِ الْوَفْدُ؟" ۳ قَالُوا: رَبِيعَةُ. قَالَ: "مَرْحَبًا بِالْقَوْمِ - أَوْ: بِالْوَفْدِ - غَيْرَ خَزَايَا وَلَا نَدَامَى. ۴ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّا لَا نَسْتَطِيعُ أَنْ نَأْتِيَكَ إِلَّا فِي الشَّهْرِ الْحَرَامِ، وَبَيْنَنَا وَبَيْنَكَ هَذَا الْحَيُّ مِنْ كُفَّارِ مُضَرَ، ۵ فَمُرْنَا بِأَمْرٍ فَصْلٍ نُخْبِرْهُ مَنْ وَرَاءَنَا وَنَدْخُلْ بِهِ الْجَنَّةَ، ۶ وَسَأَلُوهُ عَنِ الْأَشْرِبَةِ فَأَمَرَهُمْ بِأَرْبَعٍ وَنَهَاهُمْ عَنْ أَرْبَعٍ،

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابن عباس ﷺ بيان کوي چې کوم وخت وفد عبدالقيس د رسول الله ﷺ په خدمت کې مديني ته ورسيدي ۲ نو رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه دا کوم خلق دي يا داسې پوښتنه يې وکړه چې دا د کومي قبيلي وفد دي؟ (روايت کونکي ته شك شو چې حضور ﷺ دلته دقوم لفظ وفرمايلو يا د وفد) ۳ خلقو جواب ورکړو چې د قبيله ربيعه خلق دي رسول الله ﷺ وروسته وفرمايل په خير راغلې دې وی دوی ته، او (چې تاسو خلق په خوښي سره مسلمانان کيدو سره راغلي يئ ځکه) نه په دنيا کې ستاسو د پاره رسوايي شته او نه د آخرت شرمندګي، ۴ وفدوالاؤ عرض وکړو يا رسول الله ﷺ زمونږ او ستاسو په مينځ کې د کفار مضر (مشهوره جنګ جو) قبيله پرته ده ځکه مونږ ستا په خدمت کې زر زر نه شو حاضريدي، يوازي په هغه مياشتو کې راتلې شو چې په هغه کې جنګ کول حرام دي، ۵ نو ته ﷺ د حق او باطل په مينځ کې فرق کونکي داسې حکمونه مونږ ته را که چې په هغه مونږ خپله هم عمل وکو او خلق هم د هغه څخه خبر کو، چې هغه مي ترشاه (په وطن او قوم کې) پريښې دي او په هغه باندې عمل کولو سره مونږ په جنت کې داخل شو ۶ او د دې سره هغوئ د هغه لوښو په بابت کې هم پوښتنه وکړه (چې په هغه کې نبيذ جوړيږي)، چې کوم په استعمال کې راوستي شو او کم نه شو را

[۱] اخرجه البخاری الإيمان باب أداء الخمس من الإيمان. (۵۳) ومسلم كتاب الايمان/باب الأمر بالإيمان بالله ورسوله، وشرائع الدين، والدعاء إليه(رقم-۲٤ - (۱۷)

وستي، رسول الله ﷺ هغوئ ته د څلورو خبرو حکم ورکړو او دڅلورو خبرو څخه یې منعه کړل،

**حل اللغات:** ① وَفْدَ: د وَافِدِ جمع ده، أی رَهْطٌ كِرَامٌ: د عزت مندو خلقو یو جماعت، ② أَتَوْا: أي حَضَرُوْا: چه راغلل، حاضرشو ③ مَرْحَبًا: مرحب مصدر میمی دي بمعنی وسعت. [أي أصاب القوم رحبا وسعة] دا لفظ هم ددې فعل مخذوف په وجه منصوب دې. [رحب یرحب رحبا ومرحبا] ددې معنی وسعت او فراختیا ده. ④ غَيْرَ خَزَايَا: د خزیان جمع ده.او خزی د رسوائی او ذلت په معنی کښې ده.یعنی ستاسو د پاره رسوائی نشته (په دنیا کې) ⑤ لَا نَدَامَى: د ندمان جمع ده.او ددې معنی نادم او پښیمانه ده.یعنی نشته شرمندګی (په آخرت کښې) ⑥ لَا نَسْتَطِيعُ: وس او طاقت نه لرو مونږ. ⑦ الْحَيَّ: حیّ په اصل کښې د قبیلې منزل ته وائی، خو مراد ترې قبیله ده، ⑧ مُضَرَ: د قبیلې نوم دې.

[۱] أَمَرَهُمْ بِالإِيمَانِ بِاللَّهِ وَحْدَهُ، [۲] قَالَ: (أَتَدْرُونَ مَا الإِيمَانُ بِاللَّهِ وَحْدَهُ؟) قَالُوا: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. [۳] قَالَ (شَهَادَةُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، وَإِقَامِ الصَّلَاةِ، وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ، وَصِيَامِ رَمَضَانَ، [۴] وَأَنْ تُعْطُوا مِنَ الْمَغْنَمِ الْخُمُسَ). [۵] وَنَهَاهُمْ عَنْ أَرْبَعٍ: عَنِ الْحَنْتَمِ، وَالدُّبَّاءِ، وَالنَّقِيرِ، وَالْمُزَفَّتِ، [۶] وَقَالَ: (احْفَظُوهُنَّ، وَأَخْبِرُوا بِهِنَّ مَنْ وَرَاءَكُمْ)». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ، وَلَفْظُهُ لِلْبُخَارِيِّ.

[۱] اول د الله تعالی جَلَّ جَلَالُهُ په یو والي یې د ایمان راوړلو حکم ورکړو [۲] او وې فرمایل پوهیږي چې د الله تعالی په وحدانیت د ایمان راوړلو څه مطلب دي؟ هغوئ عرض وکړو الله او د هغه رسول ښه پوهیږي، [۳] رسول الله ﷺ ورته وفرمایل (د الله په وحدانیت باندې ایمان راوړل) د دې حقیقت ګواهي کول دي چې د الله څخه ماسوا بل د عبادت لایق نشته او محمد ﷺ د هغه رسول دي، دویم دا چې په پابندئ سره مونځ کول، دریم دا چې زکوٰة ورکول، او څلورم د رمضان د میاشتي روژې نیول، د دې [۴] څلورو خبرو څخه علاوه وروسته رسول الله ﷺ د مال غنیمت څخه د پنځمې حصې ورکولو حکم هم ورته وفرمایلې. [۵] او د دې څلورو (لوښو) د استعمال څخه یې منعه کړل، (اول) د شرابو د منګو (چاټو) څخه، (دویم) د کدو جوړشوي لوښو څخه (دریم) د وُنو د تنو څخه د جوړ شوو لوښو څخه، (څلورم) د روغنی کټو څخه. [۶] او وې فرمایل دا خبرې په ښه شان یادې ساتي او کوم مسلمانان چې مو وروسته په وطن کې پریښي دي هغه هم د دې خبرو څخه خبر کي. ([۱]) بخاري ومسلم

[۱] دا څلور لوښوي په مختلفو معنئ ؤ سره شارحینو تعبیر کړي دي او دا څلور لوښوي چې منع یې په دې حدیث کښې راغلي ده، دا یو مخصوصه قسم لوښي وو چې عربو به د شرابو جوړلو او ایښولو د پاره استعمالول. چونکه شراب حرام شوي وه ځکه یې ددې لوښو د استعمال څخه هم منع وفرمایله، خو وروسته د شرابو حرمت د مسلمانانو په زړو کښې محکم شو .......

**حل اللغات:** ⑨ أَتَدْرُونَ: أي: أَتَعْلَمُونَ: آيا تاسو پوهيږئ؟ ⑩ أَنْ تُعْطُوا: چه ورکړئ تاسو، ⑪ الْحَنْتَمِ: د شرابو چاټئ، منګی (کوم چه به د ختې يا څرمن نه جوړې شوې وې)، ⑫ الدُّبَّاءِ: وِعَاءُ الْقَرْعِ: د کدو لوښې، ⑬ النَّقِيرِ: جِذْعٌ يُنْقَرُ وَسَطُهُ: د ونې تنه به د منځ نه اوتراشلې شوه هغې لوښې ته به نې نقير وئيلې ⑭ الْمُزَفَّتِ: الْمَطْلِيُّ بِالزِّفْتِ: لوښې چه تارکول به ورکړې شوی وو.

**د راوي مختصر تعارف:** حضرت عبدالله بن عباس ﷺ د نبی کريم ﷺ د تره خوې دې. د هجرت څخه درې کاله مخکښې مکه مکرمه کښې پيدا شوې وو، د نبی کريم ﷺ د انتقال په وخت د دوئ عمر ديارلس کاله وو. نبی کريم د دوئ د پاره د فقاهت، حکمت او دَ تفسير قرآن دعا غوښتلې وه. په دې وجه د دوئ په خبرو کښې فصاحت وو. علم کښې أعلم الناس وو. او په شکل کښې أجمل الناس وو. قد ئې اوږد وو. کله چې به پيدل تلل نو داسې به معلوميدل چې په سورلۍ باندې سوارهٔ دی. دوه ځل ئې حضرت جبريل عليه السلام ليدلې وو.

حضرت عمر فاروق ﷺ به په خپل دور خلافت کښې دوئ نه په عمررسيده صحابهٔ کرامو باندې فوقيت ورکولو او د دوئ څخه به ئې مشوره اخيسته. آخرى عمر کښې نابينا شوی وو. د يو اويا کالو په عمر کښې په اته شپيتمه هجرى کښې وفات شو. طائف کښې دَ جامع مسجد ابن عباس په مکتبه ابن عباس کښې مدفون دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ وَفْدَ عَبْدِ الْقَيْسِ:

**د وفد تعريف:** وفد د وافد جمع ده، لکه رکب د راکب جمع ده، وفد د هغه جرګې نوم دې کومه چې د يو قوم د طرفه په اشرافو مشتمله يو جماعت وی او يو امير او حاکم طرفته د خپل حاجت د پاره لاړ شی

**د عبدالقيس پيژندګلو:** عبدالقيس د د دوئ د مشر نيکه نوم وو يا د وفد د مشر نوم وو، دې وفد کښې څلويښت کسان شامل وو او د دوئ تعلق د قبيلهٔ بنی نزار سره وو. او دا د قبيلهٔ مضر مقابل وو.

**د وفد د حاضرۍ په تاريخ کښې دوه اقوال:** ① د حديث د اکثرو علماء کرامو او شارحينو مطابق دا وفد په اتمه هجرى کښې راغلې وو او دا خلق په خپله رضا او رغبت سره مسلمانان شوی وو. امام تاريخ علامه واقدى رحمه الله او قاضى عياض رحمه الله هم د دې قول تائيد کوی.

---

......او د دې لوښو په اړه هم دا احتمال نشو پاته چې دا لوښې خاص د شرابو د پاره جوړيږي نو د دې لوښو استعمال يې مباح وګرځولي، لهٰذا اوس دا حکم منسوخه بلل کيږي.

④ امام مغازی ابن اسحاق رحمه الله او ابن کثیر رحمه الله وغیره د اهل تاریخ په نزد دا وفد په نهمه هجری کښې راغلې وو. ابن اثیر او تاریخ خمیس والا وائی چې دا وفد په لسمه هجری راغلې وو.

**په قولونو کښې تطبيق:** د تحقیق څخه وروسته دا خبره راجحه معلومیږی چې دا وفد دوه ځله د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شوې وو. يو ځل په پنځمه هجری کښې او په دويم ځل په نهمه هجری کښې حاضر شوې وو.

**د وفد عبدالقيس د راتلو سبب:** د دې خلقو ايمان راوړل څنګه ممکن شو دا د يوې واقعې په نتيجه کښې اوشو هغه واقعه دا ده.

**د منقذ بن حيان ايمان راوړل:** د بحرين خلق تاجران وو. دوئ کښې يو تاجر منقذ بن حيان د تجارت په غرض مدينې منورې ته راغلې وو. نبی کریم ﷺ سره ددوئ ملاقات اوشو نو نبی کریم ﷺ ددوئ څخه د بحرین د شرفاؤ حالات ډير په شوق معلوم کړل. او د يو صاحب منذر بن عائذ حالات ئې په خصوصيت سره معلوم کړل. نبی کریم منقذ بن حیان ته د اسلام دعوت ورکړو، هغه مسلمان شو او د اسلام ضروری څيزونو زده کولو څخه ورستو واپس وطن ته لاړو. نبی کریم ﷺ دوئ ته د بحرین د سردارانو په نا مه خطوط ورکړل. منقذ بن حيان دې خطونو سره بحرين ته اورسيدو او منذر بن عائذ باشج عبدالقيس ته ئې حواله کړل.

**د اشج بن عبدالقيس اسلام قبلول:** منقذ بن حيان دَ اشج عبدالقيس زوم وو. ددوئ بی بی د اشج لور وه. کله چې به منقذ بن حيان عبادت کولو نو هغې به دې ليدلو او په دې به حيرانيده. هغې ددې ذکر خپل پلار اشج ته اوکړو چې زما خاوند کله راسې د مدينې منورې څخه راغلې دې نو هغه عجيبه عيجبه عبادتونه کوی. اشج چې کله د نبی کریم خط اولوستو او د لور څخه داسلام باره کښې ئی واوريدل نو مسلمان شو. بيا هغه دا خط په ډله کښې اولوستو نو دې سره خلق اسلام کښې داخل شو. او بيا د نبی کریم په خدمت کښې حاضر شو. دې ځل دې وفد کښې ديارلس کسان وو.

**داشج ذکاوت:** مدينې ته په رسيدو ټولو زر زر نبی کریم ﷺ ته سلام اوکړو. د لاس څخه ئی بوسې واخستې خواشج اول د ملګرو سامان محفوظ کړو، بيا ئې اوښان اوتړل، بيا ئې نوې کپړې واغوستې او ډير په وقار سره د نبی کریم په خدمت کښې حاضر شو. د لاس مبارك څخه ئې بوسه واخسته. شکل و شباهت ئې ښه نه وو، کله چې ورته نبی کریم تعجب سره اوکتل نو وې فرمائيل چې يارسول الله ﷺ چې د انسان دا څرمن خو د مشکيزې په شان ده، اصل انسان خو دا نه دې. حقيقت کښې ,,الإنسان بأصغريه،، يعنی انسان د دوؤ وړوکو اندامونو په وجه سره انسان دې. او هغه زړه او ژبه دی.

**د اشج د دوؤ خصلتونو ستائنه:** نبی کریم ﷺ أشج ته اوفرمائیل چې په تا کښې دوه خصلتونه دی کوم چې الله اودهغه رسول ﷺ ته ډیر خوښ دی. هوښيارتوب او صبر. اشج تپوس اوکړو چې يارسول الله ﷺ دا خصلتونه پيدائشی دی که ما اختيار کړی دی. نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې په تا کښې دا پيدائشی طور دی. نو په دې هغه ډير خوشحاله شو او بيا ئې اووئيل چې [الحمدلله الذي جبلني على خليقتين يحبهما الله ورسوله].

**د دربار رسالت څخه داشج لقب ملاویدل:** چونکه د منذر بن عائذ په مخ باندې د زخم نشان وو، نو نبی کريم هغه ته د اشج لقب ورکړو. نووی ﷫ فرمائی چې منذر بن عائذ ته د اشج لقب نبی کريم ﷺ ورکړې وو، بيا هغه په ا شج عبدالقيس مشهور شو

**قوله:** مَنِ الْقَوْمُ؟ أَوْ: مَنِ الْوَفْدُ؟:

**دحديث په نقل کولوکښې د صحابؤ احتياط:** دې کلام کښې راوی ته شك دې چې نبی کريم من القوم فرمائيلی وو او که من الوفد. دا د صحابه کرامو ډير زيات احتياط او دهغوئ اعلی ذهانت، امانت او دنبی کريم ﷺ سره مينه وه چې تلفظ کښې به ئې تغير نه خوښولو. لفظ أونه پس قال وئيلې کيږی.

**د رسول الله ﷺ د تپوس کولودوه احتمالات:** ① د نبی کريم ﷺ دهغه خلقو څخه دا سوال د طلب استيناس په غرض وو. دا د نبی کريم ﷺ عام عادت وو کوم کښې چې سراسر محبت وو. ② د نبی کريم ﷺ دهغه خلقو څخه دا سوال د تعارف دپاره وو

**قوله:** غَيْرَ خَزَايَا وَلَا نَدَامَى:

**د ندامی لغوی تحقيق:** په دې حديث کښې ندامی د نادم په معنی کښې استعمال شوې ده. ځينې ندامی ته د نادم جمع وئيلې ده خو دا قيد ئې لګولې دې چې دا خلاف القياس دی. ځکه چې د نادم جمع د قياس مطابق نادمين ده. بهر حال د خزايا هم وزن جوړولو دپاره ئې ندامی راوړې دې. ګنی نادمين به ئې راوړې وې،

دَ هم وزن خيال په عربی کښې ساتلې شی. لکه عشايا دپاره غدايا راوړلې کيږی حالانکه د غداة جمع غدوات ده، غدايا نه ده. همداشان د لادريت د رعايت دپاره لادريت ولا تليت راوړلې شوې دې. حالانکه دا لا تلوت دې خو د ګواند خيال ساتلې کيږی.

**د غيرندامی څخه مقصود:** نبی کريم ﷺ دې وفد ته دا وئيل غوښتل چې ښۀ ده چې تاسو سره زمونږ جنګ نه دې شوې، د جنګ څخه مو وړاندې اسلام قبول کړو، نو د جنګ د رسوائی څخه بچ شوئی. دارنګ د جنګ نه کيدو په صورت کښې پښيمانی اوچتول هم رانغلل. ګنی که جنګ شوې وې نو خلق به مړۀ شوی وو يا بۀ ګرفتار شوی وو، نو پښيمانتيا به وه چې کاش مونږ مسلمانانو سره جنګ نه وې کړې.

**قوله:** إِلَّا فِي الشَّهْرِ الْحَرَامِ:

**د الف لام په نوعیت کښې دوه اقوال:** ① دلته الشهر کښې الف لام جنس دپاره دې، ددې اطلاق په قلیل او کثیر باندې کیږي. نو اشهر الحرام څخه د د تقدس او احترام څلور میاشتې مراد دی ددې تائید بخاری او مسلم څخه کیږي، هلته اشهر الحرام د جمع لفظ دې.
② دبعضې شارحینو په نیز دلته الف لام د عهد دپاره دی او معهود په کښې د رجب میاشت ده. دوی فرمائی چې د مضر قبیلې به د رجب ډیر زیات احترام کولو تر دې چې د رجب نوم ئې رجب مضر کیخودلې ددې رائې تائید د بیهقی او ابوبکره روایت څخه هم کیږي چې الشهر الحرام څخه مراد رجب مضر دې،
**اشکال:** په نهمه هجری کښې جزیره عرب آزاد شوې وو، بیا دې خلقو د مضر د جنګ او د لارې خبره ولې راپورته کړه؟
**داشکال جواب:** وفد یو ځل په شپږمه هجری کښې راغلې وو، دا دهغه وخت خبره ده. په هغه وخت کښې قبیلهٔ مضر نه وو مسلمانان شوی.

**قوله:** فَمُرْنَا بِأَمْرٍ فَصْلٍ:

**د فصل په مطلب کښې دوه اقوال:** ① دفصل یو مطلب خو دا کیدیشی چې دا دفاصل په معنی کښې دې کوم چې د حق او باطل په مینځ کښې فیصله کن امر وی
② فصل د مفعول ومفصل په معنی کښې دې چې مونږ ته ښهٔ په تفصیل سره بیان کړه چې مونږ بل چاته محتاج پاتې نه شو.

**قوله:** نُخْبِرُهُ مَنْ وَرَاءَنَا:

**د تبلیغ اهمیت:** یعنی مونږ به دا واضح احکامات خپل قوم ته وړاندې کړو. ددې څخه د اشاعت د دین اهمیت واضح کیږي. او د تبلیغ د ذمه دارئ احساس هم معلومیږي. خو اول به ئې په خپله عمل کوی او بیا د تللو په اصولو باندې عمل کول پکار دی.

**قوله:** وَنَدْخُلْ بِهِ الْجَنَّةَ:

**د نخبر اوندخل په ترکیب کښې احتمالات:** ① نخبر وندخل دواړه فعل مجزوم هم دی ځکه چه دا مرنا د أمر په جواب کښې راغلی دی،
② دواړه د جملې مستانفې په صورت کښې مرفوع هم دی.
**د دخول جنت څخه مراد:** دخول جنت څخه مراد دادې چې مونږ دالله تعالی د رضا خاص مقام غواړو کوم چې جنت دې. ځکه چې جنت دالله تعالی د رضا د مجموعې نوم دې.
په دې وضاحت سره دا اعتراض نه راځی چې عمل خو د دخول جنت مؤثره ذریعه نه ده، مؤثر علت خو دالله تعالی رحمت دې، عمل خو صرف وسیله ده، بیا هم د نفس جنت سوال

کول هم جائز دی ځکه چې هغه هم مامور به حکم دې خو د اعلی خلوص خبره بیله ده..

**قوله: فَأَمَرَهُمْ بِأَرْبَعٍ:**

**په اجمال اوتفصیل کښې د عدمِ مطابقت اشکال:** په حدیث کښې په اجمال کښې د څلورو څیزونو اوکړې شوه چې [فَأَمَرَهُمْ بِأَرْبَعٍ] خو په تفصیل کښې د پنځو څیزونو ذکر دې. یعنی د ایمان، مونځ، روژې، زکوة، إعطاء خمس. دا پنځه څیزونه دی او که تفصیل واجمال یو دې نو بیا صرف د ایمان ذکر اوشو او هم ددې د فروعاتو ذکر راغلو، او د څلورو څیزونو وعده پورا نه شوه؟

**داشکال څلور جوابونه:** ① شهادت لره امر اول شمیرکړئ، مونځ، زکوة، روژه دا څلور شو. او د خمس د جواز چې کوم ذکر راغلې دې د هغې عطف امرهم باندې دې. عبارت داشان دې [أمرهم بأربع وأمرهم أن تعطوا من المغنم الخمس] نو د خمس ذکر په شمیر کښې د ننه نشته دې. بلکه د وفد په ماموراتو کښې دې چې دا اوکړئ، او خمس ادا کړئ. دا دوه جوابونه تولو ځخه بهترین دی او قابل اعتماد دی.

② نبی کریم ﷺ دوئ سره د څلورو څیزونو وعده فرمائیلې وه او [وَإِقَامُ الصَّلَاةِ، وَإِيتَاءُ الزَّكَاةِ، وَصَوْمُ رَمَضَانَ، وَتُعْطُوا مِنَ الْخُمُسَ] پورې ئې څلور څیزونه بیان اوفرمائیل. پاتې شو شهادتین نو هغه د توطیه او تمهید او تبرك په طور وو ځکه چې داخلق د اول ځخه مسلمانان وو، ددوئ دپاره د شهادتینو ذکر صرف د تبرك په طور کیدې شو، ددې تائید د بخاری روایت سره کیږی، چرته چې د شهادتینو ذکر نشته دې، دبخاری الفاظ دا دی.,,

عن ابن عباس فقال عليه السلام: أربع و أربع: وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ، وَاتُوا الزَّكَاةَ، وَصَوْمُ رَمَضَانَ، وَأَعْطُوا الْخُمُسَ مَا غَنِمْتُمْ الخ ،،

ددې روایت نه په واضحه توګه معلومیږی چې د شهادتین ذکر د څلورو څیزونو په وعده کښې نه دې.کوم ځائې کښې چې ذکر شوې دې هلته د تبرك، توطیه وتمهید په طور شوې دې.

③ د شهادتینو ځخه تر خمس پورې څلور څیزونه نبی کریم ﷺ ذکر اوفرمائیل او د مال غنیمت او خمس ذکر ئې د اضافې په طور ددې وفد مناسبت سره ددوئ دپاره اوکړو چې دا خلق قبیلۀ مضر سره د جنګ په میدان کښې وو، هغوئ ته ددې حکم ضرورت وو.

④ نبی کریم ﷺ د څلورو څیزونوشمیر کړې وو، خو یو راوی اختصار اوکړو تول ئې پرینبودی دی او د ایمان دَ اجمال وتفصیل ذکر ئې او کړو. دا عجیبه جواب دې.

**په حديث کښې د حج د عدم ذکر وجه:**

دې حديث پاك کښې دحج ذکر نشته دې ځکه چې حج په نهمه حجرئ کښې فرض شوې وو. او وفد عبدالقيس يو ځل د نهمې هجرئ څخه وړاندې راغلې وو.

**قوله:** وَنَهَاهُمْ عَنْ أَرْبَعٍ:

**د نبی علیه السلام د جواب مقصود:** او د جواب څخه معلومیږی چې نبی کریم ﷺ ګویا اوفرمائیل چې تاسو دمشروب باره کښې تپوس کوئی ځه خو ددې مشروباتو لوښی هم جائز نه ګڼړم کومو کښې چې دشرابو اينبودلو اوڅکلو عمل شوې وو. ځکه چې دا لوښی مذکرات دی، ددې څخه منع کول هم تاکيدی حکم دې چې د شرابو څخه مکمل منع او پرهيز اوشی. هرکله چې ددې نفرت د صحابه کرامو په زړ ونو کښې کيناستو نو بيا د لوښو د اينبودلو اجازت هم ملاؤ شو. بهرحال اشربه بحذف مضاف ده، [أي عن ظروف الأشربة] ځکه چې دا خلق مسلمانان وو، د شرابو د حرمت د اول څخه قائل وو.

**دڅلور قسمه لوښو څخه د منع کولو علت:** نبی کريم ﷺ هغوئ د څلور قسمه داسې لوښو څخه منع کړل کومو کښې چې هغوئ شراب جوړول. دهغې مسامات به بند وو. او هغې کښې به ډير زر شراب جوړيدل. او زر به سکر پرې راتللو نو په شروع کښې په دې کښې دنبيذو جوړلو څخه هم ممانعت وو چې هسې نه دوباره شراب جوړول شروع شی، دا ټول څلور لوښی وو.

**قوله:** الْحَنْتَمِ:

**د حنتم په تفسير کښې شپږ اقوال:**

امام نووی رحمه الله ددې په تفسير کښې شپږ اقوال نقل کړی دی:

① د ټولو نه صحيح او قوی قول دا دې چه شين رنګ چاټئ ته وئيلې شی.دا قول په صحيح مسلم کښې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه منقول دې.هم دا د حضرت عبدالله بن مغفل رضي الله عنه قول دې.اکثرو عالمانو، ډيرو لغوی حضراتو، او محدثينو او فقهاء هم دا اختيار کړې دې.([1])

② دويم قول دا دې چه ،،حنتم،، هرقسمه چاټئ ته وئيلې شی.دا د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما، د سعيد بن جبير، او ابو سلمه رحمهماالله نه منقول دې.([2])

---

[1]) شرح نووی (١\٣٤) کتاب الإيمان باب الأمر بالإيمان بالله تعالى ورسوله ﷺ_

[2]) المصدرالسابق)_

③ دريم قول دا دي.چه دا مخصوص قسم چاتي: وي.چه دا به دمصر نه راوړلي کيدي.دا د حضرت انس رضی الله عنه نه نقل دی.ابن ابی ليلی هم د ،،حنتم،، يو تفسير هم دا بيان کړي دي.البته دوی د سور رنګ قيد لګولي دي.(١)

④ څلورم قول دا دي.چه دا د سور رنګ خاص چاتي: دی.چه ددې خوله په يو اړخ کښي وی.په دې کښي به د مصر نه شراب درآمد (راغوښتلی) کولي شو.دا قول د حضرت عائشه رضی الله عنها نه منقول دي.(٢)

⑤ د ابن ابی ليلی رحمه الله نه يوتفسير هم دا منقول دي.چه هغه چاتي: چه د هغې خولې په ډډه کښي وي.او په دې کښي به طائف نه شراب درآمد کولی شو.بعضو خلقو به په دې کښي نبيذ تيارول چه په دې به شرابو سره مشابهت کيدو. (٣)

⑥ شپږم قول دا دي.چه دا خاص قسم چاتي: وي.چه دا به خاوره، ويخته، او وينې ملاوولو سره تيارولي شوې.دا د عطاء رحمه الله نه منقول دي.(٤)

**قوله: وَالدُّبَّاءِ:**

***دبا لغوی معنی:*** کدو چه به کله اوچ شو.نو ددې د مينځ نه به ئې زړی (او کچره) اوښکله.او بعضو وختونو کښې به ئې د کچه نه زړی اوښکل.او دا به ئې اوچول.او په دې کښې به ئې نبيذ تيارول. (٥)

**قوله: وَالنَّقِيرِ:**

**د نقير لغوی وضاحت:**

دا د ،منقور،، په معنی کښې دې.د کجورې بيخ (تنه) به ئې کنستله.او لوخې به ئې جوړولو. هغې ته ،،نقير،، وائی.(١)بعضې حضرات وائی.چه مطلقاً لرګې يا د ونې تنه به ئې کنستله.او لوخې به ئې جوړولو.هغې ته ،،نقير،، وائی.(٢)

**قوله: المُزَفَّتِ:**

**دمزفت لغوی تحقيق**:داهغه لوښې وو کوم باندې چې به خلقو تور تارکول لګول. يعنی روغن زفت يا روغن قار کوم چې په کشتو باندې لګولې کيږی او دجاهلت په زمانه کښې

---

١) المصدرالسابق)_
٢) المصدرالسابق)_
٣) المصدرالسابق)_
٤) المصدرالسابق)_
٥) شرح نووی (٣٤/١)-
١) أعلام الحديث (١٨٦/١)_

---

٢) شرح نووی (٣٤/١)_

به د شرابو په دې لوښو باندې لګولې کيدل ځکه چې ددې مسامات بند شي. دا هم روغني لوښي دي.

**د مذکوره لوښو په استعمال کښې دوه مذاهب:**

① احناف فرمائي چې په شروع کښې دشرابو ددې لوښو هم حرمت وو. بيا اجازت ملاؤ شو.
② دَ امام مالک رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله په نيز دَ دغه لوښو استعمال اوس هم ناجائز دي.

**داول فريق دليل:** دوى دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما يو قول او فتوىٰ اخلي چه هغوى منع کړې ده.

**داول فريق د دليل جواب:** دَ صحيح احاديثو نه په واضحه توګه دامعلوميږي چه دا ممانعت روستو ختم کړې شوې وو. لهذا دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په قول کښې به تاويل کولې شي چه کيدې شي هغوى ته دَ نسخ علم نه وى شوې.

**د دويم فريق دليل:** ددوى مستدل دا حديث دې «وَنَهَيْتُكُمْ عَنِ النَّبِيذِ إِلَّا فِي سِقَاءٍ، فَاشْرَبُوا فِي الْأَسْقِيَةِ كُلِّهَا، وَلَا تَشْرَبُوا مُسْكِرًا» (١)

**[١٨] د صحابو د نبى عليه السلام سره په څو خبرو بيعت**

١٨ ـ (٢) [١٢] ①وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ: ② قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَحَوْلَهُ عِصَابَةٌ مِنْ أَصْحَابِهِ: (③«بَايِعُونِي عَلَى أَنْ لَا تُشْرِكُوا بِاللَّهِ شَيْئًا، وَلَا تَسْرِقُوا، وَلَا تَزْنُوا، ④وَلَا تَقْتُلُوا أَوْلَادَكُمْ، وَلَا تَأْتُوا بِبُهْتَانٍ تَفْتَرُونَهُ بَيْنَ أَيْدِيكُمْ وَأَرْجُلِكُمْ، ⑤وَلَا تَعْصُوا فِي مَعْرُوفٍ. فَمَنْ وَفَى مِنْكُمْ فَأَجْرُهُ عَلَى اللَّهِ، ⑥وَمَنْ أَصَابَ مِنْ ذَلِكَ شَيْئًا فَعُوقِبَ بِهِ فِي الدُّنْيَا، فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَهُ، ⑦وَمَنْ أَصَابَ مِنْ ذَلِكَ شَيْئًا، ثُمَّ سَتَرَهُ اللَّهُ عَلَيْهِ فِي الدُّنْيَا ⑧فَهُوَ إِلَى اللَّهِ، إِنْ شَاءَ عَفَا عَنْهُ وَإِنْ شَاءَ عَاقَبَهُ») ⑨فَبَايَعْنَاهُ عَلَى ذَلِكَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①او حضرت عباده بن صامت رضي الله عنه وايي ②يوه ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم د صحابه رضي الله عنهم جماعت ته چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم ګيرچاپيره ناست وو ③(په مخاطب کولو سره) وفرمايل چې زما سره په دې خبرو باندې بيعت (عهد او اقرار) وکړئ چې د الله تعالى جل جلاله سره به څوك نه شريکوئ، غلا به نه کوئ، زنا به نه کوئ، (د غريبئ د ويرې څخه به) ④خپل ماشومان نه قتلوئ، قصداً به په چا بهتان نه وايئ ⑤او د شريعت مطابق چې

---

(١) اخرجه مسلم في كتاب الجنائز/باب استئذان النبى صلى الله عليه وسلم ربه عز وجل فى زيارة قبر أمه (رقم) ١٠٦ - (٩٧٧) وابوداود فى السنن كتاب الأشربة/باب فى الأوعية(رقم-٣٦٩٨) والنسائى كتاب الجنائز/زيارة القبور(رقم-٢٠٣٢) واحمد فى المسند ١/١٤٥

(٢) اخرجه البخارى الإيمان باب علامة الإيمان حب الأنصار. (رقم: ١٨) ومسلم فى كتاب الحدود باب الحدود كفارات لأهلها(رقم-٤١ - (١٧٠٩) والنسائى كتاب البيعة/جزاء من أمر بمعصية فأطاع (رقم-٤٢٠٥) واحمد فى مسنده ٥/٣١٤.

تاسو نه کوم احکام درکړم د هغوئ نافرماني به نه کوئ، بس په تاسو کې چې کوم سړي دا عهد واقرار پوره کې د هغه اجر د الله په ذمه دي (چې په آخرت کې به پې په خپلو انعاماتو سره ونازوي) ⑥او کوم سړي چې (ماسوا د شرك څخه) په څه ګناه کې اخته شي او بیا په دنیا کې هغه ته د هغې ګناه سزا هم ورکول شي (لکه حد وغیره جاري شي) نو دا سزا به د هغه (ګناه) کفاره شي ⑦او که الله تعالی په هغه کې د څه شي د ارتکاب کونکي دګناه پرده پوشي وفرمایله (او په دنیا کې يې هغه ته سزا ورنه کړله) ⑧نو اوس به دا د الله تعالی په مرضي منحصروي که غواړي نو هغه دخپل فضل د مخه به په آخرت کې هم ورته معافي وکړي او که غواړي نو عذاب به ورکړي، ⑨(روایت کونکي وايي چې) مونږ په دي ټولو شرطونو باندې د رسول الله ﷺ سره بیعت (لاس نیوی) اوکړي. بخاري او مسلم

**حل اللغات:** ①بَايِعُونِي: أَيْ عَاقِدُونِي وَعَاهَدُونِي: بیعت یعنی عهد او اقرار ئې راسره اوکړو. ②لَا تَسْرِقُوا: وَهُوَ أَخْذُ مَالِ الْغَيْرِ مُحْرَزًا بِخُفْيَةٍ: د بل چا محفوظ مال په پټه اخستلو ته سرقه (غلا) وائی، سرقه یعنی غلا مه کوئ. ③بِبُهْتَانٍ: وَهُوَ الْكَذِبُ الَّذِي يَبْهَتُ سَامِعَهُ: چا باندې داسې دروغ تړل چه اوریدونکې حیران پاتې شي هغې ته بهتان وائی. ④تَفْتَرُونَهُ: أَيْ تَخْتَلِقُونَهُ: چه تاسو ئې دخانه جوړ کړئ. ⑤بَيْنَ أَيْدِيكُمْ وَأَرْجُلِكُمْ: أَيْ مِنْ عِنْدِ أَنْفُسِكُمْ: یعنی دخپل خانه پرې دروغ جوړ کړئ. ⑥مَعْرُوفٍ: مَا عُرِفَ فِي الشَّرْعِ: څه چه په شریعت کښې خودلی شوی وی چې دې کولو کښې ثواب دې یا په دې کښې ګناه ده هغې ته معروف وائی. ⑦وَفَى: پوره ئې کړی، عمل پرې اوکړی، ⑧فَعُوقِبَ: يَعْنِي أُقِيمَ عَلَيْهِ الْحَدُّ: سزا به ورکولې شی یعنی حد وغیره. ⑨كَفَّارَةٌ: أَيْ يُكَفِّرُ إِثْمَ ذَلِكَ: یعنی دغه ګناه به ئې معاف شی (په آخرت کښې به سزا نه ورکولې کیږی، سوا د شرك نه). ⑩سَتَرَهُ اللَّهُ: الله تعالی دغه ګناه پټه اوساتله او ده ته پرې شرعی سزا ورنکړې شوه.

**د راوي مختصر تعارف: عبادة:** چرته هم چه راځی نودَ فُعَاله عجاله په وزن به راځی. مګر دَ امام بخاری شیخ محمدبن عباده واسطی رحمه الله کښې به داسې نه وی. هلته عین مفتوح دی. دَ حضرت عباده رضي الله عنه کنیت ابوالولید انصاری دې. دې دَ نقباء نه دې. په عقبه اولی، ثانیه او ثالثه دریواړو کښې شریك دې. دغه شان بدر او نورو ټولو غزواتو کښې هم شریك شوې دې. حضرت عمر رضي الله عنه هغه دَ شام قاضی جوړکړې وو. دې په حمص کښې پاتې شوې دې بیا فلسطین ته لاړو او رمله بیت المقدس کښې ۳۴هجری کښې وفات شو. دَهغوی عمر ۷۲کاله وو.

**تسهيلات:**

**قوله: وَحَوْلَهُ عِصَابَةٌ مِنْ أَصْحَابِهِ:**

**دعصابة اطلاق:** ددې اطلاق دلسو نه ترڅلويښتو پورې کيږی.اوکله مجازاً د څلويښتو نه په زياتو باندې هم ددې اطلاق کيږی.

**د رهط اطلاق**:دنسائی شریف په یو روایت کښې دی.چه دلته د ،،عصابة،، په ځائې د ،، رهط،، لفظ هم راغلې دې.اوددې اطلاق د دریو نه واخله ترلسو پورې کیږی.

**قوله**: بَايِعُونِي عَلَى أَنْ لَا تُشْرِكُوا بِاللَّهِ شَيْئًا:

**دبیعت مفهوم**: بیعت په اصل کښې وعده او معاهده وی.چه دالله رسول یا هغه کس چه د الله د رسول تابعدار وی.دهغه پوره تابعداری اوکړې شی.

**دنبی علیه السلام په مختلفوخبرو بیعت اخستل**:د نبی ﷺ په لاس باندې په مختلفو طریقو بیعت شوې دې.

① رسول الله ﷺ په مرګ باندې هم بیعت اخستې وو.(۱) ددې مطلب هم هغه بیعت علی الجهاد دې.چه مونږ به د الله تعالی د دین اوچتولو دپاره د کافرانو سره جنګ کوو.تردې چه مونږ ته مرګ راشی.یا دالله تعالی دین غالب شی.

② د صلاة او زکاة د پابندئ دپاره هم نبی ﷺ بیعت اخستې دې.(۲)

③ د فواحشو او منکراتوپه ترك باندې ئې هم بیعت اخستې وو.(۳)

④ د هرمسلمان په خیګړه باندې(۴)

⑤ دکلمه حق په ادا کولو.او د عدم کتمان حق باندې بیعت اخستې دې. (۵)

**دمذکوره بیعت په تاریخ وقوع کښې مختلف اقوال:**

① د قاضی عیاض رحمه الله اوددوی د متبعینو رائې دا ده.چه دا بیعت العقبة د هجرت نه وړاندې په لیلة العقبه کښې واقع شوې وو.(۶)

② دحافظ ابن حجر رحمه الله رائې دا ده.چه دا بیعت د لیلة العقبه په شکل یوبل بیعت دې.کوم چه د هجرت بلکه د فتح مکه نه پس واقع شوې دې.(۷)

علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دا بیعت،بیعت دلیلة العقبه وو.

**نوټ**:حافظ بن حجر اوعلامه عینی په خپله دعوی باندې مختلف دلائل پیش کړی دی که څوک شوق لری نو کشف الباری طرف ته دې رجوع اوکړی.

---

(۱) سنن نسائی (۱۱۸۰) کتاب البیعة باب البیعة علی النصح لکل مسلم)_

(۲) سنن نسائی (۱۸۲\۱۲) کتاب البیعة باب البیعة علی فراق المشرک)_

(۳)کما فی حدیث الباب)_

(۴) سنن نسائی (۱۸۰\۱۲) کتاب البیعة باب البیعة علی النصح لکل مسلم)_

(۵)سنن نسائی (۱۸۰\۱۲) کتاب البیعة باب البیعة علی النصح لکل مسلم)_

(۶) فتح الباری(۶۶\۱۱)_

(۷) پورته حواله)_

**قوله**: وَلَا تَقْتُلُوا أَوْلَادَكُمْ: خپل بچي مه قتلوئ.

**دبچو د قتلولو قباحت وجوه**: په عربوکښې دبچو قتلولو رواج وو.هغوی به خپل بچي ژوندي ښخول. نو نبی کريم ﷺ ددې نه منع اوکړله.

① قتل فی نفسه يو لوې جرم دې.

② ماشومان بې گناه دی.

③ دويم دا چه دا ډيرشنيع فعل دې.چه ژوندې په قبرکښې دفن کولې شی.

④ په دې کښې دقتل سره دصله رحمئ کټ کول دی.

⑤ ماشومان غريبانان کمزوری وی.هغوی داسې نه وی.چه مزاحمت او مقابله اوکړی. اوخپل ځان بچ کړی.هسې هم د بې گناه قتل په هرصورت کښې ناجائزدې.که اولاد وی اوکه غيراولادوی.([1])

**قوله**: وَلَا تَأْتُوا بِبُهْتَانٍ تَفْتَرُونَهُ بَيْنَ أَيْدِيكُمْ وَأَرْجُلِكُمْ:

اوتاسوداسې بهتان مه لگوئ.کوم چه تاسودخپلو لاسونو اوپښوپه مينځ کښې جوړ کړې وی.بهتان هغه دروغو ته وائی.کوم چه اوريدونکې چپ کړی.([2])

**د تفترونه په زيادت باندې اشکال**: صرف،،لاتأتوا ببهتان،،وئيل کافی وو.د،،**تفترونه**،،راوړلو څه ضرورت وو؟

**داشکال جواب**:ددې فعل شنيع د مزيد قباحت اوشناعت ښکاره کولو دپاره داطناب دا طريقه اختيار کړې شوه.([3])

**دبين أيديکم وأرجلکم مختلف معانی**:① علامه کرمانی رحمه الله فرمائی.چه ددې مطلب دادې.،،لاتأتوا ببهتان من قبل أنفسکم،،او ،،أيدی،،او،،ارجلکم،، د ذات نه کنايه ده.ځکه چه اکثرافعال هم ددې نه صادريږی.کله داسې کيږی. چه سړی ته دقولی جنايت دوجې سزا ملاويږی. خوونيلی شی.،،هذا بما کسبت يداك،، ([4])

② يومطلب دا بيان شوې دې.چه د،،مابين الأيدی والأرجل،، جوړ شوې بهتان نه زړه مراد دې.اومطلب دادې.چه په خپل زړه کښې په چا باندې بهتان مه لگوئ. ([5])

[1]) فتح الباری(۱۱؍۶۴، ۶۵) عمدة القاری(۱۵۹؍۱۱)_

[2]) شرح کرمانی(۱۰۶؍۱۱)_

[3]) شرح کرمانی (۱۰۶؍۱۱)_

[4]) شرح کرمانی(۱۰۶؍۱۱)_

[5]) شرح کرمانی(۱۰۶؍۱۱)_

③ امام خطابی رحمه الله فرمائي چه ،،بین أیدیکم وأرجلکم،، نه مراد دا دې چه ،،لاتبهتوا الناس بالمعایب کفاحا مواجهة،، یعنی په خلقو باندې مخامخ په مخامخ بهتان مه لګوئ.اودا داسې دی.لکه چه ونیلی شي.،،فعلت هذا بین یدیك،،.(١)

④ علامه تیمی رحمه الله په دې باندې اعتراض کړې دې.اوفرمائیلی ئې دی.چه دا صحیح نه ده. ځکه چه عربیان دا خوروانی.چه،،فعلته بین أیدی القوم،، خو دا نه وائي. چه،،فعلته بین أرجلهم،، ددوی نه دا چرته منقول نه دی.(٢)

⑤ علامه کرمانی رحمه الله فرمائي.چه دعلامه خطابی رحمه الله قول ته غلط وئیل تیك نه دی. ځکه چه دا خو صحیح دی.چه،،فعلته بین أرجلهم،، نه وائي.خوبه،،فعلته بین أیدی القوم وأرجلهم،، ونیلو کښې څه قباحت نشته.لکه چه مراد او مقصود خو د ،،أیدی،، ذکر دې.او،،ارجل،،د تاکید دپاره راوړلي شوي دي.(٣)

⑥ عارف ابن ابی جمرة رحمه الله فرمائي.چه کیدې شي.د،،بین أیدیکم،، نه مراد حال وی.او د،،بین أرجلکم،، نه مراد مستقبل وی.دوی اشاره کړې ده په،،بین أیدیکم،، سره دې خبرې ته چه فی الحال هم تاسو بهتان مه لګوئ.او په،،أرجلکم،، کښې اشاره ده روانیدو ته،اومطلب دا دې. چه ددې ځائې نه بل خواه ته لاړ شئ.نوهم په مستقبل کښې په بل وخت کښې بهتان مه لګوئ.(٤)

**قوله: وَلَاتَعْصُوافِي مَعْرُوفٍ:**

**د معروف په تعریف کښې پنځه اقوال:** ① بعضوفرمائیلی دی.چه معروف دې ته وائي.،،ما عرف حسنه من الشارع أمرا أونهیا،،(٥)یعنی د کوم خیزحسن چه د شارع نه معلوم وی.برابره ده که د امرد قبلیې ځنی وی اوکه دنهی ځنی.

② بعضو فرمائیلی دی.چه دمعروف معنی مشهور ده.یعنی د شارع نه ددغه کار کول ثابت او مشهور وی.(٦)بعضې فرمائي.چه ددې نه مراد طاعات دی.(٧)

---

(١) شرح کرمانی(١٠٦/١١)_
(٢) شرح کرمانی(١٠٦/١١)_
(٣) شرح کرمانی (١٠٦/١١)_
(٤) فتح الباری (٦٥/١١)_ وعمدة القاری (١٦٠/١١)
(٥) فتح الباری (٦٥/١١)_
(٦) عمدة القاری (١٥٥/١١)_
(٧) عمدة القاری(١٥٥/١١)_

④ بعضو فرمائیلی دی چه ددې نه مراد ،بر، او تقوی ده.[1]

⑤ بعضو فرمائیلی دی چه،،هوما لم ینه الشارع فیه،، یعنی هغه څیزچه په هغې کښې د شارع د طرفه نهی نه وی راغلې.[2]

⑥ صاحب د ،،النهایه،، ابن الاثیر رحمه الله فرمائی چه،،وهو اسم جامع لکل ما عرف من طاعة الله والتقرب إلیه والإحسان إلی الناس، وکل ما ندب إلیه الشرع ونهی عنه من المحسنات والمقبحات،،[3]

یعنی معروف یوه جامع کلمه ده.کومه چه ټولو امورو شرعیه ته شامل ده.برابره ده که هغه فرائض وی اوکه مندوبات وی.که اخلاق او آداب وی اوکه هغه امور وی.دکومو نه چه شریعت مطهره منع کړې ده.

**اشکال:** رسول الله ﷺ صرف د معروف حکم کوی. نوبیا ئې دا څنګه اوفرمائیل.چه په نیکئ کښې زما نافرمانی مه کوئ.

**داشکال جواب:** په اصل کښې نبی کریم ﷺ دا دې پورتنئ قاعدې ته د اشاره کولو دپاره فرمائیلې دی.چه،،لاطاعة لمخلوق فی معصیة الخالق،،[4]

**اشکال:** نبی ﷺ،،لاتشرکوا بالله شیأ، ولاتسرقوا، ولاتزنوا، ولا تقتلوا أولادکم ولاتأتوا ببهتان تفترونه بین أیدیکم وأرجلکم ولا تعصوا فی معروف،، ذکراوکړلو.دا ټول منهیات دی.د اوامرو،فرائضو واجباتو نبی ﷺ ذکراونکړل.دا خو نامکمله بیعت دې؟

**داشکال جواب:** دغور کولوضرورت دې.څکه چه نبی ﷺ،،ولاتعصوا فی معروف،، فرمائیلی دی.ددې معنی دا ده.چه دکوم څیز زه حکم ورکوم.هغه به معروف وی.اودهغې کول به ضروری وی.نوپه دې کښې مونځ روژه حج زکاة اوټول فرائض او واجبات راغلل.[5]

**قوله: فَمَنْ وَفَى مِنْكُمْ فَأَجْرُهُ عَلَى اللَّهِ:**

کوم کس چه په تاسوکښې د دې بیعت تقاضې پوره کړې.اوپه خپلووعدو اومعاهدو باندې وفا اوکړی.نودهغه اجرپه الله تعالی باندې دې.

**په الله تعالی باندې د اجر د وجوب نوعیت:** یاد ساتئ چه دا وجوب استحسانی دې.وجوب

---

[1] عمدة القاری (۱\۱۵۵)_
[2] عمدة القاری (۱\۱۵۵)_
[3] النهایه لابن الأثیر رحمه الله (۳\۲۱۶) مادة (عرف)_
[4] فتح الباری (۱\۶۵)_
[5] فتح الباری (۱\۶۵) وعمدة القاری (۱\۱۶۰)_

حتمی نه دي.په الله تعالی باندي څه څیز واجب نه دي.[1]هغه مختار کل دي.

﴿ لَا يُسْـَٔلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْـَٔلُونَ ﴾ [2]

دا بیله خبره ده چه هغه کومه خبره اوکړي نودهغې پوره کول یقیني خبره ده. په دي تیقن باندي دلالت دپاره د ،،علی،، صیغه استعمال شوې ده.لکه چه دا خودلی شي.که تاسو وعده پوره کړئ.اود بیعت په مقتضی باندي عمل اوکړئ. نودالله تعالی د طرفه اجر اوثواب یقیني دي.الله تعالی استحساناً په خپل ځان باندي دا واجب کړې دي.

**قوله**:وَمَنْ أَصَابَ مِنْ ذَلِكَ شَيْئًا فَعُوقِبَ فِي الدُّنْيَا فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَهُ:

کوم کس چه په دي ګناهونوکښې د یوې ارتکاب اوکړي.اوبیا هغه ته په دنیا کښې سزا ورکړې شي.نوهغه به دده دپاره کفاره شي.

**نوټ**: په دي مقام کښې شارحینو دا مسئله چیړلې ده چې حدود کفارات دی اوکه زواجرچونکه دا کتاب الایمان دي اودا مسئله د کتاب الحدود ده. ددې وجې مونږ په کتاب الحدود کښې دا مسئله د ،،د حدودو کفارات کیدو کښې (۲) مذاهب،، په عنوان سره بیان کړې ده هلته رجوع اوکړئ.

## [۱۹] ښځوته د نبی علیه السلام وعظ او نصیحت

| ۱۹ ـ ( ۳ ) [۱۷] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي أَضْحًى أَوْ فِطْرٍ إِلَى الْمُصَلَّى، [۲] فَمَرَّ عَلَى النِّسَاءِ [۳] فَقَالَ: ((«يَا مَعْشَرَ النِّسَاءِ تَصَدَّقْنَ، فَإِنِّي أُرِيتُكُنَّ أَكْثَرَ أَهْلِ النَّارِ)، [۴] فَقُلْنَ: وَبِمَ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ [۵] قَالَ (تُكْثِرْنَ اللَّعْنَ، وَتَكْفُرْنَ الْعَشِيرَ، [۶] مَا رَأَيْتُ مِنْ نَاقِصَاتِ عَقْلٍ وَدِينٍ أَذْهَبَ لِلُبِّ الرَّجُلِ الْحَازِمِ مِنْ إِحْدَاكُنَّ) [۷] قُلْنَ: مَا نُقْصَانُ دِينِنَا وَعَقْلِنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ [۸] قَالَ: (أَلَيْسَ شَهَادَةُ الْمَرْأَةِ مِثْلَ نِصْفِ شَهَادَةِ الرَّجُلِ؟) [۹] قُلْنَ: بَلَى، قَالَ: (فَذَلِكَ مِنْ نُقْصَانِ عَقْلِهَا) [۱۰] قَالَ: أَلَيْسَ إِذَا حَاضَتْ لَمْ تُصَلِّ وَلَمْ تَصُمْ؟) [۱۱] قُلْنَ: بَلَى. قَالَ: (فَذَلِكَ مِنْ نُقْصَانِ دِينِهَا»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
|---|

**ترجمه**:[۱]او ابو سعید خدري ﷜ روایت کوي چې رسول الله ﷺ یو ځل د واړه اختر یا د لوي اختر د لمانځه د پاره عید ګاه ته تشریف راوړو،[۲] نو د ښځو یو جماعت ته هم ورغلي (چي د لمانځه د پاره په یو جدا کونج کي جمعه شوې وي)[۳] او هغوئ ته په مخاطب کولو سره یي وفرمایل چې اي د ښځو جماعته تاسو صدقه او خیرات ور کوي،

[1]) فتح الباری(۱۱\۶۵)_

[2]) سورة الأنبياء _ ㉓

[3]) اخرجه البخاری کتاب الحیض /باب ترک الحائض الصوم. ( ۳۰٤) ومسلم فی کتاب الإيمان /باب بيان نقصان الإيمان بنقص الطاعات. وبيان إطلاق لفظ الكفر على غير الكفر بالله، ككفر النعمة والحقوق(رقم-۱۳۲ - (۷۹) وابن ماجة کتاب الفتن /باب فتنة النساء(رقم-٤٠٠٣)والنسائي کتاب الزکاة/باب ماجاء فی استکمال الإيمان وزيادته ونقصانه (رقم۲۶۱۳)

ځکه چې ما په تاسو کې اکثره په دوزخ کې لیدلي دي (په دي اوریدو سره) [۴]هغه ښځو عرض وکړو یا رسول الله ﷺ د دې سبب؟ [۵]حضور ﷺ ورته وفرمایل چې تاسو لعن وطعن (سپکي سپوري) ډیر وایئ او د خپلو خاوندانو نا فرماني او ناشکري کوي [۶]او ما په عقل او په دین کې د کمزوري باوجود هوښیار سړي بیوقوف جوړولو کې ستاسو څخه زیات بل څوك نه دي لیدلي، [۷](په دي اوریدو سره) هغه ښځو عرض وکړو چې یا رسول الله ﷺ زمونږ په عقل او زمونږ په دین کې څه کمي ده؟ [۸]رسول الله ﷺ ورته وفرمایل آیا د یوي ښځي ګواهي دنیم سړي د ګواهي برابره نه ده (یعني آیا داسې نه ده چې په شریعت کې دوو ښځو ګواهي د نیم سړي د ګواهي برابر ګڼلي کیږي ؟) [۹]هغوئ عرض وکړو چې هو هم داسې ده، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل د دي وجه دښځي د عقل کمزوري ده[۱۰] او آیا داسې نه ده چې کله ښځه د حیض په حالت کې وي نو نه مونځ کولو شي او نه روژه نیولي شي [۱۱]هغوئ اوویل چې هو دغسې ده، نو رسول الله ﷺ ور ته وفرمایل دا د هغه په دین کې د نقصان وجه ده. بخاري او مسلم

**حل اللغات:** ① أَضْحَى : أَيْ فِي عِيدِ أَضْحَى: د لوئي اختر مونځ، ② فِطْرِ: وړوکي اختر. ③ الْمُصَلَّى: عیدګاه. ④ فَمَرَّ: نو تیرشو، ورغلو، ⑤ مَعْشَرَ: أَيْ جَمَاعَة: ډله. جماعت. ⑥ اللَّعْنَ: چا باندي چې دالله تعالی دطرفه لعنت وی نو ددې مطلب به داوی چې [إِبْعَادُ اللّٰهِ تَعَالَى الْعَبْدَ مِنْ رَحْمَتِهِ بِسَخَطِهِ] او که د بنده د طرفه وی نو [الدعاء بابعاد العبد من رحمة الله] په معنی کښې به وی. ⑦ تَكْفُرْنَ: أی جَحْدُ نِعْمَتِهِ وَإِنْكَارُهَا: کفران او ناشکری د نعمت او د چا احسان نه منل، ⑧ الْعَشِيرَ: أی أَيِ الْمُعَاشِرَ الْمُلَازِمَ: څوک چه ورسره لازم اوسیدونکې وی او ژوند ورسره تیروی، زوج یعنی خاوند. ⑨ نَاقِصَاتٍ: د جمع مؤنث اسم فاعل صیغه ده. نقصان والا، کمزوري، ⑩ أَذْهَبَ: اسم تفضیل دي په معنی د زیات بوتلونکې یعنی ختمونکې. ⑪ لِلُبِّ: أی الْعَقْلُ الْخَالِصُ مِنْ شَوْبِ الْهَوَى: خالص او سوچه عقل چه د خواهشاتو ګډون پکښې نه وی. ⑫ الْحَازِمِ: أَيِ الضَّابِطُ أَمْرَهُ: هوښیار سړې، یعنی هغه کس چه یو کار په غور اوفکر او احتیاط سره کوی

**دراوي مختصر تعارف:** د ابو سعید خدری ﷺ نوم سعد بن مالك دې، خو کنیت ئې مشهور شوې دې. قبیلهٔ خدره طرفته نسبت دې کومه چې د انصارو یو قبیله ده. دا کثیر الروایت صحابه کرامو کښې دې، ځلور شپیتمه هجری کښې مدینه منوره کښې وفات شو. ددوئ عمر څلور اتیا کاله وو.

**تسهیلات:**

**قوله:** خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي أَضْحَى أَوْفِطْرٍ إِلَى الْمُصَلَّى:

**داخترمونځ په عیدګاه کښې د ادا کولو مسنونیت:** ملا علی قاری رحمه الله فرمائی چې دا عیدګاه ترننه پورې موجوده ده معلومه شوه چې دهغوئ زمانې پورې وه. اوس خو هیڅ نشته دې

د اختر مونځ دپاره وتل سنت متوارثه دی بغير د ضرورت څخه مسجد کښې د اختر مونځ کول د سنت متوارثه مستمره خلاف دی. خو نن صبا خلق دومره زيات دی چې يو ځائې کښې راجمع کيدل مشکل دی. او داشان تخالف عقائد دومره دی چې اجتماع ممکن نه ده.

**قوله:** فَمَرَّعَلَى النِّسَاءِ:

**زنانو دپاره په وعظ کولو کښې دوه احتمالات:** ① د مر صيغه متعدی بالباء وعلی وی، ممکن دی چې نبی کريم ﷺ وعظ دپاره هلته تلې وو،

② دا هم کيدی شی چې هرکله تيريدل اوشو نو بيائې وعظ اوفرمائيلو.

**په خيرالقرون کښې د زنانو عيدګاه ته د تلوجواز:** ددې څخه معلومه شود چې په هغه وخت کښې به ښځې هم د مونځ پاره مسجد ته تللې. دا د خير القرون زمانه وه. وحی به نازليده. د مدينې منورې پاکه زمکه وه. د صحابه کرامو پاك جماعت وو او د نبی کريم ﷺ مقدس وجود مبارك موجود وو، نوښځوته ډيرو پابندو سره مسجد ته د راتلو اجازت وو بيا چې کله حالات خراب شو نو په دوئ باندې رو رو پابندی اولږيده. بيا مکمل ممانعت اوشو. لکه څنګه چې عائشه صديقه ﷺ څخه روايت کښې واضح دی. وړاندې به ددې مسئلې تفصيل راشی.

**قوله:** فَقَالَ: أُرِيتُكُنَّ:

**د أري ترکيب:** أري بمعنی أعلم، درې مفعوله غواړی. اول مفعول أريتکن، کښې د نائب فاعل تا ده، دويم مفعول کن او اکثر اهل النار، مفعول ثالث دې.

**په رؤيت کښې دوه احتمالات:** ①د رؤيت څخه قلبی رؤيت مراد دې په دې صورت کښې دا قلبی رؤيت يا په صلوة کسوف کښې شوی وو. يا به په طور د وحئ شوی وی. يا به د کشف وانکشاف په صورت کښې شوې وی.

② د رؤيت څخه بصری رؤيت مراد دی په دې صورت کښې د معراج په شپه نبی کريم ﷺ باندې دَ جنت او دَ دوزخ سيل کړې شوې وو. هغه به ترې مراد وی.

**قوله:** تَصَدَّقْنَ:

**د صدقې دحکم کولو وجه:** د صدقې کولو حکم ئې ورته څکه اوکړو چې صدقه کفاره د سيئاتو جوړيږی څکه چې حديث پاك کښې دی چې [الصدقة ترد البلاء] او [الصدقة تطفئ غضب الرب] او [اتقوا النار ولو بشق تمرة] او [كل امرء فى ظل صدقته] په دې وجه نبی کريم ښځو ته د صدقې ورکولو حکم فرمائيلې دې. او د اول څخه ئې ښځو ته د اور څخه د بچ

کیدو علاج اوخودلو چې ښځې مایوسه او پریشانه نه وی بیا د ښځو جهنم کښې زیاتوالې، د دویٔ د دنیاوی محبت په وجه وو نو صدقې کولو سره حب دنیا او بخل او کنجوسی ختمیږی.

**قوله:** أَكْثَرَ أَهْلِ النَّارِ:

**د ښځو څخه مراد:** یعنی ما اولیدل چه دوزخ کښې ښځې ډیرې وې، ددې څخه ښځې مراد دی کومې چې وفات شوې وې

**په حدیث باندې یو اشکال:** جنت کښې به هر جنتی ته دوه ښځې ملاویږی، ددې څخه معلومه شوه چې ښځې به جنت کښې زیاتې وی، او دلته دوزخ کښې زیاتې خودلې شوی دی. دې دواړو خبرو کښې واضع تعارض دې؟

**داشکال دری جوابونه:** ① دلته ئې اهل النار اوفرمائیل نو دا ئی د سړو په مقابله کښې نه دی وئیلې بلکه فی نفسه چې کوم تعداد وو هغه کثیر وو، دې ته کثیر اووئیلې شو یعنی دومره زیاتې نه وې پکار.

② د ښځو تعداد دومره زیات دې او ددویٔ پیدائش د هلکانو په نسبت دومره په کثرت سره دې چې جنت کښې دوه دوه ملاویدو نه باوجود به دوزخ کښې زیاتې وی.

③ په شروع کښې به دوزخ کښې زیاتې وی، بیا سزا خوړلو څخه وروستو به جنت ته ځی، نو دوزخ کښې به کمې شی.

**قوله:** قَالَ (تُكْثِرْنَ اللَّعْنَ):

**د لعنت وئیلو دوه صورتونه اود هر یو حکم:** ①که یو کس په چا باندې لعنت کوی نو هغه یا خبر کوی چې دا سړې ملعون دې، یعنی د الله تعالی د رحمت څخه ویستلې شوې دې. دا دعوی د علم غیب ده، اودا لوې جرم دې.

②که یو بل ته بد دعا کوی چې الله تعالی دا کس د خپل رحمت څخه لرې کړی. نو دا ډیر لوې بخل دې او ډیر لوې حسد دې او دا ناجائز دې.

**په چا باندې لعنت لیږل جائز دی؟:** ملا علی قاری رحمه الله لیکلی دی چې تعین سره په چا باندې لعنت لیږل جائز نه دی. تر کومې چې په کفر باندې د مرګ واقع کیدو یقین نه وی لکه څنګه چې وړاندینو خلقو کې ابوجهل وفرعون وغیره دی، او راتلونکو کښې ابلیس دې.

**دلعنت دوه قسمونه:** ① دالله تعالی د عام رحمت څخه وتل، دا لعنت کافرانو سره خاص دې

② دالله تعالی د خاص رحمت څخه وتل، دا قسم لعنت د فساقو او فجارو دپاره هم اجمالا بغیرد تفصیل وتعین نه جائز دې. لکه [لعن الله الواشمة والمستوشمة] او [لعن الله السارق] وغیره جائز دی چې لعن د وصف ذکر سره شوې دې. یعنی الله تعالی په غلو

باندې لعنت اوکړی، په فسادیانو باندې دې لعنت اوکړی، نو په دې کښې اجمال دې
تعین نشته. دا جائز دی

**د ښځوزیات لعنت ولیلووجه:** بیا دلته تکثرن اللعن فرمائیلې شوی دی. ځکه چې لږ لعنت خو د ښځو عادت جوړشوې دې هغه ددوئ د مزاج حصه ده نو په دې کښې څه نرمی کړې شوې ده. لکه د غیبت باره کښې ځینې ائمه وائی چې دا کبیره په ځائې صغیره ده، ګنې پورا امت او خاص کور خواص دامت به فاسق جوړ شی.

**قوله:** وَتَكْفُرْنَ الْعَشِيرَ:

**ښځو کښې د خاوندناشکری:** یعنی ټول عمر د خاوند احسانات په دې باندې وی خو لږه شان خبره باندې هغه ټول هیروی. او وائی چې [مارأیت منك خیراقط] نکره تحت النفی سره کلی طور باندې دهر څیز نفی کوی.

**قوله:** مِنْ نَاقِصَاتِ عَقْلٍ وَدِينٍ:

**ښځې سړو لره د دهوکه کولوپه میدان کښې:** یعنی ددې عقل دنقص او کمزورئ باوجود تعجب دې چې یو تجربه کار، هوښیار او زیرك سړې ځنګه بربادوی. دوئ که هیڅ اونه وائی د دوئ په کتلو سره هم بل کس بربادیږی، د بلعم بن باعورا. دغه شان د سلجوقی حکومت علاؤالدین بادشاه د خپلې ښځې په وینا یو غدار سعدالدین د مرګ څخه بچ کول د کوم غداری چې غازی ارطغرل په دلائلو سره ثابته کړې وه دغه شان د خلافت عثمانی یوبل بادشاه دپاره انګریزانو د وینځې په شکل کښې یوه ښائسته ښځه رالیږلې وه چې ته دا عثمانی بادشاه په خپل عشق کښې ګرفتارکړه هغې هم هغه شان اوکړو چې اول د بادشاه په وینځو کښې شامله شوه اود خپل ښائست اوناز اوادا په وجه ئې خبره دې ته راورسوله چې بادشاه دا آزاده کړه اونکاح ئې ورسره وکړه اوبیا ئې ددې څخه اولاد پیدا شول د بادشاه د بلې ښځې څخه یو ځوې وو هغه قابل هم اودده د جانشینۍ صلاحیتونه په کښې وو خو دې خپل خاوند د هغه څخه بدظنه کړل اوهغه ئې قتل کړل دې دپاره چې بادشاهی زما ځامنوته ملاو شی دا یو اوږد داستان دې د تاریخ په کتابونو کښې ئې کتلې شئ. خلاصه دا چې ډیرو ښځو ډیر قابل اولوئې لوئې شخصیات ګمراه کړی دی

**د ښځوپه ناقص العقل کیدو باندې اشکال:** په دې حدیث کښې ئې د سړو مقابله کښې ښځو ته ناقص العقل وئیلی دی. حالانکه ځینې ښځې د سړو په مقابله کښې ډیرې تیزې وی، حکومت کوی.

**داشکال جواب:** هم په یوه زمانه کې هم یو تعلیم هم یوي علاقه او هم د یو خاندان سړو او

ښځو کښې که موازنه اوکړې شي نو ښځه په هريو استعداد کښې دَ سړي په نيمئي وی که هغه په عقل کښې وی، که په کتلو کښې وی يا په اوريدلو خبرو کولو او تګ اومنډه کښې وی په هريو طاقت کښې نيمه وی اوکه چرې ته يو سړې چرته دَ ځنګل نه راولی او ښځه دَ جديد دور دَ ښار دَ تعليم يافته طبقې نه راولی نو ښکاره خبره ده چه فرق به وی چه هغه ښځه به هوښياره، عياره، مکاره او دعاره وی.

**اشکال:** دَ حيض بيماری په قدرتی توګه باندې غير اختياری طريقې سره ښځې پورې لګيدلې وی نو دا دَ دين نقصان ولې اوخودلې شو؟

**داشکال جواب:** الله تعالى ښځو ته دَ دين حصه دومره ورکړې ده نو اوس دا دَ ښځې څه قصور نه دې او نه هغه قصواره ګرځولې شی بلکه دَ دغه تخليق اوتخليقی حصې خودنه ئی په ګوته کړې ده کوم چه امر واقعی وو هغه يې وئی خودلو.

**نکته:** بيا اوګورئی چه هم په دې حديث کښې دَ عقل دَ نقصان پته اولګيدله چه ښځو په خبرو کښې دَ نبی کريم ترتيب بدل کړو حضورپاك دَعقل نقصان مقدم ساتلې وو ځکه چه هم عقل مدار اومعيار دې ښځو په جواب کې دغه مؤخر کړو اودَ دين ذکرئی اول اوکړو هغوی دَ دين دَ اهتمام دَ وجې نه دا مقدم ذکرکړو.

## [٢٠] دالله تعالى تکذيب اوهغه ته کنځل کول

٢٠ —(١)[١٨] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ([٢] «قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: كَذَّبَنِي ابْنُ آدَمَ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ ذَلِكَ، وَشَتَمَنِي وَلَمْ يَكُنْ لَهُ ذَلِكَ، [٣] فَأَمَّا تَكْذِيبُهُ إِيَّايَ فقوله: لَنْ يُعِيدَنِي كَمَا بَدَأَنِي، [٤] وَلَيْسَ أَوَّلُ الْخَلْقِ بِأَهْوَنَ عَلَيَّ مِنْ إِعَادَتِهِ، [٥] وَأَمَّا شَتْمُهُ إِيَّايَ فقوله: اتَّخَذَ اللَّهُ وَلَدًا، [٦] وَأَنَا الْأَحَدُ الصَّمَدُ الَّذِي لَمْ أَلِدْ، وَلَمْ أُولَدْ، وَلَمْ يَكُنْ لِي كُفُوًا أَحَدٌ»).

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] الله تعالى فرمايي چې بني آدم (انسان) ما دروغجن کوي او دا خبره د هغه سره نه ښايي زما په باره کې بد ګويي کوي حالانکه دا د هغه لره مناسب نه دي، [٣] د هغه ما دروغجن کول خو دا دي چې هغه وايي څنګه چې الله زه (په دي دنيا کي) په اولني ځل پيدا کړي يم دغسې هغه په آخرت کې ما دوباره هيڅ کله نشي پيدا کولي [٤] حالانکه دوباره پيدا کول په مخکني ځل د پيدا کولو څخه ګران نه دي [٥] او دهغه زما په باره کې بدګويي کول دا دي

(١) اخرجه البخاري في قوله قل هو الله أحد يقال لا ينون احد، أي واحد١ - باب. ( ١).( رقم: ٤٩٧٤) والنسائي كتاب الجنائز /باب أرواح المؤمنين (رقم-٢٠٧٨)

چې هغه وايي چې الله ځان ته خپل زوي جوړ کړي دي ⑥حالانکه زه یو ازي او بې پرواه یم نه زما څخه څوك پیدا دي او نه زه دچا څخه پيدا يم او نه زما څوك هم سر (سيال) شته

**حل اللغات:** ① كَذَّبَنِي: أَيْ نَسَبَنِي إِلَى الكَذِبِ: دروغو ته زما نسبت کوی، ② شَتَمَنِي: تَوْصِيفُ الشَّيْءِ بِمَا هُوَ إِزْرَاءٌ وَنَقْصٌ فِيهِ: ما ته بد رد وائی، چا طرفته د یو داسې څيز نسبت کول چه هغه نقص او عیب وی، دې ته شتم یعنی کنځل یا بد رد وائی. ③ لَنْ يُعِيدَنِي: أَی لَنْ يُحْيِيَنِي بَعْدَ مَوْتِي: دمرګ نه پس به مې دوباره نه شی ژوندې کولې. ④ بَدَأَنِي: أَيْ أَوْجَدَنِي عَنْ عَدَمٍ: چه په اول ځل ئې پیدا کړم د عدم نه ئې وجود ته راوستم. ⑤ أَهْوَنَ: د هان يهون نه، أَيْ لَيْسَ أَسْهَلَ: آسان، ⑥ الصَّمَدُ: أی غَيْرُ مُحْتَاجٍ إِلَى أَحَدٍ: بې نيازه دې هیچاته محتاج نه دې.

**تسهیلات:**

**قوله:** قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: كَذَّبَنِي ابْنُ آدَمَ:

**دحدیث قدسی تعریف:** دا حدیث قدسی دې. او حدیث قدسی هغې ته وائی کوم کښې چې نبی کریم ﷺ نسبت الله تعالی ته کوی او داسې وائی چې قَالَ اللَّهُ: الله تعالی اوفرمائیل،

**په حدیث قدسی اوحدیث نبوی کښې فرق:** ① دحدیث قدسی معنی او مضمون آسمانی وی الفاظ د نبی کریم ﷺ وی او نسبت ئې دالله تعالی طرفته وی. او دقرآن پاك لفظ او معنی دواړه دالله تعالی د طرفنه نازل کړې شوی وی کومې ته چې وحی متلو وائی. او دعام حدیث کښې خو معنی دالله تعالی د طرفنه راځی او الفاظ د نبی کریم ﷺ وی خو په دې کښې الله تعالی طرفته نسبت نه وی.

**قوله:** كَذَّبَنِي ابْنُ آدَمَ:

**د بعث بعد الموت انکار ته د تکذیب وئیلو وجه:** دلته د حشرونشر انکار ته تکذیب وئیلې شوې دې. ځکه چې قرآن پاك کښې الله تعالی حشرونشر او قیامت په دلائلو سره باربار بیان فرمائیلې دې. هرکله چې بنده دا اووائی چې حشرنشر نشته دې نو ددې مطلب داشو چې هغه الله تعالی ته د دروغو نسبت کوی چې الله تعالی قرآن پاك کښې څه بیان فرمائیلې دې هغه صحیح نه دې دا صریح تکذیب دې. دې باندې په حدیث پاك دا جمله دلالت کوی چې

**قوله:** لَنْ يُعِيدَنِي: یعنی نشی ژوندې کولې. یابه مې ژوندې نه کړی. یابه مې داسې بدن سره ژوندی نه کړی. دا ټول صورتونه د کفر دی.

**قوله:** وَلَيْسَ أَوَّلُ الخَلْقِ بِأَهْوَنَ:

**دأهون د صیغې تحقیق:** اسم تفضیل نه دې بلکه د اصل فعل په معنی کښې دې. بمعنی

هين دي لكه الصيف أحرمن الشتاء، كښې فعل په اصل معنى كښې مستعمل دې.
يعنى زما په قدرت كښې دواړه آسان دى. د اول او ثانى فرق نشته دې. د أهون په قرآن
پاك هم ذكر موجود دې. او دې حديث پاك كښې هم دې.

**دالله تعالى دپاره داول اوثانى ايجاد برابرى:** دا كلام د بندګانو په اعتبار سره دې چې
ستاسو په نزد ايجاد مالم يوجد په طور اول پيدا كول د ثانى اعادې څخه زيات مشكل
دى ځكه چې اول پيدا كولو كښې څه مثال سابق او څه نمونه نه وى. هيڅ اصل ئى نه وى،
بلكه صرف انشاء او ايجاد مالم يوجد وى او دوباره اعاده كولو كښې سابق مثال او
نمونه واصل موجود وى دا دوباره جوړولو كښې تاسو هم وايئ چه، داآسان دى هركله
چې ستاسو په نزد د عام عادت لاندې د يو څيز اعاده آسانه ده. نو دالله تعالى د قدرت په
وړاندې دا څه مشكل دى.

**قوله: وَأَمَّا شَتْمُهُ إِيَّايَ:**

**الله تعالى ته د اولاد نسبت كولوته د كنځلو وئيلووجه:** الله تعالى طرفته د اولاد نسبت په دې
وجه كنځل دى چې په دې كښې الله تعالى طرفته ضمنى طور سره د احتياج او محتاجې
نسبت دې. ځكه چې توالد وتناسل ته هغه كس محتاج وى كوم چې استبقاء نوع نسل او
إحرار المال وغيره ته محتاج وى او دا نسبت الله تعالى طرفته كول كنځل دى.

**دمثال په رڼا كښې وضاحت:** حجة الاسلام حضرت مولانا قاسم نانوتوى رحمه الله دا داشان بيان
كړى دى چې مثلا يو انسان دې، هغه څخه ماران يا لړمانان پيدا شو، نو ددې باوجود چه
دا دواړه حادث او دواړه زوال پذير دى خو خلاف جنس څيز څخه پيدا كيدو په وجه به
هغه كس څومره شرم محسوسوى، نو داشان الله تعالى دپاره اولاد ثابتول څومره عجيبه
دى. چې هركله د دواړو په مينځ هيڅ مماثلت نشته دې، جنسيت هم نشته دې، ددې څخه
زيات تحقير بل څخه كيدېشى. او ددې څخه زيات بد وئيل او شتم به څه وى ؟ هم دا
نقصان يهودو كړې دې او وئى وئيل چې عزير ابن الله، او نصارى اووئيل عيسى ابن
الله، او مشركينو د عربو اووئيل چې الملائكة بنات لله، بيا به يو عيب دا هم منل پكار
وى چې دا اولاد به قائمقام وى، نو الله تعالى دپاره دَ فنا او زوال عقيده هم راغله،
تعالى الله علواكبيرا.

۲۱ - ()[۰] [۱] وَفِي رِوَايَةِ ابْنِ عَبَّاسٍ: [۲] (وَأَمَّا شَتْمُهُ إِيَّايَ فَقَوْلُهُ: لِي وَلَدٌ، [۳] وَسُبْحَانِي أَنْ أَتَّخِذَ صَاحِبَةً أَوْ وَلَدًا). رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او د ابن عباس رضي الله عنهما په روايت كې داسې دي [۲] چې د انسان و ما ته رد وبد ويل

---

[۱]) اخرجه البخارى سورة البقرة باب( و قالوا اتخذ الله ولدا سبحانه ). ( ٤٤٨٢)

دا دي چې هغه وايي چې د الله زوي شته [٣] حالانکه زه ددي نه پاك يم چې څوك ښځه يا زوي جوړ کم. بخاري

**[٢٢] زمانې ته د کنځلو کولو حرمت**

٢٢-( )[١٩] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: يُؤْذِينِي ابْنُ آدَمَ، يَسُبُّ الدَّهْرَ وَأَنَا الدَّهْرُ [٣] بِيَدِيَ الْأَمْرُ، أُقَلِّبُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] چې الله تعالى فرمايي بني آدم (انسان) ماته تکليف راکوي (داسې چې) هغه زمانې ته بد وايي حالانکه زمانه (هيڅ نه ده هغه) خو زه يم، [٣] ټول تصرفات زما په قبضه کې دي او د شپې او ورځي چکر زما په حکم سره کيږي. بخاري او مسلم

**حل اللغات:** ① يُؤْذِينِي: تکليف راکوی ماته، ② يَسُبُّ: بد رد وائی. کنځل کوی (دا ګمان کوی چه نفع ضرر، خوشحالی خفګان خو دا زمانه راولی). ③ الدَّهْرَ: زمانه (او د زمانې پيدا کونکې الله دې نو زمانې ته کنځل کول الله ته کنځل کول دی). ④ أُقَلِّبُ: اړوم راړوم يعنی کموم او زياتوم

**تسهيلات: قوله:** وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ:

**داسم مضمر په ځائې د اسم ظاهر راوړلو وجه:** د قاعدې مطابق دا حديث د عنه په لفظ سره ذکر کول پکار وو. خکه ددې څخه وړاندې هم د ابوهريره ﷺ روايت دې خو دلته د نوم وضاحت په دې وجه اوشو چې د سابق حديث په آخر کښې د وفي رواية عن ابن عباس الفاظ وو چې هغې سره دا وهم کيدې شو چې دعنه ضمير ابن عباس طرفته دې، په دې وجه د احتياط په طور و عن ابی هريرة سره وضاحت اوکړې شو، سبحان الله محدثينو به څومره احتياط کولو.

**قوله:** يُؤْذِينِي ابْنُ آدَمَ:

**الله تعالى ته د تکليف رسولو مطلب:** يو کس ته قولا يا فعلا ناخوښه مکروه امر رسولو ته ايذا وائی. که هغه په دې غير کښې اثر اوکړ ی اوکه نه. الله تعالى او دهغه رسول ته د ايذارسولو څخه مراد داسې کار کول دې کوم سره چې الله تعالى او دهغه رسول خفه کيږی. دويم مطلب د ادې چې چونکه الله تعالى د انسانی افعالو وغيره څيزونو د تأثر او انفعال نه پاك دې لهذا دلته د ايذا معاملې څخه مراد دادې چې د ايذا رسولو معامله کوی. ځکه چې حقيقی ايذا څوك الله تعالى ته نه شی رسولې.

---

(١) اخرجه البخاری کتاب سورة حم الجاثية باب ( وما يهلكنا إلا الدهر ) الآية.(رقم-٤٨٢٦) ومسلم کتاب الألفاظ من الأدب وغيرها باب النهی عن سب الدهر(٢ - (٢٢٤٦) وابوداود کتاب الأدب/باب فی الرجل يسب الدهر(رقم-٥٢٧٤) واحمد فی مسنده ٤٠١/٤.

## [٢٢] دالله تعالى عزوجل صبر او تحمل

٢٣-()[٢٠] ١ وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (٢ «مَا أَحَدٌ أَصْبَرُ عَلَى أَذًى يَسْمَعُهُ مِنَ اللَّهِ، ٣ يَدْعُونَ لَهُ الْوَلَدَ، ثُمَّ يُعَافِيهِمْ وَيَرْزُقُهُمْ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابو موسي اشعري ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ تكليف وركونكي كلمات په اوريدو سره د الله تعالى څخه زيات صبر او برداشت كونكي بل هيڅوك نشته، ٣ خلق دهغه دپاره زوي ګڼي هغه په دي هم (د هغوئ څخه بدل نه اخلي بلكه) و هغوئ ته عافيت وربخښي او روزي ور رسوي. بخاري او مسلم

**حل اللغات:** ① أذي: د آذي يؤذي نه اسم مصدر دې په معنى د مُؤذِي سره، أيْ كَلَامٌ مُؤذٍ: يعنى تكليف رسونكې خبرې. ② يَدْعُونَ لَهُ: دعوه كوى او رابلى د الله دپاره، يعنى نسبت ورته كوى. ③ يُعَافِيهِمْ: عافيت وركوى، ضرر ترې دفع كوى.

**تسهيلات:** قوله: مَا أَحَدٌ أَصْبَرُ:

**دصبر تعريف:** ,,الصبر هو حبس النفس عما تشتهيه،، يعنى خواهش والا څيزونو څخه ځان بچ ساتلو ته صبر وائي.

**دصبر درې قسمونه:**

① **صبر على الطاعة:** حالات چې هر څنګه وى مونږ له عبادت كول پكار دى.

② **صبر على المعصية:** چې هر حال كښې دګناه څخه دَ بچ كيدلو جذبه په زړه كښې وى او ګناه څخه منع كيږى او صبر كوى.

③ **صبر على المصيبة:** داآخرى قسم دې، دې ته عوام او خواص صبر وائى. حالانكه د صبر درې قسمونه دى كوم چې وړاندې بيان شو.

**اشكال:** په مذكوره تعريف سره خو د صبر نسبت الله تعالى طرفته جائز نه دې، بيا دلته د صبر اطلاق په الله تعالى باندې څنګه اوشو؟

**داشكال جواب:** دصبر نسبت هركله چې الله تعالى طرفته اوشى نو مراد وى ,,تأخر العذاب عن المستحق،، دا د هغه الفاظو څخه دې د كومو اطلاق چې په الله تعالى باندې د غايت او انجام او دَ نتيجې په اعتبار سره كيږى لكه څنګه چې د رحمت، حيا وغيره الفاظ دى. دا دمبادى په اعتبار سره دالله تعالى دپاره نه وئيلې كيږى بلكه د منتهى په اعتبار سره وئيلې كيږى.

---

[١] ) اخرجه البخاري كتاب الأطعمة /باب الصبر على الأذى (رقم:٦٠٩٩) ومسلم فى كتاب صفة القيامة والجنة والنار/بباب لا أحد أصبر على أذى من الله عز وجل(٤٩ - (٢٨٠٤)

**قوله**: عَلَى أَذًى يَسْمَعُهُ مِنَ اللَّهِ:

**دالله تعالى د صفت سمع مفهوم**: دالله تعالى د آوريدو او سماعت څخه مراد ما يليق بشانه دى. انسان بواسطه جارحه مخصوصه آورى خو الله تعالى بغير د واسطې او بغير د آلې څخه آورى. دې حديث پاك كښې دَ تخلق باخلاق الله تعليم وركړې شوې دې چې الله تعالى قادر دې، آورى هم، بيا هم صبر كوى، نو تاسو خلق هم د صبر عادت خپل كړئ. حالانكه تاسو قادر على الاطلاق نه يئ.

**[٢٤] دبنده ګانو په الله باندې حقونه او ددې بالعكس**

> ٢٤ -()[٢١] [١]«وَعَنْ مُعَاذٍ قَالَ: [٢]كُنْتُ رِدْفَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَى حِمَارٍ [٣]لَيْسَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ إِلَّا مُؤْخِرَةُ الرَّحْلِ، [٤]فَقَالَ: (يَا مُعَاذُ، هَلْ تَدْرِي مَا حَقُّ اللَّهِ عَلَى عِبَادِهِ؟ وَمَا حَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللَّهِ؟) [٥]قُلْتُ: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. [٦]قَالَ: (فَإِنَّ حَقَّ اللَّهِ عَلَى الْعِبَادِ أَنْ يَعْبُدُوهُ وَلَا يُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا، [٧]وَحَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللَّهِ أَنْ لَا يُعَذِّبَ مَنْ لَا يُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا) [٨]فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَفَلَا أُبَشِّرُ بِهِ النَّاسَ؟ [٩]قَالَ: لَا تُبَشِّرْهُمْ فَيَتَّكِلُوا)» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [١]او حضرت معاذ ﷺ وايي[٢] چې (په يو سفر كښې) په خره باندې زه په حضور ﷺ پسې وروسته سور وم [٣]زما او د حضور ﷺ په مينځ كښې دكجاوې وروستنې حصه حائله وه، [٤]حضور ﷺ (ماته وفرمايل چې) اې معاذه پوهيږې چې په بنده ګانو د الله څه حق دې؟ [٥]ما عرض وكړو الله او د هغه رسول ﷺ ښه پوهيږي، [٦]رسول الله ﷺ وفرمايل په بنده ګانو د الله حق دا دې چې د هغه عبادت وكړي، د هغه سره څوك شريك نه كړي، [٧]او د بنده ګانو په الله دا حق دې چې د الله سره چا شريك نه وې جوړ كړې هغه ته عذاب ورنه كړي (په دې اوريدو سره) [٨]ما عرض وكړو يا رسول الله ﷺ دا زيرى زه خلقو ته ورنكړم؟ [٩]هغه ﷺ وفرمايل خلقو ته دا زيرى مه وركوه څكه چې هغه به په دې بروسه وكړي (او عمل كول به پريږدي) بخاري او مسلم

**حل اللغات**: ① رِدْفَ: اَلَّذِي يَرْكَبُ خَلْفَ الرَّاكِبِ: په سورلۍ باندې روستو ناست كس ته رديف وائى. ② مُؤْخِرَةُ الرَّحْلِ: وَهُوَ الْعُودُ الَّذِي يَكُونُ خَلْفَ الرَّاكِبِ: په سورلۍ باندې په كجاوه كښې يو لرګې وى هغې ته سرې دږه لګوى. ③ أُبَشِّرُ: زيرې وركړم. ④ فَيَتَّكِلُوا: د باب افتعال نه. أَيْ يَعْتَمِدُوا: يعنى صرف په دې به اعتماد او بهروسه اوكړى او د نورو اعمالو كوشش اومحنت به پريږدى.

**د راوي مختصر تعارف**: حضرت معاذ ﷺ دَ نبى كريم ﷺ جليل القدر صحابى دې. عقبه

[١] ) اخرجه البخارى كتاب الجهاد والسير /باب اسم الفرس والحمار(رقم-٢٨٥٦) ومسلم كتاب الإيمان/باب من لقى الله بالإيمان وهو غير شاك فيه دخل الجنة وحرم على النار(٤٨ - (٣٠) والترمذى كتاب الإيمان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ما جاء فى افتراق هذه الأمة (رقم-٢٦٤٣) وابن ماجة كتاب الزهد/باب ما يرجى من رحمة الله يوم القيامة (رقم-٤٢٩٦)

ثالثه اخیره کښې د اویاؤ نفوس قدسیه سره په بیعت کښې شریك وو. په ټولو غزواتو کښې رسول الله ﷺ سره اوګه په اوګه شریك وو. حضورپاك هغه د یمن قاضي او ګورنر مقرر کړې وو. حضورپاك هغوی ته ښه ښه وصیتونه اوفرمائیل او یو څو قدمه دهغوی سورلئ سره پیدل لاړو رخصت ئې کړو. دهغوی تعلق د انصار قبیلهٔ خزرج سره وو لهذا انصاري خزرجي دې. هغوی په طاعون عمواس کښې په ۱۸ هجرئي کښې وفات شو.

**تسهیلات:**

**قوله: كُنْتُ رِدْفَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:**

**دردیف د لفظ استعمال:** دا لفظ د اس خر وغیره دپاره زیات استعمالیږي. لکه څنګه چه په اوښ باندې دوو سورو ته اکثر زمیل وائي اوکله په اوښ سور ته هم ردیف وائي.

**قوله: عَلَى حِمَارٍ:**

**دنبي علیه په خرباندې سورلي کولو کښې غرض:** حضورپاك د تواضع او عاجزئي په توګه کله په خرباندې هم سورلي کړې ده په کوم سره چه د خر قسمت راؤچت شو چه دهغه خوله ناپاکه پاتې نه شوه او په جهوټه کښې ئې هم نجاست پاتې نه شو.

**دخرغټه غټ خرمراد کیدل:** دلته په یوه اهم خبره باندې پوهیدل پکاردي اوهغه دا چه ددې خر نه واړه خرونه مراد نه دي کوم چه زمونږ علاقو کښې موجود دي په کوم چه سورلي کول معیوب ګڼړلې شي. بلکه دلته د خر نه د عربو هغه لوئي خر مراد دې چه د قچر برابر وي لکه څنګه چه غټ سپین خرونه وي په هغې باندې سوریدل څه د عیب خبره نه وه. د حضرت معاذ ﷺ اود حضورپاك په یو ځائي سوریدلونه هم معلومیږي چه دا لوئي خر وو.

**قوله: إِلَّا مُؤْخِرَةُ الرَّحْلِ:**

**د مؤخرة الرحل دوه صورتونه:** ① د دوو سرو په مینځ کښې د وړاندې سورلئي دپاره جدا او د روستوني سور دپاره جدا لرګي وي

② صرف د وړاندې سور دپاره وي. د موخرة الرحل اطلاق په دواړو باندې کیدې شي.

**د مؤخرة د لفظ په ضبط کښې څلور احتمالات:**

① د باب افعال نه د اسم فاعل په وزن باندې.

② دباب تفعیل نه هم د اسم فاعل په وزن باندې راځي.

③ د باب تفعیل نه د اسم مفعول په وزن باندې هم راځي.

④ آخرة الرحل هم راځي. اول او آخري لغت ډیرفصیح دې.

**د کیفیت د بیانولو وجه:** ددې هیئت او کیفیت بیانولو کښې قرب بیانول مقصود وواو پوره

كيفيت بيانولو سره دا خودل دي چه صحابي كوم حديث بيانوي په هغې كښې د هيڅ شك شبهې گنجائش نشته دې څكه چه هغه په ډېر تيقظ، هوښيارتيا او بيدارئي سره دا حديث د حضورپاك نه اوريدلې دې. د حديث الفاظ خو څه چه د هغې كيفيات او هيئات پورې د هغه په زړه او دماغو كښې محفوظ دي.

**قوله: وَحَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللّٰهِ أَنْ لَا يُعَذِّبَ مَنْ لَا يُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا:**

**دحق مختلفې معانې:** ① حق د لائق او جدير په معنى كښې هم راځي.

② حق د باطل په مقابله كښې هم راځي،

③ حق د ثابت او واجب په معنى كښې هم راځي.

**دمعتزلو په نزد حق مطلب:** اوس معتزلو حق العبد على الله كښې حق په معنى د واجب اولازم اخستې دې. نو د هغوی په نيز د بنديگانو حق د عدل په توگه په الله تعالى باندې واجب او لازم دې. زيربحث حديث په ظاهرى توگه باندې د معتزلو دليل دې. اهل سنت والجماعت د حديث يو څو توجيهات كوی.

**په زيربحث حديث كښې دري توجيهات:** ① خطابى فرمائيلى دى چه دلته حق العبد على الله صرف د اولې جملې په مقابله كښې مشاكلةً راغلې دې، هم دغه رائې د شيخ محى الدين ابن عربى رحمه الله هم ده.

② د حق څو معانې دى. نو په حق الله على العباد كښې د واجب او لازم معنې او حق العباد على الله كښې به د لائق اوجدير معنې اخستې شى.

③ دا حق الله تعالى شفقةً، رحمةً، احساناً او اكراماً په خپله ذمه اخستې دې لكه چه پخپله ئې يو عهد په خپل ځان باندې اخستې دې نو په اولنئ جمله كښې حق وجوبى لزومى دې او په دويمه جمله كښې به حق تفضلى احسانى مراد وې.

**قوله: أَنْ لَا يُعَذِّبَ مَنْ لَا يُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا:**

**د شرک نه كولو په وجه دعذاب څخه حفاظت:** يعنى څوک چې د الله تعالى عبادت كوى او د هغه سره شرک نه كوى نو د الله تعالى د حسن سلوك او وعدې تقاضا داده چه د دې نه پس هغه دې موحد ته عذاب ورنه كړی څكه چه كه توحيد سره ئى د نيكو اعمالو پابندى كړې ده نو د عدم دخول نار وعده ده او كه چرې په اعمال صالحه كښې كوتاهى شوې وى نو د عدم خلود في النار وعده ده چه دائماً به عذاب نه وركوى.

**قوله: فَقُلْتُ: لَا تُبَشِّرْهُمْ فَيَتَّكِلُوا:**

**دمذكوره جملې مفهوم:** د نهى په جواب كښې د واقع كيدو د وجې ان ناصبه مقدر دې په دې وجه منصوب دې [اي يتكلوا، اتكال] يقين، اعتماد او د تكيه په معنى كښې دې

يعنى خلق به صرف د كلمه توحيد په اجمال باندې راكلك شي او په اعمالو كښې به سست شي. دلته چه څنګه حضورپاك دَ بيانولو نه منع اوفرمائيله چه په بيان كښې خطره ده هم دَدې په رڼرا كښې حضرت عمر رضي الله عنه حضرت ابوهريره رضي الله عنه په سختئى سره منع كړو چه خلق به په اجمال باندې تكيه اوكړي. معلومه شوه چه دَ حضرت عمر رضي الله عنه هغه فعل صحيح وو.

**خلوته د زيرى وركولو د ممانعت دوه وجوهات:** ① نبى عليه السلام حضرت معاذ رضي الله عنه څكه د زيرى وركولو څخه منع كړلو چې د حديث ظاهرى الفاظو ته به اوګورى او صرف د شرک څخه به ځان ساتى او د ايمان د نورو مقتضياتو به خيال نه ساتى اودا به وائى چې صرف په توحيد باندې نجات ملاويږى څكه چې خلق د دين اسلام د تعليماتو څخه واقف نه وو.ددې وجې په دې وجه دغه دَ شروع وخت په رڼرا كښې دَ زيرى اورولو نه ئې منع كړو ليكن دَاعمالو تفصيل باندې دَ پوهيدونه پس كله چه اعمال راسخ شو اودَ اعمالو پريخودو خطره ختمه شوه نوحضرت معاذ دغه علمى امانت امت ته دَ حواله كولو دَپاره بيان كړو ② په شروع كښې ممانعت وو بيا ئې [بلغوا عنى]اوفرمائيل نو عواموته دَ خودلو عام اجازت اوشو.

**فائده: د ممانعت بلوجود دحديث د بيانولو دري وجوهات:**

① حضرت معاذ دَ وفات په وخت كښې بيان كړو دې دَپاره چه دَعلم دَ پټولو دَ وعيد نه بچ شى لكه څنګه چه راتلونكى روايت كښې دى. نودَ حضورپاك دَ طرف نه حضرت معاذ رضي الله عنه ته دَ بشارت پټ ساتلو حكم وقتى اوعارضى وو دائمى او ابدى نه وو.

② دا ممانعت دَ يو مخصوص جماعت دَپاره وو عام نه وو روستو حضرت معاذ رضي الله عنه دَ عوامو دَپاره بيان كړو.

③ دا ممانعت دَ اسلام دَ ابتدائى دور دَپاره وو او حضرت معاذ رضي الله عنه په آخر وخت كښې بيان كړو.

**[۲۵] په مؤمن باندې د جهنم داور حرمت**

۲۵ –()[۲۲][۱] وَعَنْ أَنَسٍ: أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَمُعَاذٌ رَدِيفُهُ عَلَى الرَّحْلِ،[۲] قَالَ: «(يَا مُعَاذُ) قَالَ: لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَسَعْدَيْكَ.[۳] قَالَ: (يَا مُعَاذُ) قَالَ: لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَسَعْدَيْكَ - ثَلَاثًا - قَالَ:[۴] قَالَ: مَا مِنْ أَحَدٍ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ صِدْقًا مِنْ قَلْبِهِ[۵] إِلَّا حَرَّمَهُ اللَّهُ عَلَى النَّارِ.[۶] قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَفَلَا أُخْبِرُ بِهِ النَّاسَ فَيَسْتَبْشِرُوا؟[۷] قَالَ: إِذًا يَتَّكِلُوا» فَأَخْبَرَ بِهَا مُعَاذٌ عِنْدَ مَوْتِهِ تَأَثُّمًا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[۱] اخرجه البخارى كتاب العلم /باب من خص بالعلم قوما دون قوم، كراهية أن لا يفهموا(رقم-۱۲۸) ومسلم كتاب العلم /باب من لقى الله بالإيمان وهو غير شاك فيه دخل الجنة وحرم على النار(۵۳ - (۳۲)

ترجمه: [۱] او حضرت انس ﷺ روايت کوي چې يوه ورځ نبي کريم ﷺ هغه وخت چې (د سفر په دوران کي) په سوارلئ وو او معاذ ﷺ ورپسي سور وو، [۲] وي فرمايل اي معاذه، هغه اوويل يا رسول الله ﷺ حاضريم، [۳] بيا حضور ﷺ وفرمايل اي معاذه عرض يي وکړو يا رسول الله ﷺ حاضر يم، حضور ﷺ په دريم ځل مخاطب کولو څخه وروسته وفرمايل اي معاذه، هغه بيا اوويل يا رسول الله ﷺ حاضر يم، دغسې دري ځله مخاطب کولو څخه وروسته يي معاذ ﷺ ته وفرمايل[۴] د الله کوم بنده چې د زړه په صدق سره د دې خبري ګواهي وکړي چې د الله څخه ماسوا بل معبود (د عبادت لايق) نشته او محمد ﷺ د الله رسول دي[۵] نو الله تعالی په هغه د دوزخ اور حرام کوي، [۶] په دي اوريدو سره) معاذ ﷺ عرض وکړو يا رسول الله د دې (زيری) څخه زه خلق خبر نکړم؟ چې په دي زيري اوريدو سره خوشحاله شي، [۷] رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې يا خلق به په دي بروسه وکړي، (حضرت انس ﷺ وايي چې آخر معاذ ﷺ د دې ويرې څخه چې د حديث د پټولو) ګناه راباندې رانشي، د خپل وفات په وخت يي حديث بيان کړلو ،بخاري او مسلم

**حل اللغات:** ① الرَّحْل: کيجاوه، ② لَبَّيْكَ: أَيْ أَجَبْتُ لَكَ إِجَابَةً بَعْدَ إِجَابَةٍ: يعني زه بار بار آوريدو دپاره حاضر يم. ③ سَعْدَيْكَ: أَيْ سَاعَدْتُ طَاعَتَكَ مُسَاعَدَةً بَعْدَ مُسَاعَدَةٍ: يعني زه بار بار د خدمت او اطاعت دپاره موجود يم. ④ فَيَسْتَبْشِرُوا: أَيْ يَفْرَحُوا: چه خوشحاله شی خلق، ⑤ يَتَّكِلُوا: د باب افتعال نه، أَيْ يَعْتَمِدُوا: يعني صرف په دې به اعتماد او بهروسه اوکړی او د نورو اعمالو کوشش اومحنت به پريږدی. ⑥ تَأَثُّمًا: أَيْ تَجَنُّبًا: يعنی چه د علم پټولو دګناه نه بچ شی.

**تسهيلات: قوله:** قَالَ: (يَامُعَاذُ):

**دري ځله د تکراروجه:** نبی کريم ﷺ د اهتمام شان په غرض سره درې ځل دا کلمه اوفرمائيله چې راتلونکې خبره بنۀ په اطمينان سره واؤری.توجه برابره وی اود کلام اهتمام وی.

**قوله:** صِدْقًا مِنْ قَلْبِهِ:

**د صدقا من قلبه زياتی کولو وجه،** دا قيد ئې دې دپاره زياتی کړل چې منافق خلق د دې حديث څخه خارج شی، ځکه چې صدقا من قلبه کښې استقامت واستدامت دواړه مراد دی. او هغه منافقينو کښې نشته..

**قوله:** إِلَّاحَرَّمَهُ اللّٰهُ عَلَى النَّارِ.

**اشکال:** چې يو کس مثلا شهادتين سره د ګناه ارتکاب اوکړی نو آيا هغه هم حرام علی النار دې، حالانکه بل روايت کښې د عصاة مؤمنين جهنم ته تلل او شفاعت يا سزا تيرولو نه پس راتلل ثابت دی، نو په ظاهره په دې دواړو قسمه روايتونو کښې تضاد

دي. داشان د مذکوره حدیث پیش نظر خود اعمالو حیثیت ختمیږی حالانکه د اعمالو یو مقام دي. الغرض کومو روایاتو کښې چې صرف کلمه توحید جنت ته د داخلیدو ضمانت ګرځولې شوې ده او د حرمت دوزخ فیصله آوزولې شوې ده، هغه روایات اعمال صالحه لره ضروری ګرزونکی روایتونو سره متعارض او متصادم دی؟

**دا شکال شپږ جوابونه:** ① مطلب دادې چې کلمهٔ شهادت ئې د خپلو ټولو تقاضو اوحقوقو سره اووئیله یعنی امتثال دَ اوامرو ئې اوکړو او اجتناب نواهی ئې اوکړو نو دده دپاره حرمه الله علی النار دې یعنی کلمه خو مفتاح جنت ده خو ددې دپاره غاښونه ضروری دی، کماقال وهب بن منبه رحمه الله

② که چا ګناه نه وی کړې یا ئې ګناه اوکړه خو په رینښتونې زړه ئې توبه اوکړه او معاف شو نو دا کس به اولاً جنت ته داخلیږی. اود ابتدا څخه په ده باندې دوزخ حرام شو. نو حرمه الله علي النار، په دې باندې صادق دې. خوکه دې کس ګناه اوکړه او توبه ئې اونه ویستله او دنیکی څخه ئې ګناهونه زیات دی، او ګناه ورته معاف هم نشوه، نو داسې کس انتهاء په دوزخ باندې حرام دې، یعنی حرمه الله علي النار دده په حق کښې سزا تیرولو نه پس دی چې دده دپاره دائمی دوزخ نشته دې.

③ ددې څخه تحریم الخلود مراد دې چې همیشه دپاره اور کښې اوسیدل دده دپاره حرام دی. ④ ددې کلمهٔ شهادت څخه دهغه کس کلمه مراد ده کوم چې کلمه اووئیله خو د عملونو موقع ورته ملاؤ نشوه او ددنیا څخه رخصت شو.

⑤ دهر یو څیز یو انفرادی خاصیت وی، انفرادی حالت کښې هغه اثر او خاصیت ظاهریږی او کار کوی خو کله چې نورو څیزونو سره یو ځائې شی نو مغلوب او مخلوط شی او خپل اثر نه ښکاره کوی. لکه زهر شو، ددې خاصیت قتل، وژل دی، خو کله چې نورو څیزونو سره ملاؤ شی معجون مرکب ترې جوړ شی او مفید جوړیږی. او په طور د دوائی استعمالیږی. همداشان د اوبو طبیعت یخوالی دې. خود نمر یا اور ګرموالی سره په دې کښې حرارت پیدا شی او ددې یخوالی ختم شی. هم داشان کلمه شهادت ده. ددې انفرادی خاصیت خو بالکل هم هغه دې کوم چې حدیث پاك کښې مذکور دې چې څوك دا وائی نو په هغه باندې ددوزخ اور حرا م دې. خو قیامت کښې به فیصله په معجون مرکب باندې وی. لهذا نورو څیزونو معاصی او ګناه وغیره سره یوځائې شی نو د کلمه شهادت خاصیت به مغلوب شی او ددې اثر ختمیږی. نو انفرادی او ذاتی اثر هم هغه دې کوم چې حدیث پاك کښې راغلې دې، خو په قیامت کښې به فیصله په معجون مرکب باندې کیږی. لهذا اور څخه د بچ کیدو دپاره د نیکو عملونو کول اوس هم برقرار دی. او کوم

کس چې ګناهګار دې هغه په اور کښې ګرفتار دې. د سزا تيرولو يا شفاعت نه پس راخلاصيدې شي.

⑥ د دوئ د کافرانو په اور کښې نشي اچولې ځکه چې د هغوئ دپاره خو عذاب په طور د اهانت او تحقير دې، د مؤمن عذاب په طور د تطهير دې.

**دصاحب مشكاة لهج:** صاحب مشكوة ددې حديث پاك څخه وروستو ډير داسې احاديث پيش کړي دي کومو کښې چې د اعمالو ترغيب ورکړې شوې دې. په هغې کښې هغوئ اشاره فرمائيلې ده چې په کلمه طيبه کښې اعمال ملحوظ دي. او د صاحب مشکوة هم دا طريقه ده چې د راتلونکې روايت څخه د تير شوې حديث تفسير کوي.

**قوله:** فَأَخْبَرَ بِهَا مُعَاذٌ عِنْدَ مَوْتِهِ تَأَثُّمًا:

**په آخري عمر کښې د حديث د بيانولو وجه:** يعنې حضرت معاذ ﷺ د وفات په وخت کښې دا حديث عوامو ته بيان کړو چې د کتمان علم په ګناه کښې رانشي.

**فائده: د بعضې مسئلو عوامو ته د نه بيانولو ثبوت:** دې حديث څخه يوه عامه قاعده په ذهن کښې راغله چې ځينې دقيق احکامات ځينو خلقو دپاره د تشويش باعث جوړيږي. نو داسې خلقو په وړاندې داسې قسمه مسائل ايخودل مناسب نه دي، بلکه د دوئ څخه پټ ساتل پکار دي. هرکله چې ددې احکامو تعلق يو عمل سره هم نه وي او د عوام الناس دعقلونو څخه بالاتر هم وي نو عوامو لره په دې کښې اخته کول بربادول نه دي پکار لکه څنګه چه دالله تعالى د صفاتو مسائل دي. دا مسائل د عوامو د پوهې څخه بهر دي، لهذا په دې کښې نه دي پريوتل پکار، كلموا الناس على قدر عقولهم

**[۲۶] په ايمان باندې مرګ او جنت ته داخليدل**

۲۶ –(١) [۲۳] [۱]«وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] وَعَلَيْهِ ثَوْبٌ أَبْيَضُ، وَهُوَ نَائِمٌ، ثُمَّ أَتَيْتُهُ وَقَدِ اسْتَيْقَظَ، [۳] فَقَالَ: مَا مِنْ عَبْدٍ قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ ثُمَّ مَاتَ عَلَى ذَلِكَ إِلَّا دَخَلَ الْجَنَّةَ، [۴] قُلْتُ: وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ؟ قَالَ: وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ، [۵] قُلْتُ: وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ؟ قَالَ: وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ، [٦] قُلْتُ: وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ؟ قَالَ: وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ عَلَى رَغْمِ أَنْفِ أَبِي ذَرٍّ، [۷] وَكَانَ أَبُو ذَرٍّ إِذَا حَدَّثَ بِهَذَا قَالَ: وَإِنْ رَغِمَ أَنْفُ أَبِي ذَرٍّ.» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوذر غفاري ﷺ وايي چې زه (يوځل) د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضرشوم [۲] نو ده ﷺ يوه سپينه کپړه په ځان اچولي وه او اوده وو، (هغه وخت زه واپس لاړم) بيا دوباره د ده ﷺ په خدمت کې هغه وخت حاضر شوم کله چې دي ﷺ وينښ شوې وو، [۳] ده ﷺ (زما په ليدوسره) او فرمايل کوم سړي چې د زړه د اخلاصه لا

١) اخرجه البخاري كتاب اللباس باب الثياب البيض (ر قم:٥٨٢٧) ومسلم كتاب الإيمان/باب من مات لا يشرك بالله شيئا دخل الجنة. ومن مات مشركا دخل النار(رقم-١٥٤ - (٩٤)) واحمد في مسنده ١٦٦/٥.

الٰه الله اووائي (يعني د الله د يو والي د زړه په صدق سره اعتراف او اقرار وكړو) او په دغه عقيده د هغه انتقال وشو، نو هغه به ضرور په جنت كې داخل كيږي، [۴]ما عرض وكړو كه څه هم هغه د غلا او زنا (په شان د لوي ګناهونو) ارتكاب كړي وي، نو رسول الله ﷺ وفرمايل چې برابره خبره ده كه هغه د غلا او زنا جرم ولي نه وي كړي،[۵] ما بيا (په حيرانتيا سره) پوښتنه وكړه اګر كه هغه غلا او زنا جرم ولي نه وي كړي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل چې برابره خبره ده كه هغه د غلا او زنا جرم ولي نه وي كړي، [۶]ما (په دريم ځل هم ډير په حيرانتيا سره) عرض وكړو چې اګركه هغه د غلا او دزنا جرم كړي وي؟ (په دريم ځل هم) رسول الله ﷺ دغه وفرمايل برابره خبره ده كه هغه غلا او زنا ولي نه وي كړي او برابره خبره ده كه په ابو ذر هر څومره ګرانه تيره ولي نشي، (روايت كونكي وايي چې) [۷]كله به ابو ذر ﷺ دا حديث بيا نوي (د فخر په طور) دا اخري فقره: برابره خبره ده كه په ابوذر باندې هر څومره ګرانه تيره ولي نشي، به يې ضرور نقل كوله. بخاري او مسلم

**حل اللغات:** ① اسْتَيْقَظَ: رابيدار شوې وو. ② عَلَى رَغْمِ: أَيْ لُصِقَ بِالرَّغَامِ: رغام خاورو ته وائي، يعنى اګرچه په خاورو كښې ككړه اوګنده شي، د عربو په نزد دا محاوره ده. دا په هغه وخت كښې ويلې كيږى كله چې دچا مجبورى، تنګسيا. ناخوښى يا ذلت ظاهرول وى څكه چې رغام خاورې ته وائى،

**دراوي مختصر تعارف:** حضرت ابو ذر غفارى ﷺ د غفار قبيلې سره تعلق لرلو. مكه مكرمه كښې پنځم خوش نصيب وو چې دائرهٔ اسلام كښې داخل شو. متقى پرهيزګار او زاهد وو. ددوئ په مسلك كښې د يو وخت خوراك نه پس بل وخت دپاره خوراك ايښودل يا مال جمع كول جائز نه وو. او چې كله به ئې څوك په مال جمع كولو اوليدلو نو په همسا به ئې وهلو. كله چې ئې اسلام قبول كړو نو خپل قوم طرفته لاړو او هلته ئې د اسلام دعوت شروع كړو. څلورمه هجرى د غزوهٔ خندق په موقع مدينې منورې ته راغلو، نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې ابوذر ته به ځانله مړ كيږې،دې د تقوى د دور او خلق د فتوىٰ دور ته رارسيدلى وو. حضرت عثمان ﷺ دوئ ته د مدينې څخه ربذه ته د تللو حكم وركړو، او هلته په دوه ديرش هجرئ كښې وفات شو. حضرت ابن مسعود ﷺ ددوئ جنازه اوكړه

**قوله: وَعَلَيْهِ ثَوْبٌ أَبْيَضُ:**

**د مذكوره كيفيت د بيانولو غرض:** ددې كيفيت بيانولو څخه مقصد دا وى چې ماته خبره ښه ياده ده. بلكه كيفيات او هيئات او حالاتو پورې معلوم دى. څه په بيدارئى كښې اعتماد سره خبرې كوم. هيڅوك دې په دې شك نه كوى داشان دا هم خودل دى چې دمحبوب خدوخال او دهغه خصوصى احوال بيانولو سره لذت محسوسيږى.

**قوله:** لَمْ مَاتَ عَلَى ذٰلِكَ إِلَّا دَخَلَ الْجَنَّةَ:

**په کلمه شهادت د دخولِ جنت وعده:** په دې روايت باندې خو يوه شبه هغه ده کومه چې سابقه روايت باندې وه چې صرف کلمهٔ شهادت سره څنګه جنتي شو. اعمال چرته لاړل؟ کوم جوابونه چې هلته ورکړې شوی دی دلته هم هغه جوابات دی ① چې دخول اولا يا ثانيا دې ② يا کلمه د خپلو تقاضو سره ده.③ يا دوزخ کښې دخول ابدی دائمی نه دې.④ يا فيصله معجون مرکب باندې کيږی، مفرد کلمه باندې نه،⑤ يا د هغه کس کلمه مراد ده کوم ته چې د عمل موقع ملاؤ نشوه او مړ شو، وغيره وغيره.

**د رسالت په عدم ذکر باندې اشکال:** شهادت کښې صرف د لا اله الا الله ذکر شوې دې د محمد رسول الله ذکر نه دې شوې؟

**داشکال دړې جوابونه:** ① دا کلمه داسې مشهوره ده چې د لا اله الا الله ذکر کولو سره خپل تر خپله پورا کلمه په ذهن کښې راځی. او دا ټولو ته معلومه ده چې محمد رسول الله څخه بغير په دې دور کښې دا کلمه نافع نه ده.

② لا اله الا الله په توګه د عَلَم او عنوان ذکر شوې ده، مراد ترې مکمل شهادتين او پوره کلمه ده، لکه پوره سورت فاتحه چې په الحمد شريف سره ياديږی او سورت اخلاص پوره قل هو الله احد سره ياديږی.

③ دلته راويانو اختصار کړې دې.

**قوله:** قُلْتُ: وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ؟:

**د مذکوره جملې جامعيت:** دلته همزه استفهام محذوف دې. يعنی أيدخل الجنة وان زنی وان سرق. د حضرت ابوذر ﷺ په سوال کښې جامعيت دې، ځکه چې وإن زنی کښې ټول حقوق الله طرفته اشاره شوې ده. او وإن سرق کښې ټول حقوق العباد طرفته اشاره شوې ده. يعنی حقوق الله او حقوق العباد دواړو کښې کوتاهی کوؤنکې به هم جنت کښې داخليږی؟

نو نبی کريم ﷺ جواب کښې اوفرمائيل چې د ايمان او تصديق قلبی په وجه به هغه بالآخر جنت کښې داخليږی. اګر چې په اعمال صالحه کښې ئې کوتاهی کړې وی.

**د ابوذر ﷺ دړې ځله تپوس کولو وجه:** دحضرت ابوذر ﷺ دړې ځل سوال کول د استعجاب او د نور تاکيد او وضاحت حاصلولو دپاره وو. او د نبی کريم ﷺ جواب د انکار په طور وو چې دې ولې دومره په تعجب کښې دې. آيا دې دالله تعالی په رحمت کښې بخل کوی؟ حالانکه دهغه ذات رحمت ډير وسيع دې. که ته خوشحاله يئې او که خفه، معامله هم

داشان ده. زنا او سرقه په اسلام کښې په لويو ګناهونو کښې شميرلې کيږي. هرکله چې ددې حکم معلوم شو نو د ورو ګناهونو حکم به خپل ترخپله معلوم شي.

**قوله:** وَكَانَ أَبُوذَرٍّ إِذَا حَدَّثَ بِهٰذَا قَالَ::

**دنبی علیه السلام په کلماتوسره لذت حاصلول:** يعنې ابوذر ﷺ په طور د لذت يا د کلام رسول د کمال حفاظت په وجې وإن رغم أنف ابی ذر، کلمات به ضرور وئيل. دمحبوب ادا شوی کلماتو څخه به ئې خوند اخستو، او په دې به ئې فخر کولو،

**قوله:** وَإِنْ رَغِمَ أَنْفُ أَبِي ذَرٍّ:

**دمذکوره جملې مطلب:** مطلب دا شو چې پوزه دې خاورو کښې ککړ شه او خاوړې ژنه دې شي، دا دَ ناخوښی نه کنايه ده. هسې خو داپورا محاوره عربی کښې دَ ناخوښی او خفه کيدو دپاره استعماليږی، په دې حديث پاك کښې معتزله او خوارجو باندې ډير په تاکيد سره رد راځی کوم چې مرتکبِ کبيره ته خارج از اسلام وائی.

**[٢٧] جنت ته د داخليدو دپاره ضروری عقائد**

٢٧ –()[٢٣] [١] وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[٢] «مَنْ شَهِدَ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، [٣] وَأَنَّ عِيسَى عَبْدُ اللَّهِ وَرَسُولُهُ، وَابْنُ أَمَتِهِ، وَكَلِمَتُهُ أَلْقَاهَا إِلَى مَرْيَمَ وَرُوحٌ مِنْهُ، [۴] وَالْجَنَّةُ وَالنَّارُ حَقٌّ - أَدْخَلَهُ اللَّهُ الْجَنَّةَ عَلَى مَا كَانَ مِنَ الْعَمَلِ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او عباده بن صامت (رض) وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] کوم سړي چې د دې خبري ګواهي ورکي (يعني په ژبه سره اقرار وکړي او په زړه سره يې ريښتيا وګڼي) چې د الله څخه ماسوا بل څوك د عبادت لايق نشته او هيڅوك د هغه شريك نشته او دا چې محمد ﷺ بيشکه د الله بنده او د هغه رسول دي [٣] او د دې خبري هم ګواهي ورکي چې) عيسى ﷺ (هم) د الله بنده او رسول او د الله د وينځې (مريم) زوي او د هغه کلمه ده کومه چې هغه د مريم طرفته ته اچولي وه او د الله راليږل شوې روح دي [۴] او دا چې جنت او دوزخ حق (او واقعي شيان) دي نو الله تعالى به هغه جنت ته ضرور داخل کي، خواه چې د هغه عملونه هر څنګه وي. بخاري او مسلم

**حل اللغات:** ① كَلِمَتُهُ: د الله کلمه، ځکه چه دا په کلمه د کُن سره پيدا شوې دې، ② أَلْقَاهَا: أَيْ أَوْصَلَهَا اللَّهُ تَعَالَى إِلَيْهَا: چه اچولې ئې وه بی بی مريم ته.

[١] اخرجه البخاری کتاب أحاديث الأنبياء باب قوله:{يا أهل الكتاب لا تغلوا فی دينکم (رقم-٣٤٣٥) ومسلم کتاب الإيمان/باب من لقی الله بالإيمان وهو غير شاک فيه دخل الجنة وحرم على النار٤٦ - (٢٨)) والنسائی کتاب المواقيت/الجمع بين الصلاتين فی الحضر(رقم-٦٠٣)

**تسهيلات:**

**قوله:** وَأَنَّ عِيسَى عَبْدُ اللّٰهِ وَرَسُولُهُ:

**د عيسى عليه السلام د تخصيص كولو وجه:** اګرچه ټول نبيان عليهم السلام په عبديت او رسالت کښې شريك دی او اهل ايمان د ټولو متعلق هم دا عقيده لری خو د حضرت عيسی ﷺ باره کښې خيالات لرونکی دوه قومونه جزيرهٔ عرب کښې آباد وو. يو يهوديان وو، بل نصاری وو. دې دواړو دحضرت عيسی ﷺ باره کښې خپلو خيالاتو کښې افراط و تفريط څخه کار اخستې وو.

يو طرفته يهودو نه صرف دا چې د حضرت عيسی ﷺ درسالت څخه انکار کړې وو بلکه يهوديانو په دوئ ﷺ باندې بېهوده الزامات لګولی وو. او ددوئ په مور بی بی باندې ئې تهمتونه لګولی وو. او دحضرت عيسی ﷺ شريعت او انجيل ته ئې د دروغونسبت کړې وو. بل طرفته نصاری د حضرت عيسی ﷺ باره کښې دومره غلو اوکړه چې هغوئ دوئ ته الله، ابن الله يا ثالث ثلاثة اووئيل. نبی کريم ﷺ چونکه د ټولو نبيانو عليهم السلام مصدق جوړ کړې شوې او راغلې وو د ټولو حيثيت خودونکې وو او دا شريعت او دا امت چونکه متوسط او معتدل وو، په دې وجه د افراط وتفريط څخه پاکه نظريه نبی کريم ﷺ دحضرت عيسی ﷺ باره کښې د جزيرهٔ عرب د خلقو مخکښې کېخوده.

هم ددې خصوصی احوالو او خاص ضرورت لاندې د حضرت عيسی ﷺ ذکر په خصوصيت سره راغلو چې دهغوی صحيح صورت حال څخه عوام او خواص خبر کړې شی. او د د واړو طرفونو افراط و تفريط باطل کړې شی او دې د پاره دا خلق د دخول جنت مستحق جوړ شی. نو د عبدالله لفظ سره په نصاری باندې رد اوشو چې هغه دالله تعالی بنده وو، دالله تعالی سره شريك نه وو. نه دهغه ځوې وو او رسولو سره په يهوديانوباندې رد اوشو چې دهغه د نبوت څخه ئې انکار کولو.

**قوله:** وَابْنُ أَمَتِهِ:

**په مذکوره جملې سره په نصارؤ اويهوديانوباندې رد:** دې سره هم په دواړو فرقو باندې بليغ رد اوشو ځکه چه نصاری وائی چې هغه ابن الله وو، نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې ابن الله نه وو بلکه ابن امة الله وو. او په يهودو باندې رد اوشو چې حضرت مريم ﷺ دالله تعالی بندې ګاره وه، يو وليه وه،

**قوله:** أَمَتِهِ:

**د بی بی مريم الله تعالی ته په نسبت کولوکښې نکته:** په دې اضافت تشريفيه سره په يهودو باندې رد اوشو چې مريم دالله تعالی مقبول او پاکه بندئی ده. دې طرفته د زنا نسبت د يهوديانو خباثت او خباست دې، يهودو باندې دا هم رد اوشو چې وائی چه حضرت

عیسی علیه السلام العیاذ بالله دفلانی کس ناجائزه اولاد وو، وې فرمائیل چې د حضرت مریم خونې وو او دهغه پلار نه وو، که پلار ئې وې نو دې طرفته به ولې منسوب کیدو؟

**قوله: وَكَلِمَتُهُ:**

**عیسی علیه السلام ته د کلمة الله وئیلو په وجه کښې درې اقوال:** ① د کلمه څخه مراد حجة الله دې چې هغه خلقو باندې دالله تعالی د طرفه حجت او دلیل وو چې هغه الله تعالی بغیر د پلار څخه په خپل قدرت سره پیدا کړې وو.

② یعنی کلمهٔ کن سره الله تعالی بغیر د پلار څخه پیدا کړو.

③ دخپلې مور بی بی په برات او خپل نبوت اورسالت باندې د وړوکوالی څخه دلیل وو او وې فرمائیل چې [اٰتٰنِیَ الْكِتٰبَ وَجَعَلَنِیْ نَبِیًّا] نو کلمة الله ورته اووئیلې شو.

**د اشرف علی تهانوی رحمه الله د یوپادری سره مناظره:** حکیم الامت اشرف علی تهانوی رحمه الله خپلو ملفوظاتو کښې خپله یوه واقعه بیان کړې ده چې ما سره د یو پادری مناظره اوټاکلې شوه. او ددې موضوع ابنیة مسیح وه. هرکله چې دمناظرې تاریخ راغلو نو حضرت شیخ الهند ته معلوم شو نو هغه هم مناظره کښې حاضر شو او خیال ئې اوکړو چې داپادری ډیره زیاته تجربه لری. هسې نه چه نوجوان اشرف علی ته شکست ورنکړی. په دې وجه پخپله راغلو او پخپله مناظرې دپاره پیش شو. عیسائی پادری خپل بیان کښې اووئیل چې ګورئ مسلمانانو! ستاسو قرآن پاك حضرت عیسی علیه السلام ته کلمة وائی. نو ا وس تاسو اووائې چې عیسی علیه السلام کلمه وو که نه؟ د پادری دا خیال وو چې مسلمانان به اووائی چې بیشکه قرآن پاك هغه ته کلمه وئیلی دی، نو زه به ورته اووایم چې بس کلمة الله او ابن الله یو څیز دې؟

حضرت شیخ الهند محمود الحسن رحمه الله پورته شو او وې فرمائیل چې بیشکه عیسی علیه السلام کلمه وو اوقرآن پاك هغه ته کلمه وئیلی دی خو د کلمې درې اقسام دی. اسم، فعل، حرف. اوس ته اووایه چې حضرت عیسی علیه السلام په درې واړو کښې کوم یو قسم وو. اوس پادری ډیر حیران پاتې شو او اوتښتیدو.

**قوله: وَكَلِمَتُهُ أَلْقَاهَا إِلَى مَرْيَمَ:**

**د مریم معنی:** مریم د عابدې په معنی کښې دې. قران کریم کښې دیرش ځل صراحت سره الله تعالی د حضرت مریم نوم اخستې دې، دې سره دالله تعالی دا وئیل مراد دی چې مریم دالله تعالی ښځه نه وه، که داسې وې نو هیڅ یو کس په مجلسونو کښې او د عوام الناس په وړاندې دخپلې ښځې نوم نه اخلی. بیا ئې دې سره دابن مریم کلمه اولګوله چې دې زما نه بلکه د مریم ځوې دې.

**قوله:** رُوحٌ مِنْهُ:

**عيسى عليه السلام ته د روح ويلو دوه وجوهات:** ① يعنى هغه دَ نفخهٔ جبرائيل څخه پيدا شو او د جبرائيل علیہ السلام نوم روح الامين دې، په دې وجه ورته روح وائى.② يا دا مطلب چه مړى به ئې ژوندى كول نو ځكه ورته روح وائى.

بهرحال دلته د روح څخه ما به الحيوة حيوانى روح مراد نه د ي. دغه شان دلته من تبعيض دپاره نه دې چې هغې سره جزئيت ثابت شي. بلكه من ابتدائيه دې، معنى ئې داده چې [وروح مخلوق من أمر الله أي بأمر الله]

**دعلى بن حسين په جواب د عيسائى عالم اسلام قبلول:** علامه طيبى رحمہ اللہ ددې حديث پاك په تشريح كښې د يو لوې نصرانى عالم واقعه ليكلې ده. هغه د يو قارى صاحب څخه د قرآن كريم دتلاوت په دوران كښې واوريدل چې [وَكَلِمَتُهُ أَلْقَاهَا إِلَى مَرْيَمَ وَرُوحٌ مِنْهُ]نو وې وئيل چې عيسايان خو هم ددې څخه زيات بل څه نه وائى. بس هم دا دى چې عيسى علیہ السلام دالله تعالى څخه دې، يعنى دالله تعالى يو جز دې، او نبى دې، دې عيسائى عالم منه كښې من تبعيض دپاره واخستو. په دې باندې د دين اسلام عالم على بن حسين بن واقد رحمہ اللہ دهغه په وړاندې د قرآن پاك دا آيت مبارك اولوستلو: [وَسَخَّرَ لَكُمْ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا مِنْهُ] (جاثيه آيت :١٣). اوبيا ئې اوفرمائيل چې كه من دَ تبعيض دپاره دې نوبيا چې په زمكه او آسمان كښې څه دى ټولو لره د الله تعالى جز تسليم كړئ، دې آؤريدو سره هغه عيسائى مسلمان شو.

**قوله:** وَالْجَنَّةُ وَالنَّارُ حَقٌّ:

**دجنت اوجهنم په وجود وغيره باندې ايمان راوړل:** يعنى د دوزخ او جنت چې كوم احوال قرآن و حديث كښې ذكر دى هغه ټول حق دى، د جنت هم وجود ثابت دې، د دوزخ هم وجود ثابت دې. او په دې كښې د جزا او سزا ټول واقعات هم حق دى. په دې كښې په داسې فلاسفه زنادقه او ملحدينو او دهريانو باندې رد مقصود دې كوم چې دا خبره كوى چې جنت نشته باغونه هيڅ نشته، دوزخ هيڅ نشته، هسې دهوكه ده، مرزا غالب د الحاد په انداز كښې وائى:

**قوله:** أَدْخَلَهُ اللَّهُ الْجَنَّةَ عَلَى مَا كَانَ مِنَ الْعَمَلِ:

**دګناهګار مسلمان جنت ته داخليدل:** يعنى هغه عمل كه ښه وى يا خراب وى، لږ وى يا كثير وى، هر څنګه چې وى، ددې ښه عقيدې څخه وروستو به هغه كس جنت ته ځى. دد ې حديث پاك مطلب دادې چې انتهاءً ومآلا به دا كس د جنت مستحق وى. په دې كښې هم په معتزلو او خوارجو باندې واضح رد او ترديد دې كوم چې دا ګڼرى چې ګناه كبيره

کوونکي اسلام څخه خارج دي.

### [٢٨] د اسلام په قبلولو پخوانی ګناهونه معاف کیدل

٢٨ –()[٢٥][١] «وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّهُ قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقُلْتُ: ابْسُطْ يَمِينَكَ [٢] فَلْأُبَايِعْكَ، فَبَسَطَ يَمِينَهُ، [٣] فَقَبَضْتُ يَدِي، فَقَالَ: "مَالَكَ يَا عَمْرُو؟" [٤] قُلْتُ: أَرَدْتُ أَنْ أَشْتَرِطَ، فَقَالَ: تَشْتَرِطُ مَاذَا؟ [٥] قُلْتُ: أَنْ يُغْفَرَ لِي، [٦] قَالَ: "أَمَا عَلِمْتَ يَا عَمْرُو أَنَّ الْإِسْلَامَ يَهْدِمُ مَا كَانَ قَبْلَهُ، [٧] وَأَنَّ الْهِجْرَةَ تَهْدِمُ مَا كَانَ قَبْلَهَا، [٨] وَأَنَّ الْحَجَّ يَهْدِمُ مَا كَانَ قَبْلَهُ؟»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ، [٩] وَالْحَدِيثَانِ الْمَرْوِيَّانِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: " «قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: (أَنَا أَغْنَى الشُّرَكَاءِ عَنِ الشِّرْكِ) »، وَالْآخَرُ: " «الْكِبْرِيَاءُ رِدَائِي» ". سَنَذْكُرُهُمَا فِي بَابَيِ الرِّيَاءِ وَالْكِبْرِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى.

**ترجمه:** [١] او حضرت عمرو بن العاص ﷺ وايي چې (هر کله الله تعالی د اسلام په رڼا سره زما زړه او دماغ روښانه کړل نو) زه د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضر شوم او عرض مي وکړو يا رسول الله ﷺ خپل لاس مبارك رامخکي کړه [٢] زه ستا سره د اسلام بیعت کوم، رسول الله ﷺ (په دي اوريدو سره) خپل لاس (چي کله) رامخکي کي [٣] نو ما خپل لاس را ايسته کي، نو رسول الله ﷺ (په حيرانتيا سره) وفرمايل عمرو څه دي ؟ [٤] ما عرض اوکړو يارسول الله ﷺ زه څه شرط لګول غواړم، ده ﷺ وفرمايل څه شرط دي؟ [٥] ما عرض اوکړو (زه غواړم) چې زما (هغه) ټول ګناهونه معاف شی (کوم چې ما د اسلام څخه مخکې کړي وو) [٦] رسول الله ﷺ وفرمايل اي عمرو آيا تاته نه ده معلومه چې اسلام هغه ټول ګناهونه معافوي چې د اسلام قبولولو څخه مخکې شوي وو، [٧] او هجرت هغه ټوله ګناهونه لري کوي، چې د دي (هجرت) څخه مخکې شوي دي [٨] او حج هغه ټول ګناهونه نيست ونابود کوي چې هغه دحج څخه مخکې يي کړي وي، (مسلم) [٩] او د حضرت ابوهريره ﷺ روايت شوي دواړه حديثونه يعنی قال الله تعالى انا اغني الشركاء عن الشرک الخ او الكبرياء ردائي الخ به د رياء او كبر په باب کې انشاء الله نقل شي.

**حل اللغات:** ① اُبْسُطْ: أي افْتَحْهَا وَمُدَّهَا: لاس پرانيزه او راوړاندې کړه. ② فَلْأُبَايِعْكَ: چه زه بیعت اوکړم تاسره. ③ فَقَبَضْتُ: نوما لاس راټول کړو. ④ يَهْدِمُ: أي يَمْحُو: ختموی، معاف کوی ⑤ أَغْنَى: د اسم تفضيل صيغه ده، ډير زيات غنی، غيرمحتاج. ⑥ الْكِبْرِيَاءُ: الْعَظَمَةُ وَالتَّجَبُّرُ: لوئی، برتری، بزرگی. ⑦ رِدَائِي: رداء څادر ته وائی يعنی تکبرزما څادر دي.

**د راوي مختصر تعارف:** حضرت عمروبن العاص ﷺ دَ رسول الله ﷺ جليل القدرصحابی دي دَهجرت نه پنځه کاله وړاندې ئی اسلام قبول کړې وو او په ټولوجنګونوکښې شريك

[١] ) اخرجه مسلم كتاب الإيمان/باب كون الإسلام يهدم ما قبله وكذا الهجرة والحج(رقم-١٩٢ - (١٢١) ٢٨ - (وعن عمرو بن العاص)

شوې وو او په جنګ صفین کښې حضرت معاویه ﷺ سره وو معامله دتحکیم کښې شامل وو. دحضرت عمرفاروق ﷺ په دورکښې مصردهغوی په لاس فتح شو اوهغوی دفاتح مصرپه نوم سره مشهورشو اودآخروخت پورې هغوی دمصرحاکم اوګورنر وو ۴۴هجری کښې د ۹۰کالوپه عمرکښې وفات شو.

**تسهیلات: قوله:** اُبْسُطْ يَمِينَكَ:

**په لاس سره د بیعت کولو مسنونیت:** تاسو خپل ښې لاس وړاندې راخورکړئی دې دپاره چه زه په هغې باندې ستاسو بیعت اوکړم معلومه شوه چه په ژبې سره د بیعت د نسبت لاس په لاس کښې ورکول اصل او غوره دی، د ښځو په بیعت کښې رسول الله ﷺ کله هم لاس نه دې ورکړې هلته صرف زبانی بیعت اصل دې، دا د اسلام بیعت وو اوهرپیراومرشدله پکاردی چه د یوې پردئی ښځې لاس سره د بیعت په وخت لاس اونه لګوی.

**قوله:** فَلِأُبَايِعَكَ:

**د مذکوره کلمې په اعراب کښې دوه احتمالات:** ① په عین باندې د نصب احتمال هم جائز دې دا احتمال داسې دې چه فاء کلمه زائده وی اود دې نه پس لام کلمه په معنی د لام "کی" تعلیلیه وی کوم چه ناصب دفعل وی یعنی "کی أبایعك" نوعین منصوب دې.

② په عین باندې د ضمه احتمال هم جائز دې او لام به زائده وی په دې صورت کښې به په عین باندې ضمه راځی اوفاء به تفریعیه وی یعنی ابسط یمینك فأبایعك.

**قوله:** فَقَالَ: تَشْتَرِطُ مَاذَا؟:

**په مذکوره جملې باندې اشکال:** دما ذا کلمه چونکه استفهام دې په دې وجه داد کلام صدارت غواړی دلته صدارت نشته؟

**داشکال جواب:** دلته ماذا دکلام په شروع کښې محذوف دې او مذکوره ماذا په آخر کښې ددې تفسیر دې یعنی ماذا تشترط ماذا. یاداسې اوګنړئی چه حضورپاك د انکار او دتعجب په توګه په استفهام سره پوښتنه اوکړه اتشترط؟ یعنی په اسلام کښې شرط لګوې؟ بیائی پوښتنه اوکړه ماذا؟ څه شرط لګوې نودا ماذا جدا کلمه ده کوم چه جدا سوال سره راغلې ده او په صدرات باندې واقع ده بیاد کلام مجموعه داسې جوړه شوه تشرط ماذا همزه استفهام حذف کړې شوه.

**قوله:** أَمَا عَلِمْتَ يَا عَمْرُو:

**عمرو ته د علم نسبت کولو مطلب:** یعنی ته عقلمند هوښیار په دنیاکښې ګرځیدلې او پوهه سړې ئی ولې تانه داخبره پته ده کومه چه د یوعقلمندنه هم نه دی پکار. رسول الله ﷺ د

هغه دَعقل حواله ورکړه ګنی عمرو رضي الله عنه په مذکوره مسئله کښې دَ ایمان نه وړاندې څنګه خبر یدلې شو.

**قوله:** أَنَّ الْإِسْلَامَ يَهْدِمُ مَا كَانَ قَبْلَهُ:

**د اسلام سره دګناهونو دمعاف کیدو څخه مراد:** دَجمهور علماؤ په نیزکله چه یوغیرمسلم حربی یعنی غیرذمی اسلام قبلوی نواسلام دَهغه صغائر ګناه او کبائرټول ختمه وی اوحقوق الله اوحقوق العباد مظالم اوغیرمظالم ټول ګناهونه ختموی.

**قوله:** وَأَنَّ الْهِجْرَةَ تَهْدِمُ مَا كَانَ قَبْلَهَا:

**دهجرت څخه مراد:** یعنی زما په ژوند کښې دَمکې نه مدینې ته هجرت اودَ فتح مکه نه پس دارالحرب نه داراسلام طرف ته هجرت کول یعنی اسلام، هجرت او حج دریواړه وړاندینی ټول ګناهونه ختموی

**قوله:** وَأَنَّ الْحَجَّ يَهْدِمُ مَا كَانَ قَبْلَهُ:

**په هجرت او حج سره د ټولو ګناهونو په معاف کیدو کښې دوه مذاهب:**

① دحافظ توربشتی رحمه الله اودَمتقدمینو شارحینو خیال دې چه هادم صرف اسلام دې اوحج او هجرت سره صرف صغائرمعاف کیږی مطلقًا اوکبائر هغه وخت معاف کیږی کله چه دې سره توبه یوځائی کړې شی شرط دادې چه دَهغې تعلق حقوق الله سره وی اوکه چرې هغه کبائر حقوق العباد سره متعلق وی نوصاحب حق نه دَ معاف کولونه بغیر صرف په توبې سره هغه هم نه معاف کیږی. خلاصه داشوه چه هجرت اوحج سره کبائرنه معاف کیږی.

② دَعلامه طیبی رحمه الله اوعلامه قسطلانی رحمه الله رائې داده چه دَ اسلام په شان هجرت اوحج سره هم ټول صغائر اوکبائر معاف کیږی اوکوم حکم چه په هادم کیدوکښې دَاسلام دې هم هغه دَحج اوهجرت هم دې.

**داول فریق دلیل:** دَ نصوص قرآن نه هم دا معلومیږی لکه ﴿ إِنْ تَجْتَنِبُوا كَبَائِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ نُكَفِّرْ عَنْكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ ﴾ دَ نص مقیدنه دَ صغائرَمعاف کیدل معلومیږی لهذا نصوص مطلقه په نصوص مقیده باندې حمل کولوسره به دَ صغائر اوکبائر دَ قید لحاظ ساتلې کیږی.

**دوییم فریق دلیل:** علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه زه په علماء متقدمین باندې رد کول نه غواړم دَهغوی رائې اوتحقیق په خپل ځائی باندې صحیح دې اودَ عام قواعدو مطابق دې لیکن زه نفس حدیث ته په کتلو اودَدې سیاق اوسباق اواسلوب کلام اودَ بلاغت اوفصاحت اصولو ته په کتلوسره دَدې ویناکولو حق لرم چه دَ اسلام دَپاره کوم خصوصیت ذکرکړې شوې دې هغه خصوصیت هجرت اوحج دَپاره هم حاصل دې ځکه چه په نفس حدیث کښې یوځو داسې قرائن دی دَ کوم نه چه په واضح توګه دَ اسلام، هجرت

اوحج خصوصیت یوشان معلومیږي:

**د اسلام اوهجرت اوحج د یوشان خصوصیت کیدو قرائن:** ① رسول الله ﷺ چه څنګه دَاسلام تشبيه دګناهونو په ختمولو کښې دَ مکان اوغر ماتونکی هادم دَ آلې سره ورکړې ده بعینه هم دغه تشبیه ئی حج اوهجرت ته هم ورکړې ده چه په هدم ذنوب کښې حج اوهجرت هم دَ اسلام په شان عام اومطلق دي.

② حضرت عمروبن العاص رضي الله عنه دَ اسلام نه وړاندې دَخپلو ټولو ګناهونو دَمغفرت شرط لګولې وو حضورپاك دَ اسلام نه علاوه هجرت اوحج هم دَهغه دَتسلئی دَپاره ذکرکړل چه ته دَ اسلام خبره کوې زه تاته ښایم چه دَمغفرت داخصوصیت خو دَ اسلام نه علاوه حج اوهجرت کښې هم دې.

③ صیغه دَ یهدم هرځل مستقلاً تکرارسره راتلل پخپله دَدې خبرې دلیل هم دې اوتاکیدهم دې چه کوم کاردَ اسلام دې په مستقل توګه دَ هجرت اوحج هم دې.

④ اسلام حج اوهجرت دلته دَعطف په ذریعه ذکرکړې شوی دی او معطوف معطوف علیه کښې کمال مناسبت ضروری دې دلته دَ مناسبت قویه شکل به مساوات فی الحکم کښې ښکاره کیږی چه کوم حکم دَاسلام دې هم هغه دَ دې دَ معطوفاتو دَ حج اوهجرت دې لهذا څنګه چه اسلام دَ صغائر اوکبائرټولودَ پاره هادم دې حج اوهجرت هم هغه شان دی.

⑤ دَعلامه طیبی رحمه الله داتحقیق ډیرښکلې دې اوکوم آیت چه علامه توریشتی رحمه الله دَاستدلال په توګه پیش کړې دې دَهغې نه معتزلو هم استدلال کړې دې لیکن دآیت خپل صحیح اوواضح تفسیر هم دې کوم چه علامه شبیراحمدعثمانی رحمه الله خپل تفسیر عثمانی کښې نقل کړې دې هلته دې اوکتلې شی.

هسې کوم خلق چه دَ حج مشقتونه زغمی څومیاشتې هلته تیره وی ولې هغوی به دَ ګناهونونه توبه نه کوی اودَحقوق العباد انتظام به نه کوی؟ دغه شان دَ هجرت په شان لویه قربانی ولې دَ توبې به خالی وی؟ کله چه توبه عقلاً اوعرفًا ملحق ده نوبیا په مغفرت کښې څه شك دې؟[الکاشف: ۱/۱۷۰-۱۷۱]

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۲۹] جنت ته داخلونکی اعمال

۲۹ – ()[۲۶] ① وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُ قَالَ قُلْتُ ② يَارَسُوْلَ اللهِ أَخْبِرْنِيْ بِعَمَلٍ يُدْخِلُنِيَ الْجَنَّةَ وَيُبَاعِدُنِي عَنِ النَّارِ ③ قَالَ لَقَدْ سَأَلْتَ عَنْ أَمْرٍ عَظِيْمٍ وَإِنَّهُ لَيَسِيْرٌ عَلَى مَنْ يَسَّرَهُ اللهُ تعالى عَلَيْهِ

[۱] ) اخرجه الترمذی کتاب الإيمان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی حرمة الصلاة (رقم-۲۶۱۶) واحمد فی المسند ۲۰۵/٤. وابن ماجة كتاب الفتن/باب كف اللسان فی الفتنة (رقم-۳۹۷۳)واحمد فی المسند ۲۳۱/٥.

[۴] تَعْبُدُ اللهَ وَلَا تُشْرِكُ بِهِ شَيْئاً وَتُقِيمُ الصَّلَاةَ وَتُؤْتِي الزَّكَاةَ وَتَصُومُ رَمَضَانَ وَتَحُجُّ الْبَيْتَ [۵] ثُمَّ قَالَ أَلَا أَدُلُّكَ عَلَى أَبْوَابِ الْخَيْرِ [۶] الصَّوْمُ جُنَّةٌ وَالصَّدَقَةُ تُطْفِئُ الْخَطِيئَةَ كَمَا يُطْفِئُ الْمَاءُ النَّارَ [۷] وَصَلَاةُ الرَّجُلِ فِي جَوْفِ اللَّيْلِ

**ترجمه:** [۱] حضرت معاذ بن جبل ﷺ وايي چې ما عرض اوکړو [۲] يارسول الله ﷺ ماته څه عمل داسې وښايه چې ما جنت ته بوځي او د دوزخ د اور څخه مي وساتي، [۳] رسول الله ﷺ وفرمايل حقيقت خو دادي چې تا د يو ډير لوي شي پوښتنه کړي ده خو په چا چې يي الله تعالی آسان کړي د هغه د پاره دا ډيره آسانه هم دي، [۴] بيايي وفرمايل د الله تعالی بندگي کوه او د هغه سره څوك شريك مه جوړوه، مونځ په پابندي سره کوه، زکوٰة ورکوه، د رمضان روژې نيسه او د خانۀ کعبې حج کوه، [۵] بيايي د دې څخه وروسته وفرمايل چې اي معاذه آيا وتا ته د خير او نيکي دروازې ونه ښيم؟ [۶] نو واوره) روژه (يو ډال دي (چې د گناه څخه سړي ساتي او د دوزخ د اور څخه محفوظه ساتي) او د الله په لارکې خرځ کول گناه داسې لرې کوي څنگه چې اوبه اور مړ کوي [۷] (او دغسې) د شپې (تهجد) کې د مومن مونځ کول (گناه ختموي)

**حل اللغات:** ① يُبَاعِدُنِي : لرې مې کړې، بچ مې اوساتې. ② تُطْفِئُ : يَعْنِي تُذْهِبُهَا وَتَمْحُو: مړکوي يعنې لرې کوي اوختموي (اثر د گناه)،

[۱] ثُمَّ تَلَا (تَتَجَافَى جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ) حَتّٰى بَلَغَ يَعْمَلُونَ [۲] ثُمَّ قَالَ أَلَا أَدُلُّكَ بِرَأْسِ الْأَمْرِ وَعَمُودِهِ وَذِرْوَةِ سَنَامِهِ قُلْتُ بَلٰى يَا رَسُولَ اللهِ [۳] قَالَ رَأْسُ الْأَمْرِ الْإِسْلَامُ وَعَمُودُهُ الصَّلَاةُ وَذِرْوَةُ سَنَامِهِ الْجِهَادُ [۴] ثُمَّ قَالَ أَلَا أُخْبِرُكَ بِمِلَاكِ ذٰلِكَ كُلِّهِ قُلْتُ بَلٰى يَا رَسُولَ اللهِ [۵] قَالَ فَأَخَذَ بِلِسَانِهِ وَقَالَ كُفَّ عَلَيْكَ هٰذَا [۶] فَقُلْتُ يَا نَبِيَّ اللهِ وَإِنَّا لَمُؤَاخَذُونَ بِمَا نَتَكَلَّمُ بِهِ [۷] فَقَالَ ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ يَا مُعَاذُ وَهَلْ يَكُبُّ النَّاسَ فِي النَّارِ عَلٰى وُجُوهِهِمْ أَوْ عَلٰى مَنَاخِرِهِمْ إِلَّا حَصَائِدُ أَلْسِنَتِهِمْ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَةَ.

**ترجمه:** [۱] بيا هغه ﷺ دا آيت تلاوت کې (چې په هغه کې د تهجد کونکو او د شپې دعبادت کونکو فضيلت بيان شوې دي او د دې پوره آيت ترجمه داده: (د مؤمنانو نيکانو) اړخ (په شپې کې) د بسترو څخه جدا وي (او) هغه خپل پروردگار د ويرې او اميد سره يادوي اوڅه (مال) چې مونږ هغه ته ورکړي دي د هغه څخه (د الله په لار کې) خرځ کوي، هيڅ يو ساه اخستونکي ته معلومه نه چې دهغه مؤمنانو صالحانو د پاره څنگه د سترگو يخوالي پټ اينبودل شوې دي دا دهغوئ د عملونه بدله (انعام) دي چې هغوئ به کول، [۲] بيا حضور ﷺ وفرمايل آيا تاته د هغه شي (يعني دين) سر او د هغه ستن او د هغه دکوهان (بوک) اوچت والي ونه ښايم؟ ماعرض اوکړو چې هو يا رسول الله ﷺ ضرور يي راته اوښايه، [۳] ده ﷺ وفرمايل د دې شي (دين) سر اسلام دي، د دې ستن مونځ دي او د دې دقب (بوک) اوچتوالي جهاد دي، [۴] بيا رسول ﷺ وفرمايل چې آيا تاته د دې ټولوشيزونو بيخ اواصل ونه ښايم؟ ما عرض اوکړو چې اي د الله پيغمبره

ضرور یې راته وښایه، ⑤ ده ﷺ خپله ژبه مبارکه ونیوله او (د هغې طرف ته د اشارې کولو سره) وفرمایل دا بنده ساته، ⑥ ما عرض اوکړو چې اې د الله نبي ﷺ مونږ چې د خپلې ژبې څخه کوم یولفظ راباسو په هغه به هم مواخذه وي؟ ⑦ رسول الله ﷺ وفرمایل معاذ ثکلتك امك (ستا مور دې تا ورك کړي په ښه شان پوه شه چې) ([1]) خلق به پړ مخې په دوزخ کې د دې ژبې (د خرابو) خبرو په وجه غورزول کیږي. احمد، ترمذي، ابن ماجه

**حل اللغات:** ③ تَتَبَاعَدُ: أَيْ تَتَبَاعَدُ: لرې کیږي، جدا کیږي، ④ الْمَضَاجِعِ: أَيِ الْمَفَارِشِ وَالْمَرَاقِدِ: د بستر نه او دخوب دځایونو نه، ⑤ رَأْسِ الْأَمْرِ: أَيْ مُخْبِرًا بِأَصْلِ كُلِّ أَمْرٍ: د دین جرړه او اصل یعنی بنیاد، ⑥ عَمُودِهِ: أَيْ مَا يَقُومُ بِهِ وَيَعْتَمِدُ عَلَيْهِ: په کوم چه ولاړ وی یعنی ستن (اومونځ د دین ستن ده)، ⑦ ذِرْوَةِ: أَعْلَى الشَّيْءِ: د هر څیز اوچت ځائې ته وائی، ⑧ سَنَامِهِ: مَا ارْتَفَعَ مِنْ ظَهْرِ الْجَمَلِ قَرِيبَ عُنُقِهِ: د اوښ څټ سره چه اوچت کوم ځائ وی هغې ته وائی یعنی قُب، د سَنام جمع اسنمة راځی. ⑨ مِلَاكِ: مَا بِهِ إِحْكَامُ الشَّيْءِ: دکوم څیز په ذریعه چه یوبل څیز ته تقویت او استحکام ملاویږی هغې څیز ته ملاك وائی، یعنی اصل او بنیاد. ⑩ كُفَّ: أَيِ امْنَعْ: بنده ساته، منع ئې کړه، ⑪ ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ: أَيْ فَقَدَتْكَ: ستا مور دې تا ورک کړی یعنی ته دې مړ شې، په ظاهرکښې دا خیرې ښکاری خو ددې نه مراد خیرې نه دی بلکه تادیب او تنبیه ده. ⑫ يَكُبُّ: إِذَا صَرَعَهُ عَلَى وَجْهِهِ: دا په مجرد کښې دَ نصر نه پړمخې راغورزولو دَپاره راځی او دَ باب افعال نه لازمی راځی په معنی د پریوتلو. ⑬ مَنَاخِرِهِمْ: أَيْ ثُقَبُ الْأَنْفِ: مناخر د پوزې سورو ته وائی خو دلته ترې مراد پوزه ده. ⑭ حَصَائِدُ: دا د حصيدة جمع ده، حصيد په وزن د فعيل او فعيل په معنی د مفعول دې، پرې کړې شوی فصل ته وائی خو دلته ترې. أَيْ مَحْصُودَاتُهَا: ریبلی شوی څیزونه مراد دی، یعنی په ژبه باندې کړې شوې دګناه خبرې مثلاً، د کفر خبرې یا کنځل، غیبت، بهتان وغیره.

**تسهیلات:**

**قوله: أَخْبِرْنِيْ بِعَمَلٍ يُدْخِلُنِيَ الْجَنَّةَ:**

**اشکال:** ددې جملې نه معلومیږی چه جنت کښې داخلیدل به دَ نیك اعمالو په وجه وی حالانکه په بل روایت کښې تصریح ده چه دَ جنت داخله به دَ الله تعالی په فضل وکرم او رحمت سره وی؟.

**داشکال دوه جوابونه:** ① دا د سبب طرف ته اسناد مجازی دې. نو ترتیب داسې دې چه اخبار النبي ﷺ سبب دې دَ عمل او عمل سبب دې دَ فضل الهی او رحمت دَ الله تعالی او د فضلِ الهی سبب دې دَ دخول جنت نو مجازاً دَ عمل طرف ته دَ دخول نسبت صحیح دې.
② دَ بعضې محققینو خیال دې چه نفس داخله خو به هم دَ الله تعالی په فضل سره کیږی مګر دَ درجاتو تقسیم اودَ درجاتو تفاوت به دَ اعمالِ صالحه په تفاوت سره وی.

[1] دا یوه محاوره ده چې په عربي ژبه کښې د تعجب دپاره ویل کیږي.

**قوله: لَقَدْ سَأَلْتَ عَنْ أَمْرٍ عَظِيْمٍ:**

**د مذكوره جملې په مفهوم كښې دوه اقوال:** ① ستا سوال يو عظيم الشان سوال دې (ځكه چه دَ جنت دَ داخليدو او دَ دوزخ دَ اور نه دَ خلاصي دَ سبب سوال دې) او چونكه دَدې تعلق امورِ غيبيه سره دې لهذا دَدې جواب دَ هغوی دَپاره آسان دې دَ چا دَپاره چه نبي الله تعالى آسان كړی (او هغه انبياء كرام عليهم السلام وی)

② ستا دا سوال دَ مهتم بالشان فعل باره كښې دې ځكه چه دا سې افعال په نفس باندې ډير سخت او ګران وی مګر دَچادَپاره چه الله تعالى آسان كړی دَهغوی دَپاره په دې باندې عمل آسان دې. [كذا اشعة لمعات]

**قوله: تَعْبُدُ اللهَ:**

**د تعبدالله په تركيب كښې دوه اقوال:**

① دا صيغه دَ مبتدا مقدر خبر دې [اي هوأن تعبد الله]

② دا صيغه دَ امر ده په معنى د اعبد الله ده.

**دتوحيد اهميت:** په دې جمله كښې دَ توحيد ذكراوشو او په روستونو جملوكښې دَ اعمال صالحه ذكر راغلې دې ځكه چه دَ توحيد نه بغيرهيڅ يو عبادت هډو قبول نه دې.

**قوله: أَلَا أَدُلُّكَ عَلٰى أَبْوَابِ الْخَيْرِ:**

**دابواب الخير نه مراد:** شيخ توربشتي رحمه الله او ملاعلي قاري رحمه الله فرمائي چه ددې نه مراد نوافل دی ځكه چه په اعمال نافله سره په فرائضو كښې مضبوطيا او استحكام راځي. او هم دغه وجه ده چه نوافل دَ فرائضو باب او دروازه ګرځولې شوې ده. دَ نوافل په ترك كولو سره فرائضو كښې عدم استحكام او كمزوری راځي

**قوله: أَلَا أَدُلُّكَ:**

**ځپله په جواب وركولو كښې نكته:** جواب وركولو كښې حضورپاك دَ حضرت معاذ رضي الله عنه دَ تپوس انتظار اونه كړو بلكه پخپله ئې جواب وركړو. په دې كښې اشاره ده چه دا مسئله دومره اهم اومهتم بالشان ده چه دَ اوريدونكي دَ جواب انتظار ضروری نه دې.

**قوله: الصَّوْمُ جُنَّةٌ:**

**صوم ته د ډهال وئيلو وجه:** دَ روژې په حالت كښې انسان اوګې وی اودَ اولګې اوتندې نه دَ انسان په رګونو كښې دَ وينې اختيار بنديږی او شيطان هم دَ دغه وينې سره دَ انسان په رګونو كښې منډې وهی په دې وجه هغه دَ روژې په حالت كښې په انسان باندې تصرف نه شی كولې ځكه چه روژه قاطع الشهوات ده نو انسان دَ اور نه بچ كيږی.

**صوم د دوو ځیزونو دپاره ډهال کیدل:** ① روژه دَ جهنم د اور دپاره ډهال دې. څنګه چې یو کس د ډهال سره د دشمن نه حملې څخه ځان بچ کوی دغه شان به روژه دار د روژې په ذریعه د جهنم د اور څخه ځان بچ کوی

② روژه د شیطانی تصرفاتو دپاره هم ډهال دې ددې وضاحت د ,,صوم ته د ډهال وئیلو وجه،، عنوان کښې بیان شو.

دا روژه په هغه وخت کښې ډهال دې چه انسان دا ډهال پخپله اونه شلوی اودَدې شلول دَ روژې سره د منافی امورو مرتکب کیدل دی.

**قوله:** وَالصَّدَقَةُ تُطْفِئُ الْخَطِيئَةَ:

**د ګناه اود صدقې تشبیه:** خطایا خطیئة دَ ګناه په معنی کښې دې. بعضو دې نه صغیره ګناه مراد اخستې ده. دلته دَ تطفئ په لفظ کښې دَ اور مړکولو مفهوم پروت دې. نودَ ګناه تشبیه ئې اورسره ورکړې ده اودَ صدقې تشبیه ئې اوبو سره ورکړې ده. بیاهم دَدغه اور په مناسبت سره اطفاء دَ اورمړکولولفظ استعمال کړې شوې دې په دې کې استعارات دی.

**د روژې څخه روسته دصدقې په ذکرکولو کښې نکته:** روژه دَ ګناهونودَ اور دَپاره ډهال جوړ شو مګر دَ ګناهونودَ ګرمائش بیاهم امکان وو نو په دې جمله کښې دَ ګناهونودَ ګرمائش دَختمولودَپاره دَ صدقې ذکر اوکړې شو او په صدقې سره دَ ګناهونو ګرمائش ختمیږی.

**قوله:** وَصَلَاةُ الرَّجُلِ فِي جَوْفِ اللَّيْلِ:

**د مذکوره جملې ترکیب اود تهجدود موقع عظمت:** داعبارت مبتداء ده اوکذالك خبر محذوف دې ,,أي تطفئ الخطيئة،،دَ شپې په مینځ کښې څکه چه په دې وخت کښې کمالِ اخلاص هم وی اوداعمل په نفس باندې سخت اوګران هم وی.

**قوله:** أَلَا أَدُلُّكَ بِرَأْسِ الْأَمْرِ:

**د رأس الأمر څخه مراد:** حافظ توربشتی رحمه الله فرمائی چه دَ رأس الأمر نه مراد شهادتین او اسلام دواړه دی او په جواب کښې ئې ورته هم اسلام ذکر کړو.

ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه رأس الأمر نه مراد اصل او جرړه ده او په جواب کښې چه دا کوم اسلام راغلې دې دې نه مراد شهادتین دی.

**قوله:** وَذِرْوَةُ سَنَامِهِ الْجِهَادُ:

**د اوبښ د قُب سره د جهاد تشبیه ورکول:** دلته اسلام ته په مضبوطې جثې والا اوبښ سره تشبیه ورکړې شوې ده. بیا دَ اوبښ دَ لوازماتو نه دَهغې قُب دې بیا دَ قُب یوه اوچته پورته حصه وی کومه چه دَ رفعت او عظمت ضامن وی او دَ اوبښ وغیره مذکر دَ شان نښه وی. په

اسلام کښې دَ جهاد مقام هم په دې حیثیت سره ښکاره کړې شوې دې.

علامه طیبی رحمه الله فرمائی [إشارة إلى صعوبة الجهاد وعلو أمره وتفوقه على سائر الأعمال] یعنی دَ ذروه په لفظ سره اشاره ده چه جهاد یو ګران کار دې او یوعالی شان حکم دې چه په ټولو اعمالو باندې فوقیت لری [الکاشف: ۱/۱۷۷-۱۷۶]

**قوله: كُفَّ عَلَيْكَ هٰذَا:**

**دژبې د حفاظت حکم:** یعنی دَ ژبې حفاظت اوکړه او دا دَ فضولیاتو او بې فائدې خبرو نه رامنع کړه په دې سره به ټول احکامات او شرائع محفوظ، مضبوط اومستحکم شی.

**قوله: ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ:**

**دمعاذ رضی الله عنه حیرانتیا:** دلته حضرت معاذ رضی الله عنه په حیرانتیا سره تپوس اوکړو چه آیا دَ ژبې صرف په خبرو باندې به نیول کیږی؟ نوحضورپاك هم لږ شان په سخت انداز کښې جواب ورکړو چه په جهنم کښې په حقیقت کښې هم دَ ژبې بې احتیاطی بنیادی حیثیت لری. دَ غټو غټو ګناهونو او غټو غټو فتنو تعلق هم دَ ژبې سره دې.

**قوله: إِلَّا حَصَائِدُ أَلْسِنَتِهِمْ:**

**د ژبې د ګناهونو فصل کټ کونکی لور سره د تشبیه ورکولووجه:** دلته محصودات الألسنه (یعنی دَ انسان دَ ژبې خبرې اترې اودَ فضول کلام) تشبیه ئې هغه پټی سره ورکړې ده چه په تیره لور سره پرې کړې شوې وی. دا یوه فصیح او بلیغ تشبیه ده لکه چه ژبه بغیردَ څه تمیزنه هرجائز اوناجائز کلام کښې داسې لګیدلې ده لکه څنګه چه لور دَ وښو پرې کولو په وخت کښې دا تمیز نه کوی چه هغه کوم قسم واښه ریبی. آیا فائده ورکونکی هم دی اوکه زهریلا دی. بهرحال دلته دَ ژبې خطرې په ډیر بلیغ انداز کښې خودلې شوې دی څکه چه ژبه دَ خیر او شر جرړه ده.

## [۲۰] دالله تعالی د رضا دپاره د محبت او بغض ساتلو فضیلت

۳۰-()[۲۷] [۱] وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[۲] «مَنْ أَحَبَّ لِلَّهِ، وَأَبْغَضَ لِلَّهِ، [۳] وَأَعْطَى لِلَّهِ، وَمَنَعَ لِلَّهِ، فَقَدِ اسْتَكْمَلَ الْإِيمَانَ» "رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

ترجمه: [۱] حضرت ابو امامه رضی الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] کوم سړي چې یوازې د الله د پاره محبت [۳] او د الله د پاره بغض او د ښمني ساتي او د الله د پاره خرڅ کوي نو یقینًا هغه ایمان کامل کي، ابو داود

**حل اللغات:** ① أَحَبَّ لِلَّهِ: خالص د الله دپاره محبت کوی (دڅه څیز سره یا دکوم انسان سره، نور ئې خپل څه شهوت او غرض نه وی خالص دالله رضا ئې مطلوب وی) ② أَبْغَضَ لِلَّهِ: خالص دالله دپاره

[۱] رابوداود کتاب السنة /باب الدلیل علی زیادة الإیمان ونقصانه (رقم-۴۶۸۱)

بغض او نفرت کوی (په څه ځیز ورکولو کښې، منع کولو کښې، خبروکښې، خاموشئ کښې یعنی هرڅه کښې ئې خالص دالله رضا مطلوب وی، خپل خواهش، نفرت او انتقام وغیره ئې مقصود نه وی).

٣١-()[٠][١]وَرَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ عَنْ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ مَعَ تَقْدِيمٍ وَتَأْخِيرٍ[٢]وَفِيهِ: فَقَدِ اسْتَكْمَلَ إِيمَانَهُ".

ترجمه: [١]او ترمذي دا روايت دمعاذ بن انس رضی الله عنه څخه څه قدري مخکې والي او وروسته والي د الفاظو سره نقل کړي دي[٢] چې د هغه آخري الفاظ دادي نو يقيناً هغه خپل ايمان كامل كړلو

**دراوي مختصر تعارف:** نوم اياس مګر دَ بعضو په نيز دَ هغه نوم عبدالله بن ثعلبه دې بعضو دَ دې عکس يعنى ثعلبه بن عبدالله وئيلي دي كنيت ابوامامه دَ پلار نوم ثعلبه يا عبدالله وو اودَ قبيله خزرج نه وو.

**مرويات**: دَ هغه نه دوه روايات نقل دی بعض وائی درې روايات نقل دی.په يوکښې مسلم په دويم كښې بخاري منفرد دى.

**تسهيلات: قوله**:مَنْ أَحَبَّ لِلَّهِ:

**دايمان دَ تكميل دپاره د مذكوره صفاتو د تخصيص وجه:** نبی کریم ﷺ دې ځائې د ايمان د تكميل څلور ځيزونه په طور د علامت بيان فرمائيلی دی. ددې څلورو ځيزونو تخصيص ئې په دې وجه فرمائيلې دې چې دا څلور ځيزونه د لذائذ نفس د قبيل څخه دی. په دې وجه په دې كښې اخلاص پيدا كول ډير مشكل دی. هرکله چې يو كس په لذائذ نفس كښې اخلاص پيدا كولو كښې كامياب شی نو په نورو ځيزونو كښې به بدرجه اولی مخلص وی. او هم دا كمال دې.

### [٢٢]په قلبی اعمالوکښې افضل عمل

٣٢-()[٢٨][١]وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[٢]«أَفْضَلُ الْأَعْمَالِ الْحُبُّ فِي اللَّهِ وَالْبُغْضُ فِي اللَّهِ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١]او حضرت ابوذر رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[٢] (په باطني) عملونو کې د ټولو څخه افضله مرتبه د هغه عمل ده چې د الله د پاره (د چا سره) محبت وي او د الله د پاره (د چا سره) بغض او دښمني ساتي. ابو داود

**حل اللغات:**①الْحُبُّ فِي اللَّهِ:دالله د رضا دپاره محبت كول،②الْبُغْضُ فِي اللَّهِ:دالله د رضا دپاره نفرت او بغض كول (يعنى محبت ئې هم د الله د رضا دپاره وی او نفرت ئې هم د الله د رضا دپاره وی).

[١] ) اخرجه ترمذی کتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/بباب (رقم-٢٥٢١) واحمد فى المسند٣/٤٠٥.

[٢] ) وابوداود کتاب السنة/باب مجانبة أهل الأهواء وبغضهم(رقم-٤٥٩٩)

**تسهيلات: قوله:** أَفْضَلُ الْأَعْمَالِ الْحُبُّ فِي اللَّهِ..الخ:

**د مذكوره عمل د افضليت وجه:** دا اعمال ئې ذدې ذپاره ذټولونه غوره اوګرځول چه دااعمال قلبيه دی کوم چه صرف الله تعالی ته معلوم دی ځکه چه ذ رياکارئی نه محفوظ دی ذ قلبی کيفيت ذ کيدوذ وجې نه ذ ځان خودلو امکان نشته.

**[۲۲] د رښتني مومن مسلمان صفات**

**۳۳-( )[۲۹] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[۲] «الْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ، [۳] وَالْمُؤْمِنُ مَنْ أَمِنَهُ النَّاسُ عَلَى دِمَائِهِمْ وَأَمْوَالِهِمْ» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ.**[۱]

ترجمه: [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کامل او (رښتني) مسلمان هغه دي چې د هغه د لاس او ژبې (د ضرر څخه) مسلمان محفوظ وي [۳] او (پوخ او صادق) مؤمن هغه دي چې د هغه څخه خلق خپل ځان او مال محفوظ وګڼي ترمذي نسائي

**حل اللغات:** ① سَلِمَ: چه سلامت وی، محفوظ وی (خلق)، ② لِسَانِهِ: أَيْ: بِالشَّتْمِ، وَاللَّعْنِ: د ژبې نه مراد دهغې ضررونه دی (مثلاً کنځل، بد رد ويل، غيبت، بهتان وغيره). ③ يَدِهِ: أَيْ بِالضَّرْبِ، وَالْقَتْلِ: د لاس نه مراد د لاس ضررونه دی. (مثلاً وهل ټکول، قتلول، ورانول وغيره). ④ أَمِنَهُ: يَعْنِي جَعَلُوهُ أَمِينًا: يعنی خلقو دې امين اوګڼړلو دخپل ځان او مال باره کښې يعنی خلق ترې محفوظ وی.

**۳۴-( )[۰] [۱] وَزَادَ الْبَيْهَقِيُّ فِي " شُعَبِ الْإِيمَانِ " بِرِوَايَةِ فَضَالَةَ: " [۲] «وَالْمُجَاهِدُ مَنْ جَاهَدَ نَفْسَهُ فِي طَاعَةِ اللَّهِ [۳] وَالْمُهَاجِرُ مَنْ هَجَرَ الْخَطَايَا وَالذُّنُوبَ» ".**[۲]

ترجمه: [۱] او شعب الايمان کې بيهقي د فضاله څخه کوم روايت نقل کړي دي په هغه کې دا الفاظ هم دي: [۲] او (حقيقي) مجاهد هغه دي چې د الله په اطاعت او عبادت کې د خپل نفس سره جهاد اوکړو [۳] او (اصل) مهاجر هغه دي چې ټول واړه او لوي ګناهونه يې ترک کړل.

**حل اللغات:** ① جَاهَدَ: د باب مفاعله نه د ماضی صيغه ده، ځان ئې اوکړولو. يعنی جهاد ئې اوکړو. ② هَجَرَ: أَيْ تَرَكَ: چه پريخودل، ③ الْخَطَايَا: صغيره ګناهونه. ④ الذُّنُوبَ: کبيره ګناهونه.

**تسهيلات:**

**قوله:** الْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ:

**نوټ:** ددې حديث پاك ړومبی حصه باندې كلام حديث نمبر (۲) كښې تير شوې دي.

[۱] اخرجه النسائی باب صفة المسلم (رقم-۴۹۹۶) والترمذی كتاب الإيمان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی أن المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده (رقم-۲۶۲۷)

[۲] اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ۱۱۱۲۲ واحمد فی المسند ۲۱/۶

**قوله**: وَالْمُجَاهِدُ مَنْ جَاهَدَ نَفْسَهُ فِي طَاعَةِ اللَّهِ:

**نوټ**: جهاد سره متعلق مباحث به په كتاب الجهاد كښې راشي دهغې انتظار اوكړئ.

**قوله**: وَالْمُهَاجِرُ مَنْ هَجَرَ الْخَطَايَا وَالذُّنُوبَ:

**د خطايا څخه مراد**: د خطايا څخه مراد واړه ګناهونه دى او الذنوب لوې ګناهونوته وائى ځينې اهل لغت دا ترتيب بيان كړې دې چې (۱) سيئات (۲) خطايا (۳) ذنوب (۴) معاصى دې ترتيب سره واړه او بيا لوې ګناهونه دى، خطايا كښې عمد نشته او په ذنوب كښې عمد شته دې.

**[۲۵] د امانت او وعدې د پوره كولو اهميت**

۳۵-()[۳۰] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] قَلَّمَا خَطَبَنَا رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِلَّا قَالَ: "[۳] «لَا إِيمَانَ لِمَنْ لَا أَمَانَةَ لَهُ، وَلَا دِينَ لِمَنْ لَا عَهْدَ لَهُ»". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

ترجمه: [۱] او حضرت انس ﷺ وايي [۲] چې رسول الله ﷺ به داسې خطبه كمه وركړې وې چې په هغه كې يې دا نه وي فرمايلي [۳] چې كوم سړي كې امانت نشته دهغه ايمان هم هيڅ نه دي او په چا كې چې ايفاء عهد (وعده پوره كول) نشته د هغه دين هم هيڅ نه دي. شعب الايمان

**حل اللغات**: ① قَلَّمَا خَطَبَنَا: په قَلَّمَا كښې ما مصدريه ده، يعنى كم كوز. أَيْ قَلَّ خُطْبَةً: ډيره كمه خطبه به داسې وه.

**تسهيلات**:

**قوله**: لَا إِيمَانَ لِمَنْ لَا أَمَانَةَ لَهُ:

**د امانت او عهد په مصداق كښې پنځه اقوال**:

① بعضې علماؤ دَامانت نه مراد فرائض، دين او حدود الله اخستى دى.

② په دې حديث كښې دَامانت څخه مراد هغه امانتونه دى چه دَخلقو په خپل مينځ كښې دَ اموالو مجالسو اودكلام رازدارئى او حفاظت سره متعلق دى اودَعهدنه مرادهم دَخلقو په خپل مينځ كښې وعدې اومعاهدې دى په دې كښې به دَ تغليظ اوتشديدپه ايمان كښې نفى دكمال دَايمان ده چه هغه سړې كامل مسلمان نه دې چه دَخلقو په امانتونو كښې خيانت كوى.

---

[۱]) اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۴۳۵۴ واحمد فى المسند: ۱۵۴/۳

③ دَامانت څخه مراد تکالیف شرعیه دی دکوم طرف ته چه آیت ﴿ إِنَّا عَرَضْنَا الْأَمَانَةَ عَلَى السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ ﴾ کښې اشاره فرمائیلې شوې ده اودَ عهدڅخه مراد دَعالم ارواح وعده ﴿أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ ۖ قَالُوا بَلَىٰ﴾ ده په دې صورت کښې دَ ایمان په نفی کښې هیڅ اشکال نشته ځکه چه هغه خوپوره دین دې نوکه داقسم امانت او عهدچرته په یوسړی کښې نه وی نوپه هغه کښې هم ایمان نشته نودَ اصل ایمان نفی ده.دا دویم او دریم نمبر احتمالات شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله بیان کړی دی.

④ ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه کوم خلق دَعام خیانت او وعده خلافئی عادت شی اوبیاپه دغه وعده خلافئی او خیانت کښې ترقی کولوسره کفرته اورسی نوممکن ده چه داقسم خلق دَدې حدیث مرادوی نوبیابه داحکم په اعتبار مایؤل الیه شی چه په چاکښې شته اونه ئی دین شته، امانت مع الله دادې چه دَهغه دَاوامراو نواهی پوره پوره خیال اوساتلې شی او امانت مع الخلق دادې چه په معاملاتوکښې دَهغوی دَ حقوقوخیال اوساتلې شی نودَحقوق الله اوحقوق العباد لحاظ ساتل کامل ایمان دې.

⑤ دَعلامه شبیراحمدعثمانی رحمه الله رائې ده چه دَ امانت څخه مراد دَایمان او دَ هدایت یوتخم اواستعداددې کوم چه دَانسانانوپه زړونوکښې شیندلې شوې دې دکوم طرف ته چه دَحضرت حذیفه رضی الله عنه روایت اشاره کوی هغه فرمائی "الأمانة نزلت من السماء على جذر قلوب الرجال الخ" بیاقرآن کریم نازل شونوهغه استعدادزیات ښکاره شو. دَدې روایت په اعتبارسره امانت هغه خلقی او طبعی استعداددې کوم ته چه فطرت وئیلی شی دَدې تفصیل به په کتاب الفتن کښې راشی.

**اشکال:** دې نه وړاندې تیرشوی دی چه ایمان اودین یودې بیاایمان اودین په جدا جدامعنی ولې پیش کړې شوپه کوم سره چه دَ تباین پته لګی؟

**داشکال دوه جوابونه:** ① په معنوی اعتبارسره ایمان اودین متحددی دلته دَدواړو ذکرکول معنوی تکرار دې کوم چه دَتاکیددَپاره دې لفظی تکرارنه دې.

② په ایمان اودین او اسلام کښې دَ یورائې مطابق تباین دې نودلته دَ تباین په توګه بیان کړې شو.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [٣٦] د اَبَدي خلاصون ضمانت

٣٦-(١)[٣١] [١] عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [٢] يَقُولُ: "«مَنْ شَهِدَ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللّٰهِ [٣] حَرَّمَ اللّٰهُ عَلَيْهِ النَّارَ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] حضرت عباده بن صامت ﷺ وايي چې ما درسول الله ﷺ څخه دا واوريدل [٢] چې کوم سړي (د زړه د اخلاصه) د دې خبرې ګواهي وکړي چې د الله څخه ماسوا بل څوك د عبادت لايق نشته او محمد ﷺ د هغه رسول دي، [٣] نو الله تعالى ﷻ (به په خپل فضل وکرم سره) په هغه د دوزخ اور حرام کړي. مسلم

**تسهیلات:**

**نوټ:** صرف د شهادتينو په وئيلو د دخول جنت تفصيل وړاندې بار بارتير شوې دې.

### [٣٧] د توحيد په اقرار جنت ته داخليدل

٣٧-(٢)[٣٢] [١] وَعَنْ عُثْمَانَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: " [٢] «مَنْ مَاتَ وَهُوَ يَعْلَمُ أَنَّهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ [٣] دَخَلَ الْجَنَّةَ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت عثمان بن عفان ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] کوم سړي چې په دې (پوخ) اعتقاد وفات شو چې د الله څخه ماسوا بل معبود نشته [٣] نو هغه جنتي دې، مسلم

**حل اللغات:** ① يَعْلَمُ: أَيْ عِلْمًا يَقِينًا: يقيني طور ورته معلومه وي. دَعلم نه مراد علم يقيني اوعقد جازم دې، صرف معرفت نه دې اوعقد جازم انقياد اوتسليم لره مستلزم دې.

**تسهیلات:** **قوله:** مَنْ مَاتَ وَهُوَ يَعْلَمُ أَنَّهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ دَخَلَ الْجَنَّةَ:

**د الله تعالى د وحدانيت د عقيدې ساتلو عظمت:** عقد جازم او دَدې عقيدې لرلونه پس په دې کښې هيڅ حرج نشته چه دغه سړی ته دَ زبانی اقرار وخت ملاؤنه شويا وخت ملاؤ شو مګرفوراً ئې په ژبه سره اقرار اونه کړو ياپه زبانی اقراربانديې قادرنه شو يادَ اقرارواجب کيدو هغه ته علم نه وو ياچادَهغه نه دَاقرار مطالبه اونه کړه اودا سړې مخکښې مړشو نو په دې ټولو صورتونو کښې دا سړې جنتی دې اوهم دغه عقيده کافی ده. دَ وهويعلم مفهوم هم دغه دې.

١) اخرجه مسلم كتاب الايمان باب من لقى الله بالإيمان وهو غير شاك فيه دخل الجنة وحرم على النار٤٧ - (٢٩)) والترمذى كتاب الإيمان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم / باب ماجاء فيمن يموت وهويشهد أن لا إله إلا الله (رقم٢٦٣٨)

٢) اخرجه مسلم كتاب الايمان باب أول الإيمان قول لا إله إلا الله(رقم-٤٣ - (٢٦)) واحمد فى المسند ٦٩/١

**قوله**: لَاإِلَهَ إِلَّااللَّهُ:

**د نبی علیه السلام د رسالت لزوم**: دې جملې سره دَمحمد رسول الله جمله مستلزم ده که څوك دَدې ذکراوکړی اوکه اونه کړی ځکه چه لااله الاالله دَ شهادتینو دَ پاره په توګه دَعلم دې نوایمان بالرسالة هم په ده کښې راغلو لکه چه وړاندې تحقیق تیرشوې دې.

**قوله**: دَخَلَ الْجَنَّةَ:

**نوټ**: دخول اولی یا که ثانوی وی داټول مباحث تیر شوی دی.

## [۳۸] دجنت او د دوزخ واجبونکي اعمال

۳۸ –()[۳۳] ① وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " ② «ثِنْتَانِ مُوجِبَتَانِ " ③ قَالَ رَجُلٌ: يَارَسُولَ اللَّهِ، مَا الْمُوجِبَتَانِ؟ ④ قَالَ: " مَنْ مَاتَ يُشْرِكُ بِاللَّهِ شَيْئًا دَخَلَ النَّارَ، ⑤ وَمَنْ مَاتَ لَا يُشْرِكُ بِاللَّهِ شَيْئًا دَخَلَ الْجَنَّةَ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ① او حضرت جابر ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② دوه خبري (جنت او دوزخ) واجب کونکي دي، ③ یو صحابي عرض وکړو چې هغه کومي دوه خبري دي؟ ④ حضور ﷺ وفرمایل اوله خبره خو دا چې کوم سړي په دي حال کي مړسو چې هغه د الله سره څوك شریك کړي وو نو هغه به د دوزخ په اورکي اچول کیږی ⑤ (او دویمه خبره دا چي) کوم سړي چې په دي حال کي وفات شو چې هغه څوك د الله سره نه وو شریك کړي نو هغه به جنت ته ځي. مسلم

**حل اللغات**: ① ثِنْتَانِ: داصفت دي دَدې موصوف محذوف دې یعنی: أَيْ خَصْلَتَانِ: دوه صفتونه، دوه خویونه، ② مُوجِبَتَانِ: مَا يَجِبُ بِهِ الْجَنَّةُ أَوِالنَّارُ: واجب کونکی دوه څیزونه (چه هغې سره یا جنت واجبیږی یا دوزخ).

**د راوي مختصر تعارف**: د دوی نوم حضرت جابر، کنیت ئې ابو عبدالله دي د خزرج قبیلې سره تعلق ساتی د پلار نوم ئې عبدالله او د مور نوم ئې نسیبه وو د دوی نیکه عمرو د خپل خاندان سردار وو په عقبه ثانیه کښې ئیې د خپل پلار سره ایمان راوړې وو د احد نه پس په ټولو غزاګانو کښې شریک شوې وو د نبی کریم ﷺ سره ئې په ۱۹ غزاګانو کښې شرکت کړې وو (۲)

[۱] ) اخرجه مسلم کتاب الإیمان/باب من مات لا یشرک بالله شیئا دخل الجنة، ومن مات مشرکا دخل النار(رقم-۱۵۱ - (۹۳) واحمد فی المسند :۳/۳۹۱.

[۲] ) مسند احد (۳\۳۲۹)_ (۲) اسدالغابة (۲\۲۵۷)_ (۳) الادب المفرد)_ (٤) تهذیب التهذیب)_ (۵) مسند احمد (۳\۳۲۰)_

په ۳۷ هجری کښې د حضرت علی رضي الله عنه اوحضرت امیرمعاویه رضي الله عنه په خپل مينځ کښې جنګ کښې دوی د حضرت علی رضي الله عنه په ملګرتیا کښې جنګیدلې وو(۲)

حضرت جابر رضي الله عنه د نبی کریم ﷺ نه پس د نورو خلقو نه هم علم دین زده کړې وو په هغوی کښې حضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه، حضرت عمر رضي الله عنه،حضرت علی رضي الله عنه، حضرت ابوعبیده رضي الله عنه،حضرت طلحه رضي الله عنه،حضرت خالد بن ولید رضي الله عنه،حضرت معاذبن جبل رضي الله عنه،حضرت ابوهریره رضي الله عنه،حضرت عبدالله بن انیس رضي الله عنه،حضرت ابوسعید خدری رضي الله عنه وغیره شامل دی یوځل ورته معلومه شوه چه حضرت عبدالله بن انیس رضي الله عنه سره یو حدیث دې او هغوی په شام کښې اوسیدو نو دوی اوښ واخستل او بیا هلته لاړلو او هغه حدیث ئې واورید.

د دوی شاګردان هم ډیر دی مثلاً امام باقر،عبدالله بن منکدر، حسین بن محمد بن حنفیه وغیره په خړی عمر کښې نابینا شوې وو.

**وفات:** دحجاج بن یوسف په زمانه کښې د ۹۴ کالو په عمر کښې وفات شوې وو وصیت ئې کړې وو چه حجاج به زما د جنازې مونځ نه کوی د دې وجې د حضرت عثمان ځوی ابان د دوی د جنازې مونځ کړې وو او په بقیع کښې دفت شوې وو خو بعضې وائی چه د جنازې مونځ هم حجاج بن یوسف کړې وو.

**مرویات:** د دوی د روایاتو شمار ۵۴۰ دې په احادیث کښې بهٔ ئې ډیر زیات احتیاط کولونبی ﷺ ته رسولو په ځائې بهٔ ئې په ځان باندې حدیث موقوف کولو د ویرې د وجې چه په نبی ﷺ باندې رانه د څه تیکی کمې زیاتې اونشی.

**تسهیلات:**

**قوله: ثِنْتَانِ مُوجِبَتَانِ:**

**د وجوب په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① واجبونکې او وجوب دَ اهل سنت والجماعة په نیزدَالله تعالی دَخپلې وعدې او احسان اواکرام په توګه دې

② واجبونکې او وجوب د معتزلؤ په نیز پخپله داعمل واجبونکې دې او په الله تعالی باندې بدله ورکول واجب او لا زم وی.

**دحدیث مفهوم:** دَحدیث مطلب داشو چه کوم سړی دَ شرك جلی ارتکاب اوکړو اوهم په هغې مړشو نودوزخ دَهغه دَپاره واجب دې اوکوم سړی چه شرك نه دې کړې اودَتوحیداسلام په عقیده باندې مړشو نودَهغه دَپاره جنت واجب دې اوکه ګناهونه ئې کړی وی اودَ سزا مستحق شو دوزخ ته لاړو نوهمیشه به هلته نه وی بیابه راوځی او جنت ته به ځی نودَ جنت دخول به کیږی که په اول ځل وی اوکه په دویم ځل وی.

**[٢٩] د توحید په عقیده باندې قائم اوسیدو نکو د پاره د جنت زیری**

٢٩-()[٣٣] ١ «وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: كُنَّا قُعُودًا حَوْلَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٢ وَمَعَنَا أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - فِي نَفَرٍ، ٣ فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنْ بَيْنِ أَظْهُرِنَا، ٣ فَأَبْطَأَ عَلَيْنَا، وَخَشِينَا أَنْ يُقْتَطَعَ دُونَنَا، وَفَزِعْنَا ٥ فَقُمْنَا، فَكُنْتُ أَوَّلَ مَنْ فَزِعَ، فَخَرَجْتُ أَبْتَغِي رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٦ حَتَّى أَتَيْتُ حَائِطًا لِلْأَنْصَارِ لِبَنِي النَّجَّارِ، فَدُرْتُ بِهِ هَلْ أَجِدُ لَهُ بَابًا فَلَمْ أَجِدْ، ٧ فَإِذَا رَبِيعٌ يَدْخُلُ فِي جَوْفِ حَائِطٍ مِنْ بِئْرٍ خَارِجَةٍ - وَالرَّبِيعُ الْجَدْوَلُ - ٨ قَالَ: فَاحْتَفَزْتُ فَدَخَلْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٩ فَقَالَ: "أَبُو هُرَيْرَةَ؟" فَقُلْتُ: نَعَمْ يَا رَسُولَ اللَّهِ. ١٠ قَالَ: "مَا شَأْنُكَ؟" قُلْتُ: كُنْتَ بَيْنَ أَظْهُرِنَا فَقُمْتَ فَأَبْطَأْتَ عَلَيْنَا، فَخَشِينَا أَنْ تُقْتَطَعَ دُونَنَا، فَفَزِعْنَا،

**ترجمه:** ١ او حضرت ابوهریره ﷺ وایي چې (یوه ورځ) مونږ صحابه د رسول الله ﷺ سره شا وخوا ناست وو ٢ او زمونږ سره حضرت ابو بکر ﷺ او حضرت عمر ﷺ هم وو ٣ چې ناڅاپه رسول ﷺ زمونږ د مینځ څخه لاړلو او د باندې یې تشریف یوړو، هر کله چې وخت ډیر تیر شو (اوواپس یې تشریف رانه وړي) نو مونږ سره سخت فکرشو چې چېرته زمونږ په غیرموجودګي کې د یو د ښمن د خوا څخه رسول الله ﷺ ته څه تکلیف ونه رسیږي ۴ (په دي خیال سره) مونږ سره بیړه (جلتي) پیدا شوه او لاړلو، چونکه د ټولو څخه مخکښي سړي زه وم چې وویرېدم د دې وجې څخه (د ټولو څخه اول) زه د رسول الله ﷺ په تلاش کې بهر راووتم ۵ چې د قبیله بني نجار دیو انصاري باغ ته نزدي ورسیدم، (په دي خیال چې کیدي شی رسول الله ﷺ په دي باغ کې دننه وي) ما (د دننه دورتلو د پاره) څلور واړو طرفونو ته دروازه ولټوله خو (په پریشاني اوویره کې) دروازه په نظر رانغله، ٦ ناڅاپه یوه نالي مي په نظر راغله چې د بهر کوهی څخه باغ ته د ننه تله ٧ نو ما ځان راغونډ کې او په هغه نالي کې داخل شوم او د هغې په ذریعه د رسول الله ﷺ خدمت مبارك ته اورسیدم رسول الله ﷺ (دغه رنګه ناڅاپه زما په لیدو سره په حیرانتیا سره) ٨ وفرمایل ابوهریره ته؟ ما عرض اوکړو چې هو یا رسول الله (ﷺ)، ٩ ده ﷺ وفرمایل څه خبره ده؟ ما عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ ته زمونږ په مینځ کې تشریف فرما وې او بیا ولاړ شوې او روان شوې، ١٠ هرکله چې ډیر وخت تیر شو او واپس رانغلې نو مونږ وویرېدلو چې چېرته زمونږ په غیر موجودګي کې (الله دي نه کوي) تا ﷺ ته څه حادثه نه وي پیښه شوې

**حل اللغات:** ① قُعُودًا: أَيْ قَاعِدِينَ: ناست وو، ② حَوْلَ: ګیرچاپیره، خواوشا، ③ نَفَرٍ: أَيْ مَعَ جَمَاعَةٍ: ټولګې، جماعت (یعنې یوڅو صحابه کرام نورهم وو). دَدریونه ترلسو پورې جماعت باندې دَنفراطلاق کیږي بیامطلقًا په قوم او جماعت باندې دَدې اطلاق شوې دې. ④ مِنْ بَيْنِ أَظْهُرِنَا: أَيْ

---

[1] اخرجه مسلم كتاب الإيمان/باب من لقي الله بالإيمان وهو غير شاك فيه دخل الجنة وحرم على النار(رقم-٥٢ - (٣١)

مِنْ بَيْنِنَا: اظهر دلته زائد دې د تاکید دپاره راغلې دې، معنی ئې دا: زمونږ د منځ نه یعنی زمونږ د ډلې او خوا نه، أظهر د ظهر جمع دہ دَ شا په معنی کښې دې خلق چه کله کښې نودَ شاګانو په مینځ کښې وی. ⑤ فَأَبْطَأَ: أَيْ مَكَثَ وَتَوَقَّفَ عَنَّا كَثِيرًا: ډير وخت ئې تير کړو. ⑥ أَنْ يُقْتَطَعَ: دَټکړې ټکړې کیدو په معنی کښې دې. أي أَنْ يُصَابَ بِمَكْرُوهٍ مِنْ عَدُوٍّ أَوْ غَيْرِهِ: چې چرته د یو د ښمن یا بل طرفه رسول الله ﷺ ته څه تکلیف ونه رسیږی. ⑦ دُونَنَا: أي مُتَجَاوِزًا عَنَّا وَبَعِيدًا مِنَّا: زمونږ نه لرې یعنی زمونږ په غیر موجودګئ کښې، ⑧ فَزِعْنَا: أَيْ اضْطَرَبْنَا: مونږ سره جلتی پیدا شوه، پریشانه شو.

| [۱] فَكُنْتُ أَوَّلَ مَنْ فَزِعَ، فَأَتَيْتُ هَذَا الْحَائِطَ فَاحْتَفَزْتُ كَمَا يَحْتَفِزُ الثَّعْلَبُ، [۲] وَهَؤُلَاءِ النَّاسُ وَرَاءَ الْحَائِطِ، [۳] فَقَالَ: "يَا أَبَا هُرَيْرَةَ"، وَأَعْطَانِي نَعْلَيْهِ، فَقَالَ: "اذْهَبْ بِنَعْلَيَّ هَاتَيْنِ، [۴] فَمَنْ لَقِيتَ مِنْ وَرَاءِ هَذَا الْحَائِطِ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ مُسْتَيْقِنًا بِهَا قَلْبُهُ فَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ، [۵] فَكَانَ أَوَّلَ مَنْ لَقِيتُ عُمَرَ، [۶] فَقَالَ: مَا هَاتَانِ النَّعْلَانِ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ؟ [۷] قُلْتُ هَاتَانِ نَعْلَا رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بَعَثَنِي بِهِمَا، مَنْ لَقِيتُ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ مُسْتَيْقِنًا بِهَا قَلْبُهُ بَشَّرْتُهُ بِالْجَنَّةِ، [۸] فَضَرَبَ عُمَرُ بَيْنَ ثَدْيَيَّ، فَخَرَرْتُ لِاسْتِي. [۹] فَقَالَ: ارْجِعْ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ، فَرَجَعْتُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَأَجْهَشْتُ بِالْبُكَاءِ، [۱۰] وَرَكِبَنِي عُمَرُ وَإِذَا هُوَ عَلَى أَثَرِي، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "مَا لَكَ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ؟"، |
|---|

**ترجمه:** [۱] او د ټولو څخه مخکې جلتي په ما خوره شوه نو ستا په لټون کې دې باغ ته راورسیدم، (دلته دروازه په نظر رانغله) نو د ګیدړې په شان ځان را غونډولو سره (د نالې د لارې څخه) دننه راغلم، [۲] پاتې خلق هم زما ترشا را روان دې (په دې اوریدو سره) [۳] رسول الله ﷺ خپلې دواړه چپلې یې ویستلې او ماته یې راکړې او وې فرمایل اې ابوهریره څه دا چپلې د ځان سره یوسه (چې خلقو ته معلومه شي چې ته ماته راغلې یې) [۴] او د باغ څخه بهر چې کوم سړي د زړه د اخلاصه او پوخ یقین سره دا ګواهي ورکولو سره ستا سره یو ځاي شي چې د الله څخه ماسوا بل څوك د عبادت لایق نشته نو هغه ته د جنت زیرې ورکه [۵] (حضرت ابوهریره وایي چې د حضور ﷺ په دې پیغام سره زه بهر راووتلم نو) د ټولو څخه مخکې د حضرت عمر ﷺ سره زما ملاقات وشو [۶] هغه پوښتنه وکړه، ابوهریره ﷺ دا چپلې درسره څنګه دي؟ [۷] ما ورته اوویل دا د رسول الله ﷺ چپلې دي هغه (د نښاني په طور) دا چپلې ماته راکړي او د دې دپاره رالیږلې یم چې کوم سړي د زړه د اخلاصه او د پاخه یقین سره دا ګواهي کولو سره راسره یو ځاي شي چې د الله تعالی څخه ماسوا بل څوك د عبادت لایق نشته نو زه هغه ته د جنت زیري ورکړم، [۸] (په دې اوریدو سره) حضرت عمر ﷺ دومره په زورسره په سینه ووهلم چې زه په شا راغوځار شوم [۹] بیا هغه اوویل چې ابوهریره واپس لاړ شه، نو زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې په ژړا ژړا راغلم، [۱۰] د اخوا د حضرت عمر ﷺ بیره په ما خوره وه، اوس څه ګورم چې هغه هم په ما پسې راورسیدي، د دواړو جهانونو سردار ﷺ (په دې حالت

لیدو سره) وفرمایل ابوهریره څه وشو؟

**حل اللغات:** ⑨ حَائِطًا: أيْ بُسْتَانًا لَهُ حِيْطَانٌ: حائط اصل کښې دیوال ته وائی خو هغه باغ ته هم وائی کوم نه چه ګیر چاپیره دیوال وی. دلته ترې همدا مراد دې ⑩ فَدُرْتُ: دار یدور دچاپیره تاویدو په معنی کښې دې. یعنی اومې لټوله (دروازه). ⑪ رَبِيعٌ: أي نَهْرٌ صَغِيرٌ: وړوکې نهر، نالئ یا لختې، ⑫ الرَّبِيعُ الْجَدْوَلُ: یعنی ربیع معنی ده جدول یعنی نالئ، لختې، ⑬ فَاحْتَفَزْتُ: وَمَعْنَاهُ تَضَامَمْتُ لِيَسَعَنِي الْمَدْخَلُ: ځان مې راټول کړو چه سوړه کښې ورځائ شم. ⑭ مَا شَأْنُكَ؟: أي مَا سَبَبُ مَأْتَاكَ وَاضْطِرَابِكَ؟: یعنی ستا د راتلو او د پریشانئ څه وجه ده؟ ⑮ الثَّعْلَبُ: ګیدړ، ⑯ بَيْنَ ثَدْيَيَّ: أيْ إِلَى صَدْرِي: سینه، ⑰ فَخَرَرْتُ: خریخر د پریوتلو په معنی کښې دې. أيْ سَقَطْتُ: اوغورځیدم، پریوتم، ⑱ لِاسْتِي: أيْ عَلَى مَقْعَدِي: په کوناتو، یعنی په شا پریوتم ⑲ - فَأَجْهَشْتُ: أَنْ يَفْزَعَ الْإِنْسَانُ إِلَى إِنْسَانٍ وَيَلْجَأَ إِلَيْهِ، وَمَعَ ذَلِكَ يُرِيدُ الْبُكَاءَ: چاته د ویرې نه په ژړغونی آواز کښې فریاد کولو ته اجهاش وائی. جهش او إجهاش مزید اومجرد دواړه هم په یومعنی کښې دی یعنی ژړا فریاد کولوسره دچا په پناه کښې تلل لکه ماشوم چه په ژړاکښې مور له ځی دا ژړا یا خودَ دردد وجې نه وه یادَ بې عزتئ دَ وجې نه وه. ⑳ الْبُكَاءَ: ژړل، ㉑ وَرَكِبَنِي: أيْ أَثْقَلَنِي عُمَرُ: د زبردستئ او ویرې بوج راباندې سور وو، ㉒ عَلَى أَثَرِي: أيْ عَقِبِي: ما پسې، زما نه روسته روسته،

[۱] فَقُلْتُ: لَقِيتُ عُمَرَ فَأَخْبَرْتُهُ بِالَّذِي بَعَثْتَنِي بِهِ، [۲] فَضَرَبَ بَيْنَ ثَدْيَيَّ ضَرْبَةً خَرَرْتُ لِاسْتِي فَقَالَ: ارْجِعْ. [۳] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "يَا عُمَرُ! مَا حَمَلَكَ عَلَى مَا فَعَلْتَ؟" [۴] قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي، أَبَعَثْتَ أَبَا هُرَيْرَةَ بِنَعْلَيْكَ مَنْ لَقِيَ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ مُسْتَيْقِنًا بِهَا قَلْبُهُ بَشَّرَهُ بِالْجَنَّةِ؟ قَالَ: "نَعَمْ". [۵] قَالَ: فَلَا تَفْعَلْ، فَإِنِّي أَخْشَى أَنْ يَتَّكِلَ النَّاسُ عَلَيْهَا، [۶] فَخَلِّهِمْ يَعْمَلُونَ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "فَخَلِّهِمْ»" رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] ما عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ (ما ستا (ﷺ) پیغام وړولو سره بهر راووتلم) نو د ټولو څخه مخکې زما ملاقات دحضرت عمر (رضی الله عنه) سره اوشو، ما ستا هغه پیغام ورته اورسوې [۲] (هغه په دې اوریدو سره) دومره په زور سره په سینه ووهلم چې زه په زمکه باندې ولویدم بیا هغه راته اوویل واپس لاړ شه، [۳] د دې څخه وروسته رسول الله ﷺ (د حضرت عمر رضی الله عنه څخه) پوښتنه وکړه اي عمره رضی الله عنه تا داسې ولې وکړل؟ [۴] هغه اوویل یا رسول الله ﷺ زما مور او پلار دې په تا قربان وي، آیا واقعي تا (ﷺ) ابوهریره ته خپلې چپلې ورکولو سره ددې دپاره رالیږلې وو چې کوم سړې دزړه داخلاصه او پوخ یقین سره لا إله الا الله ویلو سره پیدا کوي هغه ته دجنت زیرې ورکړه؟ رسول الله ﷺ وفرمایل هو، [۵] حضرت عمر رضی الله عنه عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ داسې مه کوي زما سره بیړه (جلتی) ده چې چېرته خلق په دې زیرې بروسه اونه کړي (او عمل کول پرې نږدي) [۶] نو تاسو ﷺ هغوئ (زیات څخه زیات) عمل کولو کې مشغول

پریږدي، رسول الله ﷺ وفرمایل (که ستا دا مشوره ده) نو بیا خلق په عمل کولو کې مشغول پریږ دي، مسلم

**حل اللغات:** ⑭بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي: جار مجرور د محذوف سره متعلق دي، أَيْ فَدَيْتُكَ بِأَبِي وَأُمِّي: یعنی زما مور پلار دې په تا باندې قربان وي. ⑮يَتَّكِلَ النَّاسُ: أَيْ يَعْتَمِدُوا: یعنی صرف په دې به اعتماد او بهروسه اوکړي او د نورو اعمالو کوشش اومحنت به پریږدي.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَخَشِيْنَا أَنْ يُقْتَطَعَ دُوْنَنَا وَفَزِعْنَا:

**اشکال:** خشينا وړاندې راغلې دې دَدې نه پس دَ فزعنا څه ضرورت وو حالانکه دَ دواړو مفهوم یو دې؟

**داشکال دوه جوابونه:** ① ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه خشیت اوفزع کښې فرق دې خشیت دَ زړه ویره ده دکوم اثرچه تردغه وخته پورې په ظاهری بدن باندې ښکاره شوې نه وی لیکن فزع دَهغه اضطراب نوم دې په کوم کښې چه سړې داسې بې چین شی چه په ظاهری بدن باندې دَهغې اثر ښکاره شی لکه دلته بې چین کیدل اوپاسیدل او په لټون کښې خوریدل ښکاره شو،

② علامه طیبی رحمه الله فرمائی دادَ دوو مترادفینو په یوبل باندې عطف دې اودې سره دَ ویریدو تسلسل خودل مقصودد ی.

**داول قول ترجیح:** دَملاعلی قاری قول زیات بهتردې ځکه چه په دې کښې دَ تاکید په ځائی تاسیس دې اوتاسیس دَ تاکیدنه بهتردې.

**قوله:** فَلَمْ أَجِدْ:

**د دروازې نه موندلودوه وجوهات:** ① حضرت ابوهریره رضی الله عنه ته دَ ډیرې بې آرامئی او اضطراب دَ وجې نه دَدروازې علم هم اونه شو ګنې دروازه خوبه وه

② یعنی کولاؤ دروازه ملاؤنه شوه کومې چه وې هغه تړلې بندې وې.

**قوله:** مِنْ بِئْرٍ خَارِجَةٍ:

**د بئرخارجة په اعراب کښې درې اقوال:** ① بئر موصوف اوخارجة صفت دې یعنی دا ناله دَ یوداسې کوهی نه دننه راتله چه هغه کوهی بهروو دا توجیه دَټولونه ښه اودَټولونه زیاته مناسب او واضح ده.

② بئر تنوین سره وی مرفوع وی او "ه" ضمیرجدار طرف ته راجع وی یعنی من بئرخارجه یعنی یو کوهې چه بهروو بهرحال اول احتمال مشهوردې.

③ بئر مضاف وی اوخارجه مضاف الیه وی اوخارجه دَسړی نوم وی یعنی دَ خارجه

صاحب دَ کوهی نه دا لختې راتلو.

**توله:** فَقَالَ: أَبُوهُرَيْرَةَ؟:

**په استفهام کښې درې وجوهات:** ① استفهام دَتعجب دَپاره دې چه تولې لارې بندې دی ته څنګه راغلې حیرانتیا ده ته ابوهریره ئې؟

② رسول الله ﷺ دا سوال یاخودَدې دَپاره اوکړو چه حضورپاك دَ دې بشارت او وحی دَ وجې نه دَ بشریت نه غائب وو نو استفهام په حقیقت باندې مبنی دې چه وئې نه پیژندلو

③ استفهام تقریری دې یعنی هم ابوهریره رضی الله عنه یې؟ بنه ابوهریره یې؟

**توله:** وَأَعْطَانِي نَعْلَيْهِ:

**ابوهریره رضی الله عنه ته د پنړو د ورکولو دوه وجوهات:** ① ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه کیدې شی حضورپاك ته مقام نوری کښې تجلی طوری حاصله شوې وی نو دَحضرت موسی علیه السلام په شان رسول الله ﷺ ﴿ فَاخْلَعْ نَعْلَيْكَ إِنَّكَ بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى ﴾

② علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه دَحضرت ابوهریره رضی الله عنه خبر سره دَدې چه مفید دَ یقین وو مګر دغه خبرنور یقینی کولودَپاره دَنشانې په توګه نعلین مبارك ورکړې دې دَپاره چه هراوریدونکې بغیردَ څه تردد نه په دې بشارت باندې یقین اوکړی

**د پنړو د تخصیص دوه وجوهات:** ① نبی کریم صلی الله علیه وسلم حضرت ابوهریره رضی الله عنه ته خاص کرپنړې په دې وجه ورکړې چې په پنړو سره ئې اشاره اوکړه ثبات علی الدین طرف ته څکه چه دَ ثابت قدمئی او څپلو خاص تعلق دې.

② کیدې شی هغه وخت بل څه څیز موجودنه وو.

**توله:** فَمَنْ لَقِيتَ مِنْ وَرَاءِ هَذَا الْحَائِطِ:

**د وراء الحائط قید حیثیت:** دَدیوال شاته لفظ په اتفاقی توګه باندې راغلې دې مراد دادې چه دَ چا دا صفت وی چه په یقین سره کلمه لولی هغه جنتی دې که هغه دَ دیوال شاته وی اوکه بل ځائی کښې وی اوکه ابوهریره رضی الله عنه ورته خوشخبری اورسوی اوکه اونه رسوی څکه چه حضرت ابوهریره رضی الله عنه تولو خلقوته زیرې څنګه رسولې شو نومراد هم هغه دې چه دَ چاهم داصفت وی هغه جنتی دې.

**توله:** وَرَكِبَنِي عُمَرُ وَإِذَا هُوَ عَلَى أَثَرِي:

**د رکوب مطلب:** یعنی حضرت عمر رضی الله عنه زه پرینخودم بلکه داسې راپسې شوې وو لکه چه هغه زما په اوږو سور وی مراد متصل اومسلسل راتلل دی.

**اشکال:** حضرت عمر رضی الله عنه دَ رسول الله ﷺ دَ بشارت په مقابله کښې حضرت ابوهریره رضی الله عنه ولې اووهلو او وئې غورزولو؟ شیعه روافض هم دا اعتراض کوی چه دَحضرت عمر رضی الله عنه

په وراندې پوره امت ډیر وروکې او بې وسه وو او دغه مداخلت یوشان په دین کښې جاری وو خلقو به تقیه کوله نو حضرت علی رضی الله عنه هم تقیه اوکړه اوخلافت ئې پریخودو؟

**داشکال دوه جوابونه:** ① علامه طیبی رحمه الله فرمائی حضرت عمر رضی الله عنه حضرت ابوهریره رضی الله عنه په سختئی سره واپس کړو چه حضور پاك سره به مشوره کوو که دَدې بشارت ښکاره کول ضروری نه وی نو دَمصلحت لاندې دې دا روستوکړې شی دې دپاره چه خلق سست نه شی. علامه ابن حجر رحمه الله فرمائی حضرت عمر رضی الله عنه دَحضرت ابوهریره رضی الله عنه دپاره دَ معلم او شیخ او استاذ حیثیت لرلو دَ څه مصلحت لاندې شاګرد وهل جائزوو ناجائزنه وو.

② حضرت عمر رضی الله عنه ته معلومه وه چه دَدې بشارت اعلان خو واجب نه دې بلکه رسول الله صلی الله علیه وسلم خو رحمة اللعالمین وو نوحضورپاك دَ صحابه کرامو رضی الله عنهم دَدې پریشانئی علاج بالضد اوکړو چه دوی پریشان شوی دی اوس دوی ته دَ جنت زیرې ورکول پکاردی او چونکه په دغه خالی باغ کښې دَ حضورپاك تعلق دَالله تعالی سره داسې اوشو لکه چه حضورپاك په عالم استغراق کښې وو نودا زیرې ئې واؤرولو اوحضرت عمر رضی الله عنه په دغه کیفیت کښې نه وو بلکه په هغوی باندې دَ جمال په ځائی دَ جلال صفت غالب وو ځکه هغوی سوچ کړې ووچه کیدې شی چه په دې سره خلق سست شی او مونځ پریږدی دَدې دینی مصلحت اوشرعی امر دَ وجې حضرت عمر رضی الله عنه دازیرې دَ څه مودې دپاره پټ ساتل غوښتل. بل طرف ته دَحضرت معاذ رضی الله عنه په روایت کښې پخپله نبی کریم صلی الله علیه وسلم داقسم زیرې اورولونه منع کړې وه نودَ امتثال امر نبی دَ وجې نه حضرت عمر رضی الله عنه حضرت ابوهریره رضی الله عنه اووهلو او واپس ئې کړو اودَ وهل لوجه الله وو په دې وجه حضورپاك دَ حضرت عمر رضی الله عنه مواخذه اونه کړه بلکه دَحضرت عمر رضی الله عنه دَ مشورې لاندې ئې دَهغه فیصله په ځائی اوساتله او هغه زیرې ئې پټ اوساتلو.

**عجیبه انصاف:** حضوراکرم صلی الله علیه وسلم خود عمر مواخذه اونه کړه او نن ملحد اوبې دین راپاسی او اعتراض کوی دا صرف دَ فساد او دَ صحابه کرامو دَ بغض یوه نښه ده.

### [۴۰] د جنت کونجی

۴۰ – ()[۳۵] [۱] وَعَنْ مُعَاذِبْنِ جَبَلٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] قَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " [۳] «مَفَاتِيحُ الْجَنَّةِ شَهَادَةُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ» " رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] وحضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه وايي[۲] چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ماته وفرمايل[۳] (په رښتيني زړه او د پوخ يقين سره) د دې خبرې ګواهي ورکول چې د الله څخه ماسوا بل څوك د عبادت لايق نشته، د جنت کيلي (حاصلول) دي. احمد

[۱]) واحمد فی المسند ۲۴۲/۵

**حل اللغات:** ①مَفَاتِيحُ: اسم آله ده، دا د مفتاح جمع ده، چابۍ ته وائي.

**تسهيلات:**

**قوله: مَفَاتِيحُ الْجَنَّةِ شَهَادَةُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ:**

**اشكال:** علامه طيبي رحمه الله فرمائيلي دي چه مبتدا او خبر کښې مطابقت نشته چه شهادة ان لااله الاالله...الخ خبر دې کوم چه مفرد دې او مفاتيح الجنة جمع ده؟

**داشكال جواب:** ①شهادت سره معامله د اسم جنس او کړې شوه لهذا د دې اطلاق په قليل او کثير باندې صحيح شو نو مطابقت پيدا شو ②يا د شهادت هر يو جز مفتاح او ګرځولې شو لهذا مفاتيح وئيل صحيح شو او مطابقت راغلو. عبارت به داسې شي مفاتيح الجنة شهادات أن لااله الا الله.

**د کلمه توحيد خاصيت:** نو د کلمهٔ توحيد خاصيت هم دغه دې چه دا د جنت کنجي ده په دې شرط چه بل څه خارجي عمل بنديز جوړنه شي څکه چه حکم په معجون مرکب باندې کيږي يادا چه کلمه د خپلو تولو تقاضو سره مراد ده يادا چه دخول اولي يا ثانوي مراد دې يادا چه د کلمهٔ توحيد نه پس چه د عمل هډو موقع ملاؤنه شوه نو صرف په کلمه به جنت ته ځي.[الكاشف:١٨٩-١/١٨٨ ]

## [٤١] کلمهٔ توحيد د نجات (خلاصون) ذريعه ده

٤١ –([١])[٣٦] ①وَعَنْ عُثْمَانَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: «إِنَّ رِجَالًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- حِينَ تُوُفِّيَ حَزِنُوا عَلَيْهِ، ②حَتَّى كَادَ بَعْضُهُمْ يُوَسْوِسُ، ③قَالَ عُثْمَانُ: وَكُنْتُ مِنْهُمْ، ④فَبَيْنَا أَنَا جَالِسٌ مَرَّ عَلَيَّ عُمَرُ وَسَلَّمَ، فَلَمْ أَشْعُرْ بِهِ، ⑤فَاشْتَكَى عُمَرُ إِلَى أَبِي بَكْرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- ⑥ثُمَّ أَقْبَلَا حَتَّى سَلَّمَا عَلَيَّ جَمِيعًا، فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: مَا حَمَلَكَ أَنْ لَا تَرُدَّ عَلَى أَخِيكَ عُمَرَ سَلَامَهُ؟ ⑦قُلْتُ: مَا فَعَلْتُ، فَقَالَ عُمَرُ: بَلَى، وَاللَّهِ لَقَدْ فَعَلْتَ.

**ترجمه:** ① او حضرت عثمان رضي الله عنه بيان کوي چې کوم وخت نبي ﷺ وفات شو نو د صحابو په يو جماعت باندې د غم او خفګان دومره غلبه وه ②چې په هغوئ کې د بعضو خلقو په باره کښې خو دا خطره پيدا شوې وه چې چېرته په شك او وسوسو کې اخته نشي (يعني د دې وهم ښکار نه شي چې هر کله رسول ﷺ د دې دنيا څخه رخصت شو نو د دين او شريعت قصه هم ختمه شوه) ③حضرت عثمان رضي الله عنه وايي چې هغه خلقو کښې يو زه هم وم ④نو د دې لوې حادثې سره سخت پريشان حاله او په غم او فکر کښې وم) زه ناست ووم (چې په دې حالت کې) حضرت عمر رضي الله عنه راسره تير شو او ماته يې سلام وکړو (د ډېرې پريشانۍ په وجه) ماته معلومه نه شوه (چې هغه کله راسره تير شو او کله

[١]) واحمد في مسند ١٠/٦

يي سلام کړي وو) ⑤حضرت عمر ﷺ د دې خبرې شکایت حضرت ابو بکر صدیق ﷺ ته اوکړو، ⑥نو حضرت ابوبکر صدیق ﷺ او حضرت عمر فاروق ﷺ دواړه ماته راغلل او دواړو ماته سلام اوکړو، حضرت ابوبکر ﷺ زما څخه پوښتنه وکړه، تا د خپل ورور عمر د سلام جواب ولې ورنه کې؟⑦ما اوویل نه داسې نه ده شوې (یعني ماته ددې علم نشته چې عمر ﷺ راغلي وي ما ته یې سلام کړي وي او ما جواب نه وي ورکړي) حضرت عمر ﷺ اوویل هو قسم په الله دغسې شوې ده (چې تا زما دسلام جواب نه دې راکړي)

①قَالَ: قُلْتُ: وَاللَّهِ مَا شَعَرْتُ أَنَّكَ مَرَرْتَ وَلَا سَلَّمْتَ. قَالَ أَبُو بَكْرٍ: صَدَقَ عُثْمَانُ، قَدْ شَغَلَكَ عَنْ ذَلِكَ أَمْرٌ. ②فَقُلْتُ أَجَلْ. قَالَ: مَا هُوَ؟③قُلْتُ: تَوَفَّى اللَّهُ تَعَالَى نَبِيَّهُ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-قَبْلَ أَنْ نَسْأَلَهُ عَنْ نَجَاةِ هَذَا الْأَمْرِ.④قَالَ أَبُو بَكْرٍ: قَدْ سَأَلْتُهُ عَنْ ذَلِكَ.⑤فَقُمْتُ إِلَيْهِ، وَقُلْتُ لَهُ: بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي، أَنْتَ أَحَقُّ بِهَا.⑥قَالَ أَبُو بَكْرٍ: قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا نَجَاةُ هَذَا الْأَمْرِ؟⑦فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "مَنْ قَبِلَ مِنِّي الْكَلِمَةَ الَّتِي عَرَضْتُ عَلَى عَمِّي فَرَدَّهَا، فَهِيَ لَهُ نَجَاةٌ» "رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:**① حضرت عثمان ﷺ وايي چې ما اوویل په الله مې دې قسم وي ما ته قطعا ددې احساس نه دې شوې چې ته ماته راغلې يې، او نه دا چې تا ماته سلام کړي دي، حضرت ابوبکر صديق ﷺ وفرمايل عثمان ﷺ رښتيا وايي (ليکن معلوميږي چې) د خاص وجهې څخه ته د دې څخه خبر نه شوې (چې نه ته د عمر ﷺ دراتلو څخه خبر شوې او نه دې د سلام جواب ورکړو) ②ما اوویل هو، کيدي شي، هغه پوښتنه وکړه هغه څه وجه ده؟ ③ما اوویل (د رسول اکرم ﷺ د وفات څه کم صبر ازمونکي وو چې اوس دا غم هم خورم چې نبي کريم ﷺ د دې دنيا څخه تشريف يووړي ليکن مونږ د رسول الله ﷺ څخه دا معلوم نه کړه چې په دې معاملي يعنی په عبادت کښي د وسوسو پيدا کيدل دشيطان لمسول يا د دوزخ د اور) څخه دخلاصی لارڅه ذريعه ده؟ ④حضرت ابوبکر صديق ﷺ اوویل (ته غم مه کوه) ما په دې باره کښي د حضور ﷺ څخه مخکې پوښتنه کړي ده⑤ (حضرت عثمان ﷺ وايي چې) زه (بي اختياره) ور پاڅيدم او ما اوویل زما مور پلار دې په تا قربان شی واقعي ته (د حضور ﷺ څخه دکمال لرلو او د حصولِ علم د غلبهٔ شوق په وجه سره) په دې باره کښي د پوښتني کولو زيات لايق وي، ⑥حضرت ابوبکر صديق ﷺ وفرمايل ما عرض کړي وو چې يا رسول الله ﷺ په دې معامله کښي دخلاصی لار څه صورت دي؟ ⑦نو رسول الله ﷺ فرمايلي وو چې کوم سړي (د زړه د اخلاصه) زما څخه هغه کلمه د توحيد کمه چې ما دخپل ترهٔ ابو طالب په مخکې پيش کړي وه او هغه قبوله نکړه ده قبوله کړه، نو هغه کلمه به دد غه سړي دخلاصی لار ضمانت کولو والا وي. احمد

**حل اللغات:** ① حَزِنُوا: ډير غمژن شو، ② كَادَ: أَيْ قَارَبَ: نزدې وه، ③ يُوَسْوِسُ: أَيْ يَقَعُ فِي الْوَسْوَسَةِ: چه په وسوسو كښې به اخته شى. ④ فَلَمْ أَشْعُرْ: زه پوهه نه شوم (ددې لوئې حادثې د غم په وجه). ⑤ أَجَلْ: أَيْ نَعَمْ: آو (خبره هم دغسې ده).

**د راوي مختصر تعارف:** نوم عثمان، ابوعبدالله ابو عمر اوابوليلى كنيت ذوالنورين لقب وو. دَ پلار نوم عفان دَ مور نوم اروى وو. دَحضرت عثمان رضي الله عنه خاندان دَ جاهليت په زمانه كښې هم يوغيرمعمولى وقعت اواقتدار لرلو.

**ولادت:** دَ عام الفيل په شپږم كال پيدا شو په اسلام راوړلواومسلمانيدوكښې دَ هغه ۳۴ نمبر وو. نبى كريم صلى الله عليه وسلم دَ خپلې لور رقيه رضي الله عنها نكاح عتبه بن ابولهب سره كړې وه خو هغه طلاق وركړونوبيا دَحضرت رقيه رضي الله عنها نكاح حضرت عثمان رضي الله عنه سره اوشوه. دَحبشې طرف ته هجرت كونكوكښې دې اوچه كله مدينې ته مسلمانانوهجرت اوكړونوده هم مدينې ته ئې تشريف يوړو. په غزوه بدركښې ئې دَحضرت رقيه رضي الله عنها دَ بيمارئى په وجه شركت اونه كړې شو اوبيا باقى غزاگانو كښې شريك وو. حضرت عثمان رضي الله عنه كاتب وحى وو. قرآن پاك سره ئى ډيره عشق اومينه وه. دَ دنيانه چه رخصت كيدو نو هم قرآن پاك ئى لوستلو. په هغوى كښې الله تعالى ډير بې شميره خوبيانې اوصفتونه ايخودې وو. په هغې كښې يوڅو مشهور دا دى:

① دَالله تعالى ويره ② دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم محبت ③ دَ سنتوتابعدارى ④ دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم احترام ⑤ حيا ⑥ تواضع ⑦ پرهيزگارى ⑧ سخاوت ⑨ قربانى ⑩ حسن سلوك.

**وفات:** دَ جمعې په ورځ دَ مازيگر په وخت ډير په ظلم سره شهيد كړې شو دوو ورځوپورې بې گوره اوكفنه پروت ووبيا يوڅوكسانو سره دَخطرې تجهيز اوتكفين اوكړو. دَ مسنداحمد دَ روايت نه معلوميږى دَ جنازې مونځ ابن زبير رضي الله عنه اودَ ابن سعد رضي الله عنه دَروايت نه معلوميږى چه دَ جنازې مونځ حضرت جبير بن مطعم رضي الله عنه اداكړو. په جنت البقيع كښې روستو دَ خښتوپه ديوال كښې دفن كړې شو. بياروستو ئى ديوال مات كړې شواو په جنت البقيع كښې شامل كړو.

**مرويات:** دَرواياتوپه نقل كولوكښې ډير محتاط وو په دې وجه دَهغوى نه صرف ۱۴۲ روايتونه نقل دى. په كومو كښې چه درې متفق عليه دى. اته په بخارى اوينځه په مسلم كښې دى. دغه شان په بخارى اومسلم كښې دَ هغه نه ۱۶ روايات نقل دى. باقى دَ احاديثو په نورو كتابونوكښې دى.

دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم دَ ارتحال سانحه ډيره سخته وه په دې غم باندې عام صحابه كرام بې خوده اوبدحواس شوى وو. دَحضرت عمر فاروق رضي الله عنه په شان جليل القدر او لوئى همت والا صحابى خودَ مرگ نه دَ يووخت پورې انكاراوكړوكه چرې صديق اكبر رضي الله عنه عزم

او همت غرجو ریدو سره سهاره نه وې ورکړې نو نه ده معلومه چه څه به کیدل. هم په دې صدمې سره حضرت عثمان ﷛ هم متاثر شوې وو چه د ارتحال رسول ﷺ نقشه داسې پیش کوی:

**تسهیلات:**

**قوله:** حَتّٰى كَادَ بَعْضُهُمْ يُوَسْوِسُ:

**د نبی علیه السلام په مرګ صحابه کرامو ته شیطانی وسوسې راتلل:** أي بأن يقع في نفسه انقضاء هذا الدين وانطفاء الشريعة الغراء بموته یعنی د دین د ختمیدو وسوسې په زړه کښې راغلې او د شریعت د رڼا انتهاء په خیال کښې راغله. بعضې خو بس کیناستل او بعضو د مرګ نه انکار او کړو صرف صدیق اکبر ﷛ قائم او دائم پاتې شو.

**قوله:** فَبَيْنَا أَنَا جَالِسٌ مَرَّ عَلَيَّ عُمَرُ وَسَلَّمَ، فَلَمْ أَشْعُرْ بِهِ:

**په عدمِ شعور کښې درې احتمالات:** ① یعنی ماته د حضرت عمر ﷛ د تیریدو هډو احساس او نه شو.

② یعنی ماته د هغه د سلام، شعور او احساس او نه شو،

③ ما ته د هغه د تیریدو او د هغه د سلام دواړو احساس او نه شو،

هم دا درې احتمال زیات واضح دې چه د نه تیریدو پته اولګیدله او نه د سلام علم او شو پخپله بې خودئی کښې پروت وم.

**قوله:** فَاشْتَكَى عُمَرُ إِلَى أَبِي بَكْرٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا:

**ابوبکر رضی الله عنه ته د عثمان رضی الله عنه شکایت:** د دې خبرې شکایت حضرت عمر فاروق ﷛ د حضرت ابوبکر ﷛ په وړاندې او کړو چه دومره اوږده موده هم تیره نه ده چه حضرت عثمان ﷛ د سلام جواب هم نه راکوی د دې شکایت نه معلومیږی چه حضرت ابوبکر صدیق ﷛ صحابه کرامو ﷡ د خلیفه جوړیدو نه وړاندې خپل مشرګڼړلو او ممکن ده چه دغه وخت خلیفه جوړ شوې وی. هم دغه خبره ډیره واضح ده.

**قوله:** قُلْتُ: مَا فَعَلْتُ:

**دعثمان رضی الله عنه انکار:** د حضرت عثمان ﷛ نه چه کله حضرت ابوبکر ﷛ او حضرت عمر ﷛ پوښتنه او کړه نو هغوی صفا انکار او کړو چه ماته چا سلام نه دې کړې. دا حضرت عثمان ﷛ د خپل خیال مطابق رښتیا او فرمائیل ځکه چه هغه د بې خودئی په حالت کښې وو.

**قوله:** قَدْ شَغَلَكَ عَنْ ذٰلِكَ أَمْرٌ:

**دعثمان رضی الله عنه دطرفه عذر بیانول:** دا د صدیق اکبر ﷛ د طرف نه د حضرت عثمان ﷛ طرف ته التفات دې. امرٌ کښې تنوین د تعظیم د پاره دې یعنی یو لوئی عظیم الشان کار ته

دَ سلام كلام نه مشغول ساتلې وې، په دې کښې اشاره ده چه حضرت عثمان ﷺ په دې معامله کښې په حق دې.

**قوله:** قَبْلَ أَنْ نَسْأَلَهُ عَنْ نَجَاةِ هٰذَا الْأَمْرِ:

**دامر څخه مراد:** يعنې زمافکرداوو چه افسوس ماد رسول الله ﷺ نه پوښتنه کړې وه چه په دې دين اسلام کښې دَ نجات مدار په کوم څيزباندې دې؟

**د الامر په مصداق کښې دوه اقوال:** ① نو په دې حديث کښې دَالامرنه مراد دين اسلام دې په دين اسلام کښې دَ نجات دارومدار کلمهٔ شهادت اوکلمهٔ توحيدباندې دې په آخرت کښې به نجات هم ددې په برکت سره ملاويږي.

② دوسوسو او دې مهلکاتو وشهواتو، مرغوباتو او دَشيطاني اغواء نه سرې څنګه نجات حاصلولې شي چه کامياب شي اوجنت ته لاړشي. نودَدې جواب هم دغه دې چه دکلمه توحيد په تکرار او استمرار اوپه دې باندې جازم عقيده لرلوسره انسان دَدې ټولو وهمونوته او فاسدخيالاتونه خلاصې حاصلولې شي اوکاميابيدوسره جنت ته تللې شي.

**قوله:** أَنْتَ أَحَقُّ بِهَا:

**د بها په ضمير کښې درې احتمالات:** ① حضرت عثمان ﷺ فرمائي چه ما اووئيل زما مور پلار په تاسو باندې قربان شه تاسو دَدې سوال کولوزيات حقدار وئې

② ما اووئيل زما مور پلار په تاسو باندې قربان شه تاسودَدې خصلت زيات حقداريئې،

③ ما اووئيل زما مور پلار په تاسو باندې قربان شه تاسودَدې نجات زيات حقداريئې.

**قوله:** مَنْ قَبِلَ مِنِّي الْكَلِمَةَ الَّتِي عَرَضْتُ عَلَى عَمِّي:

**د کلمه توحيد عظمت:** يعنې حضوراکرم اوفرمائيل چه کومه دَتوحيدکلمه ماخپل تره ابوطالب ته پيش کړې وه کومه چه هغه ردکړې وه که چرې هغه قبوله کړې وه نوسره دَ اوياؤکالودګناه اوشرکياتو به هغه معاف کيدلو نويومسلمان چه دَهغه په زړه، دماغو، رګ او ريشه کښې چه دَتوحيدکلمه ورننوتې وی که چرې هغه دَ زړه په صدق سره لولی نوهغه به په طريقه اولی باندې خلاصې بياموندونکې جوړشي.

**دنبي عليه السلام بلاغت:** په دې قسم بيان کښې رسول الله ﷺ په ډير بليغ انداز سره دکلمهٔ توحيد شان اواهميت واضح کړې دې که چرې حضورپاك صرف دافرمائيلې وې چه دَدې نه دَ نجات ذريعه کلمهٔ توحيد دې نودا اهميت به نه واضح کيدو.

**د ابوطالب مرګ په کفر:** دَدې روايت نه داهم معلومه شوه چه دَابوطالب خاتمه په ايمان نه ده شوې شيعه رافضي وائي چه دَ مولاعلي پلاردَتولونه دَ لوئي ايمان والاوو دا څنګه کيدې شي چه دَمولاعلي پلار په ايمان باندې نه وي؟ دَ الله تعالى بنديګان په دې سوچ نه

کوی چه په دانبیاء کرامو علیهم السلام کښې د لویو لویو نبیانو پلاران او نیکونه کله په ایمان باندې رانغله نو په حضرت علی ﷺ کښې څه اشکال دې؟

**[٤٢] ټولې دنیا ته د کلمۀ توحید د رسیدلو پیشن ګوئي**

ح-()[٣٧] [١] وَعَنِ الْمِقْدَادِ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: [٢] لَا يَبْقَى عَلَى ظَهْرِ الْأَرْضِ بَيْتُ مَدَرٍ وَلَا وَبَرٍ إِلَّا أَدْخَلَهُ اللهُ كَلِمَةَ الْإِسْلَامِ بِعِزِّ عَزِيزٍ وَذُلِّ ذَلِيلٍ [٣] إِمَّا يُعِزُّهُمُ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ فَيَجْعَلُهُمْ مِنْ أَهْلِهَا [٤] أَوْ يُذِلُّهُمْ فَيَدِينُونَ لَهَا [٥] قُلْتُ فَيَكُوْنُ الدِّيْنُ كُلُّهُ لِلّٰهِ. رَوَاهُ أَحْمَدُ

**ترجمه:** [١] او د حضرت مقداد ﷺ څخه روایت دي هغه د رسول الله ﷺ دا فرمان اوریدلي وو [٢] چې د زمکې په سر هیڅ یو کور، خواه که هغه د خاورو وي یا د خیمي وي داسې به باقي پاتې نه شي چې په هغه کې به الله تعالی ﷻ د اسلام کلمه د معزز د عزت سره او د ذلیل د رسوایي سره داخله نه کړي [٣] نو کوم خلق چې یي د زړه د اخلاصه قبوله کړي) الله تعالی ﷻ به هغه معزز او ګرځوي او ددې کلمې خاوند به یي جوړ کړي [٤] او (کم خلق چې په خوښې یي قبوله نه کړي) الله تعالی ﷻ به هغه ذلیله کړي او هغه خلق به د دې کلمې په اطاعت او فرمانبردار کیدو باندې مجبوره وي (داسې چې هغه به جزیه ورکولو سره په اسلامي ملك كې اوسیږي) [٥] ما (په دا اوریدو سره) اوویل بیا خو به ټلور طرفه ته د الله دین وي. احمد

**حل اللغات:** ① مَدَرٍ: أي اللَّبِنَةُ: مَدَرجمع د مَدَرَة ده، خښتې ته وائي، خو دلته ترې جوړ شوی کورونه مراد دي. ② وَبَرٍ: د اوښانو او ګډو وړئ ته وائي، خو دلته ترې ددې نه جوړې شوې خیمې مراد دي. ③ بِعِزِّ عَزِيزٍ: أي مُلْتَبِسَةً بِعِزِّ شَخْصٍ عَزِيزٍ: یعنی کوم خلق چه په تابعدارئی او خوشحالئی سره اسلام قبول کړی او دمسلمانانو مقابله نه کوی نو په عزت سره به اوسیږی. ④ ذُلِّ ذَلِيلٍ: أي يُذِلُّهُ اللهُ بِهَا حَيْثُ أَبَاهَا: یعنی څوك چه مقابله اوکړی نو دا کلمه به هلته هم داخله شی مګرمقابله کونکې د هغه ذلیل سړی په ذلت سره څوك چه به الله تعالی خوار کړی او هغه به د قید او بندجزیه او د غلامئ د ذلتونونه پس ستې تیټ کړی. ⑤ فَيَدِينُونَ: أَيْ يُطِيعُونَ وَيَنْقَادُونَ: یعنی ټول خلق به د دې توحید د کلمې مخې ته تابعدار اوفرمانبردار جوړ شي.

**د راوي مختصر تعارف:** نوم مقداد کنیت ابوکریمة په وزن دحلیمة یا ابویحیی وو. د پلار نوم ئې معدی ابنِ سناد بن عبدالله بن وهب بن ربیعه بن الحارث بن معاویه. دوی د وفد په شکل کښې دحضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شوې وو. د شام نه نور مسلمانان شواو هم په شام کښې ئې ژوند تیرولو.

**وفات:** ٨٧ﻫ کښې وفات شو په هغه وخت کښې د هغه عمر ٩١ کاله وو.

**مرویات:** د هغه نه ٤٧ روایات نقل دی.

---

(١) واحمد فی مسند ٦/ ٤.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا يَبْقَىٰ عَلَىٰ ظَهْرِ الْأَرْضِ بَيْتُ مَدَرٍ وَلَا وَبَرٍ:

**د مدر او وبر څخه مراد:** دادَ ښاريې آبادئي طرف ته اشاره ده چه هلته خلق په پخو مکانونو کښې اوسيږی او دَ "وبر" نه صحرائي او کلي والې آبادئي طرف ته اشاره ده چرته چه اکثر خيمې دَ کور په توګه استعماليږی

**اشکال:** په حديث کښې خو راځي چې دين اسلام به د دنيا ګوټ ګوټ اورسيږی. حالانکه دَ چين وغيره دَ لرې لرې علاقو پورې دَ اسلام دعوت نه دې رسيدلې او غلبه نه ده راغلې؟

**داشکال جواب:** دلته دَ "الارض" نه مراد جزيرهٔ عرب اودَدې نه چاپيره علاقې دی يعنی پوره عربو کښې به صرف يو دين يعنی هرطرف ته به اسلام وی.

**قوله:** قُلْتُ فَيَكُوْنُ الدِّيْنُ كُلُّهُ لِلّٰهِ:

**د مذکوره جملې مطلب:** معلوميږی چه داجمله حضرت مقداد ﷛ دَ حضورپاك په مجلس کښې دَ حضورپاك په وړاندې نه ده وئيلې په دې وجه دَ رسول الله ﷺ دَ طرف نه جواب نه دې راغلې ياهغوی هم په هغه مجلس کښې وئيلې دی مګرحضوراکرم ﷺ جواب ورکول ضروري اونه ګڼړل.

**د اسلام د غلبې په مفهوم کښې څلور اقوال:** ① په پوره دنياباندې غلبه مراد ده اودا غلبه په عمومی توګه باندې دَ خلفاء راشدينو په دورکښې راغلې وه. اسلام دَ غالب دين په توګه مشرق اومغرب کښې خورشوې وو دَ قيصراوکسریٰ تصور ختم شوې وو اودين ترقی کړې وه. دَحديث مطلب دانه دې چه څوك کافربه نه پاتې کيږی بلکه مطلب دا دې چه دين به غالب وی اودا حديث دَ قرآن پاك دَدې آيت نه اقتباس دې: ﴿هُوَ الَّذِيْٓ اَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ بِالْهُدٰى وَدِيْنِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهٗ عَلَى الدِّيْنِ كُلِّهٖ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُوْنَ﴾

② دَ غلبهٔ اسلام دا پيشنګوئی دَ جزيرهٔ عرب دَپاره وه اوهلته داغلبه دَحضورپاك په مبارکه زمانه کښې حاصله شوې وه، پوره دنياباندې غلبه مرادنه ده.

③ داغلبه به په مکمل توګه باندې دَ حضرت عيسی ﷤ په دورکښې حاصليږی په هغه وخت به دَ جزيې نظام هم په حکم دَ شريعت محمدی موقوف شی بيابه يا اسلام وی اويابه دکافر مرګ وی.

④ دا غلبه دَ دلائلو او قوت دَ استدلال په اعتبار سره ده او په دې طريقه باندې خو اسلام دَ اول ورځ نه ترننه پورې غالب راروان دې. دَ دلائلو په دنياکښې څوك دَدې مقابله کولې شی؟

مولانا فضل محمد صاحب په توضيحات کښې فرمائی: دا جواب ډير ښه دې ليکن هم

دَدې په آسره باندې کيناستو سره دَ غلبۀ اسلام دَپاره په عملی ميدان کښې نه کوزيدل جهاد پريخودل او دَ اسلامی سياسی قوت اوخلافت دَ حصول نه شاته پاتې کيدل دَ قرآن اوحديث دَ واضحه نصوصو خلاف ورزی ده اودَ صحابه کرامو ﷡ تاريخ شاته غورزول دی لهذا معطل کيدل اوکيناستل جائزنه دی.

### [٤٢] د جنت دروازې لره خلاصونکې کونجي

٤٣ –()[٣٨] [١] وَعَنْ وَهْبِ بْنِ مُنَبِّهٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - [٢] قِيلَ لَهُ: أَلَيْسَ "لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ" مِفْتَاحُ الْجَنَّةِ؟ [٣] قَالَ: بَلَى، وَلَكِنْ لَيْسَ مِفْتَاحٌ إِلَّا وَلَهُ أَسْنَانٌ، [٤] فَإِنْ جِئْتَ بِمِفْتَاحٍ لَهُ أَسْنَانٌ فُتِحَ لَكَ، وَإِلَّا لَمْ يُفْتَحْ لَكَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ فِي تَرْجَمَةِ بَابٍ.

**ترجمه:** [١] او حضرت وهب بن منبه ﷬ څخه روايت دي [٢] چې د هغه څخه يو چا پوښتنه وکړه چې آيا لااله الا الله د جنت کيلي (چابي) نه ده؟ [٣] وهب ﷬ اوويل چې بيشکه، ليکن په کيلي کښې غاښونه هم ضرور دي، [٤] نو که تا داسې کيلي (چابي) راوړل چې په هغه کښې غاښونه موجود وي نو (يقينا) په هغه سره به د جنت دروازې خلاصې شي، گينی تا لره د جنت دروازې نه شی خلاصيدا ي. بخاري ترجمة الباب

**حل اللغات:** ① مِفْتَاحٌ: اسم آله ده، ددې جمع مفاتيح راځی، چابئ ته وائی. ② أَسْنَانٌ: د سِنٌ جمع ده، غاښونو ته وائی.

**د راوي مختصر تعارف:** وهب بن منبه تابعی دې، فارسی النسل دې. حضرت جابر ﷜ او حضرت ابن عباس ﷜ څخه ئې روايات نقل کړی دی. دوئ يو ځل وعظ فرمائيلو، چا ترې تپوس اوکړو چې [أليس لا إله إلا الله مفتاح الجنة]؟ نو دوئ جواب اوفرمائيلو چې دچابۍ دپاره د غاښونو ضرورت هم وی نو هله به چابی کار کوی. او داغاښونه نيك عملونه دی او دَ اسلام ارکان دی، دوئ په ١١۴ هجرئی کښې وفات شو.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَكِنْ لَيْسَ مِفْتَاحٌ إِلَّا وَلَهُ أَسْنَانٌ:

**د اسنان څخه مراد:** اسنان غاښونو ته وائی. او دچابۍ غاښونو څخه د اسلام بقيه څلور ارکان يعنی مونځ، زکوة، روژه او حج بيت الله مراد دی. نو دا نيك عملونه چه کله وی نوهله به د جنت دروازې بيرته کيږی.

**قوله:** فَإِنْ جِئْتَ بِمِفْتَاحٍ لَهُ أَسْنَانٌ فُتِحَ لَكَ:

**په خوارجو اومعتزلو باندې رد:** که دخول اول څخه وی او که سزا خوړولو څخه ورستو دخول وی، دا قيد احترازی ډير ضروری دې چې د مسلمانانو باره کښې کومه عقيده د معتزلو

(١) اخرجه البخاری کتاب الجنائز باب ما جاء في الجنائز. ومن كان آخر كلامه: لا إله إلا الله

اوڈ خوارجو ده چې ټول خلق د ګناه په وجه د اسلام څخه خارج شو، په دوئ باندې رد اوشی، هم داسې طبقو او هم داسې خلقو باندې دا حدیث پاك بلیغ ترین تردید دی.

## [٤٤] د کامل مؤمن هره نیکی په لس چنده

۴۴ -()[۳۹] [١]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[٢]«إِذَا أَحْسَنَ أَحَدُكُمْ إِسْلَامَهُ، [٣]فَكُلُّ حَسَنَةٍ يَعْمَلُهَا تُكْتَبُ لَهُ بِعَشْرِ أَمْثَالِهَا إِلَى سَبْعِمِائَةِ ضِعْفٍ، [۴]وَكُلُّ سَيِّئَةٍ يَعْمَلُهَا تُكْتَبُ بِمِثْلِهَا حَتَّى لَقِيَ اللَّهَ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١]او حضرت ابوهریره ﷛ وایي رسول الله ﷺ وفرمایل [٢]هر کله چې په تاسو کې یو سړي (د زړه د اخلاصه او د اخلاص نیت په بناء) خپل ایمان ښه جوړکړي، [٣]نو هغه چې کوم نیك عملونه وکړي په هغه د هغه په عملنامه کې د هغه په شان دلسو څخه د اوه سوو پورې د نیکیو زیات ثواب لیکل کیږی [۴]اوخوك چې بد عمل کوي هغه د هغه په عملنامه کښې د هغه یو عمل ګناه لیکل کیږی تر دې چې هغه د الله سره ملاقات وکړي. بخاري او مسلم

**حل اللغات:** ① أَحْسَنَ: أَيْ أَجَادَ وَأَخْلَصَ: ښه ښائسته او د زړه په اخلاص سره اوکړی، ② ضِعْفٍ: یعنی څو څو چنده.

**تسهیلات:**

**قوله:** إِذَا أَحْسَنَ أَحَدُكُمْ إِسْلَامَهُ:

**د حسن اسلام څخه مراد:** حسن اسلام څخه مراد باطنی طور سره اخلاص او عقد جازم دې کوم چې تصدیق قلبی مع الاعمال دې، یعنی [ظاهراوباطنا] حُسن وی، باطن هم ښه وی او ظاهر هم ښه وی.

**قوله:** إِلَى سَبْعِمِائَةِ ضِعْفٍ:

**د حسن نیت په وجه په ثواب کښې زیادت:** یعنی د اخلاص او حسن نیت په وجه اوؤ سوؤ پورې ثواب زیاتیږی، د اخلاص او نیت په تفاوت سره به په ثواب تفاوت راځی.

**د زیادت اجر په مقدار کښې دوه اقوال:** ① علامه ماوردی ﷫ فرمائی چې لس چنده پورې ثواب خو یقینی دې او اضافه تر اووؤ سوؤ چندو پورې ده، اوس به ددې څخه زیات ثواب نه ملاویږی. خو

② علامه نووی ﷫ فرمائی چې مخکښې به هم زیات ثواب ملاویږی او اضافه به په کښې هم وی. اګر چې کروړونو ته شمیر اورسی. دلته دَ اووؤ سوؤ پورې د شمیر ذکر خو

---

[١] ) اخرجه البخاري كتاب الإيمان/باب حسن إسلام المرء(رقم-٤٢ ) ومسلم كتاب الإيمان/باب إذا هم العبد بحسنة كتبت، وإذا هم بسيئة لم تكتب(رقم-٢٠٥ - (١٢٩)

صرف د کثرت په وجه سره دي، د حدبندۍ په بنیاد نه دي او آیت مبارك بیان کوی [وَاللّٰهُ يُضٰعِفُ لِمَنْ يَّشَآءُ] چې دا اضافه لا محدود ده، خو دا ضروری دی چې کوم ځائې کښې شریعت تعین نه دي کړې هلته دې یو کس پخپله تعین نه کوی. یعنی دادې نه وائی چې یوکم پنځوس کروړه به ملاویږی بلکه داسې دې اووائی چې په کروړونو ملاویدې شی.

## [٤٥] په ایمان باندې د نیکۍ او د ګناه اثر

٤٥ -()[٣٠] [١] وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - [٢] «أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: مَا الْإِيمَانُ؟ [٣] قَالَ: " إِذَا سَرَّتْكَ حَسَنَتُكَ وَسَاءَتْكَ سَيِّئَتُكَ ; فَأَنْتَ مُؤْمِنٌ " [٤] قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَمَا الْإِثْمُ؟ [٥] قَالَ: " إِذَا حَاكَ فِي نَفْسِكَ شَيْءٌ فَدَعْهُ» " رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابو امامه ﷺ روایت کوي [٢] چې یو سړي درسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه (چې یا رسول الله ﷺ) د ایمان د سلامتي علامه څه ده؟ [٣] رسول الله ﷺ وفرمایل هر کله چې ستا نیکي وتاته ښه ښکاره شي او ستا بدي وتاته بده ښکاره شي، (نو پوه شه چې) ته (پوخ) مومن یې، [٤] بیا هغه سړي پوښتنه وکړه یا رسول الله ﷺ (علامه د) ګناه څه ده؟ [٥] حضور ﷺ ورته وفرمایل هر کله چې یوه خبره ستا په زړه کښې شك او تردد پیدا کړي (نو پوه شه چې هغه ګناه ده) نو هغه پریږده. احمد

**حل اللغات:** ① سَرَّتْكَ: أي حَصَلَ لَكَ فَرَحٌ وَمَسَرَّةٌ: تاته خوشحالي او خوږوالې حاصل شی (په نیک عمل سره). ② سَاءَتْكَ: أي وَقَعَ فِي قَلْبِكَ حُزْنٌ وَمَسَاءَةٌ: ستا په زړه کښې غم او خفګان پیدا شی (د بدعمل دعذاب د ویرې نه). ③ الْإِثْمُ: ګناه، ④ حَاكَ: أَيْ تَرَدَّدَ: تردد، شک.

**تسهیلات:**

**قوله:** مَا الْإِيمَانُ؟:

**دایمان نښه:** سائل دَ حقیقتِ ایمان باره کښې سوال نه دي کړې بلکه دَ ایمان دَ علاماتو او آثارو پوښتنه ئی کړې ده په دې وجه رسول ا لله ﷺ په جواب کښې علامات او آثار خودلی دی.

**قوله:** إِذَا سَرَّتْكَ حَسَنَتُكَ:

**په نیکۍ خوشحالیدل:** یعنی ترکومې چه په زړه کښې داکیفیت دې چه نیکی کولوسره خوشحالی محسوسیږی او په بدئی باندې غم محسوسیږی نو پوهه شه چه ته مؤمن ئی اوکه په نیکئی یا بدئی کښې څه فرق نه محسوسیږی نو پوهه شه چه دَایمان شمع دې مړه شوه.

[١]) واحمد فی المسند ٢٥١/٥.

**قوله: إِذَا حَاكَ فِي نَفْسِكَ شَيْءٌ فَدَعْهُ:**

**په زړه کښې شک اچونکې څيز پرېښودل:** يعنی په زړه کښې ويره پيداشي چه داکارد ګناه دې نو دا پرېږده. دا روايت داسې دې لکه چه "الحلال بين والحرام بين وبينهما متشابهات" يالکه "دع ما يريبك الى ما لا يريبك او استفت نفسك الخ". دا حکم او دا فيصله اودامعيار اوپيمانه دَهغه زړونود پاره ده چه صفا او روښانه وی دَکوموباطنی صفائی چه پوره شوې وی نو هغه به په دې کښې فرق کولې شی دَ عامو خلقودَ زړونو فيصله مرادنه ده.

### [٤٦] دايمان او اسلام خصلتونه

۴۶ ـ( )[۴۱] [١]«وَعَنْ عَمْرِوبْنِ عَبَسَةَ (-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-) قَالَ: أَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢]فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَنْ مَعَكَ عَلَى هَذَا الْأَمْرِ؟ [٣]قَالَ: "حُرٌّ وَعَبْدٌ." [٤]قُلْتُ: مَا الْإِسْلَامُ؟ قَالَ: "طِيبُ الْكَلَامِ، وَإِطْعَامُ الطَّعَامِ". [٥]قُلْتُ: مَا الْإِيمَانُ؟ قَالَ: "الصَّبْرُ وَالسَّمَاحَةُ". [٦]قَالَ: قُلْتُ: أَيُّ الْإِسْلَامِ أَفْضَلُ؟ قَالَ: "مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ".

**ترجمه:** [١]او حضرت عمرو بن عبسه ﷺ روايت کوي زه د رسول اکرم ﷺ په خدمت کې حاضر شوم [٢]او عرض مي اوکړو يا رسول الله ﷺ د دعوت اسلام په شروع کې په دې دين (اسلام) باندې ستا ﷺ سره څوك وو؟ [٣] ده وفرمايل يو آزاد (ابو بکر ﷺ) او يو غلام (بلال ﷺ) [٤] ما عرض اوکړو د اسلام علامت څه دې؟ وي فرمايل پاکي خبري او (په مسکنانو باندي) ډوډۍ خوړل، [٥]ما عرض اوکړو د ايمان خبري څه دي؟ وي فرمايل صبر او سخاوت (يعني د بدو خبرو څخه ځان ساتل او په فرمانبرداري باندې چټك کيدل) [٦] ما اوويل کوم مسلمان بهتره دي؟ وي فرمايل هغه چې د هغه د ژبې او دلاس (د ضرر) څخه مسلمان محفوظ وي،

**حل اللغات:** ① حُرٌّ وَعَبْدٌ: يو آزاد او يو غلام (يعنی ابوبکر اوبلال ﷺ). ② طِيبُ الْكَلَامِ: ښه خبري. ③ السَّمَاحَةُ: أَيِ السَّخَاوَةُ: يعنی د فقيرانو او محتاجو خلقو سره نيکی کول، مال پرې خرچ کول. ④ سَلِمَ: چه سلامت وی، محفوظ وی (خلق)،

[١]قَالَ: قُلْتُ: أَيُّ الْإِيمَانِ أَفْضَلُ؟ قَالَ: "خُلُقٌ حَسَنٌ". [٢]قَالَ: قُلْتُ: أَيُّ الصَّلَاةِ أَفْضَلُ؟ [٣]قَالَ: طُولُ الْقُنُوتِ، قَالَ: قُلْتُ: أَيُّ الْهِجْرَةِ أَفْضَلُ؟ قَالَ: أَنْ تَهْجُرَ مَا كَرِهَ رَبُّكَ، [٤]قَالَ: فَقُلْتُ: فَأَيُّ الْجِهَادِ أَفْضَلُ؟ قَالَ: مَنْ عُقِرَ جَوَادُهُ، وَأُهْرِيقَ دَمُهُ. [٥]قَالَ: قُلْتُ: أَيُّ السَّاعَاتِ أَفْضَلُ؟ قَالَ: جَوْفُ اللَّيْلِ الْآخِرِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [١] ما اوويل په ايمان کښي ښه شي کوم يو دي؟ وي فرمايل ښه اخلاق، [٢]ما اوويل په لمانځه کې کوم شي ښه دي؟ [٣]وي فرمايل تر ډيره وخته پورې ودريدل، ما اوويل کوم هجرت ښه دي؟ وي فرمايل دا چې ته هغه شي پرېږدي چې هغه ستا پرور

---

[١]) واحمد في مسند

دګار یې نه خوښوي، ④ ما اوویل په جهاد کښې افضل څوك دې؟ وې فرمایل هغه سړې افضل دې چې د هغه اس ووژل شي او هغه خپله هم شهید شي، ⑤ما اوویل د ټولو څخه افضل کوم وخت دی؟ ده ﷺ وفرمایل د نیمې شپې اخرې حصه. احمد

**حل اللغات:** ⑤ خُلُقٌ: وَهُوَ صِفَةٌ جَامِعَةٌ لِلْخِصَالِ السَّنِيَّةِ: ټولو ښه اخلاقو ته شامل دې ⑥ طُولُ الْقُنُوتِ: أَيِ الْقِيَامُ: ډیر وخت اودریدل (په دې کښې قراءت او خشوع هم داخل دی). ⑦ أَيُّ الْهِجْرَةِ: دلته دهجرت نه مراد د هجرت انواع او اقسام دی یعنی کوم قسم هجرت افضل دې؟ ⑧ أَنْ تَهْجُرَ: چه ته پریږدې، ⑨ أَيُّ الْجِهَادِ: دلته هم د جهاد د انواع او اقسام بارد کښې تپوس کول مراد دی چه کوم قسم جهاد افضل دې؟ ⑩ عُقِرَ: أَيْ قُتِلَ: خپې ئې کټ کړې شي یعنی قتل کړې شي. ⑪ جَوَادُهُ: أَيْ فَرَسُهُ: کره یعنی قیمتی اس. ⑫ أُهْرِيقَ: أَيْ صُبَّ وَسُكِبَ: توئې کړې شي، اوبهیولې شي.

**د راوې مختصر تعارف:** حضرت عمروبن عبسه ﷺ خلورم مسلمان دې په شروع کښې ئې اسلام قبول کړو خپل قوم بنی سلیم ته لاړو او هلته اوسیدو او بیا په اوومه هجرئی کښې دَ جنګ خیبرپه موقع ئې هجرت اوکړواو سره مدینې منورې ته لاړو. دوی شامی وو. دوی ته حضورپاك فرمائیلي وو چه کله واورې چه ماهجرت اوکړو نوبیاته هم راشه دَدوی کنیت ابونجیح سلمی دې.

**تسهیلات:**

**قوله: مَنْ مَعَكَ عَلَى هَذَا الْأَمْرِ؟:**

**دسائل مقصد:** دَامر نه مراد دین دې یعنی تاسو چه په کوم دین باندې یئی په هغې کښې کوم خلق ستاسو ملګرتیاکوی؟ داسې معلومیږی چه دې صحابی دامعلومول غوښتل چه دا دین قبلونکی دکومې طبقې سره تعلق لری څرته څه مخصوص طبقه خونه ده چه دا دین قبلوی اونور خلق مخالف وی دا صورت هغه وخت کیږی کله چه یو تحریك دَ یوې خاصې ډلې دَ خاص مقصد دَپاره شروع شی په دعوت الهیه کښې دا څیزنه وی بلکه هغه دَ پوره امت دَپاره اودَ هغوی دَ فائدودَپاره عام وی.

**قوله: قَالَ: "حُرٌّ وَعَبْدٌ":**

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① یعنی دلته څه خاص طبقه نشته بلکه هرچاته لاندې طبقې والا غلام وی او اوچتې طبقې والا شریف ته دَ موافقت کولاؤ دعوت دې لکه چه وئیلی شوی دی.

② زما په موافقت کښې یوآزاد دې چه ابوبکر ﷺ دې اوبل غلام چه بلال ﷺ دې دَدې مفهوم تائیددَمسلم شریف دَدې روایت نه کیږی په کوم کښې چه "ومعه یومئذ ابوبکر وبلال" الفاظ دی.

**اشكال:** دغه وخت كښې خو حضرت خديجه ﷞ هم مسلمانه شوې وه حضرت على ﷜ هم وو دَهغوى ذكر ولې اونه كړې شو؟

**داشكال جواب:** حضرت خديجه ﷞ خودَ ښځونه وه په دې وجه دَهغې ذكر رانغلو اوحضرت على ﷜ وړوكې وو.

**قوله:** "قُلْتُ: مَا الْإِسْلَامُ؟

**د اسلام د علامت تپوس:** په دې حديث كښې د حقيقت اسلام اودَ ماهيئتِ اسلام سوال نه بلكه دَ علامت اسلام سوال وو،

**قوله:** قَالَ طِيبُ الْكَلَامِ وَإِطْعَامُ الطَّعَامِ:

**د جزئيو مصداق:** په دې جمله كښې دَ اول جزنه روحانى غذا اودويم جزنه بدنى غذا مراد ده دَدغه دواړو تعلق حقوق العباد سره دې نو دَحقوق الله اهتمام په طريقه اولى شوې دې.

**د دواړو خصلتونو د تخصيص وجه:** دَدې دواړو جملونه جميع محامداو خصائل حسنه مقصوددى مگردَدغه دوو تخصيص ئى اوفرمائيلو ځكه چه په اول كښې خو تواضع ده او په دويم كښې دَ سخاوت او اكرام ذكر دې اودا دواړه صفتونه دَ الله تعالى دَمخلوق دَ خدمت دَپاره اصل دى.

**قوله:** وَالسَّمَاحَةُ:

**د سماحة په مصداق كښې دوه اقوال:**

① حضرت حسن بصرى ﷬ فرمائى دَ سماحة نه مراد دَ فرائضو ادائيگى ده.

② دَ هرمعدوم په نه ملاويدو باندې صبركول خوصبردې او په هر موجود باندې سخاوت كولونوم سماحه دې.

نو يوترك فعل او يووجود فعل وى نولكه چه ايمان دَدوو قسمه افعالو نوم شو يوسلبى افعال او دويم وجودى اعمال دَدواړو ملاويدوسره كامل ايمان جوړيږى او دَدغه مجموعې طرف ته په خلق حسن سره اشاره كړې شوې ده.

**قوله:** أَيُّ الْإِسْلَامِ أَفْضَلُ؟:

**تقديرى عبارت:** دلته سوال دَاشخاصو باره كښې دې يعنى أى أهل الإسلام أفضل يا أى ذوالإسلام أفضل نو په جواب كښې "من سلم المسلمون" وئيل صحيح شو اوحمل صحيح نه دې يادَ من سلم نه وړاندې لفظ دَ اسلام محذوف اومنلې شى "أى إسلام من" نو سوال اوجواب به مطابق شى.

**قوله:** مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ:

**په مؤمن كښې د سلامتيا صفت:** دَدې جملې نه وړاندې طيب الكلام او إطعام الطعام ذكروو په

کوم کښې چه تحلیه بالفضائل ذکروو او په دې جمله کښې تخلیه عن الرذائل ذکردې طیب الکلام جمله دَحقوق العباد دَاهمیت دَ وجې نه مقدم کړې شوه ګنی طبعًا او عرفًا دَتخلیه مقام دَ تحلیه نه مقدم وی چه اول ګندګی لرې کړه بیا ښائست او سنګارکولو سره عطر اولګوه.

**قوله:** أَيُّ الْإِيمَانِ أَفْضَلُ؟:

**تقدیری عبارت:** دلته هم سوال دَ اشخاصو باره کښې دې أی أهل الایمان أفضل یاأی أخلاق الایمان یاأی خصال الایمان یاأی شعب الایمان أفضل.

**یو سوال او مختلف جوابونه:** حضورپاك لفظ "افضل" سره د ګڼړو سوالونو مختلف جوابونه ورکړی دی ① یا خودَسائل دَ حالت تقاضا وه ② یادَ زمانې تقاضاوه ③یادَمقام اومکان تقاضا وه ④ یا افضل یوکلی دې دکوم چه ډیر انواع دی نوچه دکوم افضل ذکراوشوهغه هم دَ دغه کلی دَ انواعو نه یونوع ده خپل مینځ کښې تضادنشته وړاندې په دې باندې کلام شوې دې. په دې کښې وضاحت اوتفصیل دې هغه دې اوکتلې شی.

**قوله:** خُلُقٌ حَسَنٌ:

**دحُسنِ خلق تعریف:** بعضې محققینو د حسن خلق تعریف داسې کړې دې:

الخلق الحسن هو بسط المحیا وبذل الندی وکف الأذی وأن لا یخاصم لمعرفة الله تعالی ولذا قیل الصوفی لایخاصم ولایخاصم.

یعنی ښه اخلاق روښانه ژوند، سخاوت کول، چاته تکلیف نه رسول، اودالله تعالی د معرفت په چا سره جګړه نه کول هم د دې وجې وئیلی شوی دی چې صوفی هغه دې نه چا سره جګړه کوی اونه ده سره جګړه کولې شی.

دَ ښه اخلاقو عظمت: دَاوچتوخصلتونو اواعلی سیرت دَپاره جامع ترین صفت دَحسن اخلاق صفت دې. په ډیرو احادیثوکښې ایمان او حسن خلق یوځائی کړې شوې دې، چنانچه په ابوداؤد شریف کښې یوحدیث دې: "أکمل المؤمنین إیمانا أحسنهم خلقا" دَ قرآن کریم ارشاد دې ﴿ وَإِنَّكَ لَعَلىٰ خُلُقٍ عَظِيمٍ ﴾. دَ حضرت عائشه صدیقه ﷺ نه چه کله صحابه کرامو ﷺ پوښتنه اوکړه چه دَحضورپاك اخلاق څنګه وو؟ نوهغې اوفرمائیل "کان خلقه القرآن" یعنی دَ اوامر اونواهی پوره پوره خیال ساتل اخلاق حسنه دی. قرآن کریم چه کوم څیزته ښه اووئیل نبی کریم ﷺ به طبعًا هغه ښه ګڼړل اوقرآن چه کوم کارته بد وئیلی دی نبی کریم ﷺ به هغه طبعًا نه خوښولو دَ "کان خلقه القرآن" هم دغه مطلب دې.

**قوله:** قَالَ: طُولُ الْقُنُوتِ:

**دقنوت څلور معانی:** علامه انباری رحمه الله فرمائی چه قنوت په څلورو معنو کښې راځی

① الصلوة یعنی مونځ

② طویل القیام یعنی په مانځه کښې اوږده اودریدل

③ الطاعة یعنی تابعداری

④ السکوت یعنی چپوالې

**دطول القنوت څخه په مراد کښې دوه اقوال:**

① بعضو عالمانو د طول القنوت څخه قراءت یاخشوع مراد اخستې ده.

② داحنافو په نیز طول القنوت نه طول قیام مراددې

**قوله:** قَالَ: أَنْ تَهْجُرَ مَا كَرِهَ رَبُّكَ:

**دهجرت پنځه قسمونه :**

① من دارالکفرالی دارالاسلام لکه دمکې نه مدینې ته چه هجرت وو.

② من دارالکفرالی دارالامن لکه چه دمکې نه دحبشې طرف ته چه هجرت وو.

③ من دارالفسق الی دارالتقوی لکه افغانستان کښې د طالبانو اسلامی خلافت طرف ته هجرت.

④ هجرة القبائل لتعلم المسائل لکه چه نن صبا دینی مدرسو طالبان کوی. اود حضور پاك په زمانه کښې اود هغې نه پس دمدینې منورې طرف ته دعلم زده کولو د پاره چه کوم خلق راتلل هغه هم ددې قسم هجرت وو.

⑤ هجرة من هجر الخطايا والذنوب دا آخری قسم عام دې.

**قوله:** فَأَيُّ الْجِهَادِ أَفْضَلُ؟:

**تقدیری عبارت:** یعنی أی ذوی الجهاد أفضل یا أی أهل الجهاد أفضل؟ په دې تقدیر سره د کلام په سوال اوجواب کښې مطابقت راځی اومن عقر جواده به صحیح شی.

**دمذکوره جهاد د افضلیت وجه:** دا قسم جهاد ئی د ټولونه غوره څکه اوګرځولو چه مجاهد په دې کښې ځان اومال دواړه قربان کړل او په مال غنیمت وغیره کښې ئی هیڅ هم حاصل نه کړل لکه چه خالص ثواب پاتې شو. جهادسره متعلق کلام به ان شاء الله کتاب الجهاد کښې کیږی.

## [٤٧] دايمان په حالت كښې د مرګ فضيلت

۴۷ –()[۴۲] [۱]وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲]سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: "[۳]«مَنْ لَقِيَ اللّٰهَ لَا يُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا، [۴]وَيُصَلِّي الْخَمْسَ، وَيَصُومُ رَمَضَانَ - [۵]غُفِرَ لَهُ". قُلْتُ: أَفَلَا أُبَشِّرُهُمْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ؟ [٦]قَالَ: "دَعْهُمْ يَعْمَلُوا»" رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱]او حضرت معاذ بن جبل ﷺ وايي[۲] ما د رسول الله ﷺ څخه دا واوريدل [۳]کوم سړي چې دالله طرف ته داسې حال کښې (کوچ) سفر اوکړو چې د الله سره هغه څوك نه وي شريك کړي [۴]پنځه وخته مونځ يي کوي د رمضان روژې يې نيولې [۵]نو هغه به وبخښل شي، ما عرض اوکړو چې يا رسول الله ﷺ آيا زه خلقو ته زيرې واوروم؟ [٦]حضور ﷺ وفرمايل چې هغه په خپل حال پريږده چې په عمل کې مشغوله وي. احمد

**حل اللغات:** ① لَقِيَ اللّٰهَ: يَعْنِي: مَاتَ: الله سره د ملاقات نه مراد مړکيدل دي (ځکه چه مرګ د الله سره د ملاقات ذريعه ده).

**تسهيلات: قوله:** وَيَصُومُ رَمَضَانَ:

**د زکاة او حج د عدم ذکر وجه:** دَزکوة او حج ذکرپه دې کښې روايت کښې نشته دې. ځکه چه دَ رسول الله ﷺ په نظرکښې دَمثال په توګه يوڅواعمال بيانول وو تول نه وو يادَدې دَپاره چه دَ حج حکم نه وو راغلې اوکيدې شی چه دَزکوة هم نه وی راغلې ياپه دې وجه ئی دواړه ذکرنه کړل چه په مخاطبينو کښې په مالی اعتبارسره دَ دواړو دَ اداکولوقدرت نه وو.

**قوله:** غُفِرَ لَهُ:

**دغفران څلور صورتونه:** ① يعنی دَدې رمضان نه دَ راتلونکی رمضان پورې مثلاً ټول صغائر ګناهونه به معاف شی.

② که چرته په صدق د زړه سره ئی توبه اوکړه نوکبائر به ئی هم معاف شی

③ که چرې الله تعالی معافی ورکړی نوټول صغائراوکبائربه ئی معاف شی

④ صغائربه معاف شی نو کبائربه کمزورې پاتې شی.

**قوله:** قَالَ دَعْهُمْ يَعْمَلُوا:

**د زيری نه ورکولو وجه:** يعملوا مجزوم دې ځکه چه دَامر په جواب کښې مضارع مجزوم وی. يعنی دوی پريږده چه په عمل کښې ښه محنت اوکړی په عباداتو کښې اضافه اوکړی اودَحديث په دې اجمالی بشارت باندې اعتماد کولوپه وجه ګناه کښې پرېنوځی. دا دَعواموطريقه اوعادت وی

[۱] ) واحمد فی المسند ۲۳۲/۵

**خواصوته د زيري عدم نقصان:** خواصو ته بشارت اورولونه پس پريږده نوهغوی په عبادت زهد اوتقوئ كښې اوسيږی لکه چه فرمائيلې شوې دی "رحم الله صهيبًا لولم يخف الله لم يعصه" يعنی كه دَالله تعالی دَعذاب ويره هم نه وی نوهغوی به بيا هم دَ الله تعالی نافرمانی نه کوی. گورئی چه رسول الله ﷺ دَدې اجمالی بشارت اورولونه منع کړې ده نوكه چرې عمرفاروق رضی الله عنه حضرت ابوهريره رضی الله عنه منع كړو نوهغه دَ حضورپاك حكم نافذ كړو.

### [۴۸] افضل ايمان كوم يودې؟

۴۸–()[۳۳] [۱] وَعَنْهُ أَنَّهُ «سَأَلَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] عَنْ أَفْضَلِ الْإِيمَانِ؟ قَالَ: "أَنْ تُحِبَّ لِلَّهِ، وَتُبْغِضَ لِلَّهِ، وَتُعْمِلَ لِسَانَكَ فِي ذِكْرِ اللَّهِ". [۳] قَالَ: وَمَاذَا يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ [۴] قَالَ: "أَنْ تُحِبَّ لِلنَّاسِ مَا تُحِبُّ لِنَفْسِكَ، وَتَكْرَهَ مَا تَكْرَهُ لِنَفْسِكَ» " رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه څخه روايت دي چې هغه د نبي كريم ﷺ څخه پوښتنه وكړه [۲] چې د ايمان اعلي خبري كومي دي؟ حضور ﷺ ورته وفرمايل چې (د چا سره) ستا محبت هم د الله دپاره وي اوبغض او د ښمني هم د الله د پاره وي او ته خپله ژبه (د زړه د اخلاصه) د الله په ذكر كښي مشغوله ساته، [۳] هغه پوښتنه وكړه چې يا رسول الله ﷺ د دې څخه علاوه نوري كمي خبري دي؟ [۴] رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې نورو د پاره هغه شي خوښوه كوم چې دځان دپاره خوښوي او كوم شي چې دځان دپاره نه خوښوي هغه دنورو دپاره هم مه خوښوه. احمد

**حل اللغات:** ① تُعْمِلَ: بِمَعْنَى الِاسْتِعْمَالِ وَالْإِشْغَالِ: يعنى مشغوله ساته (يعنى رطب اللسان اوسيږه په ذكر دالله سره).

**تسهيلات:**

**قوله:** عَنْ أَفْضَلِ الْإِيمَانِ؟:

**دافضل الايمان څخه مراد:** دې نه مراد افضل ايمانيات دی يعنی مقتضيات ايمان كښې دَټولونه افضل كوم يوخيزدې؟ حضورپاك په جواب كښې "حب فی الله، بغض فی الله" او "كثرت ذكرالله" ئی اوخودل په دې باندې كلام شوې دې.

**قوله:** أَنْ تُحِبَّ لِلنَّاسِ مَا تُحِبُّ لِنَفْسِكَ:

يعنی كوم څيزچه ستا دَخپل ذات دَپاره خوښ دې هغه دَټولو خلقودَپاره خوښ كړه.

[1]) واحمد فی المسند ۲۴۷/۵

**اشکال:** د دَسړی خپل مرغوب ډیرزیات خوښ وی نودابه ډیره ګرانه شی چه کوم څیزدې ښه خوښ وی هغه نوروته ورکړه. ګاډې ورکړه کور ورکړه، هرخوښ کړې شوې څیز ورکړه، دابه څنګه کیږی؟

**داشکال جواب:** دَخپل نفس دَپاره کوم څیز ښه لګی دَهغې په شان دَهغې په مثل اودَهغې غوندې څیزدَنورودَپاره خوښ کړه په زړه کښې خواهش ساته چه کاش ماسره کوم علم دې مال دې عزت دې دَهغې په شان فلانکی سره هم وې.

## [ ۱ ]بَابُ الْكَبَائِرِوَعَلَامَاتِ النِّفَاقِ

### د ګناه کبیره اودَنفاق دعلاماتو بیان

**د باب دوه موضوعات:**

په دې باب کښې دَ دوو موضوعاتو متعلق احادیث راغلی دی.

① دَ کبائر ګناهونو متعلق ده ② دَ نفاق دَعلاماتو متعلق.

خو اول مونږ د ګناهونو په باره کښې څو ضروری خبرې ذکر کوو.

**د ګناه په تقسیم کښې دوه مذاهب:**

① قاضی عیاض مالکی رحمه الله نقل کړی دی چه دَ بعضې محققینورائې داده چه [کل شئ نهی الله عنه فهو کبیرة] استاذ ابواسحاق اسفرائنی شافعی رحمه الله هم دا قول اختیارکړې دې.

② دَ جمهور امت سلفًا خلفًا په نیز دَ ګناه کبیره او صغیره تقسیم جاری دې

**د اول فریق اول دلیل:** ① د دوی استدلال د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دَدې قول نه دې. [کل شئ نهی الله عنه فهو کبیرة]

**د اول فریق د دلیل جواب:** هم دَابن عباس رضي الله عنهما څخه دا قول هم نقل دې. [کل ذنب ختم الله علیه بالنار أو العذاب أو اللعنة أو الغضب فهو کبیرة والا فهو صغیرة]هرکله چې د دوی څخه دواړه قولونه منقول دی.نو ساقط شو.

**د اول فریق دویم دلیل:** دَ قیاس هم دغه تقاضا ده چه دَ الله تعالی هریومخالفت دَ الله تعالی دَ عظمت په وړاندې ګناه کبیره کیدل پکاردی.دَدې وجې نه دا محققین حضرات دَ کبیره او صغیره طرف ته دَ ګناه تقسیم نه کوی بلکه دَ دوی په نیز ټول ګناهونه کبیره دی.

**داول فریق د دویم دلیل جواب:** دَ ګناه دوه نسبتونه دی. یو دَ الله تعالی دَ مخالفت نسبت دې، دَدې نسبت په وجه اګرچه ټول ګناهونه کبیره دی لیکن دَ ګناهونودویم نسبت دَدې په خپل مینځ کښې دې. په دې کښې بعضې ګناه دبعضې نورو ګناهونونه غټې یا وړې وی. هم په دې اعتبارسره دَ جمهورو په نیز دَ ګناهونو تقسیم کبیره او صغیره طرف ته ضروری دې.

**د دویم فریق دلائل:** ① د دوی مستدل دَ الله تعالی دا ارشاد دې ﴿ إِنْ تَجْتَنِبُوا كَبَائِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ﴾ الآية. أي كبائر الذنوب. نكفر عنكم سيئاتكم أي نغفر لكم صغائركم. كما في البيضاوي

② دَدې قرآنی آیت نه علاوه دَ دې باب په ډیر احادیث کښې هم په دې باندې واضح دلالت کوی چه دَ ګناه تقسیم دکبیره او صغیره طرف ته کیږی هم دَدې دَپاره امام غزالی رحمه الله کتاب البسیط کښې لیکلی دی چه په کبیره ګناه او صغیره ګناه کښې فرق نه کول یا دَدې فرق انکار کول نادانی او ناپوهی ده

**دَ صغیره او کبیره ګناه په تعریف کښې اقوال:** بیا دَ جمهورو په خپل مینځ کښې دَ کبائر او صغائر په تعریف کښې لوئی اختلاف دې او مختلف اقوال دی.

① بعضې محققین دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دَ قول په رڼړا کښې کبیره هرې هغه ګناه ته وائی په کوم چه الله تعالی دَ دوزخ حتمی فیصله کړې وی یا دعذاب یا لعنت او یادَ غضب قطعی حکم ئې ورکړې وی او که چرې داسې نه وی نو بیا هغه صغیره ده.

② چه کوم ګناهونه په مونځ، روژه او حج وغیره حسناتو سره نه معاف کیږی هغه کبائر دی. اوکوم ګناهونه چه په اعمال حسنه سره معاف کیږی هغه صغیره ده

③ بعضې احنافو فرمائیلی دی چه هره هغه ګناه دَ کوم دَپاره چه شریعت [فاحشة] لفظ استعمال کړې دې او په هغې باندې په منصوصی توګه دنیاوی یا اخروی سزا مقرر کړې ده هغه کبیره ده ګنې صغیره ده.

④ علامه بیضاوی رحمه الله فرمائی چه: [الأقرب أن الكبيرة كل ذنب كتب الشارع عليه حدا أو صرح بالوعيد فيه وإلا فصغيرة].

⑤ ابن قیم رحمه الله فرمائی چه کومه ګناه دَ نورو ګناهونو دَپاره وسیلې او ذریعې حیثیت لری هغه صغیره ده لکه [النظر إلى الأجنبية واللمس] کوم چه ذریعه دَ زنا ده. داترکومې پورې چه دَ ذرائع په درجه کښې دی نو صغیره دی. اوکومه ګناه چه مقصود بالذات وی لکه زنا نو دا کبیره ده. دا تعریف حضرت قاسم نانوتوی رحمه الله خوښ کړې دې او شیخ الهند محمود الحسن رحمه الله دَ سورت نساء آیت نمبر ٣١ په تفسیر کښې په کبیره او صغیره باندې چه کوم تفصیلی محقق او مدقق کلام کړې دې هغه هم دَدې تعریف سره نیزدې نیزدې دې.

⑥ ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه کله کله رجالو او دافرادو احوالو په رڼړا کښې حالت کبیره او صغیره کیږی. یوه ګناه دَ یو کس دَ پاره کبیره ده نودَ بل دَپاره صغیره ده مثلاً دَ غیرعالم دَ پاره یوه ګناه صغیره ګڼړلې شی مګر هم هغه ګناه دَ عالم دَ پاره کبیره ګڼړلې شی. یوه ګناه مقبول بنده دَ الله تعالی دَ دَپاره کبیره شمیرلې کیږی خودَ غیرمقبول بنده

دَپاره هم هغه گناه صغیره گنړلې شي. هم دَدې دَپاره وئیلی شوی دی[حسنات الأبرار سیئات المقربین] او وئیلی شوی دی:

⑦ امام غزالی رحمه الله فرمائیلی دي چه هره گناه دَ خپل مافوق په اعتبار سره صغیره ده اوږ خپل ماتحت په اعتبار سره کبیره ده.

⑧ بعضو وئیلی دی چه دَ حالاتو او دمکان په اعتبار سره په گناه کښې فرق راځی. مثلاً په بیت الله کښې دننه اودَ حرم په زمکه باندې دَ زړه وسوسه هم لویه گناه ده. مگر دَ حرم نه بهر هیڅ هم نه دی یا یوه گناه په جمات کښې اوکړې شوه نو هغه کبیره ده لیکن هم هغه گناه دَ جمات نه بهر صغیره جوړیږی.

⑨ امام سفیان ثوری رحمه الله د صغیره او کبیره په باره کښې چې کوم قول کړې دې د هغې مطلب دا دې چه کومه گناه د الله پاک او د بنده ترمینځه ده هغه په استغفار او عفو او شفاعت سره معاف کیدلې شی او هغه ظلمونه کوم چه د بندگانو ترمینځه شوې دی هغه بغیر د صاحب حق د معاف کولو نه نۀ شی معاف کیدې.

⑩ مالک بن مغول رحمه الله فرمائی چه د اهل بدعت گناهونه کبیره دی او د اهل سنت گناهونه صغیره دی دا په دې وجه چه د سلفو نه منقول دی چه د شیطان به نزد بدعت د زیاتې خوښې گناه په مقابله کښں دې، ځکه چه د بدعت نه د توبې توفیق نه ملاویږی او د گناه نه د توبې توفیق ملاویږی په دې وجه بدعت زیات خطرناک څیز دې.

⑪ مفسر سدی رحمه الله فرمائیلې دی چه کبائر خو لوئې لوئې گناهونه دی د کومو نه چه الله پاک منع فرمائیلې ده او د د کبائرو چه کوم مقدمات دی هغه صغائر دی، لکه پردئ زنانه ته کتل، د هغې مس کول، ښکلول وغیره. لهذا اصلی کبیره زنا فی الفرج ده او سترگې خپې توابع د زنا د مقدماتو په درجه کښں دی. لکه چه ابن القیم رحمه الله لیکلې دی. د مولانا محمد قاسم صاحب نانوتوی رحمه الله اودهغوی د شاگرد رشید شیخ الهند رحمه الله هم دا قول دې.

⑫ امام نووی رحمه الله د علماء کرامو قول نقل کړې دې صغیره کوم چه د کمې درجې گناه ده په دې باندې اصرار کولو سره هغه کبیره جوړیږی لکه چه د سیدنا عمرو بن العاص رضی الله عنهما نه منقول دی. ﴿لاكبيرة مع الاستغفار ولا صغيرة مع اصرار﴾ یعنی کبیره په استغفار سره معاف کیږی او په صغیره باندې اصرار کولو سره هغه کبیره جوړیږی. شیخ ابو محمد بن عبدالسلام رحمه الله د اصرار تعریف دا کړې دې چه صغیره گناه داسې مکرر صادریږی چه د هغې نه د دین په جانب کښں لا پرواهی او غفلت معلومیږی.

⑬ امام ابن قیم رحمه الله فرمائی چه د گناه لوئې یا وړه کیدل د فاعل په اعتبار سره دی. د گناه کونکې چه د کومې درجې دې هم هغه درجه به ترې نه گناه هم صادریږی، لکه چه قاضی

بیضاوی رحمه الله په خپل تفسیر کښې نقل کړې دی: ﴿الايرى ان الله عاتب نبيه عليه السلام في كثير من خطواته التي لم تعد على غيره خطيئة كما يدل عليه الحديث فان الصحابة لعلو مرتبتهم عندالله كانو يعدون تلك الاعمال موبقات اى مهلكات لكن من بعدهم لنقص مرتبتهم صارت تلك الاعمال في اعينهم ادق من الشعر من هنا سمعت قولهم حسنات الابرار سيئات المقربين فكبائر الرجل الصغير صغائر وصغائر الرجل الكبير كبائر﴾

**ترجمه**: آیا نه شی کتلې چه الله پاک خپل نبی ﷺ ته ډیرو داسې امورو کښې کوم که د غیر نه صادر شوې وې نو صغیره ګناه به هم نه وې شمار کړې شوې تنبیه اوفرمائیله لکه چه احادیث په دې باندې دلالت کوی ځکه چه صحابه کرام رضی الله عنهم د الله پاک په نزد د خپلې مرتبې د اوچت والی د وجې نه دا اعمال د هلاکیدونکې څیزونو نه ګڼړی خو د صحابه کرامو رضی الله عنهم نه پس د نقصان د مرتبې د وجې نه دا اعمال د هغوی په نظر کښې د ویښته نه هم باریک شو (په سپکاوی کښې)، هم دا خبره علماء کرامو داسې بیان کړې ده چه د ابرارو نیکئ د مقربین الهی بدئ شمار کولې شی، لهذا د وړوکی سړی لوئې ګناهونه هم واړهٔ شمیر کولې شی (ځکه چه د هغوی مرتبه دومره اوچته نه وی چه دا ګناه د هغوی د شان خلاف معلومه شی) او د غټو خلقو واړهٔ ګناهونه هم د هغوی د اوچت مقام د وجې نه لوئې ګناهونه شمار کولې شی.

⑭ بعض حضراتو وئیلې دی چه د حالاتو په لحاظ سره هم په ګناهونو کښې تفاوت وی، مثلاً مسجد کښې که یو ګناه کولې شی نو دا ګناه به د هغه ګناه په مقابله کښې لویه وی کومه چه د مسجد نه بهر صادر شوې وی لکه چه قاضی بیضاوی وضاحت کړې دې.

⑮ دا هم وئیلې شوې دی چه د کومې ګناه حرمت په دلیل قطعی سره معلوم شوې وی هغه کبیره ده، د کوم حرمت چه په دلیل قطعی سره ثابت نه وی هغه صغیره ګناه ده.

⑯ امام ابو الحسن واحدی رحمه الله وغیره وئیلې دی چه صحیح دا ده چه د کبیره په شریعت کښې هیڅ مشهور تعریف نشته بلکه شریعت په څه ګناهونو باندې د کبیره اطلاق کړې دې او په څه باندې د صغیره، او بعض ګناهونه داسې دی چه په هغې باندې ئې نه د کبائرو اطلاق کړې دې او نه د صغائرو، خو دا دریم قسم ګناهونه هم یو قسم په صغیره یا کبیره کښې داخل دی. او د عدم بیان حکمت دا دې چه بنده هرې ګناه له کبیره ګڼړلو سره د هغې نه پرهیز اوکړی دا هم داسې ده لکه په لیلة القدر یا د جمعې په شپه کښې د دعا د قبلیدو وخت پټ ساتلې شوې دې چه سړې پوره وخت د دې ساعت په انتظار کښې په عبادت تیر کړی. (التعليق، فتح الملهم، البيضاوی)

**د کبائرو په شمیر کښې مختلف اقوال:** د کبائرو په تعداد کښې اختلاف دې.

① محقق دوانی په شرح عقائد عضدیه کښې د بعض اصحاب شافعیه نه د کبائرو تعداد ۷ لیکلې دې: ۱: شرک کول، ۲: ناحق قتل، ۳: په پاکې زنانه باندې تهمت لګول، ۴: د یتیم مال خوړل، ۵: سود خوړل، ۶: د میدان جهاد نه تیخته کول، ۷: د مور پلار نافرمانی کول.

② علماء کرامو دا هم وئیلې دی چه د کبائرو هیڅ مخصوص تعداد نشته.

③ د سیدنا عبدالله بن عباس ﷠ نه تپوس اوکړې شو چه آیا د کبائرو تعداد اووهٔ دې؟ هغوی جواب ورکړو چه اویا دی.

④ په یو روایت کښې د کبائرو تعداد اووه سوه بیان کړې شوې دې لکه چه په فتح الملهم او بیضاوی کښې دی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۴۹] بعضې لوئې ګناهونه

۴۹ —( )[۱] ۱ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ۲ «قَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ، أَيُّ الذَّنْبِ أَكْبَرُ عِنْدَ اللّٰهِ؟ ۳ قَالَ: "أَنْ تَدْعُوَ لِلّٰهِ نِدًّا وَهُوَ خَلَقَكَ" ۴ قَالَ: ثُمَّ أَيٌّ؟ قَالَ: "أَنْ تَقْتُلَ وَلَدَكَ خَشْيَةَ أَنْ يَطْعَمَ مَعَكَ". ۵ قَالَ: ثُمَّ أَيٌّ؟ قَالَ: "أَنْ تُزَانِيَ حَلِيلَةَ جَارِكَ". ۶ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ تَصْدِيقَهَا: {وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللّٰهِ إِلٰهًا آخَرَ وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللّٰهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُونَ} [الفرقان: ۶۸]» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ حضرت عبدالله بن مسعود ﷛ وایي ۲ چې یو سړي پوښتنه وکړه یا رسول الله ﷺ د الله په نیز دټولو څخه لویه ګناه کمه ده؟ ۳ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل دا چې کوم الله ته پیدا کړي یي ته د هغه سره څوك شریك جوړکړي، ۴ بیا هغه سړي پوښتنه وکړه، د دې څخه وروسته دټولو څخه لویه ګناه کمه ده؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل د اچې ته خپل اولاد په دې خیال وژني چې هغه به ستا سره خوري، ۵ هغه بیا پوښتنه وکړه د دې څخه وروسته کمه ګناه د ټولو څخه لویه ده؟ حضور ﷺ ورته وفرمایل دا چې ته دخپل ګاونډي د ښځي سره زنا وکړي ۶ (عبدالله ابن مسعود ﷛ وایي چې) د رسول اکرم ﷺ د دې ارشاد په تصدیق کې دا آیات نازل شو (چې د هغه ترجمه د اده:) هغه بندګان خاص دي چې د الله څخه ماسوا بل څوك د عبادت لایق نه ګرځوي او دکم ساه اخستونکي قتلول چې الله حرام کړي دي هغه په ناحقه نه قتلوي او نه زنا کوي (او څوك

[1]) اخرجه البخاری کتاب الدیات باب قول الله تعالی: {ومن یقتل مؤمنا متعمدا فجزاؤه جهنم} [النساء: ۹۳](رقم-۶۸۶۱) ومسلم کتاب الإیمان/باب کون الشرک أقبح الذنوب، وبیان أعظمها بعده(رقم-۱٤۲ - (۸۶) وابوداود کتاب الطلاق/ باب فی تعظیم الزنا(رقم-۲۳۱۰) اخرجه النسائی کتاب تحریم الدم/باب ذکر أعظم الذنب، واختلاف یحیی وعبد الرحمن علی سفیان فی حدیث واصل، عن أبی وائل، عن عبد الله فیه (رقم-٤۰۱۳) والترمذی کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة الفرقان (رقم-۳۱۸۲)واحمد فی المسند ۳۸۰/۱

چې داسې وکړي هغه به په ګناه کښې پريوځي). بخاري او مسلم

**حل اللغات:** ① نِدًّا: أَيْ مِثْلًا وَنَظِيرًا: مثل او مشابه (په عبادت کښې شريک). ② حَلِيلَةَ: أَيْ زَوْجَتَهُ: د حَلَّ يَحِلُّ نه، په معنی د حلال والی سره، او ښځه خاوند هم يوبل دپاره حلال وی نو ځکه ښځې ته حليلة اووئيلی شو. ③ جَارِكَ: جار ګاونډی ته وائی.

**د راوي مختصر تعارف:** د عبدالله بن مسعود ﷺ کنيت ابوعبدالرحمان دې. قديم الاسلام دې. ځينې وائی چې دده په اسلام قبلولو کښې شپږم نمبر وو. او نبی کريم ﷺ سره ډېر نزدې پاتې شو. تر دې پورې چې خلقو دا اوګنړل چې دې د نبی کريم ﷺ د کور بنده دې. د نبی کريم ﷺ د اودس، جائې نماز او مسواك خدمت ددوئ په ذمه وو. د حضور نبی کريم راز دار هم وو. حبشې ته ئې هجرت هم اوکړو. بيا بدر کښې شريك شو او روستو ټولو غزواتو کښې شريك شوي دې. نبی کريم ﷺ دده باره کښې فرمائيلی وو چې دا جنتی دې. نبی کريم ﷺ دا هم فرمائيلی وو چې:

[رضيت لأمتي ما رضي لها ابن أم عبد وسخطت لها ما سخط لها ابن أم عبد]

دوئ ﷺ په ناسته پاسته او سيرت کښې د نبی کريم ﷺ سره مشابه وو. د کوفې قاضی او معلم مقرر شو، حضرت عمر فاروق ﷺ اهل کوفه ته اووئيل چې ما تاسو ته په خپل ځان ترجيح درکړه چې ابن مسعود ﷺ مې تاسوته درکړو. بيا ئې اوفرمائيل چې [كنيف ملئ علماً] يعنی دَ علم ډکه کمره ده. د علم خزانه ده. دوه ديرشم هجری کښې مدينه منوره کښې ددوئ انتقال اوشو، او جنت البقيع کښې مدفون شو. د دوئ عمر شپيتو کالو ځخه زيات وو.

**تسهيلات:**

**قوله: أَيُّ الذَّنْبِ أَكْبَرُ عِنْدَ اللّٰهِ؟:**

**د ګناه څلور قسمونه:**

① يو قسم هغه دی چې بغير د توبې او ايمان ځخه نه معاف کيږی هغه کفر دې.

② دويم قسم هغه دی کوم چې د مغفرت په اميد او دَ استغفار او دَ حسناتو په ذريعه کيږی، هغه صغائر دی.

③ دريم قسم هغه دی کوم چې د الله تعالی د مشيت لاندې دی کوم چې توبې او بغير دَ توبې دواړو صورتونو کښې معاف کيدېشی. هغه حقوق الله دی.

④ او څلورم هغه دی کوم چې د بدلې اخستو يا معاف کولو ځخه بغير نه معاف کيږی، هغه حقوق العباد دی.

**قوله**: قَالَ ثُمَّ أَيٌّ؟:

**دلم لفظ نوعيت**: دلته د أي لفظ د استفهام دپاره دي. [ أي أي الشئ اكبر من الذنب بعد الكفر]
دلته دا لفظ ثم تراخئ زمانه يا تراخئ رتبه دپاره نه دي. بلکه دا تراخی فی الإخبار دپاره دي.

**قوله**: أَنْ تَقْتُلَ وَلَدَكَ:

**د ولد قتلول د پنځو گناهونو مجموعه**:
د شرک څخه روسته قتل ولد لويه گناه ځکه اوشميرلې شوه چې په مذکوره قتل کښې پنځه گناهونه راجمع شوی دی.
① نفس مسلم قتل لويه گناه ده.
② واړه ماشومان قتل دويمه گناه ده.
③ قتل هم بدترين انداز سره چې ژوندی ئې ښخ کړی،
④ صلۀ رحمی نظر انداز کول او قتل کول
⑤ د رزق د ويرې قتل کول چې زما سره ولې خوراك اوکړی ؟ او الله تعالی رازق نه گنړل،

**په زمانه دجاهليت کښې د اولاد د قتلولو باره کښې دوه نظريات**: ① اوله نظريه دهغه خلقو وه کوم چې اگر چې فی الحال مالدار وو خو راتلونکي وخت کښې ورسره فکر وو چې فقيران نه شو. ددوئ باره کښې ئې اوفرمائيل [وَلَا تَقْتُلُوٓا أَوْلَادَكُم مِّنْ إِمْلَاقٍ ۖ نَّحْنُ نَرْزُقُهُمْ وَإِيَّاكُمْ] د لته ئې اولاد خوراك ورکول مقدم کړل چې تاسوسره ددوئ زياته ويره ده. نو مونږبه دوئ ته هم ورکړو. او تاسو ته هم درکوؤ. دا دقرآن پاك بلاغت او عجيبه اسلوب بيان دي.
② دويمه نظريه دهغه خلقو وه چې فی الحال غريب او مفلس وو. هغوئ سره دا غم وو چې اولاد ته به خوراك څنگه ورکوؤ. قرآن کريم ډير عجيبه بلاغت سره دوئ پوهه کړل [وَلَا تَقْتُلُوٓا أَوْلَادَكُم مِّنْ إِمْلَاقٍ ۖ نَّحْنُ نَرْزُقُكُمْ وَإِيَّاهُمْ] اولاد ته خوراك ورکول ئې مؤخر کړل، ځکه چې دې خلقو ته فی الحال د خوراك غم وو. اول قرآن کريم دا غم لرې کړو.

**قوله**: خَشْيَةَ أَنْ يَطْعَمَ مَعَكَ:

**د ان يطعم معک په قيد کښې دوه احتمالات**: ①دا قيد اتفاقی دې چې هغه خلق هم په دې و چه اولاد قتل کوی
② دا قيد د شناعت او قباحت ظاهرولو دپاره دې چې ستا په پيالۍ تا سره ستا بچی خوراك اوکړو او يوه نمړۍ ئې واخسته او په دې باندې تا هغه قتل کړو. لږ شرم اوکړه.

**قوله**: "أَنْ تُزَانِيَ حَلِيلَةَ جَارِكَ".:

**دګاونډئ ښځې سره د زنا په لويو ګناهونو کښې د شميرلو دوه وجوهات**: ①په دې کښې زنا ده بل په هغه خائی کښې ده کوم چه هم دده په پناه او ګاونډ کښې ده. نو په دې کښې يوخو

ابطال حق جوار یعنی دَ گاونډی دَ حق ابطال راغلو

④ په دې کښې خیانت راغلو. دریم په دې سره معاشره تباه کیږی ځکه چه کله گاونډی خیانت گر او غل جوړشی نودَ هغه نه بچ پاتې کیدل ډیر گران دی. بیا به هرسړې دَخپل کور څوکیدار جوړشی اودَ هیڅ کار دَ پاره به بهرته نه شی تلې

**په روایاتوکښې تعارض:** ①دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په نیز دَ کبائر شمیر ۷۰ دې

② دَ سعید بن جبیر رحمه الله په نیز دَدې شمیر اووه سوه دې

③ دَ ابوطالب مکی رحمه الله په نیز اوولس دی.

④ په مذکوره حدیث کښې دَ دریو ذکردې.

⑤ بعضې روایاتوکښې دَ څلورو ذکر دې

⑥ په یو روایت کښې دَ اووه ذکر راغلې دې نو دا ښکاره تعارض دې؟

**د تعارض جواب:** حضورپاك دَ مخاطب دَ ضرورت مطابق دَ کبائر ذکر فرمائیلې دې. احصاء او پوره شمیر مقصود نه وو اونه دَتحدید هغوی اراده کړې ده. بل په عدد کښې تعارض نه راځي. دلته د هرې گناه سره چه کوم قید لگیدلې دې دا د زیات تقبیح، تشنیع او شناعت دَپاره دې لکه چه دَدې تشریح شوې ده.

## [۵۰] بعضې لوئې گناهونه

۵۰-()[۲] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[۲] «الْكَبَائِرُ: الْإِشْرَاكُ بِاللَّهِ، وَعُقُوقُ الْوَالِدَيْنِ، وَقَتْلُ النَّفْسِ، وَالْيَمِينُ الْغَمُوسُ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه وایي رسول صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] چې څوك د الله شریك جوړول، د مور وپلار نافرماني کول، ناحقه څوك مړ کول او په دروغو قسم خوړل لوي گناهونه دي

**حل اللغات:** ① الْكَبَائِرُ: لوئې گناهونه، ② عُقُوقٌ : دا د عَقٌّ نه ماخوذ دې، وَهُوَالشَّقُّ وَالْقَطْعُ: شلولو او پریکولو ته وائی. نو معنی ئې شوه: أَيْ قَطْعُ صِلَتِهِمَا: چه د مور پلار سره سلوک ختموی یعنی نافرمانی ئې کوی. ③ الْيَمِينُ : حلف او قسم ته وائی. ④ الْغَمُوسُ :غموس د غمس څخه دې، غوپه وهلو ته وائی. چونکه یمین غموس دپاره څه کفاره نشته دې نو بس صرف د دوزخ په اورکښې به غوټه خوری. هم دا دده سزا ده. اوپه شریعت کښې: أَنْ يَحْلِفَ عَلَى الْمَاضِي عَالِمًا بِكَذِبِهِ: یمین غموس هغه قسم ته وائی کوم چې یو کس د ماضی زمانې په یو فعل یا واقعه باندې په قصد سره په دروغه قسم اوکړی.

[۱] ) اخرجه البخاری کتاب الأیمان والنذور/باب الیمین الغموس (رقم-۶۶۷۵) والنسائی کتاب تحریم الدم/ذکر الکبائر (رقم-۴۰۱۱)واحمد فی المسند ۲/۲۰۱.

٥١ –( )[٥][١] وَفِي رِوَايَةِ أَنَسٍ: "وَشَهَادَةُ الزُّورِ" بَدَلَ: الْيَمِينُ الْغَمُوسُ" مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[١] او دحضرت انس ﷺ په روايت کې (په دروغو قسم اخستل) په ځاي (د دروغو ګواهي کول) الفاظ دي. بخاري او مسلم

**تسهيلات:**

**قوله:** الْكَبَائِرُ: الْإِشْرَاكُ بِاللهِ:

**د شرک څخه مراد:** دلته د شرک څخه مراد مطلقا کفر دې. ليکن د شرك لفظ په دې وجه اختيار کړې شوې دې چې د عربو خلق دکفر په درجه کښې په شرك او شعبۀ شرك کښې اخته وو.

**په مشرک او کافر کښې فرق:** ① مشرك دالله تعالى دوجود قائل وى. د الله تعالى د قدرتونو څخه هم انکار نه کوی مګر هغه په ذات يا صفات يا عبادات کښې نور جصه دار جوړوی.
② کافر خو يا دَ الله تعالى دَ وجود انکارکوی يا ضروريات دين کښې ديو مهم ضرورت څخه انکار کوی، شرك او کفر او مشرك او کافر کښې هم دا فرق دې.

**دَ شرک دوه قسمونه:** ① شرك اکبر کوم چې پورته بيان شو.
② دويم شرك اصغر، رياکاری او خودنې اوتصنع او سمع فی العبادة ته وائی کوم چې مخلوق ته دخودنې دپاره اوکړې شی.

**قوله:** وَعُقُوقُ الْوَالِدَيْنِ:

**د مورپلار نافرمانی:** د تکليف رسولو هر يو عمل اوقول په عقوق الوالدين کښې داخل دې. اودا ګناه کبيره ده. خو د والدينو غير شرعی حکم منل جائز نه دی. ځکه چې لا طاعة لمخلوق فی معصية الخالق،

**د والدينو څخه مراد:** والدينو څخه مراد مؤمن والدين دی، اوبيا په دې کښې اجداد و جدات ټول داخل دی.

**عقوق الوالدين د شرک سره د يوځائې ذکرکولووجه:** عقوق والدين ئې اشراك بالله سره يو ځائې کړو. دې کښې اشاره اوکړې شوه چې الله تعالى د انسانی وجود حقيقی خالق او مالك دې. د هغه ذات نه پس والدين د خپل بچی د وجود دپاره مجازی توګه باندې ظاهری سبب دې. هم داوجه ده چې قرآن کريم کښې الله تعالى خپلو حقوقو سره د والدينو حقوق يوځائی ذکر کړی دی. [وَقَضٰى رَبُّكَ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّآ اِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا]

[١] اخرجه البخاری کتاب الشهادات باب ما قيل فی شهادة الزور(رقم-٢٦٥٤) ومسلم کتاب الايمان باب بيان الکبائر وأکبرها(رقم-١٤٤ - (٨٨)

قوله: وَالْيَمِينُ الْغَمُوسُ:

**د یمین غموس په لویو گناهونو کښې د شمارلو وجه:** دا قسم په دې وجه کبیره گناه ده چې دې کس دالله تعالی نوم په طور د ضمانت استعمال کړو او په دې کښې ئې دروغ اووئیل.

**د یمین درې قسمونه:** ① یمین الغموس: هغه قسم دې.کوم چې په تیره شوې زمانه کې په څه خبره په قصد سره خوړلې شوې وی.داسې قسم خورونکې گناهګار دې.یعنی داسې کول گناه کبیره ده.څکه چې په حدیث کې دی.کوم کس چې په دروغه قسم اوخوری.الله تعالی به هغه جهنم کې اچوی.

② یمین منعقده: دا هغه قسم ته وائی چې یو کس په مستقبل کښې دَ یو فعل په کولو یا نه کولو باندې قسم اوکړی، اوبیا ددې خلاف ورزوی اوکړی. نوپه دې کښې کفاره ورکول واجب دی.

③ یمین لغو: دا قسم په ژبه باندې راتلونکې هغه کلمې دې چې په هغې سره د قسم اراده نشی کولې. بس صرف تکیه کلام وی. لکه عربی کښې لا والله وغیره کلمات دی. پښتو کښې وائی ,,قسم دې،، وغیره وغیره. ددې کلماتو ارتکاب هم مناسب نه دې. خوبیا هم په دې قسم کښې باقاعده نیول نشته دې.

### [۵۲] اووه هلاکونکی ګناهونه

۵۲ ـ (۱)[۳] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " ۲ «اجْتَنِبُوا السَّبْعَ الْمُوبِقَاتِ " ۳ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَمَا هُنَّ؟ ۴ قَالَ: " الشِّرْكُ بِاللَّهِ، وَالسِّحْرُ وَقَتْلُ النَّفْسِ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ، ۵ وَأَكْلُ الرِّبَا، وَأَكْلُ مَالِ الْيَتِيمِ، وَالتَّوَلِّي يَوْمَ الزَّحْفِ، وَقَذْفُ الْمُحْصَنَاتِ الْمُؤْمِنَاتِ الْغَافِلَاتِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ حضرت ابوهریره ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ (خلقو) د اوو هلاکونکو خبرو څخه ځان ساتي، ۳ پوښتنه وشوه یا رسول الله ﷺ هغه اوه هلاکونکي خبري کومي دي؟ ۴ وي فرمایل ۱: څوك د الله سره شریك جوړول ۲: جادو کول ۳: د چا قتلول چې الله حرام کړي دي هغه په ناحقه قتلول ۵ ۴: سود خوړل: دیتیم مال خوړل ۶: د جهاد په وخت د دښمن څخه تښتیدل ۷: په پاکو مومنانو او ناخبره ښځو باندې د زنا تهمت لګول. بخاري اومسلم

**حل اللغات:** ① اجْتَنِبُوا: أي احْذَرُوا: ځان بچ کړئ، ② الْمُوبِقَاتُ: أي الْمُهْلِكَاتُ: هلاکونکی څیزونه، ③ السِّحْرُ: جادو، ④ إِلَّا بِالْحَقِّ: وَهُوَ أَنْ يَجُوزَ قَتْلُهَا شَرْعًا بِالْقِصَاصِ وَغَيْرِهِ: یعنی دکوم قتل کول چه شرعا جائز وی

[۱] ) اخرجه البخاری کتاب الوصایا /باب قول الله تعالی: {إن الذین یاکلون أموال الیتامی ظلما، إنما یاکلون فی بطونهم نارا وسیصلون سعیرا} [النساء: ۱۰](رقم:۲۷۶۶) ومسلم کتاب الایمان/ باب بیان الکبائر وأکبرها(رقم-۱۴۵ - (۸۹) وابوداود کتاب الصید/باب باب ما جاء فی التشدید فی أکل مال الیتیم(رقم - ۲۸۷۴)

هغه ددې نه مستثنی دی. ⑤ الرِّبَا: سود، ⑥ الْيَتِيمِ: وَهُوَ صَغِيرٌ لَا أَبَ لَهُ: يتيم هغه ماشوم ته وائی چه پلار ئې وفات شوې وی. ⑦ التَّوَلِّي: أَيِ الْإِدْبَارُ لِلْفِرَارِ: د جهاد نه په تيخته تختيدل. ⑧ يَوْمَ الزَّحْفِ: زحف د ماشوم په خړپوسو ګرځيدلو ته وائی دلته ترې مراد په سخت جنګ کښې د کفارو سره مخامخ کيدل دی. ⑨ قَذْفُ: د زنا تهمت لګول، يَعْنِي رَمْيُهُنَّ بِالزِّنَا: قذف کانړې اوچتول او دچا په سر باندې ويشتل دا قذف دې. بيا په پاك دامنه ښځه باندې تهمت لګولو دپاره استعمال شو. ⑩ الْمُحْصَنَاتِ: أَيِ الْعَفَائِفِ: پاکدامنې زنانه کومې چه الله پاک د زنا نه محفوظ ساتلې دی. ⑪ الْغَافِلَاتِ: كِنَايَةٌ عَنِ الْبَرِيئَاتِ: غافلات دا کنايه ده د بريئات نه، ځکه چه څوک بری وی هغه د الزامونو او بهتان نه غافله وی.

**تسهيلات:**

**قوله: الشِّرْكُ بِاللَّهِ:**

**د شرک تعريف:** شاه ولی ﷫ د شرك په تعريف کښې ليکی چې دشريعت په اصطلاح کښې شرك دې ته وائی چې کوم صفات خاص الله ﷻ دپاره مختص دی هغه د الله ﷻ نه سوا نورو د پاره ثابتول، نو دې شركٌ دې. لکه دالله ﷻ څخه سوا بل چا ته عالم الغيب اووائی، يا بل څوك په دې کائناتو کښې متصرف، قادراومنی، د مصائبو اومشکلاتو په وخت غائبانه طور دالله ﷻ څخه سوا يو پير يا فقير ته دمدد دپاره راوبلی. يا مالی عباداتو او قوليه عباداتو او بدنی عباداتو کښې يو عبادت دَ غير الله دپاره اوکړی، دا ټول د شرك صورتونه دی.

**قوله: وَالسِّحْرُ:**

**دَ سحر په تعريف کښې درې اقوال:**

① د حق په شکل کښې باطل پيش کولوته سحروائی.

② هرهغه څيز چې دهغې سبب پټ وی نو هغه سحر دې.

③ انسان چې کومې حيلې کوی هغه سحر دې.

**د خارق العادت امورو اووه قسمونه:** پهَ سحر اوجادو باندې دَ پوهيدودَپاره دا ضروری دی چه ديوڅو خوارق عادت څيزونوذکراوکړې شی. چنانچه خوارق عادت څيزونه ټول اووه دی.

① **ارهاصات:** دا داسې خارق عادت افعال دی چه دَ يو نبی دَ نبوت نه مخکښې په توګه دَ تمهيد اودَ نبی دَ راتلونه مخکښې مخکښې دَ اعلان دَپاره پيش کيږی لکه دَ نبوت نه مخکښې دَ کانړو او دَ ونو رسول الله ﷺ ته سلام کول، دَ اوريځو سوري کول، دَ پيدائش په وخت په عالم انسان باندې دَ انقلابی واقعاتو پيش کيدل ټول په ارهاصات وو.

② **معجزات:** دا داسې خارق عادت امور دی چه دَ یو نبی دَ نبوت دَ دعوې دَ اثبات اودَ هغه دَ تصدیق دَپاره اودَ مخالفینودَ عاجز کولو دَپاره دَ نبوت دَدعوې کونکی په لاس باندې ښکاره کیږی لکه دَ حضورپاك په لاس باندې دَ سپوږمئی دوه ټکړې کیدل اودَ ګوتو نه دَ اوبو فوارې روانیدل وغیره وغیره ټولې معجزې دی.

③ **کرامات:** دا داسې خارق عادت امور دی چه دَ سنت دَ تابعدار او دَ یو ایماندار سړی په لاس باندې دَهغه دَ اعزاز او اکرام په توګه باندې ښکاره کیږی. پیغمبر ته دَخپلې معجزې علم هم وی او قصد او اراده ئې هم وی مګر دَ ولی دَپاره دا ضروری نه دی.

④ **معونات:** دا داسې خارق عادت امور ته وائی چه دَ یو مسلمان دَ امداد او اعانت دَپاره ښکاره شی لکه په حالت دَ مجبورئی او مخمصه کښې دَ چا مخې ته خوراك راتلل یا په اوبو باندې تلل یا په هوا کښې الوتل وغیره وغیره ټول دَ اعانت او مدد صورتونه دی.

⑤ **استدراج:** دا داسې خارق عادت امور ته وائی چه دَ یو کافر دیو یا فاجر په لاسونودَ هغه دَ مقصود مطابق ښکاره شی لکه چه دَ دجال په احوالوکښې دَ عجیبه تصرفاتو ذکردې. یا دَ اسود عنسی دَ دروغو دَ نبوت دعوی کونکی دَ لاس نه عجائب ښکاره کیدل دا ټول استدراج دي.

⑥ **اهانت:** داداسې خارق عادت امور دی چه دَ یو کافر په لاس باندې ښکاره شی لیکن دَ هغه دَ مطلوب اومقصود خلاف وی لکه چه مسیلمه کذاب دَ یو کاڼړی یو سترګی په سترګه باندې لاس راښکلو دې دَپاره چه دغه سترګه ئی ټیك شی نودَ هغه سړی صحیح سترګه هم ړنده شوه. یا لکه په باغ کښې ئې دَ اودس باقی پاتې اوبه توئی کړې، دې دَپاره چه برکت راشی نودَ باغ ټولې ونې اوچې شوې. یا په غړغړې کولو سره ئی اوبه په کوهی کښې واچولې نو څه چه په کوهی کښې وې هغه هم اوچې شوې. یا دَ یو ماشوم په سرئی لاس راښکلو نودهغه دماغو کار پریخودو وغیره وغیره.

⑦ **سحر اوجادو:** مګر دَدې په حقیقت کښې اختلاف دې. دَمعتزلو په نیز دَ سحر هیڅ حقیقت نشته دې دا صرف وهم، خیال او تصور دې اودَدې اثرات هم دَ دغه وهم یوه حصه ده. مګر دَ جمهور اهل سنت په نیز سحر دَ یو نفس الامری حقیقت نوم دې دَ کوم په ذریعه چه په انسان باندې مخصوص کیفیات او اثرات جاری کولې شی.

**دسحر حقیقت:** سِحرپه زیردسین سره،هرداسې اثرته وئیلې شی،چه سبب ئې ظاهرنه وی[قاموس][1]

خواه هغه سبب معنوی وی لکه دخاصوخاصو کلماتو اثر، یادغیرمحسوسو څیزونواثر وی

[1] ) القاموس المحيط: ۱/ ۴۲۱

لکه دپیریانو او شیطانانو اثر، یامسمریزم او کوډې کښې دقوت خیالیه اثر، یاداسې محسوساتو اثر چې هغه محسوسات پټ وی لک دمقناطیسورا شکل [راکشول] ځان ته اوسپنې لره کله چې مقناطیس دنظر نه پټ وی، یادهغه داروګانو [دوایانو] اثرچه پټ وی یا د ستورو او سیاراتو اثر،

په دې بنا د جادو ډیراقسام جوړیږی خو عرفِ عام کښې هغه څیزونو ته جادو وائی چې پکښې دپیریانو او شیطانانو دخل وی یا د مسمریزم دقوت خیالیه اثرپه کښې وی یا دځه الفاظو او کلماتو دخل په کښې وی، ځکه چې داخبره په عقل هم ثابته ده اوپه تجربې او لیدلو کتلو سره هم، چه قدیم اوجدید فلسفه ئې هم منی چې دخاص حروفو او کلماتو هم څه تاثیرات وی اوخاص حرف اویا خاص کلمه په خاص شمیرکښې په خاص طریقې سره وئیلو کښې اثرات لیدلي کیږی، یاداسې تاثیرات شوچه انسانی وینتو یا نوکونو او نورو اندامونو لره یادانسان داستعمال جامو سره د نورو څیزونو په یوځائ کولو پیداکولې شی، چه عرفِ عام کښې ورته ټونړه یاتوټکه کوډې منترونه وئیلې شی او جادو کښې حسابیږی،

اودقرآن اوسنت په اصطلاح کښې سحرداسې یوعجیبه څیزته وئیلې شی چې پکښې دشیطانانو خوشحالولو سره دهغوئ نه مددمونډلې شوی وی، دشیطانانو دراضی کولو هم مختلف صورتونه دی کله داسې منترونه یوک وهلې شی چې کفری اوشرکی کلمات پکښې وی دشیطانانو نه والې پکښې بیان شوی وی یادستوروو غیره عبادت پکښې کړې شوی وی چې ورسره شیطان خوشحالیږی. کله داسې عملونه اختیارولې شی چې شیطان ئې خوښوی لکه چې په ناحقه دوژلی شوی وینه چې استعمال کړې شی، یادجنابت اوپیلتئ په حالت کښې پاتې کیدل، پاکئ نه ځان ساتل وغیره،

څنګه چې دالله تعالی دپاکوفرشتومدد، هغه اقوالواوافعالوسره حاصلولې شی چې فرشتې ئې خوښوی، مثلا تقوی، پاکی، اوپاکیزګی، بدبوئې اوپلیتئ نه ځان ساتل، دالله ذکراونیک کارونه کول،

داشان دشیطانانوامداد، په داسې اقوالواوافعالوسره حاصلیږی چې شیطانان ئې خوښوی، په دې وجه سحراوجادو کښې داسې خلق کامیابیږی چې ګنده اوپلیت پاتې کیږی، دپاکئ او د الله تعالی دنوم نه لرې پاتې کیږی، دخبیثوکارونوعادت وی، ښځې هم چې دحیض په ورځو کښې داکارونه کوی نواثرلری، باقی دشعبدو، ټونړو، ټوټکو او کوډو منترونو، یادلاس د صفائې کارونویامسمریزم وغیره ته سحر مجاز اوئیلې شی، [روح المعانی] (١)

---

(١) روح المعاني تحت هذه الآية: ١/ ٤٣٦

**دسحر قسمونه:** امام راغب اصفهانی په مفردات القرآن کښې لیکی چې سِحرمختلف قسمونه لری.

**رومبې قسم دسحر:** یوقسم ئې نظربندی اوخیال کښې راوستل وی چې په واقع کښې هیڅ حیثیت نه لری لکه ډیرشعبده بازان چې دخپل لاس په چالاکئ سره داسې کارونه کوی چې عام خلق ئې په سترګو نشی لیدلې یادقوت خیالیه، مسمریزم وغیره په ذریعه دچاپه دماغو داسې اثر واچولې شی چې هغه خوپه سترګوبوڅیزوینې اومحسوسوی ئې مګر حقیقت کښې هیڅ نه وی، کله داکار دشیطانانوداثرنه هم کیدې شی چې دچاپه سترګو او دماغو داسې اثرواچولې شی چې یوغیر واقعی څیز،واقعی اوګنړی،په قرآن کریم کښې ذکرشوې دفرعون دساحرانورومبې قسم سحروو لکه ارشادفرمائی،

﴿سَحَرُوٓا۟ أَعْيُنَ ٱلنَّاسِ﴾ هغوئ دخلقوپه سترګوجادواوکړو.

اوارشادفرمائی: ﴿يُخَيَّلُ إِلَيْهِ مِن سِحْرِهِمْ أَنَّهَا تَسْعَىٰ﴾ ددوئ دسحرنه دموسی علیه السلام په خیال کښې راتلل شروع شوچه دا [دپړورسیوماران] منډې وهی،

په دې کښې دیخیل لفظ دابښائې چې دساحرانودپړواوهسماګانونه چې ساحرانو په میدان کښې غورځولې وې نه خوپه حقیقت کښې ماران جوړشوی وواونه هغوئ څه حرکت کړې وو بلکه دحضرت موسی علیه السلام قوتِ خیالی اثرقبول کړواووې ګنړل چې دامنډې وهونکی ماران دی.

**دسحر دویم قسم:** بل داسې قسم خیال کښې راوستل اونظربندی ده چې څنې وختونوکښې د شیطانانو داثرنه کیږی لکه چې دقرآن کریم ددې ارشادنه معلومیږی،

**قوله تعالی:** ﴿هَلْ أُنَبِّئُكُمْ عَلَىٰ مَن تَنَزَّلُ ٱلشَّيَـٰطِينُ ۝ تَنَزَّلُ عَلَىٰ كُلِّ أَفَّاكٍ أَثِيمٍ﴾ زه تاسوته اوښایم چې په کومو خلقو شیطانان راکوزیږی اوښکته کیږی.په هردوغ ترونکی ګناهګارو باندې راکوزیږی[کښته کیږی] اوبل ځائ کښې ارشادفرمائی:

**قوله تعالی:** ﴿وَلَـٰكِنَّ ٱلشَّيَـٰطِينَ كَفَرُوا۟ يُعَلِّمُونَ ٱلنَّاسَ ٱلسِّحْرَ﴾ شیطانانوکفراختیارکړوچه خلقوته ئې سحروررازده کولو.

**دسحر دریم قسم:** دسحردریم قسم دادې چې ددې په ذریعه دیوڅیزحقیقت بدل کړې شی لکه چې یوبنیادم یا څناورنه څه بل څناوریاکانړې جوړکړې شی،امام راغب اصفهانی رحمه الله ابوبکرجصاص رحمه الله وغیره حضراتوددې نه انکارکړې دې چې دسحر په ذریعه دیوڅیزحقیقت بدلیدې نه شی بلکه دسحراثر صرف په خیال کښې راوستل اونظربندی کیدې شی[1]، او بس، چنانچه معتزله هم داسې وائی، مګردجمهوروعلماؤتحقیق دادې

[1] ) مفردات القرآن للأصفهانی: ۱/ ۲۲٦

چې په حقیقت اوذات بدلیدو کښې نه خوځه عقلی خنډشته اونه شرعی مثلا یوجسم کانړې جوړشی یایوقسم څیزپه بل قسم څیزکښې بدل شی، او د فلسفیانو ددې مشهور قول چې حقیقتونه بدلیدل ممکن نه دی،مطلب دادې چې حقیقتونه محال ممکن او واجب یوپه بل سره نشی بدلیدې،چنانچه محال ممکن اوواجب نشی گرځیدې اوداشان نور صورتونه واخله،

قرآن کریم چې دفرعونی ساحرانوسحرته تخیل وئیلې دې هغې نه دانه لازمیږی چې هر سحر، دې صرف تخییل وی،داشان ځنې حضراتودسحرپه ذریعه دحقیقت بدلیدوپه جواز، دحضرت کعب احبار رضي الله عنه دهغې حدیث نه هم استدلال کړې دې چې په مؤطاامام مالک رحمه الله کښې په روایت دقعقاع بن حکیم داسې منقول دې، **لولاكلمات اقولهن لجعلتنى اليهود حمارا**(۱) که مادایوڅوکلمات وظیفه کړې نه وې نویهودیانوبه زما څخه خرجوړکړې وو، د خر مجازی معنی بیوقوف هم کیدې شی خوبې ضرورته دحقیقت نه مجازته تلل د قواعدو نه خلاف دی،نودحدیث اصل معنی به هم داوی چې، که مایوڅوکلمات وظیفه کړې نه وې نو یهودیانوبه مانه خرجوړکړې وې،

دې حدیث نه دوه خبرې ثابتې شوې ① دسحرپه ذریعه انسان نه خرجوړیدې شی ② ددغه وظیفه کړوکلماتوتاثیردادې چې سحراوجادوپراثرنشی کولې،حضرت کعب احبار رضي الله عنه نه چې ددغه کلماتوتپوس اوشونوهغوئ رضي الله عنه ورته داکلمات وراوښودل،

**اعوذبوجه الله العظيم الذى ليس شئٌ اعظم منه وبكلمات الله التامات التى لايجاوزهن بر ولا فاجر وباسماء الله الحسنى كلها ما علمت منها ومالم اعلم من شرماخلق وبرء وذرء** [اخرجه فی المؤطاباب التعوذعندالنوم] زه دلوئ الله پناه نیسم چې هیڅ شې ترلوئ نشته اوپناه نیسم دالله دکلمات تاماتوچه ترهیڅ نیک اوبدانسان وړاندې نشی وتلې اوپناه نیسم دالله دټولو اسماء حسنی،چه ئې پیژنم اوکه ئې نه پیژنم دهغه څیز دشرنه چې الله پیداکړو ،شته ئې کړواو خورئې کړو [مؤطاامام مالک]

**په سحراومعجزه کښې فرق**:څنګه چې دپیغمبرانو علیهم السلام اواولیائ کرامو رحمهم الله نه خلاف عادت واقعات مخې ته راځی چې ورته خرق عادت وئیلې شی،دسحراوجادوپه اثر،په ظاهره دغسې واقعات هم مخې ته راځی،څکه ځنې جاهلان په دې کښې فرق نشی کولې او د جادوګرو تعظیم کوی،په دې وجه ددې دواړوترمنځه فرق بیانول ضروری دی، فرق په دوؤلحاظوسره کیږی،① داصل حقیقت په لحاظ،② اودظاهری نخښونښانوپه لحاظ دحقیقت په لحاظ فرق دادې چې دسحراودجادوداثرنه چې کوم څیزونه مخې ته

---

(۱) مؤطا، باب التعوذ عند النوم: ۷۲۳

راځی هغه داسبابو لاندې وی اومعجزې، کرامات د اسبابولاندې نه وی، کوم اسباب چې په ظاهره مخې ته راشی هغه د تعجب څیزنه وی مګرڅه وخت چې دغه اسباب په ښکاره مخې ته راشی نوعوام د اسبابونه پیژندلو په وجه یې خرق عادت بولی، حالانکه په حقیقت کښې دغه دهغه اسبابو لاندې وی چې پټ وی، مثلامشرق بعیدکښې دنن لیکلې شوې خط که دچاپه وړاندراپریوځی نو لیدونکې به ئې خرق عادت اوګنړی حالانکه پیریانو او شیطانانوته داقوت ورکړې شوې دې [څنګه چې وړاندهم ددې تفصیل بیان شوې دې]

خلاصه داچه په نتیجه کښې ښکاره کیدونکې نخښې نښانې دطبعی [عامو] اسبابو لاندې وی هر کله چې دغه پټ وی نوعوام ئې په غلطۍ خرق عادت بولی په خلاف د معجزه چې د اسبابولاندنه وی براه راست [بلاواسطه] دالله تعالی فعل وی، چنانچه حضرت ابراهیم علیه السلام دپاره الله تعالی اوورته اوفرمائیل چه، په هغوئ علیه السلام یخ شه خو دومره هم یخ نه چې تکلیف پرِ رسی بلکه په داسې شان یخ شه چې سلامتی پرِ حاصلیږی، اوپه دې حکم الهی سره اوریخ شو،

نن هم داسې خلق شته چې څه مصالحې په بدن اومږی اورکښې دننه لاړشی اوسوځی نه، دامعجزه څکه نشی کیدې چې داسبابو[دارواومصالحو] په سبب وی، خو هرکله چې داپه ښکاره په نظرنه راځی نوعوام پرِدوکه شی اوخرق عادت ئې بولی

مونږپورته داذکراوکړوچه معجزه براهِ راست دالله تعالی فعل وی لکه چې قرآن کریم کښې په ډاګه فرمائی،

﴿وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ رَمَىٰ﴾ [د کانړوموټې چې تاسووراوغورځولو] هغه په حقیقت کښې تاسو نه وو ورغوځولې بلکه الله تعالی ورغورځولې ؤو،

مطلب داچه دخاؤرواوکانړوډک موټې غورځول اودهریوکافرسترګوته ئې رسیدل، دا ستاسو ﷺ عمل نه بلکه دالله تعالی فعل دې، داهغه معجزه ده چې دبدرپه غزاکښې ښکاره شوې وه چې رسول الله ﷺ دخاؤرو اود قتکانړو[شګو] ډک موټې دکفاروپه لښکرو راوویشتو چه دټولو سترګوکښې پرې وتې

دسحر اومعجزې دابیان شوې فرق اګرچه ډیرواضح دې خوبیاهم سوال پیداکیږی چې عوام به په دې فرق څنګه پوهیږی ولې چې ظاهری صورت ددواړویوشان دې؟ جواب ئې دادې چې الله تعالی ددې نظام هم په داشان پیداکړې دې،

① معجزه اوکرامت دداسې خلقوپه ذریعه ښکاره کیږی چې تقوی، پاکیزګی، اخلاق او اعمال ئې دخلقوپه وړاندې وی، خوددې په عکس، دجادواثرصرف دداسې خلقوپه ذریعه ښکاره کیږی چې ګندګی، ناپاک وی، دالله تعالی دنوم اوعبادت نه ئې لرې اوسی. په داشان دغه فرق پیژندل آسان څه چې بالکل ښکاره دې،

② بل انتظام الله تعالى داکړې دې،چه څوک دپیغمبرئ په دروغه دعوی اوکړی اود معجزې په نوم څه جادوکول غواړی نوهیڅرې به نشی کیدې،عام پلیت اوغلیظ انسان که جادوکول غواړی نوهغه کولې شي،

**آیاپه پیغمبرانو ﷺ دجادواثرکیدې شی،** څنګه چې مونږمخکښې بیان کړی دی چې دجادو اثرد طبعی اسبابواثروی چې انبیاء ﷺ ترهم متاثرکیدې شی اوداپیغمبرئ دشان نه خلاف خبره څکه نه ده چې هغوئ لره لوږه تنده وی،ناجوړه کیږی اورغیږی.مطلب داچه څنګه پیغمبران ﷺ دظاهری اسباب طبعیؤنه متاثرکیږی همدغه شان دباطنی اوپټ اسبابو طبعیؤنه هم متاثرکیږی چې د شانِ نبوت نه خلاف خبره نه ده چنانچه په رسول الله ﷺ باندې یهودوسحرکړې وو،په هغوئ ﷺ ددې څنې نخښې نبانې ښکاره شوې وې،په ذریعه دوحی ورته ددغې سحر خبر ورکړې شوې وواوهم دوحی په ذریعه دهغې ازاله شوې وه چې صحیح احادیثونه ثابت دی، داشان د حضرت موسی ﷺ دسحرنه متاثر کیدل په قرآن کریم کښې ذکردی لکه فرمائی: ﴿فَأَوْجَسَ فِي نَفْسِهِ خِيفَةً مُوسَىٰ﴾.یعنی دموسی ﷺ په خیال کښې دا راتلل چې دغه پړی او همساګانې ماران دی،موسی ﷺ باندې ویره راتلل هم ددغه جادواثروو،

**قوله:وَالتَّوَلِّي يَوْمَ الزَّحْفِ:**

**د جهاد څخه تښتیدل:**یعنی دَ جهاد دَ میدان نه تختیدل لویه ګناه ده. او عزیمت دې چه مجاهدین دې دَ جهاد دَ میدان نه بالکل نه تختی څکه چه په دغه مرګ کښې ژوند پروت دې. نوچه کله دا عقیده وی چه په مرګ کښې حیات دې نوڅوك به اوتختی؟

**قوله:وَقَذْفُ الْمُحْصَنَاتِ:**

**په پاکدامنوزنانو دزنا تور پورې کول:**یعنی پاك دامنه، مسلمانه، آزاده او شریفه ښځه باندې تهمت لګول دکبیره ګناهونونه ده. که چرې ښځه کافره وی نو په هغې باندې تهمت لګول کبیره ګناه نه ده بلکه صغیره ده. دا ټول اووه هلاکونکې او تباه کونکې ګناهونه دی دَ کوم نه بچ کیدل چه ډیر زیات ضروری دی

**[۵۲] دګناه په وخت د مؤمن څخه دایمان وتل**

۵۳ ـ()[۳] ①وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "② «لَا يَزْنِي الزَّانِي حِينَ يَزْنِي وَهُوَ

[۱]) اخرجه البخاری کتاب المظالم والغضب/ باب النهی بغیر إذن صاحبه(رقم: ۲٤۷۵) ومسلم کتاب الإیمان/ باب بیان نقصان الإیمان بالمعاصی ونفیه عن المتلبس بالمعصیة علی إرادة نفی کماله(رقم-۱۰۰ - (۵۷) وابوداود کتاب السنة/باب الدلیل علی زیادة الإیمان ونقصانه(رقم-٤۶۸۹) والنسائی کتاب قطع السارق باب تعظیم السرقة (رقم-٤۸۷۰) والترمذی کتاب الإیمان عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء لا یزنی الزانی وهو مؤمن (رقم-۲۶۲۵) وابن ما جة کتاب الفتن/باب النهی عن النهبة (رقم-۳۹۳۶)

مُؤْمِنٌ، وَلَا يَسْرِقُ السَّارِقُ حِينَ يَسْرِقُ وَهُوَ مُؤْمِنٌ، [۳] وَلَا يَشْرَبُ الْخَمْرَ حِينَ يَشْرَبُهَا وَهُوَ مُؤْمِنٌ، [۴] وَلَا يَنْتَهِبُ نُهْبَةً يَرْفَعُ النَّاسُ إِلَيْهِ فِيهَا أَبْصَارَهُمْ حِينَ يَنْتَهِبُهَا وَهُوَ مُؤْمِنٌ [۵] وَلَا يَغُلُّ أَحَدُكُمْ حِينَ يَغُلُّ وَهُوَ مُؤْمِنٌ ; فَإِيَّاكُمْ إِيَّاكُمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] زنا كونكي چې كله زنا كوي نو هغه وخت د هغه ايمان باقي نه پاتې كيږي، او غلا كونكي چې كله غلا كوي نو هغه وخت د هغه ايمان باقي نه پاتې كيږي، [۳] شرابي چې كله شراب څښي نو هغه وخت د هغه ايمان باقي نه پاتې كيږي، [۴] او لوټ مار (په زبردستي اخستل) كوي او خلق هغه (ښكاره) لوټ مار كونكيويني (ليكن د ويرې څخه بي وسه شی او د وچغارو څخه علاوه د هغه هيڅ نشي خرابولي) نو هغه وخت د هغه ايمان باقي نه پاتې كيږي، [۵] او په تاسو كښې چې كوم يو خيانت كوي نو هغه وخت دهغه ايمان باقي نه پاتې كيږي، نو تاسو (د دي گناهونو څخه) ځان ساتي، (بخاري او مسلم)

**حل اللغات:** ① الزَّانِي: زنا كونكې، ② السَّارِقُ: غلا كونكې، ③ وَلَا يَنْتَهِبُ: إِذَا أَغَارَ عَلَى أَحَدٍ وَأَخَذَ مَالَهُ قَهْرًا: په چا باندې حمله كول اودهغه مال په زبردستئ اخستلو ته نهب وائی ④ نُهْبَةً: الْمَالُ الَّذِي يُنْتَهَبُ: په زور زبردستئ اخستلې شوی مال ته نهبه وائی. ⑤ لَا يَغُلُّ: الْخِيَانَةُ فِي الْغَنِيمَةِ: په مال غنيمت كښې خيانت كولو ته غلول وائی، ⑥ إِيَّاكُمْ إِيَّاكُمْ: دلته تكرار د توكيد او مبالغې دپاره دې، د نحو په اصطلاح كښې دې ته تحذير وائی، أَيْ أُحَذِّرُكُمْ: يعنی زه تاسو ددې مذكوره څيزونو نه ويروم نو تاسو ددې نه ځان بچ كړئ.

۵۴ -()[۰] [۱] وَفِي رِوَايَةِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا -: [۲] «وَلَا يَقْتُلُ حِينَ يَقْتُلُ وَهُوَ مُؤْمِنٌ». [۳] قَالَ عِكْرِمَةُ: قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ: كَيْفَ يُنْزَعُ الْإِيمَانُ؟ [۴] قَالَ: هَكَذَا، وَشَبَّكَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ ثُمَّ أَخْرَجَهَا [۵] فَإِنْ تَابَ عَادَ إِلَيْهِ هَكَذَا، وَشَبَّكَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ. [۶] وَقَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ: لَا يَكُونُ هَذَا مُؤْمِنًا تَامًّا، وَلَا يَكُونُ لَهُ نُورُ الْإِيمَانِ. هَذَا لَفْظُ الْبُخَارِيِّ.

**ترجمه:** [۱] او د ابن عباس ﷺ په روايت كښې دا الفاظ هم دي چې [۲] قتل كونكي كله په ناحقه قتل كوي نو هغه وخت د هغه ايمان باقي نه پاتې كيږي، [۳] عكرمه ﷺ وايي چې ما د حضرت ابن عباس ﷺ څخه (د دي حديث په اوريدو سره) پوښتنه وكړه چې د هغه څخه ايمان څنگه جدا شي، [۴] نو هغه اوويل داسې (په دي ويلو سره) هغه د خپلو دواړو لاسونو گوتي په يو بل كښې داخلي كړي او بيايي هغه گوتي يو د بل څخه وايستي، [۵] د دې څخه وروسته يي وفرمايل كه چېرته هغه توبه اوباسي نو ايمان داسې واپس راځي (او په دي ويلو سره) هغه خپلي گوتي بيا په يو بل كې داخلي كړي [۶] او ابو عبد الله

[۱] ) اخرجه البخاری كتاب الحدود/باب كتابة العلم (رقم: ۱۱٤).

(يعني امام بخاري رحمه الله ) ويلي دي چې (د دي حديث مطلب دا دي چې) هغه سړي د ګناه كولو په وخت كامل مؤمن نه پاتې كيږي او د هغه څخه د ايمان نور اوځي. بخاري.

**حل اللغات:** ① يُنْزَعُ : د مضارع مجهول صيغه ده، ويستلې شي، اوبنكلې شي، ② شَبَّكَ : د باب تفعيل نه د دواړو لاسونو ګوتې ئې يوبل كښې وركولو ته تشبيک وائي، ③ عَادَ : د ماضي صيغه ده د عَود نه، معنى ئې ده: راواپس كيږي، واپس راګرځي.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا يَزْنِي الزَّانِي الخ:

**د معتزلو او خوارجو مستدل:** دامسئله وړاندې په كتاب الايمان كښې تيره شوې ده چې د معتزلو او خوارجو په نيز د ګناه كبيره مرتكب خارج عن الاسلام مخلد في النار دي. بيا د معتزلو په نيز داخل في الكفر نه دې ځكه چې ددوئ په نيز منزلة بين المنزلتين ده چې نه مسلمان دې او نه اسلام څخه خارج دې. ددوئ په نيز دوزخ كښې هم داشان منزلة بين المنزلتين مقام دې. خوارجو خو داخل في الكفر هم اومنلو. داحديث د معتزلو او خوارجو دليل دې.

**داهل سنت والجماعت عقيده:** داهل السنت والجماعت په نيز مرتكب كبيره اسلام څخه خارج نه د ې، په ظاهره دا حديث پاك د نورو نصوصِ قرآنيه اوفرامينِ نبويه څخه متعارض دې لكه :

**د اهل سنت والجماعت دلائل:** ① [إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ] كه د شرك څخه علاوه كبائر كفر وې نو ددې د مغفرت ګنجائش به چرته وو. معلومه شوه چې دګناه كبيره مرتكب اسلام څخه خارج نه دې.

② [وَإِنْ طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا] دلته هغه خلقوته مؤمن وئيلې شوى دى كوم چې خپلو كښې جګړې كوى. حالانكه جګړې كول ګناه كبيره ده.

③ د حدود الله او قصاص چې څومره آيتونه دى په هغې كښې دګناه كبيره مرتكب دپاره يو سزا مقرر ده. كه هغه داسلام څخه خارج وې نو د مرتد سزا به په ده باندې نافذ كيده، معلومه شوه چې د ګناه كبيره مرتكب د اسلام څخه خارج نه دې.

④ د حضرت ابوذر غفارى رضي الله عنه حديث [وان زنى وان سرق] په شان احاديث څخه هم جمهورو استدلال كړې دې. نودا د جمهورو مستدلات هم دى، او د زير بحث حديث متعارض هم دى.

**په حديث الباب كښې اوته تاويلات:** دزيربحث حديث پاك توجيه او تاويل او دا په صحيح محمل باندې حمل كول ضرورى دى چې ټول نصوصو كښې توافق او تطابق راشى، دوه

مطلبونه خو په حدیث پاك كښې مذكور دی
① علامه توریشتی رحمه الله فرمائی چې دا كلام په لفظ كښې خبر دې خو معنوی طور باندې انشاء ده. یعنی زانی كه مؤمن دې نو هغه دې زنا نه كوی، ددې توجیه تائید دَ هغه روایت څخه كیږی كوم كښې چې لا یزن جزم او لا نهی سره دې. ملا علی قاری رحمه الله هم دا توجیه كوی مګر په دې باندې دا اعتراض دې چه حین ظرف دَدې توجیه انكاركوی ځكه چه دَ زنا نهی مطلقًا ده. حین یزنی سره مقید كولو څه فائده ده؟
② دلته د زانی د ایمان چې كومه نفی راغلې ده، دا دَ كمالِ ایمان نفی ده. دَ اصل ایمان نفی نه ده.
③ دایمان نورانیت مراددې. امام نووی رحمه الله هم دا توجیه كړې ده چې د ایمان نور باقی نه پاتې كیږی.
④ علامه طیبی رحمه الله دا توجیه كړې ده چې دلته د ایمان د یوې اهمې شعبې دَ حیاء نفی ده ځوك چې دا قبیح فعل كوی هغه مؤمن نه دې یعنی باحیاء نه پاتې كیږی، ددۀ څخه د ایمان شعبه یعنی حیاء ځی. [الكاشف: ۱/۲۰۱]
⑤ داحكم په زجر، په توبیخ او په تغلیظ او تشدید باندې محمول دې چې ددې قبیح حركت مرتكب مؤمن پاتې نه شو بلكه فاسق فاجر شو. [الكاشف: ۱/۲۰۱]
⑥ ددې څخه د شهودی ایمان نفی مراد ده چې كه دا كس الله ﷻ حاضر ناظر منی نو ددې حضوری په حالت كښې به ئې دا حركت نه كولو. حالانكه د یو وړوكی ماشوم په وړاندې هم دا حركت ځوك نه كوی.
⑦ دا حدیث د قطعی دلائلو معارض دې نو متروك دې.
⑧ ددې حدیث څخه مراد دا دې چې ددې كارونو په ارتكاب سره چې ده ته دمؤمن كوم اوچت لقب ملاؤشوې وو دې د هغې اهل پاتې نشوبلكه شرابی اوزناكار اوګرځیدل.
**قوله:** يَرْفَعُ النَّاسُ إِلَيْهِ فِيهَا أَبْصَارَهُمْ:
**د مذكوره جملې مفهوم:** یعنی دده په جرأت باندې به تعجب كوی. ددې د ظلم څخه به ویریږی. صرف دَ دۀ طرفته به په ټیغوټیغو ګوری او هیڅ به نشی كولې، ځكه چې داكوانو څخه ویریږی
**قوله:** وَلَا يَغُلُّ: مال غنیمت كښې خیانت كولو ته غلول وائی. بیا مطلق خیانت باندې ددې اطلاق شوې دې. او وعده خلافی باندې وئیلې شوې دې.
**قوله:** فَإِيَّاكُمْ إِيَّاكُمْ:
**دتكرار مقصد:** تاكید دپاره دې یا تحذیر دپاره دی چې بچ شئ بچ كړئی، بچ شئ بچ كړئی،

په دې حديث پاك كښې د حقوق الله او حقوق العباد دواړو ذكر راغلې دې. يعنى د ايمانى حالت تقاضا داده چې هغه كس په دې حقوقو كښې دحدودالله څخه لړ تجاوز هم اونه كړى.

## [٥٥] د منافق درې نښې

٥٥ـ(١)[٥] [١]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[٢]«آيَةُ الْمُنَافِقِ ثَلَاثٌ». [٣] زَادَ مُسْلِمٌ: "«وَإِنْ صَامَ وَصَلَّى وَزَعَمَ أَنَّهُ مُسْلِمٌ»" [٤] ثُمَّ اتَّفَقَا: («إِذَا حَدَّثَ كَذَبَ، وَإِذَا وَعَدَ أَخْلَفَ، وَإِذَا اؤْتُمِنَ خَانَ»".

**ترجمه:** [١]او حضرت ابوهريره ﷺ روايت كوي چې نبى كريم ﷺ وفرمايل [٢]د منافق درې علامې دي، [٣] د دې څخه وروسته مسلم رحمه الله په خپل روايت كښې دومره اضافه كړيده چې اګر كه هغه مونځ كوي او روژه نيسي او د مسلمان كيدو دعوى هم كوي، [٤]د دې څخه وروسته بخاري رحمه الله او مسلم رحمه الله دواړه متفق دي، (هغه درې علامې دادي) ① كله چې خبره كوي نو دروغ وايي، ② كله چې وعده وكړي نو د هغه خلاف كوي ③ او هر كله چې د هغه سره امانت كيښودل شى نو خيانت پكې وكړي. بخاري او مسلم

**حل اللغات:** ① الْمُنَافِق: مَنْ يُظْهِرُ خِلَافَ مَا يُضْمِرُ: منافق هغه چاته وائى چه په زړه كښې يوشان وى او په ښكاره بل شان وى. ② أَخْلَفَ: د باب افعال نه، أَيْ جَعَلَ الْوَعْدَ خِلَافًا بِأَنْ لَمْ يَفِ بِوَعْدِهِ: چه د وعدې خلاف اوكړى او پوره ئې نه كړى. ③ خَانَ: د خان يخون نه مجرد دى، خيانت ئې اوكړو.

**تسهيلات: قوله:** آيَةُ الْمُنَافِقِ ثَلَاثٌ:

**د نفاق تعريف:** [إظهار خلاف ما أبطن] په ژبه يو څه وى او په زړه كښې بل څه وى. دا دوغلى پاليسى ده. هم دې ته نفاق وائى.

**په مبتداء او خبر كښې عدم مطابقت باندې باندې اشكال:** دلته يو فنى اشكال دې چې آية مفرد دې اودا مبتدا ده او ثلاث خبر دې اودا جمع ده، نو مبتدا او خبر كښې مطابق نشته دې؟

**د اشكال دوه جوابونه:** ① دلته درې علامتونو كښې هر علامت جدا جدا دنفاق علامت دې او يو روايت كښې دې چې (علامات المنافق ثلاث). د هغې څخه معلوميږى چې آية څخه د مفرد اراده نه ده كړې شوې بلكه د جمع معامله كړې شوې ده.

② آية سره د جنس معامله كړې شوې ده. نو اوس مطابق اوشو ځكه چې جنس قليل او كثير باندې استعماليږى.

---

[١] ) اخرجه البخارى كتاب الإيمان /باب علامة المنافق (رقم-٣٣) ومسلم كتاب الإيمان/باب بيان خصال المنافق(رقم-١٠٧ - (٥٩) والنسائى كتاب الإيمان وشرائعه/علامة المنافق(رقم-٥٠٢١) والترمذى كتاب الإيمان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن الإسلام بدأ غريبا وسيعود غريبا (رقم-٢٦٣١)واحمد فى المسند ٣٥٧/٢

**په احاديثو کښې تعارض:** په حديث الباب کښې دنفاق درې نښې ذکرشوی دی.اودحضرت عبدالله بن عمروبن العاص رضي الله عنهما په دې حديث کښې څلورخصلتونه ذکرشوی دی.نو د دريو اوڅلورو په مينځ کښې تعارض دې.

**د تعارض څلور جوابونه:** ① علامه قرطبی رحمه الله فرمائی دا «من باب التعدد في العلم» د قبيلې څنې دې. يعنی نبی ﷺ ته اول د دريو علم ورکړې شوې وو.اوبيا د څلورو.[۱]

② حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.چه په دواړو احاديثوکښې تعارض نشته.څکه چه په دې کښې يو زياتی مذموم خصلت کوم چه په کمال نفاق باندې دلالت کوی.ددې نه دا نه لازميږی.چه دا هم د نفاق نښه ده.څکه چه ممکن ده.چه اصلی نښې درې وی.اودزياتی خصلت په وجه باندې په دې نفاق کښې خلوص پيدا کيږی.مطلب دا دې.چه درې خو د نفس نفاق نښې دی.اوچه څلورمه ورسره ملاؤشی.نودخلوص نفاق نښه ترې جوړه شی.[۲]

③ مفهوم دعدد معتبر نه دې.څکه چه عدد اقل دعدد اکثر نفی نه کوی.[۳]

④ په مسلم شريف کښې دحضرت ابوهريره رضي الله عنه په حديث کښې په يوطريق کښې د «من علامات المنافق» الفاظ راغلی دی.[۴] ددې نه معلوميږی.چه په درې يا څلوروکښې انحصار مقصود نه دې.بلکه دموقع اومحل په مناسبت سره کله نبی ﷺ د درې نښو بيانولوضرورت محسوس کړې دې.اودرې نښې ئې بيان کړی دی.اوکله ئې د څلورو خصلتونو ضرورت محسوس کړې دې. او څلور ئې بيان کړی دی.[۵]

**اشکال:** دحديث الباب ظاهر دا وائی.چه داسې کس منافق دې.څکه چه په ده کښې دنفاق خويونه اوخصلتونه موجود دی.حالانکه د اهل سنت والجماعت نيز په اتفاق سره دغه کس دايمان نه خارج نه دې.اوده ته منافق نشی وئيلې؟

**داشکال اته جوابونه:** ①امام العصرحضرت مولانا انورشاه کشميری رحمه الله خودا فرمائی.چه دعلامت په موجودوالی سره د صاحب علامت وجود نه لازميږی.ګورئ حرارت د بدن د تبې علامت وی. خودا ضروری نه ده.چه کله بدن ګرم وی.نوتبه به وی.بعضې وخت په نمر کښې زيات وخت کيناستو سره هم بدن ګرميږی.حالانکه هغه تبه نه وی.[٦]

---

[۱] فتح الباری(۸۹|۱)_
[۲] فتح الباری(۸۹|۱و ۹۰)_
[۳] شرح کرمانی(۱۵۱|۱)_
[۴] صحيح مسلم (۵٦|۱) کتاب الإيمان باب خصال المنافق)_
[۵] فتح الباری(۹۰|۱)_
[٦] فيض الباری(۱۲٤|۱)_

② دشیخ الاسلام علامه ابن تیمیه رحمه الله دتحقیق مطابق چه دنفاق خصلتونه په مومن کښې موجود شی.ددې نه منافق کیدل نه لازمیږی.لکه څنګه چه دکفربعضې افراد کله په مومن کښې موجود شی.نوددې نه دهغه کافرکیدل نه لازمیږی.نودغه شان د نفاق هم مختلف درجې دی.لکه چه دلته د ((نفاق دون نفاق)) بیان دې.دایمان سره ددې اجتماع ممکن ده.په دواړو کښې تضاد نشته.چه جمع نې ممکن نه ده.([1])

③ امام نووی رحمه الله فرمائی.چه داکثرومحققینوعالمانو رحمهم الله په رائې کښې ددې معنی دا ده.چه دا خصلتونه دنفاق خصلتونه دی.اوکوم کس چه په دې متصف وی.هغه د منافقانو سره مشابه دې.اودهغوی اخلاق خپلونکې به ګڼړلې شی.ددې نه دکافرانوهغه نفاق مراد نه دې.کوم چه به په ((فی الدرك الأسفل من النار)) وی.په دې صورت کښې به د نفاق نه حقیقی نفاق مراد وی.خوکلام به په تشبیه باندې محمول وی.اود نبی ﷺ د ارشاد مطلب چه ((کان منافقاً خالصاً)) مطلب به دا وی.چه ((کان شدید التشبیه بالمنافقین)) ([2])

④ امام ترمذی رحمه الله فرمائی.چه ((معنی هذا عند أهل العلم نفاق العمل وإنما کان نفاق التکذیب علی عهد رسول الله ﷺ)) ([3]) یعنی دلته د نفاق نه، نفاق عملی مراد دې. نفاق تکذیب یعنی ((نفاق فی العقیدة)) مراد نه دې.دا جواب امام قرطبی اوحافظ ابن حجر رحمهما الله خوښ کړې دې.([4])

⑤ امام خطابی رحمه الله فرمائی.چه ددې نه مقصود انذار او تحذیردې.یعنی د مسلمانانو ویرول مقصود دی.چه ددې خصلتونه عادیان جوړ نشی.دامطلب نه دې.که په دې خصلتونو کې یوخصلت اتفاقی طورخرګندشی.نوددې په وجه پرې دنفاق حکم لګولې شی.([5])

⑥ بعضې عالمان رحمهم الله فرمائی.چه ددې نه مراد اعتیاد دې.یعنی که یوکس ددې خصلتونه عادی شی.نوهغه منافق دې.ځکه چه همیشه دپاره په دې خصلتونوعمل کول دمنافق کاردې.دمومن د شان نه دا خبره دلرې ده.چه همیشه دپاره دروغ وائی.همیشه

[1] ) فیض الباری(١٢٤\١)_
[2] ) شرح نووی علی صحیح مسلم(٥٦\١) کتاب الإیمان باب خصال المنافق)_
[3] ) جامع ترمذی کتاب الإیمان باب ماجاء فی علامة المنافق رقم ٢٦٣٢)_
[4] ) فتح الباری (٩٠\١، ٩١)_
[5] ) أعلام الحدیث للخطابی(١٦٥\١)_

دپاره وعده ماتوي.همیشه دپاره خیانت کوي.اوکنځلې کوي.(۱)

⑦علامه کرماني رحمه الله فرمائي.چه ددې نه نفاق شرعي مراد نه دې.بلکه نفاق عرفي مراد دې.یوشرعي نفاق دې.یعنې چه دپورته نه اسلام ظاهروي.اودننه ئې کفر پټ کړې وي.او یو نفاق عرفي دې.چه په ظاهراوباطن کښې ئې عمل برابر نه وي.بلکه بعضې وخت د ایمان قلبي عملاً مخالفت کیږي.نودلته هم دغه عرفي نفاق مراد دې.ایمان شرعي مراد نه دې.(۲)

⑧ بعضې حضرات فرمائي.دحدیث په الفاظوکښې اګرچه عموم دې.خوددې خاص اومعین شخص مراد وو.(۳)

## [۵٦]منافق جوړونکي څلور خبرې

۵٦–(٤)[٦] [۱]وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲]«أَرْبَعٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ كَانَ مُنَافِقًا خَالِصًا، [۳]وَمَنْ كَانَتْ فِيهِ خَصْلَةٌ مِنْهُنَّ كَانَتْ فِيهِ خَصْلَةٌ مِنَ النِّفَاقِ حَتَّى يَدَعَهَا: [٤]إِذَا اؤْتُمِنَ خَانَ، وَإِذَا حَدَّثَ كَذَبَ، [۵]وَإِذَا عَاهَدَ غَدَرَ، وَإِذَا خَاصَمَ فَجَرَ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱]او حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه وايي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل[۲] په کوم سړي کې چې څلور خبري وي هغه پوره منافق دي [۳]اوکه په چا کې ددي څخه يوه خبره وموندلې شی (نو پوه شی چې) په هغه کښي د نفاق يو خصلت پیدا شو تر څو پورې چې هغه پري نه ږدي[٤] (او هغه څلور خبري دادي:) ① هرکله چې امانت ورسره کیښودل شی په هغه کښي خیانت وکړي، ② چې خبري کوي نو دروغ وايي،[۵]③ چې قول او اقرار وکړي نو د هغه خلاف کوي (یعني دخپلي خبري څخه تښتي) ④ او چې په جنګ شی نو کنځل کوي. بخاري او مسلم

**حل اللغات:** ① خَصْلَةٌ: خوئی، عادت. ② يَدَعَهَا: أَيْ يَتْرُكَهَا: چه پرې ئې ږدی، ③ غَدَرَ: أَيْ يَنْقُضِ الْعَهْدَ ابْتِدَاءً: لوظ ماتولو کښې په مخکښې کیږی، بې لوظی به کوی. ④ خَاصَمَ: د باب مفاعله نه د ماضی صیغه ده، جنګ کوی، ⑤ فَجَرَ: أَيْ شَتَمَ: کنځل به کوی، ناروا به وائی.

(۱) أعلام الحديث (١\١٦٥) وفتح الباري(١\٩٠)_

(۲) شرح كرماني(١\١٤٩)_

(۳) أعلام الحديث للخطابي(١\١٦٦) وفتح الباري(١\٩١) وعمدة القاري(١\٢٢٢)_

(٤) اخرجه البخاري كتاب الإيمان /باب علامة المنافق (رقم-٣٣) (رقم: ٣٤) ومسلم كتاب الايمان باب بيان خصال المنافق(رقم-١٠٧ - (٥٩) وابوداود كتاب السنة/باب الدليل على زيادة الإيمان ونقصانه(رقم-٤٦٨٨) والنسائي كتاب الإيمان وشرائعه/علامة المنافق(رقم-٥٠٢٠) والترمذي كتاب الإيمان وشرائعه/ باب ما جاء في علامة المنافق (رقم-٢٦٣٢) واحمد في المسند ١٨٩/٢

**تسهیلات:**

**قوله:** وَإِذَا عَاهَدَ غَدَرَ:

**په وعده اومعاهده کښې فرق:** په بل حدیث کښې وعد راغلې دی اودلته عاهد راغلی دی په دې دواړو کښې فرق دې وعده د یوطرف څخه وی ددې ماتولو ته وعده خلافی وائی اوعهد د جانبینو په مینځ کښې وی ددې ماتولو ته غدراودهوکه وائی.

**دوعده خلافۍ دوعید مصداق:** په وعده خلافۍ کولو باندې چې کوم وعید راغلې دې دا په هغه وخت کښې دې چې کله یو کس وعده اوکړی او په زړه کښې پخه اراده اوکړی چې وعده به نه پورا کوم، لیکن که په زړه کښې ئې پخه اراده ده چې وعده به پوره کوم خو بیا ورته څه عذر راپیښ شو او مجبوری راغله نو دا وعید ددې کس دپاره نه دې.

**[۵۷] دمنافق مثال**

۵۷ –(۲۷)[۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [۲] قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: «مَثَلُ الْمُنَافِقِ كَالشَّاةِ الْعَائِرَةِ بَيْنَ الْغَنَمَيْنِ [۳] تَعِيرُ إِلَى هَذِهِ مَرَّةً وَإِلَى هَذِهِ مَرَّةً». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر رضی الله عنهما وایي [۲] رسول الله ﷺ وفرمایل د منافق مثال د هغه بزي (چیلۍ) په شان دي چې د دوو رمو په مینځ کښي ګرځي راګرځي چې (د خپل نر په لټه کي) [۳] کله دي طرفته او کله هغه طرف ته مائله کیږي. رواه مسلم

**حل اللغات:** ① الشَّاةِ: چیلۍ، بیزه، ② الْعَائِرَةِ: أَيِ الطَّالِبَةِ لِلْفَحْلِ الْمُتَرَدِّدَةِ: دخپل نر په لټون کښې سرګردانه وی، ③ تَعِيرُ: أَيْ تَنْفِرُ وَتَشْرُدُ: پریشانه ګرځیدلو ته وائی.

**تسهیلات:**

**قوله:** مَثَلُ الْمُنَافِقِ كَالشَّاةِ الْعَائِرَةِ:

**دتشبیه مقصد:** په دې حدیث کښې دوس توب طرف ته اشاره ده چه منافق کله مسلمانانوله اوکله کافرانو له ځی راځی په تذبذب او ترددکښې پروت دې دشهوت قیدی دې، د رجولیت نه عاری دې داسې دهغه چیلئی په شان دې چه دشهوت پوره کولودپاره کله یوې رمې ته اوکله بلې رمې ته اخوادیخوامندې وهی او ګرځی راګرځی. دلته تمثیل دې یعنی تشبیه مرکب بالمرکب ده چه یوطرف ته دمنافق یوه نظاره ده بل طرف ته د جفتی غوښتونکې چیلئی نظاره اوهیئت دې دواړو هیئتونوله یوبل سره تشبیه ورکړې شوې ده کوم چه تمثیل دې لکه:

**دیو تحریک په ابتداء کښې د درې قسمه خلقو پیدا کیدل:** دلته په دې خبره باندې هم پوهیدل

---

[۱]) اخرجه مسلم کتاب صفات المنافقین وأحکامهم (رقم) ۲ - (۲۷۷۳) والنسائی کتاب الإیمان وشرائعه/ مثل المنافق (رقم-۵۰۳۷)واحمد فی المسند ۲/ ۴۲

پکاردی چه هرقسم تحریك وی دَهغې په شروع کښې دوه قسم خلق په میدان کښې وی
① یودَغه تحریك راوستونکی اودَدې پیش کونکی خورونکی اوکامیاب جوړونکی خلق وی هغوی دَ ځان بازی لګوی اودغه تحریك کامیابئی سره دَ مخ کولوکوشش کوی،
② دَدې په مقابله کښې نورهغه خلق وی چه دا نوې تحریك قطعًا نه برداشت کوی هغوی ځان مړ کولو اوبل مړکولوته تیاریږی مګر دغه تحریك وړاندې کیدوته نه پریږدی. دا دواړه فریق په خپل خپل موقف کښې واضح حیثیت لری او په هغې کښې دَ هیڅ قسم لم لیټ نه کارنه اخلی.
③ په دغه تحریك کښې یودریم فریق هغه وخت پیداکیږی کله چه دَ دغه تحریك دَ کامیابیدو څه امید پیداکیږی دافریق خالص مفاد پرست وی اوهروخت ګوری چه کوم طرف ته ځی اودَملګرتیاکولو اعلان کوی اوکه په تحریك کښې څه ناکامی معلومیږی نودغه ډله دَ تحریك مخالفینو له په منډه ورځی اودَ وفادارئی اعلان کوی هم دغه مفادپرست ډله دَ منافقانو په نوم باندې اسلام یاده کړې ده

**داسلامی تحریک ابتداء:** کله چه اسلام په مکه مکرمه کښې ښکاره شو نوهلته دغه ډله نه وه ځکه چه هلته دَدواړو طرفونه دَ قربانئی ضرورت وو اودا مفادپرست خلق دَ قربانئی والا نه وو. کله چه په مدینه منوره کښې اسلام خور شواودا امید پیداشو چه اوس اسلام غالب راتلې شی نو په مدینه منوره کښې دَمنافقانودغه ډله راپیدا شوه اودَخپل مفاداتو لاندې کله مسلمانانو سره اوکله کافرانو سره په منډه منډه راتلل. په حدیث پاك کښې دَدې طبقې تشبیه جفتی غوښتونکې چیلئی سره ورکړې شوې ده په کوم سره چه دَهغوی خاوره پلیته شوه. دا طبقه دَ اسلام دَ شروع نه واخله ترننه پورې یوشان راروانه ده اواسلام ته نقصان رسوی.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۵۸] د یهودو د نبی علیه السلام څخه د نهه آیات بینات باره کښې تپوس کول

۵۸ –(۱)[۸] ①«عَنْ صَفْوَانَ بْنِ عَسَّالٍ قَالَ: قَالَ يَهُودِيٌّ لِصَاحِبِهِ: ② اذْهَبْ بِنَا إِلَى هَذَا النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ③ فَقَالَ لَهُ صَاحِبُهُ: لَا تَقُلْ: نَبِيٌّ، إِنَّهُ لَوْ سَمِعَكَ لَكَانَ لَهُ أَرْبَعُ أَعْيُنٍ. ④ فَأَتَيَا رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَسَأَلَاهُ عَنْ تِسْعِ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ، ⑤ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: لَا تُشْرِكُوا بِاللَّهِ شَيْئًا، وَلَا تَسْرِقُوا، وَلَا تَزْنُوا، ⑥ وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ، وَلَا تَمْشُوا بِبَرِيءٍ إِلَى ذِي سُلْطَانٍ لِيَقْتُلَهُ، وَلَا

[۱]) اخرجه النسائی کتاب تحریم الدم/ الصلب (رقم-۴۰۴۸) والترمذی کتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی قبلة الید والرجل (رقم-۲۷۳۳)واحمد فی المسند ۲۳۹/۴

تَسْحَرُوا، [۷] وَلَا تَأْكُلُوا الرِّبَا، وَلَا تَقْذِفُوا مُحْصَنَةً، وَلَا تُوَلُّوا لِلْفِرَارِ يَوْمَ الزَّحْفِ، [۸] وَعَلَيْكُمْ خَاصَّةً - الْيَهُودَ - أَنْ لَا تَعْتَدُوا فِي السَّبْتِ". [۹] قَالَ: فَقَبَّلَا يَدَيْهِ وَرِجْلَيْهِ، وَقَالَا: نَشْهَدُ أَنَّكَ نَبِيٌّ. [۱۰] قَالَ: "فَمَا يَمْنَعُكُمْ أَنْ تَتَّبِعُونِي؟". [۱۱] قَالَا: إِنَّ دَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلَامُ دَعَا رَبَّهُ أَنْ لَا يَزَالَ مِنْ ذُرِّيَّتِهِ نَبِيٌّ، [۱۲] وَإِنَّا نَخَافُ إِنْ تَبِعْنَاكَ أَنْ تَقْتُلَنَا الْيَهُودُ».
رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت صفوان بن عسال ؓ وايي چې يوه ورځ يو يهودي خپل يو (يهودي) ملګري ته اوويل [۲] راځه چې دې نبي ﷺ ته ورشو، [۳] هغه ملګري ورته اوويل هغه ته نبي مه وايه، ځکه چې که هغه واوريدل (چې يهوديان هم ماته نبي وايي) نو سترګې به يې څلور شي (يعني د خوشحالي څخه به په کپړو کښې نه ځايږي) [۴] بهر حال هغه دواړه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغلل او د رسول الله ﷺ څخه يې د نهو ⑨ ښکاره حکمونو په باره کښې پوښتنه وکړه، [۵] رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ① د الله سره څوک شريك مه جوړوي، ② غلا مه کوي، ③ زنا مه کوي، [۶] ④ د کوم نفس وژل چې الله حرام کړي دي هغه ناحقه مه قتلوي، ⑤ د يو چا بې ګناه قتلولو د پاره (په هغه غلط الزام لګولو سره) حاکم ته يې مه بيايئ، ⑥ جادو مه کوي، [۷] ⑦ سود مه خوري، ۸: په پاك دامني ښځې باندې د زنا تهمت مه لګوي، ۹: په ميدانِ جنګ کښې د ښمن ته شا مه کوي [۸] او اې يهودو ستاسو د پاره په خاص طور سره واجب دي چې د شنبې د ورځې په معامله کښې (د الله د حکم څخه) زياتي مه کوي، [۹] روايت کونکي وايي (په دې اوريدو سره) دواړو يهوديانو د رسول الله ﷺ لاس پښې ښکل کړل او وې ويل چې مونږ ګواهي ورکوو چې ته ﷺ په رښتيا نبي يې، [۱۰] رسول الله ﷺ ورته وفرمايل (هرکله چې ستاسو زما په رسالت يقين دي نو) بيا زما د پيروي کولو څخه تاسو کوم شي منع کوي؟ [۱۱] هغوئ اوويل حقيقت دا دي چې داود ؑ خپل د رب څخه دعا غوښتې وه چې همیشه دې د هغه په اولاد کښې نبي وي [۱۲] نو مونږ ويرېږو که ستا پيروي وکو نو يهوديان به مونږ قتل کړي. ترمذي ابوداؤد نسايي

**حل اللغات:** ① لَا تَمْشُوا: أَيْ لَا تَسْعَوْا: منډې رامنډې مه وهئ، کوشش مه کوئ، ② بِرَيءٍ: أَيْ بِمُتَبَرِّءٍ مِنَ الْإِثْمِ: برى وى، بې ګناه وى، مجرم نه وى، ③ ذِي سُلْطَانٍ: أَيْ صَاحِبِ قُوَّةٍ: بادشاه، حاکم چاسره چه قوت وى، ④ وَلَا تَقْذِفُوا: د زنا تهمت لګول، يَعْنِي رَمْيُهُنَّ بِالزِّنَا: قذف کانړې اوچتول او دچا په سر باندې ويشتل دا قذف دې. بيا په پاك دامنه ښځه باندې تهمت لګولو دپاره استعمال شو، ⑤ مُحْصَنَةً: أي عَفِيفَةً: پاکدامنه زنانه کومې چه الله پاک د زنا نه محفوظ ساتلې وى، ⑥ لَا تُوَلُّوا: دا د تولى نه دې مخ اړول او شاکولو ته وائى، دلته ترې مراد د ميدان جنګ نه تختيدل دى. ⑦ لِلْفِرَارِ: تيختنه کول، ⑧ يَوْمَ الزَّحْفِ: أَيِ الْحَرْبِ مَعَ الْكُفَّارِ: د کافرانو سره جنګ مراد دې. ⑨ لَا تَعْتَدُوا: أَيْ لَا تَتَجَاوَزُوا: تجاوز مه کوئ (د الله پاک په حکم کښې)

**تسهيلات:**

**قوله:** لَكَانَ لَهُ أَرْبَعُ أَعْيُنٍ:

**د مذکوره جملې مطلب،** څلور سترګې کنايه دی د شدت فرح او د خوشحالۍ د انتهاء څخه څکه چې خوشحالۍ کښې سترګې دومره کهلاؤ شی چې په هره سترګه کښې دوه پهودو د بغض او عناد اندازه لګی چې په نجی مجلس کښې به ئې په چپه خله اقرار کولو خو ضد کښې راشی او هر څه هیر کړی. نو دوه سترګې لکه چه لوې شی او څلور ترې جوړې شی. ددې څخه د

**قوله:** فَسَأَلَاهُ عَنْ تِسْعِ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ.

**په قرآن کښې د تسع آيات ذکر :**

① موسی علیہ السلام ته د تسع آيات ورکولو ذکر په دې آيت کښې دې [وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَىٰ تِسْعَ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ] (سورة بنی اسرائیل ایت: ۱۰۱)

② حضرت موسی علیہ السلام ته د الله تعالی حکم دې [وَأَدْخِلْ يَدَكَ فِي جَيْبِكَ تَخْرُجْ بَيْضَاءَ مِنْ غَيْرِ سُوءٍ فِي تِسْعِ آيَاتٍ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَقَوْمِهِ] (سورة نمل آیت: ۱۲)

**د تسع آيات په مراد کښې دوه اقوال:** ① د حضرت ابن عباس رضی الله عنه او حافظ ابن کثیر رحمه الله رائې داده چې په قرآن کریم کښې د تسع آيات بينات څخه مراد معجزات دی یعنی هغه نهه مشهورې معجزې کومې چې حضرت موسی علیہ السلام ته ملاؤ شوې وې. هغه دا دی: عصا، یدبیضاء، دم، طوفان، جراد، قمل، ضفادع، نقصِ ثمرات او سنین یعنی قحط اوچ کالی، د علامه مظهری خیال دادې چې سورة نمل کښې خو معجزات مراد دی خو په بنی اسرائیل کښې احکامات مراد دی.

② په مذکوره دواړو آیاتونو کښې د علامه طیبی رحمه الله او توربشتی رحمه الله رائې داده چې آيات تسع څخه مراد احکامات دی.

③ دَ ملا علی قاری رحمه الله رائې داده چې په حدیث کښې دواړه احتمالات دی چې سوال د احکاماتو باره کښې هم شوې دې او د معجزاتو باره کښې هم شوې دې. اوس که سوال د معجزاتو باره کښې دې د کومو ذکر چې قرآن پاک کښې دې نو حضرت نبی کریم ﷺ اول معجزات بیان کړی دی، دې نه پس ئې احکامات بیان کړی دی. راوی د معجزاتو ذکر نه دې کړې. څکه چې هغه په قرآن کریم کښې محفوظ موجودې وې او د احکاماتو ذکر ئې اوفرمائیلو او که آيات بينات څخه مراد احکامات شي نود دې احتمال هم شته

**د دویم فریق دلیل:** زیر بحث حدیث ددوی مستدل دې په دې کښې نبی کریم ﷺ د احکاماتو ذکر فرمائیلې دې. نوپه قرآنی آيتونو کښې د تسع آيات څخه احکام مراد

دی.په دې باندې د ترمذی کتاب التفسیر ۴۰ حدیث دلیل دې. هلته دا لفظ دي[ فسألاه عن قول الله تعالی وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَىٰ تِسْعَ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ] ددې څخه ښکاره معلومه شوه چې سوال هم دَ احکاماتو باره کښې وو دمعجزاتو باره کښې نه وو نو بیا خبره صفا ده چه حضور ﷺ دهغه احکاماتو جواب ورکړې دې کوم چه ټولو شرائعو کښې متفق وو

**اشکال:** سوال داحکاماتو باره کښې وو. حضورپاك دَ نهواحکاماتو په جواب کښې لس احکامات بیان کړل؟

**داشکال جواب:** په حقیقت کښې دغه خلقو دَ هغه نهو احکاماتو سوال کړې وو چه مشهور او په ټولو مکمل مذهبونو کښې مشهور وو. او یوحکم کوم چه یهودو سره خاص وو هغه ئې په زړه کښې پټ ساتلې وو، دې دَ پاره چه دَ حضورپاك امتحان واخلی. حضورپاك چه کله دَهغې هم جواب ورکړو نو بیائی هغوی خپې لاسونه ښکل کړل او دَ نبوت اقرار او اعتراف ئې اوکړو خوئی نه منلو.

**قوله:** وَقَالَا: نَشْهَدُ أَنَّكَ نَبِيٌّ.:

**دیهودیانود ایمان نه راوړلو دوه عذرونه پیش کول :**

① په دې کښې اقرار اواعتراف دې لیکن په دې کښې یوه دهوکه هم ده. هغه دا چه دَ یهودو عقیده ده چه حضورپاك دَ امیین نبی وو یعنی صرف دَعربو دَ پاره نبی وو دَ ټول جهان دَپاره نه وو نو [انك نبي أي إلى العرب خاصة]دا دهوکه وه.

② یهودیانو اووئیل چه حضرت داؤد ﷺ دعا غوښتې وه چه نبی دې همیشه هم دَ دوی دَ اولاد نه وی اوحضورپاك دَ هغوی نه نه دې که چرې مونږ اومنلو اوبه وهلې شو. دا هم هغوی دروغ اووئیل حضرت داؤد ﷺ هیڅ کله داسې نه دی وئیلی اودائی هم دروغ اووئیل چه که اتباع وکړو نو وهلې کیږو به. دین اسلام خو امن راولی، امن غواړی، امن خوروی. فتنه او فساد خودَ دین دَ مخالفینو طریقه ده.

## [۵۹] دایمان درې اصول دین

> ۵۹ -()[۹][١] وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[٢]«ثَلَاثٌ مِنْ أَصْلِ الْإِيمَانِ، الْكَفُّ عَمَّنْ قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، لَا تُكَفِّرْهُ بِذَنْبٍ، وَلَا تُخْرِجْهُ مِنَ الْإِسْلَامِ بِعَمَلٍ. [٣] وَالْجِهَادُ مَاضٍ مُذْ بَعَثَنِيَ اللَّهُ إِلَى أَنْ يُقَاتِلَ آخِرُ هَذِهِ الْأُمَّةِ الدَّجَّالَ، [٤] لَا يُبْطِلُهُ جَوْرُ جَائِرٍ، وَلَا عَدْلُ عَادِلٍ. وَالْإِيمَانُ بِالْأَقْدَارِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:**[١] او حضرت انس ﷺ وایې چې رسول الله ﷺ وفرمایل[٢] درې خبرې د ایمان

[١] ) اخرجه ابوداود کتاب الجهاد/باب في الغزو مع أئمة الجور(رقم-۲۵۳۲)

جرړدي ① کوم سړي چې د لا اله الا الله اقرار وکړي هغه سره جنګ او دښمني ختموي، اوس دځه ګناه په وجه هغه ته کافر مه وایئ او نه د څه عمل په وجه په هغه باندې د اسلام څخه د خارج کیدو فتوي لګوي ②③ کله چې الله تعالی ﷺ زه رسول راليږلي یم جهاد به همیشه همیشه د پاره جاري وي، تردي چې د دې امت په آخر کښې به یو سړي راشي د جال سره به جنګ وکړي، ④د یو عادل (بادشاه) د عدل یا د څه ظالم د ظلم بهانه کولو سره جهاد نشي ختمیدي، ③ او تقدیر باندې ایمان راوړل، ابو داود.

**حل اللغات:** ① أَصْلٌ : أَيْ أَسَاسُهُ: بنیاد، اصل، ② الْكَفُّ : أَيْ الْإِمْتِنَاعُ عَنِ التَّعَرُّضِ بِأَهْلِ الْإِسْلَامِ: یعنی کلمه ویونکو سره به جنګ نه شي کولې، ③لَاتُكَفِّرْهُ: نسبت دکفر به ورته نه کوئ، کافر به ورته نه وایئ ④ مَاضٍ : أَيْ نَافِذٌ وَجَارٍ وَمُسْتَمِرٌّ: یعنی مسلسل به جاری او نافذ وی، ⑤لَا يُبْطِلُهُ: أَيْ لَا يُسْقِطُ الْجِهَادَ: ختمولې ئې نه شي، بندولې نه شي جهاد لره، ⑥جَوْرٌ: ظلم، ⑦جَائِرٌ: ظالم، ⑧بِالْأَقْدَارِ: اى بِأَنَّ جَمِيعَ مَا يَجْرِي فِي الْعَالَمِ هُوَ مِنْ قَضَاءِ اللهِ وَقَدَرِهِ: تقدیر یعنی په دنیا کښې چه څه کیږی دا د الله تعالی په فیصله او قدرت سره کیږی.

**تسهیلات: قوله**: ثَلَاثٌ مِنْ أَصْلِ الْإِيمَانِ:

**په درې اصولوکښې عدم انحصار**:دَاصل نه اصول دین مراد دی لیکن په دریوکښې انحصارمقصودنه دې بلکه دا درې دَهغې نه بعضې دی په دې وجه من تبعیضیه راوړلې شوې دې یا په فروع باندې عمل کولو دپاره دادرې اصول دی.

**قوله** :لَاتُكَفِّرْهُ بِذَنْبٍ،وَلَاتُخْرِجْهُ مِنَ الْإِسْلَامِ بِعَمَلٍ:

**په خوارجو اومعتزلو باندې رد**: یعنی کلمه ویونکې مسلمان ته دَ ګناه په وجه دَ اسلام نه خارج کنړلوسره کافرمه وایه دې نه ژبه منع کړه اومه هغه دَاسلام نه خارج ګنړه، په اوله جمله کښې په خوارجو باندې واضح رددې او په جمله ثانیه کښې دَ معتزلو واضح تردید دې ځکه چه اولنئی فرقه دکبیره ګناه مرتکب ته کافر وائی او داخل فی الکفرئی منی او دویمه فرقه معتزله دې خارج از اسلام ګنړی سره دَدې چه هغوی ده ته داخل فی الکفرنه وائی.

**اشکال:** که یوسړې مثلاً دَ ضروریاتِ اسلام نه انکارکوی اودې سره کلمه هم وائی نو آیادَده تکفیربه نه کیږی؟

**داشکال جواب:** دلته حدیث کښې "لاتخرجه من الإسلام بعمل" کښې دَعمل نه مرادهغه ګناه ده چه دَ کفریا دَ امارات کفرنه علاوه ده. که یوسړې کفرکوی یادَ ضروریاتِ دین نه انکارکوی یا امارات کفرخپلوی مثلاً زنار اچوی، یادَمصحف شریف توهین کوی هغه په ګندګئی کښې غورزه وی نوداسې سړې کافردې دَ ده تکفیربه کیږی سره دَدې چه سل ځل دې کلمه وائی اوبې ګناه مسلمان ته کافروئیل ډیر لوئی جرم دې.

**قوله:** وَالْجِهَادُ مَاضٍ مُذْ بَعَثَنِيَ اللَّهُ..الخ

**دمذکوره جملې پس منظر:** دا دویم اصل دې دَ دې نه وړاندې وثانیها محذوف راویستل به بهتروی. مطلب دا چه دَ جهاد فریضه یوسرې موقوف یا منسوخ کولې نه شی بلکه دا فریضه به جاری وی. شارحین حدیث لیکلی دی چه بعضې منافقانو اووئیل چه ګورئی لږ صبراوکړئی چه دانبی مړشی دَهغې نه پس به مونږ خپل زوړ مذهب طرف ته واپس راګرځو. حضورپاك ته چه کله معلومه شوه نوحضورپاك اوفرمائیل چه جهاد به جاری وی که چرې دامنافقان اسلام پرېږدی نو دَ تورې جهاد به موجودوی چه دوی به پرې کړې.

**قوله:** مُذْ بَعَثَنِيَ اللَّهُ:

**دمذکوره جملې په مفهوم کښې اقوال:**

① یعنی دکله نه زمارب زه نبی جوړکړې لیږلې یم دَهغه وخت نه جهادجاری شوې دې.

① یعنی دکله نه زما رب زه دَمکې نه مدینې ته لیږلې یم دَهغه وخت نه دَ جهادحکم راغلې دې تردې چه ددې امت آخری سړې به دجال سره جنګ اوکړی

**قوله:** إِلَى أَنْ يُقَاتِلَ آخِرُ هَذِهِ الْأُمَّةِ الدَّجَّالَ،

**د امت څخه مراد:** دَدغه آخری سړی نه مراد (عیسی علیه السلام) دې اودَ حضرت عیسی علیه السلام دَ نازلیدلونه پس به هغه دَدې امت دَ افرادو نه یوفردوی سره دَدې چه نبوت به ورسره وی. نو "آخرهذه الأمة" مطلب صحیح شواو په احادیثوکښې په واضح توګه راغلی دی چه دجال لره قتل کونکې به حضرت عیسی علیه السلام وی.

**قوله:** لَا يُبْطِلُهُ جَوْرُ جَائِرٍ

**د ظالم حکمران په قیادت کښې دجهاد حکم:** یعنی دَ یواسلامی مملکت مشر مثلاً ډیر لوئی ظالم دې خوچه کله هغه دَ جهاد اعلان اوکړی نومسلمانانوله پکاردی چه دَ جهاددَپاره اوځی اودابهانه جوړه نه کړی چه سربراه ظالم دې مونږ جهادنه کوو بلکه په حدیث کښې دی. الجهادواجب علیکم معکل أمیربراکان اوفاجراوإن عمل الکبائر (مشکوة ص ۱۰۰)

**قوله:** وَلَا عَدْلُ عَادِلٍ.

**د کافرد عدالت په وجه د جهاد نه بندیدل:** یعنی دَیوکافرحکومت سربراه ډیرعادل دې نودَهغه عدالت اومنصف مزاجی په خپل ځائی مګرجهاددَهغه دَ انصاف اوعدل دَ وجې نشی بندیدلې بلکه دَ اسلام عزت اووقار زیاتولودَپاره اودَالله تعالی دکلمې دَ اوچتولودَپاره به دغه منصف مزاج بادشاه اودَ هغه قوم سره جهادکولې شی.

**قوله:** وَالْإِيمَانُ بِالْأَقْدَارِ

**نوټ:** دایمان بالقدر تفصیل په باب القدرکښې ذکرشوې دې.

**[٦٠] د زنا کولو په وخت د بنده څخه د ايمان خارجيدل**

٦٠-()[١٠] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "② «إِذَا زَنَى الْعَبْدُ خَرَجَ مِنْهُ الْإِيمَانُ، فَكَانَ فَوْقَ رَأْسِهِ كَالظُّلَّةِ، ③ فَإِذَا خَرَجَ مِنْ ذَلِكَ الْعَمَلِ رَجَعَ إِلَيْهِ الْإِيمَانُ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② کله چې بنده زنا کوي نو ايمان بهر ځني را وځي او د هغه په سر د سائبان په شان معلق شي ③ بيا چې هغه گناه څخه فارغه شي نو ايمان د هغه طرف ته واپس راځي. ترمذي ابوداؤد

**حل اللغات:** ① الظُّلَّةِ: سائبان، سوري.

**تسهيلات:**

**قوله: إِذَا زَنَى الْعَبْدُ خَرَجَ مِنْهُ الْإِيمَانُ:**

**اشكال: چې کله ايمان خارج شي نو آيا دا کس کافر شو؟**

**داشکال جوابونه:**

① د زنا په وخت کښې د ايمان نور لاړ شي.

② د زنا په وخت کښې ايمانی حياء لاړه شي.

③ د زنا په وخت کښې ايمان شهودی غائب شي،

④ د زنا په وخت کښې د ايمان کمال ترې لاړ شي.

⑤ دا د تغليظ و تشديد په توگه فرمائيلې شوی دی.

⑥ د زنا په وخت کښې وختی طور ترې ايمان لاړ شي، کله چې د قبامت څخه فارغ شي نو ايمان واپس راشی. د کبيرې د ارتکاب په وخت کښې هم دا کس د ايمان د سوری لاندې دې.

**خطرناکه خبره:** علماء کرامو ليکلی دی که چرې په دې وخت کښې دا کس مړ شو نو د ايمان څخه بغير مړ شو. ځکه چې ايمان خو پرې يو سورې جوړ شوې وو، د دننه څخه وتلې وو. او د واپس راتلو موقع ورته ملاؤ نشوه. (أعاذنا الله منه)

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[٦١] د رسول الله ﷺ حضرت معاذ ته ﷺ د لسو خبرو وصيت**

٦١-()[١١] ① عَنْ مُعَاذٍ قَالَ: «أَوْصَانِي رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِعَشْرِ كَلِمَاتٍ، ② قَالَ: "لَا تُشْرِكْ بِاللَّهِ شَيْئًا، وَإِنْ قُتِلْتَ وَحُرِّقْتَ، ③ وَلَا تَعُقَّنَّ وَالِدَيْكَ وَإِنْ أَمَرَاكَ أَنْ تَخْرُجَ مِنْ أَهْلِكَ وَمَالِكَ، ④ وَلَا تَتْرُكَنَّ صَلَاةً

[1] ) اخرجه ابوداود كتاب السنة/باب في القدر(رقم-٤٦٩٠) والترمذي كتاب الإيمان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء لا يزني الزاني وهو مؤمن (رقم-٢٦٢٥)

[2] ) واحمد في المسند ٢٣٨/٥

مَكْتُوبَةً مُتَعَمِّدًا؛ [۵] فَإِنَّ مَنْ تَرَكَ صَلَاةً مَكْتُوبَةً مُتَعَمِّدًا فَقَدْ بَرِئَتْ مِنْهُ ذِمَّةُ اللَّهِ، [۶] وَلَا تَشْرَبَنَّ خَمْرًا فَإِنَّهُ رَأْسُ كُلِّ فَاحِشَةٍ، [۷] وَإِيَّاكَ وَالْمَعْصِيَةَ، فَإِنَّ بِالْمَعْصِيَةِ حَلَّ سَخَطُ اللَّهِ، [۸] وَإِيَّاكَ وَالْفِرَارَ مِنَ الزَّحْفِ، وَإِنْ هَلَكَ النَّاسُ، [۹] وَإِذَا أَصَابَ النَّاسَ مَوْتٌ وَأَنْتَ فِيهِمْ فَاثْبُتْ، [۱۰] (أَنْفِقْ عَلَى عِيَالِكَ مِنْ طَوْلِكَ، وَلَا تَرْفَعْ عَنْهُمْ عَصَاكَ أَدَبًا [۱۱] وَأَخِفْهُمْ فِي اللَّهِ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت معاذ ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ ماته د لسو خبرو وصیت اوکړو [۲] نو وي فرمايل ① د الله تعالى سره څوك شريك مه جوړوه كه څه هم تا ووژني او ودې سوزوي، [۳] ۲: د خپل مور وپلار نافرماني مه كوه اگر كه هغه تاته د خپل اهل او مال پرېښودو حكم وكړي، [۴] ۳: په قصد سره هيڅ مونځ مه پرېږده [۵] څوك چې په قصد مونځ پرېږدي الله تعالى دهغه څخه بري الذمه كيږي، [۶] ۴: شراب مه چښه ولي چې شراب دټولو بدو جړ دي، [۷] ۵ د الله تعالى نافرماني او د گناه څخه ځان گوره ځكه چې نافرماني كولو سره د الله غصه راځي، [۸] ۶: جهاد كښې هيڅ كله د ښمنانو څخه تيښته مه كوه اگر كه ستا سره ټول خلق هلاك شي، [۹] ۷: هر كله چې په خلقو كښې مرگ (د وبا په صورت كې) خپورسي اوته په هغوئ كښې موجود يې نو ثابت قدم اوسه يعنى د هغوئ د مينځ څخه مه تښته، [۱۰] ۸: په خپل اهل وعيال باندې د خپل وس مطابق خرڅ كوه، ۹: تاديبا (د ادب دپاره) خپله ډنډه د هغوئ څخه مه لرې كوه. ۱۰ [۱۱]: او د الله تعالى په معامله كښې هغه اوېروه يعنى په اهل وعيال كې كه څه سزاءً يا تاديبًا وهل وټكول ضروري وي نو د هغه څخه بې پروايي مه كوه او هغوئ ته د ښو ښو خبرو نصيحت او تلقين كوه او د دين د احكامو او مسائلو تعليم وركوه او هغه د خرابو خبرو څخه د محفوظه كولو كوشش كوه. احمد

**حل اللغات:** ① أَوْصَانِي: أَيْ أَمَرَنِي: وصيت ئې كړې يعنى حكم او تاكيد ئې راته كړې دې. ② حُرِّقْتَ: اوسوزولې شې. ③ لَا تَعُقَّنَّ: أَيْ لَا تُخَالِفَنْهُمَا: مخالفت ئې مه كوه، ④ مُتَعَمِّدًا: په قصد سره (اوكه په هيره يا دضرورت په وجه فوت نوشى نو دغه حكم نه دې). ⑤ بَرِئَتْ: بيزاره دې، (الله تعالى ئې د امن وغيره ذمه نه اخلى). ⑥ رَأْسُ: بنياد د هرې گناه ځكه دې چه شراب څكلوسره عقل ختميږى اوكله چه عقل لاړو نو بيا خو دَ هرې گناه لار كولاؤشوه. ⑦ فَاحِشَةٍ: هرقسم گناه او ناجائز كار مراد دې (ځكه ورته ام الخبائث هم وائى). ⑧ إِيَّاكَ: دې نه مراد تحذير دې يعنى ځان بچ كړئ، ⑨ حَلَّ: أَيْ نَزَلَ: راځى، نازليږى، ⑩ سَخَطُ اللَّهِ: غصه اوخفگان دالله، ⑪ الْفِرَارَ: تيښته كول، ⑫ الزَّحْفِ: أَيِ الْحَرْبِ مَعَ الْكُفَّارِ: د كافرانو سره جنگ مراد دې ⑬ فَاثْبُتْ: ثابت قدم اوسيږه. ⑭ طَوْلِكَ: أَيْ فَضْلِ مَالِكَ: دَ طاقت، قدرت او وسعت په معنى كښې دې يعنى واجبى نفقات خو په ذمه دى دَزياتى نفقاتو نه هم په بال بچ باندې خرچ كوه مگر دَخپل وسعت مطابق. ⑮ أَخِفْهُمْ فِي اللَّهِ: أَيْ أَنْذِرْهُمْ: يعنى اوئې ويروه دالله تعالى دمخالفت او نافرمانئ نه

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا تُشْرِكْ بِاللّٰهِ شَيْئًا وَإِنْ قُتِلْتَ وَحُرِّقْتَ:

**اشكال:** په قرآن کريم کښې دَ اکراه په صورت کښې دکفراوشرك په زباني او ظاهري توګه باندې ارتکاب جائزګرځولې شوې دې دې دَپاره چه ځان بچ شي ليکن دلته دَحديث نه دامعلوميږي چه دَ اکراه په حالت کښې هم اجازت نشته؟

**دَاشکال دوه جوابونه:** ① يوعزيمت دې اويورخصت دې رخصت خو هم دغه دې دَ کوم ذکر چه په قرآن کښې دې چه په زړه سره مؤمن دې صرف په ژبه سره دَ اکراه په صورت کښې دَ کفر کلمه وائي نود ځان بچ کولو دَپاره رخصت شته اجازت دې، بل خوا حضورپاك صحابي ته په عزيمت باندې دَعمل کولوحکم ورکړې دې چه ځان ورکړه مګر دَ شرك ارتکاب اونه کړې نو په عزيمت باندې عمل دَ صحابي دَ شان سره برابر وو.

② داکلام په فرضي توګه باندې دې يعنې شرك مه کوئي فرض کړه که تاسو اوسوزولې شئ يا قتل ته پيش کړې شئ مګر دَشرك نه بچ شئ.

**قوله:** وَلَا تَعُقَّنَّ وَالِدَيْكَ:

**د مورپلار د تابعدارۍ درې صورتونه:** ① که دَ مورپلارحکم دَ شرعي امر کولوسره متعلق دې نو په دې کښې دَ والدينو اطاعت فرض دې.

② که چرې دَ منکرامر دکولو سره دَ مورپلارحکم متعلق دې نودَهغوی اطاعت نه کول فرض دی.

③ که چرې يومباح عمل سره متعلق وی نو اطاعت کولې شی په دې شرط چه په اطاعت سره دَ فتنې خوريدو ويره نه وی.

**قوله:** فَإِنَّ مَنْ تَرَكَ صَلَاةً مَكْتُوبَةً مُتَعَمِّدًا فَقَدْ بَرِئَتْ مِنْهُ ذِمَّةُ اللّٰهِ:

**قصداً د مونځ په پريخودو غيرمحفوظ الدم ګرځيدل:** شيخ عبدالحق رحمه الله ليکلی دی چه قصداً مونځ پريخودونکی نه دَالله تعالی دَ حفاظت ذمه واری پاسی يعنې اوس داسړې محفوظ الدم پاتې نه شوبلکه مهدورالدم شو

**په قصد سره د مونځ پريخودونکی په حکم کښې پنځه اقوال:**

① امام احمد رحمه الله فرمائي چه تارك الصلوة به قتلولې شی اوداَارتداديوشکل دې.

② دَ حضرت امام شافعي رحمه الله اوامام مالك رحمه الله په نيزعمداً مونځ پريخودونکې مرتدنه دې البته واجب القتل دې. اوداسزادهغه دَ دغې عمل ردعمل دې.

③ امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائيلی دی چه تارك الصلوة په جيل کښې واچوئی تردې چه ياتوبه اوکړی اويا په جيل کښې مړشي.

④ شيخ سعدی رحمه الله وئيلی دی چه بيلمانځه ته قرض مه ورکوئی ځکه چه ځوك دالله تعالی قرض نه اداکوی نوهغه به ستاسو حق څه اداکړی.
⑤ بعضې الله والا فرمائی چه بيلمانځه دَ مسلمانانو په قبرستان کښې مه خښوئ. [اشعة المعات: ۱/۸۴، بتغير]

**قوله:** وَإِذَا أَصَابَ النَّاسَ مُوتٌ وَأَنْتَ فِيهِمْ فَاثْبُتْ:

**د وبائي ځائی څخه د تختيدلو حرمت:** يعنی چرته چه طاعون وغيره وبائی مرض وی هلته شرعًا تلل جائزنه دی اودَهغه ځائی نه تختيدل هم جائزنه دی داهم داسې ناجائزدی لکه چه دَ دښمن نه په ميدان جنګ کښې تخيدل ناجائزدی. ددې مسئلې تحقيق په کتاب الطب کښې راروان دی.

**قوله:** وَلَا تَرْفَعْ عَنْهُمْ عَصَاكَ أَدَبًا:

**دادب ورکولوپه غرض د ماشومانو دوهلوجواز:** يعنی دَ تاديب اوتهذيب دَپاره ضروری دی چه هروخت دې همسا په اوګه وی او په دې سره دَ ښځې اوبچو اصلاح جاری ساته مګر دا وهل ټکول چه دَ ادب په توګه وی نه چه دَعذاب اوتعذيب په توګه. خلاصه داچه دَهغوی دَتاديب اوحسن تعليم دَپاره زجر اوتوبيخ وهل ټکول هم پکاردی.

**[٦٢] دعهد نبوی څخه پس د نفاق خاتمه**

| ۶۲ -( )[۱۲] ① وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ: إِنَّمَا النِّفَاقُ كَانَ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -، ② فَأَمَّا الْيَوْمَ فَإِنَّمَا هُوَ الْكُفْرُ أَوِ الْإِيمَانُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. |
|---|

**ترجمه:** ① اوحضرت حذيفه رضی الله عنه وايي د نفاق حکم د حضور ﷺ په زمانه ختم شو ② (اوس به دوه صورتونه وي چې) يا به کفر وي يا ايمان. بخاري

**حل اللغات:** ① فَأَمَّا الْيَوْمَ: أَيْ: بَعْدَ وَفَاةِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: د نن ورځ نه مراد د نبی عليه السلام د وفات نه پس زمانه ده.

**د راوي مختصر تعارف:** حذيفه بن اليمان رضی الله عنه ئې نوم دې کنيت ابوعبدالله، لقب صاحب سر رسول الله د عطفان د قبيلې سره ئې تعلق ساتلو پلار ئې ځوک قتل کړې وو نو مدينې ته راغلې وو او مقيم شوې وو حضرت حذيفه رضی الله عنه د اسلام قبلولو دپاره د مدينې نه مکې ته تلې وو. د غزوه بدر نه علاوه په نورو ټولو غزاګانو کښې ئې شرکت کړې وو. د نبی کريم په زمانه کښې هم په مدينه کښې پاتې وو. روستو بيا په عرق، کوفه، نصيبين او مدائن کښې مقيم وو(۳) حضرت عمر رضی الله عنه د قراق د فتح کولو نه پس د دجلې په خواه شا علاقه باندې افسر مقرر کړې وو. (۴) بيا د مدائن والی جوړ کړې شو.

[۱] ) اخرجه البخاری کتاب الفتن /باب إذا قال عند قوم شيئا، ثم خرج فقال بخلافه (۷۱۱۴)

حضرت حذیفه ﷺ د فقه،حدیث او د قیامت دورځې پورې چه څومره انقلابات راتلونکی وو دټولو عالم وو.د منافقانو په باره کښې چه دوی ته کوم خصوصی معلومات وو.د دې په وجه د نبی کریم ﷺ د راز دار په لقب سره یادیدلو.پخپله فرمائی چه د دې وخت نه واخله تر قیامته پورې څومره فتنې دی دټولو ماته علم دې خو د دې مطلب دا نه دې چه زما نه سوا بل چاته د دې علم نشته بلکه اصل خبره دا چه نبی کریم ﷺ په یومجلس کښې د دې ټولو فتنو خبر مونږ ټولو ته راکړې وو.او اوس زما نه سوا بل څوک باقی نه دی.

**زهد:** د زهد ئې دا کیفیت وو.چه د مدائن امیروو خو د دې باوجود ئې به د فقیرئ په طرز زندګئ کښې څه فرق نه وو راغلې بلکه په خر باندې به ئې سورلی کوله یوځل ورته امیر المؤمنین حضرت عمر ﷺ څه مال رااولیږلو.نو هغه ټول ئې تقسیم کړل.(۱)

**وفات:** په ۳۲ هجرئ کښې دحضرت عثمان ﷺ د وفات نه څلویښت ورځې پس وفات شوې وو.په آخری عمر کښې په ژړا کښې مصروف وو.خلقو چه ترې تپوس اوکړو نو وې فرمائیل د دنیا د پریخود په غم کښې نه ژاړم بلکه مرګ راته زیات محبوب دې.خوزما حشر به څنګه وی کله چه ئې آخری ساه واخستله نو وې فرمائیل یا الله زما دپاره خپل ملاقات مبارک کړه څکه چه زه تاسره ډیر محبت کوم(۲)

**مرویات:** د دوی نه د سلو نه زیات روایات منقول دی په دې کښې دولس متفق علیه دی او۸ په په بخاری او۱۷ په مسلم کښې دی (۳)

**تسهیلات:**

**قوله:** فَأَمَّا الْيَوْمَ فَإِنَّمَا هُوَ الْكُفْرُ أَوِ الْإِيمَانُ:

**د عهد نبوی څخه روسته د منافق سزا:** دنبی کریم ﷺ په زمانه کښې د څو مصحلتونو په وجه منافقان د مسلمانانو په حکم کښې وو، او د دوئ ټول سازشونه به برداشت کولې شو. حضرت حذیفه ﷺ فرمائی چې اوس هغه معامله پاتې نشوه، اوس فرض کړه که دا معلومه شی چې یو کس منافق دې نو په هغه باندې به د ارتداد حکم جاری کیږی. او اسلامی حکومت به هغه ته د مرګ سزا ورکوی.

**په عهدنبوی کښې منافقانوته دعدمِ تعرض درې وجوهات:** ① زیاتومسلمانانوبه منافقان پیژندل نوکه هغوی ئې قتلولې نو په خلقو کښې به دا مشهوره شوې وه چې محمد ﷺ خپل

---

(۱) اسد الغابة (۳۹۲\۱)_(۲) مسند احمد (۳۸۹\۵)- (۳)تهذیب الکمال)_ (٤)مسلم فی صلاة المسافرین رقم، باب استحباب تطویل القراءة فی صلاة اللیل والبخاری فی التهجد باب طول القیام فی صلاة اللیل رقم، ۱۲۹۲ وکذا نس فی الجنائز رقم، ۱۸۵۰، وجه فی الجنائز رقم، ۱۵۹٤وحم، باقی مسند الکثرین رقم، ۱۲۰۷۷) (۵)معارف السنن (۱۳\۴۸۰) شرح المهذب (۳\۳۶۷)- (۶)

ملګرې هم قتلوی نو خلق به د اسلام قبلولو څخه ویریدل او اسلام ته به نزدې هم نه راتلل
② د مسلمانانو کثرت او زیات والې پکار وو دې دپاره چې په کافرانو باندې رعب وی.
③ چې منافقان د نبی ﷺ او د صحابه کرامو په ماحول کښې پاتې شی او دهغې څخه متاشره شی اوزژه څخه مسلمانان شی.اوکه قتلولی شو نودا موقع به هغوی ته په لاس نه ورتله.

## [۲/۲]بَابٌ فِي الْوَسْوَسَةِ

### داباب دَوسوسې په بیان کښې دې

**وسوسه او د دې اقسام :**

**د وسوسې لغوی معنی:** وسوسه په لغت کښې نرم آواز او دَ زیوراتو یعنی کالو شرنګارته وائی. بیا وئیلې شی چه کوم خیالات په زړه کښې ظاهریږی که هغه د رذائل او معاصی طرف ته دعوت ورکوی نو دا وسوسه ده. او که د طاعت طرف ته داعی وی نو هغې ته الهام وئیلې شی،

**د وسوسې دوه قسمونه:** ① ضروریه: دا هغه وسوسه ده کومه چه په زړه کښې پیدا شی او انسان د هغې په لرې کولو باندې قادر نه وی. دا د ټولو امتونو نه معاف کړې شوې دې څکه چه د دې نه بچ کیدل ګران دی. او انسان الله پاک د یو داسې امر نه دې مکلف کړې چه د هغې پوره کول د هغه په طاقت کښې نه وی. ﴿ لایکلف الله نفسا الاوسعها ﴾
② اختیاریه: دا هغه وسوسه ده کومه چه په زړه کښې جاری کیږی او دوام اختیار کړی او سړې د هغه خیالاتو نه لذت حاصلوی لکه چه د یوې زنانه مینه په زړه کښې داسې ننوځی چه هغه د هغې د خیال نه لذت هم حاصلوی او هغې ته د رسیدلو اراده هم په زړه کښې ساتی خو د دې خیال مطابق ترې څه فعل نه صادر کیږی بلکه صرف خیال ئې راځی نو دا اختیاری قسم د امت محمد ﷺ نه خاص طور سره معاف کړې شو د رسول الله ﷺ د تکریم او تشرف، او د هغوی د امت د خیر امت کیدو د وجې نه خو عقائده فاسده او اخلاق ذمیمه هرګز په دې کښې داخل نه دی.

**دخاطرتعریف:** هر څه چه په زړه کښې راځی هغې ته خاطر وائی د دې جمع خواطر راځی.
دلته هغه خیالات مراد دی کوم چه په زړه کښې راځی،
دخاطراولنې تقسیم:دخاطردرې قسمونه دی.
① **وسوسه:** خیال راتلل ضعیف وی چه زړه ته د راتلو سره زائل شی دې ته وسوسه وائی په شریعت کښې دا د معفو عنها په درجه کښې دې.
② **تردد:** د وسوسې نه پورته درجه دا ده چه د هغه په خیال کښې داسې تردد وی چه د

هغې قصد اوکړی بیا ئې پرېږدی بیا قصد اوکړی بیا ئې پرېږدی. په خپل قصد باندې مستمر نه وی، د دې نوم تردد دې په دې باندې به هم مواخذه نه وی

④ **عزم:** د تردد نه پورته درجه دا ده چه په زړه کښې د پیدا کیدونکی خیال طرف ته ئې میلان پیدا شی او د هغې په مقتضاء باندې د عمل کولو کلکه اراده اوکړی هم د دې نوم عزم دې.

**دخاطر دویم تقسیم:** د تقسیم ثانی په لحاظ سره د خواطر پنځه اقسام دی. ۱: هاجس، ۲. خاطر، ۳: حدیث نفس، ۴: هم، ۵: عزم

① **هاجس:** یو څیز چه کله په زړه کښې ابتداء واقع شی او تیر شی د هغې نوم هاجس دې.

② **خاطر:** که هغه خیال په زړه کښې واقع کیدو سره گردش کوی د عمل او عدم عمل مطلقا څه رجحان پیدا نه شی نو د دې نوم خاطر دې.

③ **حدیث النفس:** که د انسان نفس د هغه خیال په وجه باندې د فعل او عدم فعل رجحان پیدا کړو خو په فعل یا عدم فعل کښې یو ته ترجیح رانشی نو د دې نوم حدیث نفس دې. دا درې واړه که د یو شر سره متعلق وی نو هیڅ باک نشته. که د خیر سره متعلق وی نو ثواب نشته ترڅو پورې چه ئې د درې واړو په مقتضا باندې عمل نه وی کړې

④ **هم:** که د انسان نفس د فعل او عدم فعل خبرې لره پیدا کولو سره جانب فعل ته ترجیح ورکړی خو هغه ترجیح قوی نه وی بلکه د وهم په شان مرجوح وی نو دې ته هم وائی. د دې شرعی حکم دا دې چه که د دې تعلق د امر خیر سره وی نو په دې باندې به ثواب مرتب کیږی او که د شر سره متعلق وی نو په دې باندې به هیڅ عقاب نه وی ترڅو چه ئې عمل نه وی کړې

⑤ **عزم:** که د فعل جانب ته قوی ترجیح راشی چه انسان د فعل د ارتکاب مصمم او کلکه اراده اوکړی او په ترک فعل باندې قدرت نه ساتی نو دې ته عزم وائی. د دې حکم شرعی دا دې چه که د عزم مصمم دپاره د ارتکاب د فعل تعلق د فعل خیر سره وی نو په دې باندې به ثواب ملاویږی او که د شر سره وی نو په دې باندې به مواخذه او عقاب وی.

دا پنځه واړه قسمونه یو شاعر سره د حکم نه داسې بیان کړی دی:

مراتب القصد خمس هاجس ذکروا　　فخاطر فحدیث النفس فاستمعا

یلیه هم فعزم کلها رفعت　　سوی الاخیر ففیه الاخذ قد وقعا

**د عزم دوه قسمونه:** ① هغه عزم چې د باطنی اعمالو سره متعلق وی بیا دحکم په اعتبار سره دا په دوه قسمه دی.

(الف) کوم چه مفضی الی الکفر دی لکه په وحدانیت او نبوت کښې شک کول، دا کفر دې. په دې قسم باطنی اعمالو باندې به عقاب وی.

(ب) هغه عزم چه د قلوب سره متعلق وی کوم چه مفضی الی الکفر نه دی لکه کبر، ریاء، شهرت، عجب، حسد وغیره. دا څیزونه د کفر په درجه کښې نه دی خو د معصیت په درجه کښې ضرور دی لکه چه د جمهورو مسلک دې.

امام حسن بصری رحمه الله فرمائی چه په دې کښې بعض لکه په مسلمانانو باندې بدګمانی کول او حسد کول په دې باندې به هیڅ عقاب نه وی بلکه دا د معفو عنه په درجه کښې دی. ځکه چه دا د هغه څیزونو نه دی چه د هغې په لرې کولو باندې انسان قادر نه دې خو د جمهورو وینا دا ده چه مجاهده بالنفس کولو سره به هغه څیزونه پرېخودلې شی.

② چې عزم د اعمال جوارح سره متعلق وی لکه زنا، غلا وغیره، په دې قسم کښې د علماء کرامو اختلاف دې. د امام شافعی رحمه الله نه منقول دی چه د زنا او سرقه به صرف په عزم کولو سره مواخذه نه وی لکه چه په دې حدیث کښې دی چه صرف په وسوسو سره به مواخذه نه وی بلکه د هغې په مقتضی باندې عمل کولو سره به مواخذه وی. اکثر علماء کرام چه په هغوی کښې سفیان ثوری رحمه الله او ابن المبارک رحمه الله قابل ذکر دی په نزد به په عزم بالجزم (کلکه اراده) باندې مواخذه وی لکه چه په قرآن کریم کښې دی ﴿ وَلَكِنْ يُؤَاخِذُكُمْ بِمَا كَسَبَتْ قُلُوبُكُمْ ﴾

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [٦٣]په وسوسو باندې عدم مواخذه

٦٣ -()[1]① عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "②«إِنَّ اللَّهَ تَجَاوَزَ عَنْ أُمَّتِي مَا وَسْوَسَتْ بِهِ صُدُورُهَا، ③ مَا لَمْ تَعْمَلْ بِهِ، أَوْ تَتَكَلَّمْ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي رسول الله ﷺ وفرمایل ②حقیقت دا دي چې الله تعالی جل جلاله زما د امت د خلقو هغه وسوسي معاف کړي دي کومي چې د هغوئ په زړونو کښي پیدا کیږی ③تر څو پورې چې هغوئ په هغه وسوسو باندې عمل ونه کړي او هغه په ژبه رانه وړي. بخاري مسلم

**حل اللغات:** ① تَجَاوَزَ: أَيْ: عَفَا: معاف کړی ئې دی، ② وَسْوَسَتْ: مَا خَطَرَ فِي قُلُوبِهِمْ مِنَ الْخَوَاطِرِ الرَّدِيئَةِ: د وسوسو نه مراد هغه خراب خیالات دی کوم چه غیر اختیاری د مسلمان په زړه کښې راځی.

[1] ) اخرجه البخاری کتاب العتق/باب الخطأ والنسیان فی العتاقة والطلاق ونحوه، ولا عتاقة إلا لوجه الله(رقم: ٢٥٢٨) ومسلم کتاب الإیمان/ باب تجاوز الله عن حدیث النفس والخواطر بالقلب، إذا لم تستقر(رقم-٢٠٢ - (١٢٧) وابوداود کتاب الطلاق/باب فی الوسوسة بالطلاق(رقم-٢٢٠٩) والنسائی کتاب الجهاد/باب: من طلق فی نفسه (رقم-٣٤٣٤) والترمذی کتاب الرضاع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-١١٧٣) وابن ماجة کتاب النکاح/ باب من طلق فی نفسه ولم یتکلم به (رقم-٢٠٤٠)واحمد فی المسند ٣٩٣/٢.

**تسهیلات:**

**قوله: مَاوَسْوَسَتْ بِهِ صُدُورُهَا:**

**د مذکوره جملې ترکیب:** صدورها مرفوع دې. کوم چې د وسوست فاعل دې. او هم دا راجح دی. یا منصوب دې د ظرفیت په بنیاد باندې او فاعل محذوف دې [أي ماوسوست الشیاطین به في صدورها] د ها ضمیر امت طرفته راجع دې او امت څخه مراد امت اجابت دې، امت دعوت یعنی کفار مراد نه دی.

**په عزم باندې مواخذه:** شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله فرمائي چې دلته د عزم څخه علاوه وسوسه مراد ده، عزم باندې مواخذه د نورو نصوصو په وجه شته، لکه [والإثم ماحاك في نفسك وتردد] او یا حدیث [فالقاتل والمقتول في النار قیل الخ] دې حدیث پاك کښې مقتول هم مجرم ګرځولې شوې دې، ځکه چې هغه حریص وو، دخپل رور په قتل باندې کوم چې د عزم درجه ده. خلاصه دا شوه چې مذکوره حدیث پاك څخه په ظاهره د عزم درجه هم معاف ده. خو د نورو نصوصو په وجه عزم مستثنی ګرځولې شوې دې. [شعة المعات: ۱/۱۸۵]

**اشکال:** په قرآن پاک کښې دی ((وَنَعْلَمُ مَا تُوَسْوِسُ بِهِ نَفْسُهُ)) د دې آیت څخه معلومیږی چې په مطلق خیالاتو باندې هم مواخذه شته ځکه چې داسې تعبیرپه مواخذه باندې دلالت کوی لکه بل حدیث کښې راځی ((نحن اعلم بما کانوا یعملون))

**د اشکال جواب:** ددې آیت څخه مقصود په وسوسه باندې مواخذه مقصود نه دې بلکه مقصود د الله تعالی کمال علمی دې چې الله تعالی د زړونو پټ خیالاتو باندې هم پوهیږی.

**قوله: أَوْتَتَكَلَّمْ:**

**د زړه په غلطو عقائدو مواخذه:** یعنی که هغه کار قول سره تعلق لری نو تر کومې چې کلام کړې نه دې صرف وسوسه ده نو دا معاف ده، معلومه شوه چې کوم اقوال او افعال او اعمال دَ جوارحو څخه علاوه قلبی عقائدو وغیره سره تعلق لری نو هغه هر وخت ګناه ده.

### [٦٤] د وسوسې څخه ویره د ایمان نښه ده

۶۴ - ()[۲][۱] وَعَنْهُ قَالَ: ((جَاءَ نَاسٌ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -، فَسَأَلُوهُ: [۲] إِنَّا نَجِدُ فِي أَنْفُسِنَا مَا يَتَعَاظَمُ أَحَدُنَا أَنْ يَتَكَلَّمَ بِهِ! [۳] قَالَ: "أَوَقَدْ وَجَدْتُمُوهُ؟" قَالُوا: نَعَمْ. قَالَ: (ذَلِكَ صَرِيحُ الْإِيمَانِ))». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

[۱]) اخرجه مسلم کتاب الایمان باب بیان الوسوسة في الإیمان وما یقوله من وجدها(رقم-۲۰۹ - (۱۳۲)

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهریره ﷺ وایي چې یوه ورځ د رسول الله ﷺ یو څو صحابه (رضي الله عنهم) د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض یې اوکړو ② چې مونږ په خپلو زړونو کښې بعضې داسې خبرې (یعنې وسوسې) لرو چې د کومو په ژبه راوړل هم مونږ بد ګڼو ③ نبی کریم ﷺ پوښتنه وکړه چې آیا تاسو واقعة داسې لرئ (چې کله څه داسې وسوسه ستاسو دننه پیدا کیږی نو خپله ستاسو زړه هغه نه خوښه وي او هغه په ژبه هم تاسو راوړل بد ګڼئ؟) صحابوو ﷺ عرض اوکړو چې هو، نو نبی کریم ﷺ وفرمایل چې دا ښکاره ایمان دي. مسلم.

**حل اللغات:** ① نَجِدُ: د موندلو نه مراد هغه خیالات او وسوسې دی کومې چه زړه ته راځی، ② يَتَعَاظَمُ: أَشْيَاءَ قَبِيحَةً: د لوئې ګڼړلو او بد ګڼړلو نه مراد هغه ناجائزه خبرې دی چه دهغې ښکاره کول بد ګڼړلې کیږی، ③ صَرِيحُ الْإِيمَانِ: ښکاره ایمان (یعنی دا خبرې ښکاره کول بد ګڼړل د ښکاره ایمان نښه ده).

**تسهيلات:**

**قوله: مَا يَتَعَاظَمُ:**

**د وسوسې خطرناک ګڼړل:** یعنی دَدې تصور اودا په ژبه باندې راوستل مونږ ډیرلوئی جرم ګڼړو لکه چه څوك اووائی "من خلق الله كيف هو؟ أين هو؟ تعاظم دَباب تفاعل نه دَ مبالغې دَپاره راغلې دې. "ای نستعظم غاية الاستعظام"

**قوله: "أَوَقَدْ وَجَدْتُمُوهُ؟":**

**د همزه نوعیت:** دا همزه استفهامیه دې او واو عاطفه دې معنی ئې دا ده چې ((أي أوقد حصلتموه وقد وجدتموه)) آې رښتیا داسې خیالات تاسو محسوسوئ

**د وجدتموه په مرجع کښې دوه احتمالات:** ① ددې مرجع يتعاظم دې او د ,,ذلک،، مشاراليه هم يتعاظم ده مطلب دا شو چې آیا تاسو رښتیا دا وسوسې ګرانې اوخطرناکې ګڼړې که داسې وی نو یقیناً دا صریح ایمان دې.ځکه چې ددې وسوسو څخه ویره کول اودا سختې ګڼړل الله تعالی او دهغه رسول سره د زیات محبت نښه ده چې دهغوی د شان خلاف وسوسه راتلل هم نه خوښوی.

② د ضمیرجمع وسوسه ده او د،، ذلک،، مشار الیه هم وسوسه ده په دې صورت کښې مطلب دا دې چې رښتیا تاسو ته وسوسې راځی نوصحابؤ جواب کښې اوویل آو داسې وسوسې مونږ ته راځی نو نبی عليه السلام اوفرمائیل دا صریح او ښکاره ایمان دې ځکه چې شیطان د غل پشان دې اوغل د هغه کورڅخه غلا کوی په کوم کښې چې سامان وی نوشیطان هم هغه زړه ته وسوسه غورځوی چې په هغې کښې ایمان وی.

## [٦٥] د شیطان وسوسي په صورت کښې د الله ﷻ څخه پناه غوښتل

۶۵-()[۳]① وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②«يَأْتِي الشَّيْطَانُ أَحَدَكُمْ، فَيَقُولُ: مَنْ خَلَقَ كَذَا؟ حَتَّى يَقُولَ: مَنْ خَلَقَ رَبَّكَ؟ ③فَإِذَا بَلَغَهُ، فَلْيَسْتَعِذْ بِاللَّهِ، وَلْيَنْتَهِ» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**① او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل② په تاسو کې بعضېو سړو ته شيطان راځي او دا وايي چې فلاني فلاني شي چا پيدا کړيدي او هغه شي چا پيدا کړيدي؟ ترديي چې بيا هغه داسې وايي چې ستا پروردګار چا پيدا کړي دي؟ ③هر کله چې نوبت دي ځاي ته راشي نو هغه ته پکار دي چې د الله څخه پناه وغواړي او دا سلسله ختمه کړي. بخاري مسلم

**حل اللغات:** ① بَلَغَهُ: إِذَا بَلَغَ أَحَدَكُمْ هَذَا الْقَوْلَ: کله چې نوبت دې ځائې ته راشی، تردې حده راورسیږی. ② فَلْيَسْتَعِذْ: د شيطان نه دې پناه اوغواړی، ③ وَلْيَنْتَهِ: أَيْ: لِيَتْرُكِ التَّفَكُّرَ: منع دې شی او داسې قسم سوچ اوفکر دې پرېږدی.

**تسهیلات:**

**قوله: فَإِذَا بَلَغَهُ:**

**د ضمیرپه مرجع کښې دوه احتمالات:** ① ضمیر مرفوع شیطان طرفته راجع دې، یعنی کله چې شیطان لمسون کښې دې ځائې ته رااورسی نو تاسو الله ﷻ سره پناه غواړئی دشیطان څخه.

② په دې کښې فاعل ضمیر مرفوع دې کوم چې أحدکم طرفته راجع دې. او ''ه''ضمیر د مفعول به دې. [أي إذا بلغ أحدكم هذا القول] یا

**قوله: فَلْيَسْتَعِذْ بِاللَّهِ:**

**د شیطان په مقابله خپل ځان الله تعالی ته سپارل:** علامه خطابی رحمه الله فرمائی چې د شیطان ددې اغوا او د ده د وسوسو دا سلسله غیر متناهی ده. که هغه ته مهلت ورکړې شی نو دا معامله به ختمه نشی. بلکه وخت په وخت په خطرناکه کیږی. لهذا استعاذه اوکړئی او معامله ختمه کړئی. ځکه چې هغه د تعوذ څخه تښتی. یعنی اعوذبالله ا ومعوذیتن اووائې او دا تصور اوکړئی چې څه دلوئې بادشاه په پناه کښې راغلم، هغه به دشیطان څخه زما حفاظت کوی دې سره به وسوسې ختمې شی.[الکاشف ۱/۲۱۸]

**د شیطان څخه د حفاظت لس وظیفې:** علامه ابن قیم رحمه الله دَ تعوذاتو (وسوسو) دپاره لس وظیفې تعین فرمائیلی دی.

---

۱) اخرجه البخاری کتاب بدء الخلق /باب صفة إبليس وجنوده(رقم: ۳۲۷۶) ومسلم کتاب الایمان باب بیان الوسوسة فی الإیمان وما یقوله من وجدها(رقم-۲۱٤ - (۱۳٤)

① د الله تعالی په ذات پناه غوښتل ② د قرآن پاک د آخری دوو سورتونو لوستل
③ قراءت آیة الکرسی ④ قراءت سورة البقرة
⑤ آمن الرسول لوستل ⑥ حم المؤمن والیه المصیر پورې لوستل
⑦ د الله ذکر په کثرت سره کول ⑧ کثرت سره لا اله الا الله وئیل
⑨ اودس باندې مداومت کول ⑩ د غیرمحرمو څخه د خپل نظر حفاظت کول

## [٦٦] د شیطان د وسوسې ختمولو علاج

۶۶ -( ) [۳] ① وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② لَا يَزَالُ النَّاسُ يَتَسَاءَلُونَ حَتَّى يُقَالَ: هَذَا خَلَقَ اللَّهُ الْخَلْقَ؟ فَمَنْ خَلَقَ اللَّهَ؟ فَمَنْ وَجَدَ مِنْ ذَلِكَ شَيْئًا ③ فَلْيَقُلْ: آمَنْتُ بِاللَّهِ، وَرُسُلِهِ" مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ① او حضرت ابوهریره ﷺ روایت کوي چې رسول اکرم ﷺ وفرمایل ② خلق همیشه په خپل زړونو کښې د مخلوقاتو وغیره په باره کښې خیالات زغلوي، تر دې چې وبه ویل شی (یعني په د ماغو کښې به یې دا وسوسه راشي) چې دا ټول مخلوق الله پیدا کړي دي (نو) الله چا پیدا کړي دي؟ د کوم سړي په زړه او په دماغ کښې چې ددې قسم څه خیال یا وسوسه پیدا شي ③ نو هغه دې دا اووائي چې ما په الله تعالی او د هغه په رسول ایمان راوړي. بخاري مسلم

**حل اللغات**: ① يَتَسَاءَلُونَ: أَيْ: يَسْأَلُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا: د یوبل نه به تپوسونه کوی.

**تسهیلات:**

**قوله**: يَتَسَاءَلُونَ:

**په یتساءلون کښې درې احتمالات:** ① انسان دخپل نفس څخه سوال کوی [یقال هذا خلق الله الخلق] هذا مبتدا ده، خبر محذوف دې کوم چې معروف یا مشهور دې.
② یعنی انسانان خپلو کښې د یوبل څخه تپوسونه کوی،
③ انسان د شیطان شیطان سره مکالمه کوی خو دا احتمال بعید دې چې د انسان او شیطان په مینځ کښې دامکالمه وی،

**قوله**: فَلْيَقُلْ: آمَنْتُ بِاللَّهِ، وَرُسُلِهِ

**د مذکوره وسوسې علاج**: یعنی داسوال او جواب او داخیال د کفر دې، په دې وجه مسلمان له پکار دی چې زر تر زره امنت بالله ورسله اووائی. چې دې سره دده د ایمان تجدید اوشی.
**د سوسوې دفع کولو بله وظیفه**: د سوسې د دَفع کولو یو علاج داهم دې چې د هر مونځ نه پس

(1) اخرجه مسلم کتاب الایمان باب بیان الوسوسة فی الإیمان وما یقوله من وجدها(رقم-۲۱۲ - (۱۳٤)) وابوداود کتاب السنة /باب فی الجهمیة(رقم-٤٧٢١)

دا آيت اووائی او دم کړی نو وسوسه به نه راځی هغه آيت مبارك [وَقُلْ رَبِّ أَعُوذُ بِكَ مِنْ هَمَزَاتِ الشَّيَاطِينِ ۝ وَأَعُوذُ بِكَ رَبِّ أَنْ يَحْضُرُونِ ۝]

## [٦٧] د هر انسان سره د شيطان او فرښتې مقررتيا

٦٧-()[٥] [١] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[٢] «مَا مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا وَقَدْ وُكِّلَ بِهِ قَرِينُهُ مِنَ الْجِنِّ، وَقَرِينُهُ مِنَ الْمَلَائِكَةِ». [٣] قَالُوا: وَإِيَّاكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: وَإِيَّايَ، وَلَكِنَّ اللَّهَ أَعَانَنِي عَلَيْهِ فَأَسْلَمَ، فَلَا يَأْمُرُنِي إِلَّا بِخَيْرٍ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابن مسعود ﷺ روايت کوي چې رسول اکرم ﷺ وفرمايل [٢] په تاسو کې هيڅ يو سړي داسي نشته چې هغه سره يو د شيطانانو څخه او يو د فرښتو څخه مقرر شوې نه وي، [٣] صحابؤ ﷺ عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ آيا ستا سره هم؟ رسول الله ﷺ وفرمايل زما سره هم ليکن الله ماته ده هغه (جن مؤکل) سره د مقابلې کولو مدد راکړي دي، ځکه زه د هغه (د مکر و دهوکه او ګمراهئ) څخه محفوظه يم، بلکه تر دې پورې چې هغه هم ماته د نيکي مشوره راکوي. مسلم

**حل اللغات:** ① وُكِّلَ: بِمَعْنَى التَّسْلِيطِ: دا دَ مجهول صيغه ده، د تسلط او تابع کولو په معنی کښې دې. ② قَرِينُهُ: ملګری او همزاد ته وائی چه هميشه ورسره لازم اوسيږی جدا کيږی ترينه نه. ③ أَعَانَنِي: زما امداد او نصرت کړې دې (الله تعالى). ④ فَأَسْلَمَ: چه د ميم په ضمې سره دَ متکلم صيغه شی نو معنی ئې ده: أَيْ: أَسْلَمُ أَنَا مِنْهُ: زه دهغه نه (يعنی شيطان نه) محفوظ ساتلې شوې يم، اوکه د ميم په فتحې سره شی نو د ماضی صيغه ده، معنی ئې ده: مسلمان شو، تابعدار شو (شيطان).

**تسهيلات:**

**قوله:** وُكِّلَ بِهِ قَرِينُهُ:

**د پيدائش د وخت څخه د انسان دوه ملګری:** قرين همزادته وائی چه دَ پيدائش دَ وخت نه انسان سره لګيدلې وی دې دَپاره چه هغه مسخرکړی او خپل تابع ئی جوړکړی. کوم وخت چه انسان پيدا کيږی نو دَهغه دَ پاره يوشيطان اويوه فرښته مقررکولې شی. فرښته ته ملهم الخير وائی اوشيطان ته اهرمن وائی

**قوله:** فَأَسْلَمَ:

**اشکال:** قاضی عياض رحمه الله فرمائی چې اسلم دَماضی صيغه ده يعنی شيطان مسلمان شوې دې.

---

[١]) اخرجه مسلم کتاب صفة القيامة والجنة والنار/باب تحريش الشيطان وبعثه سراياه لفتنة الناس وأن مع کل إنسان قرينا(رقم-٦٩ - (٢٨١٤)) واحمد في المسند ٣٨٥/١

**دا شکال جوابونه:** شیطان څنګه مسلمان شوې دې؟

① علامه خطابی رحمه الله دا هم دَ متکلم مجهول صیغه ده یعنی زه دَده دَ شرنه محفوظ شوې یم.

② بعضې عالمانو اسلم دَ ماضی په صیغه راجح ګرځوی اودَ اسلام راوړلو مطلب دادې چه هغه منقاد مطیع اوفرمانبردارشو. یعنی اسلم څخه لغوی معنی مراد ده شرعی معنی مراد نه ده.

**[۶۸]په انسانی بدن کښې د شیطان تصرف**

۶۸ -()[۲]① وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② " إِنَّ الشَّيْطَانَ يَجْرِي مِنَ الْإِنْسَانِ مَجْرَى الدَّمِ " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①او حضرت انس رضی الله عنه وايي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل② په انسان کښې شیطان داسې زغلي لکه څنګه چې په رګونو کښې وینه ګرځلاؤ کوي. بخاري اومسلم

**حل اللغات:** ① يَجْرِي: أيْ: يَسْرِي: ګرځی، روان وی. ② مَجْرَى الدَّمِ: مجرٰی مصدر میمی دې، یعنی ګرځی په شان د ګرځیدو د وینې.

**تسهیلات:**

**قوله: يَجْرِي مِنَ الْإِنْسَانِ مَجْرَى الدَّمِ:**

**په انسانی رګونو کښې د شیطان په جریان کښې دوه احتمالات:**

① دا کلام په حقیقت باندې مبنی دې چې شیطان پخپله دننه داخل شی او وینې سره ګرځی. کوم ځائې ته چې وینه ځی نو هلته شیطان هم ځی. بیا به کلام دا شان وی چې [يجرى من الإنسان كجريان الدم أو يجرى فى مجارى الدم] نو پخپله دننه ځی اووسوسې اچوی، دا دې خبیث ته الله تعالی یو قوت او سطوت او په انسانانو باندې د قابو موندلو اختیار ورکړې دې او دا یو آزمیښت دې.

②کوم کوم ځائې کښې چې په رګونو کښې وینه ګرزی، نو دې ته مجری الدم وئیلې شوې دې. دا کلام تشبیه ده نو په مجاز باندې محمول دې او مجری به مصدر میمی وی یعنی شیطان هغه ځائې پورې وسوسې اچوی کوم ځائې پورې چې وینه ځی

[۱] اخرجه البخاری کتاب بدء الخلق باب صفة إبليس وجنوده(رقم: ۳۲۸۱) ومسلم کتاب السلام/باب بیان أنه يستحب لمن رئى خاليا بامرأة وكانت زوجته أو محرما له أن يقول هذه فلانة ليدفع ظن السوء به(رقم-۲۳ - (۲۱۷٤) وابوداود کتاب الصوم /باب المعتكف يدخل البيت لحاجته(رقم-۲٤۷۰) وابن ماجة كتاب الصيام/باب باب فى المعتكف يزوره أهله فى المسجد (رقم-۱۷۷۹) واحمد فى المسند ۱۵۶/۳.

**[٦٩] د پيدايش په وخت د ماشوم د ژړا سبب**

۶۹-()[۷] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "② «مَا مِنْ بَنِي آدَمَ مَوْلُودٌ إِلَّا يَمَسُّهُ الشَّيْطَانُ حِينَ يُولَدُ، فَيَسْتَهِلُّ صَارِخًا مِنْ مَسِّ الشَّيْطَانِ، ③ غَيْرَ مَرْيَمَ وَابْنِهَا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د بني آدم کره چې کوم ماشوم هم پيدا کيږي شيطان هغه ته رسيږي چې د هغه په وجه ماشوم چغې وهي، ③ ليکن ابن مريم (حضرت عيسي ﷺ) او د هغه مورته شيطان ندي رسيدلي. بخاري مسلم

**حل اللغات:** ① مَوْلُودٌ: زيږولې شوې يعني پيدا شوې ماشوم. ② يَمَسُّهُ: ددې نه حسي مس مراد دې، يعني ظاهري طورسره ئې سکونډي، نوکارې پرې لګوي. ③ فَيَسْتَهِلُّ: أَيْ: يَصِيحُ: چغې وهي. ④ صَارِخًا: رَافِعًا صَوْتَهُ بِالْبُكَاءِ: په اوچت آواز سره ژاړي،

**تسهيلات: قوله:** فَيَسْتَهِلُّ صَارِخًا:

**د ماشوم د چغې وهلو دوه احتمالات:** ① که شيطان په ظاهري طور سره ماشوم مس کوي نو په ده سکونډارې او ټونګې لګولو سره ماشوم چغې وهي.
② که مس ظاهري نه بلکه باطني وي نو بچې معصوم او پاك طبيعت والا وي د شيطان د وسوسو ځنه ناواقف وي، نو دې غير مانوس ګڼړي او چغې وهي. استهلال د نومولود ماشوم چغو ته وائي.

**قوله:** غَيْرَ مَرْيَمَ وَابْنِهَا:

**د عيسى عليه السلام د شيطان د مس ځنه حفاظت:** د مريم عليها السلام مور بي بي دا دعا کړې وه چې [وَإِنِّي سَمَّيْتُهَا مَرْيَمَ وَإِنِّي أُعِيذُهَا بِكَ وَذُرِّيَّتَهَا مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ] الله تعالى ئې دا دعا قبوله کړه نو محفوظ شو،

**اشکال:** ددې حديث ځنه معلوميږي چې نبی ﷺ د شيطاني مس ځنه مستثنى نه دې بلکه دوی هم شيطان مس کړی دی.

**داشکال ځلور جوابونه:** ① د نبی ﷺ قرين او شيطان مسلمان شوې وو
② متکلم عادةً د محاورهٔ کلام ځنه پخپله خارجيږي. ګنی نبی کريم ﷺ هم ددې مس ځنه محفوظ وو.

[1] اخرجه البخاري كتاب احاديث الأنبياء/ باب قول الله تعالى {واذكر في الكتاب مريم إذ انتبذت من أهلها مكانا شرقيا} [مريم: ۱۶](رقم-۳۴۳۱) ومسلم كتاب الفضائل/باب فضائل عيسى عليه السلام(رقم-۱۴۶)واحمد في المسند ۲۳۳/۲

④ دا جزئي فضيلت دې، چې په دې باندې هيڅ اعتراض نه واقع كيږي.
④ د نبي عليه السلام د شيطاني مس څخه حفاظت په دلالت النص سره ثابت دی ځکه چې نبي عليه السلام د عيسى عليه السلام او بي بي مريم څخه افضل دې نو هركله چې هغه دواړه د مس څخه محفوظ دی نو نبي عليه السلام به په طريقه اولى سره محفوظ وی.

٧٠ -(١)[٨] ١ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "٢«صِيَاحُ الْمَوْلُودِ حِينَ يَقَعُ نَزْغَةٌ مِنَ الشَّيْطَانِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت كونكي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ چې د پيدا كيدو په وخت كې ماشوم ځكه ژاړي چې شيطان يې په تشي وهي (يعني داد ماشوم ژړا د شيطان د اثره څخه ده). بخاري مسلم

**حل اللغات:** ① صِيَاحُ: چغې وهل، ② يَقَعُ: أَيْ: يَسْقُطُ: چه راغورځيږي، دمور نه جدا كيږي، ③ نَزْغَةٌ: أَيْ: إِصَابَةٌ بِمَا يُؤْذِيهِ: شيطان ئې مس كوی سكونډی او نوكارې پرې لګوی.

**[٧١] د ښځې او خاوند په مينځ كښې د شيطان بيلتون راوستل**

٧١ -(٢)[٩] ١ وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "٢«إِنَّ إِبْلِيسَ يَضَعُ عَرْشَهُ عَلَى الْمَاءِ، ٣ثُمَّ يَبْعَثُ سَرَايَاهُ يَفْتِنُونَ النَّاسَ، ٤ فَأَدْنَاهُمْ مِنْهُ مَنْزِلَةً أَعْظَمُهُمْ فِتْنَةً يَجِيءُ أَحَدُهُمْ فَيَقُولُ: فَعَلْتُ كَذَا، وَكَذَا فَيَقُولُ: مَا صَنَعْتَ شَيْئًا. ٥ قَالَ: ثُمَّ يَجِيءُ أَحَدُهُمْ فَيَقُولُ: مَا تَرَكْتُهُ حَتَّى فَرَّقْتُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ امْرَأَتِهِ. قَالَ: فَيُدْنِيهِ مِنْهُ، وَيَقُولُ: نَعَمْ أَنْتَ" ٦ قَالَ الْأَعْمَشُ: أُرَاهُ قَالَ: "فَيَلْتَزِمُهُ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ او حضرت جابر رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ شيطان د خپل حكومت تخت په اوبو (يعني په سمندر) باندې لګوي ٣ او بيا دهغه ځاي څخه خپل فوځونه روانه كوي چې خلق په فتنه او فساد كې اخته كړي، ٤ د هغه په فوځونو كښې د شيطان د ټولو څخه زيات نزدي هغه دي چې د ټولو څخه لو فتنه پيدا كونكي وي، په هغوئ كښې يو واپس راشي او وايي ما فلاني فلاني فتني پيدا كړي دي، شيطان د هغه په جواب كې وايي تا خو هيڅ ونه كړل، ٥ حضور ﷺ فرمايي چې بيا په هغوئ كښې يو راشي او وايي (ما ديو بنده بې لاري كول شروع كړل او) تر هغه وخت پورې مې هغه پرې نه ښودلي تر دي چې د هغه او د هغه د ښځې په مينځ كښې مې جداوالي راوستي، حضور ﷺ فرمايي شيطان (په دي اوريدو سره) هغه ځان ته نزدي كينوي ورته وايي چې تا ښه كار كړيدي، (د حديث يو روايت كونكي) ٦ اعمش رحمه الله وايي زما خيال دي جابر

[١] اخرجه مسلم كتاب الفضائل/باب فضائل عيسى عليه السلام(رقم-١٤٨ - (٢٣٦٧))
[٢] اخرجه مسلم كتاب صفة القيامة والجنة والنار/باب تحريش الشيطان وبعثه سراياه لفتنة الناس وأن مع كل إنسان قرينا(رقم-٦٧ - (٢٨١٣))واحمد في المسند ٣١٤/٣

ﷺ د (فَيُدْنِيه) په ځاي د (فَيَلْتَزِمُهُ) (نو شيطان هغه ځان ته را ترغاړه با شي) دا لفظونه نقل کړي وي. مسلم

**حل اللغات:** ① عَرْشَهُ : أَيْ: سَرِيرَهُ: تخت، ② سَرَايَاهُ : د سَرِيَّة جمع ده، ډله، جماعت، ③ يَفْتِنُونَ : أَيْ: يُضِلُّونَهُمْ: گمراه کوی خلق، ④ فَأَدْنَاهُمْ: أَيْ: أَقْرَبُهُمْ: تولو کښې نزدې په لحاظ د مرتبې سره، ⑤ مَنْزِلَةً : په مرتبه کښې، ⑥ أَعْظَمُهُمْ: أَيْ: أَكْبَرُهُمْ إِضْلَالًا: غټ گمراه کونکې، ⑦ فَيَلْتَزِمُهُ: أَيْ فَيُعَانِقُهُ: ځان ته ئې نزدې کوی او غاړه ورته ورکوی.

**تسهيلات:**

**قوله: يَضَعُ عَرْشَهُ عَلَى الْمَاءِ:**

د تخت په کيخودو کښې دوه احتمالات: ① دا کلام په حقيقت باندې حمل کړې دې چه ابليس په سمندر باندې تخت خوره وی په هغې کينی، خپل اولاد دَ کاروائی دَپاره روانه وی لکه دا خبيث خپل حيثيت دَالله تعالى په مقابله کښې پيش کوی. دَدې تائيد په هغه روايت سره کيږی په کوم کښې چې د ابن صياد ﷺ نه حضورپاك ﷺ پوښتنه اوکړه. "ماذا ترى قال أرى عرشا على الماء فقال ترى عرش ابليس على البحر"

② دَ ابليس تخت په اوبو باندې دکيخودو پوره صورت مجاز دې دلته تسلط اوقدرت مراد دې

**قوله: فَرَّقْتُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ امْرَأَتِهِ:**

**اشکال:** شيطان د مسلمان په قتل باندې دومره نه خوشحاليږی څومره چې په تفريق بين الزوجين باندې خوشحاليږی ددې څخه وجه ده؟

**د اشکال درې جوابونه:** ① په دې سره ابليس ځکه ډيرخوشحاليږی چه دَ ښځې خاوند مينځ کښې جګړه داسې يومتعدی عمل دې په کوم سره چه په طرفينو کښې ډيرې جګړې اوفسادونه پيداکيږی نودا يو فساد نه بلکه دَډيروفسادو جرړه ده په کوم سره چه شيطان خوشحاليږی.

② بعضې وخت چې تفريق راشی نو زوجينو ته د نوې نکاح موقع په لاس ورنشی اوهريو ښځه اوخاوند په زنا کښې مبتلا شی اوبيا د زنا دا سلسله جاری پاتې شی نو په دې وجې شيطان د زنا په مداومت باندې خوشحاليږی اوپه قتل کښې چې قصاص واخستلی شی نو قصه ختمه شی.

③ دتفريق څخه په طلاق سره تفريق مراد نه دې بلکه دواړه د يوبل په نکاح کښې وی خو ژوند ئې د ښځې او خاوند نه وی بلکه عمر ئې عذاب وی ددې وجې ددې بد اثر په اولاد او په دواړو خاندانو باندې پريخوی.

**قوله:** لَعَمْ أَنْتَ:

**په مذکوره جملې کښې دوه احتمالات:** ① دا دَ افعال مدح نه دی یعنی نعم الولد أنت ته څومره ښه بچې ئې؟ څه ښه ئې؟ اوبیا هغه سینې سره لګوی.

② دا حرف ایجاب دَ آو په معنی کښې دې په دې صورت کښې به معنی دا وی چې یعنی ابلیس وائی چه آو کارخوهم تاکړې دې په دې صورت کښې

**[۷۲] په جزیرة العرب کښې د شیطان اختلاف بین المسلمین خوروول**

۷۲ ـ()[۱۰] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " [۲] «إِنَّ الشَّيْطَانَ قَدْ أَيِسَ مِنْ أَنْ يَعْبُدَهُ الْمُصَلُّونَ فِي جَزِيرَةِ الْعَرَبِ، [۳] وَلَكِنْ التَّحْرِيشَ بَيْنَهُمْ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] شیطان د دې خبري څخه نا امیده شوې دي چې په جزیره عرب کښې مونځ ګزاره (یعني مسلمان) د هغه عبادت وکړي [۳] لیکن دهغوئ په مینځ کښې دفتنه او فساد دخوړولو څخه نه دي نا امیده شوي. مسلم

**حل اللغات:** ① أَيِسَ: أَيْ: صَارَ مَحْرُومًا: نا اُمیده او محرومه شوې دې، التَّحْرِيشَ: أَيْ: فِي إِغْرَاءِ بَعْضِهِمْ عَلَى بَعْضٍ: چه یوبل سره ظلم زیاتې او جګړې کوی.

**تسهیلات:**

**قوله:** الْمُصَلُّونَ:

**د مصلون څخه مراد:** یعنی مونځ کونکی دَ دې نه مراد مسلمون دې، نودَمسلمان اهم عبادت اودَاسلام اهم جز مونځ ئی ذکرکړو او اشاره ئی اوکړه چه مسلمان هغه دې څوك چه مونځ کوی. دَ شیطان دَعبادت نه مراد شرك اودَ بتانوعبادت دې.

**اشکال:** شبه داپیدا کیږی چه دَحضورپاك دَانتقال نه پس په جزیرهٔ عرب کښې ۷۵ فیصد خلق دَاسلام نه اوړیدلې وو. چادَ زکوة نه انکاراوکړو یائی دَ مسیلمه کذاب یا اسودعنسی یا طلیحه یا سجاح دَ دروغو دَ نبوتونوملګرتیااوکړه اودَ ارتداد فتنه عام شوه نو بیا ئی داځنګه اوفرمائیل چه شیطان نااميده شوې دې چه بیا په جزیرهٔ عرب کښې دَهغه عبادت شروع شی؟

**داشکال څلور جوابونه:** ① په جزیرهٔ عرب کښې دَ اسلام دَ انقلاب نه پس دَ کفردَ انقلاب نه نااميده شو چه اوس دلته دَ دور جاهلیت او کفر انقلاب نه شی راتلې سره دَدې چه

---

[۱] ) اخرجه مسلم فی کتاب صفة القیامة والجنة والنار / باب تحریش الشیطان وبعثه سرایاه لفتنة الناس وأن مع کل إنسان قرینا(رقم-۶۵ - (۲۸۱۲))واحمد فی المسند ۳/۳۱٤ والترمذی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ باب ما جاء فی التباغض (رقم-۱۹۳۷)واحمد في المسند ۳/۳۱٤

گناهونه اوفساد به کیږی. دَ جزیرې قید ئې ځکه اولګولو چه هغه وخت اسلام صرف هم هلته وو.

② داناامیدی دَ بت پرستئی دَعبادت نه ده چه په جزیره کښې بیا دَ بتانو عبادت شروع شی اوداعمل ترننه پورې اونه شو چه چاهلته بتان اودرولې وی هغه وخت دَ ارتداددَ فتنې په دوران کښې هم چادَ کفراوشرك داقسم نه وو خپل کړې.

③ دحدیث مطلب دا دې چې شیطان ددې څخه مایوسه شوې دې چې لکه څنګه مخکښې په جزیرة العرب ټول عرب په شرک کښې مبتلا وو دغه شان به ټول په ټول دوباره مشرکان شی.

④ د ان یعبده څخه مراد ارتداد عن الاسلام من حیث کل دې یعنی شیطان ددې څخه مایوسه شوې دې چې دوباره د جزیرة العرب ټول خلق مرتد شی او مشرکان به جوړ شی.

**قوله: فِي جَزِيرَةِ الْعَرَبِ:**

**د جزیرة العرب وجه تسمیه:** جزیره" دَ زمکې دَهغه اوچې حصې نوم دې کومه چه دَ څلورو واړوطرفونه اوبو راګیره کړې وی چونکه دَعربودریو طرفوته اوبه دی په دې وجه دې ته دَ حکم اکثری په اعتبار سره جزیره وئیلې شوې ده. ځکه چه دَعربو په شمال کښې دَشام ملك واقع دې کوم چه دَاوبونه خالی دې او په اکثر طرفونو باندې دَاوبو احاطه شته مثلاً بحرهند، بحرقلزم اودجله و فرات دَدې ملك احاطه کړې ده. حدود اربعه داسې ده چه دَعربو په مشرق طرف کښې خلیج فارس اوبحرعمان واقع دې په مغربی طرف کښې بحیره قلزم او نهر سویزواقع دې په جنوب کښې بحر هندواقع دې او په شمال کښې دَشام ملك دې.

**د جزیرة العرب په پنځو حصومشتمل کیدل:** جزیره عرب په پنځوحصوباندې مشتمل ده

① تهامه ② نجد ③حجاز ④ عروض ⑤ یمن، کله چه جزیره عرب یادولې شی نودَدې اطلاق په اوږدوالی کښې دَعدن نه عراق پورې کیږې او په پلنوالی کښې دَ جدې نه ترشام پورې.[الکاشف: ۱/۲۲۵]

**قوله: وَلَكِنْ التَّحْرِيشِ بَيْنَهُمْ:**

**دتحریش څخه مراد:** یعنی په خپل مینځ کښې دَ جنګولو او فتنه اوفساد اچولونه شیطان ناامیده شوې نه دې بلکه دې کښې به سرګرم وی. چنانچه واقعه شهادت عثمان ﷛، شهادت علی ﷛ او په نورو جنګونو کښې هم دغه دَ شیطان اغوا کار کړې. نن صبادَ یهودو اونصاریٰ په شکل کښې ابلیس جزیرې ته راغلې دې. "تحریش" دهوکه، فریب او راؤچتولوته وائی.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[٧٢] د شيطاني وسوسي څخه محفوظ پاتې کيدو باندې د الله تعالی شکر ادا کړئ**

٧٢-()[٣١] ١ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- «جَاءَهُ رَجُلٌ» ٢ فَقَالَ: إِنِّي أُحَدِّثُ نَفْسِي بِالشَّيْءِ لَأَنْ أَكُونَ حُمَمَةً أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ أَتَكَلَّمَ بِهِ ٣ قَالَ: " الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي رَدَّ أَمْرَهُ إِلَى الْوَسْوَسَةِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابن عباس رضي الله عنه وايي د نبی کريم ﷺ په خدمت کښې يو صحابي را غلي ٢ عرض يي اوکړو (چي يا رسول الله ﷺ) زه په خپل ځان کښې داسې (خراب) خيال پيدا کوم چې په ژبي سره د هغه د اظهار په ځاي سوزيدو سره سکاره جوړيدل زه زيات خوښوم ٣ (په دي اوريدو سره) حضور ﷺ وفرمايل د الله شکر ادا کوه چې هغه دا خيال د وسوسي د حد پورې وساتلي. ابوداؤد

**حل اللغات:** ① أُحَدِّثُ: أَيْ: أُكَلِّمُهَا بِالتِيْرِ: زړه کښې خبرې کول، وسوسې راتلل، دا هاجس غير اختياری دې، ② حُمَمَةً: أَيْ: فَحْمًا: يعنی سوزيدل او کوئله کيدل ماته خوښ دی ليکن دَ دې وسوسې تصورکول مې خوښ نه دی، په دې کښې دَهواجس نه سخت نفرت دې کوم چه دَ ايمان دَ پوخوالی علامت دې.

**تسهيلات:** قوله: رَدَّ أَمْرَهُ:

**د ضمیرپه مرجع کښې دوه احتمالات:** ① دَامره: ضميرمجرور دغه راتلونکی سړی ته راجع دې يعنی الحمدلله چه دَدغه رجل معامله دَوسوسې پورې محدودپاتې شوه اووسوسه معاف ده.

② د ,,ه،، دَ ضميرمجرور مرجع شيطان دې مطلب داچه الحمدلله دَ شيطان معامله اوس صرف په وسوسه کښې دننه راګيرپاتې ده. اول خوبه هغه په کفرکښې سړې اخته کولو اوس دَ ايمان په مقاومت اومزاحمت سره صرف وسوسه اچولې شی کوم چه معاف ده اودې نه وړاندې هيڅ نه شی کولې يعنی دا دَ هم وعزم معامله پاتې نه شوه بلکه صرف دَ زړه خطره ده مع الاستقباح والكراهية وذاك صريح الايمان

**دوسوسې اچولودرې صورتونه:** ① شاه ولی الله رحمه الله فرمائيلی دی چه دَ شيطان دَ وسوسو او دَهغه دَتاثيرمختلف صورتونه دی اوداتغير دَ وسوسه اچولې شوی کس دَ وجې نه کيږی.

① لويه وسوسه داده چه دَ کفرالقاء اوکړی کله چه په دې کښې ناکام شی اووسوسه شوې کس دَ ايمان په طاقت سره خپل ځان بچ کړی

---

[١] اخرجه ابوداود كتاب الأدب/باب فى رد الوسوسة(رقم-٥١١٢) واحمد فى المسند: ١/٣٤٠.

④ بيا شيطاني وسوسه بيا دعام فساد طرف ته راوگرځي او تدبيرمنزل خرابوی سياست مدنيه خرابوی که چرې کس د دې حملې نه هم بچ شي
⑤ بيا دخواطرو په صورت کښې شيطان تاثيراچوی په زړه کښې خيال ځي راځي اودامعاف دی. په نفوس قدسيه باندې خودا اثرهم نه شي اچولې

په انسان باندې د شيطان او فرښتې تصرف

۷۴ ـ()[۳]) ①وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - (②«إِنَّ لِلشَّيْطَانِ لَمَّةً بِابْنِ آدَمَ، وَلِلْمَلَكِ لَمَّةً: ③فَأَمَّا لَمَّةُ الشَّيْطَانِ فَإِيعَادٌ بِالشَّرِّ، وَتَكْذِيبٌ بِالْحَقِّ، وَأَمَّا لَمَّةُ الْمَلَكِ فَإِيعَادٌ بِالْخَيْرِ، وَتَصْدِيقٌ بِالْحَقِّ④ فَمَنْ وَجَدَ ذَلِكَ، فَلْيَعْلَمْ أَنَّهُ مِنَ اللَّهِ، فَلْيَحْمَدِ اللَّهَ، وَمَنْ وَجَدَ الْأُخْرَى، فَلْيَتَعَوَّذْ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ). ⑤ثُمَّ قَرَأَ {الشَّيْطَانُ يَعِدُكُمُ الْفَقْرَ وَيَأْمُرُكُمْ بِالْفَحْشَاءِ} [البقرة: ۲۶۸]»). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ①او حضرت ابن مسعود ﷺ روايت کوي چې رسول الله ﷺ ارشاد وفرمايلي② چې حقيقت دا دي چې په هر انسان باندې يو تصرف د شيطان وي او يو تصرف د فرښتې،③ د شيطان تصرف خو دا دي چې هغه يې بدې ته مائل کوي اوحق ورته دروغ ښکاره کوي او د فرښتې تصرف دا دي چې هغه نيکئ ته اماده کوي او دحق تصديق کوي، ④نو کوم سړي (چې په نيکئ باندې د ملائکې د اماده کولو) دا کيفيت په خپل ځان کښې پيدا کې نو هغه ته پو هېدل پکار دي چې دا دالله تعالیٰ د طرف څخه (هدايت) دي، په دي هغه ته د الله شکر ادا کول پکاردي اوکوم سړي چې په دويم کيفيت (يعني د شيطان وسوسه اچول) په ځان کښې پيداکي نو هغه ته پکار دي چې د شيطان رټل شوې څخه د الله پناه اوغواړي، ⑤بيا حضور ﷺ دا قرآني آيت اوولو (چې د هغه ترجمه دا ده) شيطان تاسي د فقر څخه ويروي او په گناه باندې مو اماده کوي. دا روايت ترمذي نقل کړي او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دي.

**حل اللغات:** ①لَمَّةً: دا د إلمام نه دې، نزدې کيدو اوښکته کيدو ته وائي، وَالْمُرَادُ بِهَا مَا يَقَعُ فِي الْقَلْبِ بِوَاسِطَةِ الشَّيْطَانِ، أَوِ الْمَلَكِ، په زړه کښې چه کومه خبره راشي هغې ته لمه وائي که هغه د شيطان دطرفه وی اوکه د فرشتې دطرفه. ②فَإِيعَادٌ: د باب افعال نه مصدر دې د وعيد نه، ايعاد او وعيد شر دپاره استعماليږي، البته شاذ ونادر کله ايعاد دخير دپاره هم استعماليږي. ③الْفَحْشَاءِ: أَيِ الْمَعَاصِي: گناهونه.

**تسهيلات: قوله:** بِابْنِ آدَمَ:

**د ابن آدم څخه مراد:** يعني دې جنس سره مراد انسان دې. علماء کرامو ليکلي دی چې الهام او وسوسه کښې فرق هغه خلق نشي کولې کوم چې حرام خور دی.

[١]) اخرجه الترمذي كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة البقرة (رقم-۲۹۸۸)

**قوله:** فَإِيعَادٌ بِالشَّرِّ،

**د وعد د استعمال دوه صورتونه:** ① وعد او ايعاد څخه متعلق فراء نحوی فرمائی چې لفظ وعد خير او شر دواړه دپاره استعماليږي. لکه څنګه چې وئلې کيږي چې وعدته خيرا، ووعدته شرا

② که مفعول به مذکور نه وی لکه وعدته نو په دې صورت کښې د وعد لفظ صرف د خير دپاره وئيلې کيږي.

**قوله:** فَإِيعَادٌ بِالشَّرِّ، وَتَكْذِيبٌ بِالْحَقِّ،

**د شيطان د ايعاد مطلب:** په شر باندې د شيطان د راپارولو مطلب دادې چې هغه يو کس ته حق تياره ښائی او په عقائدو کښې ورته شك اچوی، بدی ورته ښکلې کوی، هغه انسان ويروی چې هرکله ته دنيکۍ په لار باندې ځې نو پريشانۍ کښې به اخته کيږې.

وَأَمَّا لَمَّةُ الْمَلَكِ فَإِيعَادٌ بِالْخَيْرِ، وَتَصْدِيقٌ بِالْحَقِّ

**د فرښتې د ايعاد مطلب:** دفرښتې د راپارولو مطلب دادې چې هغه د نيکۍ جذبه او ددې اهميت اوپه دې باندې د انعام واکرام شعور په زړه کښې اچوی چې د الله ﷻ په دين کښې کاميابی ده. او دآخرت کاميابی دالله ﷻ په حکمونو منلو کښې پټه ده. که کاميابی غواړې نو دنيکۍ په لار روان شې.

**د اهل تصوف نظريه:** اهل تصوف علماء فرمائی چې د زړه په دننه حصه کښې واړه واړه سورى اود غوښتې خانې دی، هم دا خايونه د خير او شر د ويشتلو خايونه دی، په دې باندې چې کوم مخلوق قابض شو نو پورا زړه او بدن دهغه دې، په دې باندې شيطان غالب راځی يا فرښتې، کله دا او کله هغه. هم په دې وجه دقلب احوال بدليږی را بدليږی.

**[۷۵] دوسوسې لرې کولو طريقه**

> ۷۵ – (١٣)[١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ [٢] «لَا يَزَالُ النَّاسُ يَتَسَاءَلُونَ، حَتَّى يُقَالَ: هَذَا خَلَقَ اللَّهُ الْخَلْقَ، فَمَنْ خَلَقَ اللَّهَ؟ [٣] فَإِذَا قَالُوا ذَلِكَ فَقُولُوا: {اللَّهُ أَحَدٌ} [الجن: ۲۲]، {اللَّهُ الصَّمَدُ} [الإخلاص: ۲]، {لَمْ يَلِدْ} [الإخلاص: ۳]، {وَلَمْ يُولَدْ} [الإخلاص: ۳]، {وَلَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُوًا أَحَدٌ} [الإخلاص: ۴] [۴] ثُمَّ لْيَتْفُلْ عَنْ يَسَارِهِ ثَلَاثًا، وَلْيَسْتَعِذْ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ» ). رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ عَمْرِو بْنِ الْأَحْوَصِ فِي بَابِ خُطْبَةِ يَوْمِ النَّحْرِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى.

**ترجمه:** [١] او د حضرت ابوهريره رضی الله عنه څخه روايت دې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] خلق (به اول د مخلوقاتو وغيره په باره کښې ) پوښتنه کوی او بيا به په آخر کښې دا سوال را پورته کړی چې ټول مخلوقات خو الله تعالى پيدا کړی دې نو په خپله الله چا پيدا کړی

[١] ) اخرجه ابوداود کتاب السنة /باب فى الجهمية(رقم-۴۷۲۲)

دي؟ [۳] کله چې دا سوال راپورته شي نو تاسو وايئ چې الله يو دي، الله بي نيازه دي، نه دده څخه څوك پيدا دي او نه دي د چا څخه پيدا دي او هيڅ څوك هم د هغه همسر (سيال) نشته، [۴] بيا خپل ګس طرف دري ځله وتوكې او د شيطان رټل شوي څخه د الله پناه اوغواړي، (ابوداؤد) او (صاحب مشكوة وايي) چې د عمرو بن احوص روايت (کم چې د مصابيح صاحب دلته نقل كړي وو) مونږ به هغه د (خطبه يوم النحر) په باب كښې نقل كړو انشاء الله تعالى.

**حل اللغات:** ① الصَّمَدُ: أي الْمُسْتَغْنِي عَنْ كُلِّ أَحَدٍ: بې نيازه چه هيچاته ئې حاجت نشاه او هرڅوک ورته محتاج دی. ② يَتْفُلُ: أَيْ: لِيَبْصُقْ: أَيْ: لِيُلْقِ الْبُزَاقَ مِنَ الْفَمِ: تهوک دې کړی، يعنی د خُلې نه دې لړې لاړې تهوک کړی.

**تسهيلات: قوله:** فَقُولُوا: {اللَّهُ الصَّمَدُ}:

**د شيطانی وسوسې دفع کولو طريقه:** په دې حديث كښې د شيطانی وسوسې لرې كولودپاره بله طريقه خودلې شوې دې چې د صفات خمسه استحضار دې اوکړې شی اوددې صفات تخصيص په دې وجه دې چې دا صفات د الله تعالى د توحيد مجموعه ده اود انسانی صفاتو سره منافی دی دغه صفات خمسه دا دی.

① الله احد ② الله الصمد ③ لم يلد ④ ولم يولد ⑤ ولم يكن له كفوا احد.

**قوله:** ثُمَّ يَتْفُلْ:

**د لیاړوتوکلو وجوهات:** ① دا دَ شيطان سره دَنفرت دَ اظهاردَپاره دې.

② دا هغه لره قبيح اومكروه ګنړلودَپاره كيږی په كوم سره چه هغه تختی.

هسې خو زړه ګس طرف ته دې اودَ شيطان حمله هم په ګس طرف زړه باندې كيږی اوفرښته ښی طرف ته وی. بهر حال دَ توحيد اعلان اواقرار دَ شيطان نه دَ نفرت عملی اظهار اودَ تعوذ وظيفه، دادرې څيزونه دَ وسوسو نه دَ بچ كيدوعلاج دې.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۷۶] يوه خطر ناكه وسوسه

—()[۱۴] [۱] عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ([۲] «لَنْ يَبْرَحَ النَّاسُ يَتَسَاءَلُونَ، حَتَّى يَقُولُوا: هَذَا اللَّهُ خَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ فَمَنْ خَلَقَ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ؟) رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ، [۳] وَلِمُسْلِمٍ (قَالَ: قَالَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ: إِنَّ أُمَّتَكَ لَا يَزَالُونَ يَقُولُونَ: مَا كَذَا؟ مَا كَذَا؟ حَتَّى يَقُولُوا: هَذَا اللَّهُ خَلَقَ الْخَلْقَ، فَمَنْ خَلَقَ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ».[۱]

---

[۱] ) اخرجه البخاری كتاب الاعتصام بالكتاب والسنة /باب ما يكره من كثرة السؤال وتكلف ما لا يعنيه(رقم-۷۲۹۶) ومسلم كتاب الإيمان /باب بيان الوسوسة في الإيمان وما يقوله من وجدها(رقم-۲۱۷ - (۱۳۶)

**ترجمه:** [۱] حضرت انس ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] خلق به په خپل منځ كښې پوښتني كوي (يعني د شيطاني وسوسو په صورت كښې په هغوئ كښې به دا رنګه خيالات پيدا كيږي) چې كله هر يو شي الله پاك ﷻ پيدا كړي دي (نو) الله پاك چا پيدا كړي دي؟ (د بخاري [۳] او مسلم په روايت كښې دا رنګه دي، حضرت انس ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل) الله تعالى فرمايي چې ستا (ﷺ) د امت خلق (كه د شيطان د وسوسو د غورزولو څخه هوښيار نه شو نو مخ كښې) به داسې وايي چې دا څه دي او دا څنګه وشو (يعني د مخلوقاتو په باره كښې به تحقيق او تجسس، لټون، كوي) بيا به په آخركي دا وايي چې ټول څيزونه الله تعالى پيدا كړي دي نو الله بزرګ و برتر چا پيدا كړي دي؟.

**حل اللغات:** ① لَنْ يَبْرَحَ: أَيْ: لَنْ يَزَالُوا: هميشه به وی.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ أُمَّتَكَ:

دامت څخه په مراد كښې دوه احتمالات: ① د امت څخه امت اجابت مراد دې

② د امت څخه امت دعوت مراد دې.

**قوله:** يَقُولُوا: مَا كَذَا؟ مَا كَذَا؟:

**د ماكذا ما كذا څخه مراد:** دا الفاظ دَ كثرت سوال څخه كنايه دی، يعنی د كائناتو د څيزونو باره كښې سوال او تحقيق كوی بيا به دالله ﷻ باره سوال اوكړی چه هركله ټول څيزونه الله ﷻ پيدا كړل نو الله ﷻ چا پيدا كړو؟

**د شيطانی وسوسې عظمت:** شيطان بتدريج دا سوال په زړونو كښې د وسوسې په طور اچوی چې هركله دنورو څيزونو خالق الله تعالى دې نو الله ﷻ دپاره هم خالق پكار دې؟ دا وسوسه چونكه كفر طرفته اوړی، په دې وجه فرمائی چې استعاذه كوئی او بيا دپاره دَ تصوراتو او خيالاتو او ددې قسمه نور وسوسو سلسله بنده كړئی، سوچ بل طرفته بوتلونكې وه ځكه چې بنده ته داحق حاصل نه دې چې هغه خالق كښې سوچ اوكړی بلكه ده ته پكار دی چې په مخلوق كښې سوچ كوی، دَ وسوسو څخه ځان بچ ساتلو دَپاره دالله ﷻ ذكر بنه نسخه ده.

**[۷۷] د مانځه د وسوسې غورځولو خنزب شيطان**

۷۷ — ( ) [۱۵] [۱] وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: «قُلْتُ: [۲] يَا رَسُولَ اللّٰهِ! إِنَّ الشَّيْطَانَ قَدْ حَالَ بَيْنِي وَبَيْنَ صَلَاتِي، وَبَيْنَ قِرَاءَتِي يَلْبِسُهَا عَلَيَّ [۳] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (ذَاكَ شَيْطَانٌ

[۱] ) اخرجه مسلم فی كتاب السلام/باب التعوذ من شيطان الوسوسة فی الصلاة (۶۸ - (۲۲۰۳) واحمد فی المسند ۴/۲۱۶

يُقَالُ لَهُ خِنْزِبٌ، [٤] فَإِذَا أَحْسَسْتَهُ فَتَعَوَّذْ بِاللَّهِ مِنْهُ، وَاتْفُلْ عَلَى يَسَارِكَ ثَلَاثًا» [٥] فَفَعَلْتُ ذٰلِكَ فَأَذْهَبَهُ اللَّهُ عَنِّي». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت عثمان بن ابي العاص ﷺ وايي چې ما عرض وکړو [٢] چې يا رسول الله ﷺ زما او زما د لمانځه او زما د قرآءت په مينځ کښې شيطان حائل شي او په دي ځيزونو کښې شبه (شك) اچوي، [٣] رسول الله ﷺ وفرمايل دا هغه شيطان دي چې هغه ته (خنزب) ويل کيږي، [٤] پس چې کله تاته دده احساس وشي (چي شيطان په وسوسو او شبهاتو کښې اخته کوي) نو ته ددي (شيطان رټل شوي) څخه د الله ﷻ پناه غواړه او ګس طرف ته دري ځله توکه، [٥] حضرت عثمان ﷺ وايي چې (رسول الله ﷺ د دي ارشاد مطابق) ما دغسې وکړه نو الله پاك زه دهغه د وسوسو او شبهاتو څخه محفوظه وساتم. مسلم.

**حل اللغات:** ① حَالَ: أَيْ: يَمْنَعُنِي: پرده جوړيږي يعنى منع کوى مې، ② يَلْبِسُهَا: أَيْ: يَخْلِطُ: شبه پيدا کوى، ګډ وډ کوى، ③ خِنْزِبٌ: أَيِ الْجَرِيءُ عَلَى الْفُجُورِ: دا دهغه شيطان نوم دي چه په مونځ کښې وسوسې پيدا کوى، دخنزب لغوى معنى ده په شر او ګناه کښې جراءت کونکې. ④ وَاتْفُلْ: أَيْ: لِيَنْصُقْ: أَيْ: لِيُلْقِ الْبُزَاقَ مِنَ الْفَمِ: تهوک دې کړى، يعنى د خُلې نه دې لږې لاړې تهوک کړى.

**تسهيلات:**

**قوله:** بَيْنِي وَبَيْنَ صَلَاتِي:

**د وسوسې د محل څخه مراد:** مراد دا دې چه ماڈ مونځ کولونه منع کوى دَهغه دَ وسوسې دَ وجې نه زه مونځ شروع کولې هم نه شم. دا توجيه دَملاعلى قارى ﷫ دَ تشريح مطابق ده هغه فرمائى چه دلته درې ځل توکانړې توکولو حکم په حديث کښې دې او مسلسل درې ځل توکل په مانځه کښې جائزنه دى لهذا دَدې حديث تعلق هغه وسوسې سره دې کومه چه دَمونځ شروع کولونه وړاندې وى.

**قوله:** وَبَيْنَ قِرَاءَتِي:

**دمذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① يعنى شيطان ما دَ قراءت شروع کولونه منع کوى.

② يعنى شيطان ما دَقراءت شروع کولونه پس په زړه کښې شك پيداکوى نو په قراءت کښې ګړبړ راځى.

**په مانځه کښې د شك پيدا کولو دوه طريقې:** ① يعنى شيطان په مانځه کښې تردد پيداکوى وائى چه څه دې لوستلى دى غلط دى. اوس دا کس سوچ کوى چه ما څه لوستلى دى هغه صحيح وو که غلط.

② يعنى دَ قراءت په وخت داسې کيفيت پيداکوى چه وړاندې قراءت کول ګران شى.

**قوله: فَتَعَوَّذْ بِاللّٰهِ مِنْهُ، وَاتْفُلْ عَلٰى يَسَارِكَ ثَلَاثًا:**
د اشکال شبه داده چه دَ مانځه اوقراءت په حالت کښې تکانړې توکل اودتعوذ څنګه حکم اوشو داخودَ مانحه منافي دی؟
**داشکال درې جوابونه:** ① دا حکم هغه مونځ ګذار ته دې چه دَمانځه نه فارغ شوې دې چه شیطان ناسره څنګه لوبه کړې ده هغه ښکاره خبره ده دَ بیادَپاره حفاظت اوکړه اودَ بل مونځ دَپاره تیارشه.
② داحکم دَهغه کس دَپاره دې چاچه تردغه وخته مونځ نه دې شروع کړې.
③ داحکم هغه وخت وو کوم وخت چه په مانځه کښې خبرې کول جائز وو بیادامنسوخ اوموقوف شو.

## [۷۸]په مانځه کښې د وسوسې پرواه نه ساتل

۷۸ –()[۱۲]① وَعَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ: أَنَّ رَجُلًا سَأَلَهُ فَقَالَ: ② إِنِّي أَهِمُ فِي صَلَاتِي فَيَكْثُرُ ذٰلِكَ عَلَيَّ ③ فَقَالَ لَهُ: امْضِ فِي صَلَاتِكَ، فَإِنَّهُ لَنْ يَذْهَبَ ذٰلِكَ عَنْكَ حَتّٰى تَنْصَرِفَ، وَأَنْتَ تَقُولُ: مَا أَتْمَمْتُ صَلَاتِي. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** ① اوحضرت قاسم بن محمد رحمه الله ته يو سړي عرض وکړو ② چې ماته په خپل لمانځه کښې وهم کيږي (يعني کله خو دا شك شي چې زما مونځ صحيح نه دي ادا شوې او کله دا وهم شي چې يو رکعت د کولو څخه پاتې شوې دي) په دې وجه سره په ما بوج وي، ③ هغه وفرمايل (ته داسې خيال ته توجه مه ورکوه او) خپل مونځ پوره کړه ځکه چې هغه (شيطان) به ستا څخه هلته لرې شی چې ته خپل مونځ پوره کړې او اووائې چې هو ما خپل مونځ پوره نه کړې. مالك

**حل اللغات:** ① أَهِمُ: أي أَهِمُ وَهْمًا: وهم راته کيږي، سهوه کيږم، ② امْضِ: د مجردو نه د امر صيغه ده، په معنی د تللو خو دلته ترې مراد: أي لَا تَلْتَفِتْ: توجه مه ورکوه وسوسوته، ③ تَنْصَرِفَ: أي: تَفْرُغَ مِنَ الصَّلَاةِ: ته راوګرځې يعنی د مونځ نه فارغ شې، ④ مَا أَتْمَمْتُ: ما نه دي پوره کړې (خپل مونځ).
**د راوي مختصر تعارف:** نوم قاسم ابومحمد کنيت، دَ حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه دَځوئ محمد بن ابی بکر ځوئ دې. دَ هغه مور ام ولد وه دکومې نوم چه سوده وو. دَ هغه شميردَ مدينې په اووه فقهاؤکښې کيږی، دَهغه دَ پلار چه کله وفات اوشو نوقاسم ماشوم وو. دَهغه تربييت دَ هغه ترور حضرت ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها اوکړو. علامه ابن سعد رحمه الله دَ حضرت قاسم رحمه الله باره کښې فرمائی هغه ډير دَاوچتې درجې فقيه امام او ډير لوئ دَ حديث حافظ او متقی وو. ( ۲ )

۱) اخرجه مالک في الموطا رقم الحديث ۳ من کتاب سهو
(۲) طبقات ابن سعد۱۳۹/۵).(۲) تهذيب الاسماء ۵۵/۱).(۳) تذکره الحفاظ ۸٤/۱).(٤) طبقات ابن سعد ۱۳۹/۵) (۵) طبقات ابن سعد ۱٤۳/۵) (۶) ابوداود في الجنائز باب في التلقين) (۷) دليل الفالحين ۳۱۶/۳.

امام نووی ﷫ فرمائی هغه ډیر جلیل القدر تابعي دې د هغه په جلالت توثیق او امامت باندې د ټولو اتفاق دې.(۲). قاسم بن محمد ﷫ د حضرت عائشه ﷞ نه علاوه د حضرت عبدالله بن عباس ﷠، حضرت عبدالله بن عمر ﷠ اوحضرت ابوهریره ﷠ نه هم پوره استفاده کړې ده. ددوی نه علاوه دنورو صحابه کرامو نه ئې هم علم حاصل کړې دې. په دې وجه امام ذهبي ﷫ د هغوی باره کښې فرمائی چه ا... او مقتدی وو (۳) د هغه حلقه به په مسجدنبوی کښې لګیدله چه د منبر نبوی او روضه نبوی په مینځ کښې چرته چه خوخه (د کور کړکۍ) عمر ﷠ مخامخ وه. (۴)

**وفات**: په اختلاف د روایت ۱۰۷ھ ۱۰۸ھ کښې وفات شوې. دوفات په وخت کښې د هغه عمر اویا یا اتیاکاله وو (۵) د نوروحالاتودپاره اوګورئی ① طبقات ابن سعد ۱۳۹/۵ ② تهذیب الاسماء ۵۵/۱ ③ تذکرة الحفاظ ۸۴/۱ ④ تهذیب التهذیب ۳۴۲/۸ وغیره.

**تسهیلات: قوله**: فَيَكْبُرُ ذَٰلِكَ عَلَيَّ:

**د نسخو اختلاف اود هریوې نسخې مطلب**: ① په یوه نسخه کښې یکثر هم دې د اولې نسخې اوتلفظ مطلب دادې چه دا صورت په کثرت سره راځي

په موجوده نسخه کښې یکبردې ددې مطلب دا دې چې پ ما باندې دا کیفیت ډیرسخت تیریږی اوډیر درونډ ئې محسوسوم.

**قوله**: فَقَالَ لَهُ: امْضِ فِي صَلَاتِكَ:

**د مونځ په جاری ساتلو کښې حکمت**: دا د اسلوب حکیم په توګه جواب دې چه ته خپل مونځ جاری اوساته. دا وسوسې او وهمونه به ترهغه وخته پورې نه ختميږی ترکومې چه ته دمانځه نه فارغ شې او شیطان ته داخطاب اونه کړی که چرې ته ګڼړې چه زما مونځ نه دې شوې نوګڼړه ټیك ده زمامونځ نه دې شوې مګر زه به ئې په دویم ځل کوم هم نه، په دې عزم به وسوسې لرې کیږی.

**دیهودو اومسلمانانوپه مونځ کښې فرق**: دحضرت علی ﷠ نه نقل دی چه دمسلمانانو او یهودیانو په مونځ کښې هم دغه فرق دې چه دهغوی په مونځونو کښې وسوسې نه راځي او زمونږ په مونځونوکښې وسوسې راځي. په دې سره هغوی ﷠ دې خبرې طرف ته اشاره اوکړه چه دمسلمانانو عمل ژوندې تازه او قانوني دې د کوم دخرابولو دپاره چه ابلیس وسوسې اچوی اود یهودیانوعمل د هیڅ کارنه دې نو په هغې کښې وسوسې اچولوسره به شیطان څه خرابی راولي. عاقلان وائی چه په کومه ونه کښې میوه وی خلق هم هغه په کاڼړو اولی خالي ونه باندې عقلمندخلق کاڼړی نه اولي. شیطان هم په خالي او ورانو کوڅو کښې محنت نه ضائع کوی بلکه چرته چه ایمان وی هم هلته دهغه حمله وی.

# [۳/۳] بَابُ الْإِيمَانِ بِالْقَدَرِ

## دَتقدير بيان

**دَتقدير مفهوم:**

**دقدر لغوی معنی:** دال متحرك هم دي او ساكن هم دي. دادَ يو څيز اندازه كول او په يو څيز كښې دتنګۍ كولو په معنی كښې استعماليږي. [اناكل شئ خلقناه بقدر] داهم دغه اندازې اوتقدير طرف ته اشاره ده. نو په لغت كښې تقدير دَ اندازې په معنی كښې دې

**د قدرپه اصطلاحی تعريف كښې درې اقوال:** ① ملاعلی قاری ﷫ داتعريف ليكلې دې ,,هو مايقدره الله من القضايا،، الله تعالی چې (په ازل كښې) كومې فيصلې كړی دی دهغې نوم تقدير دې.

② القدر تعيين كل مخلوق بمرتبته التي توجد من حسن وقبح ونفع وضرر،، (شرح فقه اكبری ص: ۱۵) يعنی تقدير
دَهرمخلوق هر حيثيت او صفت دَ تعين نوم دې كه هغه د نفع او دضرر صفت وی او كه حسن او دقباحت صفت وی.

③ الله تعالی دَ عالم دَ پيدائش نه مخكښې دكومو څيزونو اندازه فرمائيلې ده او په لوح محفوظ كښې ئی دغه مقرركړې ده. هم دَ هغې مطابق به دَ دې تفصيلی وجود ظاهريږی هم دغه تقدير دې. په دې كښې دا نه شی كيدې چه دَ اول نه دَ يو څيز اندازه نه وی شوې اوتقدير ليكل نه وی شوې او په تفصيل كښې هغه څيز راشی. نوچه كوم څيزونه په كائنات كښې تفصيلاً جاری دی هغه دَ مخكښې نه دَالله تعالی په نيز معين اومقرردی. تاسو داسې اوګڼرئی لكه چه دَ زيد تفصيلی حالات دَ پيدائش نه واخله تروفات پورې دَ الله تعالی په علم كښې راغلل، اوبيا الله تعالی هغه دَده په تقدير كښې اوليكل. اوس دَ زيد دَ پيداكيدونه پس دَ هغه ټول حركات او سكنات به هم دَ دغه اجمالی ليك مطابق وی. ليكن تقدير دې مجبوره كړې نه دې بلكه ده ته ئی اختيارور كړې دې چه دغه آزادانه اختيار سره چه ده څه هم اوكړل اودَ الله تعالی په علم كښې راغله هم دَهغې مطابق به دَ ده تفصيلی حالت ښكاره كيږی.

**دتقدير دوه قسمونه:**

① **تقدير معلق** :په دې تقدير كښې بدلون راځی خو په تقدير مبرم كښې كله هم فرق او بدلون نه راځی. دې دواړو ته اجل معلق او اجل مبرم هم وائی.

دَ اجل معلق مطلب دا شو چه الله تعالی په تقدير كښې يوه فيصله ليكلې وی مګر هغې سره ئی څه شرائط هم كيخودل مثلاً دا ئی اوليكل چه دَ فلانكی سړی عمر به ۶۰ كاله وی

خو که هغه دَ والدينو خدمت او کړو يا متقي او پرهيز ګارشو نو دَهغه عمر به اتيا کاله شي.

② **تقدير مبرم:** دادَ الله تعالى هغه حتمي فيصله ده په کومه کښې چه څه متعين او مقرر دي په هغې کښې هيڅ کله بدلون ممکن نه دې. کومه فيصله چه په تقدير مبرم کښې شوې ده هم هغه کار به کيږي.

**اشکال:** هر کله چې هرڅيز د الله تعالى په قدرت کښې دې نو بيا د پيغمبرانو راليږلو ته څه ضرورت وو ځکه چې تقديرخو به خامخا واقع کيږئ ؟

**د اشکال جوابونه:** ① په مخلوق باندې د اتمام حجت دپاره پيغمبران راليږلي شوي دي
② ددعوت فضيلت او ثواب حاصلول مقصود وو ځکه ئې پيغمبران راليږلي دي

د تقديرمراتب: شاه ولي الله رحمه الله د تقديرشپږ (۶) مراتب ذکرکړي دي.

① ازلي: په کائنات کښې ترنن ورځې پورې څه شوي دي يا په راروان وخت کښې به کيږي دا ټول هرڅه د الله تعالى په علم کښې دي دا علم ازلي دې اودا د تقديراولنۍ مرحله ده.

② لوحي: الله تعالى د خپل علم مطابق ټول هرڅه په لوح محفوظ کښې ليکلي دي دا د دتقديردويمه مرحله ده او دا دعلم ازلي صرف حکايت دې نوې څيز نه دې.

③ ظهري: الله تعالى د آدم عليه السلام اولاد د هغه د شا څخه دوه ځله راويستې دي يوځل چې ئې راويستې وو دهغوی باره کښې ئې فرمائيلي وو دا جنتيان دي او دويم ځل چې ئې راويستې وو د هغوی باره کښې ئې فرمائيلي وو دا دوزخيان دي دا هم نوې څيز نه دې.

④ بطني: کله چې بچې د مور په رحم کښې وی او دده تخليق پوره شي نو د روح پوک وهلو څخه وړاندې فرشته راليږلې شي هغه څلور څيزونه ليکی دهغه عمل دهغه عمر د هغه رزق د هغه نيک بخت يا بدبخت، دا هم نوئې څيز نه دې.

⑤ حولي: د پوره کال دپاره په شب برائت کښې فرشتو ته تکويني امور حواله کولی شي دا هم نوې څيز نه دې.

⑥ يومي: بعضې فرشتو ته روزانه نوی څيزونه حوالې کولی شي دا هم څه نوې څيز نه دې. د پورتني تفصيل څخه روسته په احاديثو د تقديرباره کښې تعارض نه پاتې کيږي.

**په تقدير باندې دَ ايمان مطلب:** شرح السنه کښې ليکلي دي چه په تقدير باندې ايمان راوړل فرض دي او هغه داسې چه بنده دا عقيده اوساتی چه الله تعالى دَ بنديګانودَ افعالو خالق دې که هغه عمل دَ خير وی اوکه دَ شر وی اودا هرڅه دَ بنديګانودَ پيدائش نه مخکښې الله تعالى په لوح محفوظ کښې ليکلي دي. اوس چه کوم څه ظاهريږی ټول دَ الله تعالى فيصلې او ارادې سره کيږی. خو الله تعالى په کفر باندې خفه کيږی. په دې وجه ئې دَ کفر

اومعصیت دپاره دَ سزا وعده کړې ده او په ایمان او طاعت باندې ئي دَ ثواب وعده کړې ده.
**تقدیر څه څیز دې؟** تقدیر دَ الله تعالی دَ رازونو نه یو راز دې په کوم باندې چه الله تعالی نه یو مقرب فرښته اونه یو مقرب رسول خبرکړې دې. نو په دې کښې عقلي بحث او تمحیص جائز نه دې بلکه دا عقیده لرل واجب دي چه الله تعالی مخلوق پیدا کولوسره په دوو ډلوکښې تقسیم کړو. یوه ډله ئی په خپل رحمت اوخپل فضل سره دَ جنت دپاره جوړه کړه او دویمه ډله ئی دَ خپل عدال لاندې دَ دوزخ دپاره جوړه کړه. دواړو ته ئی اختیار ورکړو څوك ئی مجبوره کړی نه دی. یوسړی دَ تقدیر باره کښې دَ حضرت علی ﷛ نه پوښتنه اوکړه نو هغوی جواب ورکړو [طریق مظلم فلاتسلکه] یوه تیاره لاره ده په دې باندې مه زه. هغه بیا سوال اوکړو نو هغوی اوفرمائیل [بحر عمیق فلاتلجه] یو ژور سمندر دې په دې کښې مه ورکوزیږه. دغه سړی بیا سوال اوکړو نو هغوی ورته اوفرمائیل: [سرالله قدخفی علیك فلاتفشه] دَ الله تعالی یو پټ راز دې ددې د راښکاره کولو کوشش مه کوه.
**معبد جهنی اودتقدیرڅخه انکار:** په دور صحابه کښې چا دَ تقدیر نه انکارنه دې کړې اونه دَ چاته په دې کښې څه شك شبه راغلي وه. دَ صحابه کرامو ﷺ بالکل په آخری دور کښې بعضې خلقو په دې مسئله کښې بحثونه شروع کړل. په بصره کښې یو سړې معبد جهنی وو. هغه دا وینا کول شروع کړه چه الله تعالی ته دَ راتلونکی وخت دَ امورو علم دَهغې دَ ظاهریدونه مخکښې نه وي. کله چه یو عمل ظاهر شی نوبیا الله تعالی ته دَ هغې علم اوشی. ددې تعبیر دَهغه په نیز دا وو [الأمرأنف أي مستأنف] یعنی دَ اول نه څه نظام لیکلې شوي یا لوح محفوظ وغیره نشته دې څه چه کیږی هم دَ هغې نه تقدیر جوړیږی. ددې سړی رد پخپله دَ صحابه کرامو کښې حضرت عبدالله بن عمر ﷺ اوکړو. دا عنوان چونکه غلط بلکه ګمراه کونکې وو په دې وجه په دې باندې د تردید راتلونه پس په دې عنوان نه دا مسئله وړاندې لاړه نه شوه.
**معتزله اود تقدیر څخه انکار:** معتزلو دې ته یو بل رنګ ورکړو اودا ئی وړاندې روانه کړه اوهغه عنوان دا وو چه آیا په بندیګانوکښې دَ خپلو افعالو دَ اختیارولو قدرت شته که نه؟ یعنی بندیګان دَ خپلو افعالو پخپله خالق دی. چنانچه دَ [خلق افعال العباد] په عنوان سره دَ تقدیر دانکار مسئله دَ خلفاو بنو عباس په دور کښې ډیره وړاندې شوه اودَ دې په اصول او فروع باندې ډیرې جګړې اوشوې. هم ددې نه امام احمدبن حنبل ﷫ اودَ معتزلو هغه لویه مشهوره معرکه هم ده چه دَ څو کالو پورې دَ آزمائش میدان جوړ وو. دَ معبد جهنی استاذ سوسن یهودی وو چا چه دَ تقدیر دا جګړه راوچته کړه. بیا معبد جهنی او دَ هغه نه پس عیلان نومې سړی دا عقیده په عراق او حجاز کښې خوره کړه. عمرو بن

عبد چه کله دا مسئله راؤچته کړه نو حجاج بن یوسف هغه قتل کړو.

**په تقدیر او قضاء کښې فرق:** شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله اوفرمائیل چه دَ قضاء اوقدر معنی مشترك ده. دَ یو اطلاق په بل باندې کیږی اوکله کله په مختلف معنوکښې هم استعمالیږی. هغه داسې چه قدر خودَ الله تعالی هغه ازلی او اجمالی فیصله وی چه دَالله تعالی په علم کښې متعین وی اوقضاء دَدې خارجی تفصیلی خاکه وی یا دَدې خارجی تکمیل وی لکه ﴿فَقَضٰهُنَّ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ﴾ دا اووه آسمانونه دَخپل وجود په اعتبارسره هم دَدغه اجمالی تقدیردَپاره خارجی تفصیلی خاکې دی او بعضې وخت قضاء نه مراد علم اجمالی ازلی وی او دَ قدر نه مراد خارج کښې دَدې تفصیلی وجود وی.[اشعة اللمعات: ۹۲/۱]

**د تقدیر او قضاء وضاحت د مثال په رڼړا کښې:** بعضې عارفینو دا مسئله په یو مثال سره بیان کړې ده لکه څنګه چه دَ یو مصور انجینئر په ذهن کښې یوه خاکه وی بیا هغه په خارج کښې دَهغې نقشه جوړوی. بالکل دغه شان دَ الله تعالی په علم ازلی کښې یو صورت معهوده دې ته قدر وائی هم دَدې مطابق په خارج کښې یو صورت راځی هغه قضاء ده. دَ دې قضاء تابع کیدو سره دَ بنده دَ قدر مطابق عمل کولو ته کسب وائی. مثال ئې داسې دې چه یو مصور انجینئر دَ خپل ذهنی صورت مطابق کاغذ پنسل سره یوه خاکه جوړوی. شاګردان په دې خاکه کښې دَ خطونو لحاظ کولوسره رنګ ډکوی نو صورت ذهنیه قدر دې او په خارج کښې دَدې خاکه قضاء ده او په خاکه کښې رعایت سره رنګ ډکول دَ عبد کسب دې. نو چه څنګه دا رنګ ډکول دَ صورت ذهنیه عین مطابق دې. دغه شان دَ بنده کسب دَ تقدیر الهی عین مطابق دې او بنده دَ تقدیر خلاف نه شی کولې. خلاصه دا چه دَ کور جوړولو نه مخکښې چه کومه خاکه په ذهن کښې راځی دا په منزله دَ قدر دې اوهم دَ دغه نقشې مطابق مکان تیارول موجود فی الخارج شو دا قضاء ده. خودَ اکثر علماؤ رائې داده چه په قضاء او قدر کښې ترادف دې دواړه هم یو دی.

**دَتقدیر په مسئله کښې (۳) مذاهب:**

① **دَ جبریۀ مذهب:** دَ تقدیر متعلق د جبریه مذهب دادې چه انسان په خپلو افعالو کښې مجبور محض دَ جماد په شان دې. دَ هغه دَ افعالو اعتبار نشته دې اودَ تقدیر په مخکښې دې بې وسه او د بې حس کاڼړی په شان دې.

② **دَمعتزله قدریۀ مذهب:** دَدوی مذهب دادې چه انسان په خپلو افعالو کښې آزاد دې دَ یو تقدیر پابندنه دې بلکه دَ خپلو افعالو انسان پخپله خالق دې. دَ مخکښې نه هیڅ لیك نشته دې ګنی مواخذه به محال شی.

③ **د اهل سنت والجماعت مذهب:** دا ده چه الله پاک د ټولو افعال خیر و شر او کفر و ایمان خالق دې او بنده د دې افعال خیر و شر او کفر و ایمان کاسب دې. بیا د اشاعره او او

ماتریدیه ترمینځه د قدرت کاسبه د معانی او مفاهیم په تعین کښې اختلاف دې، د اشاعره په نزد د دې معنی دا ده چه په بنده کښې د دې قدرت سره سره یو قدرت متوهمه موجود وی، یعنی داسې قدرت کوم چه بنده قدرت ګڼړی خو د هغه قدرت هیڅ دخل نه وی. اشاعره وائی چه دا قدرت متوهمه متخیله د بنده د مکلف جوړیدو دپاره کافی دې.
د اهل سنت والجماعت نه علاوه د ټولو مذاهب افکار او خیالات د قرآن او حدیث د تصریحات او د عقل او فهم د خلاف کیدو د وجې نه باطل دی. د قدر په سلسله کښې صفا او پاکه بې غباره عقیده د اهل سنت والجماعت ده.

**د اول فریق دلائل**:داخلق دَ هغه نصوصو نه استدلال کوی په کوم کښې چه دَ تقدیر ذکر دې لکه [وما تشاءون إلا أن يشاء الله رب العالمين].

**د جبریۀ د د لائلو دوه جوابونه**:① دَ جبریه مذهب صریح البطلان یعنی په واضحه توګه باندې باطل دې ځکه چه په دې سره د الله تبارك وتعالی طرف ته دَ ظلم نسبت لا زمیږی ځکه چه کله انسان مجبور محض دې او هغه ته دَ خپل فعل څه اختیار نشته بلکه چه څه ئی اوکړه هغه هم الله تعالی اوکړه نو بیا انسان دَ جزا او سزا په محکمه کښې راښکل دَ کوم ځائی انصاف دې. نودَ کوم مذهب اوعقیدې دَ وجې نه چه دَ الله تعالی طرف ته دَ ظلم نسبت لا زمیږی دَ هغې په باطل کیدو کښې څه شك شبه کیدې شی؟

② هرعقل مند سړې په خپل وجدان په دې خبره باندې پوهیدې شی چه په افعال اختیاری او غیر اختیاری کښې فرق دې. مثلاً وجدان دا فیصله کوی چه حرکت ارتعاش یعنی دَ لاس شل کیدل او حرکت کول غیر اختیاری دې او حرکت بطش یعنی په قصد او ارادې سره حرکت کول اختیاری دی. دَ جبریه انسان ته بالکل مجبور، معذور، بې بس او بې حس وئیل ضلالت هم دې او حماقت هم دې. که چرې دې داسې مجبور وو نود ده ته دَ افعال کولو اونه کولو الله تعالی ولې حکم ورکړو؟ حضرت علی رضی الله عنه هم داسې سړی ته اوفرمائیل چه خپه اوچته کړه او اودریږه. هغه خپه اوچته کړه حضرت علی رضی الله عنه اوفرمائیل بله خپه هم اوچته کړه او اودریږه. هغه وئیل چه دا خو ممکن نه دی. په دې باندې حضرت علی رضی الله عنه اوفرمائیل بس انسان دومره اختیارمند دې او دومره بې اختیاره دې. نوخلاصه دا شوه چه ترکوم حده پورې انسان تلې شی هم دَ هغه حده پورې دې مکلف او جواب ورکونکې دې او دَ کوم ځائی نه چه وړاندې نه شی تلې دَهغې جواب ورکونکې نه دې.

بیا دَ اختیار او بې اختیاره فیصله خو یو بې عقل سپې هم کوی. ګوره چه کله یو انسان هغه په کاڼړی باندې اولی نوهغه کاڼړې پرېږدی او ویشتونکې سړی پسې منډې وهی او غاپی ځکه چه هغه پوهیږی چه دَ بې ساه کاڼړی څه قصور دې اصل قصور خودَ دغه

اختیارمند انسان دې چه په خپل فعل سره کانړې اولی.

**اشکال:** کله چه دا معلومه شوه چه عقل سلیم اودَ وجدانِ صحیح حتمی فیصله ده اودَ دنیا دا مشاهده ده چه بعضې افعال اختیاری هم دی نو هغه اختیاری څنګه دی حالانکه ﴿ وَمَا تَشَآءُوْنَ اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللهُ ﴾ آیت وائی چه دَ انسان اراده نشته دې ټول هر څه دَ الله تعالی په مشئت چلیږی.

**د اشکال جواب:** انسان ته دَ توجیه الاراده اختیار ورکړې شوې دې یعنی چه کله هغه اراده کوی او توجه کوی نودَ الله تعالی دَ مشئت سره دَده موافقت راځی په دې توجه او دې اراده کښې انسان اختیارمند دې اوهم دغه دَ ده دَپاره قدرت متوهمه دې او هم په دغه قدرتِ متوهمه باندې دَ ده نیول کیږی. یعنی دا انسان چه کَله یو کار کول یا نه کول غواړی اوقدم اوچتوی نوهیڅ بندیز نشته انسان حرکت ارادی کوی او بل خوا دَ الله تعالی دَ طرف نه توفیق راځی نو په دې کښې دې مختاردې مجبور نه دې. دادَ هغه خپل فعل دې اوځه چه کوی نودا دَ اول نه لیکلې شوې دی ځکه چه دَ الله تعالی علم ازلی دې هغه ته دَدې سړی دغه دَ اختیار والا فعل اول معلوم وو او بیائی اولیکلو نواوس چه څه ښکاره کیږی هغه هم دَ دغه لیک مطابق دی.

**د مذکوره جواب وضاحت د اول مثال په رنړا کښې:** یودَ ریل ګاډی ټائم ټیبل دې په کوم کښې چه لیکلی دَی چه فلانکې ګاډې به فلانکی وخت کښې دَ فلانکی ځائی نه روانیږی فلانکې ډرائیور به وی او فلانکی ځائی کښې به دومره حصاریږی اوفلانکی سټیشن ته به فلانکی وخت رسیږی. دومره تیل به خوری وغیره وغیره. دغه شان دَ پوره ورځې او پوره سفر ټائم ټیبل تیارشو مخې ته راغلو او مرتب موجود شو. نو تاسو ګورئی چه هغه ګاډې هم په هغه ټائم ټیبل او هم په هغه هدایاتو باندې روانیږی لیکن دا ټائم ټیبل دغه ګاډې نه چلوی بلکه ډرائیور یا دَ ګاډی سسټم دې په کوم سره چه هغه چلیږی. بالکل هم دغه شان لوح محفوظ دې په کوم چه دَ انسان تقدیر لیکلې شوې دې دغه دَ انسان دَ ژوند ټائم ټیبل دې دَ کوم نوم چه قدر اوتقدیر دې. دکوم مطابق چه دَ انسان دَژوند دا ګاډې په خپل کسب او اختیار سره سفر کوی. فرق صرف دومره دې چه دَ الله تعالی علم محیط دې نو دا انسانی ګاډې دَ دغه علم اوتقدیر نه مخالفت نه شی کولې اودَ ریل ګاډی په پروګرام کښې تخالف او تغیر راتلې شی کله په مزه کله څنګه اوکله څنګه.

**د مذکوره جواب وضاحت د دویم مثال په رنړا کښې:** دَدې یو مثال داسې اوګنړئی چه یو ډاکټر یو بیمار ته اووئیل چه فلانکې څیز خورې نو مړکیږې به. دغه سړی هغه څیز اوخوړلو او مړشو. نو ډاکټر په علامات اجمالیه وجودیه سره خودلې وو چه مړکیږې به. اوس چه دامړ شو نو دَ ډاکټر په وینا سره خو مړ نه شو نه دَ ډاکټر په لیکلو باندې مړ شو بلکه هغه

دَ خپل دې فعل دَ وجې نه مړ شو دکوم نه چه ډاکټر منع کړې وو.
بالکل هم دغه شان دَ الله تعالی په علم کښې چه کوم اجمال دې دکوم نوم چه تقدیر دې هغه دَ اول نه موجود دې. په خارج کښې موندلې شوې فعل دَ بنده خپل فعل دې دا بیشکه دَ تقدیر موافق دې لیکن دا سړې دَ تقدیر نه مجبور نه دې بلکه دَ تقدیر دَ لیکلو نه وړاندې الله تعالی دَ هغه احوال په آزاد ماحول کښې اوکتل بیائی اولیکل. نو چه دا اوس څه کیږی دَهغې مطابق کیږی.
دَدې تشریحاتو او توضیحاتو نه پس دا خبره واضحه شوه چه دَجبریه مذهب باطل محض دې اوهغوی چه دَ کوم آیت نه استدلال کړې دې اهل سنت والجماعةَ فرمائی په هغې کښې دَ انسان دَپاره مستقل دَ اختیار نفی ده لکه څنګه چه معتزله دَ انسان دَپاره دَ مستقل اختیار قائل دی. په دې آیت کښې دَدې ضعیف غیر مستقل محدود اختیار نفی نه کیږی کوم چه په نورو نصوصو اوعقل سلیم او وجدان صحیح سره انسان ته حاصل دې.
**د دویم مذهب د لائل:** ① که چرته ټول افعال د الله تعالی تخلیق وی نو بیا خو انسان مجبور شوځکه چې هغه د الله تعالی د تخلیق وړاندې خپل اختیار نشی استعمالوې اوبیا د انسان د مکلف کولو فائده پاتې نشوه او د ثواب او عقاب استحقاق ختم شو.
**د دویم فریق د اول دلیل جواب:** دا دلیل د جبریۆ خلاف چلیدې شی خو د اهل سنت والجماعت خلاف نشی چلیدې ځکه چې مونږ ددې باوجود چې انسان د افعال خالق نه دې ددې قائل یو چې انسان د اختیار مالک دې مجبور محض نه دې.
② که چرته الله تعالی د انسانانو د افعالو خالق وی نو بیا خو به دې قائم اوقاعد آکل اوشارب وغیره هم وی
**د دویم فریق د دویم دلیل جواب:** عالمه تفتازانی رحمه الله فرمائی چې دا ډیره د جهالت خبره ده ځکه چې په دط صفاتو باندې هغه څوک موصوف کیدې شی چا سره چې دا صفات قائم وی دا مطلب نه دې چې انسان ددې خالق دې ګوری نه چې الله تعالی د سودا بیاض او نوروو تولو جسمانی صفاتو خالق دې خو په دې صفاتو باندې موصوف کولې نه شی یعنی که ستاسو خبره ټیک وی نو بیا به د عبد د غیراختیاری افعالو په باره کښې څه وائې آیا الله تعالی به په دې باندې موصوف ګنړئ!
③ الله تعالی فرمائیلی دی «فتارک ا لله احسن الخالقین» دغه شان نور آیاتونه په کوم کښې چې د خلق په صفت باندې انسانان موصوف دی ددې څخه دوی استدلال کوی چې معلومه شوه چې انسانان د خپل افعالو په خپله خالق دې.
**د دویم فریق د دریم دلیل جواب:** دلته کښې د تخلیق نسبت اللله تعالی ته مجارا شوې دې حقیقیة نه دې شوې.

**الزامی جواب:** معتزلؤ ته الزامی جواب داسې دې چه ابلیس دَ شر او شرارت ګودا ګې دې دې چا پیدا کړو؟ آیا دَ الله تعالی نه بغیرد ده بل څوك خالق شته چا چه دې پیدا کړو؟ نوتخلیقِ شر کمال دې لکه چه تخلیق خیر کمال دې او کسب شر مذموم دې. خو په عام توګه دَ شر نسبت دَ شیطان طرف ته کیږی یا دَ نفس طرف ته نسبت کیږی دې دَ پاره چه دَ الله تعالی په شان کښې بې ادبی او ګستاخی اونه شی.

**دَ شر په تخليق کښې حکمت:** بقول عقلاء اوحکماء په دې باندې متفق دی چه په دنیاوی بادشاه کښې دوه صفتونه موجودکیدل ضروری دی. یو صفت دَ لطف اوکرم او دویم صفت دَ قهر اوجلال، اولنې دَ دې دَپاره چه په خپلو باندې رحم اوکړی الطاف اومهربانی اوکړی. که چرې دا صفت په کښې نه وی نوداسې کنجوس او بخیل سړې به څوك بادشاه جوړکړی؟ اودَ هغه بادشاهی به څوك اومنی؟ که داسې سړې چرته بادشاه جوړ هم شی نودا نقص او عیب به ډیر زر دَ هغه نه بادشاهی واخلی. دویم دَ قهر صفت هم ضروری دې څکه چه خلق بې ځایه تعدی او تجاوز او بې ځایه خپله من مانی اونه کړی.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [٧٩]دزمکې اوآسمانونو دتخلیق څخه وړاندې د تقدیر لیک

٧٩ -()[١]① عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - (②«كَتَبَ اللّٰهُ مَقَادِيرَ الْخَلَائِقِ قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِخَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ)③ قَالَ: {وَكَانَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَاءِ} [هود: ٧]») رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ①او حضرت عبد الله بن عمرو ﷺ روایت کوي چې رسول اکرم ﷺ وفرمایل② الله تعالی ﷻ د آسمانونو او زمکې دپیدا کولو څخه پنځوس زره کاله مخکې د مخلوقاتو تقدیرونه لیکلي دي، ③او وي فرمایل (هغه وخت) د الله تعالی ﷻ عرش په اوبو وو. مسلم

**حل اللغات:** ①مَقَادِيرَ: د مِقْدَار جمع ده، وَهُوَالَّذِي يُعْرَفُ بِهِ قَدْرُ الشَّيْءِ: هغه څیز چه په هغې سره د بل څیز اندازه او مقدار معلومولې شی یعنی آله لکه پیمانه، تله وغیره، خو ددې استعمال خپله د مقدار یعنی د اندازې دپاره کیږی.

**تسهيلات:**

**قوله:** كَتَبَ اللّٰهُ مَقَادِيرَ الْخَلَائِقِ

**دليكلو محل:** دا لیکل چرته په یودیوان خاص کښې وو ګنی تقدیر خودَالله تعالی دَعلم ازلی ابدی اجمالی نوم دې کوم چه دَوخت پابندنه دې بل دَدې لیکلونه وړاندې دَالله

[١] اخرجه مسلم في صحيحه رقم الحديث ١۶ من غير (كان)

تعالی علم په راتلونکی حالاتو باندې محیط وو هغه علام الغیوب دې هغه دَ تفصیلی حالاتو دکتلو نه پس دا اجمالی خاکه اولیکله.

**د کتب په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① یعنی الله تعالی په خپل لاس باندې اولیکلو بلکه قلم ته ئی دَ لیکلو حکم ورکړو.

② یعنی الله تعالی دَمخلوق دَپاره تقدیرمقررکړو په عربی لغت کښې کتب په معنی دَتعین او تقرر راځی.

**قوله:** قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِخَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ

**په روایاتو کښې تعارض:** بعضې روایاتو کښې دَخلویښتو زروکالوذکردې چه په ظاهره دَدې حدیث سره متعارض دې؟

**د تعارض حل:** دا فرق دَمختلفو امورو په اعتبارسره دې. بعضې امور پنځوس زره کاله اوبعضې څلویښت زره کاله وړاندې لیکلې شوې دې.

**اشکال:** هغه وخت زمکه اوآسمان نه وو زمانه نه وه نودَپنځوس زرو کالو تعین څنګه اوشو؟

**د اشکال څلور جوابونه:** ① دا کلام دَ اندازې په توګه دې که چرې زمانه وې نو دومره وخت به کیدلې شو.

② دلته ددې څخه طویل مدت مراد دې بعضې عالمانو ددې معنی سل صدیانې کړې ده.

③ کیدې شی چې دا اندازه ئې د حرکت عرش څخه لګولی وی.

④ دا عدد د الله تعالی دعلم مطابق دې.

**قوله:** وَكَانَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَاءِ

**په اوبو باندې د الله تعالی د عرش په کیدو کښې اقوال:** ① حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دلته دَدنیا اوبه مرادنه دی بلکه دَعرش نه لاندې دریاب مراددې دکوم نه چه باران راوریږی.

② علامه بیضاوی رحمه الله فرمائی دَدې مطلب دانه دې چه عرش په اوبو باندې کیخودلې شوې وو بلکه مراددادې چه دَدواړو په مینځ کښې حائل نه وو. په دې سره دَالله تعالی یوقدرت خودل مقصود دی چه پورته عرش دې لاندې اوبه دی اودَ اوبو لاندې هوا ده اودا هرڅه دَ الله تعالی په قدرت باندې قائم دی.

③ بعضې کتابونو او حواشی کښې لیکلی دی چه دَ ټولونه اول الله تعالی یومرغلره جوړه کړه بیائی دَ هیبت نظر په هغې باندې واچولو هغه اوبه شوه اوس لاندې صرف اوبه وې او بره عرش وو. دَ ﴿وَكَانَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَاءِ﴾ منظوروو بیا الله تعالی دَغضب په نظر سره اوبو ته اوکتل نو اوبه راڅوټکیدې اوچې شوې. لاندې څه خیرې شان پاتې شو او پورته

يولوګې اوختلو هم دَدغه لوګی نه روستو بيا آسمان جوړشو. ارشاد دې ﴿ ثُمَّ اسْتَوٰى إِلَى السَّمَاءِ وَهِيَ دُخَانٌ ﴾ [سورة حم سجده: ١١٥]. بيا لاندې دَ دغه خيرى نه زمكه خوره كړې شوه ارشاد عالى دې ﴿ وَالْأَرْضَ بَعْدَ ذٰلِكَ دَحٰهَا ﴾ [سورة النازعات: ٣٠]

**اشكال:** د زمكې اوآسمان په تخليق كښې د آياتونو تعارض جواب د آيات متعارضه ا و دهغې حل څخه نقل كول دى.

## [٨٠] هرڅيز په تقدير سره كيږى

٨٠ ـ ( ) [٢] ⓵ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - : (⓶ «كُلُّ شَيْءٍ بِقَدَرٍ حَتَّى الْعَجْزُ وَالْكَيْسُ») رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ⓵ اود حضرت عبدالله بن عمر ﷺ څخه روايت دې چې رسول اكرم ﷺ وفرمايل ⓶ هر شي په تقدير سره كيږي تردې چې دانايي (هوښيار توب) او ناداني (كم عقل توب) مسلم

**حل اللغات:** ① بِقَدَرٍ: أَيْ: بِمِقْدَارٍ: اندازه، (يعنى كومه اندازه او مقدار چه په لوح محفوظ كښې دمخكښې نه ليكلې شوي دې). ② الْعَجْزُ: هوښيارتوب، يا عدم قدرت، ③ الْكَيْسُ: ناپوهى، كم عقل توب.

**تسهيلات:**

**قوله:** كُلُّ شَيْءٍ بِقَدَرٍ

**د تقدير جامعيت:** دَدې حديث مطلب دادې چه دَ هوښيار اوكمزورئى كوم صفات دى دا هم دَ تقدير دَاحاطې نه بهر نه دى بلكه قضاء اوقدر دَ انسان په ټولو اړخونوباندې محيط دې. صرف جنت او دوزخ پورې تقدير محدودنه دې بلكه دَدنيا او آخرت ټولې فيصلې او ټول معاملات هم دَدې قضاء او قدر لاندې دى.

**قوله:** حَتَّى الْعَجْزُ وَالْكَيْسُ:

**اشكال:** دلته په حديث كښې دَ "عجز" په مقابل "كيس" لفظ راغلې دې حالانكه دَ قاعدې مطابق دَعجز مقابل قدرت دې او دَ "كيس" مقابل "بلادة" دې نودلته داسې ولې اوشو؟

**د اشكال جواب:** دلته ئې دَ فنِ بلاغت دَ اصولولاندې دَاحدالضدين نه يوذكركړې دې او په دې باندې اعتماد كولوسره ئى دويم پريخودې دې نودلته دَ صنعت احتياط نه كار اخستې شوې دې چه العجز ذكر كولوسره ئى قدرت پريخودو او "الكيس" ذكر كولو سره "بلادت" ئى پريخودې دې، مراد احاطه اواستغراق دې. عبارت داسې دې "العجز والقدرة

(١) اخرجه مسلم فى كتاب القدر/ باب كل شىء بقدر(رقم-١٨ - (٢٦٥٥) ومالک كتاب القدر باب النهى عن القول بالقدر(رقم٤)

أوالكيس والبلادة من قدر الله"

هم دغه يعنى ضعف اوقدرت ذكاوت وبلادت ټول دَالله تعالى په نيزمقدر دى اوهم دَهغې مطابق ښکاره کيږی.

**دعجز اوكيس څخه مراد:** حافظ توربشتى رحمه الله فرمائى چه العجز نه مراد عاجز، كمزوري اوضعيف دي. اودَ الكيس نه مراد عقل مند سړي دي يعنى كوم چه په عقل اورائې كښې كمزوري دي هغه هم الله تعالى دَ تقديرلاندې پيدا كړې دى اوڅوك چه الكيس اوچالاك او هوښيار مكار دي هغه هم الله تعالى دَ تقدير لاندې پيدا كړې دي په يوكمزوري يا طاقتوركښې خپل څه طاقت نشته ټول الله تعالى سره دى لاحول ولاقوة الابالله.

### [٨١] په عالم ارواح كښې د آدم او موسى عليهما لسلام مناظره

٨١ – ()[٣] ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ( «احْتَجَّ آدَمُ وَمُوسَى عِنْدَ رَبِّهِمَا، فَحَجَّ آدَمُ مُوسَى؟ ٢ قَالَ مُوسَى: أَنْتَ آدَمُ الَّذِي خَلَقَكَ اللَّهُ بِيَدِهِ، وَنَفَخَ فِيكَ مِنْ رُوحِهِ، وَأَسْجَدَ لَكَ مَلَائِكَتَهُ، وَأَسْكَنَكَ فِي جَنَّتِهِ، ثُمَّ أَهْبَطْتَ النَّاسَ بِخَطِيئَتِكَ إِلَى الْأَرْضِ؟ ٣ قَالَ آدَمُ: أَنْتَ مُوسَى الَّذِي اصْطَفَاكَ اللَّهُ بِرِسَالَتِهِ وَبِكَلَامِهِ، وَأَعْطَاكَ الْأَلْوَاحَ فِيهَا تِبْيَانُ كُلِّ شَيْءٍ، وَقَرَّبَكَ نَجِيًّا، فَبِكَمْ وَجَدْتَ اللَّهَ كَتَبَ التَّوْرَاةَ قَبْلَ أَنْ أُخْلَقَ قَالَ مُوسَى: بِأَرْبَعِينَ عَامًا. ٤ قَالَ آدَمُ: فَهَلْ وَجَدْتَ فِيهَا { وَعَصَى آدَمُ رَبَّهُ فَغَوَى } [طه: ١٢١] ؟ قَالَ: نَعَمْ. قَالَ: أَفَتَلُومُنِي عَلَى أَنْ عَمِلْتُ عَمَلًا كَتَبَهُ اللَّهُ عَلَيَّ أَنْ أَعْمَلَهُ قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَنِي بِأَرْبَعِينَ سَنَةً؟ ٥ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - (فَحَجَّ آدَمُ مُوسَى» ). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دي چې رسول اكرم ﷺ وفرمايل (په عالم ارواح كښې) آدم عليه السلام او موسٰي عليه السلام د خپل پروردګار په مخكې مناظره وكړه او حضرت آدم عليه السلام په حضرت موسٰي عليه السلام باندې غالب راغې، ٢ حضرت موسٰي عليه السلام اوويل ته هغه آدم يې چې الله جل جلاله په خپل لاس سره جوړ كړي وې په تاكې يې خپل روح اچولي وو، او په فرښتو باندې يې تا ته سجده كړي وه او په خپل جنت كښې يې ته ساتلي وې او بيا تاپه خپلې خطاء سره خلق زمكې ته راښكته كړل (يعنې كه تا خطا نه وه كړې نو زمكې ته به يې نه وې را ښكته كړي او ستا اولاد به په دې دنيا كښې نه خپريدلې بلكه په جنت كښې به وو) ٣ آدم عليه السلام ورته اوويل ته هغه موسٰي عليه السلام يې چې الله جل جلاله خپل منصب رسالت سره نازولي وې او په خبروكولوسره يې مشرفه كړي وې او تاته يې هغه تختې دركړې وې چې په هغه كښې د هر شي بيان وو او بيا تاته يې د سرګوشي (غوږ

[1] ) اخرجه البخاري كتاب القدر /باب تحاج آدم وموسى عند الله (رقم: ٦٦١٤) ومسلم فى كتاب القدر /باب حجاج آدم وموسى عليهما السلام(رقم-١٥ - (٢٦٥٢) وابوداود كتاب السنة /باب فى القدر(رقم-٤٧٠١) والترمذى كتاب القدر عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء فى حجاج آدم وموسى عليهما السلام (رقم-٢١٣٤) وابن ماجة فى كتاب فى الإيمان وفضائل الصحابة والعلم /باب باب فى القدر(رقم-٨٠)واحمد فى مسند:٢/١١٠.

کښې خبرو) د پاره د تقرب (نژدیکت) عزت بخښلي وو او تاته معلومه ده چې الله تعالی ﷻ زما د پیدایش څخه څومره مخکې تورات لیکلي وو؟ موسی ﷺ ورته اوویل څلویښت کاله مخکې، ۴ آدم ﷺ ځیني پوښتنه وکړه چې آیا تا په تورات کښې دا لیکل شوې لفظونه نه دي پیدا کړي وَعَصٰى اٰدَمُ رَبَّهٗ فَغَوٰى، (یعني آدم ﷺ د خپل رب نافرماني وکړه او بدحاله شو،) موسی ﷺ اوویل هو، آدم ﷺ اوویل نو بیا ته ما په هغه عمل ولې ملامت کوې کوم چې الله پاك زما د پیدایش څخه څلویښت کاله مخکې زما دپاره لیکلي وو، ۵ حضور ﷺ ارشاد او فرمايي د دې دلیل څخه) آدم ﷺ په موسی ﷺ باندې غالب رالي. مسلم

**حل اللغات:** ① اِحْتَجَّ: أَيْ: تَحَاجَّ: یعنی طلب د دلیل ئې اوکړو، ② نَفَخَ: پوک وهلې ئې وو، اچولې ئې وو، ③ أَهْبَطْتَ النَّاسَ: تا راښکته کړل خلق، (یعنی دخلقو د راښکته کولو سبب جوړشوې چه د اونې نه دې خوراک اوکړو). ④ اِصْطَفَاكَ: أَيْ: اِخْتَارَكَ: غوره کړې ئې وې ته، ⑤ الْأَلْوَاحَ: د لوح جمع ده، تختې ته وائی، ددې نه مراد د تورات تختې دې چه په هغې کښې ددین او د وعظ اونصیحت خبرې لیکلې شوې وې. ⑥ تِبْيَانُ: أَی إِظْهَارُ: واضحه او ښکاره تفصیلی بیان، ⑦ نَجِيًّا: أَی کَلَامٌ فِی السِّرِّ: سرګوشی، پټې خبرې چه په منځ کښې ئې څوک دریم واسطه نه وی، ⑧ عَصٰى: نافرمانی اوکړه (چه دخپل رب خبره ئې اونه منله). ⑨ فَغَوٰى: یعنی بد حاله او پریشانه شو. ⑩ أَفَتَلُومُنِي: آیا ته ما ملامته کوې؟

**تسهیلات:**

**قوله: اِحْتَجَّ آدَمُ وَمُوسٰى:**

**د مناظرې په محل کښې دوه احتمالات:** ① دا مناظره په عالم ارواح کښې په تجلیات رب کښې اوشود. په حدیث کښې "عندربهما" لفظ موجوددې

② دا مکالمه په لیلة الاسرىٰ کښې شوې وه.

③ په کوم وخت کښې چې په لیلة الاسراء کښې ټول پیغمبران په بیت المقدس کښې راجمع شوی وو نو دا مناظره په هغه وخت کښې شوې وه. دا زیات راجح قول دې.

④ دا مناظره به په عالم آخرت کښې کیږی.

**اشکال:** د ابن عمر رضی الله عنهما په حدیث کښې د تقدیرلیکلو مقدار پنځوس ذره کاله خودلې شوې دې اوپه دې حدیث کښې دی چې د آدم علیه السلام د پیدائش څخه وړاندې څلویښت کاله وړاندې لیکلې شوې دې.

**داشکال جواب:** ① اجمالاً تقدیرپنځوس ذره کاله وړاندې لیکلې شوې دې اوبیا دا دوباره د آدم علیه السلام د پیدائش څخه وړاندې څلویښت کاله وړاندې نقل کړې شوې دي

**قوله:** وَأَسْجَدَ لَكَ مَلَائِكَتَهُ:

**اشکال:** سجده کول خو عبادت دې آيا د غيرالله عبادت کول شرک نه دې که شرک وی نو بيا ولې فرشتو ته الله تعالی حکم اوکړو چې آدم عليه السلام ته سجده اوکړئ؟

**داشکال درې جوابونه:** ① سجده خو الله تعالی ته وه آدم عليه السلام صرف د جهت او طرف په اعتبار سره قبله ګرځولې شوې وه.

② دا تعظيمی سجده وه عبادتی سجده نه وه. په مخکنو شريعتونوکښې تعظيمی سجده جائز وه په امت محمدی کښې تعظيمی سجده ناجائز ده.

③ دسجدې څخه شرعی سجده مراد نه ده بلکه لغوی سجده مراد ده يعنی تيټيدل او تيټيدل حرام نه دی.

**قوله:** أَهْبَطْتَ النَّاسَ بِخَطِيئَتِكَ إِلَى الْأَرْضِ:

**اشکال:** په کوم وخت کښې چې آدم عليه السلام د جنت څخه دنيا ته راکوزيدل نو هغه وخت کښې دوی يواځې وو. صرف بی بی حوا ورسره وه نو بيا دا څنګه اووئيلې شو چې تا خلق زمکې ته راکوز کړل.

**داشکال درې جوابونه:** ① د راروان وخت په اعتبار سره خلق شامل کړې شوی دی.

② الناس دجمعې صيغه ده او دجمعې اطلاق د بعضې عالمانو په نيزپه ما فوق الواحد باندې هم کيږی او د آسمان څخه آدم عليه السلام سره بی بی حوا هم وه نو دواړه ما فوق الواحد دی ددې وجې پرې د الناس اطلاق صحيح شو.

③ د آدم عليه السلام سره بی بی حوا او شيطان هم وو. په دې اعتبار سره د جمعې صيغه الناس ذکر کړې شوې او شيطان اګرچې انس نه دې خو آدم عليه السلام اوبی بی حوا دواړه انسانان وو د انسانانو د غلبې په وجه شيطان باندې هم تغليباً د انس اطلاق اوشو.

**قوله:** {وَعَصَىٰ آدَمُ رَبَّهُ فَغَوَىٰ}

ددې جملې تفسيرزه د معارف القرآن مفتی شفيع رحمه الله څخه نقل کوی دا اوګورئ.

**اشکال:** مفتی صاحب رحمه الله فرمائی دې آيت څخه د اسوالونه راپورته کيږی چې آدم عليه السلام او حواء هر کله چې الله ﷻ د يوخاص ونې د خوړلو اودهغې خواته د تلو څخه منع کړې وو او ورسره په دې هم خبرداره کړې شوې وو چې شيطان ستاسو ښکاره دښمن دې د هغه د مکر اوفريب څخه ځان ساتی، هسې نه چې د جنت نه مو اوباسی.

ددې باوجود ددې دغه اولوالعزم د لوړې درجې پيغمبر د شيطان په دهوکه کولو کښې څنګه راغلو، ولې چې دا ښکاره نافرمانی اوګناه ده حالانکه جمهور امت پدې اتفاق لری چې پيغمبران عليهم السلام د هرې ورې او لوې ګناه څخه محفوظ وی.

ددې تولو سوالونو جوابونه هم په دې تفسیر معارف القرآن کښې سورۀ بقره اوله سیپاره کښې ورکړې شوی دی، هلته یې اوګورئ.

**داشکال جواب:** دلته د عَصٰی او غَوٰی صفا الفاظ د آدم ﷺ دپاره استعمال شوی دی، ددې وجه هم په سورة بقره کښې بیان شوې ده، هغه داسې چې اګر که د آدم ﷺ دغه عمل د شرعی قانون تر مخه په ګناه کښې داخل نه وو لیکن آدم ﷺ رسول او په خاص نزدیکانو دالله ﷻ کښې حساب وو ځکه دهغوئ ﷺ معمولی ښوئیدو ته هم عصیان اوفرمائیلې شو، او په هغې زورنه ورکړې شوه، دغه شان د غوی لفظ د دوؤ معنو دپاره استعمالیږی، یو دې دپاره چې دنیوی ژوند لنډ تنګ شی اوعیش او روزګار وغیره یې خراب شی، بله معنی یې ګمراه کیدل یا غافله کیدل دی، د تفسیر امامانو قشیری ﷫ او قرطبی ﷫ وغیره دلته د غوی لفظ ړومبئ معنی اختیار کړې ده، مراد دادې چې دآدم ﷺ د جنت د مزو د ژوند په ځائې دمحنت مشقت ژوند شو.(۱)

**دپیغمبرانو دپاره کښې ضروری هدایت:** د پیغمبرانو ﷺ باره کښې یو ضروری هدایت د هغوئ د ادب او احترام حفاظت کول: دعصی وغیره قسم الفاظ د قرآن کریم چې د آدم ﷺ په باره کښې استعمال شوی دی، قاضی ابوبکر ابن عربی په خپلو الفاظو کښې دهغې متعلق داسې راې ښکاره کوی:

لایجوز لاحدنا الیوم ان یخبر بذلك عن ادم الا اذ ذکرناه فی اثناء قوله تعالی عنه اوقول نبیه فاما ان یبتدی ذلك من قبل نفسه فلیس بجائز لنا فی ابآئنا الادنین الینا الماثلین لنا فکیف ابینا الاقدم الاعظم الاکرام النبی المقدام الذی عذره الله سبحانه وتعالی وتاب علیه وغفرله

نن هیچا دپاره دا جائز نه دی چې آدم ﷺ ته د عصیان لفظ منسوب دی، سوا دهغې ځځه چې د قرآن کریم ددې ایت یا د حدیث نبوی په ضمن کښې راغلې وی ولې چې داسې قسم الفاظ منسوب کول د خپل طرفنه خپلو نزدې پلرونو نیکونو ته هم جائز نه دی بیا هغه ړومبې پلار ته یې د تولو پلرونو نیکونو نه وړاندې لوې او عزت مند او دالله ﷻ عزت مند پیغمبر دې، الله ﷻ یې عذر قبول کړو د معافئ اعلان یې دده دپاره اوکړو[تفسیر قرطبی و بحر محیط](۲)

**دامام قشیری اوابونصر رحمهما الله رائې:** ځکه قشیری اوبو نصر فرمائیلی دی چې ددې لفظ په وجه آدم ﷺ ته عاصی او غاوی وئیل جائز نه دی چرته چې په قرآن پاك کښې د یو پیغمبر دپاره دغه شان الفاظ راغلی دی یا خو د خلاف اولی په باره کښې دی یا د پیغمبر کیدو نه وړاندې وخت دپاره دی، لهذا دقرآنی آیتونو او دحدیث پاك د روایاتو

(۱) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة[ ج:۱۱ص:۲۵۷]
(۲) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة[ ج:۱۱ص:۲۵۵، ۲۵٦] و أحکام القرآن لابن العربي [ج: ۵ص:۳٦۰]

په ضمن کښې خو دهغې بیانول صحیح دی، خو دخپله طرفه د هغوئ ﷺ په شان کښې
دداسې لفظونو د استعمال اجازت نشته دې [قرطبی] [1]

**قوله: فَحَجَّ آدَمُ مُوسَى:**

**اشکال:** دلته شبه داده چه حضرت آدم علیه السلام دحضرت موسیٰ علیه السلام د اعتراض جواب دالله تعالی په وړاندې دتقدیرحواله ورکولوسره ورکړو دې سره به دګناه دروازه کولاؤشي ځکه چه هرمجرم به دتقدیر حواله ورکوی او وائی به چه کومه ګناه ما کړې ده په تقدیرکښې هم دغه شان لیکلې وه زما په دې کښې څه قصوردې؟

**داشکال جواب:**

① دا د آدم علیه السلام د نبوت څخه وړاندې واقعه ده ځکه چې معصیت د عصمت منافی دې.

② په معصیت باندې د تقدیرد لیکلوعذرپیش کول دتوبې د قبولیت نه پس شوې وو او د توبې د قبولیت څخه دا عذر پیش کول جائز دی.

③ تقدیر دمصائب راتلونه پس دتسلئی اطمینان او سکون دپاره وی نوحضرت موسیٰ علیه السلام د خپل درد اوتکلیف اظهاراوکړو چه ګوره ته خطا شوې ټول عالم په تکلیف اومصیبتونوکښې راګیرشو. حضرت آدم علیه السلام جواب ورکړو اوهم داسې شوی دی خو څه اوکړو په تقدیرکښې هم داسې لیکلې وو اوس په دغه مصیبتونوباندې صبر کول پکاردی لکه چه حضرت موسیٰ علیه السلام په عمل باندې اعتراض اونه کړو صرف د همدردئی او مصیبت اظهارئی اوکړو مګر په ظاهری نظر کښې چه کله وینی اورې نوهغه هم دا ګڼړی چه دا اعتراض دې نودې جواب د دریو مقدماتوپه پوهه باندې موقوف دې.

④ د څلورم جواب دپاره دلته مونږ درې مقدمات بیانوو. هغه مقدمات ثلاثه دا دی. (ا)دا سوال په عالم ارواح کښې شوې دې په عالم اسباب کښې نه. (ب) په ظاهره دا اعتراض د قبلولیت توبه نه پس شوې دې. (ج) مجرم لره ملامت کول په عالم اسباب کښې کیږی دې دپاره چه د خپل جرم نه توبه اوکړی او منع شی اونور خلق عبرت واخلی.

کله چه دا دریواړه مقدمات تیارشو نواوس جواب واؤرئی، په عالم ارواح کښې دتوبې قبلیدلونه پس د مجرم د منع کیدود امکان نه بغیر یاد چاد فائدې او عبرت حاصلولو نه بغیر دحضرت موسیٰ علیه السلام دا کلام په ظاهره صرف الزام وو. دکوم په جواب کښې چه حضرت آدم علیه السلام هم احتجاج بالتقدیر کولو سره جواب ورکړو چه زما څه قصور وو په تقدیرکښې هم داسې لیکلې وو لکه چه هغوی اشاره اوکړه چه په عالم ارواح کښې دتوبې دقبلیدونه پس دغرضِ اصلاح نه بغیر په سابقه ګناه باندې د ملامت کونکی هم دغه جواب کیدې شی.

[1] ) تفسیر القرطبي [ ج:۱۱ص:۲۵۷]

## [۸۲] د تقدير ليکل شوي څيزونه

۸۲-()[۳] [۱] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: حَدَّثَنَا رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -، وَهُوَ الصَّادِقُ الْمَصْدُوقُ: [۲] «إِنَّ خَلْقَ أَحَدِكُمْ يُجْمَعُ فِي بَطْنِ أُمِّهِ أَرْبَعِينَ يَوْمًا نُطْفَةً، [۳] ثُمَّ يَكُونُ عَلَقَةً مِثْلَ ذٰلِكَ، ثُمَّ يَكُونُ مُضْغَةً مِثْلَ ذٰلِكَ، [۴] ثُمَّ يَبْعَثُ اللّٰهُ إِلَيْهِ مَلَكًا بِأَرْبَعِ كَلِمَاتٍ: فَيَكْتُبُ عَمَلَهُ، وَأَجَلَهُ، وَرِزْقَهُ، وَشَقِيٌّ، أَوْ سَعِيدٌ، [۵] ثُمَّ يُنْفَخُ فِيهِ الرُّوحُ فَوَالَّذِي لَا إِلٰهَ غَيْرُهُ إِنَّ أَحَدَكُمْ يَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ حَتَّى مَا يَكُونُ بَيْنَهُ، وَبَيْنَهَا إِلَّا ذِرَاعٌ، فَيَسْبِقُ عَلَيْهِ الْكِتَابُ، فَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ فَيَدْخُلُهَا. [۶] وَإِنَّ أَحَدَكُمْ لَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ حَتَّى مَا يَكُونُ بَيْنَهُ وَبَيْنَهَا إِلَّا ذِرَاعٌ فَيَسْبِقُ عَلَيْهِ الْكِتَابُ، فَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَيَدْخُلُهَا»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن مسعود ﷺ روايت کوي چې نبی کريم ﷺ مونږ ته وفرمايل [۲] په تاسو کښې د هرسړي تخليق داسې کيږي چې (مخکې) د هغه نطفه دمور په رحم کښې څلويښت ورځې جمع (پرته) وي، [۳] بيا دومره ورځې يعنی څلويښت ورځو څخه وروسته هغه چکي شوې وينه جوړيږي، بيا دومره ورځې وروسته هغه دغو ښي ټکړه شي. [۴] بيا الله تعالی ﷻ هغه ته يوه فرښته د څلور خبرو د ليکلو د پاره راوليږي، نو هغه فرښته د هغه ① عمل ② د هغه دمرګ وخت ③ د هغه د زرق مقدار ④ او د هغه بدبخت او نيک بخت کيدل (د الله ﷻ په حکم سره) د هغه په تقدير کښې ليکي، [۵] قسم دي په هغه ذات چې د هغه څخه سوا بل معبود نشته په تاسو کې يوسړي د جنتيانو په شان عمل کوي، تردې چې د هغه او د جنت په مينځ کښې يوازې د يولاس فاصله پاتې شی چې د تقدير ليک رامخکي شی او هغه د دوزخيانو په شان کار کول شروع کړي او هغه په دوزخ کښې داخل شي، [۶] اوپه تاسو کښې يو سړي د دوزخيانو په شان اعمال کوي تر دې چې د هغه او د دوزخ تر مينځ يوازې د يو لاس فاصله پاتې شی چې د تقدير ليک را مخکې شی او هغه د جنتيانو په شان کار کول شروع کړي او په جنت کښې دا خل شي. بخاري مسلم

**حل اللغات:** ① الصَّادِقُ : د اسم فاعل صيغه ده، ډير ريښتوني، رشتيا ويونکي، ② الْمَصْدُوقُ: داسم مفعول صيغه ده، رشتيا ګڼرلې شوي، (بعضې وخت يو سړې ريښتوني وی مګر خلق هغه ريښتوني نه ګڼري. نوونی فرمائيل چه حضورپاك ريښتوني هم دي او دنيا والا نی ريښتوني ګڼري هم.) ③ عَلَقَةٌ : أَيْ: دَمًا غَلِيظًا جَامِدًا: چکه وينه. ④ مُضْغَةٌ : أَيْ: قِطْعَةَ لَحْمٍ: د وينې ټکره. ⑤ شَقِيٌّ: بد بخت، ⑥ سَعِيدٌ: نيک بخت، ⑦ ذِرَاعٌ: لاس، شرعی ګز (ددې نه مراد نزديکت دې). ⑧ فَيَسْبِقُ : أَيْ: يَغْلِبُ عَلَيْهِ: رامخکښې شی، غالب شی.

[۱] ) اخرجه البخاری کتاب بدء الخلق /باب ذکر الملائکة(رقم-۳۲۰۸) ومسلم فی کتاب القدر باب کيفية خلق الآدمی فی بطن امه وکتابة رزقه واجله وعمله وشقاوته وسعادته(رقم-۱ - (۲۶۴۳) وابوداود کتاب السنة/باب الدليل علی زيادة الإيمان ونقصانه(رقم-۴۷۰۸) والترمذی کتاب القدر عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء أن الأعمال بالخواتيم (رقم-۲۱۳۷) وابن ماجة کتاب فی الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فی القدر(رقم-۷۶)

**تسهيلات:**

**توله:** حَدَّثَنَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**دحدثنا په صيغه سره د روايت عظمت:** دلته حدثنا هغه مبارك لفظ حضرت ابن مسعود ﷺ استعمال كړې دې چه په لاكهونو اولياؤ الله او محدثين عظامو په ډير زيات احتياط سره ساتلې. بيا دَ خوند خبره دا ده چه محدث دَحضورپاك ذات بابركات دې. دغه شان په واقعه دَ دجال حديث كښې رسول الله ﷺ دغه مبارك لفظ [حدثني تميم الداري] فرمائيلو سره استعمال كړې دې. دا دَ محدثين كرامو او شيوخ الحديث دَپاره لوئى اعزازدې.

**توله:** وَهُوَ الصَّادِقُ الْمَصْدُوقُ:

**دصادق اومصدوق په مفهوم كښې دري اقوال:** ① صادق هغه وى چې ټول اقوال ئې رښتينى وي اومصدوق هغه وى چې د هغه ټول اعمال رښتيا وى.

② صادق هغه دې چې په ښه بد پوهه شى نو رښتيا وائى اومصدوق هغه دې چې د ابتداء څخه رښتيني وى.

③ صادق هغه دې چې د واقعه موافق خبر وركوى او مصدوق هغه وى چې كوم خبر وركړى نو واقعه د هغې مطابق واقع كيږى. په نبى ﷺ كښې دا ټول صفات جمع وو.

**په صادق او مصدوق كښې فرق:** صادق في نفسه رښتيني وى او مصدوق من غيره رښتيني وى. يعنى نورخلق هم هغه ته رښتيني وائى.

**توله:** يُجْمَعُ فِي بَطْنِ أُمِّهِ: حافظ توريشتى ﷫ دَ حضرت ابن مسعود ﷺ يو روايت ذكركړې دې په كوم كښې چه ذكر دى چه نطفه څلويښت ورځو پورې دَ بچى دَ مور په ټول بدن كښې تردې چه ديو يو ويښته او دهر يو نوك لاندې ګردش كوى اودې نه پس دَ وينې په شكل كښې رحم ته تلو سره قرار نيسى. هم داحقيقت په دې روايت كښې [يجمع فى بطن امه] كښې ذكركړې شوې دې.

**توله:** اربعين يوما:

**په مختلفومرحلوكښې د انسان په پيدائش كښې حكمتونه:** ① په دې كښې انسان ته د تدريج تعليم وركول دى چې زه سره د قدرته انسان په څلويښتو ورځو كښې پيدا كوم نو تاسو زما پشان قدرت نه لرئ ولې تلوار كوئ.

② انسان چې په خپلو دې مراحلو باندې نظر اوكړى نو تكبر به كوى.

③ په دې كښې په مور باندې ډيربوج نه وى بلكه په مزه مزه دهغې بدن د رحم د بوج سره بلديږى.

**اشکال:** ددې حدیث څخه معلومیږی چې فرښتې د دریم اربعین څخه روسته راځی او د مسلم په روایت کښې دی چې څلویښت ورځې پس فرښتې راځی او د نطفه څخه علقه او مضغه جوړیږی نو په دواړو روایاتو کښې تعارض دې.

**داشکال جواب:** د مسلم په روایت کښې چې د کوم راتګ ذکر دې دهغې څخه فرشته مراد ده چې د نطفې حفاظت کوی اودلته چې د کومې راتګ ذکر دې نو ددې څخه دتقدیرلیکلو واله فرشته مراد ده.نوځه تعارض پاتې نشو.

**قوله: فیکتب عمله:**

**دفرشتو د لیکلو په محل کښې احتمالات:** ① دا لیکل د ماشوم په تندی لیکلی شی

② هغه په لاس لیکلی شی

③ په څه تختی یا کاغذ باندې اولیکلی شی اودهغه په غاړه کښې واچولې شی خو مونږ ته په نظر نه راځی.لکه څنګه چې د حفاظت فرشتې موجود وی خو مونږ ته په نظر نه راځی.

**اشکال:** په دې روایت کښې د څلور خبرو لیکلو ذکر دې او په نورو روایاتوکښې د پنځو خبرو لیکلو ذکر دې دا ښکاره تعارض دې.

**داشکال درې جوابونه:** ① په دې روایت کښې اختصار دې او هلته تفصیل دې

② عدد اقل د اکثر نفی نه کوی.

③ هلته ئې دوه جدا جدا ذکر کړی دی او دلته ئې دواړه په یوځائې ذکر کړی دی

**اشکال:** د دې روایت څخه معلومیږی چې اول تقدیرلیکلی شی بیا روح پوک وهلی شی او د بیهقی په روایت کښې ددې بالعکس دی.

**داشکال دوه جوابونه:** ① د بیهقی روایت واقعی نه دې

② د بیهقی روایت مرجوح دې او د مشکاة روایت راجح دې.

**قوله: فَیَعْمَلُ:** دَ الله تعالی په عمل کښې دا دَ اول نه وه چه دا سړې به په خپل کسب او اختیار سره دا کار کوی دَ کوم په وجه چه به دَ جنت یا دوزخ مستحق جوړیږی. دې نه پس په لوح محفوظ کښې په توګه دَ تقدیر اولیکلې شو. فرښتې دَ مور په خیټه کښې ماشوم سره متعلق چه څه لیکی هغه هم دَ دغه تقدیر مطابق دَ لوح محفوظ نه اخستو سره لیکی. فیعمل سره دا اشاره اوکړې شوه چه دَ بنده کسب دَ دخول جنت او دخول دوزخ دَپاره ضروری سبب دې. صرف دَ تقدیر په لیکلو باندې دخول نه دې نو انسان نه مجبور دې اونه مختار دې.

**قوله**: فَيَسْبِقُ عَلَيْهِ الكِتَابُ:

**د تقدیری لیکلو مسابقت**: معلومه شوه چه اعمال امارات، علامات او اسباب دی. اصل فیصله دَتقدیرِ الهی دَ وجې نه کیږی. نو آخر هم دَهغه طرف ته واپس راګرځیدل دی.

**قوله**: فَيَدْخُلُهَا:

**د سوء خاتمې څخه ویره**: په دې حدیث کښې دَ سالك دَپاره تنبیه ده چه هروخت دې په خوف او رجاء کښې اوسی. دعجب تکبر او دبدو اعمالو نه دې ځان اوساتی. اصل اعتبارَ خاتمې دې.

**[۸۲] په خاتمه باندې د اعمالو دارومدار**

۸۳ـ()[۵]۱ وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: «إِنَّ الْعَبْدَ لَيَعْمَلُ عَمَلَ أَهْلِ النَّارِ، وَإِنَّهُ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ، ۲ وَيَعْمَلُ عَمَلَ أَهْلِ الْجَنَّةِ، وَإِنَّهُ مِنْ أَهْلِ النَّارِ ۳ وَإِنَّمَا الْأَعْمَالُ بِالْخَوَاتِيمِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ۱ او حضرت سهل بن سعد ﷺ روایت کوي چې نبی کریم ﷺ وفرمایل چې بنده د دوزخیانو رنګه کارونه کوي لیکن هغه جنتي وي ۲ او د جنتیانو رنګه کارونه کوي خو هغه دوزخي وي، ۳ ځکه چې (دخلاصی لار او عذاب) دار ومدار په آخري خاتمي باندې دي. بخاري او مسلم

**حل اللغات**: ① الْخَوَاتِيمِ: أَيْ: بِمَا يَخْتِمُ عَلَيْهِ أَمْرُ عَمَلِهَا: یعنی په کوم عمل چه دانسان خاتمه اوشی.

**تسهیلات**:

**قوله**: إِنَّ الْعَبْدَ لَيَعْمَلُ عَمَلَ أَهْلِ النَّارِ:

**د سوء خاتمې څخه ویریدل**: یعنی د الله ﷻ په علم کښې وو چې هر کس به په خپل کسب او اختیار دا فعل کوی، نو اګر چې ظاهر کښې هغه بهٔ اهل جنت ښخه په نظر ښکاری خو د الله ﷻ د علم مطابق به هغه دوزخی وی. او آخر ده دَ اهل دوزخ عمل په خپل کسب او اختیار سره اوکړو نو د اهل دوزخ ښخه شو. داشان معامله ددې بل رخ هم ده، نودَ اعمالو دارومدار په خاتمه باندې دې. په عالم غیب کښې دَ چا متعلق دا فیصله نه شی کولې چه دا دوزخی یا جنتی دې. دا مطلب نه دې چې یو مسلمان د خاتمې په اعتبار سره مسلمان وثیل پریږدی. هرکله چې هغه د شریعت پابند دې نو معامله به دمسلم وی، خو د عالم غیب خبره جدا ده. د هغه ځائې فیصله د یو کافر مسلم دپاره د اوسه نه شی کیدې ځکه چې دارومدار په خاتمه باندې دې. حدیث د طاعاتو د کثرت تعلیم ورکړې دې او عجب

[۱] ) اخرجه البخاری کتاب القدر /باب: العمل بالخواتیم (رقم-۶۶۰۷) ومسلم فی کتاب الإیمان/باب غلظ تحریم قتل الإنسان نفسه، وأن من قتل نفسه بشيء عذب به فی النار، وأنه لا یدخل الجنة إلا نفس مسلمة(رقم-۱۷۹ - (۱۱۲)

او تكبرنه ئې منع كړې ده. دا شان د ظاهري اعمالو په وجه په چا باندې د اهل جنت يا اهل جهنم حكم نشي لګولې، ظاهري اعمال صرف علامات دي، اصل فيصله هم هغه ده کومه چې تقدير کښې ليکلې شوې ده.

## [٨٤] د جنت او دوزخ فيصله او تقدير

٨٤-()[٦] ①وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ: «دُعِيَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِلَى جِنَازَةِ صَبِيٍّ مِنَ الْأَنْصَارِ، ②فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ طُوبَى لِهَذَا عُصْفُورٌ مِنْ عَصَافِيرِ الْجَنَّةِ، لَمْ يَعْمَلِ السُّوءَ، وَلَمْ يُدْرِكْهُ. ③فَقَالَ: (أَوَغَيْرُ ذَلِكِ يَا عَائِشَةُ) إِنَّ اللَّهَ خَلَقَ لِلْجَنَّةِ أَهْلًا خَلَقَهُمْ لَهَا، وَهُمْ فِي أَصْلَابِ آبَائِهِمْ، ④وَخَلَقَ لِلنَّارِ أَهْلًا، خَلَقَهُمْ لَهَا، وَهُمْ فِي أَصْلَابِ آبَائِهِمْ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې د يو انصاري ماشوم په جنازه کښې نبي کريم ﷺ راوغوښتل شو، ② ما اوويل يا رسول الله ﷺ چې دي ماشوم ته دي خوشحالي وي دي خو د جنت د مرغيو څخه يوه مرغي ده ده خو نه څه غلط کار کړي دي او نه د بدي وعمرته رسيدلي دي، ③ حضور ﷺ وفرمايل اي عائشي! چې د دې څخه ما سوا به نور څه وي؟ يعنی د ده د جنتي کيدو مضبوط يقين مه کوه ولې چې الله پاك د جنت د پاره هم مستحق خلق پيدا کړي دي، کله چې هغه د خپلو پلارانو په شاګانو کښې وه. ④ او الله پاک د دوزخ دپاره هم مستحق خلق پيدا کړی دی کله چه هغوی دخپلو پلارانو په شاګانو کښې وو. مسلم

**حل اللغات:** ① دُعِيَ: مجهول صيغه ده، راوبللې شو، ② صَبِيّ: ماشوم، ③ طُوبَى: مَعْنَاهُ فَرَحٌ: خوشحالي او خير دې وی، ④ عُصْفُورٌ: أَيْ: طَيْرٌ صَغِيرٌ: وړه مرغئ، چنچڼه، ⑤ السُّوءُ: أَيِ الذَّنْبُ: بدی، ګناه، ⑥ أَصْلَابِ: د صُلب جمع ده، شاګانو ته وائی.

**تسهيلات:**

**قوله: عُصْفُورٌ مِنْ عَصَافِيرِ الْجَنَّةِ:**

**په تشبيه کښې دوه اقوال:** ① ملا علی قاری رحمه الله فرمائی داتشبيه بليغ ده او په جنت کښې دَ عصافير کيدل "ولحم طير مما يشتهون" سره ثابت دی.

② داتشبيه نه ده ځکه چه په جنت کښې دَ مشبه به دَپاره دَ عصافيردَ چرچڼو وجود نشته دې دغه شان داځه استعاره وغيره هم نه ده بلکه داکلام په دعویٰ اوادعاء باندې مبنی دې چه اول دعویٰ اوکړې شوه چه په جنت کښې چرچڼې دی اوبیادې سره تشبيه ورکړې شوه. دَ حضرت عائشه رضي الله عنها خيال وو چه داجنتی دې.

---

[1] اخرجه مسلم كتاب القدر باب معنى كل مولود يولد على الفطرة وحكم موت أطفال الكفار وأطفال المسلمين(رقم-٣٠-(٢٦٦٢) والنسائي كتاب الجنائز/باب الصلاة على الصبيان(رقم-١٩٤٧)واحمد في المسند:٦/٢٠.

**قوله: فَقَالَ: أَوَغَيْرُ ذٰلِكِ يَا عَائِشَةُ:**

**مذکوره جملې په ترکیب کښې درې اقوال:** ① ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی دَ مشهورروایت مطابق دا عبارت دَ "واؤ" په فتحې او دَ راء په ضمې او دَ کاف په کسرې سره دې لکه چه واؤ حالیه دې اصل عبارت داسې دې "أتعتقدين ما قلت والحق غيرذلك" اوهغه داچه په یقینی توګه باندې داسې نه شی وئیلې چه داماشوم دَاهل جنت نه دې.

② علامه طیبی رحمه الله "اوغيرذلك" کښې واؤ دَ او په معنی کښې هم اخستې دې یعنی "الواقع هذا أوغيرذلك" ③ دا واؤ دَ بل په معنی کښې وی.

**قوله: وَهُمْ فِي أَصْلَابِ آبَائِهِمْ:**

**د پلرونو په شاګانو کښې د هرکس د انجام علم:** یعنی دَالله تعالی په علم ازلی کښې دَاول نه دامعلومه وه چه داخلق دوزخیان دی یا جنتیان دی. اصلاب دَ آباؤ دَ وخت نه معلوم وه اوهم دغه شان په لوح محفوظ کښې هم اولیکلې شو لیکن دا هرڅه دَهغه اشخاصو تفصیلی اعمالولره تفصیلاً کتلوسره لیکلې شوی دی. باالآخربه هغه خلق په خپل کسب اواختیار اودَ خپلو افعالو اواعمالودَوجې نه په خپل خپل مقام ته ځی.

**اشکال:** د مؤمنانود بچو باره کښې خو د روراياتو څخه معلومه ده چې دوی به جنتیان وی نو بیا نبی علیه السلام به عائشه رضي الله عنها باندې اعتراض ولې اوکړو؟

**داشکال درې جوابونه:** ① دادَهغه وخت خبره ده کوم وخت چه په حضورپاك باندې دَاطفالو باره کښې وحی نه وه راغلې. روستو وحی راغله چه اطفال به په جنت کښې وی.

② ماشومان چونکه د والدینو تابع وی اود والدینو باره کښې په یقین سره نشی وئیلې چې دا جنتیان دی ددې وجې نبی علیه السلام په عائشه رضي الله عنها باندې انکار اوکړو.

③ نبی کریم ﷺ حضرت عائشه رضي الله عنها ته دا تعلیم ورکړوچه بغیردَ څه قطعی علم نه قطعی حکم او قطعی فیصله مناسب نه دی ځکه چه ماشومان دَ مورپلار تابعدار وی کیدې شی چه دَ پلار خاتمه بالخیرنه وی بلکه څه بل څه وی.

## [٨٥] آیا مونږ په لیکلې شوی تقدیر بهروسه وکړو او عمل پریږدو؟

٨٥-( )[٤] ① وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: «مَا مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا وَقَدْ كُتِبَ مَقْعَدُهُ مِنَ النَّارِ، وَمَقْعَدُهُ مِنَ الْجَنَّةِ». ② قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَفَلَا نَتَّكِلُ عَلَى كِتَابِنَا، وَنَدَعُ الْعَمَلَ؟

[١] اخرجه البخاري كتاب الجنائز /باب موعظة المحدث عند القبر، وقعود أصحابه حوله (رقم-١٣٦٢) ومسلم كتاب القدر /باب كيفية خلق الآدمي في بطن أمه وكتابة رزقه وأجله وعمله وشقاوته وسعادته (رقم-٦ - (٢٦٤٧) والترمذي كتاب القدر عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء في الشقاء والسعادة (رقم-٢١٣٥) وابن ماجة كتاب في الإيمان وفضائل الصحابة والعلم /باب التغليظ في تعمد الكذب على رسول الله صلى الله عليه وسلم (رقم-٣١)

٢ قَالَ: اعْمَلُوا فَكُلٌّ مُيَسَّرٌ لِمَا خُلِقَ لَهُ؛ ٣ أَمَّا مَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ السَّعَادَةِ فَسَيُيَسَّرُ لِعَمَلِ السَّعَادَةِ، ٥ وَأَمَّا مَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الشَّقَاوَةِ فَسَيُيَسَّرُ لِعَمَلِ الشَّقَاوَةِ، ٦ ثُمَّ قَرَأَ: ﴿فَأَمَّا مَنْ أَعْطَى وَاتَّقَى - وَصَدَّقَ بِالْحُسْنَى﴾ [الليل: ٥-٦] الْآيَةَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ او حضرت علي كرم الله وجهه روايت كوي چې نبى كريم ﷺ وفرمايل په تاسو كښې د هر سړي ځاي الله تعالى ﷻ په جنت او دوزخ كښې ليكلي دي، (يعني دا معلومه شوې ده چې كوم خلق جنتيان دي او كوم خلق دوزخيان دي) ٢ صحابه وُ ﷺ عرض وكړو يا رسول الله ﷺ چې آيا مونږ په خپل ليكل شوي تقدير بروسه ونكړو؟ او عمل پرېږدو، ٣ رسول الله ﷺ وفرمايل تاسو عمل كوي ځكه چې كوم سړي د كوم شي د پاره پيدا شوي دي هغه ته به په هغه باندې آساني اوتوفيق وركول كيږى، ٤ نو چې كوم سړي د نيك بختي اهل وي الله پاك ﷻ هغه ته د نيك بختي دعملونو توفيق وركوي ٥ او كوم سړي چې د بد بختي اهل وي هغه ته د بد بختي د عملونو موقع وركول كيږى، ٦ د دې وروسته حضور ﷺ دا آيت اووئيلو (ترجمه) چاچې د الله په لاركي څه وركړه، پرهيزګاري يې وكړه او ښه خبره ( دين واسلام) يې رشتيني ومنلي هغه ته به مونږ د آسانتيا ځاي (جنت) آسانه كړو، ليكن چا چې بخل اوكړو او(د نفساني خواهشاتو اود دنيا په رنګ وروغن كښې ګيرشو) اود آخرت د نعمتونو څخه بې پرواشو، او بهتره خبره (دين واسلام) يې دروغ وګڼل نو د هغه دپاره به ګران ځاي (د دوزخ لاره) آسانه كړو الخ. بخاري ومسلم

**حل اللغات:** ① مَقْعَدُهُ: أَيْ: مَوْضِعُ قُعُودِهِ: ځائي د اوسيدو. ② أَفَلَا نَتَّكِلُ: أي أَفَلَا نَعْتَمِدُ: آيا مونږ اعتماد اونه كړو. ③ مُيَسَّرٌ: أي مُوَفَّقٌ، وَمُهَيَّأٌ لِمَا خُلِقَ لَهُ: يعنى څه دپاره چه پيدا دې دهغه كار ورته وركړې شوي او آسان كړې شوي دي، ④ السَّعَادَةِ: نيک بخت (جنت والا خلق، ⑤ فَسَيُيَسَّرُ: أَيْ: يُسَهَّلُ، وَيُوَفَّقُ: ورته آسانولي شی، توفيق ورته وركولې شي. ⑥ الشَّقَاوَةِ: بد بخته (دا د سعادة ضد دې). ⑦ وَاتَّقَى: أَيْ: خَافَ مُخَالَفَتَهُ: اويرېږي د الله تعالى د نافرمانۍ او دهغه دعذاب نه، او د ګناهونو نه ځان اوساتي. ⑧ الْحُسْنَى: كلمه طيبه يعنى لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ.

**تسهيلات:**

**قوله:** كُتِبَ مَقْعَدُهُ مِنَ النَّارِ:

**ليكل دعلم مطابق كيدل:** يعنى الله ﷻ خپل علم ازلى كښې اوليكل چې ددې سړى خاتمه به په خپل كسب او اختيار په كفر باندې كيږى نو دده مقام به جهنم وى. يا به ددې خاتمه په خپل كسب او اختيار په ايمان باندې كيږى نو دده مقام به جنت وى.

**قوله:** قَالَ: اعْمَلُوا:

**د مذكوره جملې په مفهوم كښې دوه اقوال:** ① د علامه خطابى ﷫ رائې ده چې دلته اصل

كښې دوه څيزونه دي، يو تقدير الهي دې كوم چې امر باطني دې. او هم دا څيز مؤثر حقيقي دې، او دخول د جنت يا جهنم ذريعه دې. بل امر ظاهري دې كوم چې د بنده اعمال دي كوم چه په تقدير باندې مرتب كيدلو دپاره د امارت ظاهريه او علامات ظاهريه حيثيت لري.او خپله في نفسه علت نه دي. صحابه كرامو غوښتل چې دا امر ظاهري يعني اعمال پريږدي او امر باطني يعني په تقدير باندې اكتفاء اوكړي، نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چې دا صحيح نه دي بلكه امر ظاهري اختيار كړئ څكه چې په دې سره دَ امر باطني دپاره آساني پيدا كيږي او دا امر باطني باندې په طور د دليل او قرينه پيش كولې شي.

④ دعلامه طيبي رحمه الله دقول مطابق د صحابه كرامو منشاء داوه چې هغوئ خيال اوكړو چې هركله د هر كس مقام د اول څخه جنت يا دوزخ دې نو ددې اعمالو بيا څه ضرورت پاتې شو. په دې وجه هغوئ د ترك عمل اجازت طلب كړو. نو نبي كريم ﷺ ورته په جواب كښې د عمل كولو ترغيب وركړو. او اهميت ئې ورته بيان كړو چې عمل او عبادت و معبوديت حق دَ الوهيت دې نو د عبديت تقاضا داده چې په عمل كښې مشغول اوسه. او ددې څخه خپل خان برى الذمه مه گنړه. اگر چې الله ﷻ هر چا دپاره يو مقام ليكلى دې خو ستا عملونه دغې مقام ته دَ رسيدو دَ پاره ظاهري اسباب دي. او هر كس ته به د هغه دَ مقام دَ اعمالو مطابق توفيق وركولې كيږي. نو اعمال علت نه دې مگر علامت ضرور دې چې دا كس د څه قسمه مقام په تيارئ كښې لگيا دې. نود هر يو د عمل څخه به د هغه د انتهاء سفر معلومات كيږي. [إن خيرا فخير وأن شر أفشر] نو تقدير د تعطل د اعمالو ذريعه نه دهَ بلكه په عملونو كښې د تيزې كولو سبب دې. [الكاشف ۲۴۳، ۱/۲۴۴]

### [۸٦] ليكل شوې عمل به ضرور دهغه څخه كيږي

| ۸۶–( )[۸] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ- صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: «إِنَّ اللَّهَ كَتَبَ عَلَى ابْنِ آدَمَ حَظَّهُ مِنَ الزِّنَا، أَدْرَكَ ذَلِكَ لَا مَحَالَةَ، ② فَزِنَا الْعَيْنِ النَّظَرُ، وَزِنَا اللِّسَانِ الْمَنْطِقُ، ③ وَالنَّفْسُ تَمَنَّى وَتَشْتَهِي، وَالْفَرْجُ يُصَدِّقُ ذَلِكَ، وَيُكَذِّبُهُ» ) مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ④ وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ قَالَ: ( «كُتِبَ عَلَى ابْنِ آدَمَ نَصِيبُهُ مِنَ الزِّنَا مُدْرِكٌ ذَلِكَ لَا مَحَالَةَ، ⑤ الْعَيْنَانِ زِنَاهُمَا النَّظَرُ، وَالْأُذُنَانِ زِنَاهُمَا الِاسْتِمَاعُ، وَاللِّسَانُ زِنَاهُ الْكَلَامُ، وَالْيَدُ زِنَاهَا الْبَطْشُ، وَالرِّجْلُ زِنَاهَا الْخُطَا، ⑥ وَالْقَلْبُ يَهْوَى وَيَتَمَنَّى، وَيُصَدِّقُ ذَلِكَ الْفَرْجُ، وَيُكَذِّبُهُ» "). |
|---|

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل الله پاك د

[۱] اخرجه البخاري كتاب الدعوات /باب الدعاء مستقبل القبلة(رقم-۶۳۴۳) ومسلم كتاب القدر باب قدر على ابن آدم حظه من الزنا وغيره(رقم-۲۰ - (۲۶۵۷) وابوداود كتاب الطلاق/ باب في الطلاق قبل النكاح(رقم-۲۱۹۲)واحمد في المسند:۲/۱۷۶

انسان په تقدير کښې چې څومره حصه د زنا ليکلي ده هغه به ضرور د هغه څخه په عمل کښې کيږي، ۲ د سترګو زنا خو د نامحرم طرف ته کتل دي او د ژبې زنا د نا محرمو ښځو سره شهوت ناکه خبري کول دي ۳ او نفس آرزو او خواهش کوي او شرمګاه د دې آرزو تصديق کوي يا تکذيب، ۴ (د بخاري رحمه الله و مسلم رحمه الله ) يو روايت دي چې د سړي په تقدير کښې د زنا څومره حصه ليکل شوې ده هغه به ضرور په عمل کښې راولي، ۵ د سترګو زنا (د نامحرم طرف ته) کتل دي، د غوږونو زنا (د نامحرمې ښځې څخه د شهوت خبري اوريدل او د ژبې زنا د نامحرمې ښځې سره د شهوت) خبري کول دي او د لاسو زنا (نا محرمې ښځې په بده اراده سره) مسه کول دي او د پښو زنا (د بد کاري طرف ته) تلل دي ٦ او زړه آرزو خواهش کوي او شرم ګاه د هغه تصديق يا تکذيب کوي.

**حل اللغات:** ① حَظَّهُ : أَيْ: نَصِيبَهُ: حصه، ② لَا مَحَالَةَ: أَيْ: لَا بُدَّ لَهُ: ضرور، خامخا به واقع کيږي، ③ الْمَنْطِقُ: أَيْ: التَّكَلُّمُ عَلَى وَجْهِ الْحُرْمَةِ: د نامحرمه ښځو سره د شهوت خبرې کول، ④ النَّفْسُ: أَيْ: الْقَلْبُ: نفس، زړه، ⑤ تَمَنَّى: آرزو کوی، ⑥ تَشْتَهِي: خواهش کوی، ⑦ الْبَطْشُ: أَيْ: الْأَخْذُ، وَاللَّمْسُ: نيول، لاس اوړل، ⑧ الْخُطَا: د خُطْوَة جمع ده، وَهِيَ مَا بَيْنَ الْقَدَمَيْنِ: د دوه قدمونو منځ کښې فاصلې ته وائی، (دلته ترې تلل مراد دی). ⑨ يَهْوَى: أَيْ: يُحِبُّ، وَيَشْتَهِي: محبت کوی. خواهش لری.

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّ اللَّهَ كَتَبَ..الخ:

**د کتب په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① ځينو حضراتو کتب لره د قدر په معنى کښې اخستي دې [أي قدر في الازل أن يجري على ابن آدم الزنا] دې تقدير ازلی سره به هغه انسان په خپل کسب او اختيار ددې قسمه زنا ارتکاب کوی. ددې حديث پاك څخه معلوم شو چې د زنا ډير مراتب دی. يو زنا نه بغير زنا ده، بلکه حظ العين ده، يو حظ اللسان ده يو حظ القلب ده، يو زنا حظ الاذنين ده، ددې ټولو آخر کښې د زنا آخرى او عملى درجه ده. کومې ته چې زنا بالفرج وائی. په دې آخرى درجه کښې چې څوك مبتلا شو نو دا د الفرج يصدقه مصداق دې. او څوك چه په دې آخرى درجه کښې مبتلا کيدو نه بچ شو نو دا د الفرج يكذبه مصداق دې.

② حافظ توربشتی رحمه الله فرمائی چې کتب د ثبت په معنى کښې دې. د فرض او واجب په معنى کښې نه دې. مراد دادې چې الله تعالى ابن آدم کښې داسې حواس پيدا کړې دی چې دهغې په ذريعه هغه د زنا لذت محسوسوی او دې نه پس هغه دفرج په ذريعه ددې تکميل کوی، اوس که عملا زنا اوکړه نو د حواسو ددې لذتونو باره کښې دا د فرج د طرفه تصديق اوشو او که د زنا نی بالکل ارتکاب نې اونه کړو نو د حواسو باره کښې داد فرج دَ طرف نه تکذيب اوشو. دَ [والفرج يصدق ذلك ويكذبه] هم دا مطلب دې.

**قوله:** وَزِنَا اللِّسَانِ الْمَنْطِقُ:

**د اندامونو زنا کول** دا حدیث مسلمانانو ته د سترګو، غوږونو، ژبې، پوزې او د زړه د زنا نه د منع کولو تعلیم ورکوی حالانکه خلق دا څیزونه په زنا کښې نه شمیری بلکه صرف عملی زنا جرم ګڼړی.

**[۸۷] د تقدیر لیک خامخا پوره کیږی**

۸۷–()[۹] [۱] وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ الْحُصَيْنِ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا: «أَنَّ رَجُلَيْنِ مِنْ مُزَيْنَةَ قَالَا: يَارَسُولَ اللَّهِ أَرَأَيْتَ مَا يَعْمَلُ النَّاسُ الْيَوْمَ، وَيَكْدَحُونَ فِيهِ؟ [۲] أَشَيْءٌ قُضِيَ عَلَيْهِمْ، وَمَضَى فِيهِمْ مِنْ قَدَرٍ سَبَقَ، أَوْ فِيمَا يَسْتَقْبِلُونَ بِهِ مِمَّا أَتَاهُمْ بِهِ نَبِيُّهُمْ، وَثَبَتَتِ الْحُجَّةُ عَلَيْهِمْ؟ [۳] فَقَالَ: لَا؟ بَلْ شَيْءٌ قُضِيَ عَلَيْهِمْ، وَمَضَى فِيهِمْ، وَتَصْدِيقُ ذَلِكَ فِي كِتَابِ اللَّهِ-عَزَّوَجَلَّ-: {[۴] وَنَفْسٍ وَمَا سَوَّاهَا-فَأَلْهَمَهَا فُجُورَهَا وَتَقْوَاهَا} [الشمس: ۷-۸]» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمران بن حصین ﷺ روایت کوي چې یو ځل د مزینه قبیلې دوه سړي د رسول الله ﷺ په دربار کې حاضر شو او عرض یي اوکړو چې یا رسول الله (ﷺ) مونږ ته دا اووئیلو چې نن (په دنیا کښې) خلق عمل کوي او د عملونو په کوشش کښې لګیا دي، [۲] آیا دا هغه شي دي چې د هغه حکم شوې دي او د تقدیرلیك جوړ شوې دي، یا دا عمل دهغوئ احکامو موافق دي کوم چې آئینده کیدونکي دي کوم چې د هغوئ نبي راوړي دي او په هغوئ دلیل قایم شوې دي، [۳] حضور ﷺ وفرمایل نه، دا هغه شي دي چې د هغه فیصله شویده او د تقدیرلیك جوړ شویدي او د دې تصدیق د کتاب الله د دې آیت څخه کیږي [۴] وَنَفْسٍ وَّمَا سَوّٰهَا فَأَلْهَمَهَا فُجُوْرَهَا وَتَقْوٰهَا، (القرآن الحکیم)، (ترجمه) قسم دي د انسان په روح او په هغه ذات چې هغه جوړ کړي دي انسان لره، بیا د هغه د بد کاري او پرهیزګاري (دواړو) القاء یي وکړه. مسلم

**حل اللغات:** ① مُزَيْنَةَ: اسْمُ قَبِيلَةٍ: یوه قبیله ده. ② يَكْدَحُونَ: ګدح هغه محنت او مشقت ته وائی په کوم سره چه په بدن باندې نښې جوړې شی. ③ قُضِيَ: أَيْ: قُدِّرَ فِعْلُهُ عَلَيْهِمْ: چه فیصله او حکم ئې شوې دې یعنی په تقدیر کښې دا کار کول دوی دپاره لیکلی شوی دی. ④ مَضَى: د مجردو نه ماضی صیغه ده، په معنی د تللو خو دلته ترې مراد: أَيْ: نَفِذَ: چه جاری شوې او نافذ شوې ده. ⑤ قَدَرٍ: تقدیر، ⑥ سَبَقَ: أَيْ: فِي الْأَزَلِ: چه د مخکښې نه په ازل کښې لیکلې شوې دي. ⑦ يَسْتَقْبِلُونَ: چه په مستقبل یعنی آئنده راتلونکې وخت کښې به ئې کوی، یا دوی به ورسره مخامخ کیږی. ⑧ نَفْسٍ: د نفس نه مراد یا خو آدم ؑ دې یا ټول نفوس انسانان مراد دی. ⑨ سَوَّاهَا: أَيْ: خَلَقَهَا عَلَى أَحْسَنِ صُورَةٍ: چه برابر ئې کړو یعنی په ښائسته صورت اوشکل ئې جوړ کړو. ⑩ -فَأَلْهَمَهَا: د باب افعال نه د ماضی صیغه ده، الهام او القاء ئې ورته اوکړه، په زړه کښې ئې ورته واچول.

[۱] اخرجه مسلم کتاب القدر باب کیفیة خلق الآدمی فی بطن أمه وکتابة رزقه وأجله وعمله وشقاوته وسعادته (رقم ۱۰ (۲۶۵۰)

**د راوي مختصر تعارف:** د حدیث د راوی نوم عمران بن حصین دی کنیت ئې ابونجید دې دهجرت په اول کښې ئې اسلام قبول کړې وو (۲)

**په غزاګانو کښې شرکت:** په بعضې غزاګانو کښې د نبی کریم ﷺ سره شریک شوې وو. د نبی کریم ﷺ په ژوند کښې به برابر مدینه منوره ته تللو. د نبی کریم ﷺ د وفات نه پس ئې مدینې ته راتګ پرې خودلو ګوشه نشینی ئې اختیار کړه دحضرت عمر رضی الله عنه په زمانه کښې کله چه بصره آباده شوه نو هلته ئې کړه یوړه حضرت عمر رضی الله عنه د فقه تعلیم د دوی په ذمه لګولې وو. (۳) دحضر عمر رضی الله عنه نه پس چه کوم جنګونه شوی وو. نو دوی د دغه جنګونو نه لرې پاتې شوې وو. (۴) عالمه ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی ((كَانَ مِنْ فُضَلَاءِ الصَّحَابَةِ وَفُقَهَائِهِمْ)) عمران ذ فقهاء صحابؤ څنې وو (۵) حسن بصری رحمه الله فرمائی چه د عمران بن حصین رضی الله عنه پشان بهترین سړې بصرې ته نه دې راغلې (۶)

**د ژوند خصوصیات:** د دوی د ژوند خصوصیات دا وو. ① د رسول الله ﷺ احترام ② د سنت پابندی ③ په عباداتو کښې ریاضت او مشقت ④ د دوی ذات د خلق مراجع وه. په کومه لاره چه به تیریدلو خلقو به ترې تېوسونه کول

**وفات:** د استسقاء په بیمارئ بیمار شو. او هم په دغه مرض کښې په ۵۲ هجری کښې په بصره کښې وفات شو (۷)

**مرویات:** د دوی د مرویاتو تعداد ۱۳۰ دې په احادیثو کښې ډیر زیات محتاط وو. د دې وجې د دوی مرویات کم دی ۸ احادیث متفق علیه دی او په بخاری کښې ۴ او په مسلم کښې ۹ دی

**تسهیلات: قوله:** مِنْ قَدَرٍ سَبَقَ:

**په کلمه د من کښې دوه احتمالات:** ① من بیانیه دې په دې صورت کښې به قضاء اوقدر دواړه هم په یومعنی کښې وی اوهم دغه معنی راجح هم ده.

② من تعلیلیه دې "ای قضی علیهم القضاء لاجل قدر سبق اوفیما یستقبلون به" یعنی په دوی باندې د سابقه تقدیرپه وجه باندې فیصله کړې ده.

**قوله:** مِمَّا أَتَاهُمْ بِهِ نَبِيُّهُمْ:

**د جملې تقدیری عبارت:** تقدیری عبارت داسې وی "أخبرنی أی مایعمل الیوم یجتهدون فیه أشئ یعنی أهو شئ قضی الخ" نو هو مبتدا ده او شئ دَدې خبر دې.

**دمذکوره جملې مطلب:** یو پوښتنه کونکو دا تپوس اوکړو چه دَ اول نه څه لیکل یا دَ تقدیر فیصله شوې ده یامعامله نوې ده؟ حضورپاك په جواب کښې اوفرمائیل چه او دَ اول نه لیکلې دی.

**د دووه تپوسونو جواب ورکولو کښې حکمت:** دَ دې دواړو کسانو دَ سوال دَ دوو شقونونه حضوراکرم يو شق اختيارکړو اوسره جواب ارشادا وفرمائيلو چه کوم څه ښکاره کيدو سره راتلونکی وخت کښې راځی هغه دَ سابقه قضاء اوقدر لاندې راځی په دې باندې دَ دليل په توګه حضورپاك دا آيت مبارك وړاندې کړو ﴿ فَأَلْهَمَهَا فُجُورَهَا وَتَقْوَاهَا ﴾ په دې کښې الهمها دَ ماضی صيغه ده په کوم سره چه دَ قضاء اوقدرسابقيت طرف ته اشاره ده.

**[۸۸] د ځان خصی کولو حرمت**

۸۸ –(۱)[۱۰] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ! إِنِّي رَجُلٌ شَابٌّ، ② وَأَنَا أَخَافُ عَلَى نَفْسِي الْعَنَتَ، وَلَا أَجِدُ مَا أَتَزَوَّجُ بِهِ النِّسَاءَ - كَأَنَّهُ يَسْتَأْذِنُهُ فِي الِاخْتِصَاءِ - ③ قَالَ: فَسَكَتَ عَنِّي، ثُمَّ قُلْتُ مِثْلَ ذَلِكَ، فَسَكَتَ عَنِّي، ثُمَّ قُلْتُ مِثْلَ ذَلِكَ، ④ فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - (يَا أَبَا هُرَيْرَةَ جَفَّ الْقَلَمُ بِمَا أَنْتَ لَاقٍ، فَاخْتَصِ عَلَى ذَلِكَ، أَوْ ذَرْ» ) رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره ﷺ روايت کوي چې ما ونبي کريم ﷺ ته عرض اوکړو چې يا رسول الله (ﷺ) زه يو ځوان سړي يم ② او زه د خپل نفس څخه ويريږم چې د بدکاري طرف ته مائل نه شی او په ما کښې دومره طاقت (وس) نشته چې د يو ښځي سره واده وکړم، ګويا ابوهريره ﷺ په خپل ځان کښې د مردانه طاقت د ختمولو اجازت غوښتي، ③ ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله (ﷺ) په دي اوريدو سره خاموشي اختيار کړه، ما دوباره داسې ووېل، نو رسول الله ﷺ بيا چپ پاتې شو. ما بيا عرض اوکړو، په دي ځل هم رسول الله ﷺ څه ونه ويل، ما بيا هم دغسې عرض اوکړو، ④ نو حضور ﷺ وفرمايل چې ابوهريره (ﷺ) څه چې کيدل دي (هغه ستا په تقدير کښې ليکلو سره) قلم وچ شوې دي، نو تاته اختيار دي که مردانه طاقت ختم کړي يا نه کړي. بخاري.

**حل اللغات:** ① شَابٌّ: ځوان (زيات شهوت والا)، ② الْعَنَتَ: د ګناه، فجور او زنا په معنی کښې دي. ③ الِاخْتِصَاءِ: أَيْ: قَطْعِ الْأُنْثَيَيْنِ: دخصيتين ويستلو په معنی کښې دي. ④ جَفَّ: اوچ شو قلم، (دا کنايه ده چه د مقداراتو دکتاب نه قلم فارغ شو. ⑤ لَاقٍ: چه پيښيږی به درته، ⑥ فَاخْتَصِ: ته ځان خصی کړې يعنی مردانه قوت ختم کړې، ⑦ ذَرْ: د امر صيغه ده، پريږده (يعنی که مردانه قوت ختموې اوکه نه ختموې).

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَا أَجِدُ مَا أَتَزَوَّجُ بِهِ النِّسَاءَ:

**د ما د کلمې څخه مراد:** د ما د کلمې څخه مراد نفقهٔ واجبه ده. يعنی زه غريب يم اول خو به

---

[1]) اخرجه البخاري كتاب النكاح./باب ما يكره من التبتل والخصاء(رقم-۵۰۷۶) والنسائي كتاب الجهاد/باب: النهي عن التبتل (رقم-۳۲۱۵)

راته ځوک خپله لور خور راکړي که نه؛ خو ځوک راباندې دا احسان کوي نو زه د ښځې مهر اودهغې د نان نفقې وس هم نه لرم،نود دې تقاضا خودا ده چې زه واده اونکړم خو بل طرف ته زه د قوت شهواني پوره کولوتقاضا هم لرم هسې نه چې په زنا کښې واقع شم نوپه داسې صورت کښې که زه د زنا څه ځان بچ کولوپه غرض خپل ځان خصي او نامرده کړم دا به زما دپاره څنګه وي؟

**قوله**: جَفَّ الْقَلَمُ بِمَا أَنْتَ لَاقٍ:

**د مذکوره جملې مفهوم:** د حضرت ابوهريره رضی الله عنه په بار بار تپوس کولوباندې نبی عليه السلام جواب ورکړو چې د تقدير ليکولوڅخه روسته قلم وچ شوي دې (يعنی که په تقدير کښې ستا دپاره ګناه ليکلې شوې وی نوهغه به خامخا واقع کيږي.نو د ځان خصی کولو ضرورت نشته.اوکه نه وی ليکلې شوې نو بلا وجه د خپل اندام ضائع کول جائز نه دی.

**دخصی کولود ممانعت وجه:** نبی عليه السلام د اختصاء څخه ابوهريره رضی الله عنه ځنکه منع کړلو چې دا مثله ده او په اسلام کښې مثله حرامه ده.

**قوله**: فَاخْتَصِ عَلَى ذَلِكَ أَوْذَرْ:

**په ځان خصی کولو د نبی عليه السلام ناراضتيا:** په دې کلام کښې د اختصاء اجازت نه دې، بلکه زجر او توبيخ او ملامتيا او خفګان دې چې تقدير کښې کوم ليکلی شوی دی هم هغه به کيږي. نوڅه چې مو خوښوی هغه کوئی. او ذر کښې او تسويه او برابری دپاره دی چې د تقديرپه وړاندې دواړه برابر دی،د نبی کريم صلی الله عليه وسلم سکوت هم په خفګان دلالت کوي.

### [۸۹] د خلقو زړونه د الله تعالی په قدرت کښې دی

۸۹ -()[۱۱] ۱ وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۲ «إِنَّ قُلُوبَ بَنِي آدَمَ كُلَّهَا بَيْنَ أُصْبُعَيْنِ مِنْ أَصَابِعِ الرَّحْمَنِ كَقَلْبٍ وَاحِدٍ، يُصَرِّفُهُ كَيْفَ يَشَاءُ» ۳ ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: «اللَّهُمَّ مُصَرِّفَ الْقُلُوبِ صَرِّفْ قُلُوبَنَا عَلَى طَاعَتِكَ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ۱ اوحضرت عبد الله بن عمرو رضی الله عنهما روايت کوي چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل ۲ د ټولو انسانانو زړونه دالله جل جلاله د ګوتو څخه د دوو ګوتو په مينځ کښې داسې دي لکه د انسان يو زړه دي او هغه (خپلو ګوتو سره) چې څنګه غواړي زړونه اړه وي رااړه وي، ۳ د دې څخه وروسته حضور صلی الله عليه وسلم د دعا په طور دا وفرمايل اللَّهُمَّ مُصَرِّفَ الْقُلُوبِ صَرِّفْ قُلُوبَنَا عَلَى طَاعَتِكَ (ترجمه) اي د زړونو اړه و نکي الله زمونږ زړونه خپل د اطاعت طرف ته راوګرځوي. مسلم

**حل اللغات:** ① أُصْبُعَيْنِ: د اصبع تثنيه ده، ګوتو ته وائی. ② يُصَرِّفُهُ: اړوی راړوی ئې.

[۱] ) اخرجه مسلم كتاب القدر باب تصريف الله تعالى القلوب كيف شاء (رقم-۱۷ - (۲۶۵٤) واحمد فی المسند:۲/۱۶۷

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ قُلُوبَ بَنِي آدَمَ:

**دبني آدم څخه مراد:** دَ كلها ضمير قلوب طرف ته راجع دې په دې حديث كښې تعميم دې چه دَ انبياؤ اولياؤ صلحاؤ او ابرارو او اشرارو دَ ټولو زړونه دَالله تعالى په قبضه كښې دى.

**قوله:** بَيْنَ أُصْبُعَيْنِ:

**دمتشابهاتو دوه قسمونه:** ① هغه متشابه چه معلوم المعنى يعنى چې معنى ئې معلومه وى اومرادئې معلوم نه وى لكه يد،وجه،اصبع

② هغه متشابه چې غيرمعلوم المعنى والمراد دى لكه حروف مقطعات چه دَ سورتونو په شروع كښې راځى.

**دالله تعالى دپاره ديد په اثبات كښې درې مذاهب:**

① مجسمه مشبه وائى چې د الله تعالى دپاره هم د مخلوقاتو پشان اندامونو مثلاً لاس مخ وغيره شته.

② د اهل سنت والجماعت په نيز د الله تعالى دپاره يد وغيره شته خو د مخلوقاتو پشان نه دى بلكه څنګه چې د الله تعالى د شان سره ښائى هغه شان دى.څكه چې په نصوصو كښې راغلى دى نو انكار ترې نشى كيدې.

③ دمتاخرينوحضراتو په نيز په كوموكښې چې امام ابوحنيفه رحمه الله هم دې چې په داسې متشابهاتوكښې به تاويل كولى شى هغه تاويل چې د الله تعالى دشان سره ښائى او د نصوصو څخه هم مختلف نه وى.

**د اصبعين څخه په مراد كښې درې اقوال:** ① صفات په دوه قسمه دى صفات جمالى او صفات جلالى چې د كله د نسان زړه ته جمالى صفات متوجى شى نو دانسان زړه طاعاتو طرف ته متوجه شى او چلې ورته صفات جلالى متوجه شى نو د انسان زړه ګناهونو طرف ته متوجه شى.

② د اصبعين څخه دوه قسمه اثر مراد دې اثر رحمت او اثر غضب وقهر،نو معنى دا شوه چې الله تعالى ته د يو طرف څخه بل طرف ته د زړه په اړولوباندې پوره قدرت دې

③ دا د قبضه قدرت څخه كنايه ده مثلاً د يد څخه قدرت د ،،وجه،، څخه ذات مراد دې.

**قوله:** كَقَلْبٍ وَاحِدٍ:

**د تشبيه مقصد:** يعنى څنګه چه يوزړه دَ چاطرف ته مائل كولوسره تاوول آسان دى دغه شان دا هم آسان دى چه دَټولو زړونه په دوو ګوتوكښې كيږدى يعنى دَ الله تعالى دَپاره په

ډيرو زړونو او يو زړه کښې انقلاب راوستل يوشان برابر دي. بيا رسول الله ﷺ دَحفاظت دَپاره وظيفه خودلې ده چه دا لولئي.

**قوله:** اللّٰهُمَّ مُصَرِّفَ الْقُلُوبِ:

**د مذکوره جملې مفهوم:** دا دعا مؤمنانو او کافرانو ټولو دپاره ده يعنې د نيکانو خلقو زړونه په نيکئ پاندې قائم پاتې کړه او بدانو خلقو زړونه د ګناهونو څخه واړوه

**[۹۰] د هر ماشوم په فطرت اسلامي پيدا کيدل**

۹۰ –()[۱۲] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ (-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-): [۲] «(مَا مِنْ مَوْلُودٍ إِلَّا يُولَدُ عَلَى الْفِطْرَةِ، فَأَبَوَاهُ يُهَوِّدَانِهِ، أَوْ يُنَصِّرَانِهِ، أَوْ يُمَجِّسَانِهِ [۳] كَمَا تُنْتَجُ الْبَهِيمَةُ بَهِيمَةً جَمْعَاءَ، هَلْ تُحِسُّونَ فِيهَا مِنْ جَدْعَاءَ؟ ثُمَّ يَقُولُ: [۴] {فِطْرَةَ اللَّهِ الَّتِي فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا لَا تَبْدِيلَ لِخَلْقِ اللَّهِ ذَلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ} [الروم: ۳۰]» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت کوي چې نبی کريم ﷺ وفرمايل [۲] کوم ماشوم چې پيدا کيږی هغه په فطرت پيدا کيږي (يعني د حق شي د قبلولو په هغه کښې صلاحيت وي) بيا د هغه مور او پلار هغه يهودي يا نصراني يا مجوسي جوړکړي، [۳] لکه څنګه چې يو چار پايه حيوان پوره چار پايه بچي راوړي آيا تاسو په هغه کښې څه کمي پيداکولي شي، بيا هغه ﷺ دا آيت تلاوت وفرمايل [۴] فِطْرَةَ اللهِ الَّتِي فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا لَا تَبْدِيلَ لِخَلْقِ اللهِ ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ، (ترجمه) دا د الله تعالی جل جلاله د هغه فطرت موافق دي چې په هغه الله تعالی جل جلاله خلق پيدا کړي دي د الله په خلقت کښې تغير او تبديل نشته دا دين مستحکم دي. بخاري ومسلم

**حل اللغات:** ① مَوْلُودٍ: زيګولې شوې يعنی پيدا شوې ماشوم. ② الْفِطْرَةِ: وَهِيَ الْإِيمَانُ: فطرت نه مراد ايمان دې (يعنی د حق شی د قبلولو په هغه کښې صلاحيت وی). ③ يُهَوِّدَانِهِ: أَيْ: يَجْعَلَانِهِ يَهُودِيًّا: يهودی ئې جوړوی، ④ يُنَصِّرَانِهِ: نصرانی ئې جوړوی، ⑤ يُمَجِّسَانِهِ: مجوسی ئې جوړوی، ⑥ تُنْتَجُ: إِذَا تَوَلَّى نِتَاجَهَا حَتَّى وَضَعَتْ: يعنی د څاروی بچی راوړلو يعنی زيګولو ته وائی. ⑦ الْبَهِيمَةُ: حيوان، چارپايه، څناور، ⑧ جَمْعَاءَ: أَيْ: سَلِيمَةَ الْأَعْضَاءِ: پوره اندامونو والا، ⑨ هَلْ تُحِسُّونَ: أَيْ: هَلْ تُدْرِكُونَ: آيا تاسو بيامومئ، ⑩ جَدْعَاءَ: أَيْ: مَقْطُوعَةُ الْأُذُنِ: چه غوږونه ئې نه وی يا پريکړې شوی وی، ⑪ الْقَيِّمُ: أَيْ: الْمُسْتَقِيمُ: نيغ چه هيڅ کوږوالې پکښې نه وی.

[۱] ) اخرجه البخاری کتاب الجنائز /باب إذا أسلم الصبي فمات، هل يصلی عليه، وهل يعرض علی الصبي الإسلام(رقم-۱۳۵۸) ومسلم کتاب القدر باب معنی کل مولود يولد علی الفطرة وحكم موت أطفال الكفار وأطفال المسلمين(رقم-۲۲-(۲۶۵۸)واحمد فی المسند:۲/۲۵۱)

**تسهيلات:**

**قوله: يُوْلَدُ عَلَى الْفِطْرَةِ:**

**دفطرت څخه په مراد کښې پنځه اقوال:** ① د امام احمد بن حنبل، حافظ ابن عبدالبر او ابن قيم رحمهم الله په نيز فطرت څخه مراد دين اسلام دې،

دا شان ابن حجر رحمه الله هم فرمائي چې امام بخاری رحمه الله د سورة روم ايت مبارك كښې دَ فطرت څخه مراد دين اسلام اخستې دې، والفطرة الإسلام.

**داول فريق دلائل:** د قرآن پاك آيت [فِطْرَتَ اللهِ الَّتِيْ فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا] د دوی مستدل دې په دې کښې بالاجماع فطرت څخه مراد دين اسلام دې، او هم دا [ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ] سره تعبير كړې شوې دې. معلومه شوه چې فطرت او دين يو څيز دې.

**په اول فريق اول اعتراض:** چې د فطرت څخه مراد اسلام دې او هر ماشوم مسلمان دې نو بيا چه دجنګ په ميدان کښې كوم ماشوم ګرفتار شی نوهغه غلام ولې جوړولې شي؟ او دکافر په بچی باندې د جنازې مونځ ولې نه كيږی؟ او دې د خير الابوين تابع ولې ګرځولې شوې دې؟ حالانكه دې هرحال کښې د فطرت او تخليق په اعتبار سره مسلمان دې؟ داشان خضر عليه السلام ولې هغه ماشوم قتل كړو؟

**په اول فريق دويم اعتراض:** دويم اعتراض دادې چې مذكوره حديث پاك کښې [فأبواه يهودانه] راغلی دی، ددې څخه معلوميږی چې دا فطرت سليمه مور پلار بدل كړی او يهودی اومجوسی ترې جوړوی. حالانكه كوم آيت چې استشهاد کښې پيش كړې شوې دې په هغې کښې د [لَاتَبْدِيْلَ لِخَلْقِ اللهِ] جمله ده چې د اسلام په فطرت کښې تغير نه راځی نو په آيت او حديث کښې تعارض راغلو.

**په اول مذهب تبصره:** د امام احمد بن حنبل رحمه الله وغيره حضراتو داټول دلائل په خپل ځائې خو مذكوره په ډيرو شقونو مشتمل دوه اعتراضونه ددې حضراتو توجيه (چې فطرت څخه مراد اسلام دې) په مشكل کښې اچوی.

② حافظ توربشتی رحمه الله او شاه ولی الله رحمه الله او نور علماء كرام فرمائي چې حديث کښې فطرت څخه مراد حق دقبلولو استعداد او صلاحيت او قابليت او لياقت دې، كه هغه ماشوم د خپل سره اسلام قبلول غواړی نو په هغه کښې شته صلاحيت شته او بالكل ددې دپاره تيار دې. كه هغه ماشوم غلط ماحول کښې پاتې شی او ددغه استعداد خراب كړی او دهغې څخه غلطه فائده پورته كوی نو هغه د ګيرچاپيره ماحول قصور دې. خو بيا هم د حق د قبلولو استعداد باقی پاتې كيږی. اوګورئ فرعون چې كله د غلط ماحول څخه جدا شو نو هغه د حق د قبلولو اقرار اوكړو، هم دا هغه فطری نعره وه كومه چې دده

د استعداد نتیجه وه. اګر چې دې اقرار ده ته فائده ورنکړه. ځکه چې فائد وخت تیر شوې وو. هم ددې وجې نې اوفرمائیل چې الَاتَبۡدِیۡلَ لِخَلۡقِ اللّٰهِ چې هغه استعداد نې غلط استعمال کړو مهر وجباریت بنه اولګی خو استعداد بیاهم باقی پاتې کیږی. مهر وجباریت سره د استعداد فائده ختمیږی، او دَ دې نه فائدې ممکن نه پاتیږی. د اصل استعداد موجود کیدل جدا څیز دې. شیخ عبدالحق رحمه الله او علامه قرطبی رحمه الله هم دا رائې ده چې فطرت د تخلیق په معنی کې دې،ددې ځخه مرادهم دا استعداد دَقبول حق دې.[الکاشف ۱/۲۵۴]

**په دویم فریق اعتراض:** حضرت خضر علیه السلام هغه ماشوم ولې وژلې وو چې د هغه متعلق روایاتو کښې راغلی دی چې طبع یوم طبع کافرا، که استعداد باقی وو نو څنګه هغه ته مطبوع علی الکفر اووئیلې شو؟

**داعتراض جواب:** دائې د عالم الغیب په اعتبار سره اوفرمائیل. اګر چې د عالم شهادت په اعتبار سره په هغه کښې استعداد وو خو دالله ﷻ د علم ازلی مطابق دانجام په اعتبار سره دَ هغه کافر کیدل وو او هم ددې ذکر په طبع یوم طبع کافرا کښې شوې دې.

**مثال:** دَ دې تخلیقی، جبلی اوفطری استعداد مثال حضرت شاه ولی الله رحمه الله داسې ورکړې دې چه مثلاً صفت رجولیت په ټولو افرادو د رجالو کښې وی مګر دَدې نه هغه افراد اوکسان مستثناء کیدې شی چه رهبانیت اختیارولو سره دَ سړیتوب دا صفت ضائع کوی. ښکاره خبره ده چه هغوی ته دا نه شی وئیلې کیدې چه په هغوی کښې دا صفت نه وو. بالکل هم دغه شان دَ حق دَ قبلولو استعداد دې کوم چه الله تعالی په ټولو انسانانوکښې کیخودې دې لیکن دَهغوی دَ مور پلار هغوی لره یهودی یا نصرانی جوړول یو داسې آفت دې په کوم سره چه دَ هغوی دَ استعداد مصرف بدل شو مګر دا نه شی وئیلې کیدې چه دا سړې دَ دغه استعدادنه محروم وو. البته بعضې وخت الله تعالی دَ خپل قدرت کامله دَ ظهور دَپاره یو ماشوم په اول وخت کښې دَدې استعداد نه محروم او مسلوب کَوی لکه څنګه چه خضر علیه السلام کوم هلك اوژبې وو لکه چه هغه دَدې عام قاعدې نه مستثناء دې.

③ د فطرت ځخه مراد عقل سلیم دې یعنی که ممانعت نه وی نو حق طرف ته به راغب شی ددې تائید ددې ځخه کیږی چې دین کسبی او اختیاری څیز دې.

④ د فطرت ځخه مراد د نوع خاص طبیعت دې د کوم په وجه چې هر ساه لرونکې ما ینبغی له اختیاروی او ما لاینبغی ځخه اجتناب کوی.لکه څنګه چې الله تعالی د شهدو مچی ته یو خاص طبیعت ورکړې دې د کوم په وجه چې هغه څیز سره استعمالوی کوم چې هغې ته د شهدو په جوړلو کښې مدد ورکوی اود هرهغه څیز ځخه ځان ساتی کوم

چې شهد خرابوي.

⑤ د فطرت سره څخه په عالم ارواح کښې د ربوبیت اقرارکول دی نو چا چې په خپله خوښه اقرار کړې وو هغه په دنیا کښې ایمان راوړی او چا چې د زور په وجه اقرار کړې وو نو هغه د هغه اقرار ربوبیت څخه انکار کوی.

**قوله:** [جَدْعَاءَ]

**د کټ شوی غوږونوالا څناور سره د کافرانو تشبیه:** دَ غوږ پرې کیدو سره دا هم اشاره اوشوه چه دا کافران خلق دَ حق دَ اوریدو نه داسې محروم دی لکه چه غوږونه ئې پرې شوې وی. دَ حق دَ اوریدو آله ورسره نشته. یعنی څنګه چه دَ یو څناور نه هم دغه شان صحیح سالم بچې پیدا کیږی څه غوږ پرې شوې نه وی دغه شان فطرت اسلام صحیح او سالم وی مګر خلق په خپل کسب او اختیار سره دا فطرت برباد کړی. لکه څنګه چه بت پرست خلق دَ څناورو غوږونه وغیره پرې کولوسره یا شلولو سره خرابوی.[الکاشف: ۲۵۴/۱،واشعة المعات: ۱۰۲/۱ ]

## [۹۱]په خطبه کښې د پنځو خبرو ذکر

۹۱ –()[۱۳] ① وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَامَ فِينَا رَسُولُ اللَّهِ (- صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -) بِخَمْسِ كَلِمَاتٍ ② فَقَالَ: إِنَّ اللَّهَ لَا يَنَامُ، وَلَا يَنْبَغِي لَهُ أَنْ يَنَامَ، ③ يَخْفِضُ الْقِسْطَ، وَيَرْفَعُهُ، يُرْفَعُ إِلَيْهِ عَمَلُ اللَّيْلِ قَبْلَ عَمَلِ النَّهَارِ، وَعَمَلُ النَّهَارِ قَبْلَ عَمَلِ اللَّيْلِ ④ حِجَابُهُ النُّورُ، ⑤ لَوْ كَشَفَهُ لَأَحْرَقَتْ سُبُحَاتُ وَجْهِهِ مَا انْتَهَى إِلَيْهِ بَصَرُهُ مِنْ خَلْقِهِ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابو موسیٰ ﷺ روایت کوي چې (یوځل) ددوو جهانونو سردار ﷺ خطبه ورکړه او پنځه خبرې یې وفرمایلې: ② الله پاك اوده کیږي نه او اوده کیدل د هغه شان سره مناسب نه دي، ③ هغه ترازو (تله)بلند وپست (پورته اوښکته) کوي، د ورځې د عمل څخه مخکې د شپې عمل او د شپې د عمل څخه مخکې د ورځې عمل هغه ته رسول کیږی ④ او د هغه حجاب نور دي ⑤ که چېرته هغه اوچته کړي نو د هغه د پاك ذات نور به د مخلوقاتو د نظر د حد پورې تول څیزونه خاوري ایرې کړي. مسلم

**حل اللغات:** ① يَخْفِضُ: ښکته کوی، ② الْقِسْطَ: تله، ترازو، ③ يَرْفَعُهُ: اوچتوی ئې، ④ حِجَابُهُ: پرده د الله، ⑤ لَوْكَشَفَهُ: أَيْ: لَوْ أَزَالَ الْحِجَابَ: که چرې لرې کړی پرده، ⑥ سُبُحَاتُ: د سُبْحَة جمع ده، أَيْ: أَنْوَارُ وَجْهِهِ: دې نه دَالله تعالی تجلیات مراددی یا مخصوص صفات دی چه په انوار الهی اوتجلیات ربانی باندې مشتمل دی. ⑦ وَجْهِهِ: أَي الذَّاتُ: د وجهه نه مراد ذات دالله تعالی دې.

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الإیمان/باب فی قوله علیه السلام: إن الله لا ینام، وفی قوله:حجابه النور لو کشفه لأحرق سبحات وجهه ما انتهی إلیه بصره من خلقه(رقم-۲۹۳ - (۱۷۹) وابن ماجة کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فیما أنکرت الجهمیة (رقم-۱۹۵)

**تسهيلات:**

**قوله: قَامَ فِينَا.**

**په خطبه کښې د قيام مسنونيت:** دا د وعظ او بيان نه کنايه ده أی قام خطيبًا مذكرًا لنا بخمس كلمات "أی متلبسا بخمس أوقال لنا بخمس كلمات" "لاينام" مراد تکاسل او ضعف دې په نوم يعنې خوب کښې دا کامل وی.

**قوله: يُرْفَعُ إِلَيْهِ عَمَلُ اللَّيْلِ"**

**د رفع اعمال نه مراد:** دَ رفع اعمال نه مراد دَ اعمالو قبليدل دی دَ استمرار طرف ته ئې اشاره کړې ده ځکه چه ټول اعمال هروخت دَ الله تعالى مخې ته حاضر دی په دې کښې دَ شپې ورځې دَ عمل نامې تذکره کړې شوې ده.

**قوله: حِجَابُهُ النُّورُ.**

**دحجاب په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① دَ حجاب نه مراد مانع دې څه حسی مادی حجاب مراد نه دې ځکه چه په الله تعالى باندې هيڅ يو څيز محيط نه دې بلکه دا حجاب نوری دې چه دَ مخلوق دَ پاره دَ خالق رؤيت او کتلو نه مانع دې لکه څنګه چه حسی حجاب مانع وی.
② امام نووی رحمه الله فرمائی دَ حجاب نه مراد دَ الله تعالى هغه دَ جلال صفت دې او دَ هغه نور او عظمت دې چه دَ الله تعالى دَ رؤيت دَ پاره مانع جوړيږی. مثلاً الله تعالى دَ انواراتو يو پړق په نمر باندې لګيدلې دې نو څوك خودې اوګورى چه دَ دې په شعاګانو کښې څومره زور دې.

**قوله: مَا انْتَهَى إِلَيْهِ بَصَرُهُ مِنْ خَلْقِهِ.**

**د الله تعالى نور ته په کتلو سره ايره کيدل:** نو نظر په عالم باندې محيط دې لهذا پوره عالم به ايره شی. دَ ذات اقدس دَ انواراتو دا حجاب اويازره دی دې ته چه کله فرښتې ګوری نو په تسبيح او تهليل کښې لګيا شی.

**[٩٢] د الله جل جلاله خزانې ډکې دی**

> ٩٢ –()[١٣][١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ (-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-): [٢] «يَدُ اللَّهِ مَلْأَى لَا تَغِيضُهَا نَفَقَةٌ، سَحَّاءُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ [٣] أَرَأَيْتُمْ مَا أَنْفَقَ مُذْ خَلَقَ السَّمَاءَ وَالْأَرْضَ؟ فَإِنَّهُ لَمْ يَغِضْ مَا فِي يَدِهِ، وَكَانَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَاءِ [٤] وَبِيَدِهِ الْمِيزَانُ يَخْفِضُ، وَيَرْفَعُ» ) مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [٥] وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: ( «يَمِينُ اللَّهِ مَلْأَى - قَالَ ابْنُ نُمَيْرٍ: مَلْآنُ - سَحَّاءُ لَا يَغِيضُهَا شَيْءٌ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ» )

[١] ) اخرجه البخاری کتاب تفسير القرآن/باب: {وكان عرشه على الماء} [هود: ٧](رقم-٤٦٨٤) واحمد فی المسند: ٤٠٥/٤ ومسلم فی کتاب الزکاة/باب الحث على النفقة وتبشير المنفق بالخلف(رقم-٣٧ - (٩٩٣) والترمذی کتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة المائدة (رقم-٣٠٤٥)واحمد فی المسند: ٢١٣/٢

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ روايت كوي چې نبی كريم ﷺ وفرمايل [۲] دالله تعالى ﷻ لاس (يعني د هغه خزانه) ډكه ده، د شپې او د ورځې هروخت خرڅ كول هم په هغه كښې څه كمي نه شی پيدا كولي، [۳] آيا تاسو نه ګوري؟ چې د كله څخه هغه زمكه اوآسمانونه پيداكړي دي او د كله څخه چې د هغه عرش (هم) په اوبو باندي وو، څومره خرڅ كړي دي، ليكن (د دومره زيات) خرڅ كولو باوجود څه چې د هغه په لاس كښې دي (يعني د هغه خزانه) په هغه كښې كمي نه دي راغلي، [۴] او د هغه په لاس كښې ترازو (تله) دي چې هغه بلند اوپست (پورته ونښكته) كوي، بخاري و مسلم) [۵] او د مسلم روايت دي. د الله پاک ښي لاس ډک دي او د ابن نمير رحمه الله په روايت كښې د الله ﷻ لاس ډك دي اوهميشه وركونكي (شپه اوورځ د خرڅ كولوباوجود) په هغه كې دڅه شي كمي نه راځي.

**حل اللغات:** ① يَدُ اللَّهِ: أَيْ: خَزَائِنُهُ: دالله تعالى لاس، ددې نه مراد د الله تعالى خزانې دی چرته نه چه خلقوته عطاء او وركړه كوی. ② مَلْأَى: د مَلْآنَ مؤنث دې، په معنى د ډكوالى، دا كنايه ده د نعمتونو د زياتوالى نه، ③ لَاتَغِيضُهَا: أي لَاتُنْقِصُهَا: نه كموى دې لره، ④ نَفَقَةٌ: أَيْ: إِنْفَاقٌ: خرچ كول، ⑤ سَحَّاءُ: أي سَحُّ الْمَاءِ: اوبه د بره نه راړولو او بهيولو ته وائی، ددې نه مراد هميشه خرچ دول دی. ⑥ لَمْ يَغِضْ: لَمْ يُنْقِصْ: هيڅ كمې نه دې راغلي.

**تسهيلات:**

**قوله: يَدُ اللَّهِ مَلْأَى:**

**د مذكوره جملې مفهوم:** يعنى د خزانو نه ئې لاسونه ډك دی. قرآن پاك كښې دی [وَإِنْ مِّنْ شَيْءٍ إِلَّا عِنْدَنَا خَزَائِنُهُ وَمَا نُنَزِّلُهُ إِلَّا بِقَدَرٍ مَّعْلُومٍ] (سورة الحجر)

**قوله: سَحَّاءُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ:**

**د سحاء سره د تشبيه وجه:** سحاء په صحراګانو او دشتو كښې وريدونكی باران ته وائی. يعنی د اوبو پشان طبعا دا سخاوت راځاځی. دا دكثرت سخاوت دپاره كنايه ده. د ها ضمير يدالله طرفته راجع دې. ا وددې څخه مراد خزائن الله دی، كوم چه لفظ كن فيكون دي

**د ليل او نهار تركيب:** دا دواړه ,,الليل والنهار،، منصوب دی او ظرف واقع دې. د روايت په آخر كښې يمين الله هم د مسلم په روايت كښې دی. يمين الله ادبا وئيلي شوی دی. او آخر كښې لايغيضها دی، نو شئ فاعل دې او الليل والنهار ددې څخه بدل واقع دې.

**دحديث مطلب:** د الله تعالى د سخاوت باران دائم الصب دې، مسلسل او د شيبو شيبو باران په شان دهرې زمانې او هر مكان دپاره عام دې. أرأيتم څخه ددې عملی صورت خودلې شوې دې.

## [۹۳] د مشرکانو د اولاد جنت یا دوزخ ته د تلو بیان

۹۳-(۱)[۱۵][۱] وَعَنْهُ قَالَ: «سُئِلَ رَسُولُ اللّٰهِ (- صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -) عَنْ ذَرَارِيِّ الْمُشْرِكِينَ قَالَ: اللّٰهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوا عَامِلِينَ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره ﷺ روایت کوي چې د نبی کریم ﷺ څخه د مشرکانو د اولاد په باره کښې پوښتنه وشوه (چې د مرګ څخه وروسته به دوزخ ته ځي یا وجنت ته) رسول الله ﷺ وفرمایل الله پاك ښه پوهیږي (که چیرته ژوندي وې نو چې څه عمل به یې کوي). بخاري ومسلم.

**حل اللغات:** ① ذَرَارِيّ: یا دا د ذرء نه دي، بمعنی الخلق: پیدائش، یا دا د الذر نه دي، بمعنی التفریق: خواره کړې (یعنی الله پیدا کړی او په دنیا کښې ئې خواره کړی دی خو دلته ترې مراد ماشومان دی). ② عَامِلِينَ: د جمع اسم فاعل صیغه ده، عمل کونکی (د جنت یا د دوزخ).

**تسهیلات:**

**قوله:** اللّٰهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوا عَامِلِينَ:

**د مذکوره جملې مفهوم:** یعنی الله تعالی ته معلوم دی، تاسو ته به څه معلوم وی او ستاسو سوال به څه وی؟ دا جمله د مشرکانو د اولاد صحیح حقیقت د بیانولو یو انداز دي، او ددې څخه د لا علمۍ اظهار دې.

**د مشرکانو د اولاد باره کښې یقینی خبرې نه کولو وجوهات:** ① دلته عاملین د حاملین په معنی کښې مستعمل دې یعنی الله تعالی ته ددې علم وو چې د حمل په حالت کښې دوی په کوم فطرت باندې وو.

② نبی کریم ﷺ ته خو معلوم وو خو په اظهار کښې ئې توقف اوفرمائیلو چې اوسه پورې اجازت نه وو،

③ نبی کریم ﷺ ته من جانب الله څه واضح حکم نه وو ملاؤ شوې.

د مشرکانو د اولاد باره کښې (۶) مذاهب (اقوال):

په دې مسئله کښې دنصوصو داختلاف په وجه فقهاء کرامو هم په دې کښې اختلاف کړې دې، یو څو اقوال ملاحظه کړئی.

① د مشرکانو اولاد به نه په جنت کښې دی نه په دوزخ کې بلکه په اعراف کښې به وی.

---

[۱] ) اخرجه البخاری کتاب الجنائز/باب ما قیل فی أولاد المشرکین(رقم-۱۳۸٤ ) ومسلم فی کتاب القدر/باب معنی کل مولود یولد علی الفطرة وحکم موت أطفال الکفار وأطفال المسلمین(رقم-۲۶ - (۲۶۵۹) وابوداود کتاب السنة/ باب فی ذراری المشرکین(رقم-۴۷۱۱) والنسائی کتاب الجنائز/باب أولاد المشرکین (رقم-۱۹۵۰)واحمد فی المسند:۹۳،۳۹۳/۲ - (وعنه) أی: عن أبی هریرة رضی الله عنه (قال: سئل رسول الله - صلی الله علیه وسلم -: عن ذراری المشرکین). جمع ذریة.

④ د مشرکانو اولاد به د والدينو تابع وی او دوزخ ته به ځی.
③ د مشرکانو اولاد به جنت ته داخليږی خو مستقلا نه دی بلکه دجنتيانو د خدامو په حيثيت سره او ددوئ د تابع حيثيت سره به وی.
④ د امام ابوحنيفه رحمه الله او د اکثر فقهاء کرامو په نيز راجح دا ده چې دمشرکانو په اولاد کښې دې توقف اوکړې شی.
⑤ د دوی باره کښې که الله تعالی ته علم وو چې دوی بالغان شی نو کافران به وی هغوی به په جهنم کښې وی او د کومو باره کښې چې ورته علم وو چې دوی بالغان شی نو مسلمانان به وی نو هغه به جنتيان وی.
⑥ دا جنتيان دی، او نبی کريم ﷺ ته د وحی جديد په ذريعه ددې علم شوې وو.
**د راجح قول دلائل**: په دې اقوالو کښې شپږم قول راجح دې چې د مشرکانو اولاد به په جنت کښې وی. ددې قول دلائل لاندې بيانولی شی.
① دالله تعالی ارشاد دې «وما کنا معذبين حتی نبعث رسولا» ددې آيت څخه معلوميږی چې عاقل بالغ وی اوهغه ته دعوت نه وی رسيدلې نوهغه ته به عذاب نشی ورکولې نوغيربالغ اوغيرمکلف ته خوبه په طريقه اولی سره عذاب نشی ورکولې.
② په شب معراج کښې نبی عليه السلام حضرت ابراهيم عليه السلام څخه ګيرچاپيره ماشومان جمع ليدلی وو د نبی عليه السلام څخه د دوی باره کښې تپوس اوشو نو نبی عليه السلام اوفرمائيل ((**هم اولادالناس**))دلته نبی عليه السلام د ,, الناس،، لفظ فرمائيلې دې اوپه الناس کښې مسلمانان او مشرکان ټول داخل دی.د چا تخصيص په کښې نشته.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۹٤] د قلم په ذريعه د جميع ما کان اويکون تقدير ليکل

۹۴ -()[۱۲] [۱] وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ( [۲] «إِنَّ أَوَّلَ مَا خَلَقَ اللَّهُ الْقَلَمُ، فَقَالَ لَهُ اكْتُبْ فَقَالَ: مَا أَكْتُبُ؟ [۳] قَالَ: اكْتُبِ الْقَدَرَ. فَكَتَبَ مَا كَانَ وَمَا هُوَ كَائِنٌ إِلَى الْأَبَدِ» ). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ إِسْنَادًا.

**ترجمه**: [۱] حضرت عباده بن صامت رضی الله عنه روايت کوي چې نبی کريم ﷺ ارشاد وفرمايلي [۲] چې الله پاك د ټولو څخه مخکې کوم شي پيدا کې هغه قلم وو، بيا يې دي (قلم) ته د ليکلو حکم اوکړو، قلم اوويل اله العالمينه څه وليکم، [۳] د بارګاه الوهيت څخه جواب ورکړل شو، تقدير وليکه، نو هغه قلم هغه ټيزونه وليکل کوم چې (تر اوسه پوري)

[۱] ) اخرجه الترمذي کتاب القدر عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ب باب (رقم-۲۱۵۵)واحمد في المسند:۳۵۷/۵

شوې دي او هغه څیزونه يې ولیکل کوم چې آئنده راتلونکي دي، امام ترمذي رحمه الله دا حدیث روایت کړي دي او ویلې يې دی چې دا حدیث د سند په اعتبار سره غریب دي.

**حل اللغات:** ① الْقَدَرَ: أَيِ الْمُقَدَّرَ: تقدير، مقادير ② كَائِنٌ: واقع کیدونکی، راپیښیدونکی دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ أَوَّلَ مَا خَلَقَ اللهُ الْقَلَمُ:

**اشكال:** په دې روایت کښې د قلم د تخلیق ذکر دي چې اول قلم پیدا کړې شوي دې. بل روایت کښې د [اول ماخلق الله نوري] هم دی، او [اول ما خلق اله العقل] هم دی. نو په روایاتو کښې تعارض راغلو؟

**داشكل دوه جوابونه:** ① دلته اولیت اضافي دې. دَ نوردپاره اولیت حقیقی دې، باقی دپاره اضافي دې. یعنی نور نه پس تولو کښې اول قلم پیدا کړې شو او بیا تولو څخه اول عقل پیدا کړې شو. نو د اولیت نسبت به په دې اعتبار سره صحیح شی.

② دخپل خپل نوع په اعتبار سره د اولیت حکم لګولي شوي دې، نو د انواراتو په قسمونو کښې د تولو څخه وړاندې د محمد ﷺ نور پیدا کړې شو او د اقلامو په انواع کښې تولو څخه وړاندې قلم دَتقدیرپیدا کړې شوي دې. اودعقلیاتو په آلاتوکښې تولوڅخه وړاندې عقل پیدا کړې شوي دې.

**قوله:** فَقَالَ لَهُ اكْتُبْ:

**قلم ته د ليكلو حكم:** الله ﷻ چې کائنات کوم ترتیب سره پیدا کړي دې لکه آسمان دې، زمکه ده، عرش دې، کرسی ده، باطنی نظام چلولو دپاره فرښتې دی، دا تول څیزونه هم په دې ترتیب سره لیکل مناسب وو، نو قلم ته حکم اوشو چې اولیکه نو هغه اولیکل، هم دا قضاو قدر دې، اګر چې الله تعالی ددې لیکلو محتاج نه وو خو دا یو نظام دې. او ددې کیدل ډیرمناسب دی.

**قوله:** فَكَتَبَ مَا كَانَ:

**اشكال:** قلم په ازل کښې څه اولیکل حالانکه ددې څخه وړاندې خو هډو زمانه نه وه، لهذا د ماکان الفاظ استعمالول درست نه شو؟

داشكال دوه جوابونه:

① په هغه وخت کښې چې کوم کائنات موجود وو هغه ترې مراد دی. لکه آسمان، زمکه، عرش، کرسی.

② د نبی ﷺ په اعتبار سره د «ما کان» اووئیلي شو. یعنی د رسول کریم ﷺ څخه د زمانې څه چې وړاندې څخه شوی وو. هغه ترې مراد دی.

**قوله: وَمَا هُوَ كَائِنٌ إِلَى الْأَبَدِ:**

**دابد په مفهوم کښې درې اقوال:**

① دابد څخه غیر متناهي موده مراد نه ده بلکه اوږده زمانه مراد ده.

② د دنیا د ختمیدو پورې زمانه مراد ده.

③ په جنت او جهنم کښې د استقرار پورې زمانه مراد ده لکه څنګه چې به در منثور کښې د ابن عباس رضي الله عنهما څخه منقول دی چې ((وماهوكائن الى أن تقوم الساعة)).

**[٩٥] په عالم ذر کښې د بنی آدم څخه دالله تعالی د ربوبیت وعده اخستل**

٩٥-()[١٧] ① وَعَنْ مُسْلِمِ بْنِ يَسَارٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: «سُئِلَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنْ هَذِهِ الْآيَةِ: {وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِي آدَمَ مِنْ ظُهُورِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ} [الأعراف: ١٧٢] الْآيَةَ، ② قَالَ عُمَرُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُسْأَلُ عَنْهَا فَقَالَ " إِنَّ اللَّهَ خَلَقَ آدَمَ، ثُمَّ مَسَحَ ظَهْرَهُ بِيَمِينِهِ، فَاسْتَخْرَجَ مِنْهُ ذُرِّيَّةً، ③ فَقَالَ: خَلَقْتُ هَؤُلَاءِ لِلْجَنَّةِ، وَبِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ يَعْمَلُونَ، ④ ثُمَّ مَسَحَ ظَهْرَهُ بِيَدِهِ فَاسْتَخْرَجَ مِنْهُ ذُرِّيَّةً، ⑤ فَقَالَ خَلَقْتُ هَؤُلَاءِ لِلنَّارِ، وَبِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ يَعْمَلُونَ ⑥ فَقَالَ رَجُلٌ: فَفِيمَ الْعَمَلُ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ ⑦ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " إِنَّ اللَّهَ إِذَا خَلَقَ الْعَبْدَ لِلْجَنَّةِ اسْتَعْمَلَهُ بِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ حَتَّى يَمُوتَ عَلَى عَمَلٍ مِنْ أَعْمَالِ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَيُدْخِلَهُ بِهِ الْجَنَّةَ، ⑧ وَإِذَا خَلَقَ الْعَبْدَ لِلنَّارِ، اسْتَعْمَلَهُ بِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ حَتَّى يَمُوتَ عَلَى عَمَلٍ مِنْ أَعْمَالِ أَهْلِ النَّارِ فَيُدْخِلَهُ بِهِ النَّارَ» " رَوَاهُ مَالِكٌ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت مسلم بن یسار رحمه الله روایت کوي چې د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه څخه د دې آیت: وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِي آدَمَ مِنْ ظُهُورِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَأَشْهَدَهُمْ عَلَى أَنْفُسِهِمْ أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوا بَلَى شَهِدْنَا أَنْ تَقُولُوا يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِنَّا كُنَّا عَنْ هَذَا غَافِلِينَ (١٧٢ الاعراف) (ترجمه) او هر کله چې ستا رب د آدم عليه السلام د شاه څخه د هغه اولاد پیدا کړي (او پوهه ورته ورکولو سره) د هغوئ څخه یې د هغوئ متعلق اقرار واخستي چې آیا زه ستاسو رب نه یم؟ نو ټولو جواب ورکړو، ولي نه، مونږ ټول (د دي واقعي) ګواهان جوړیږو، د پاره د دې چې تاسو خلق د قیامت په ورځ دا ونه وایئ چې مونږ خو د دې (توحید څخه محض ناخبره وو) ② نو هغه اوویل چې د دې آیت په باره کښې چې درسول الله صلى الله عليه وسلم څخه پوښتنه وشوه، نو ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه واوریدل چې وي فرمایل: الله تعالی جل جلاله آدم عليه السلام پیدا کړي بیا یې د هغه په ملا (شا) ښي لاس تیرکي او د هغه څخه یې د هغه اولاد پیدا کي، ③ او وي فرمایل چې ما دوي د جنت د پاره پیدا کړي دي او د جنتیانو په شان عملونه به دوي کوي، ④ بیا یې خپل لاس د آدم عليه السلام په شا راتیر کړو او د هغه څخه یې د هغه اولاد

---

[١] اخرجه ترمذی کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة الأعراف (رقم-٣٠٧٥) ومالک في كتاب القدر /باب النهي عن القول بالقدر (رقم-٢) واحمد في المسند: ٤٤/١

پیدا کي، ⑤ او وي فرمايل چې ما دوي د دوزخ دپاره پیدا کړي دي او د دوزخيانو په شان عملونه به دوي کوي، ⑥ په دا اوريدو سره يو سړي اوويل يا رسول الله ﷺ بيا د عمل څه ضرورت دي؟ ⑦ حضور ﷺ وفرمايل هر کله چې الله تعالیٰ ﷻ يو بنده د جنت د پاره پیدا کوي نو په هغه دجنتيانو عمل کوي، تر دي چې د هغه (بنده) وفات د جنتيانو غوندي اعمالو باندې کيږي، چنانچې الله تعالیٰ ﷻ د دې اعمالو په بنا هغه په جنت کښې داخلوي ⑧ او هر کله چې الله تعالیٰ ﷻ يو بنده ددوزخ دپاره پيداکوي نو دهغه څخه د دوزخيانو په شان اعمال صادره وي، تر دي چې هغه د اهلِ دوزخ په شان اعمالو کولو کښې مړشي، نوهغه ددې اعمالوپه بنا په دوزخ کښې واچوي موطا مالك ترمذي ابوداؤد

**تسهيلات:**

**قوله:** {وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِي آدَمَ مِنْ ظُهُورِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ}:

**دآدم عليه السلام د شا څخه د ذريات د راويستلو په طريقه کښې اقوال:**

① امام عبدالوهاب شعرانی رحمه الله فرمائی چې د آدم عليه السلام په ملا کښې سورې اوکړې شو او دا ترې راويستلې شو.

② هر يو د خپل پلار د ملا څخه راويستلې شو او دا مکالمه اوشوه.

③ د بدن د ويښتو د مسامونو په ذريعه اويستلې شو،

**د اخراج ذريت آدم د اخراج به مقام کښې اقوال:**

① دنيا ته د راتلو نه پس راويستلې شو.

② په عالم ارواح کښې راويستلې شو.

③ عرفات سره نزدې نعمان غر دې هغې سره دا واقعه شوې وه. دحضرت ابن عباس رضی الله عنه يو روايت په دې باندې دلالت هم کوی.

**اشکال:** د قرآن پاك په آيت کښې من ظهورهم لفظ راغلې دې، دهغې څخه معلوميږی چې ټول اولاد د خپل خپل پلارانو د ملاګانو څخه راويستلې شوي دې. او مذکوره حديث پاك کښې ثم مسح ظهره بيمينه کښې تصريح ده چې د اولاد استخراج د آدم عليه السلام د ملا څخه شوې دې؟

**داشکال درې جوابونه:** ① د استخراجِ اولاد دوه مرحلې دی، يو پشت آدم څخه د راوتلو مرحله او بله ظهوربنی آدم څخه دراويستلو مرحله ده. حديث پاك کښې د پشت آدم د مرحلې ذکر دې. او په آيت کښې د ظهور بنی آدم. نو په آيت او حديث کښې هيڅ تعارض نشته دې. يو کښې بلاواسطه اخراج دې او دويم کښې بالواسطه اخراج ذکر دې.

② د ذريت آدم د اخراج کيفيت دا وو چې اول هابيل او قابيل د آدم عليه السلام د شا څخه

راویستلی شو بیا د هابیل او قابیل د شا څخه چې ترقیامته پورې کوم اولاد پیدا کیږی راویستلی شو نو په قرآن کښې اخراج ترتیبی ذکر شوې دې او په حدیث کښې اخراج واقعی ذکر شوې دې.

④ دا د اسلوب الحکیم د طریقې څخه دې چې اول ئې یوقسم ذکرکړلو او دویم قسم ئې د مخاطب په فهم باندې پریخودو چې ددې څخه به مخاطب پخپله دویم قسم معلوم کړی.

**د اشهاد په مراد کښې دوه اقوال:** ① په قرآن پاک کښې چې د اشهاد بیان راغلې دې چې ((**واشهدهم علی انفسهم**)) دې د دې اشهاد باره کښې قاضی بیضاوی رحمه الله فرمائی دا ټوله معامله په یو تمثیل باندې محمول کړې ده چه الله تعالی دلائلِ ربوبیت قائم کړل او دیخوائی په عقول کښې یوه ماده پیدا کړه چه دَ اقرار توحید او ربوبیت په منلو باندې انسان تیارکړی نو انسان (**قَالُوْابَلٰى**) اووئیل.

② دَ قاضی بیضاوی رحمه الله نه علاوه ټول صوفیاء کرام، محدثین عظام اودَ اهل حق په نیز حق دادی چه دا اشهاد حقیقةً فی الواقع شوی دی. هغه داسې چه الله تعالی ټول بندیګان دَ آدم علیه السلام دَ شانه اوویستل ټولوسره ئی کلام اوکړو قولاً ئی ترې اقرار واخستو او ټولو اقرار کولو سره وعده اوکړه. دَحضرت ابن عباس رضی الله عنهما په روایت کښې دی [**فکلمهم قبلا**] یعنی الله تعالی مخامخ دغه خلقو سره خبرې اترې اوکلام اوکړو. دا روایت دَ دې حضراتو دلیل دې اوهم دغه مسلك حق دې. دَ قاضی بیضاوی رحمه الله تمثیل په دې روایت کښې نه شی چلیدې.

**دوعدې د نه یادیدووجه:** چونکه د انسان څخه هیره کیږی ددې وجې هغه وعده زمونږ څخه هیره شوې ده خو ددې مطلب دا نه دې چې وعده نه ده اخستلې شوې څکه چې بعضې پاکیزه نفوسو ته دنیا ته د راتلو څخه روسته هم هغه وعده یآده وه لکه حضرت ذوالنون مصری رحمه الله څخه مرودی دی چې ((**کأنه الان فی اذنی**)) یعنی اوس هم هغه داقرار الفاظ زما په غوږونو کښې اوریدې شی دغه شان حضرت علی رضی الله عنه به فرمائیل زه هلته نبی او کس طرف ته ولاړ خلق هم پیژنم چه څوك څوك وو؟ عبدالله تستری رحمه الله فرمائی چه ماته دَ عهد الست شاګردی یاده ده. او که چرې تاسه هیره هم شی نوځه دَ حیرانتیا خبره نه ده لوئی لوئی انقلابات راغلی دی. انسان اول نطفه وه بیا علقه بیا مضغه بیا عظام او بیا لحم وشحم کښې بدل شو بیا په وجودکښې راغلو. ولې ستا په هیرولوسره به دَ دې تفصیل حقیقت ختم شی؟ هیڅ کله نه هسې هم ستا دَ هیرولو دَ وجې نه دَ عهد الست په حقانیت باندې هیڅ اثر نه پریوځی. زه ته اووایه چه دا ته کوم خط لیکل پیژنې قرآن لوستل پیژنې نوخامخا به شروع دَ چرته نه خو شوې وی. اوس ته مونږ ته اوښایه چه هغه

دَ شروع حروف او كلمات څه وو؟ چاته ياد دي حالانكه هغه هم يو حقيقت دي.

**قوله: ثُمَّ مَسَحَ ظَهْرَهُ بِيَدِهِ**

**يوه بلاغي نكته:** دې نه مخكښې ئې مسح بيمينه اوفرمائيل خكه چه هلته مؤمنان وو نو په اعزازي توګه باندې دَ يمين ذكر اوكړې شو اودلته ئې بيده اوفرمائيل خكه چه دا كافران دي. دَ دوى دَ پاره دَ يمين اعزازي لفظ مناسب نه وو اودَ شمال تصور نه وو نو بيده اوفرمائيل. (استعماله) يعني داهل جنت په عمل كي ئي اولګولو، يعني توفيق ئي وركړو.

**[٩٦] د نبی علیه السلام په لاس كښې دوه كتابونه**

٩٦-()[١٨] [١] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: «خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ (-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-) وَفِي يَدَيْهِ كِتَابَانِ، [٢] فَقَالَ: "أَتَدْرُونَ مَا هَذَانِ الْكِتَابَانِ؟". قُلْنَا: لَا، يَا رَسُولَ اللَّهِ! إِلَّا أَنْ تُخْبِرَنَا [٣] فَقَالَ لِلَّذِي فِي يَدِهِ الْيُمْنَى: (هَذَا كِتَابٌ مِنْ رَبِّ الْعَالَمِينَ، فِيهِ أَسْمَاءُ أَهْلِ الْجَنَّةِ، وَأَسْمَاءُ آبَائِهِمْ، وَقَبَائِلِهِمْ، ثُمَّ أُجْمِلَ عَلَى آخِرِهِمْ، فَلَا يُزَادُ فِيهِمْ، وَلَا يُنْقَصُ مِنْهُمْ أَبَدًا. [٤] ثُمَّ قَالَ لِلَّذِي فِي شِمَالِهِ: (هَذَا كِتَابٌ مِنْ رَبِّ الْعَالَمِينَ فِيهِ أَسْمَاءُ أَهْلِ النَّارِ، وَأَسْمَاءُ آبَائِهِمْ، وَقَبَائِلِهِمْ، ثُمَّ أُجْمِلَ عَلَى آخِرِهِمْ، فَلَا يُزَادُ فِيهِمْ، وَلَا يُنْقَصُ مِنْهُمْ أَبَدًا) [٥] فَقَالَ أَصْحَابُهُ: فَفِيمَ الْعَمَلُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنْ كَانَ أَمْرٌ قَدْ فُرِغَ مِنْهُ؟ [٦] فَقَالَ: (سَدِّدُوا، وَقَارِبُوا، فَإِنَّ صَاحِبَ الْجَنَّةِ يُخْتَمُ لَهُ بِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ، وَإِنْ عَمِلَ أَيَّ عَمَلٍ، وَإِنَّ صَاحِبَ النَّارِ يُخْتَمُ لَهُ بِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ، وَإِنْ عَمِلَ أَيَّ عَمَلٍ). [٧] ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِيَدَيْهِ فَنَبَذَهُمَا، ثُمَّ قَالَ: (فَرَغَ رَبُّكُمْ مِنَ الْعِبَادِ {فَرِيقٌ فِي الْجَنَّةِ وَفَرِيقٌ فِي السَّعِيرِ} [الشورى: ٧]») رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت عبد الله بن عمرو ﷺ روايت كوي چې (يو ځل) نبی كريم ﷺ بهر تشريف راوړو د ده ﷺ په لاسو كښې دوه كتابونه وه [٢] او (اصحابو ﷺ ته يې خطاب كولو سره) وفرمايل تاسو پوهيږي چې دا دواړه كتابونه څه دي، مونږ عرض اوكړو يا رسول الله ﷺ مونږ ته څه معلوم، ته ﷺ يي راته وښايه دا كتابونه څه دي، [٣] رسول الله ﷺ د هغه په باره كښې وفرمايل دا چې كوم په ښي لاس كښې وو دا د الله پاك د طرف څخه دي چې په دي كښې د جنت د خاوندانو د هغوئ دپلرونو او د هغوئ د قبيلو نومونه ليكل شوې دي بيا يي په آخركي جمع بندي كړي ده نو د دې وجي څخه په دي كې څه كمي بيشي نه كيږي، [٤] د دې څخه وروسته يي د ګس لاس والا كتاب په باره كښې وفرمايل چې دا دالله پاك د طرف څخه يو داسې كتاب دي چې په دي كښې د دوزخ د خاوندانو د هغوئ د پلرونو او د هغوئ د قبيلو نومونه ليكل شوې دي، بيا يي په آخركي جمع بندي كړي ده، نو د دې وجي څخه په دي كښې نه څه كمي كيږي او نه زياتي، [٥] دي

(١) اخرجه ترمذی كتاب القدر عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن الله كتب كتابا لأهل الجنة وأهل النار (رقم-٢١٤١)واحمد فی المسند:١٦٧/٢

(اوريدو سره) صحابو رضي الله عنهم عرض وكړو چې يا رسول الله ﷺ چې كله دا شي د مخكې څخه شوي دي (چې د جنت او دوزخ مدار په نوشتهٔ تقدير باندې دي نو بيا د عمل څه ضرورت دي؟) ⑥ حضور ﷺ وفرمايل د دين او شريعت مطابق خپل عملونه په ښه شان مضبوط كړي او (د حق تعالى جل جلاله) تقرب (نزديكت) حاصل كړي، ځكه چې د جنتي خاتمه د جنت د خاوندانو په عملونو باندې كيږي، خواه كه هغه (په ژوند كښې) څومره (نيك يا بد) عملونه كړي وي، او د دوزخي خاتمه د دوزخ د خاوندانو په عملونو باندې كيږي خواه كه د هغه عملونه څنگه هم شوې وي، ⑦ بيا حضور ﷺ په خپلو دواړو لاسونو سره اشاره وكړه او كتابونه يې كېښودل يعنى شاته يې كېښودل او وې فرمايل ستاسو پرورد گار د بنده گانو په باره كښې د مخكې څخه دا فيصله كړيده چې يو جماعت جنتي دي او يو جماعت دوزخي دي. ترمذي

**حل اللغات:** ① أَتَدْرُونَ : أَيْ: أَتَعْلَمُونَ: آيا تاسو پوهيږئ؟ ② أُجْمِلَ : أى أُجْمِلَ الحِسَابُ إِذَا تُمِّمَ: ددې مطلب دادې چې د تفصيل نه پس آخر كښې ددې مجموعى اجمالى فهرست ليكلې شوې وو كوم چې ميزان يا ميزانه وائى. ③ سَدِّدُوا: أَيْ: اجْعَلُوا أَعْمَالَكُمْ مُسْتَقِيمَةً عَلَى طَرِيقِ الحَقِّ: برابر شئ يعنى خپل اعمال صحيح كړئ او د حق په نيغه لاره باندې روان شئ. ④ قَارِبُوا: أَيْ: اطْلُبُوا قُرْبَةَ اللهِ تَعَالَى: نزديكت حاصل كړئ يعنى هغه اعمال كوئ كوم سره چه د الله تعالى نزديكت حاصليږى. ⑤ يُخْتَمُ: خاتمه ئې كولې شى، ⑥ فَنَبَذَهُمَا: أَيْ: طَرَحَ: اوئې غورځول، اوئې ويشتل دواړه (كتابونه يا لاسونه)، ⑦ السَّعِيرِ: گرم اور يعنى دوزخ.

**تسهيلات:**

**قوله: وَفِي يَدَيْهِ كِتَابَانِ:**

**د كتابان په مصداق كښې دوه اقوال:** ① جمهور محدثين، حضرات علماء او اهل الله واهل باطن ټول وائى چې دا دواړه حسى كتابونه وو كوم طرفته چه اشاره شوې ده. علامه تورپشتي رحمه الله فرمائى چې كومې هستى باندې مسلسل وحى راتلې كه عالم غيب څخه هغه ته حسى كتابونه وركړې شوى وى نو په دې كښې څه استبعاد او څخه استعجاب دې؟ او چونكه دا د عالم غيب كتابونه وو لهذا ددې په ضخامت دې اعتراض اونه كړې شى.

② اهل تاويل علماء كرامو ليكلى دى چې دا څه محسوس، مشاهد او مخصوص كتابونه نه وو بلكه يو مثال او يو تصوير بيانول مقصود وو. هغوئ وائى چې نبى كريم ﷺ ته ددې كتابونو متعلق كامل يقين او قطعى علم وو. كوم چه د مشاهدۀ حسيه څخه هم زيات قوى وو. نو نبى كريم ﷺ دا غير حسى كتابونه د حسى په طور پيش كړل.

**داشكال جواب:** یو کتاب کښې د اهل جنت نومونه لیکلی شوی وو او بل کښې د اهل دوزخ نومونه وو. په دې نن صبا د کمپیوټر دور دې په یوه معمولی غوندې ((یو ایس بی)) کښې لکهونه صفحات ډیټا راځی دغه شان د ګنټو ګنټو فلمونه اوتصویرونه راځی.هرکله چې انسان ته الله تعالی دومره طاقت ورکړې دې نو بیا الله تعالی چې خالق کائنات دې په هغه څه ګران دی.

**قوله:** فَقَالَ: سَدِّدُوا، وَقَارِبُوا:

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې ددې مطلب دادې چې مکمل عمل کوئی، ګنی قریب قریب ورسره ځی.

② علامه طیبی رحمه الله فرمائی چې ددې مطلب دادې چې تاسو عباد او بندګان یئ، تاسو ته دسوال کولو حق نشته دې، بلکه صحیح صحیح عمل کوئی، او دالله تعالی قرب حاصلولو د پاره وړاندې لاړشی.

**قوله:** ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِيَدَيْهِ:

**د قال بيديه تركيب:** د قال په صله کښې مختلف حروف راتلو سره ددې معنی بدلیږی رابدلیږی. [قال عنه أي روي عنه، قال فيه أي عاب عليه قال برأسه أي قال نعم وأجاب، قال بيده أي أشار بيده] دلته هم داشارې په معنی راغلې دې

[قال بثوبه أي رفعه، قال برجله أي مشى قالت عينه أي أومأت كما قيل وقالت له العينان سمعا وطاعة وحدرتا كالدر لما ينقب].

**قوله:** فَنَبَذَهُمَا:

**د نبذ مفهوم:** په دې ویشتلو کښې د توهین صورت نه راوځی. بلکه د عالم الغیب کتابونه وو، کله چې ئې لاسونه پریښودل نو کتابونه هم غائب شو. دلته [قال بيديه فنبذهما] په حقیقت کښې د [جف القلم بما أنت لاق] په شان دې، معنی داده چې کوم څه کیږی نو هم هغه به کیږی. او فرغ ربكم هم په دې باندې دال دې.

**د عالم درې قسمونه:**

① عالم مشاهده دې، په کوم کښې چې روح، او جسم دواړه فعال دی. جسم سره صورت هم دې.

② عالم مثال دی په کوم کښې چې صرف صورت وی، جسم نه وی.

③ عالم ارواح دې په کوم کښې چې صرف روح وی.

## [٩٧] دم درود او تقدير

٩٧ -()[١٩] ①وَعَنْ أَبِي خِزَامَةَ عَنْ أَبِيهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: «قُلْتُ: يَارَسُولَ اللَّهِ! أَرَأَيْتَ رُقًى نَسْتَرْقِيهَا، ②وَدَوَاءً نَتَدَاوَى بِهِ، وَتُقَاةً نَتَّقِيهَا، ③هَلْ تَرُدُّ مِنْ قَدَرِ اللَّهِ شَيْئًا؟ قَالَ: (هِيَ مِنْ قَدَرِ اللَّهِ») رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَةَ.

**ترجمه:** ①او ابو خزامه رحمه الله د خپل پلار مکرم څخه روايت کوي چې هغه وفرمايل چې ما د نبی کريم ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې يارسول الله ﷺ هغه عمليات کوم چې مونږ (د شفاء د پاره) وايو او هغه دوائياني کوم چې مونږ (د ناجوړي د پاره) استعمالوو ②او هغه ځيزونه د کوم څخه چې مونږ حفاظت حاصلوو (لکه ډهال او زغره وغيره) ③د هغوئ په باره کښې ماته څه اوښايه چې آيا دا ټول ځيزونه په نوشتهٔ تقدير کښې څه اثر اندازه کيږی؟ ④حضور ﷺ وفرمايل دا ځيزونه هم د تقديرد ليك مطابق دي. احمد ترمذي ابن ماجه

**حل اللغات:** ①رُقًى: دا جمع د رُقْيَة ده، وَهِيَ مَا يُقْرَأُ لِطَلَبِ الشِّفَاءِ: کوم څه چه د شفاء حاصلولو دپاره لوستلي شی. ②نَسْتَرْقِيهَا: چه مونږ ورسره شفاء حاصلول غواړو. ③تُقَاةً: دا په اصل کښې وُقَاةً دې، ماخوذ دې د وَقَى نه، وَهُوَ مَا يَقِي مِنَ الْعَدُوِّ: کوم څه سره چه د دشمن نه ځان محفوظ کوی يعنی ډهال، زغره وغيره. ④تَرُدُّ: واپس کوی، منع کوی.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَرَأَيْتَ رُقًى نَسْتَرْقِيهَا:

**د دم درود درې قسمونه اود هريوحکم:** ① دکوم دم درود معنی چې معلوم نه وی خو رسول کريم ﷺ اجازت ورکړې وی نو هغه هم جائز دی. لکه [شجة قرنية ملحة بحر] دا دَ لړم ټك لګولو دم دې. دا هم جائز دې.

② په کوم دم درود کښې د الفاظو معنی معلوم نه وی يا په کښې شرکيه الفاظ وی نو دهغې استعمال حرام دې.

③ دکومې معنی چې صحيح وی په شريعت کښې هغه دم استعمال دپاره موجود وی نو هغه دم جائز دې.

**نوټ:** د دې حديث مزيد تفصيل به ان شاء الله په کتاب الطب کښې راشي.

**دم درود او تقدير:** بهر حال دصحابی د تپوس او سوال مقصد دا وو چې هرکله ټول امور په مقدراتو کښې دی نو درقيه ادويه دَ حفاظت ځيزونو د استعمال څه فائده ده؟ نو نبی کريم ﷺ جواب ورکړو چې دا ځيزونه هم په تقدير کښې، تقدير څخه بهر نه دی. نو

(١) أخرجه ترمذی كتاب الطب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الرقى والأدوية (رقم-٢٠٦٥) وابن ماجة كتاب الطب/باب ما أنزل الله داء. إلا أنزل له شفاء (رقم-٣٤٣٧)

استعمال او اشتغال بالاسباب جائز دی. اتكال بالاسباب جائز نه د ی. جائز تعويزونه هم په هغه وخت كښې ممنوع كرځي كله چې خلق دا مؤثر بالذات اوګڼري.

### [۹۸] د تقدير په مسئله كښې د بحث كولو ممانعت

۹۸ -(')[۲۰] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: قَالَ: «خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَنَحْنُ نَتَنَازَعُ فِي الْقَدَرِ، ۲ فَغَضِبَ حَتَّى احْمَرَّ وَجْهُهُ، حَتَّى كَأَنَّمَا فُقِئَ فِي وَجْنَتَيْهِ حَبُّ الرُّمَّانِ، ۳ فَقَالَ: (أَبِهَذَا أُمِرْتُمْ؟ أَمْ بِهَذَا أُرْسِلْتُ إِلَيْكُمْ؟ ۴ إِنَّمَا هَلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ حِينَ تَنَازَعُوا فِي هَذَا الْأَمْرِ، ۵ عَزَمْتُ عَلَيْكُمْ، عَزَمْتُ عَلَيْكُمْ أَلَّا تَنَازَعُوا فِيهِ»). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهريره ﷺ روايت كوي چې (يوه ورځ) مونږ د قضا او قدر په مسئله بحث كولي چې حضور ﷺ تشريف راوړو ۲ (مونږ يي په دي مسئله كښې اخته ليدلو سره) د ده ﷺ مخ مبارك د غصي څخه سور شو او داسې معلوميده لكه چې د انارو داني د ده ﷺ په رخسار مبارک باندې نستيرل شوې وي، ۳ په دي حال كښې رسول الله ﷺ وفرمايل چې آيا تاسو ته د دې شي حكم دركول شوې دي اويا زه د دې د پاره تاسو ته (رسول جوړولو سره) راليږل شوې يم؟ ۴ يوه شی چې مخكې خلق په دي وجه د هلاكت په كنده كښې غورزول شوې وه چې هغوئ په دي مسئله كښې اخته كيدل خپله مشغله جوړه كړې وه، ۵ نو زه تاسو ته د دې خبري قسم در كوم (او بيا دوباره) قسم دركوم چې تاسو په دي مسئله كښې بحث مه كوي، ترمذي

**حل اللغات:** ① تَتَنَازَعُ: أَيْ: تَتَبَاحَثُ: جګړه مو كوله، يعنى مونږ خپل منځ كښې بحث كولو، ② الْقَدَرِ: تقدير يعنى كوم څه چه الله تعالى دمخكښې نه ليكلى دى، ③ فُقِئَ: أَيْ: شُقَّ، أَوْعُصِرَ: ماتې شوې يانچوركړې شوی دی، ④ وَجْنَتَيْهِ: أَيْ: خَدَّيْهِ: دواړه رُخسار، اننګی، ⑤ حَبُّ: دانې، ⑥ الرُّمَّانِ: انار، ⑦ عَزَمْتُ: أَيْ: أَقْسَمْتُ أَوْأَوْجَبْتُ: قسم دركوم، په تاسو واجب ګرځوم

۹۹ -(')[۰] وَرَوَى ابْنُ مَاجَهْ نَحْوَهُ. عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ...

**ترجمه:** او ابن ماجه داسې روايت د عمرو بن شعيب څخه نقل كړي دي، كوم چې هغه د خپل پلار څخه او هغه د خپل نيكه څخه روايت كړي دي.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَنَحْنُ نَتَنَازَعُ فِي الْقَدَرِ:

**د صحابؤ د جګړې وضاحت:** يعنى دا بحث وو. مثلاً يو فريق وئيل چې كله هر څه په دې عالم كائنات كښې د الله ﷻ د مقرر شوی تقدير لاندې كيږي نو بيا ګناهګارو ته ولې عذاب

[1]) اخرجه ترمذى كتاب القدر عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء فى التشديد فى الخوض فى القدر (رقم۲۱۳۳)
[2]) اخرجه ابن ما جة كتاب فى الإيمان وفضائل الصحابة والعلم /باب فى القدر(رقم-۸۵)

ورکولې کیږي؟ دویم فریق وئیل چه په دې کښې څه حکمت دې چې ځینې بندګانو دپاره جنت دې او د ځینو دپاره دوزخ پیدا کړې شوې دې؟

**قوله: فَغَضِبَ حَتَّى احْمَرَّ وَجْهُهُ:**

**د نبی علیه السلام د ناراضګۍ په وجه کښې دوه اقوال:** ① ه تقدیر کښې بحث مباحثه شرعا ټیک نه دی ځکه چې د دې په نتیجه کښې د سړی په عقیده کښې فساد راځی لکه څنګه چې قدریه اوجبریه ګمراه شوې وې.

② کوم ځیز چې د انسانی عقل څخه بهر وی، په هغې کښې بحث مباحثه کول بې سود دی. بیا انسان دالله تعالی بنده او غلام دې، نو آیا غلام د خپل آقا دحکمتونو تلاش شروع کړې، چې دا ئې ولې اوکړل، دا ئې ولې اونه کړل، دا به څنګه کوی، دا سوالونه ډیره لوې بې آدبی ده.

**د تقدیرباره کښې د ټپوسونوکولومثال:** یو نوکر خپل مالك ته وائی چې نن به ته څه کار کوې؟ کوم ځائې به ئې کوې؟ولې بدئی کوې؟ او په ښار کښې به ئې کوم ځائې کوې ؟ او کله به ئې کوې ؟ په دې سوالونو کولو سره به مالك دې د کار څخه فارغ کړی چې ته ما د څوکیدارۍ دپاره مقرر کړې وې، ما ته زما په کار کښې د حکمتونو او علتونو د تلاش دپاره نه وې ساتلې. حضرت مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله فرمائی چې د تقدیر په مسئله کښې مسلم ا و غیر مسلم ټول برابر دی.

لهذا د تقدیر اثبات صرف د مسلمان په ذمه نه دې بلکه دا مسئله عقلیه ده او په دې باندې پوهیدل د ټولو ذمه ده.

**قوله: حَتَّى كَأَنَّمَا فُقِئَ فِي وَجْنَتَيْهِ:**

**د غصې په وخت کښې د محبوب مخ سور کیدل:** کله چې به نبی علیه السلام غصه شو نو مخ مبارک به ئې سور شو اوپه بعضې روایاتو کښې راځی چې د دواړو سترګو په مینځ کښې چې کوم رګونه دی هغه به راولاړ شول د غصې په وخت کښې دغصې او خفګان آثار دانسان په مخ ښکاره کیدل یو فطرتی عمل دې.

**قوله: عَزَمْتُ عَلَيْكُمْ:**

**دتقدیرباره کښې د خاموشۍ اختیارولوتاکید:** دا به دعربۍ په محاوره کښې کیدل چې تاته قسم درکړم، پښتنو کښې هم دا دستور دې چې میلمه ته قسم ورکوی او ورته وائی چې اوخوره.

## [۱۰۰] د آدم ﷺ د تخليق بيان

١٠٠ - ()[٢١] [١] وَعَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ( [٢] «إِنَّ اللَّهَ خَلَقَ آدَمَ مِنْ قَبْضَةٍ قَبَضَهَا مِنْ جَمِيعِ الْأَرْضِ، [٣] فَجَاءَ بَنُو آدَمَ عَلَى قَدْرِ الْأَرْضِ، [٤] مِنْهُمُ الْأَحْمَرُ وَالْأَبْيَضُ، وَالْأَسْوَدُ وَبَيْنَ ذَلِكَ، [٥] وَالسَّهْلُ، وَالْحَزْنُ، وَالْخَبِيثُ، وَالطَّيِّبُ» ) رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابو موسي ﷺ روايت كوي چې ما د رسول الله ﷺ څخه دي فرمايلو سره اوريدلي دي [٢] چې الله تعالى ﷻ د آدم ﷺ تخليق د يو مُتي خاوري څخه کړي دي چې د هر ځاي د زمکې څخه اخستل شوې وه. [٣] نو د آدم ﷺ اولاد (د هغې) زمکې موافق پيدا شوي. [٤] (په انسانانو کي) بعضې سره، بعضې سپين، بعضې تور، بعضې د درميانه رنګ، بعضې نرم مزاجه، بعضې تيز مزاجه، بعضې پاك او بعضې ناپاك دي. احمد ترمذي ابوداوٗد

**حل اللغات:** ① قَبْضَةٍ : أى مِلْءُ الكَفِّ: موټې، ② السَّهْلُ: أي: اللَّيِّنُ: پوست، نرم طبيعت والا، ③ الحَزْنُ: أي: الغَلِيظُ: تيز، سخت طبيعت والا، ④ الخَبِيثُ: ناپاكه طبيعت والا، ډير سخا بوئ لرونكي ځيز ته وائي. دې نه مراد ډير سخت شرير بدبودار سخاشوې كافر دې. ⑤ الطَّيِّبُ: ښه طبيعت والا، خوشبوئى دار او ښكلې بوئى لرونكې ځيز ته وائى دلته ددې نه خير او صلاح لرونكې مؤمن مراد دې.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ اللَّهَ خَلَقَ آدَمَ مِنْ قَبْضَةٍ قَبَضَهَا مِنْ جَمِيعِ الْأَرْضِ،

**د زمکې څخه د خاورې راخستونكې فرښته:** د زمکې په كومو كومو حصو چې به دآدم ﷺ اولاد اوسيدل نو د هغې ټولو حصوڅخه عز رائيل عليه ا لسلام خاوره راواخستله. حضرت عزرائيل ﷺ د ټولې زمکې څخه خاوره دامانت په طور سره راخستې وه ددې وجې هم عزرائيل ﷺ ته د دوى د روحونوقبض كولو ذمه وارى حواله كړې شوه چې بدن د كومې خاورې څخه جوړ شوې وو. عزرائيل ﷺ هم هغه خاوره د لاش په صورت كښې زمکې ته حواله كړى.

**قوله:** مِنْهُمُ الْأَحْمَرُ وَالْأَبْيَضُ، وَالْأَسْوَدُ وَبَيْنَ ذَلِكَ:

**دانسان ظاهرى څلور صفات:** علامه طيبى ﷺ فرمائى چه په انسان كښې دا څلور رنګونه ښكاره وو دهغې ذكر ئى اوفرمائيلو. اودا دَ انسان ظاهرى صفات دى هم ددې مطابق انسانان پيدا شوى دى. يعنى كيفيات ارضى اوخصوصيات خاكى په حضرت آدم ﷺ كښې راغله نوبيا دَ آدم ﷺ په اولاد كښې هم راغله.

---

١) اخرجه ابوداود فى السنن رقم الحديث ٤٦٩٣ والترمذى فى السنن رقم الحديث ٢٩٥٥ واحمد فى المسند: ٤/٤٠٠.

① احمر، یعنی سور.

② ابیض، یعنی سپین.

③ اسود، یعنی تور.

④ بین بین. یعنی غنم رنگې.

**قوله:** وَالسَّهْلُ، وَالْحَزْنُ، وَالْخَبِيثُ، وَالطَّيِّبُ:

**د انسان باطنی څلور صفات:** دَدې ظاهری څلور اوصافو په مقابله کښې دَ څلورو باطنی اوصافو هم په حدیث کښې ذکر دی. هغه دا دی.

① سهل: یعنی نرمی دا د نرمې زمکې صفت دې. خودلته دَ سهل نه دَ نرمو اخلاقو مالك انسان مراد دې.

② حزن: د دا سختې زمکې صفت دې. دلته د دې څخه سخت مزاج او بداخلاق انسان مراد دې.

③ خبیث: دا د شاړې او بنجرزمکې صفت دې. دلته ترې کافر او گناهگار مراد دې.

④ طیب: داد زرخیزې زمکې صفت دې. دلته ترې مؤمن اود الله تعالی نیک بنده مراد دې.

### [١٠١] په تقدیر کښې عدم تغیر

١٠١ —() [٢٢] [١] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ [٢] إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ خَلَقَ خَلْقَهُ فِيْ ظُلْمَةٍ فَأَلْقَى عَلَيْهِمْ مِنْ نُوْرِهِ [٣] فَمَنْ أَصَابَهُ مِنْ ذٰلِكَ النُّوْرِ اهْتَدٰى وَمَنْ أَخْطَأَهُ ضَلَّ [٤] فَلِذٰلِكَ أَقُوْلُ جَفَّ الْقَلَمُ عَلٰى عِلْمِ اللهِ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ

**ترجمه:** [١] او حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ فرمايي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي [٢] چې الله تعالی ﷻ خپل مخلوق (انسانان او پیریان) په تیاره کښې پیدا کړل او بیا یي په هغوئ د خپل نور عکس واچولو، [٣] نو چاته چې د دې نور رڼا میسره شوه هغه په نیغه لار ولگیدي او څوك چې د دې د مقدسو شغلو څخه محروم پاتې شو هغه په گمراهيَ کښې پاتې شو، [٤] د دې وجې څخه زه وايم چې په تقدیر الهي باندې قلم وچ شوې دې (چې اوس په تقدیر کښې څه رد وبدل ممکن نه دي). احمد ترمذي

**حل اللغات:** ① اهْتَدٰي: هدایت ئې بیا موندلو، دجنت په لار روان شو. ② أَخْطَأَهُ: ای لَمْ يَصِلْ إِلَيْهِ: تجاوز ئې اوکړو، یعنی دا نور ئې بیا نه موندلو. ③ جَفَّ: اوچ شو قلم، (دا کنایه ده چه د مقدار اتو دکتاب نه قلم فارغ شو).

---

[١] ) اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحدیث ٢٦٤٢ واحمد فی المسند: ٢/ ١٧٦

**تسهيلات:**

**قوله: خَلَقَ خَلْقَهُ فِيْ ظُلْمَةٍ:**

**د ظلمت په مصداق کښې دوه اقوال:** ① حافظ تور پشتی رحمة الله علیه فرمائی چې ظلمة څخه مراد خواهشات او شهوات دی کوم چې د انسان په طبیعت کښې دی او د انسان د تخلیق دَ وخت څخه دَ ده سره دی.

② شیخ عبدالحق رحمه الله فرمائی چې د ظلمت څخه مراد د ماشوموالی زمانه ده کومې کښې چې انسان پیدا کیږی او نور څخه مراد دادې چې دې به لوې شی نو دَ شریعت په براهینو باندې به عمل کوی، دا دده دپاره نور دې.

**قوله: فَأَلْقَى عَلَيْهِمْ مِنْ نُوْرِهِ:**

**د هدایت د نور سره تشبیه:** په دې حدیث کښې د هدایت خاوندی د نور سره تشبیه ورکړې شوې ده لکه څنګه چې یو کس په تیاره کښې په یوه لار باندې تګ کول غواړی نو د رڼا څخه بغیرنشی تلې دغه شان چا سره چې د الله تعالی هدایت نه وی نو هغه صراط مستقیم او جنت ته نشی رسیدې.

**[۱۰۲] زړونه د الله جل جلاله د ګوتو څخه د دوو ګوتو په مینځ کښې دي**

۱۰۲-()[۲۳] ①وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُكْثِرُ أَنْ يَقُولَ: يَا مُقَلِّبَ الْقُلُوبِ ثَبِّتْ قَلْبِي عَلَى دِينِكَ" ②فَقُلْتُ يَا نَبِيَّ اللَّهِ! آمَنَّا بِكَ، وَبِمَا جِئْتَ بِهِ، فَهَلْ تَخَافُ عَلَيْنَا؟ ③قَالَ: " نَعَمْ؟ إِنَّ الْقُلُوبَ بَيْنَ أُصْبُعَيْنِ مِنْ أَصَابِعِ اللَّهِ، يُقَلِّبُهَا كَيْفَ يَشَاءُ» "رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.[1]

**ترجمه:** ①او حضرت انس رضی الله عنه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به اکثر او زیات په طور د دعا دا فرمایل (يَا مُقَلِّبَ الْقُلُوْبِ ثَبِّتْ قَلْبِيْ عَلٰى دِيْنِكَ) اي د زړونو ګرځونکیه زما زړه په خپل دین قایم ولره. ②ما اوویل چې یا رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ په تا صلی الله علیه وسلم باندې ایمان راوړي دي او ستا صلی الله علیه وسلم په راوړي دین او شریعت باندې مي هم ایمان راوړي دي، نو آیا اوس هم ته صلی الله علیه وسلم زمونږ په باره کښې ویرېږي (چې چېرته مونږ ګمراه نه شو) ③رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل بي شکه زړونه د الله تعالی جل جلاله د ګوتو څخه د دوو ګوتو په مینځ کښې دي (یعني د هغه په تصرف او اختیار کښې دي) چې هغه څنګه غواړي هغه په ګردش (چکر) کښې راولي. رواه الترمذي وابن ماجه

**حل اللغات:** ① مُقَلِّبَ: أَيْ: مُصَرِّفُهَا: ګرځونکې، اړونکې راړونکې، ② ثَبِّتْ: قائم اوساته. ③ بِمَا جِئْتَ بِهِ: کوم دین چه تا راوړلې دې یعنی قرآن اوحدیث.

[1] ) اخرجه الترمذی کتاب القدر عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ باب ما جاء أن القلوب بین أصبعی الرحمن (رقم-٢١٤٠) وابن ما جة کتاب الدعاء /باب دعاء رسول الله صلی الله علیه وسلم (رقم-٣٨٣٤)

**تسهیلات:**

**قوله: آمَنَّا بِكَ، وَبِمَا جِئْتَ بِهِ، فَهَلْ تَخَافُ عَلَيْنَا؟:**

**د سوء خاتمې څخه ویریدل:** یعنې ته معصوم یې. تاد نورو هدایت دپاره دین اوشریعت پیش کړې دې ستا باره کښې احتمال نشته چې ته به دَ هدایت د لارې څخه واوړې، اوس ظاهر دادې چې ته به دا دعا زمونږ دپاره کوې. نو آیا په شریعت باندې اسلام راوړلو باوجود ستا په موجودګۍ کښې هم زمونږ د ګمراه کیدو احتمال شته دې؟ نبی کریم ﷺ په جواب کښې نعم اوفرمائیل. آؤ ستا دَ اوړیدو څخه ویریږم ځکه چې د انسان زړه درحمان د دوؤ ګوتو په مینځ کښې دې، لهذا کله هم تاسو مخ اړولې شئ. په دې وجه هر وخت د ایمان د حفاظت دعا کول پکار دی.

**[۱۰۳]دانسان د زړه مثال**

۱۰۳-()[۲۴] ۱وَعَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "۲«مَثَلُ الْقَلْبِ كَرِيشَةٍ بِأَرْضٍ فَلَاةٍ يُقَلِّبُهَا الرِّيَاحُ ظَهْرًا لِبَطْنٍ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ۱اوحضرت ابو موسی ﷺ روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل۲ د زړه مثال داسې دې لکه یو وزر چې په یو میدان کښې پروت وي او هواګانې هغه د شاه څخه د خیټې طرف ته او د خیټې د طرف څخه د شاه طرف ته اړوي را اړوي احمد

**حل اللغات:** ① كَرِيشَةٍ: ریښه دَ مرغئی وزر ته وائی. ② فَلَاةٍ: أَيْ: مَفَازَةٌ خَالِيَةٌ مِنَ النَّبَاتِ: داسې کهلاؤ میدان چه وونې بوټی بکښې نه وی، شاړ میدان، ③ ظَهْرًا: شا، ④ بَطْنٍ: خیټه، (یعنی کله دَ شا طرف ته او کله دَخیټې طرف ته، کله ئې په یو طرف او کله ئې په بل طرف اړوی راړوی).

**تسهیلات:**

**قوله: مَثَلُ الْقَلْبِ كَرِيشَةٍ بِأَرْضٍ فَلَاةٍ:**

**دانسانی زړه د بنړې سره تشبیه:** په سرعت انقلاب کښې نبی ﷺ د انسانی زړه تشبیه د یوې بنړې سره ورکړې ده چې هغه په یو میدان او صحراء کښې وی او بادونه پرې الوزی راؤلوزی، کله ئې یو طرف ته اوړی او کله بل طرف ته اړوی راړوی. دغه شان دانسان زړه په یو حالت باندې نه پاتې کیږی بلکه د ماحول څخه ډیر زر اثر قبلوی کله نیکۍ ته راغب کیږی او کله بدئ ته. نود ډیر احتیاط ضرورت دې. دغلطو مجلسونو څخه ځان ساتل اونېه ماحول اختیارول پکار دی.

**بنړې سره دتشبیه وجه:** بنړې سره ئې ځکه تشبیه ورکړه چې دا یو وړوکې څیز دې په معمولی هوا سره په زمکه اوړی راؤړی اوبیا چې په کولاؤ میدان کښې وی. نود اوړیدو راؤړیدو

[۱]) اخرجه ابن ما جة كتاب في الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/ باب في القدر(رقم -۸۸)واحمد في المسند: ۴۰۸/۴

احتمال په کښې زیات وی.دغه شان هرطرف ته فتنې او دګمراهۍ اسباب دی.هر وخت انسان د هدایت څخه ګمراهۍ ته اود ګمراهۍ څخه هدایت ته راوړېدې شي.نودحالاتو څخه زر متاثره کېدوپه وجه ئې د بنړې سره تشبیه ورکړه.

**قوله:** ظَهْرًا لِبَطْنٍ:

**دمذکوره جملې په ترکیب کښې درې احتمالات:**

① ظهراً د ,,یقلبها،، د ضمیرڅخه بدل دې او په لبطن کښې لام په معنی د ,,إلی،، دې. لکه څنګه چې د الله تعالی په دې قول کښې لام په معنی د ,,إلی،، دې.«مُنَادِيًا يُنَادِيْ لِلْإِيْمَانِ»

② ظهرا لبطن: دا دواړه الفاظ مفعول مطلق دې.یعنی ,,تقلیباً مختلفاً،،

③ دا حال مقدره دې.تقدیری عبارت داسې دې,,ای یقلبها مختلفة،،

**[۱۰٤] په څلورو څیزونو د ایمان راوړلو وجوب**

۱۰۴–()[۲۵][۱] وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[۲]«لَا يُؤْمِنُ عَبْدٌ حَتَّى يُؤْمِنَ بِأَرْبَعٍ: [۳] يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَأَنِّي رَسُولُ اللَّهِ بَعَثَنِي بِالْحَقِّ، [۴] وَيُؤْمِنُ بِالْمَوْتِ، وَالْبَعْثِ بَعْدَ الْمَوْتِ، وَيُؤْمِنُ بِالْقَدَرِ» "رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت علي کرم الله وجهه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل[۲] چې یو بنده تر هغه وخته پورې مؤمن نشي کېدې تر څو چې هغه په څلورو څیزونو ایمان رانه وړي[۲] ① د دې خبرې ګواهي ورکول چې د الله تعالی ﷻ څخه ما سوا بل څوك د عبادت لایق نشته، ② او زه بغیر د شك وشُبهې د الله ﷻ د طرف څخه رالیږل شوې رسول یم او ( حق دین اسلام) راوړلو سره دنیا ته راغلي یم،[۳] ③ مرګ او د مرګ څخه وروسته (په میدانِ حشر کې) په راپورته کېدو باندې ایمان راوړل، ④ او په تقدیر باندې ایمان راوړل. ترمذي ابن ماجه.

**حل اللغات:** ① اَلْبَعْثِ: دوباره راژوندی کېدل.

**تسهیلات:**

**قوله:** لَا يُؤْمِنُ عَبْدٌ حَتَّى يُؤْمِنَ بِأَرْبَعٍ:

**ایمان بالقدر د شهادتینوسره د یوځائې کولووجه:** شیخ عبدالحق رحمة الله علیه فرمائی چې د شهادتینو اقرار سره تقدیر یو ځائې کړې شو،دې کښې دې طرفته اشاره اوکړې شوه چې په تقدیرباندې ایمان راوړل اوایمان بالشهادتین یو مقام لري. دا نشی کېدې چې مؤمن جوړېدو دپاره د شهادتینو اقرار خو ضروری وی او په تقدیر باندې ایمان نه لرې. بلکه

[۱] ) اخرجه الترمذی کتاب القدر عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الإیمان بالقدر خیره وشره (رقم-۲۱٤٥) وابن ماجة کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فی القدر(رقم-۸۸)

لکه څنګه چې د حقیقت ایمان تعلق د شهادتینو په منلو کیږي دي، داشان د تقدیر منل هم د ایمان دپاره ضروری دی

**قوله:** وَيُؤْمِنُ بِالْمَوْتِ:

**په مرګ باندې د ایمان راوړلو مطلب:** د ایمان بالموت مطلب دادې چې دا دنیا فانی ده ټول څیزونه عارضی او فانی دی، او هر ذی روح د پاره مرګ لازمی او یقینی دې او دا مرګ په حقیقت کښې دالله تعالی په اختیارکښې دې اګرچې ددې نسبت خارجی حوادثو طرفته کیږی. [اشعة المعات ۱/۱۱۱]

**قوله:** وَالْبَعْثِ بَعْدَ الْمَوْتِ:

**په دوباره ژوندون د ایمان راوړلو مطلب:** یعنی چه په دې باندې ئی ایمان وی چه قیامت به راځی، دَ ذرې ذرې حساب به کیږی. انسان به دخپلې جثې سره هلته حاضریږی. حساب به ورکوی که چرې کامیاب شو نو جنت ته به ځی ګنی دوزخ ته به ځی

**قوله:** وَيُؤْمِنُ بِالْقَدَرِ:

**په تقدیرباندې د ایمان راوړلوفائده:** الله تعالی تقدیر مقررولو سره دَ تسلئی او صبر لوئی سامان ورکړې دې. نوچه کوم خلق تقدیر منی هغوی په هر مصیبت باندې دا وائی چه په تقدیر کښې هم داسې لیکلې وو، دَ تقدیر فیصله وه. په دې سره دَ حادثې په وخت کښې ډیره حوصله ملاویږی. لیکن چه کوم خلق تقدیر نه منی لکه کافر یا منکرین تقدیر نوهغوی دَ حادثې په وخت دَ درد تکلیف، غم، افسوس اومصیبت نه بل هیڅ نه شی حاصلولې. هغوی سره دَ آسرې دَپاره هیڅ هم نه وی او غم برداشت کولو سره ویلی کیږی.

**نوټ:** په تقدیرد ایمان راوړلومباحث وړاندې تیرشوی دی دوباره د ذکر کولو ضرورت نشته

**[۱۰۵] د مرجیه او قدریه د تکفیراوعدم تکفیر مسئله**

> ۱۰۵—(۱)[۳۶] ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «صِنْفَانِ مِنْ أُمَّتِي لَيْسَ لَهُمَا فِي الْإِسْلَامِ نَصِيبٌ: ③ الْمُرْجِئَةُ، وَالْقَدَرِيَّةُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ (حَسَنٌ صَحِيحٌ)

**ترجمه:** ① او دَحضرت ابن عباس ﷺ نه روایت دې چې رسول الله ﷺ داسې ارشاد اوفرمائیلو ② چې زما په امت کښې دوه ډلې داسې دی چاته چه دَ اسلام هیڅ حصه هم نصیب شوې نه ده ③ او هغوی مُرجئهٔ او قدریه دی امام ترمذي رحمه الله دا حدیث نقل کړي دي او وئیلی دی چه دا حدیث غریب دې

۱) اخرجه ترمذی کتاب القدر عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الایمان بالقدر خیره وشره (رقم-۲۱٤۹) وابن ماجة کتاب فی الایمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فی الایمان (رقم-٦٢)

**حل اللغات:** ① صِنْفَانِ: أَيْ: نَوْعَانِ: دوه قسمه، ② الْمُرْجِئَةُ: د ارجاء نه دې، وَهُوَالتَّاخِيْرُ: ددې معنی ده: روسته کول، مرجئه يوه خاص فرقه ده، دوی ته مرجئه ځکه وائي چه دوی هم عمل روسته کوی يعني عمل له اهميت نه ورکوی. ③ الْقَدَرِيَّةُ: دا هم يوه خاص فرقه ده چه د تقدير منکر دی.

**تسهیلات:**

**توله: صِنْفَانِ مِنْ أُمَّتِي:**

**د صنفان ځخه مراد:** په دې حديث پاك کښې د دوه قسمه خلقو مذمت کړې شوې دې. او وئيلې شوی دی چې اګر چې دا خلق خپل ځان اسلام طرفته منسوب ګڼړی خو په اسلام کښې ددوئ هيڅ حصه نشته دې. يو د قدريه جماعت او بل د مرجيه جماعت.

**توله: أُمَّتِي:**

**دامت دوه قسمونه:**

① **امت اجابت:** دې ځخه مراد د امت هغه خلق دی کومو چې اسلام قبول کړې دې.

② **امت دعوت:** دې کښې هغه ټول جن وانس داخل دی کوم چې به د نبی کريم ﷺ دبعثت نه ترقيامته پورې وجود کې راځی. او کومو چې تر اوسه پورې اسلام لا قبول کړې نه دې. هغوئ چې ترکومې پورې په کفرباندې قائم وی نو په امت دعوت کې به شمېرلې کيږی.

**توله: الْمُرْجِئَةُ:**

**د مرجئه ځخه مراد:** ددې ځخه مراد جبريه دی، کوم وائی چې بنده مجبور محض دې، دا خلق وائی چې ايمان سره هيڅ ګناه مضر نه ده. لکه څنګه چې کفر سره هيڅ نيکی معتبر نه ده. ددوئ په نيز انسان مجبور محض او خپلو اعمالو کښې بې بس دې، دا خلق د اسبابو قائل نه دی، وائی چې د اعمالو نسبت انسان طرفته داسې دې لکه څنګه چې کاڼړی یا ونې طرفته يو عمل منسوب کړې شی.

**توله: وَالْقَدَرِيَّةُ:**

**د قدريه ځخه مراد:** دې فرقې ته په دې وجه قدريه وئيلې کيږی چې دوئ د تقدير ځخه منکر دی، يا په دې وجه ورته وئيلې کيږی چې دوئ زيات تر بحث په تقدير کښې کوی. يا په دې و جه ورته قدريه وئيلې کيږی چې دوئ وائی چې مونږ ته الله ﷻ د خپلو افعالو د تخليق قدرت راکړې دې. د افعالو باره کښې ددوئ عقيده داده چې د افعال خير خالق الله ﷻ دې، او دافعال شر خالق نفس اماره يا شيطان دې. دځينې علماء کرامو خيال دې چې دقدريه عقيده داده چې د افعال خير خالق نور دې او د افعال شر خالق ظلمت دې، بل حديث پاك کښې دوئ ته دَ دې امت مجوس وئيلې شوی دی. ځکه چې مجوسيان هم د افعالو خالق دوه منی. د خير د افعالو خلق دَ هغوی په نيز يزدان او دشر خالق دهغوی په

نیز اهرمن دې. بهرحال دا دواړه فرقې يو حده پورې گمراه دی، کوم خلق چه نور او ظلمت طرفته افعال منسوب کوی

**قوله: لَيْسَ لَهُمَا فِي الْإِسْلَامِ نَصِيبٌ:**

**د مرجیؤ او قدریو په تکفیر او عدم تکفیر کښې (۲) مذاهب:**

① بعضې عالمانو دوی ته کافر وئیلی دی

② ځینو ورته کافر نه بلکه مبتدع او فاسق فاجر وئیلی دی.

**د اول فریق دلیل:** په زیربحث حدیث کښې دی ((ليس لهما في الإسلام نصيب)) معلومه شوه چې دوی کافران دی ځکه چې په اسلام کښې ئې هډو څخه حصه نشته.

**د اول فریق د دلیل درې جوابونه:** ① نصیب د بخت او قسمت په معنی کښې دی چې دوئ بدبخت دی بدنصیب دی

② دلته د نصیب څخه مراد دادې چې دوئ ته د اسلام کامله حصه نه ده ملاؤ شوې. دوئ ناقص مسلمانان دی،

③ دا حدیث په تغلیظ وتشدید باندې محمول دی.

④ د امت څخه امت دعوت مراد دې

**د دویم فریق دلیل:** په زیربحث حدیث کښې دی ((من أمتي)) که چرته دوی کافران وې نو بیا ورته د امت نسبت ولې کوی.

**د دواړو فرقو عدم تکفیر د عالمانو په نظر کښې:**

① علامه تورپشتی رحمه الله فرمائی چې دا خلق اهل تاویل دی، د دوئ تکفیر نه دی کول پکار.

② جمهور اهل السنة دا وائی چې د دوئ تکفیر څخه دې پرهیز اوکړې شی. ځکه چې دا خلق صریح د کفر اقرار نه کوی او نه د کفر اراده لری، اگر چې د دوئ عقائد خطرناک حد ته رسیدلی دی لیکن هغوئ د کفر اراده نه ده کړې. او تاویل کوی.

**[۱۰۶] د تقدیر په منکرینو د خسف او مسخ عذاب واقع کیدل**

۱۰۶ـ(۱)[۲۷] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: " [۲] «يَكُونُ فِي أُمَّتِي خَسْفٌ، وَمَسْخٌ، وَذَلِكَ فِي الْمُكَذِّبِينَ بِالْقَدَرِ» " رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ نَحْوَهُ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر رضی الله عنهما وایي چې ما رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه داسې اوریدلي دي [۲] چې زما په امت کې به (د الله جل جلاله دردناك عذاب) په زمکه کښې غرقیدل او د شکلونو

[۱] اخرجه الترمذی فی کتاب القدر عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ باب (رقم-۲۱۵۲) واحمد فی المسند: ۱۰۸/۲

مسخ کیدل هم وي او دا عذاب به په هغه خلقو وي ځوك چې د تقدير منکر دي، ابو داود، امام ترمذي رحمه الله هم داسې روايت نقل کړي دي.

**حل اللغات:** ① خَسْفٌ: أَيْ: غَابَ بِهِ فِي الْأَرْضِ: په زمکه کښې غرقيدو ته خسف وائي. ② مَسْخٌ: أي تَحوِيلُ صُورَةٍ إِلَى مَا هُوَ أَقْبَحُ مِنْهَا: خپل اصلي شکل په قبيح او بدشکل کښې بدليدل، شکل ورانيدل.

**تسهیلات: قوله: وَمَسْخٌ:**

**د مسخ دوه صورتونه:** ① چه بدنونه، جثې او مخونه ټول هرڅه دَ خنزيرانو او شادوګانو په شکل کښې بدل شی لکه څنګه چه دَ داؤد علیه السلام اوحضرت عيسٰى علیه السلام په قومونوکښې چه شوی.

② چې بدن هم هغه وی خو مخ ئې بدل شی.

**د مسخ په تفسير کښې دوه اقوال:**

① بعضې حضراتو دَ خسف نه دَ مخونو توريدل او دَ مسخ نه دَ زړونو توريدل مراد اخستي دی. دا خسف او دا مسخ خودَ رنړا ورځې په شان په دې امت کښې عام دی.

**اشکال:** دَ خسف او مسخ عذاب به په پخوانو امتونو باندې راتللو. دُدې امت دَپاره حضورپاك دعا فرمائيلې کومه چه قبوله شوه نوبيا خسف او مسخ څنګه؟

**داشکال جوابونه:** ① په زير بحث حديث کښې چې د کوم خسف اومسخ ذکر دې نو دا د معنى په اعتبار سره جمله شرطيه ده يعنى که په دې امت کښې خسف اومسخ وې نو د قدريه منکرينوکښې به واقع شوې وې خو زما په دعا سره ددې امت څخه دا عذاب رفع شوی دی ددې وجې به په قدريؤ باندې هم نه راځی.

② په پخوانو امتونو کښې به دا عذاب په توګه دَ عموم راتلو هغه دَدې امت دَپاره اوس هم منفی دې. په حديث کښې چه دکوم عذاب ذکر دې هغه دَ يومخصوص فرقې دَپاره په مخصوص احوالو کښې دې.

③ علامه خطابی فرمائی چې خسف اومسخ په دوه قسموه ده ظاهری اومعنوی نو ظاهری مسخ اوخسف خو د نبی علیه السلام په دعا سره پورته شوې ده خو معنوی مسخ او خسف په دې امت کښې که واقع کيږی نو په منکرين قدر باندې به واقع کيږی.

④ په کوم حديث کښې چې د دې امت څخه د خسف او مسخ د محفوظ کيدو خبره راغلې دې نو دهغې څخه عمومی عذاب مراد دې چې زما په امت به پيخ کن عذاب نه راځي چې ټول د سيرمې هلاک شی او ځوک هم پاتې نشی اوپه دې حديث کښې چې د کوم خسف او مسخ ذکر راغلې دې نو دا جزوی طور دې چې په بعضې خلقوباندې به دا عذابونه واقع کيږی.

⑤ په حدیث کښې چې د کومې مسخ ذکر راغلې دې نو د دې څخه اخروی مسخ مراد دہ او د کوم خسف ذکرچې راغلې دې نو ددې څخه د پل صراط څخه په جهنم کښې غورزیدل مراد دې.

**[۱۰۷] فرقه قدريه د دې امت مجوس دي**

۱۰۷ــ()[۲۸] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ([۲] «الْقَدَرِيَّةُ مَجُوسُ هَذِهِ الْأُمَّةِ، إِنْ مَرِضُوا فَلَا تَعُودُوهُمْ، [۳] وَإِنْ مَاتُوا فَلَا تَشْهَدُوهُمْ») رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] چې فرقه قدريه د دې امت مجوس دي، نو كه هغه بيمار شي نو د بيمار پرسي دپاره مه ورځي [۳] او كه مړه شي نو د هغوئ په جنازه كښې مه شريكيږي. احمد، ابوادود

**تسهیلات: نوټ**: دقدريه فرقې باره كښې وضاحت وړاندې دحديث نمبر(۱۰۵) په تسهيل كښې تير شوې دې.

**قوله: إِنْ مَرِضُوا فَلَا تَعُودُوهُمْ**:

**دعدم عيادت په وجه كښې دوه اقوال:** ①كوم خلق چه قدريه كافرگڼړي دَهغوی په نيزخودا خبره حقيقت دې چه داكافران دی نو دَدوی عيادت مه كوئی بلكه سوشل بائيكاټ ورسره اوساتئ.

② كوم خلق چه دَقدريه تكفيرنه كوی دَهغوی په نيزداكلام په تغليظ اوتشديداو په زجر اوتوبيخ باندې محمول دې.

**قوله: وَإِنْ مَاتُوا فَلَا تَشْهَدُوهُمْ**:

**د جنازې نه كولو په وجه كښې دوه اقوال:** ①كوم خلق چه قدريه كافرگڼړي دَهغوی په نيزخودا خبره حقيقت دې چه داكافران دی نو دَدوی په جنازه كښې شركت مه كوئ. بلكه سوشل بائيكاټ ورسره اوساتئ.

② كوم خلق چه دَقدريه تكفيرنه كوی دَهغوی په نيزجنازه نه كول په تغليظ اوتشديداو په زجر اوتوبيخ باندې مبنی دې.

**[۱۰۸] د قدريه سره ناسته مه اختياره وئ**

۱۰۸ــ()[۲۹] [۱] وَعَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ([۲] «لَا تُجَالِسُوا أَهْلَ الْقَدَرِ وَلَا تُفَاتِحُوهُمْ») رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

---

[۱]) اخرجه ابن ماجة كتاب في الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب في القدر(رقم-۹۲) وابوداود في السنن رقم الحديث ٤٦٩١

[۲]) اخرجه احمد في المسند:۱/۳۰ وابوداود في السنن رقم الحديث ٤٧١٠

**ترجمه:** [١] او حضرت عمر ﷺ روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[٢] د قدريه سره ناسته مه اختياره وي او نه دوي خپل حكم (ثالث) جوړوي. رواه ابو داود

**حل اللغات:** ① لَا تُجَالِسُوا: أَيْ: لَا تُوَادِدُوهُمْ: ناسته پاسته ورسره مه كوئ يعني مينه محبت ورسره مه ساتئ، ځكه چه ناسته پاسته علامت دې دهغوى سره دمينې محبت، ② لَا تُفَاتِحُوهُمْ: أَيْ: لَا تُحَاكِمُوا إِلَيْهِمْ: خپلې فيصلې په دوى مه كوئ، دوى په خپلو فيصلو كښې ثالث مه جوړوئ.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا تُجَالِسُوا أَهْلَ الْقَدَرِ.

**دالقدريؤسره دناستې ممانعت:** دا يوه نمونه ده په كوم سره چه امت ته تعليم وركړې شوې دې چه دَ اهل باطل، اهل نفاق او دَ خرابې عقيدې اودَ ګمراه خلقو دَ مجلسونونه ځان اوساتئ اوهغوى سره اختلاط مه ساتئ خاص كر هغه خلق چه په دين اسلام پورې مسخرې كوي. هغوى سره تعلقات ساتل په حقيقت كښې هم دَهغوى په اعمالوكښې شريك كيدل دي.

**قوله:** وَلَا تُفَاتِحُوهُمْ.

**دمذكوره جملې په مفهوم كښې درې اقوال:** ① هغوى سره مناظره مه كوئى ځكه چه وخت به موضائع كيږى اودَ فائدې اميدنشته بلكه دَنقصان خطره ده.

② هغوى سره په سلام كلام كښې شروع مه كوئى.

③ هغوى له فيصلې مه اوړئى. دَ فتاحه معنى فيصله ده.

**[١٠٩] شپږقسمه سړوباندې دلعنت بيان**

١٠٩-()[٣٠] [١] وَعَنْ عَائِشَةَ [رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا] قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «سِتَّةٌ لَعَنْتُهُمْ، وَلَعَنَهُمُ اللَّهُ، وَكُلُّ نَبِيٍّ مُجَابٌ: [٣] الزَّائِدُ فِي كِتَابِ اللَّهِ، وَالْمُكَذِّبُ بِقَدَرِ اللَّهِ، [٤] وَالْمُتَسَلِّطُ بِالْجَبَرُوتِ لِيُعِزَّ مَنْ أَذَلَّهُ اللَّهُ، وَيُذِلَّ مَنْ أَعَزَّهُ اللَّهُ، [٥] وَالْمُسْتَحِلُّ لِحُرَمِ اللَّهِ، وَالْمُسْتَحِلُّ مِنْ عِتْرَتِي مَا حَرَّمَ اللَّهُ، وَالتَّارِكُ لِسُنَّتِي». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (الْمَدْخَلِ)، وَرَزِينٌ فِي كِتَابِهِ.

**ترجمه:** [١] او حضرت عائشه ﷞ فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[٢] شپږ سړي داسې دي چې په هغوئ باندې زه لعنت وايم او الله پاك هم هغه لعنتيان ګرځولي دي او د هرنبي دعا قبليږي [٣] ① په كتاب الله كښې زياتي كونكي ② تقدير الهي دروغ ګنو نكي[٤] ③ هغه سړي چې هغه په زبردستي غلبه موندلو په بنا يو داسې سړي معزز كړي چې الله ﷻ ذليله كړي وي او هغه سړي ذليله كړي چې الله ﷻ د عزت او عظمت په دولت سره نبائسته كړي وي[٥] ④ هغه سړي چې د الله ﷻ د حدودو څخه تجاوز كولوسره څه چې

[١] ) اخرجه الترمذى فى كتاب القدر عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ باب (رقم-٢١٥٤)

الله ﷻ حرام كړي وي هغه حلال وګڼي ⑤ هغه چې زما د اولاد څخه هغه شي (قتل) حلال وګڼي كوم چې الله ﷻ حرام كړي دي ⑥ څوك چې زما سنت پريږدي. بيهقي. رزين

**حل اللغات:** ① يُجَابُ: أَيْ يُجَابُ دَعْوَتُهُ: مستجاب وى دعا ئې قبليږي. ② الزَّائِدُ: بِأَنْ يُدْخِلَ فِيهِ مَا لَيْسَ فِيهِ: زياتوالې پكښې كوى، موجود پكښې نه وى او دوى ئې پكښې داخلوى، يا پكښې بې ځايه تاويلونه كوى. ③ الْمُتَسَلِّطُ: غلبه موندونكى، ④ الْجَبَرُوتِ: د جبر مبالغه ده، وَهُوَ الْقَهْرُ: قهر او زبردستئ ته وائى. ⑤ الْمُسْتَحِلُّ: حلال ګڼرونكې، ⑥ عِتْرَتِي: الْأَقَارِبُ الْقَرِيبَةُ: نزدې اولاد، د بى بى فاطمې اولاد، اهل بيت

**تسهيلات:**

**قوله**: سِتَّةٌ لَعَنْتُهُمْ، وَلَعَنَهُمُ اللَّهُ، وَكُلُّ نَبِيٍّ يُجَابُ:

**دلعنت قسمونه:** ① **لعنت كفر:** لعنت دكفردې دا هغه "إبعادمن رحمة الله" دې كوم چه كافرانوسره خاص دې.

دَچامرګ په يقينى توګه باندې په كفرباندې شوې وى نوپه هغه باندې لعنت كول جائز دى مثلاً دَفرعون اوابوجهل مرګ په كفرباندې يقينى شوې دې نوپه ده باندې لعنت وئيل جائز دې.

② **لعنت فسق:** لعنت دَ فسق دې كوم چه "إبعادمن رضاء الله" دادَمسلمان دَپاره دى په شريعت كښې كوم سړې چه په قطعئ توګه په كفرباندې مړشوې نه وى نوپه هغه باندې لعنت جائزجائز نه دې لكه يزيد ځكه چې دَ يزيدمرګ په كفرباندې يقينى نه دې.

په يومعين كس باندې لعنت وئيل جائز نه دى.

**د ملعون په مصداق كښې دوه احتمالات:** ① په زيربحث حديث كښې دا شپږ خبرې كه چرې دَ كافرانودَ پاره دى نودا لعنت دَ كفردې

② كه چرې داخلق دَاسلام په دائره كښې وى. نودا لعنت دَ فسق دې.باقى په مسلمان باندې لعنت ليږل ځنګه دى نوحافظ توربشتى رحمه الله فرمائى چې دا حديث په تغليظ او تشديد باندې حمل دې.

**بعضې قابل تشريح جملې:**

① الزَّائِدُ فِي كِتَابِ اللَّهِ: كه چرې دكتاب الله په الفاظوكښې څوك زياتې كوى يادَدې قائل دې نوهغه كافردې اوكه چرې په معنوى توګه تاويل اوتحريف كوى نوهغه مبتدع اوفاسق فاجردې چه دَ شرع مخالف تاويل كوى.

② وَالْمُكَذِّبُ بِقَدَرِ اللَّهِ: داهم هغه معتزله خوارج او قدريه دى.

③ لِيُعِزَّ: يعنى كوموخلقوته چه الله تعالى دَتقوىٰ دَ وجې نه عزت وركړې دې هغه ذليل

کړي او چاته چه الله تعالی دَ فسق دَوجې نه ذلت ورکړې دې دَهغوی عزت اوکړي.

④ وَالْمُسْتَحِلُّ لِحَرَمِ اللَّهِ: ای بیت الله چه په حرم کعبه کښې قتل اوکړي، ښکار اوکړي او وانبه پرې کړي.

⑤ وَالْمُسْتَحِلُّ مِنْ عِتْرَتِي: یعنی دَاهل بیت احترام اونه کړي دَهغوی په تعظیم کښې کوتاهي اوکړي دَهغوی حقوق غصب کړي اوهغوی ته تکلیف اورسوي.

⑥ وَالتَّارِكُ لِسُنَّتِي: ترک سنت علی طریق الاهانه مراد دې لکه ډیرې پورې توقې کول نو دَ ایمان روح به ئې پاتې نه شي سره دَدې چه کلمه به وائي.

**[١٠] په مقررشوې ځاې کې مرګ راځي**

١٠-( )[٣١] ١ وَعَنْ مَطَرِ بْنِ عُكَامِسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (٢ «إِذَا قَضَى اللَّهُ لِعَبْدٍ أَنْ يَمُوتَ بِأَرْضٍ جَعَلَ لَهُ إِلَيْهَا حَاجَةً»). رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ١ او حضرت مطر بن عکاس ﷺ روای دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ٢ هر کله چې الله تعالی جل جلاله د يو سړي مرګ په يوه زمکه کښې مقدر کوي نو د هغه زمکې طرف ته د هغه حاجت هم پیدا کوي(چې هلته په تلو باندې مجبوره شی او هلته ورتلو سره د مرګ ښکار شي). احمد، ترمذي

**حل اللغات:** ① قَضَى اللَّهُ: أَرَادَ، أَوْقَدَّرَ أَوْحَكَمَ: الله اراده اوکړي یا فیصله اوکړي یا مقدر کړي.

**تسهيلات:**

**قوله: إِذَا قَضَى اللَّهُ لِعَبْدٍ أَنْ يَمُوتَ بِأَرْضٍ جَعَلَ لَهُ إِلَيْهَا حَاجَةً:**

**د سليمان عليه السلام د زمانې واقعه:** لکه څنګه چې اکثر خلق وائي چې زه دلته خاورې راوړې يم نو دتقدير په وجه بنده هغه ځائې ته رسي کوم ځائې کښې چې دده مرګ مقدر وي. د حضرت سليمان عليه السلام د وزير قصه مشهوره ده چې هغه ته ملك الموت نيغ نيغ اوكتل نو هغه د ډيرې ويرې حضرت سليمان عليه السلام څخه مطالبه اوكړه چې ما يوې جزيرې ته اورسوه، كله چې دې جزيرې ته اورسيدو نو د مرګ فرښتې ددهٔ څخه روح واخستو. دحضرت سليمان عليه السلام په تپوس هغه فرښتې اووئيل چې دهغه مرګ دغه ځائې كښې مقدر وو او وخت ډير كم وو نو په دې ځائې كښې په سوؤنو ميلونو لرې ناست وو، نو ما دا حربه استعمال كړه چې هغه ويريدو او دلته راغلو نو مرګ هم راغلو.

---

[1] اخرجه احمد فی المسند: ٢٢/٥ والترمذی فی السنن رقم الحدیث ٢١٤٤

## [۳۱] د مسلمانانو او کافرانو د ماشومانو حکم

۳۱-() [۳۲] ① «وَعَنْ عَائِشَةَ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! ذَرَارِيُّ الْمُؤْمِنِينَ؟ ② قَالَ: (مِنْ آبَائِهِمْ). ③ فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ بِلَا عَمَلٍ؟ قَالَ: (اللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوا عَامِلِينَ). ④ قُلْتُ: فَذَرَارِيُّ الْمُشْرِكِينَ؟ ⑤ قَالَ: (مِنْ آبَائِهِمْ) قُلْتُ بِلَا عَمَلٍ؟ قَالَ: (اللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوا عَامِلِينَ).» رَوَاهُ دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت عائشه صديقه ﷺ روايت کوي چې ما د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې يا رسول الله ﷺ (د جنت او دوزخ په سلسله کې) د مسلمان ماشومانو څه حکم دي؟ ② ده ﷺ وفرمايل د خپلو پلرونو تابع دي ③ يعنی هغه به د خپلو پلرونو سره په جنت کښې وي، ما عرض وکړو يا رسول الله ﷺ بغير د څه عمل څخه؟ ده ﷺ وفرمايل الله تعالی ﷻ ډير ښه پوهيږي چې هغه ماشومانو به څه کونکي وو، ④ ما بيا پوښتنه وکړه چې ښه د مشرکانو د اولاد په باره کښې څه حکم دي؟ ⑤ رسول الله ﷺ وفرمايل هغه به هم د خپلو پلرونو تابع وي، ما (په حرانتيا سره) پوښتنه وکړه بغير د څه عمل څخه؟ ده ﷺ وفرمايل چې الله ښه پوهيږي چې هغه ماشومانو به څه کول. ابوداؤد

**تسهيلات:**

**نوټ:** د دې حديث تشريح د مشکاة حديث نمبر (۹۳) په تسهيل کښې تيره شوې ده هغې ته رجوع اوکړئ.

## [۳۲] ژوندي ماشوم ښخونکي دوزخيان دي

۳۲-() [۳۳] ① وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: («الْوَائِدَةُ وَالْمَوْءُودَةُ فِي النَّارِ»). رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن مسعود ﷺ روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ژوندي ماشوم ښخونکي (ښځه) او موؤده دواړه دوزخيان دي. ابوداؤد

**حل اللغات:** ① الْوَائِدَةُ: ژوندې ماشوم ښخونکې ښځه، ② الْمَوْءُودَةُ: ژوندې ښخ کړې شوې ماشومه.

**تسهيلات:**

**قوله:** الْوَائِدَةُ، وَالْمَوْءُودَةُ فِي النَّارِ:

**د لونړو خوښولو وجوهات:** ① دبعضې عربو نظريه وه چې دا لونړه د کار روزګار نه وی او نه مونږ سره په جنګ کښې حصه اخستې شی ددې وجې د دوی قتلول پکار دی
② چه زما لوربه صباد چانښځه جوړيږی دابه څنګه برداشت کوم داد شرم اوپيغور خبره ده.
(حالانکه پخپله هم د چاد ښځې نه پيدا شوی وو)

---

[۱] ) اخرجه ابوداود كتاب السنة/باب فى ذرارى المشركين(رقم-٤٧١٢)

[۲] ) اخرجه ابوداود كتاب السنة/باب فى ذرارى المشركين(رقم-٤٧١٧)

**اشکال:** وائده ژوندئی خښونکې ښځه خو په ظاهره قاتله ده کومه چه دوزخی ده لیکن دا موؤدة مقتوله ولې دَدوزخ مستحق جوړه شوه؟ دَمقتولې مظلومې څه قصوردې؟

**جواب:** الوائده نه مراد قابله دائی ده او الموؤدۃ نه مراد موؤدة لها ده کومه چه مور ده نودا دایه اومور دواړه په دې جرم کښې شریکې دی په دې وجه اصحاب النار دی.

**اشکال:** داچه دَ حدیث دَظاهرنه دَاولادتبعیت معلومیږی چه مورئی کافره دوزخئی ده نولورئی هم دغه شان ده.

**داشکال جواب:** دا چه دې نه ژوندئی خښه کړې شوې بالغه جینئی مراد ده نودغه وخت کښې هغه پخپله کافره وه.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۱۱۳] دهر بنده متعلق پنځه شیان مقدر دی.**

۱۱۳-()[۳۳] ① عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (②«إِنَّ اللَّهَ عَزَّوَجَلَّ فَرَغَ إِلَى كُلِّ عَبْدٍ مِنْ خَلْقِهِ مِنْ خَمْسٍ: ③مِنْ أَجَلِهِ، وَعَمَلِهِ، وَمَضْجَعِهِ، وَأَثَرِهِ، وَرِزْقِهِ») رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ①او حضرت ابو درداء ﷺ روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ②الله تعالی ﷻ د خپل هر يو بنده متعلق د پنځو څيزونو څخه (تقدير ليکلو سره) فارغه شوي دي ③۱: د هغه مرګ (چې کله به راځي) ۲: دهغه (نيك او بد) عملونه ۳: د هغه د او سيدو ځاي ۴: د هغه د د واپس راتلو ځاي ۵: او د هغه رزق. احمد

**حل اللغات:** ①فَرَغَ: فارغ شوي دي، ②أَجَلِهِ: أي مُدَّةُ عُمُرِهِ: نيته چه څومره عمر به ئې وی، ③مَضْجَعِهِ: أَيْ سُكُونِهِ، وَقَرَارِهِ: د اوسيدو ځائې، ④أَثَرِهِ: أَيْ: حَرَكَتِهِ، وَاضْطِرَارِهِ: حرکت او کيفيت، حالات بدليدل رابدليدل.

**د راوي مختصر تعارف:** نوم عويمر کنيت ابودرداء، دَ قبيلې نوم خزرج خاندان عدی بن کعب سره ئی تعلق دې. په شروع کښې به ئی تجارت کولو بیا په عبادت کښې دَ مشغولتیاپه وجه ئی پریخودودَ غزوه بدر دَ وخت پورې مسلمان شوې نه وو دَ احدنه پس په عزواتوکښې شریکیدلو.

دَ حضرت عمر ﷺ په وخت کښې دمشق ته لاړو. دَهغه دَ درس حلقه ډیره مشهوره وه. یوه ورځ ئی شمیر اوکړو نو شپاړس سوه طالبان ورسره وو. ډیر دَ عاجزئ خاوند وو. یوځل ئی په دمشق کښې په خپل لاس سره بوټې لګولو یو سړې حیران شو هغه وئیل تاسو په خپل لاس باندې بوټې لګوئی وئی فرمائیل په دې کښې ډیر ثواب دې. (۲) ډیر

---

[1] ) اخرجه احمد فی المسند:۵/۱۹۷.

[2] ) مسندابودرداء طیالسی)

زيات ميلمه دوست وو ځو ځو هفتې به بعضې ميلمانه حصار وو.(١).

**وفات**: ٣٢ه کښې وفات شوې وو.

**مرويات**: دَ رواياتوشمېر ئې ١٧٩ دې. په دې کښې بخاری شريف کښې ١٣ او مسلم شريف کښې ٨ درج دی باقی دَ احاديثو په نورو کتابونوکښې دی.

**تسهيلات**:

**قوله**: فَرَغَ إِلَى كُلِّ عَبْدٍ:

**د مذکوره جملې مفهوم**: فرغ دَ انتهی معنی لره متضمن دی په دې وجه په صله کښې دَ "الی" کلمه راغلې ده. مراد دا چه الله تعالی دَخپل مخلوق نه دَهربنده متعلق دَ پنځوخبرو تقدير ليکلې دې او فارغ شوې دې اودَ الله تعالی علم دَدغه پنځوڅيزونوپورې منتهی شوې دې.

**قوله**: مِنْ خَلْقِهِ:

**د هربنده باره کښې دپنځوڅيزونو تقديرليکل**: دَهربنده دَ تخليق پنځوکارونونه فراغت شوې، يعنی په دنياکښې چه کوم څيزونه څنګه راتلونکی دی په ازل کښې دَهغې فيصله شوې ده په هغې کښې اوس هيڅ کمې زياتې نه شی کيدې اونه په هغې کښې څه تغير راتلې شی چنانچه دهرسړی په تقدير کښې ليکلې شوی دی

① **عمر**: دَ ده عمرځومره دې اومرګ به ورله کله راځی په دې کښې دَ يوسيکنډ بدلون ممکن نه دې.

② **سعادت اوشقاوت**: دغه شان دَانسان دَ خو اوخرابواعمالوباره کښې دَهغه دَ پيدائش نه وړاندې ليکلې شوی دی چه دَ ده انجام به په خيروی اوکه په شر باندې.

③ **سکونت**: بعضو وئيلی دی چه مضجع نه مراد سکون اوقراردې چې دې به د دنيا په کومه کومه زمکه ژوند تيروی.

④ **حرکات يا قدمونه**: او دَ اثر نه مرادحرکت دې دَ انسان ټول کيفيات په دې دوو لفظونو کښې راغله. يا اثر نه اقدام مراددی چه په تقدير کښې ليکلې شوی دی چه دَ ده قدمونه به په کوم کوم ځائی لګی. آيت (وَنَكْتُبُ مَا قَدَّمُوا وَآثَارَهُمْ) په دې باندې دلالت کوی.

⑤ **رزق**: دغه شان دَانسان دَ رزق مسئله په تقديرکښې دَاول نه ليکلې شوې ده چه ده ته به څومره رزق ملاويږی دَ کوم کوم ځائی نه به ئې خوری کم به ملاويږی يا زيات، حلال به ملاويږی ياحرام ټول هرڅه په تقديرکښې دَاول نه ليکلې شوی دی.

(١) مسند ابودرداء طيالسی)

## [۳۴] د تقدیر په مسئله کښې د بحث مباحثه کولو حکم

۳۴-( )[۳۵] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ( [۲] «مَنْ تَكَلَّمَ فِي شَيْءٍ مِنَ الْقَدَرِ سُئِلَ عَنْهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، [۳] وَمَنْ لَمْ يَتَكَلَّمْ فِيهِ لَمْ يُسْأَلْ عَنْهُ» ) رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي چې ما د رسول الله ﷺ څخه واوريدل [۲] چې کوم سړي د تقدير په مسئله کښې بحث و مباحثه کوي په قيامت کښې به دهغه څخه پوښتنه کول کيږي [۳] او کوم سړي چې په دي باندې ايمان راوړلو سره خاموشي اختيار کړي هغه به د پوښتني (مواخذي) څخه بچ شي. ابن ماجه

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ تَكَلَّمَ فِي شَيْءٍ مِنَ الْقَدَرِ سُئِلَ عَنْهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ:

**د مباحثې دوه قسمونه:** ① څوک چې د پوخ علم خاوند وی. او د تردد نه پاك وی نو د ده د پاره د فرق باطله د شکوك او شبهات لرې کولو د پاره او هغوی سره مباحثه کولو د پاره ضروری حد پورې مباحثه کول جائزدی. دې د پاره چه حق واضح شی. علماء هم دغه علمی پوخوالی مقام باندې وو نو په علم الکلام کښې ئی کلام اوکړو او کتابونه ئی اوليکل.
② دويم قسم غيرضروری مباحثه ده. د کومې انجام چې قدری يا جبری يا کافر جوړيدل وی. په حديث کښې چې کومه منع راغلې ده نو دهغې څخه دا دويم قسم مراد دې.

## [۳۵] د تقدير متعلق په زړه کې وسوسه

۳۵-( )[۳۶] [۱] «وَعَنِ ابْنِ الدَّيْلَمِيِّ، قَالَ: أَتَيْتُ أُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ، [۲] فَقُلْتُ لَهُ: قَدْ وَقَعَ فِي نَفْسِي شَيْءٌ مِنَ الْقَدَرِ، فَحَدِّثْنِي لَعَلَّ اللَّهَ أَنْ يُذْهِبَهُ مِنْ قَلْبِي. [۳] فَقَالَ لَوْ أَنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ عَذَّبَ أَهْلَ سَمَاوَاتِهِ وَأَهْلَ أَرْضِهِ؟ عَذَّبَهُمْ، وَهُوَ غَيْرُ ظَالِمٍ لَهُمْ، وَلَوْ رَحِمَهُمْ كَانَتْ رَحْمَتُهُ خَيْرًا لَهُمْ مِنْ أَعْمَالِهِمْ، [۴] وَلَوْ أَنْفَقْتَ مِثْلَ أُحُدٍ ذَهَبًا فِي سَبِيلِ اللَّهِ مَا قَبِلَهُ اللَّهُ مِنْكَ حَتَّى تُؤْمِنَ بِالْقَدَرِ، [۵] وَتَعْلَمَ أَنَّ مَا أَصَابَكَ لَمْ يَكُنْ لِيُخْطِئَكَ، وَأَنَّ مَا أَخْطَأَكَ لَمْ يَكُنْ لِيُصِيبَكَ. وَلَوْ مُتَّ عَلَى غَيْرِ هَذَا لَدَخَلْتَ النَّارَ. [۶] قَالَ: ثُمَّ أَتَيْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ مَسْعُودٍ فَقَالَ مِثْلَ ذَلِكَ. [۷] قَالَ ثُمَّ أَتَيْتُ حُذَيْفَةَ بْنَ الْيَمَانِ، فَقَالَ مِثْلَ ذَلِكَ. [۸] ثُمَّ أَتَيْتُ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ فَحَدَّثَنِي عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِثْلَ ذَلِكَ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت ابن ديلمي رحمه الله (تابعي) فرمايي چې زه د حضرت ابي بن کعب (صحابي) په خدمت کې حاضر شوم [۲] او عرض مي اوکړو چې زما په زړه کښې د تقدير متعلق څه شکونه پيدا کيږي (چې کله ټول څيزونه د نوشتهٔ تقدير مطابق دي نو بيا دا

[۱] ) اخرجه ابن ما جة كتاب فى الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فى القدر(رقم-٨٤)
[۲] ) اخرجه ابن ما جة كتاب فى الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فى القدر(رقم-٨٤) وابوداود فى السنن رقم الحديث ٤٦٩٩

ثواب يا عذاب ولي دي؟) نو ته راته يو داسې حديث بيان كه چې د هغه په وجه شايد الله تعالى ﷻ زما زړه ددي شك (د ګندګي) څخه پاك كړي، ۳(په دي اوريدو سره) هغه وفرمايل كه چېرته الله تعالى ﷻ آسمان والا او زمكې والا په عذاب كښې اخته كړي نو هغه په هغوئ باندې هيڅ قسم ظلم كونكي نه دي (يعني كه هغه د آسمانونو والؤو او زمكې والؤو ته هر څومره عذاب وركړي هغه ته ظالم نه شي ويل كيدي) او كه هغه دوي په خپل رحمت سره ونمانځي نو د هغه رحمت به د هغوئ د عملونو څخه يقيناً ښه وي ۴ او كه چېرته تاسو د الله په لاره كښې د أحد د غره برابر سره زر خرڅ كړي نو ستاسو دا عمل خير د الله ﷻ په نيز د هغه وخت پورې نه قبليږي چې تر څو تاسو په تقدير باندې كامل عقيده او ايمان ونه ساتي ۵ او په دي پوه شي چې څه چې تاته رسيدلي دي هغه ستاڅخه خطا كيدونكي نه وو او كوم شي چې در څخه منع شوې دي او تاته نه دي رسيدلي نو پوه شه چې هغه ستا په مقدر كښې نه وو او كه چېرته په دي حالت كښې مړ شې چې د دې خلاف دي عقيده وي (يعني په تقدير باندې كامل ايمان نه وي) نو يقيناً دوزخ ته به ځې، ۶ابن ديلمي رحمه الله وايي چې د ابي بن كعب دي بيان اوريدو سره زه د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه په خدمت كې حاضر شوم او هغه هم دغه بيان اوكړو، ۷ بيا حذيفه بن يمان ته ورغلم نو هغه هم دغسې وفرمايل ۸او بيا زه زيد بن ثابت ته ورغلم نو هغه هم د دې قسم د رسول الله ﷺ حديث روايت كښې. ابو داؤد ابن ماجه

**حل اللغات:** ①شَيْءٌ: ددې نه مراد شكوك او شبهات دي (د تقدير باره كښې). ②تَعْلَمَ: دا د توقن په معنى كښې دې يعني يقين اوكړه.

**تسهيلات:**

**قوله:** قَدْ وَقَعَ فِي نَفْسِي شَيْءٌ مِنَ الْقَدَرِ:

**د تقديرمتعلق شک پيدا كيدل:** يعنى زما په زړه كښې دَ تقديرباره كښې څه شبهات پيداشوى دى چه كله هرڅه په مقدر كښې دَ وړاندې نه ليكلې شوى دى نوبيادَ ثواب اوعذاب دا قانون دَڅه دَپاره دې؟

**قوله:** وَهُوَ غَيْرُ ظَالِمٍ لَهُمْ:

**د الله تعالى عدم ظالم كيدل:** الله تعالى ځكه ظالم نه دې چې ټول كائنات دَالله تعالى ملكيت دې په دې وجه په دې كښې الله تعالى ته دَ تصرف حق حاصل دې او په خپل ملكيت كښې دَ څه قسم تصرف ظلم نه دې په دې سره دَ فرقه قدريه او خوارجو ترديد قصوددې چه هغوى هرتصرف دَالله تعالى دَپاره جائزنه ګنړي. دَحضرت زيدبن ثابت رضي الله عنه نه چه كله هغه تابعي پوښتنه اوكړه نوهغوى داحديث دَ مرفوع حديث په توګه بيان كړو.

**قوله:** وَلَوْ رَحِمَهُمْ كَانَتْ رَحْمَتُهُ خَيْرًا لَهُمْ مِنْ أَعْمَالِهِمْ

**د دخول جنت سبب رحمت خداوندی:** دَدې نه معلومه شوه چه دَ جنت دَ داخليدو دَپاره علت اعمال نه دی بلکه دَالله تعالی رحمت دې اعمال صرف علامات دی.

**قوله:** وَتَعْلَمَ أَنَّ مَا أَصَابَكَ لَمْ يَكُنْ لِيُخْطِئَكَ

**د تقدیر د هرې خبرې واقع کیدل:** يعنى هغه څيزداسې نه وو چه تاته به نه رسيدلو نودا خيال مه کوه چه دا زماد محنت اوکوشش دَ وجې ماته حاصل شوې دې بلکه داپه تقدير کښې دَاول څخه ليکلې شوې وو. دَدې حديث نه معلومه شوه چه دَايمان څخه بغيرهيڅ يوعمل قبول نه دې او انسانی محنت اوکوشش دَ تقدير ماتحت دې.

## [١١٢] د تقدیر په منکرینو د عذاب نازلیدلو پیشنګوئی

١١٢ - ()[٣٧] [١] وَعَنْ نَافِعٍ أَنَّ رَجُلاً أَتَى ابْنَ عُمَرَ فَقَالَ إِنَّ فُلَانًا يُقْرِءُ عَلَيْكَ السَّلَامَ [٢] فَقَالَ إِنَّهُ بَلَغَنِي أَنَّهُ قَدْ أَحْدَثَ فَإِنْ كَانَ قَدْ أَحْدَثَ فَلَا تُقْرِئْهُ مِنِّي السَّلَامَ [٣] فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ يَكُونُ فِي أُمَّتِي أَوْفِي هٰذِهِ الأُمَّةِ خَسْفٌ وَمَسْخٌ أَوْقَذْفٌ فِي أَهْلِ القَدَرِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِي وَأَبُودَاوُدَ وَابْنُ مَاجَةَ وَقَالَ التِّرْمِذِي هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ

**ترجمه:** [١] او د حضرت نافع رحمه الله روایت دي چې يو سړي د حضرت ابن عمر رضي الله عنه په خدمت کښې حاضر شو او وي ويل چې فلاني سړي وتاته سلام ويلي دي[٢] حضرت ابن عمر رضي الله عنه وفرمايل ماته معلومه شوې ده چې هغه سړي په دين کښې (څه) نوي خبره را ايستلي دي که چېرته واقعي هغه په دين کښې (څه) نوي خبره پيدا کړي وي نو زما د طرف څخه (په جواب کي) هغه ته سلام مه رسوه[٣] ځکه چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه اوريدلي دي چې زما د امت څخه د الله جل جلاله درد ناکه عذاب په زمکه کې غرقيدل او د صورت مسخ کيدل يا د کاڼوباران د تقدير څخه انکار کو نکي باندې به وي. ترمذي ابوداؤد ابن ماجه او امام ترمذي اوفرمايل چې دا حديث حسن صحيح او غريب دي

**حل اللغات:** ① أَحْدَثَ: أَي: ابْتَدَعَ فِي الدِّينِ مَا لَيْسَ مِنْهُ: په دين کښې ئې نوې خبره راويستلې ده يعنى بدعت. ② خَسْفٌ: أَي: غَابَ بِهِ فِي الأَرْضِ: په زمکه کښې غرقيدو ته خسف وائي. ③ مَسْخٌ: اى تَحْوِيلُ صُورَةٍ إِلَى مَا هُوَ أَقْبَحُ مِنْهَا: خپل اصلى شکل په قبيح او بدشکل کښې بدليدل. شکل ورانيدل. ④ قَذْفٌ: أَي: رَمْيٌ بِالْحِجَارَةِ: د کاڼو باران (لکه چه په قوم لوط باندې شوې وو).

**د راوي مختصر تعارف:** نوم نافع دَ پلارنوم کاوس ياهرمز وو. دَ عجمی کيدو باندې دَ اکثرو خلقو اتفاق دې. خراسان يا ديلم يا طالقان ياکابل اوسيدونکې وو. په يوجنګ کښې يا

[١] اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحديث ١٢٥٢ وابن ماجة فی السنن رقم الحديث ٤٠٦١ وابوداود فی السنن رقم الحديث ٤٦١٣ واحمد فی المسند ٢/ ١٣٦

هسې حضرت عمر ﷺ هغه اخستې ووهغه ته دَ حضرت عبدالله بن عمر ﷺ تربيت ملاو شو. نافع پوه ۳۰ کالو پورې دَ ابن عمر ﷺ خدمت اوکړو. (۳) امام نووی ﷺ فرمائی چه نافع جليل القدر تابعی دې. دَ هغوی په توثيق او جلالت باندې دَ ټولو اتفاق دې. (۴) پخپله ابن عمر ﷺ ته په نافع باندې فخر وو فرمائيل به ئی الله تعالى دَنافع په ذريعه په مونږ باندې احسان اوکړو. (۵) څنګه چه نافع دَحضرت عمر ﷺ خدمت اوکړو دغه شان چه ترکومې نافع ژوندې ووبه پوره خيال سره به دَ هغوی په خدمت کښې حاضروو (۶)

**وفات**: ۱۱۷ه کښې انتقال شو.(۷) دَ نورو حالاتودَ پاره اوګورئی ①تهذيب الاسماء للنوی ۱۲۴/۱ ② تذکرة الحفاظ ۸۰/۱ ③تهذيب التهذيب ۴۱۴/۱۰ ④ طبقات ابن سعد تذکره نافع ⑤ تاريخ ابن خلکان ۱۵۱/۲ ⑥شزرات الذهب ۱۵۴/۱.

**تسهيلات**:

**قوله**: اَنَّهُ قَدْ أَحْدَثَ فَإِنْ كَانَ قَدْ أَحْدَثَ فَلَا تُقْرِئْهُ مِنِّي السَّلَامَ:

**په بدعتيانو سلام نه اچول**: دلته حضرت ابن عمر ﷺ د يو سړی د سلام په جواب کښې قاصد ته اوفرمائيل چې ماته معلومه ده چې کوم کس سلام رالیږلې دې هغه نوی نوی نظريات اونوی بدعتونه ايجاد کړی دی، که داسې وی نو بيا هغه ته زما سلام مه وايه. ددې څخه معلومه شوه چې په هغه کس باندې سلام اچول جائز نه دی کوم چې په دين اسلام کښې بدعتونه پيدا کوی. په دې وجه فقهاء کرامو اهل بدعت سره اختلاط او دهغوئ اکرام او تعظيم مکروه ګرځولې دی.

**قوله**: أَوْقَذْفٌ

**دتقديرپه منکرينود کاڼوباران**: يعنی کوم خلق چې د تقدير څخه منکر دی په هغوئ باندې به د آسمان څخه کاڼی راوريږی. د قوم لوط دلواطت په وجه په هغه قوم باندې دآسمان څخه د کاڼو باران شوې وو. دلته د منکرين تقدير باره کښې د کاڼو وريدو ذکر دې. ددې څخه معلومه شوه چې داقبيح عمل به په منکرينِ تقديرکښې هم په لويه پيمانه وی.

**[۱۱۷] د مشرکانو اولاد به په دوزخ کښې وي او د مؤمنانو اولاد به په جنت کښې وي**

۱۱۷ -()[۳۸] ①وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ سَأَلَتِ الْخَدِيْجَةُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ عَنْ وَلَدَيْنِ مَاتَا لَهَا فِي الْجَاهِلِيَّةِ② فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ هُمَا فِي النَّارِ③ قَالَ فَلَمَّا رَأَى الْكَرَاهَةَ فِيْ وَجْهِهَا قَالَ لَوْ رَأَيْتِ مَكَانَهُمَا لَأَبْغَضْتِهِمَا④ قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللهِ فَوَلَدِيْ مِنْكَ قَالَ فِي الْجَنَّةِ⑤ قَالَ ثُمَّ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ إِنَّ الْمُؤْمِنِيْنَ وَأَوْلَادَهُمْ فِي الْجَنَّةِ وَإِنَّ الْمُشْرِكِيْنَ وَأَوْلَادَهُمْ فِي النَّارِ⑥ ثُمَّ قَرَأَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ: وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُمْ. رَوَاهُ أَحْمَدُ

[1]) اخرجه احمد فی المسند ۱/ ۱۳٤

**ترجمه:** [۱] او حضرت علي كرم الله وجهه روايت كوي چې حضرت خديجه ﷞ د رسول الله ﷺ څخه د خپل دوارو ماشومانو په باره کې پوښتنه وکړه چې هغه په زمانه جاهليت کې (د اسلام څخه مخکې) مړه شوې وو (چي هغه به جنتيان وي اويا دوزخيان) [۲] رسول الله ﷺ وفرمايل چې هغه دواړه (ماشومان) په دوزخ کښې دي، [۳] حضرت علي كرم الله وجهه فرمايي چې کله رسول الله ﷺ د حضرت خديجي ﷞ د مخ رنګ (د خپلو ماشومانو په باره کښې د اوريدو سره) بدل شو (يعني هغه يي خفه وليده) نو وي فرمايل که چېرته ته د هغه (ماشومانو) ځاي او د هغوئ حال ووينې چې هغه څنګه د الله تعالى ﷻ د رحمت څخه لرې دي نو ستا به د هغه (ماشومانو) څخه نفرت وشي، [۴] بيا حضرت خديجي ﷞ عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ بيا نو زما هغه اولاد کوم چې ستا ﷺ څخه پيدا شوې دي (قاسم او عبدالله) نو ده ﷺ وفرمايل چې هغه په جنت کښې دي، [۵] د دې څخه وروسته حضور ﷺ وفرمايل چې د مؤمنانو اولاد په جنت کې وي او د مشركانو اولاد په دوزخ کې وي، [۶] د دې څخه وروسته ده ﷺ دا آيت تلاوت کړي: وَالَّذِينَ آمَنُوا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُمْ بِإِيمَانٍ أَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ (القرآن) ترجمه: کومو خلقو چې ايمان راوړي او د هغوئ اولاد د هغوئ پيروي وکړه (نو) مونږ به د هغوئ اولاد (په جنت کښې) د هغوئ سره يو ځاي ساتو. احمد

**حل اللغات:** ① مَكَانَهُمَا: دهغوی ځائې (یعنی جهنم چه څومره خراب او مبغوض دي).

**د راوي مختصر تعارف:** نوم علی ابوالحسن او ابوتراب کنيت دي. حيدر ئې لقب دې دپلارنوم ابوطالب اودَمور نوم ئې فاطمه وو. حضرت علی ﷛ نجيب الطرفين هاشمی وو اودَ رسول الله ﷺ سکه دَ تره څوئ وو. حضرت علی ﷛ دَ نبوت نه لس کاله وړاندې پيداشوې وو. دَ لسو کالو په عمر کښې په اسلام مشرف شوې وو. بعضې وائی چه دَ حضرت خديجة الکبری ﷞ نه پس حضرت ابوبکرصديق ﷛ مسلمان شوې وواوبعضې وائی چه دَ حضرت خديجة الکبری ﷞ نه پس حضرت علی ﷛ مسلمان شوې وو. په مکه معظمه کښې ديارلس کاله دَ حضور ﷺ سره وو اوبيائی مدينې منورې ته هجرت اوکړو او په ټولو غزواتوکښې دَ نبی کريم ﷺ سره وو. دَحضرت عثمان غنی ﷛ دَ شهادت نه پس درې ورځې پس ۲۱ ذی الحجه دَ دوشنبه په ورځ په مسجد نبوی کښې خليفه جوړکړې شو.[1]

**وفات:** ۴۰ھ کښې دَ سحرامامت کولو ابن ملجم په توره باندې ډير خطرناك ګذار اوکړو په سرئی زخم راغلو خلقو ابن ملجم راګيرکړو(طبری) هم په هغه ورځ ۲۰ رمضان ۴۰ھ

---

[1] طبری).(۲) الترمذي في اللباس باب ماجاء في الحرير والذهب)(۳) البخاری فی اللباس باب لبس الحرير وافتراشه للرجال وما يجوز منه وفی الأطعمة باب الأکل فی إناء مفضض والأشربة باب الشرب فی آنية الفضة)

کښې دَ دنیانه رخصت شو.

**مرويات:** دَوړوکوالی نه واخله تروفات پورې تقریبًا ۳۰ کاله دَ رسول الله ﷺ په خدمت کښې وو ولې دَ احادیثو په نقل کولوکښې ډیر زیات محتاط وو. په دې وجه دَ هغوی نه ډیر کم روایات دَ احادیثو په کتابونوکښې ملاویږی. دَهغوی نه ټول ۵۸۶ روایتونه نقل دی په کوموکښې چه ۲۰ احادیثوکښې دَ بخاری اومسلم اتفاق دې. ۹ احادیث بخاری شریف کښې او ۱۰ په مسلم کښې منفرددی.

دَ نورو حالاتودپاره اوګورئی ① اسدالغابة ۵۱۷/۵ ②زرقانی۲۸۰/۱ ③ طبری۱۲۷۲ ④ طبقات ابن سعدتذکره حضرت علی رضی الله عنه ⑤اصابه⑥ تاریخ ابن خلدون ۱۰۲/۲ ⑦ فتوح البلدان بلاذری۴۷۷⑧ تهذیب التهذیب ⑨ ازالة الخفاء ⑩تاریخ الخلفاء وغیره.

**تسهيلات:**

**قوله:** عَنْ وَلَدَيْنِ: حضرت خدیجه رضی الله عنها دَخپلو هغه دوو بچوباره کښې تپوس اوکړو چه دَ ړومبی خاوند "هاله" نه وواو په جاهلیت کښې مړه شوی وو. رسول الله ﷺ اوفرمائیل هغه دواړه په دوزخ کښې دی. دَدې روایت نه هغه خلقو استدلال کړې دې چه وائی چه اولاد به دَخپل والدینو تابع وی دامسئله تیره شوې ده.

**قوله:** لَوْرَأَيْتِ مَكَانَهُمَا: یعنی که دَدغه بچومستقبل نه تاکتلې اودَهغوی مبغوض عندالله کیدل تاته معلوم وې نوتابه پخپله هغوی مبغوض ګنړل ځکه چه دَهغوی مستقبل دَ تقدیرپه حوالې سره ډیرخراب او ویرونکې وو.

**قوله:** وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُمْ:

**د نبی علیه السلام د قرآنی آیت څخه استشهاد:** رسول الله ﷺ دَ استشهاد په توګه دا آیت تلاوت کړو چه مسلمانانو سره به دَهغوی هغه بچی ملاوولې شی کومو بچوچه دَ مورپلارااطاعت کړې وی دَپاره چه په جنت کښې والدینو ته پوره خوشحالی ملاؤشی اودَمشرکانواولاد به هغوی سره په دوزخ کښې ملاوولې شی دې دَپاره چه کافرانوته په دوزخ کښې پوره غم حاصل شی.

**اشكال:** ښځه اوبچی په دې ملاوولوکښې خو دَالله تعالی رحمت او شفقت په کمال درجه شو لیکن غیرنبی به دَ نبی مقام ته څنګه رسولې شی. مثلاً دَ انبیاء کرامو زوجات محترمات اودَهغوی اولادته به دَ برابرئی درجه څنګه حاصلیږی.

**د اشكال جواب:** دَالله تعالی په رحمت سره به ئی درجات خو اوچت وی مګر په خونداو استلذاذ کښې به ئی فرق وی مثلاً حضرت عائشه رضی الله عنها به رسول اکرم ﷺسره په خوراک کښې هغه خوند نه مومی کوم چه به نبی کریم ﷺ ته دَ نبوت دَدرجې په وجه حاصل وی.

## [٤٨] دانسان څخه هيره او خطا کيدل

٤٨-()[٣٩][١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢]«لَمَّا خَلَقَ اللَّهُ آدَمَ مَسَحَ ظَهْرَهُ فَسَقَطَ عَنْ ظَهْرِهِ كُلُّ نَسَمَةٍ هُوَ خَالِقُهَا مِنْ ذُرِّيَّتِهِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ، [٣]وَجَعَلَ بَيْنَ عَيْنَيْ كُلِّ إِنْسَانٍ مِنْهُمْ وَبِيصًا مِنْ نُورٍ، ثُمَّ عَرَضَهُمْ عَلَى آدَمَ، [٤]فَقَالَ أَيْ رَبِّ! مَنْ هَؤُلَاءِ؟ فَقَالَ ذُرِّيَّتُكَ. فَرَأَى رَجُلًا مِنْهُمْ فَأَعْجَبَهُ، وَبِيصُ مَا بَيْنَ عَيْنَيْهِ، [٥]قَالَ: أَيْ رَبِّ! مَنْ هَذَا؟ قَالَ: دَاوُدُ. فَقَالَ: رَبِّ! كَمْ جَعَلْتَ عُمْرَهُ؟ قَالَ: سِتِّينَ سَنَةً. قَالَ: رَبِّ زِدْهُ مِنْ عُمْرِي أَرْبَعِينَ سَنَةً). [٦]قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (فَلَمَّا انْقَضَى عُمْرُ آدَمَ إِلَّا أَرْبَعِينَ جَاءَهُ مَلَكُ الْمَوْتِ، [٧]فَقَالَ آدَمُ: أَوَلَمْ يَبْقَ مِنْ عُمْرِي أَرْبَعُونَ سَنَةً؟ [٨]قَالَ: أَوَلَمْ تُعْطِهَا ابْنَكَ دَاوُدَ؟! فَجَحَدَ آدَمُ، فَجَحَدَتْ ذُرِّيَّتُهُ، وَنَسِيَ آدَمُ فَأَكَلَ مِنَ الشَّجَرَةِ، فَنَسِيَتْ ذُرِّيَّتُهُ، وَخَطَأَ وَخَطَأَتْ ذُرِّيَّتُهُ) » رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:**[١] او حضرت ابوهريره ﷺ روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[٢] چې کله الله تعالی ﷻ آدم ﷺ پيدا کړونو د هغه په ملا يي لاس را تير کړي (يعني فرشتي ته يي دلاس د را تيرولو حکم ورکړي) نو د هغه د شا څخه هغه ټول روحونه راووتل چې دآدم ﷺ په اولاد کښې به الله تعالی ﷻ تر قيامته پورې پيدا کونکي وو [٣]او په هغوئ کښې د هر سړي د دواړو سترګو په مينځ کې د نور رڼا کينبودله، بيايي هغه ټوله د آدم ﷺ په مخکې مخامخ ودرول [٤](هغه ټول ليدلو سره) آدم ﷺ پوښتنه وکړه، پرورد ګاره دا څوك دي؟ پرورد ګار وفرمايل چې دا ټول ستا اولاد دي. آدم ﷺ په هغوئ کې يو سړي وليدلو چې د هغه دسترګو په مينځ کښې ډيره زياته رڼا هغه ته ډير ښه ښکارد شوه،[٥] پوښتنه يي وکړه اي پرورد ګاره دا څوك دي؟ وي فرمايل دا داود ﷺ دي، آدم ﷺ عرض اوکړو زما په ورد ګاره تا د ده عمر څومره مقرر کړي دي؟ وي فرمايل شپيته کاله، حضرت آدم ﷺ عرض اوکړو زما پرورد ګاره د ده په عمر کښې زما د عمر څخه څلويښت کاله زيات کړي [٦](روايت کونکي) وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل کله چې دحضرت آدم ﷺ په عمر کښې څلويښت کاله پاتې شو، نو د مرګ فرشته هغه ته راغله،[٧] آدم ﷺ هغه ته اوويل چې آيا زما په عمر کښې څلويښت کاله پاتې نه دي،[٨] ملك الموت (د مرګ ملائکي) ورته اوويل چې آيا تا په خپل عمر کښې څلويښت کاله خپل زوي داود ﷺ ته نه وو ورکړي؟ نو آدم ﷺ د دې څخه انکار اوکړو، او د ده اولاد هم انکار کوي او آدم ﷺ (خپل عهد) هير کړي او هغه ممنوعه ونه وخوړله او د هغه اولاد هم هيره کوي او حضرت آدم ﷺ خطا کړي وه او د هغه اولاد هم خطاوي کوي. ترمذي

[١]) اخرجه الترمذی کتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلی الله عليه وسلم /باب: ومن سورة الأعراف (رقم-٣٠٧٦)

**حل اللغات:** ①مَسَحَ: لاس ئې پرې راتیر کړو، ②فَسَقَطَ: أَيْ: خَرَجَ: نو راؤغورځیدل یعنی راؤوتل ③نَسَمَةٍ: دا د نسیم نه ماخوذ دې، نسم ئې جمع راځي، د روح ساه اخستلو ته وائي، خو دلته په معنی د روح دې او مراد ترینه ذِي رُوحٍ: یعنی ساه لرونکې دې ④وَبِيصًا: أَيْ: بَرِيقًا وَلَمَعَانًا: ځلا، شعاع، چمک، ⑤فَجَحَدَ: نو انکار ئې اوکړو (چه ما خو نه دي ورکړې)

**تسهیلات: قوله:** وَبِيصًا:

**د بیص څخه مراد:** د بیص څخه مراد نور دې ددې نور د چمك څخه مراد دهدایت هغه استعداد دې کوم چې الله تعالی ټولو انسانانو ته عطاء کړې دې. حضرت داؤد علیه السلام کښې دا نور زیات روښانه وو.

**اشکال:** استعداد دا نور په حضرت داؤد علیه السلام کښې زیات وو نو د حضور نبی کریم ﷺ باره کښې به څه وئیلې کیږی؟

**داشکال جواب:** ① دا جزئی فضیلت دې او نبی کریم ﷺ ته کُلی فضیلت حاصل دې.

②: د محاروۀ کلام دستور دې چې متکلم د خپل کلام نه خارج او مستثنی وی. نو نبی کریم ﷺ د نورو د رڼا ذکر فرمائیلې دې نو خپله رڼا به ئې اعلی او ارفع وی خو دا محلِ بحث نه دې، په دې وجه ددې د ذکر کولو ضرورت نشته دې.

**قوله:** قَالَ: دَاوُدُ:

**د آدم علیه السلام په داؤد علیه السلام د نظرانتخاب پریوتلو وجه:** یعنی د استعداد دا رڼا د حضرت داؤد علیه السلام په تندی کښې ټولو څخه زیاته وه نو حضرت آدم علیه السلام ته دوئ خوښ راغلل او ددوئ باره کښې ئې سوال اوکړو.

جواب کښې الله تعالی اوفرمائیل چې دا داؤد دې. حضرت آدم علیه السلام او حضرت داؤد علیه السلام کښې خلافتِ ارضی په توګه قدر مشترك مناسبت موجود وو، او دوئ دواړه د خلیفه په لفظ سره داشان یاد کړې شول ﴿يٰدَاوُدُ اِنَّا جَعَلْنٰكَ خَلِيْفَةً فِي الْاَرْضِ﴾ او ﴿اِنِّيْ جَاعِلٌ فِي الْاَرْضِ خَلِيْفَةً﴾ هم ددې مناسبت په وجه د حضرت آدم علیه السلام نظرِ انتخاب په حضرت داؤد علیه السلام باندې پریوتو

**قوله:** أَرْبَعِينَ سَنَةً:

**اشکال:** دې حدیث پاك کښې د حضرت آدم علیه السلام متعلق راغلی دی چې دوئ د خپل عمر څخه څلویښت کاله حضرت داؤد علیه السلام ته ورکړې وو. او د حضرت داؤد علیه السلام عمر شپیته کاله وو لیکن د مشکوة شریف جلد دویم باب السلام فصل ثالث حدیث نمبر ۴۶۶۳ کښې د حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت داشان راغلې دې چې دحضرت داؤد علیه السلام عمر څلویښت کاله وو حضرت آدم علیه السلام ورته شپیته کاله ورکړی وو. نو د دواړو احادیثو په مینځ کښې واضح تعارض دې؟

**د اشکال څلور جوابونه:** ① مذکوره حدیث پاك او ددې عدد صحیح دې او جلد دویم کښې چرته د یو راوی څخه سهو شوې ده. هغه څلویښت دَ شپیتو په ځائې او شپیته دَ څلویښتو په ځائې بیان کړل.

② آدم علیه السلام اول شل کاله عمر ورکړې وو اوبیا ئې څلویښت کاله ورکړو نو شپیته پوره شو.

③ کومو راویانوته چې د څلویښت علم وو نوهغوی څلویښت ذکر کړی دی او کومو ته چې د شپیتو علم وو نو هغوی شپیته ذکر کړی دی.

④ دویم حدیث د اول څخه اولی دې.

**قوله:** فَجَحَدَ آدَمُ:

**اشکال:** آدم علیه السلام ورته یوځل عمر ورکړو او بیا ئې انکار اوکړو دا خو د پیغمبرد شان سره نه ښائیږی.

**داشکال جواب:** دا جحود عنادی نه وو بلکه جحود نسیاني وو، چونکه د عالم ارواح مسئله وه نو د زمانې په تیریدو ذهول راغلو، باقی دا خبره قابل غور ده چې دا معامله د عالم ارواح وه، اوس په عالم شهود کښې که یو کس خپل عمر چاته ورکول غواړی نو دا ناجائز دی او نا ممکن دی. ځکه چې دعمر تعین او دمرګ تعین دواړه امور تکوینیه دی، په دې کښې چا ته د مداخلت اجازت نشته دې.

### [١١٩] د آدم علیه السلام د شا نه جنتیان او دوزخیان پیدا کول

١١٩—()[٣٠] ١ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: (٢ «خَلَقَ اللَّهُ آدَمَ حِينَ خَلَقَهُ، فَضَرَبَ كَتِفَهُ الْيُمْنَى، فَأَخْرَجَ ذُرِّيَّةً بَيْضَاءَ كَأَنَّهُمُ الذَّرُّ، وَضَرَبَ كَتِفَهُ الْيُسْرَى فَأَخْرَجَ ذُرِّيَّةً سَوْدَاءَ كَأَنَّهُمُ الْحُمَمُ، ٣ فَقَالَ لِلَّذِي فِي يَمِينِهِ: إِلَى الْجَنَّةِ، وَلَا أُبَالِي، ٤ وَقَالَ لِلَّذِي فِي كَتِفِهِ الْيُسْرَى: إِلَى النَّارِ، وَلَا أُبَالِي»). رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابو درداء رضي الله عنه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ٢ کوم وخت چې الله تعالی جل جلاله حضرت آدم علیه السلام پیدا کړو نو د هغه په ښي اوږه یې لاس (دست قدرت) وو هلي او یا (د وهلو حکم یې ورکړو) او د هغه څخه یې سپین اولاد راویستې داسې لکه چې میږیان وو، بیا یې په ګسه اوږه باندې لاس ووهي او د هغه څخه یې تور اولاد راویستي لکه چې هغه تورسکاره دي، ٣ بیا الله پاك د ښي طرف والا اولاد په باره کې وفرمایل چې دا جنتیان دي او ماته ددي هیڅ پروا نشته ٤ او د دې (آدم علیه السلام) د ګس اوږي والا اولاد په باره کښې یې وفرمایل چې دا دوزخیان دي او ماته د دې هیڅ پرواه نشته. احمد

---

(١) اخرجه احمد في المسند:٦/٤٤١

**حل اللغات:** ① فَضَرَبَ: پس ونې وهلو، لاس ئې پرې راښکلو. ② الذَّرّ: بضم الذال وفتحها وړوکی میږی ته وائی دا تشبیه په وړوکوالی کښې ده یا په سپین اوصفا کیدو کښې ده. ③ الْحُمَمُ: جمع حممة دَ کوئلې په معنی کښې دې.

**تسهیلات:**

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

**قوله: فَضَرَبَ كَتِفَهُ الْيُمْنَى** دادَ تجلیات ربانی دَ القاء یوصورت وو لکه څنګه چه دَنمر شعاګانې په یو څیزباندې پریوځی نودَهغې اثروی.

**قوله: بَيْضَاءَ** داسپینوالې او دا رڼړا دَ ایمان دَ نوراودَاستعدادتام نښه وه چه په دنیاکښې راتلونه پس به دا سړې دَ ایمان نور خپلوی او په هدایت به راځی اودَدې برعکس ظلمت او تیارې وې چه دکفرنښه وه چه په دنیا کښې راتلونه پس به دا سړې په خپل اختیار باندې په ظلمت او ګمراهئی کښې پریوځی. لهذا دا دواړه تصویرونه په عالم ارواح کښې دَایمان اوکفرعلامتونه جوړشو.

**قوله: فَقَالَ** دادَ أشار په معنی کښې دې.

**قوله: إِلَى الْجَنَّةِ** معلومه شوه چه دَالله تعالی په ذمه څه څیز واجب اولازم نه دې اونه یو سړې دَ الله تعالی دَمقاصدو او اغراضو باره کښې څه سوال کولې شی هغه بې نیازه دې. دَ چا دوزخ ته په تلوسره هغه ته ویره او اندیښنه نه کیږی اونه دَ چا په جنت تلوسره دَهغه څه غرض اومطلب تړلې شوې دې بس هغه ﴿فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيدُ﴾ دې.

### [۱۳۰] الله بې پروا ذات دې

۱۳۰- (۱) [۳۱] ① وَعَنْ أَبِي نَضْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، «أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُقَالُ لَهُ: أَبُو عَبْدِ اللَّهِ - ② دَخَلَ عَلَيْهِ أَصْحَابُهُ يَعُودُونَهُ، وَهُوَ يَبْكِي، ③ فَقَالُوا لَهُ: مَا يُبْكِيكَ؟ أَلَمْ يَقُلْ لَكَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (خُذْ مِنْ شَارِبِكَ، ثُمَّ أَقِرَّهُ حَتَّى تَلْقَانِي؟) قَالَ: بَلَى، ④ وَلَكِنْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: (إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ قَبَضَ بِيَمِينِهِ قَبْضَةً، وَأُخْرَى بِالْيَدِ الْأُخْرَى، وَقَالَ: هَذِهِ لِهَذِهِ، وَهَذِهِ لِهَذِهِ، وَلَا أُبَالِي) ⑤ وَلَا أَدْرِي فِي أَيِّ الْقَبْضَتَيْنِ أَنَا» رَوَاهُ أَحْمَدُ.[1]

**ترجمه:** ① او حضرت ابو نضره رحمه الله روایت کوي چې د رسول الله ﷺ په صحابوؤ رضی الله عنهم کې یو سړي وو چې د هغه نوم عبدالله وو، ② د هغه دوستان د بیمار پرسي (پوښتني) د پاره ورغلل (نو هغه ولیدل) چې هغه (ابو عبد الله) ژاړي ③ هغوئ ورته اوویل چې ته کوم شي په ژړا مجبوره کړې یې، حالانکه تاته نبی کریم ﷺ دا ارشاد نه وو فرمایلي چې ته د خپلو شونډو (بریتو) ویښتان واړه که او په دې قایم اوسه تر دې چې ته زما سره (په

[1] اخرجه احمد فی المسند: ۵/۶۸

جنت کي، ملاقات وکړي، ابو عبدالله رضي الله عنه اوويل چې هو ④ما د نبی کریم ﷺ دا هم فرمان اوریدلي دي چې الله بزرگ او برتر د خپل ښي لاس په موټي کې يو جماعت واخستي او وي فرمايل چې دا «دا ښي لاس والا جماعت» د جنت د پاره دي او دا گس لاس والا جماعت د دوزخ دپاره دي، او ماته د دې هيڅ پروا نشته، ⑤دي ويیلو سره ابو عبد الله رضي الله عنه وفرمايل چې ماته معلومه نه ده چې زه په کوم متي کې يم «يعني په ښي متي کې يم اويا گس متي کښې يم». احمد

**حل اللغات:** ①يَعُودُونَهُ: داد عيادة نه دې، بيمار پُرسئ يعنی د بيمار پوښتنې ته وائی. ②خُذْ: أَيْ: قُصَّهُ: دا په معنی کټ کولودې يعنی کم کړه «بريت». ③شَارِبَكَ: شارب بريتو ته وائی. ④قَبَضَ: موټې ئې واخستلو، ⑤لَا أُبَالِي: هيڅ پرواه نشته زما.

**تسهيلات:**

**قوله:** ثُمَّ أَقِرَّهُ: يعنی دَ شونډو وېښته کټ کړئی په دې قائم اودائم اوسیږئی معلومه شوه چه په سنت باندې قائم اودائم پاتې کيدل ډير فائده مندی سره دَدې چه يومعمولی سنت ولې نه وی اودَ سنت نه اعراض دَ زندقه طرف ته بوتلل کوی. «طيبی»[الكاشف: ١/٢٩٧]

**قوله:** حَتَّى تَلْقَانِي: يعنی ماسره ستا ملاقات اوشی په حوض کوثرباندې يا په بل مقام، په دې جمله کښې دَ جنت دَ داخليدو زيرې دې ځکه چه کافرانوسره به دَحضورپاك ملاقات نه کيږی.

**قوله:** وَلَا أَدْرِي: يعنی زه نه پيژنم چه زه په کوم موټی کښې يم په دې وجه ژاړم دا دَ "الايمان بين الخوف والرجاء" نقشه ده.

**مطلب:** دَدې حديث مطلب اوخلاصه داده چه ابوعبدالله رضي الله عنه يوصحابی وو هغه بيمارشو نور حضرات دَ هغوی تپوس ته لاړل نوهغه ژړل هغوی دَ ده په ژړاباندې تعجب کولوسره اووئيل ته ولې ژاړې تاته خو نبی کريم ﷺ دَ جنت اوکاميابئی زيرې درکړې وو؟ په دې باندې صحابی قصه شروع کړه اودَ دوو موټو خبره ئی بيان کړه اودَ پريشانئی وجه ئی اوخودله چه "الايمان بين الخوف والرجاء" زه بې ويرې کيدې نه شم.

**اشكال:** اشكال دادې چه کله دَحضورپاك بشارت ده ته ملاؤ شو نوبيادَ ژړا او په هغه بشارت کښې دَ شك کولوځه ضرورت وو؟

**جواب:** ممکن ده چه دَهغوی نه دغه بشارت هيرشوې وی مګردَدې نه بهترجواب دادې چه الله تعالی قادر مطلق اومختارعلی العموم بادشاه دې. دَ هغه وعدې او ټولې معاهدې بيشکه رښتونی دی ليکن هغه دَ ځه څيز پابندنه دی اونه څه څيزپه هغه باندې واجب العمل دې دَهغه احسان په خپل ځائی مګر دَهغه جلال اوشان جبروت اوکبريائی داسې

څیزدي چه هرکس اوبشرئی په هیبت کښې اچولې دې. صحابی دَالله تعالی دَدې بې نیازئی طرف ته اشاره اوکړه

**[۱۲۱] دالله تعالی په ربوبیت باندې دبنیاد مواقرار**

۱۲۱ ــ ( ) [۴۲] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «أَخَذَ اللَّهُ الْمِيثَاقَ مِنْ ظَهْرِ آدَمَ بِنَعْمَانَ - يَعْنِي عَرَفَةَ - فَأَخْرَجَ مِنْ صُلْبِهِ كُلَّ ذُرِّيَّةٍ ذَرَأَهَا، فَنَثَرَهُمْ بَيْنَ يَدَيْهِ كَالذَّرِّ، ثُمَّ كَلَّمَهُمْ قِبَلًا، [۳] قَالَ: {أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوا بَلَى شَهِدْنَا أَنْ تَقُولُوا يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِنَّا كُنَّا عَنْ هَذَا غَافِلِينَ} [الأعراف: ۱۷۲]، {[۴] أَوْ تَقُولُوا إِنَّمَا أَشْرَكَ آبَاؤُنَا مِنْ قَبْلُ وَكُنَّا ذُرِّيَّةً مِنْ بَعْدِهِمْ أَفَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ الْمُبْطِلُونَ} [الأعراف: ۱۷۳]» رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابن عباس ﷺ روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] الله تعالی ﷻ د میدان عرفي سره نزدي په مقام نعمان کښې د آدم ﷺ د هغه اولاد څخه کوم چې د هغه د شا څخه وتلي وو عهد واخستي، نو د آدم ﷺ د شا څخه یې هغه ټول اولاد راویستي چې هغه (د ازل څخه تر ابده پورې) پیدا کول وو او هغه ټول یې د میږیانو په شان د آدم ﷺ په مخکې خواره کړه، بیا الله پاك د هغوئ سره رو برو (مخا مخ) خبرې وکړې، [۳] او وې فرمایل چې آیا زه ستاسو رب نه یم؟ نو د آدم ﷺ اولاد اوویل چې بې شکه ته زمونږ رب یې، بیا الله پاك وفرمایل دا ګواهي ما ستاسو څخه ځکه واخسته چې صبا د قیامت په ورځ تاسو دا ونه وایئ چې مونږ د دې څخه غافله او ناخبره وو، [۴] یا داسې ونه وایئ چې زمونږ پلرونو نیکونو زمونږ څخه مخکې شرك کړي وو، او مونږ د هغوئ اولاد وو، مونږ د هغوئ اطاعت کړي وو، نو آیا ته د باطل پرستو د عملونو په سبب مونږ هلاك کوې. احمد

**حل اللغات**: ① الْمِيثَاقَ: يَعْنِي: الْعَهْدَ: وعده، لوظ. ② بِنَعْمَانَ: د طائف په لاره کښې یوه وادی ده چه د عرفات شاته ده، یا عرفه سره نزدې یو غر دې. ③ صُلْبِهِ: وَهُوَ فَقَارُ الظَّهْرِ: یعنی د شا نه، ④ ذَرَأَهَا: أَيْ خَلَقَهَا: چه پیدا کوی به ئې الله (ترقیامته پورې)، ⑤ فَنَثَرَهُمْ: نثر خورولو او شیندلو ته وائی. ⑥ كَالذَّرِّ: بضم الذال وفتحها وړوکی میږی ته وائی، یعنی د وړوکو میږو په شان. دا تشبیه په وړوکوالی کښې ده یا په سپین اوصفا کیدو کښې ده. ⑦ قِبَلًا: أَيْ عِيَانًا: بالکل مخامخ، په ښکاره (چه په مینځ کښې ئې هیڅ پرده نه وه). ⑧ الْمُبْطِلُونَ: باطل پرست، نافرمان خلق.

**تسهیلات**:

**قوله**: بِنَعْمَانَ: دې ته نعمان الاراك وائی.

اما والراقصات بذات عرق　　　ومن صلی بنعمان الاراك

ابن اثیر ﷫ فرمائی چه نعمان عرفات سره د یو غرنوم دې کوم ته چه نعمان سحاب وائی.

[1] ) اخرجه احمد فی المسند:- ۲۷۲/۱

هم دَدې احتمالاتو په رڼا کښې راوی په حدیث کښې دَتعین دَپاره "أی عرفة" اووئیل.

**قوله: قِبَلًا** مخامخ. دَدې نه معلومه شوه چه داواقعه څه تمثیل یا تشبیه نه ده بلکه داامر واقعی حقیقی دې. دَقبلاالفاظ په دې باندې دال دی.

**قوله: قَالُوا بَلَى شَهِدْنَا:** یعنی روحونو دَ ربوبیت اقرار اوکړو بیاالله تعالی اوفرمائیل چه دا اقراردَ ربوبیت او شهادت تاسو نه ځکه واخستې شو چه تاسو دَقیامت په ورځ دا اونه وایئې چه مونږ بې خبروو. دا توجیه اومفهوم به په هغه صورت کښې اخستې شی چه شهدنا هم مقوله دَ قالوابلی شی ای قالوابلی وقالواشهدنا.

دویم احتمال دادې چه شهدنا استیناف وی نوې کلام وی اودَالله تعالی کلام وی دکوم مفهوم چه به داسې شی چه ارواحو اقراردَ ربوبیت اوکړو بیا مونږ دَهغوی په اقراردَ ربوبیت باندې ګواه جوړشو أن تقولوا أی لئلا تقولوا یوم القیامة إنا کنا عن هذا غافلین.

**[۱۳۲] ته زموږ رب اود عبادت لائق يې**

١٣٢–()[٣٣] ١ وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، فِي قَوْلِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ: {وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِي آدَمَ مِنْ ظُهُورِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ} [الأعراف: ١٧٢] قَالَ: ٢ جَمَعَهُمْ فَجَعَلَهُمْ أَزْوَاجًا، ثُمَّ صَوَّرَهُمْ فَاسْتَنْطَقَهُمْ، فَتَكَلَّمُوا، ٣ ٤ ثُمَّ أَخَذَ عَلَيْهِمُ الْعَهْدَ، وَالْمِيثَاقَ، {وَأَشْهَدَهُمْ عَلَى أَنْفُسِهِمْ أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ} [الأعراف: ١٧٢]. ٥ قَالُوا: بَلَى. ٦ قَالَ: فَإِنِّي أُشْهِدُ عَلَيْكُمُ السَّمَاوَاتِ السَّبْعَ، وَالْأَرَضِينَ السَّبْعَ، ٧ وَأُشْهِدُ عَلَيْكُمْ أَبَاكُمْ آدَمَ أَنْ تَقُولُوا يَوْمَ الْقِيَامَةِ: لَمْ نَعْلَمْ بِهَذَا.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابي بن کعب ﷺ د دې آیت: وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِي آدَمَ مِنْ ظُهُورِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ، ترجمه: (هر کله چې ستا پروردګار د آولاد آدم د شاګانو څخه د هغه اولاد راویستي) په تفسیر کښې فرمایي ٢ چې الله د آدم ﷺ اولاد را جمع کړو او هغه یي قسم قسم وګرزول (یعني څوك یي مالدار او څوك یي غریب کړ) ٣ بیا یي هغوئ ته شکل و صورت ورکړو او بیا یي ورته خبري وکړو او هغوئ ورسره خبري وکړي ٤ بیا یي د هغوئ سره قول و اقرار اوکړو او بیا یي هغه په خپل ځان ګواهان کړل او پوښتنه یي ځني وکړه چې آیا زه ستاسو رب نه یم؟ ٥ اولاد آدم اوویل چې بي شکه (نه زمونږ رب یي) ٦ الله تعالی جَلَّ جَلَالُهُ ورته وفرمایل چې زه اوه ٧ آسمانونه او اوه ٧ زمکې ستاسو په مخکې ګواه جوړوم ٧ او ستاسو پلار آدم ﷺ هم ګواه جوړوم، ځکه چې د قیامت په ورځ تاسو داسې ونه وایئ چې مونږ ددي څخه ناخبره وو.

**حل اللغات:** ① فَاسْتَنْطَقَهُمْ: أَيْ: طَلَبَ مِنْهُمُ النُّطْقَ: خبرې کول نې ترې اوغوښتل.

[1] ) اخرجه احمد في المسند: ٦/٤٤٣

[١] اعْلَمُوا أَنَّهُ لَا إِلَهَ غَيْرِي، وَلَا رَبَّ غَيْرِي، وَلَا تُشْرِكُوا بِي شَيْئًا. [٢] إِنِّي سَأُرْسِلُ إِلَيْكُمْ رُسُلِي يُذَكِّرُونَكُمْ عَهْدِي، وَمِيثَاقِي، وَأُنْزِلُ عَلَيْكُمْ كُتُبِي. [٣] قَالُوا: شَهِدْنَا بِأَنَّكَ رَبُّنَا، وَإِلَهُنَا. لَا رَبَّ لَنَا غَيْرُكَ، وَلَا إِلَهَ لَنَا غَيْرُكَ. فَأَقَرُّوا بِذَلِكَ، [٤] وَرُفِعَ عَلَيْهِمْ آدَمُ عَلَيْهِ السَّلَامُ يَنْظُرُ إِلَيْهِمْ، فَرَأَى الْغَنِيَّ، وَالْفَقِيرَ، وَحَسَنَ الصُّورَةِ، وَدُونَ ذَلِكَ. [٥] فَقَالَ: رَبِّ لَوْلَا سَوَّيْتَ بَيْنَ عِبَادِكَ قَالَ: إِنِّي أَحْبَبْتُ أَنْ أُشْكَرَ، [٦] وَرَأَى الْأَنْبِيَاءَ فِيهِمْ مِثْلَ السُّرُجِ عَلَيْهِمُ النُّورُ، خُصُّوا بِمِيثَاقٍ آخَرَ فِي الرِّسَالَةِ، وَالنُّبُوَّةِ، وَهُوَ قَوْلُهُ تَبَارَكَ، وَتَعَالَى: {وَإِذْ أَخَذْنَا مِنَ النَّبِيِّينَ مِيثَاقَهُمْ} [الأحزاب: ٧] إِلَى قوله: {وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ} [الأحزاب: ٧] كَانَ فِي تِلْكَ الْأَرْوَاحِ، فَأَرْسَلَهُ إِلَى مَرْيَمَ عَلَيْهِمَا السَّلَامُ فَحُدِّثَ عَنْ أُبَيٍّ: أَنَّهُ دَخَلَ مِنْ فِيهَا. رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [١] (دا وخت) تاسو ښه پوه شی چې نه خو زما څخه ماسوا بل څوك د عبادت لايق شته او نه زما څخه ماسوا پرورد ګار شته او خبردار، څوك زما سره شريك نكړي، [٢] زه تاسو ته ډير ژر خپل رسول راليږم چې تاسو ته زما قول و اقرار درياد كړي او په تاسو خپل كتابونه نازلوم [٣] (په دي اوريدو سره) اولاد آدم اوويل مونږ ددي خبري ګواهي وركوو چې ته زمونږ رب يي او ته زمونږ معبود يي، ستا څخه ماسوا زمونږ هيڅ يو پرور دګار نشته او نه ستا څخه علاوه زمونږ څوك د عبادت لايق شته، نو د آدم ﷺ ټول اولاد دا اقرار وكړو [٤] او حضرت آدم ﷺ يي په هغوئ باندي اوچت كړ (هغه خپل نظر اوچت كړي) دا منظر يي ليدلي، آدم ﷺ وليدل چې د هغه اولاد اميران هم دي او فقيران هم، ښايسته هم دي اوبد رنګه هم [٥] (په دي ليدو سره) هغه عرض وكړو اي پرورد ګاره خپل ټول بندګان تا يو شان ولي نه دي جوړ كړي؟ الله تعالى ﷻ وفرمايل زه دا خوښوم چې زما بندګان زما شكر ادا كوي، بيا آدم ﷺ انبياء وليدل چې د چراغونو (ډيوو) په شان روښانه وو په هغوئ رڼا كونكي وو، د هغوئ څخه په خصوصيت سره د رسالت ونبوت عهد وپيمان واخستل شو لكه څنګه چې د الله تعالى ﷻ قول دي: وَإِذْ أَخَذْنَا مِنَ النَّبِيِّينَ مِيثَاقَهُمْ وَمِنْكَ وَمِنْ نُوحٍ وَإِبْرَاهِيمَ وَمُوسَى وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ (قرآن حكيم) ترجمه: او هر كله چې مونږ د انبياء ﷺ څخه قول واقرار واخستي او ستا محمد (ﷺ) څخه او د نوح (ﷺ) او د ابراهيم (ﷺ) څخه او د موسى (ﷺ) او د عيسى بن مريم (ﷺ) څخه (هم) عهد وپيمان واخستي دهغه روحونو په مينځ كښې حضرت عيسى (ﷺ) هم وو، د هغه روح الله تعالى ﷻ د جبرابيل ﷺ په ذريعه د حضرت بي بي مريم ته راوليږلو، حضرت ابي بيان كوي چې دا روح د حضرت مريم د خلې د طرف څخه د هغې په بدن كې داخل شو. احمد

**حل اللغات:** ② مِيثَاقِي: ميثاق وعدې او لوظ ته وائى. ③ لَوْلَا سَوَّيْتَ: برابر او يوشان دې ولې نه دى جوړ كړى (ټول انسانان. په حسن وجمال. مال. اعمال وغيره كښې). ④ السُّرُجِ: د سِرَاج جمع ده. ډيوه. ⑤ خُصُّوا: خاص كړې شوى دى

**تسهيلات:**

**قوله: خُصُّوا بِمِيثَاقٍ آخَرَ:** داعهدوپيمان اودا ميثاق مِيثاق دَ نبوت وو چه خدمت خاص يعنى تبليغ رسالت دَپاره واخستې شو.

**قوله: فَرَأَى الْغَنِيَّ، وَالْفَقِيرَ:** حضرت آدم عليه السلام ته تعجب اوشو چه دَهغه په اولادكښې دومره فرق ولې دې چه يو مالدارنوبل دَ رزق محتاج او غريب نوحضرت آدم عليه السلام دَدې دَوجې پوښتنه اوكړه.

## [١٣٣] عادت بدليدل ډير مشكل دى

١٣٣-()[٣٣][١] «وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: بَيْنَمَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نَتَذَاكَرُ مَا يَكُونُ، [٢] إِذْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (إِذَا سَمِعْتُمْ بِجَبَلٍ زَالَ عَنْ مَكَانِهِ فَصَدِّقُوهُ، [٣] وَإِذَا سَمِعْتُمْ بِرَجُلٍ تَغَيَّرَ عَنْ خُلُقِهِ فَلَا تُصَدِّقُوا بِهِ، [٤] فَإِنَّهُ يَصِيرُ إِلَى مَا جُبِلَ عَلَيْهِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابودرداء رضي الله عنه فرمايي چې مونږ د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره ناست وو، د راتلونكي وخت واقع كيدونكو كارنو باندې مو خبري كولې [٢] رسول الله صلى الله عليه وسلم (زمونږ خبري اوريدو سره) وفرمايل هر كله چې تاسو واورې چې يو غر د خپل ځاى څخه ښوريدلى دې نو هغه رښتيا وګڼې [٣] ليكن هر كله چې تاسو دا واورې چې د يوسړي خلقت بدل شوې دې نو د دې اعتبار مه كوې، [٤] ځكه چې انسان د هغه شي طرف ته ځي چې په هغه هغه پيدا شوې دې. احمد

**حل اللغات:** ① زَالَ: منتقل شو، دخپل ځائې نه اخوا شو، ② تَغَيَّرَ: بدل شو (پيدائشى صفات)، ③ جُبِلَ: أَيْ: خُلِقَ: چه پيدا شوى دى.

**تسهيلات:**

**قوله: وَإِذَا سَمِعْتُمْ:**

**دجبلت نه بدليدل:** دَدې حديث نه معلومه شوه چه دَغردَخپل ځائى نه منتقل كيدل او زائل كيدل ممكن دى په دې شرط چه دَدې متعلق څوك اووائى او څه قرينه انكارهم اونه كړى نو تصديق اوكړه. دَ بعضې مغربى ممالكو بعضې غرونه خوزيږى اودَ خپل ځائى نه اخوا كيږى. دَدې په مقابله كښې كه څوك تاسو ته اووائى چه فلانكى سړې دَخپل جبلت نه اوختلې دې نودَهغې تصديق مه كوه ځكه چه دَطبيعت اوجبلت نه اوختل ممكن نه دى او ظاهرى عارضى بدلون به راشى مګر حقيقى بدلون به نه كيږى رښتيادى.

---

[١]) اخرجه احمد فى المسند: ١٣٥/٥

[۱۳۳] د مصیبت رسیدل په تقدیر کښې لیکل شوی دی

۱۳۳-(¹)[۳۵] ۱ «وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! لَا يَزَالُ يُصِيبُكَ فِي كُلِّ عَامٍ وَجَعٌ مِنَ الشَّاةِ الْمَسْمُومَةِ الَّتِي أَكَلْتَ. ۲ قَالَ: (مَا أَصَابَنِي شَيْءٌ مِنْهَا إِلَّا وَهُوَ مَكْتُوبٌ عَلَيَّ وَآدَمُ فِي طِينَتِهِ)». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ او د حضرت ام سلمه رضي الله عنها څخه روایت دي چې هغي و رسول الله ﷺ ته عرض وکړو چې ته (ﷺ) چې کمه د زهرو ډکه د بزي (چیلۍ) غوښه تاسو خوړلي وه (کمه چې په خیبر کښې یو یهودي په درخوړلي وه) هرکال د هغه د وجهی څخه تا ته تکلیف رسیږی ۲ ده ﷺ اوویل کوم شي (یعني اذیت اوتکلیف یا بیماري) چې ماته رسي هغه ما لره هغه وخت لیکل شوي وو کله چې آدم ﷺ په خاوره کښې دننه وو (یعني زما په تقدیر کښې هم داسې لیکلي وو) رواه ابن ماجه.

**حل اللغات:** ① وَجَعٌ: أَيْ أَلَمٌ: درد، تکلیف، ② الْمَسْمُومَةِ: زهریله، زهر ګډ کړې شوی، ③ مَكْتُوبٌ: لیکلی شوی وو (په تقدیر زما کښې). ④ طِينَتِهِ: خټه.

# [۴/۴] بَابُ إِثْبَاتِ عَذَابِ الْقَبْرِ

## دَ عذاب قبر دَ ثبوت بیان

په قبرکښې چه څنګه ګناهګار ته عذاب ملاویږی دغه شان نیکانوخلقو ته ثواب هم ملاویږی.

**صرف په عذاب باندې اکتفاء ولې؟:** حضرت مصنف رحمه الله صرف دَ عذاب ذکرکړې دې اودَ ثواب ذکر ئی نه دې کړې.

**دوه جوابونه:** ① دَ کافرانو اوفاسقانو شمیر زیات دې په دې وجه ئی دَ هغوی دَ جزاء او سزا ذکراوکړو او په متن او عنوان کښې ئی هغوی ته اهمیت ورکړو.

② لفظ عذاب القبر ذکر کولوسره ثواب القبر خپل پخپله په ذهن کښې راځی. ځکه چه دا دواړه دَ یوبل ضد دی. نو یو ضد ئی ذکر کړو او دویم چه کوم ثواب دې هغه پخپله په ذهن کښې راځی او هم دغه وجه ده چه دَ عذاب قبر په احادیثو کښې صرف دَ عذاب ذکر نه دې بلکه دَ ثواب ذکر عموماً اول راځی او بیا دَ عذاب ذکر راځی.

**د قبر دوه اطلاقات:** ① دَ لفظ قبر اطلاق حقیقةً هم په دې ظاهری حسی کنده باندې کیږی په کوم کښې چه مړې خښولې شی. قرآن کریم هم دغه حسی ظاهری مقام ته قبر وئیلې دې (وَلَا تَقُمْ عَلَىٰ قَبْرِهِ)

¹) اخرجه ابن ماجة كتاب باب الجذام (رقم-۳۵٤۶)

② په مجازی توګه باندې دَ قبر په مفهوم کښې وسعت دې او دَ مرګ نه پس پوره برزخی مقام ته قبر وئیلې شوې دې. لیکن په دې سره دَ ظاهری قبر نفی نه کیږی بلکه دَ قبر نه شروع شي او وړاندې راروانې ټولې مرحلې ترڅو قیامت قائمیدو پورې برزخ دې. لهذا که یو سړې اوسوزي یا اوخوړلې شی یا په هواکښې الوتو سره ختم شی هغه دَ برزخ نه غائبیدې نه شی بلکه هم هلته حاضریږی اودَ هغه حساب او کتاب کیږی.

**د عالم درې قسمونه:**

① **عالمِ دنیا:** په عالم دنیا کښې دَاحکامو تعلق اولاً او بالذات دبدن سره وی او تبعًا دروح سره وی. هم دغه وجه ده چه که چرې چا څوك په دنیا کښې مراقبه او په روحانی تصرف سره قتل کړو نوقصاص به نه وی ځکه چه بدن څه کردار نه دې اداکړې.

② **عالمِ برزخ:** په عالم برزخ کښې دَ احکامو تعلق اولاً او بالذات روح سره وی او ثانیًا او تبعًا بدن سره وی.

③ **عالمِ آخرت:** عالم آخرت دې هلته دَ احکامو تعلق روح او بدن سره وی ځکه چه روح راکب او بدن مرکوب دې.

**په دنیا کښې د بدن او روح د اشتراکی عمل مثال:** په دنیاکښې خو عمل دَ دواړو په اشتراك سره شوې دې نودَ حکم جاری کیدل به هم په دواړو باندې کیږی. روح دا نه شی وئیلې چه زه خودَ عالم بالا نه راغلې ووم زه مجرم نه یم بلکه مجرم خو بدن او جثه ده. دَدې دواړو داشتراك عمل مثال دَ ګوډ او ړوند دَ غلا دې چه ګوډ تلې نه شی خو لیدلې شی او ړوند لیدلې نه شی خو تلې شی. لهذا په دواړو کښې اتفاق اوشو ګوډ په ړوند باندې سور شو او لار به ئی ورته خودله او ړوند هغه اوچت کړې وو بوتلوئی. تردې چه باغ ته اورسیدل ګوډ ښه میوې راؤشوکولې او بیا دواړو ښه اوخوړلې. اوس چه دَ باغ مالک دواړه اونیسی نو دواړو ته سزا ورکوی نه ګوډ بچ کیدې شی او نه ړوند په بهانه کولوسره بچ کیدې شی. هم دغه شان چه کله په آخرت کښې دَ بدن او روح معامله پیش شی نو دواړه به مجرمان وی دواړو ته به ثواب او عذاب کیږی. هم دغه وجه ده چه په مراقبه اوروحانی تصرف سره که چا څوك اووژلو نو په آخرت کښې به ترې بدله اخستې شی.

**د عالم برزخ مثال:** دَعالم برزخ دَ ټولو نه زیات مناسب حسی مثال خوب اودَ خوب کیفیت دې. مثلاً دوه کسان یو ځائی کښې اوده دی. یو ته په خپل خوب کښې راحت او بل ته تکلیف کیږی. هغه دواړه په خپل خپل خوب کښې دَ مختلف مقاماتو سیل کوی کله مکه، کله مدینه، کله په زمکه اوکله په آسمان کښې ګرځی. څوك په کښې راحت او څوك په کښې زحمت محسوسوی. لیکن دوی سره نیزدې ناست کس ته هیڅ هم نه معلومیږی چه کوم یو ته راحت دې او کوم یو ته زحمت دې. په دې خوب کښې کله سړې

خاندي كله ژاړي كله منډې وهي كله الوزي مګر چا ته هيڅ نه محسوسيږي چه د اوده كس څه كيفيت دې او كله كله څه حركات مثلاً خاندل، خبرې كول معلوميږي هم بالكل هم دغه شان په عالم برزخ كښې د روح معامله بدن او جثې سره ده هلته هرڅه كيږي مګر چا ليدونكي ته نه محسوسيږي بس صرف مړي ته احساس كيږي. په عام حالاتو كښې بدن بالكل بې حس معلوميږي او كله كله د روح اثر په بدن باندې هم ظاهريږي.

**په قبر كښې بدن سره د روح د تعلق درې قسمونه:** قبر كښې د بدن سره د روح تعلق په درې قسمه باندې دې.

① د روح تعلق د بدن سره دومره خو وي چه دهغه بدن دې متاثر نه شي ليكن ددې تعلق اثر په دنيا باندې نه پريوځي لكه د شهيدانو روحونه چه دهغوي بدن خو سلامت وي ليكن ميراث ئې تقسيميږي اود هغوي بيبيانوسره نكاح هم كيدې شي.

② د روح تعلق بدن سره دومره مضبوط وي چه د بدن صحيح سالم پاتې كيدو سره سره دهغې اثر په دنيا باندې هم پريوځي. لكه چه د انبياء كرامو عليهم السلام روحونه دي. دهغوي د روحونو تعلق د بدن سره دومره مضبوط وي چه د قبر نه تيريدو سره په دنيا باندې هم اثر لري. د كوم نتيجه چه داده چه د انبياء كرامو عليهم السلام مال په توګه د ميراث نه شي تقسيميدې اود هغوي پاكو بيبيانو سره څوك نكاح هم نه شي كولې. او بدن مبارك ئې په قطعي توګه د خاورو نه نه متاثر كيږي.

③ د روح تعلق بدن سره ډير كمزورې وي چه نه په دنيا باندې څه اثر كوي او نه په قبر كښې بدن محفوظ ساتلې شي. داد عامو مسلمانانو د روحونو تعلق دهغوي دبدنونو سره دې. او د بعضې مؤمنانو د روحونو تعلق قوي وي په كوم سره چه دهغوي بدنونه محفوظ پاتې وي ليكن داسې ډير كم وي. كه چرې د يو شهيد بدن خاورې خراب كړو نود ددې وجه يا خو په شهادت كښې نقصان وي اويا د موسم او د زمكې دحالاتو نه متاثر كيدو سره بدن خرابيږي دا يوه عارضي معامله ده.

**دعذاب قبر په كيفيت كښې (۴) مذاهب:**

① په قبر كښې بدن وي اوهغه په مثال د كاڼړي دې لهذا په قبر كښې نه عذاب شته او نه ثواب ځكه چه ثواب او عذاب په ژوند باندې متفرع دې اوهغه حيات په قبر كښې نشته دې دا عقيده د خوارجو او دبعضې معتزلو او مرجئه ده. دا عقيده او دا مسلك د قرآن اوحديث او اجماع امت د صريح نصوصو خلاف ده لهذا قابل د التفات نه ده.

**د منكرين عذاب قبر د عدم تكفير وجه:** شبه داده چه د دومره رواياتو او نصوصو منكرينو تكفير ولې نه شي كولې؟

بعضو تكفير كړې دې ليكن امام ابوحنيفه رحمه الله د كف لسان فتوی وركړې ده.ځكه چه

دوې تاويل كوى دي وجې نه مُتَأَوِّلِيْن ته كافر مه وايئ.

④ په قبر كښې دَ ثواب اوعذاب تعلق صرف بدن او جثې سره دې دَ روح دې سره هيڅ تعلق نشته دې. دا مسلك دَ محمد بن جرير كرامي او دعبدالله بن كرام دې. علامه خيالي وئيلى دى چه دَ روح نه بغير دَ خالى بدن دَ عذاب خبره هسې دَ حماقت والا خبره ده. چنانچه هغه ليكى: [جوز بعضهم تعذيب غير الحى ولاشك انه سفسطة] بعضو دَ غير ژونده عذاب جائز منلې دي په دې كښې شك نشته چه دا يوه احمقانه نظريه ده.

⑤ په قبركښې عذاب صرف روح ته كيږى ځكه چه بدنونه خو اكثر ذره ذره كيږى يا سوزيږى يا ئې ځناور خورى. دا مسلك دَ بعضې صوفياؤ او ابن حزم ظاهرى دې مګر په احاديثو سره دَدې هم ترديد كيږى.

⑥ ثواب اوعذاب بدن او روح دواړو ته كيږى اودَ روح دَ بدن ديو جزء سره اتصال وى دا اتصال دَنمر دَ شعاګانو په شان دَاشراق او اشراف په توګه هم كيدې شى چه دَ روح اثر خو دَ بدن په يوجزء باندې پريوځى اوداهم ممكن ده چه دَ روح دَ بدن يو جزء سره تعلق او اتصال كيږى په كوم سره چه بدن راحت او تكليف محسوسوى اوهم په دې سره فرښتو ته جواب وركوى دا مسلك دَ اهل حق اهل سنت والجماعة دې.

**د عذاب قبر د ثبوت دلائل:**

① ﴿اَلنَّارُ يُعْرَضُوْنَ عَلَيْهَا غُدُوًّا وَّعَشِيًّا ۚ وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ ۗ اَدْخِلُوْٓا اٰلَ فِرْعَوْنَ اَشَدَّ الْعَذَابِ﴾ [سورت مؤمن: ۴۶].

په دې آيت كښې په واضحه توګه باندې دَ دوو عذابونو ذكردې يو دَ قيامت عذاب او بل دَ قيامت نه مخكښې عذاب اوهم دغه دَ قبر عذاب دې.

② ﴿مِمَّا خَطِيْٓـٰٔتِهِمْ اُغْرِقُوْا فَاُدْخِلُوْا نَارًا ۙ فَلَمْ يَجِدُوْا لَهُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَنْصَارًا﴾ [سورت نوح: ۲۵.]

دلته فاء تعقيب مع الوصل دَپاره ده يعنى دَ نوح عليه السلام قوم هلته په اوبو كښې غرق شو اودلته په اور كښې داخل كړې شو. ښكاره خبره ده چه دا دَ قيامت نه مخكښې برزخى عذاب دې اوهم دغه عذاب قبر دې ځكه چه قبر دَ برزخ اولنئ مرحله ده.

③ ﴿وَلَوْ تَرٰٓى اِذِ الظّٰلِمُوْنَ فِيْ غَمَرٰتِ الْمَوْتِ وَالْمَلٰٓئِكَةُ بَاسِطُوْٓا اَيْدِيْهِمْ ۚ اَخْرِجُوْٓا اَنْفُسَكُمْ ۗ اَلْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُوْنِ بِمَا كُنْتُمْ تَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ غَيْرَ الْحَقِّ وَكُنْتُمْ عَنْ اٰيٰتِهٖ تَسْتَكْبِرُوْنَ﴾ [سورت انعام: ۹۳.]

دَدې آيت تعلق هم هغه عذاب سره دې چه دَ روح دَ وتلو په وخت فرښتې انسان ته وركوى. ښكاره خبره ده چه دا دَ قيامت نه مخكښې دَ قبر عذاب دې.

④ ﴿وَلَنُذِيْقَنَّهُمْ مِّنَ الْعَذَابِ الْاَدْنٰى دُوْنَ الْعَذَابِ الْاَكْبَرِ﴾

عذاب اكبر يعنى دَ آخرت دَ لوئى عذاب نه مخكښې په دنياكښې وړوكې عذاب مراد

دې په دې کښې دَ عالم برزخ عذاب (چه دَ لوئې عذاب په مقابله کښې کم دې) هم دَ آیت په مصداق کښې راتلې شی.

⑤ جلال الدین سیوطی رحمه الله په عذاب قبر باندې اجماع نقل کړې ده.

⑥ دَ مذکوره باب ټول احادیث په اثبات عذاب قبر باندې دال دی دَ کوم نه چه انکار نه شی کیدې. ځکه چه که چرې په دې کښې لفظی تواتر نه وی نومعنوی تواتر خو یقیناً موجود دې. چنانچه حافظ ابن حجر رحمه الله دَعذاب قبر په اثبات باندې ۳۵روایات نقل کړی دی. او جلال الدین سیوطی رحمه الله ۷۰ روایات نقل کړی دی. امام بخاری رحمه الله شپږ روایات جمع کړی دی په مجموعی توګه دا ۱۱۱ روایات جوړیږی.

**د عذاب قبر په ثبوت باندې اعتراضات:**

**په یو وخت کښې ګڼرو مړو ته په عذاب ورکولو اشکال:** په یو وخت کښې په لاکهونو انسانان خښیږی نو فرښتې ټولو ته عذاب څنګه ورکوی؟

**د اشکال دوه جوابونه:** ① منکر نکیر دَ یو څو فرښتو نوم نه دې بلکه دا دَ یومحکمې او نوع نوم دې. دَدوی لاندې بې شمیره فرښتې دی چه دا کار سرته رسوي لکه په روح قبض کولو باندې ډیرې فرښتې مقرر دی. دادَ عذاب قبر ابتدائی مباحث وو. وړاندې دَ سماع موتٰی یعنی دَ مړو دَ اوریدو مسئله مختصر راځی.

② هلته په رسیدو به درته معلومه شی چه څنګه عذاب ورکوی.

**د عذاب قبر په عدم مشاهده باندې اشکال:** مونږ دا عذاب نه دې لیدلې که چرې لیدلې مووې نومنلې به مو وي بغیردَ کتو مونږ نه منو؟

**د اشکال جواب:** کوم څیز چه تاسو نه دې لیدلې نو آیا دَهغې نه به انکارکوئی؟ حالانکه الله تعالی خبر ورکړې دي، دَ الله تعالی رسول ﷺ خبر ورکړې دې. اجماع امت بیان کړې دی بیا به هم انکارکوئی. نوبیا جنات تاسو نه دی لیدلی دَ هغې نه هم انکار اوکړئی دې دَپاره چه کافران شئی ځکه چه په قرآن پاك کښې دَدې ثبوت دې. فرښتې تاسو نه دی لیدلی دَهغوی دَ وجود منکر کافردې. دَ انسان په بدن کښې اوسپنه، چونا تاسو نه ده لیدلې نوآیا دَهغې نه به انکار کوئی؟ دَ ماچس په تلی کښې مساله ده په هغې کښې اور دې تاسو کله لیدلې دې؟ په پیئو او ماستوکښې کُچ دی تاسو کله لیدلی دی نو انکاربه کوئی؟ دَ بې هوشه سړی دَ احوالو تاسو ته څه پته ده نو تاسو به دَ هغې نه انکارکوئی چه ښکاری نه. نودا خو یو بې کاره قاعده ده کومه چه سرسید احمدخان ایجاد کړې ده اوخلق ئې دهریه کړل.

**د ثقلینو د عذاب قبر په نه پوهیدو اشکال:** نور ساه والا ستاسو دَ وینا مطابق په عذاب قبر باندې پوهیږی نو انسان او جنات ولې نه پوهیږی؟ که چرې واقعی عذاب وي نو انسان او جناتو به هم احساس کولو؟

**د اشکال جواب:** انسانان او جنات چونکه په ایمان بالغیب باندې مکلف دی په دې وجه دَهغوی نه داعذاب پټ ساتلې شوې دې. که هغوی ته ښکاره شوې وې نو ایمان بالغیب به چرته پاتې وې. بل دَ ویرې دَ وجې نه به ئې خپل مړی خښول پریخودې وې.

**دعذاب قبر په کیفیاتو اشکال:** ګورئی دَعذابِ قبر چه کوم کیفیات په احادیثوکښې راغلی دی چه ماران او اژدهاګانې تلک ورکوی لړم تلک ورکوی فرښتې ګرځونه او سټکونه وهی مړې کینولې شی هغه چغې صوری وهی اومونږ هیڅ هم نه اورو. دَمړی په سینه باندې سامان کیږده هغه به هم هغه شان مودو پورې پروت وی. هغه سره په قبرکښې تیپ کیږده هیڅ پته نه لګی نودا څنګه عذاب کیږی؟

**د اشکال جواب:** دَ برزخ معامله دَ خوب په شان ده دا په دنیا باندې نه شی قیاس کولې. بل دَدې عذاب اولاً او اصلاً تعلق دروح سره دې. بدن دَ دې تابع دې. درد اوتکلیف خو بدن محسوسوی لیکن په اصل کښې عذاب روح سره متعلق دې نو په بدن باندې مونږ اثرات نه محسوسوو. کله کله په بدن باندې اثرات ظاهریږی مګر په عام توګه باندې داسې نه کیږی.لهذا دَ دنیا نه دَ برزخ مشاهده نه شی کیدې نودَ انکار هیڅ وجه نشته دې.

**د مړو د بدن د ځناورو خوراک جوړیدو باندې اعتراض:** دَمړو دَ بدن اجزاء کله دَ ځناورو اوکله دَمرغو خوراك جوړیږی، کله په سمندرکښې دَ کبانو خوراك جوړیږی. کله سوزیدو سره ایره شی نوعذابِ قبر به څنګه کیږی؟

**د اشکال جواب:** مونږ اول وئیلی وو چه دَ قبر نه مراد عالم برزخ دې صرف داخاص کنده نه ده بلکه دَدغه قبر نه شروع کیدوسره دَ قیامت پورې تول عالم برزخ دې چرته چه دَ هریو ساه والا واپس کیدل او رسیدل ضروری دی که هغه په هر یو صورت کښې وی. لهذا که مړې چرته هم وی دَ برزخی عذاب دَپاره به دَهغه دَ څه نه څه جزء موجود وی مګر الله تعالی ته به معلومه وی. لکه چه دَ یو سړی دَ تحریق جسد واقعه په مشکوة شریف کښې راتلونکې ده چه هواګانو او سمندر دَهغه دَ بدن اجزاء یوځائی کړل بیا حساب اوشو. هغه وصیت کړې وو چه ما دَ مرګ نه پس اوسوزوئی او ایرې په سمندر او صحرا کښې والوزوئی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۳۵] د رب باره کښې په قبرکې سوال

۳۵-(۱) [۱] عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: [۲] «الْمُسْلِمُ إِذَا سُئِلَ فِي الْقَبْرِ؟ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللّٰهِ، [۳] فَذٰلِكَ قوله: {يُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ} [إبراهيم: ۲۷].» وَفِي رِوَايَةٍ عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: «[۴] {يُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ} [إبراهيم: ۲۷] نَزَلَتْ فِي عَذَابِ الْقَبْرِ، [۵] يُقَالُ لَهُ: مَنْ رَبُّكَ؟ فَيَقُولُ: رَبِّيَ اللّٰهُ، وَنَبِيِّي مُحَمَّدٌ)». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت براء بن عازب ﷺ روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم وخت چې د مسلمان څخه په قبرکې سوال کيږي نو هغه ګواهي ورکوي چې د الله تعالی ﷻ څخه علاوه بل څوك د عبادت لايق نشته او بې شکه محمد ﷺ د الله ﷻ رسول دي [۳] او د دې ارشاد رباني هم دا مطلب دي: يُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ (القرآن) الله تعالی ﷻ هغه خلق چې ايمان راوړي د دنيا په ژوند او په آخرت کښې مضبوطه اومحکم طريقې سره ثابت اوقائم لري او په يو روايت کښې دي چې حضور ﷺ وفرمايل [۴] چې دا آيت: يُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ، د عذاب قبر په بيان کښې نازل شويدي [۵] نو په قبر کښې د مړي څخه، سوال کيږي چې ستارب څوك دي؟ هغه ورته وايي چې زما رب الله ﷻ دي او زما نبي محمد ﷺ دي. بخاري و مسلم

**حل اللغات:** ① يُثَبِّتُ: ثابت قدم او قائم ساتی، ② الْقَوْلِ الثَّابِتِ: محکم او مضبوطه خبره (ددې نه په قبرکښې د سوال اوجواب په وخت کښې استقامت او ثابت قدمی مراد ده).

**د راوي مختصر تعارف:** دراوی حديث حضرت براء بن عازب ﷺ نوم براء وو کنيت ئې ابوعماره وو د پلار نوم ئې عازب وو اود حارثه خاندان سره ئې تعلق ساتلود دوی ماما ابوبرده بن انبار ﷺ په بدری کښې حاضر شوې وو او په عقبه کښې ئې ايمان راوړې وو د هغوی په برکت سره د هغوی په خاندان کښې اسلام خور شو مسلمان شو او په مدنيه کښې ئې د مصعب بن عمير او ابن ام مکتوم نه قرآن زده کول شروع کړلو په جنګ بدر کښې حضرت براء حاضر شوې وو خو نبی کريم ﷺ د کم عمرئ په وجه واپس کړې وو (۲)

**په غزاګانو کښې شرکت:** په احد، خندق، حديبيه، خيبر او حنين کښې ئې شرکت کړې وو د

---

[۱]) اخرجه البخاری کتاب الجنائز./باب ما جاء في عذاب القبر(رقم:۱۳۶۹) ومسلم فی کتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب عرض مقعد الميت من الجنة أو النار عليه. وإثبات عذاب القبر والتعوذ منه(رقم-۷۳ - (۲۸۷۱) وابوداود کتاب السنة /باب فی المسألة فی القبر وعذاب القبر(رقم-۴۷۵۰) والنسائی کتاب الجنائز / باب عذاب القبر(رقم-۲۰۵۷) والترمذی کتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب: ومن سورة إبراهيم عليه السلام (رقم-۳۱۲۰)

طائف د محاصرې او په حجة الوداع کښې هم شریک وو. دوی ټول په پنځلس غزاګانو کښې شرکت کړې وو
**صفات حمیده:** په دوی کښې عاجزی او تواضع ډیره زیاته وه خپل ځان به ئې ډیر معمولی ګڼړلو. په کوفه کښې ئې یو کور جوړ کړې وو او هم په هغې کښې به اوسیدلو
**روایات:** د احادیثو په نقل کولو کښې به ئې ډیر احتیاط کولو د دوی د مرویاتو شمار ۳۰۵ دې په دې کښې ۳۲ احادیث متفق علیه دی
**په احادیثو کښې احتیاط:** د احادیثو په نقل کولو کښې د احتیاط په باره کښې فرمائی ((ما کل الحدیث سمعناه من رسول الله ﷺ کان یحدثنا اصحابنا عنه کانت شغلنا عنه رعیة الابل)) یعنی ځومره احادیث چه زه بیانوم ضروری نه ده چه ټول به ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلی وی ما به اوښان ځرول ددې وجې هر وخت د نبی کریم ﷺ سره حاضریدې نشوم[1]

**تسهیلات:**

**قوله: المُسْلِمُ إِذَا سُئِلَ فِي القَبْرِ؟:**

**د هر مؤمن سړی اوښځې څخه په قبر کښې تپوس کول:** مسلمان ښځه وی او که سړې قبر کښې د منکر نکیر په سوال جواب باندې د شهادتینو اقرار کوی. او منافق وائی چې [لا أدری أقول ما یقول الناس] او کافر وائی چې [هاه هاه لاأدری].
**د کافر څخه په قبر کښې تپوس کولو کښې دوه اقوال:**
① د علامه سیوطی رحمه الله، ابن قیم رحمه الله او ابن عبد البر رحمه الله د کلام څخه معلومیږی چې دا سوال د منافق او مؤمن څخه په قبر کښې کیږی. د خالص کافر څخه نه کیږی.
ځکه چې دا سوال د امتیاز دپاره کیږی او کافر خو په کفر کښې ممتاز وی. هلته دَ امتیاز ضرورت نشته دې. او کوم ځائې کښې چې په احادیثو کښې راغلی دی چې کافر څخه په قبر کښې سوال کیږی نو هلته ترې منافق مراد دې.
② شاه انور شاه کشمیری رحمه الله او نورو محققینو وئیلی دی چې دا سوال به د ټولو څخه کیږی. او کافر ملزم ګرزولو دپاره به دا سوال کیږی. او دې به ذلیل شی او وائی به [هاه هاه لاأدری]
**اشکال:** په قیامت کښې به منافقان رنګ په رنګ بهانې جوړوی او انکار به کوی،

[1] مسند احمد (۲۸۸\۱٤)_(۲) البخاری فی التفسیر باب قوله ثانی اثنین إذ هما فی الغار رقم، ۳۶۲۹. ومسلم فی فضائل الصحابة باب مناقب ابی بکر الصدیق رقم، ۴۳۸۹، رقم، ۳۰۲۱. وحم، مسند العشرة المبشرة بالجنة رقم، ۱۱). (۳)سیره مصطفی تالیف مولانا محمد ادریس کاندهلوی ج۲ص ۳۶۷).

حالانکه هغه معامله به د الله تعالی په وړاندې وی. نو په قبر او په برزخ کښې ولې داشان صفائی سره جواب ورکوی او اقرار کوی؟

**داشکال جواب:** چونکه په قبر کښې معامله فرښتو سره وی. نو تکوینی طور دلته په رښتیا وئیلو باندې مجبوریږی. کافران او منافقان به دروغ نشی وئیلې دې دپاره چې فرښتو باندې معامله پټه او مبهم نه وی او د حشر په میدان کښې د الله تعالی په وړاندې که دروغ وائی نو الله ﷻ خو علام الغیوب دې، اعمال نامه موجوده ده، د بدن اندامونه هم د ګواهی ورکولو د پاره حاضر دی، په دې وجه هلته میدان کلاؤ ایښودې شوې دې.

**قوله:** بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ:

**د قول ثابت څخه مراد:** ددې څخه مراد کلمۂ توحید او اقرار د شهادتینو دې. دنیا کښې هم الله ﷻ ددې په ذریعه مسلمان ته استقامت بخښلې دې او په آخرت کښې هم د دې په وجه قوت او طاقت او استقامت او رحمت ئې عطاء کوی.

**قوله:** نَزَلَتْ فِي عَذَابِ الْقَبْرِ:

**اشکال:** په دې آیت کښې اهل ایمان دپاره د عذاب څه ذکر نشته دې. بیا دا ئې څنګه اووئیل چې د ا آیت د قبر عذاب باره کښې نازل شوې دې؟

**داشکال جواب:** په دې آیت مبارك کښې د یثبت ذکر دې. او تثبیت فرع ده د تغلیب نو مطلب دا شو چې کله مسلمان د قبر عذاب سره مخامخ شی نو الله ﷻ ورله قول ثابت سره ثبات ورکوی.

### [۱۳۶] د سماع موتی مسئله

۱۳۶-( )[۲] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ([۲] «إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا وُضِعَ فِي قَبْرِهِ وَتَوَلَّى عَنْهُ أَصْحَابُهُ وَإِنَّهُ لَيَسْمَعُ قَرْعَ نِعَالِهِمْ [۳] أَتَاهُ مَلَكَانِ فَيُقْعِدَانِهِ، فَيَقُولَانِ: مَا كُنْتَ تَقُولُ فِي هَذَا الرَّجُلِ؟ لِمُحَمَّدٍ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۴] فَأَمَّا الْمُؤْمِنُ فَيَقُولُ: أَشْهَدُ أَنَّهُ عَبْدُ اللَّهِ وَرَسُولُهُ فَيُقَالُ لَهُ: انْظُرْ إِلَى مَقْعَدِكَ مِنَ النَّارِ، قَدْ أَبْدَلَكَ اللَّهُ بِهِ مَقْعَدًا مِنَ الْجَنَّةِ، فَيَرَاهُمَا جَمِيعًا. [۵] وَأَمَّا الْمُنَافِقُ وَالْكَافِرُ فَيُقَالُ لَهُ: مَا كُنْتَ تَقُولُ فِي هَذَا الرَّجُلِ؟ فَيَقُولُ: لَا أَدْرِي كُنْتُ أَقُولُ مَا يَقُولُ النَّاسُ فَيُقَالُ لَا دَرَيْتَ وَلَا تَلَيْتَ وَيُضْرَبُ بِمَطَارِقَ مِنْ حَدِيدٍ ضَرْبَةً، فَيَصِيحُ صَيْحَةً يَسْمَعُهَا مَنْ يَلِيهِ غَيْرَ الثَّقَلَيْنِ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ، وَلَفْظُهُ لِلْبُخَارِيِّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضی الله عنه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] چې کله بنده په قبر کښې کیښودل شی او د هغه خپل خپلوان واپس راځي نو هغه مړي د هغوئ د

---

[۱] ) اخرجه البخاری کتاب الجنائز، /باب: المیت یسمع خفق النعال(رقم-۱۳۳۸) ومسلم فی کتاب الجنة وصفة نعیمها واهلها/باب عرض مقعد المیت من الجنة أو النار علیه، وإثبات عذاب القبر والتعوذ منه(رقم-۷۰ - (۲۸۷۰) وابوداود باب فی المسألة فی القبر وعذاب القبر(رقم-۴۷۵۲) والنسائی کتاب الجنائز / باب مسألة الکافر (رقم-۲۰۵۱)

چيلو آواز اوري ۞ او هغه ته (په قبر کي) دوه فرشتي راځي او هغه کينوي او پوښتنه ځني کوي چې ته د دې سړي محمد ﷺ په باره کښې څه وايې؟ ۞ د دې په جواب کښې بنده مؤمن وايي چې زه د دې خبرې ګواهي ورکم چې دي (محمد ﷺ) بې شکه د الله ﷻ بنده او رسول دي، بيا هغه بنده ته اوويل شي چې ته خپل د استوګنې ځاي په دوزخ کښې ووينه چې هغه الله پاك بدل کړي دي او د هغه په بدل کښې تاته په جنت کښې ځاي درکړي دي، نو هغه بنده دواړه مقامات (جنت او دوزخ) ويني ۞ او کوم مړي چې منافق يا کافر وي د هغه څخه هم دا سوال کيږي چې د دې سړي (يعني محمد ﷺ) په باره کښې ته څه وايې؟ هغه به د دې په جواب کښې وايي زه هيڅ نه پوهيږم څه چې به نورو خلقو ويل هغه به ما ويل، نو هغه ته اوويل شي چې نه تا د عقل سره وپيژندي او نه تا قرآن شريف اووئيلو؟ د دې سره هغه د اوسپني په ګرزونو باندې ووهل شي چې د هغه د چغو چغارو آواز ماسوا د پيريانو او انسانانو څخه د ته نزدې ټول ځيزونه اوري. بخاري، مسلم لفظونه د بخاري دي

**حل اللغات:** ① قَرْعَ: أَيْ صَوْتَ دَقِّهَا: د چيلو آواز، کشار، ② نِعَالِهِمْ: د نَعْل جمع ده، پيزار ته وائي ③ مَقْعَدِكَ: د اوسيدو ځائي، ④ أَبْدَلَكَ: د ابدال نه، باب افعال نه د ماضي صيغه ده. بدل کښې ئې درکړې دې تالره، بدل کړې ئې دې تالره، ⑤ لَا أَدْرِي: زه نه پوهيدم، ماته علم نه وو ⑥ لَادَرَيْتَ: أَيْ: لَاعَلِمْتَ: نه تا ځان پوهه کړو چه کوم حق او صحيح دى. ⑦ وَلَاتَلَيْتَ: أَيْ: لَاتَبِعْتَ النَّاجِيْنَ: اونه دې د نجات موندونکو او پوهه خلقو تابعداري اوکړه ⑧ بِمَطَارِقَ: په بل ځائې کښې بِمِطْرَقَةٍ لفظ راغلې دې، دا د وهلو يوه آله ده چه ګرُز ورته وائي ⑨ فَيَصِيحُ: په اوچت آواز سره چغې وهي او ژاړي، ⑩ الثَّقَلَيْنِ: أَيْ: الْجِنُّ وَالْإِنْسُ: ددې نه مراد انسانان او جنات دى، دوى ته ثقلين ځکه وائي چه دوى په زمکه بار (بوج) کړې شوى دى.

**تسهيلات:**

**قوله: وَتَوَلَّى عَنْهُ أَصْحَابُهُ:**

**وتولى د ليدو وجه:** مړۀ دفن کولو نه پس عادتًا خلق واپس ځي، په دې وجه ئې وتولى اوفرمائيلو چې که لاړ نشئ نو بيا هم مړۀ د پيزار کشارې آورى.

**قوله: أَتَاهُ مَلَكَانِ:**

**د فرشتو سمدستي راتلل:** حضرت رشيد احمد ګنګوهي رحمه الله دلته د أتاه ملكان عجيبه شان مفهوم بيان کړې دې چې دا سرعت اتيان ملك طرفته اشاره ده. [انه ليسمع قرع نعالهم أتاه ملكان] يعني وخت دومره نزدې وى چې مرده لا د پيزار آواز آورى چې په دې کښې فرښتې سوال جواب دپاره حاضرې شى.

**قوله: مَاكُنْتَ تَقُولُ فِي هَذَا الرَّجُلِ:**

**د بعضې رونړو غلط استدلال:** په دې جمله کښې دَ نبی کریم ﷺ طرفته اشاره ده. او اشاره حاضر او محسوس دپاره وی. لهذا د فرښتو سوال په قبر کښې په یو وخت کښې په لکهونو انسانانو څخه وی.او نبی کریم ﷺ هلته هر قبر کښې حاضریږی. هر ځائې کښې حاضر او ناظر شو، دا استدلال بریلوی حضرات دَ دې جملې نه کوی او د حاضر ناظر مسئله ثابتوی. ددې استدلال ډیر جوابونه دی:

**داستدلال څلور جوابونه:** ① په قبر کښې د نبی کریم ﷺ شبیه پیش کولې شی او هغوی طرفته اشاره کولې شی.

② دااشاره ذهنیه ده. او صاحب د کافیه د اشاره ذهنیه ذکر کړې دې. هرقل ابوسفیان ته اووئیل چې [ما تقول فی هذا الرجل] دعربو په کلام کښې دا عام محاوره ده، په دې څخه څوك حاضر ناظر نه ګنړی.

③ د مړی اود نبی کریم ﷺ په مینځ کښې حجاب لرې کړې شی او نیغ په نیغه ورته نبی کریم ﷺ خودلې شی او سوال ترې کیږی. حافظ ابن حجر رحمه الله دا جواب رد کړې دې چې دا محض یو احتمال دې. بهر حال شارحینو دا جوابات په دې وجه ورکړې دی چې قرآن پاك د حاضر ناظر دا عقیده صرف الله تعالی دپاره خودلې ده.

④ [هذا الرجل] سره څه اضافی تفصیل هم دې یعنی [الذي بعث فيكم] یعنی کوم کس چې تاسو کښې رسول جوړ کړې شوې وو دهغه باره کښې ته څه وائې؟ روستو دا لفظ صریح طور سره په حدیث پاك کښې راځی.

**قوله: انْظُرْ إِلَى مَقْعَدِكَ مِنَ النَّارِ:**

**دهر کس دپاره جنت اوجهنم کښې ځائې:** مفسرینو لیکلی دی چې هر مؤمن او کافر دپاره په جنت دوزخ دواړو ځایونو کښې یو یو سیټ تیار دې. که څوك جهنم ته لاړل نو جنت والا سیټ به خالی شی او چاته به په میراث کښې ورکولې کیږی. او که جنت ته لاړو نو دوزخ والا سیټ به د بل چا دپاره میراث شی. هر انسان او هر مکلف دپاره یو سیټ جنت کښې او یو په جهنم کښې وی. [اشعة اللمعات: ۱/۱۲۴]

**قوله: لَا دَرَيْتَ وَلَا تَلَيْتَ:**

**د مذکوره الفاظو لغوی تحقیق:** دَ لغت اوقیاس مطابق تلوت لفظ راتلل پکار وو مګر دَ دریت دَ ګاونډ او دَدې دَ اثر دَ وجې نه تلیت راوړلې شو لکه چه دَعشایا دَ وجې نه غدایا راوړلې شی. اودَ خزایا په وزن باندې ندامی راوړلې شی لکه چه دَ وفد عبدالقیس په حدیث کښې تشریح تیره شوې ده.

قوله: فَيَصِيحُ صَيْحَةً يَسْمَعُهَا مَنْ يَلِيهِ غَيْرَ الثَّقَلَيْنِ:

**د ثقلينو په عدم سماع كښې دوه وجوهات:** ① په دې عالم كائنات باندې دوه ثقيل مخلوقات قائم دی. یو انسان او بل جنات. دوئ ته ثقلين اووئيلې شو. كه چرې دَ قبر دا هنگامه ئې واورېده نودَ دهشت دَ وجې نه به يا مړه شي يا به كور او بال بچ پرېږدی او صحراگانو كښې به ورك شی او يا به مړی خنبول پرېږدی.

② د مړو چغې او فرياد انسانان او جنات نه شي آورېدلې. كه دوئ دا واورې نو ايمان بالغيب به ختم شي. حالانكه دا خلق دايمان بالغيب مكلف دی.

**د سماع الموتى په مسئله كښې (۲) مذاهب:**

① حضرت ابن عمر رضي الله عنه او نورحضرات د سماع الموتى قائلين دی.

ابن ملك رحمه الله وئيلی دی چه مړې دَ كړت كړت آواز اوری او په دې كښې دَ دې خبرې دليل دې چه په قبر كښې مړې ژوندې دې گنی دَ احساس نه بغيرد حيات محال دې. بعضو وئيلی دی چه روح واپس راگرځولې شی اومړې ژوندې كولې شی.

② حضرت عائشه رضي الله عنها او نورحضرات دَعدم سماع قائلين دی.

**داول فريق دلائل:** ① دَحضرت انس رضي الله عنه حديث د دوی مستدل دې د كوم الفاظ چې دا دی. عَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: («إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا وُضِعَ فِي قَبْرِهِ وَتَوَلَّى عَنْهُ أَصْحَابُهُ وَإِنَّهُ لَيَسْمَعُ قَرْعَ نِعَالِهِمْ»[1])

② دَ قليب بدر واقعه او تفصيلی حديث دې په كوم كښې چه دا الفاظ دی.«وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ مَا أَنْتُمْ بِأَسْمَعَ لِمَا أَقُولُ مِنْهُمْ»[2])

③ مړو ته په قبرونوكښې سلام كول، ابن عبدالبر رحمه الله السلام عليكم يا أهل القبور والا حديث ته صحيح وئيلې دې.

④ طبرانی يو حديث نقل كړې دې چه مړې څوك پيژنی هغه دَ لامبولو په وخت دغه لامبونكې پيژنی. علامه ابن كثير رحمه الله داقسم احاديث په خپل تفسير كښې راجمع كړی دی دَ كومو چه يو اوږد فهرست دې.

⑤ علامه تفتازانی رحمه الله په عالم برزخ كښې دَ مړو په علم باندې اجماع نقل كړې ده دا

[1]) اخرجه البخاری كتاب الجنائز،/باب: الميت يسمع خفق النعال(رقم-۱۳۳۸) ومسلم فی كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب عرض مقعد الميت من الجنة أو النار عليه. وإثبات عذاب القبر والتعوذ منه(رقم-۷۰ - (۲۸۷۰) وابوداود باب في المسألة فی القبر وعذاب القبر(رقم-۴۷۵۲) والنسائی كتاب الجنائز / باب مسألة الكافر (رقم-۲۰۵۱)

[2]) اخرجه البخاری فی كتاب المغازی/باب قتل أبی جهل (رقم-۳۹۷۶) ومسلم فی كتاب الجنّة وصفة نعيمها وأهلها/باب عرض مقعد الميّت من الجنّة أو النّار عليه. وإثبات عذاب القبر والتّعوّذ منه(رقم-۷۸ - (۲۸۷۵) واحمد فی المسند: ۱۴۵/۳

سره دَدې چه محل نظر ده مګر هغوی په شرح مقاصد کښې لیکلې ده.

⑥ ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه دَ احادیثو نه ثابته ده چه مړې پیژنی چه څوك هغه ته کفن اچوی، څوك پرې جنازه کوی، څوك ئی اوچتوی، څوك ئی خښوی.

**د دویم فریق دلائل:** ① ﴿ إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَىٰ وَلَا تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَاءَ إِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِينَ﴾ نه استدلال کړې دي [سورت نحل: ۶۰.]

② ﴿فَإِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَىٰ وَلَا تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَاءَ إِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِينَ﴾ نه استدلال کړې دي [سورة روم: ۵۲]

③ ﴿وَمَا يَسْتَوِي الْأَحْيَاءُ وَلَا الْأَمْوَاتُ ۚ إِنَّ اللَّهَ يُسْمِعُ مَن يَشَاءُ ۖ وَمَا أَنتَ بِمُسْمِعٍ مَّن فِي الْقُبُورِ﴾ نه استدلال کړې دي [سورت فاطر: ۲۲.]

④ په عدم سماع اموات باندې دَ امام ابوحنیفه رحمه الله دطرف نه دَ سماع موتی نه انکار یا دتوقف دَ قول نه استدلال کړې دي.

⑤ دَ فقهې یوه مسئله ده چه چا قسم اوخوړلو چه فلانکی سره به خبرې نه کوم هغه دَ مرګ نه پس هغه سره خبرې اوکړې نوحانث کیږی به نه. ځکه چه مړی نه اوری. دا مسئله په مسئله ایمان سره یادولې شی. دَدې نه استدلال کړې شوې دي چه مړی نه اوری. شیخ ابن همام رحمه الله هم دَ عدم سماع دَ اثبات کوشش کړې دي.

**دقائلینِ سماع موتی عدم قائلینوته جوابونه:** ① دَ امام ابوحنیفه رحمه الله طرف ته دَ عدم سماع نسبت صحیح نه دي اوفقهاء احناف مړی سره دَ کلام دَ وجې دَ نه حانث کیدو چه کومه مسئله لیکلې ده هغه دَ قسم او ایمان مسئله ده دکوم مدار چه په عرف باندې دي او په دې سره په عدم سماع باندې استدلال نه شی کولې.

② دَ قرآنی آیاتونو باره کښې دوی فرمائی چه په دې دریواړو آیاتونو کښې نفی د اسماع یعنی دَ اورولو نفی ده چه تاسو ورته اورولې نه شئ دَنفس سماع نفی نه ده چه هغوی اوری نه اوریدل په خپل ځائی البته دَ اورولو نفی شوې ده.

**اشکال:** شبه دا ده چه کله مړی اوری نو بیا دَاسماع او اورولو نفی قرآن کریم ولې اوکړه؟

**داشکال درې جوابونه:** ① هرهغه عمل کوم چه خارق عادت یا مافوق العادة وی الله تعالی دَ هغې نسبت خپل طرف ته کوی اودَ مخلوق نه دَهغې نفی کوی مثلاً یو سړی بل سړې په ګولئی اوویشتلو اوهغه مړ شو نو نسبت دَ ویشتونکی طرف ته کیږی چه هغه اویشتلو او قتل ئی کړو ځکه چه دَعادت مطابق دَ هغې نه سړې اولګیدو مړشو. لیکن دَ بدر په میدان کښې حضورپاك یو موټې خاوره دَ کافرانوطرف ته وراوغورزوله په کوم سره چه دَعادت مطابق مرګ نه شو واقع کیدې مګر دغه خاورې مافوق العادة اثر اوخودلو نو الله تعالی دَ هغې نسبت خپل طرف ته اوفرمائیلو اودَ نبی کریم ﷺ نه ئې نفی

اوفرمائيله او ارشاد ئې اوفرمائيلو: ﴿وَمَا رَمَيْتَ اِذْ رَمَيْتَ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ رَمٰى﴾.
دغه شان دَعادت مطابق مړى ته په قبر کښې په ظاهرى اسبابو اورول نه شى کيدې په دې وجه دَدې اسماع نفى اوکړې شوه.

④ علامه سيوطى رحمه الله دَدې آياتونو په تفسيرکښې فرمائى چه په دې کښې دَ سماع او عدم سماع خبره نشته دې بلکه دا دَعدم انفاع او عدم انفاع نفى ده چه نه د اورونکى په اورولوسره دې کافرانوته فائده ده او نه په اوريدو سره اوس دوى ته فائده کيدې شى؟ ځکه چه هغوى خودَ دارالعمل نه تلى دى. په دې وجه عامو علماؤ تصريح کړې ده چه په دې آياتونوکښې دَ اسماع کومه نفى ده دا تشبيه ده چه په عدم انتفاع کښې داکافران دَ مړو په شان دى چه دا کافران اورى خو مګر فائده نه اوچتوى نو مړى هم اورى مګر فائده نه شى اوچتولې. باقى دَ حضرت عائشه رضي الله عنها په روايت کښې [يعلمون] هم راغلې دې دکوم مطلب چه دا کيدې شى چه دې مړو ته دَ هغه اورولو علم کيږى نو په [يسمعون] او [يعلمون] کښې تعارض راغلو لهذا استدلال تام پاتې نه شو.

⑤ ابن کثير رحمه الله ليکلى دى چه په قرآن کريم کښې ﴿اِنْ تُسْمِعُ اِلَّا مَنْ يُّؤْمِنُ﴾ هم دَ آيت حصه ده نوچه کوم خلق دَعام سماع نفى دَدې آياتونو نه راؤباسى هغوى به دې آيت سره څه کوى ولې هغوى به دا وائى چه کافران نه اورى اومؤمنان په قبرونوکښې اورى؟ داخو به عجيبه خبره وى.

**د عدم سماع موتى د قائلينود سماع موتى قائلينو ته جوابونه:** دې حضراتو دَ قرآن دَدې آياتونو په مقابله کښې احاديث پيش کول مناسب اونه ګنړل په دې وجه هغوى په احاديث ثبوت سماع کښې تاويلونه اوکړل او وئې وئيل چه دَ قليب بدر والا روايت يا خو دَ نبى کريم صلى الله عليه وسلم معجزه وه نودا پيغمبرى خصوصيت وو اويا دَ تبکيت او تذليل دَپاره ئى هغوى راژوندى کړې شو. داخصوصى جزئى واقعه ده په کوم چه نور مواقع نه شى قياس کولې.

④ دَ [قرع نعال] والا روايت باره کښې هغوى دَ ابن منير دَ قول مطابق اووئيل چه په دې کښې ذاذان راوى ضعيف دې يا دَ [قرع نعال] والا روايت دَ سرعت اتيان ملائکه نه کنايه ده اودا يو تشبيهى کلام دې چه دَ خښولو وخت سره خاص دې.

⑤ دغه شان په نورو روايتونو دَ سماع موتى کښې ئى يا تاويل کړې يائى دَهغې تضعيف کړې اومعامله ئى دې وينا کولوسره دَ صفا کولو کوشش کړې چه د سماع موتى په نفى سره به دَ شرک لاره بنده شى. او حضرت تهانوى رحمه الله فرمائيلى دى چرته چه دَ شرک خطره وى نو هلته نفى سماع موتى ضرورى ده. دې حضراتو دا هم وئيلى دى چه اصل عدم

سماع دې چرته چه سماع موتی ثابته ده هغه عارضی ده اصل به په خپل ځائی باندې پاتې وی.

**دعدم سماع موتی د عقیدې په وجه مړی د جماداتوپه زمره کښې شاملول:** دعدم سماع موتی دلائلو ته په کتلوسره یوې طبقې مړی دَ جماداتو دَقبیلې نه اوګرځول او دَ عذاب قبر نه ئې انکاراوکړو چه کله ژوند نشته او اوري نه نو بیا به عذاب څنګه کیږی؟ هم په دې نظریه باندې معتزله او کثیر قسم خلق کلك شو اوهغوی دَعذابِ قبر نه انکاراوکړو. حالانکه عذابِ قبر دَ قرآن اوحدیث نه په قطعی توګه ثابت دې دَدې نه انکار کول ګمراهی ده.

**د سماع موتی د عقیدې په وجه مړو څخه حاجتونه غوښتل:** د مثبتین سماع موتی دغه پورته دلائلو په نتیجه کښې دکمزورې عقیدې یوې طبقې مړو ته خطابات شروع کړل اودَهغوی نه قسم قسم حاجتونه غوښتل شروع کړل اومړی ئې مرجع حوائج اوګرځول. حالانکه دا یوعلمی بحث دې چه په خپل ځائی باندې دې. دَ غیرالله نه استمداد او غائبانه حاجاتو کښې څوك رابلل دَ قرآن اوحدیث په رڼا کښې هسې هم حرام دی. بل دا څه ضروري دی چه څوك اوري نو حاجت به پوره کونکې هم وی؟ په ژوندو خلقو کښې څومره دی چه ښه اوری خو بې وسه دی. دلته په دې طرف چه دَ سماع موتی منکرینو کله دَ قرآن پاك آیاتونو ته اوکتل چه په هغې کښې په ظاهری توګه عدم سماع ده.

**انصافي خبره:** خلاصه دا چه کوم کوم ځائی کښې په احادیث صحیحه کښې دَ سماع موتي ثبوت دې هغه منل پکاردی لکه [سلام عندالقبور] دې اودَ مړی دَ خپـلو وخت دې په دې کښې دَ سماع ثبوت ملاویږی نومنل پکار دی دغه شان قلیبِ بدر کښې سماع ثابته ده نومنل پکاردی. لیکن چرته چه دَ سماع ثبوت نشته هلته نه دی منل پکار لکه چه څوك سلام کوی نو مونږ به وایو اوریدلې مو دې اوچه کله ئې کلام او درخواست کول شروع کړو نو مونږ وایو نه اوروي څکه چه دَ سماع اموات نص غیر معقول المعنی او خلاف القیاس دې نودا په خپله دائره کښې بند پاتې کیدل پکاردی لکه چه دَ اصولو قاعده ده.

حضرت ګنګوهی رحمه الله په خپله رساله لطائف رشیدیه کښې په دې باندې اوږد کلام کړې دې دا رساله په تالیفات رشیدیه کښې شامل ده او تالیفات رشیدیه ص ۲۷۶ باندې دا مسئله ذکر ده.

**د رشید احمد ګنګوهی رحمه الله رائې:** حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی مسئله سماع موتی په قرن اول کښې مختلف پاتې شوې ده دَدې فیصله خو هډو ممکن نه ده لیکن په تقلید دَخپل مجتهد مقلد که یو دَ ترجیح طرف ته میلان اوکړی نو څه بده خبره نه ده الی ان

قال] الحاصل ارجح مذهب دَ عدم سماع دې دَ قواعدو لاندې نو په احادیث دَ سماع کښې تاویل مناسب دې ګنی بل طرف ته هم مذهب قوی دې. (تالیفات رشیدیه ص: ۲۷۶)
که چرې په سماع موتٰی کښې دا طریقه اختیارکړې شی چه فی الجمله سماع موتٰی ثابت ده او فی الجمله نه ده نو په دې سره به په ټولو نصوصو کښې تطبیق اوشی او په اختلاف کښې به نرمی راشی. ګنی په یو ځائی کلکیدو سره دَ بل طرف تذلیل اوتضلیل که چرته شروع شی نودَ علماء حق او سلف صالحین په نیز کیدې شی چه دا طریقه مناسب نه وی.
ننَ صبا اسلام څومره لویو خطرو سره مخ دې مګر اهل حق په خپل مینځ کښې په سماع موتٰی کښې داسې اخته ښکاری لکه چه که چرته په اسلام کښې څه اختلافی مسئله ده نوهغه صرف هم دغه ده او هم په دې باندې جګړې کول فرض دی. حالانکه په یو طرف باندې کلکیدل اودَ بل طرف دَ بزرګانو دَ بې ادبئ قوی خطره ده.

**د مفتی محمد شفیع رحمه الله رائې**:مفتی اعظم پاکستان مفتی محمد شفیع دیوبندی رحمه الله دَ احکام القرآن په نوم باندې دَ قرآن عظیم په عربی ژبه کښې یو تفسیر لیکلې دې چه دَ حکیم الامة حضرت تهانوی رحمه الله فوائد دی اوهم دَهغوی په حکم ئی لیکلې دې. په دې کښې حضرت مفتی صاحب ډیر په تفصیل سره دَسماع موتٰی مسئله بیان کړې ده او اثبات سماع موتٰی ئی راجح ګرځولې دې لیکن یو ځائی کښې لیکی چه دَهغې خلاصه داده چه ما کله دَ طرفین دلائلوته اوکتل نو پریشان شوم هم په دې پریشانئ کښې دَ شپې په خوب کښې یو الله والا ماته اوفرمائیل چه ته ولې دې مسئلې پسې لګیدلې ئی عالم برزخ خو یو مستقل عالم دې. کله چه الله تعالی غواړی نودَ ژوندو کلام مړو ته رسوی اوکله چه نه غواړی نو نه ئی رسوی. حضرت مفتی صاحب دَ دغه خوب نه پس اولیکل چه [فاصبحت منشرحاً صدري] یعنی زه دَ شرح صدر په حالت کښې سحر پاسیدم چه واقعی دَعالم برزخ فیصله دلته دَ عالم دنیا نه نه شی کیدې.
دَدې کلام نه هم داخبره ثابتیږی چه فی الجمله سماع ده او فی الجمله عدم سماع ده. لهذا په یو طرف باندې کلکیدو سره دَ بل طرف تضلیل اوتجهیل مناسب نه دې. اګرچه په مسئله کښې اختلاف شته او اختلاف خو په مړګ کښې هم دې.

**د شیخ الاسلام شبیر احمد عثمانی رحمه الله رائې**:شیخ الاسلام حضرت مولانا شبیر احمدعثمانی رحمه الله دَ سورت روم آیت ۵۲ تفسیر کښې لیکی: چه اوس دَ نصوصو نه دَ کومو خبرو په غیرمعمولی طریقې سره اوریدل ثابت شی نوهم دَ هغه حده پورې مونږ له دَ سماع موتٰی قائل کیدل پکاردی. صرف قیاس کولوسره نورې خبرې دَ سماع لاندې نه شو راوستلې بهرحال په آیت کښې دَ اسماع نفی سره مطلقًا دَ سماع نفی نه شی کیدې. والله اعلم. (تفسیر عثمانی ص: ۵۴۵) دَ حضرت مولانا شبیر احمدعثمانی رحمه الله تحقیق او

فيصله هم دغه ده چه في الجمله اثبات سماع منل پکار دی او في الجمله عدم سماع منل پکاردی. په دې سره به په ټولو نصوصو کښې تطبيق راشي

**د مولانا غلام الله خان رائې:** په دې مسئله کښې شيخ القرآن حضرت مولانا غلام الله خان صاحب رحمه الله څنګه دَ اعتدال لار اختيارکړې ده په جواهر القرآن کښې فرمائي

دَ سماع موتی مسئله دَ صحابه کرامو رضي الله عنهم دَ دور نه مختلف فيه راروانه ده. دا مسئله دَاعتقادات ضروريه نه نه ده دکوم په نفي يا اثبات باندې چه دَ کفر او اسلام مدار دې بلکه دا يوعلمي اوتحقيقي بحث دې په کوم کښې چه بحث او تمحيص اودَ نظر اوتحقيق ګنجائش دې. دامت محمديه دعلماو په مينځ کښې په دې مسئله کښې هميشه دوه رائې را رواني دي دبعضو علماو رائې دا ده چه مړی اوری خو نورو علماؤ دَ خپل تحقيق په بنياد باندې دَ سماع موتی نفي کړې ده.

دَ علماؤ دې دواړو ډلوسره دلائل دی په کوم باندې چه هغوی دَ خپلو خپلو رائيو اوتحقيق بنياد اودرولي دې. کوم علماء چه دَ سماع موتی نفي کوی دَ هغوی استدلال دَ ظواهر قرآن او احاديث صحيحه نه دې خو قائلين سماع هم دَ صحيح احاديثو نه استدلال کوی. (جواهر القرآن ج٢ ص٩٠٢)

## [١٢٧] مړی ته خپل ځائی (جنت يا دوزخ) ښکاری

١٢٧ — (١) [٣] [١] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ: رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ([٢] «إِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا مَاتَ عُرِضَ عَلَيْهِ مَقْعَدُهُ بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ، [٣] إِنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَمِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ، [٤] وَإِنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَمِنْ أَهْلِ النَّارِ، [٥] فَيُقَالُ: هَذَا مَقْعَدُكَ حَتَّى يَبْعَثَكَ اللَّهُ إِلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او عبد الله بن عمر رضي الله عنهما روايت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل [٢] چې کله په تاسو کښې څوك مړ شی نو په قبر کښې دَ ته سَحر او مابنام د هغه د اوسيدو ځاي د هغه مخې ته راوړل کيږي [٣] که چېرته هغه جنتي وي نو په جنت کښې د هغه د اوسيدو ځاي ورته ونبودل شی [٤] او که دوزخي وي نو په دوزخ کښې د هغه د اوسيدو ځاي ورته ونبول شی [٥] او هغه ته اوويل شی چې دا ستا د اوسيدو ځاي دي د دې انتظار کوه تر دې چې دقيامت په ورځ الله تعالی جل جلاله تا پورته کړي او هلته دې ورسوي. بخاري و مسلم

**حل اللغات:** ① عُرِضَ : أَيْ: أُظْهِرَ: پيش کولې شی ورته يعنی ورته ښکاره کولې شی، ② الْغَدَاةِ: سحر، صبائی. ③ الْعَشِيِّ: مابنام.

[١] ) اخرجه البخاری کتاب الجنائز /باب الميت يعرض عليه مقعده بالغداة والعشی(رقم-١٣٧٩) ومسلم کتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب عرض مقعد الميت من الجنة أو النار عليه. وإثبات عذاب القبر والتعوذ منه(رقم-٦٥ - (٢٨٦٦) والنسائی کتاب الجنائز / باب وضع الجريدة علی القبر(رقم-٢٠٧٠) والترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله عليه وسلم / باب ما جاء فی عذاب القبر (رقم-١٠٧٢) وابن ماجة کتاب الزهد / باب ذکر القبر والبلی (رقم-٤٢٧٠) ومالک کتاب الجنائز /باب جامع الجنائز(رقم-٤٧)اخرجه احمد فی المسند:١٦/٢

## [۱۲۸] د عذاب قبر حق کیدل

۱۳۸-()[۳] [۱] «وَعَنْ عَائِشَةَ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّ يَهُودِيَّةً دَخَلَتْ عَلَيْهَا، فَذَكَرَتْ عَذَابَ الْقَبْرِ [۲] فَقَالَتْ لَهَا: أَعَاذَكِ اللَّهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ [۳] فَسَأَلَتْ عَائِشَةُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ عَذَابِ الْقَبْرِ. [۴] فَقَالَ: (نَعَمْ، عَذَابُ الْقَبْرِ حَقٌّ). [۵] قَالَتْ عَائِشَةُ: فَمَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بَعْدُ صَلَّى صَلَاةً إِلَّا تَعَوَّذَ بِاللَّهِ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عائشه رضی الله عنها روایت کوي چې یو یهودي ښځه هغې ته راغله او هغې د قبر د عذاب ذکر وکړو [۲] او بیا هغې وحضرت عایشي رضی الله عنها ته اوویل (اي عایشي رضی الله عنها) الله تعالی جل جلاله دي تا د قبر د عذاب څخه محفوظه کړي، [۳] حضرت عایشي رضی الله عنها د رسول الله ﷺ څخه د قبر د عذاب حال وپښتي، [۴] رسول الله ﷺ ورته وفرمایل هو د قبر عذاب حق دي، [۵] حضرت عائشه رضی الله عنها فرمایي چې د دې واقعې څخه وروسته ما هیڅ کله رسول الله ﷺ نه دي لیدلي چې یو مونځ یې کړي وي او د قبر د عذاب څخه یې پناه نه وي غوښتي. بخاري و مسلم

**حل اللغات:** ① أَعَاذَكِ: أَيْ: حَفِظَكِ: بچ او محفوظ دې اوساتي تالره.

**تسهیلات:** قوله: فَقَالَ: نَعَمْ:

**د یهودنړې د خُلې د عذاب قبر خبر:** یعنی کله چې یهودنړې ښځې حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها ته اووئیل چې تا دې الله تعالی د قبر د عذاب څخه اوساتی نو په دې باندې حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها د حضور نبی کریم ﷺ څخه تپوس اوکړو نو حضور نبی کریم ﷺ ا وفرمائیل چې آؤ د قبر عذاب حق دې.

**سوال:** اوس سوال دادې چې دې یهودنړې ښځې ته د قبر د عذاب څنګه معلومات شوی وو؟ او حضرت عائشه رضی الله عنها ته څنګه معلومات نه وو؟

**جواب:** ددې جواب دادې چې دې یهودنړې ښځې ته دا علم د تورات څخه اوشو او د تورات تعلیم هم داشان وو. او حضرت عائشه رضی الله عنها ته په دې وجه معلوم نه ووچې اوسه پورې ددې حکم لا د وحی په ذریعه نه وو راغلې. بلکه د مسند احمد او مسلم شریف په یو روایت کښې داشان دی چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل:

(کذب یهود لا عذاب دون یوم القیامة وإنما تفتن الیهود). بیا چې کله د وحی په ذریعه نبی کریم ﷺ ته معلوم شو نو نبی کریم ﷺ به تعوذ فرمائیلو. دا تعوذ د امت د تعلیم دپاره وو ګنی نبی کریم ﷺ ته پخپله د عذاب قبر هیڅ خطره نه وه.

---

[۱] اخرجه البخاری کتاب الجنائز /باب المیت یعرض علیه مقعده بالغداة والعشی(رقم-۱۳۷۲) ومسلم فی صحیح (رقم-۱۲۵ - (۵۸۶) والنسائی کتاب الجنائز / باب وضع الجریدة علی القبر(رقم-۲۰۶۷) واحمد فی المسند: ۶/ ۱۷۴

## [۱۲۹] په قبر کښې ازمائش

۱۲۹-(۱) [۵] [۱] «وَعَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ بَيْنَا رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي حَائِطٍ لِبَنِي النَّجَّارِ عَلَى بَغْلَةٍ لَهُ وَنَحْنُ مَعَهُ، إِذْ حَادَتْ بِهِ فَكَادَتْ تُلْقِيهِ. [۲] وَإِذَا أَقْبُرٌ سِتَّةٌ أَوْ خَمْسَةٌ، فَقَالَ: [۳] (مَنْ يَعْرِفُ أَصْحَابَ هَذِهِ الْأَقْبُرِ؟) [۴] قَالَ رَجُلٌ: أَنَا. قَالَ: (فَمَتَى مَاتُوا؟) قَالَ: فِي الشِّرْكِ. [۵] فَقَالَ: (إِنَّ هَذِهِ الْأُمَّةَ تُبْتَلَى فِي قُبُورِهَا، فَلَوْلَا أَنْ لَا تَدَافَنُوا لَدَعَوْتُ اللّٰهَ أَنْ يُسْمِعَكُمْ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ الَّذِي أَسْمَعُ مِنْهُ) [۶] ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ فَقَالَ: (تَعَوَّذُوا بِاللّٰهِ مِنْ عَذَابِ النَّارِ). [۷] قَالُوا: نَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنْ عَذَابِ النَّارِ. [۸] قَالَ: (تَعَوَّذُوا بِاللّٰهِ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ) قَالُوا: نَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ. [۹] فَقَالَ: (تَعَوَّذُوا بِاللّٰهِ مِنَ الْفِتَنِ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ). [۱۰] قَالُوا: نَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنَ الْفِتَنِ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ قَالَ: [۱۱] (تَعَوَّذُوا بِاللّٰهِ مِنْ فِتْنَةِ الدَّجَّالِ). قَالُوا: نَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنْ فِتْنَةِ الدَّجَّالِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت زید بن ثابت ﷜ روایت کوي چې یوه ورځ حضور ﷺ د بني نجار په باغ کې په خپل اس خچر باندې سور وو او مونږ هم ورسره وو چې ناڅاپه خچر وغورځیدي او نږدې وه چې رسول الله ﷺ یې راغورزولي وې [۲] ناڅاپه پنځه شپږ قبرونه په نظر راغلل، حضور ﷺ وفرمایل [۳] د دې قبرو نو والا څوك پیژني؟ [۴] یو سړي اوویل زه یې پیژنم، رسول الله ﷺ وفرمایل دوي کله مړه شوې دي؟ (یعني په حالت د کفر کښې مړه شوې دي او که د ایمان سره د دې دنیا څخه رخصت شوې دي) هغه سړي عرض وکړو چې دوي خو د شرك په حالت کښې مړه شوې دي، [۵] حضور ﷺ وفرمایل دا امت په خپلو قبرونو کښې آزمایل کیږي (یعني په دې خلقو باندې د دوي په قبرونو کښې عذاب شروع دي) که چېرته ماته دا بیره (جلتي) نه وې چې تاسو به مړي ښخول پریږدي نو ما به ضرور الله تعالی ﷻ ته خواست کړي وې چې هغه هم تاسو ته د عذاب قبر آواز واوروي، کوم چې زه آورم، [۶] د دې څخه وروسته رسول الله ﷺ زمونږ طرفته متوجه شو او وې فرمایل د اور د عذاب څخه د الله پناه غواړي، [۷] صحابؤ ﷺ عرض وکړو چې مونږ د اور د عذاب څخه د الله پناه غواړو، [۸] حضور ﷺ وفرمایل چې د قبر د عذاب د الله ﷻ پناه غواړي، صحابؤ عرض وکړو د عذاب قبر څخه مونږ د الله پناه غواړو، [۹] حضور ﷺ وفرمایل د ظاهري او باطني فتنو څخه د الله پناه غواړي، [۱۰] صحابؤ ﷺ عرض اوکړو مونږ د ظاهري او باطني فتنو څخه د الله ﷻ پنا غواړو، [۱۱] بیا حضور ﷺ وفرمایل چې د دجال د فتني څخه د الله ﷻ پنا غواړي، صحابؤ ﷺ عرض اوکړو مونږ د دجال د فتني څخه پنا غواړو. مسلم

---

(۱) اخرجه مسلم في كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب عرض مقعد الميت من الجنة أو النار عليه. وإثبات عذاب القبر والتعوذ منه (رقم-۶۷ - (۲۸۶۷)) و احمد في المسند: ۵/۱۹۰

**حل اللغات:** ① حَائِط: أَيْ: بُسْتَان: باغ. ② بَغْلَة: خچر، قچر. ③ حَادَتْ: أَيْ مَالَتْ وَنَفَرَتْ: کږه شوه یعنی یو طرف ته مائله شوه. ④ فَكَادَتْ: نږدې وه. ⑤ تُلْقِيهِ: أَيْ: تُسْقِطُهُ: چه غورځولې ئې وو نبی ﷺ. ⑥ إِذَا أَقْبَرُ: أَيْ ظَهَرَتْ لَنَا قُبُورٌ: یو څو قبرونه په نظر راغلل. ⑦ تُبْتَلَى: أَيْ: تُمْتَحَنُ: آزمائش او امتحان ئې کولې شی. ⑧ الْفِتَنِ: د فِتْنَة جمع ده، فتنه په لغت کښې امتحان ته وائی خو ددې استعمال په مکر او مصیبت وغیره کښې هم کیږی. ⑨ بَطَنَ: باطنی او پټه فتنه (کومه چه د ایمان او عقیدې د فساد سره متعلق وی).

**د راوي مختصر تعارف:** نوم زید، ابوسعید ابوخارجه اوابو عبدالرحمن کنیت دې. مقری فرضی کاتب الوحی حبر الامت القاب. دَ قبیله خزرج دَ نجار خاندان سره ئی تعلق وو پلار ئی دَ شپږ و کالوپه عمرکښې وفات شوې وو. دَ یولسو کالو په عمر کښې دَ مصعب بن عمیر رضی الله عنه په لاس مسلمان شو اوچه کله حضورپاك ﷺ مدینې ته تشریف راوړو نودې دَ ۱۷ سورتونو حافظ وو. دغه وخت کښې دَ ده عمر۱۳ کاله وو کوم وخت چه دَ بدر معرکه راغله. دَ هغوی خواهش هم دَ شرکت وو ولې دَ کم عمر په وجه واپس کړې شو په غزوه خندق کښې رسول الله ﷺ سره وو. په جنګ یمامه کښې هم شریك شوې وو په دې کښې هغه په غشی هم لګیدلې وو خو بدن ته ئی څه نقصان نه وورسیدلې. رسول الله ﷺ دَ وحی لیکلو کار دَ ډیرو صحابه کرامو رضوان الله علیهم اجمعین نه اخستې وو په دوی کښې دَ حضرت زیدبن ثابت نوم ډیر ممتاز دې.

ډیر زیات هوښیار اوعقل مندوو. ۵ھ کښې حضورپاك ﷺ اوفرمائیل ماله دَ خلقو خطونه راځی چه په عبرانی ژبه کښې وی په یهودیانوباندې تسلی نشته نوهغوی په ۱۵ ورځوکښې عبرانی او سریانی ژبې زده کړې. ([1])

فقه کښې هغه امام وو لکه چه دَ خلفاء راشدین رضی الله عنهم او امیر معاویه رضی الله عنه په زمانه کښې هغه مفتی اعظم وو. وئیلې شی چه کومې فتوې هغه ورکړې دی که هغه راجمع کړې شی نو په مدینه کښې ډیر لوئ جلدونه تیاریدې شی. (اعلام الموقعین)

**وفات:** ۴۵ ھ کښې ۵۵ یا ۵۶ کالو په عمر کښې وفات شو دَهغوی په وفات باندې حضرت ابوهریره رضی الله عنه اوفرمائیل نن حبرالامت لاړو او ابن عباس رضی الله عنه اوفرمائیل چه ګورئی علم داسې ځی.

**مرویات:** دَ هغوی نه دَ روایتونو تعداد ۹۲ دې په دې کښې پنځه متفق علیه دی.

**تسهیلات:**

**قوله:** مِنَ الْفِتَنِ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ:

**دظاهری اوباطنی فتنې په تعریف کښې دوه اقوال:** ① ظاهری فتنه هغه وی چه ظاهری بدن

([1]) جاری (مسنداحمد ۱۸۶/۵)

سره متعلق وي او باطني فتنه هغه وي چه د ايمان او عقيدې فساد سره متعلق وي.
④ ظاهري فتنه هغه ده کومه چه محسوس شي او د کومې اسباب چه هم معلوم وي او باطني فتنه هغه وي کومه چه محسوس نه وي او نه د هغې اسباب ښکاره وي

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۱۲۰] په قبر کښې د مؤمن او منافق حالات

۱۳۰-(۱)[۲] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "۲ «إِذَا قُبِرَ الْمَيِّتُ أَتَاهُ مَلَكَانِ أَسْوَدَانِ أَزْرَقَانِ يُقَالُ: لِأَحَدِهِمَا: الْمُنْكَرُ، وَالْآخَرُ: النَّكِيرُ. ۳ فَيَقُولَانِ: مَا كُنْتَ تَقُولُ فِي هَذَا الرَّجُلِ؟ ۴ فَيَقُولُ: هُوَ عَبْدُ اللّٰهِ وَرَسُولُهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ. ۵ فَيَقُولَانِ: قَدْ كُنَّا نَعْلَمُ أَنَّكَ تَقُولُ هَذَا، ثُمَّ يُفْسَحُ لَهُ فِي قَبْرِهِ سَبْعُونَ ذِرَاعًا فِي سَبْعِينَ، ثُمَّ يُنَوَّرُ لَهُ فِيهِ، ثُمَّ يُقَالُ لَهُ: نَمْ. ۶ فَيَقُولُ: أَرْجِعُ إِلَى أَهْلِي فَأُخْبِرُهُمْ. ۷ فَيَقُولَانِ نَمْ كَنَوْمَةِ الْعَرُوسِ الَّذِي لَا يُوقِظُهُ إِلَّا أَحَبُّ أَهْلِهِ إِلَيْهِ حَتَّى يَبْعَثَهُ اللّٰهُ مِنْ مَضْجَعِهِ ذَلِكَ. ۸ وَإِنْ كَانَ مُنَافِقًا قَالَ: سَمِعْتُ النَّاسَ يَقُولُونَ قَوْلًا فَقُلْتُ مِثْلَهُ، لَا أَدْرِي. ۹ فَيَقُولَانِ: قَدْ كُنَّا نَعْلَمُ أَنَّكَ تَقُولُ ذَلِكَ، فَيُقَالُ لِلْأَرْضِ: الْتَئِمِي عَلَيْهِ، فَتَلْتَئِمُ عَلَيْهِ فَتَخْتَلِفُ أَضْلَاعُهُ، فَلَا يَزَالُ فِيهَا مُعَذَّبًا حَتَّى يَبْعَثَهُ اللّٰهُ مِنْ مَضْجَعِهِ ذَلِكَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهريره ﷺ روايت کوي چې حضور ﷺ وفرمايل ۲ چې کله مړي په قبر کې کېښودل شي نو هغه ته دوه توري شين سترګي فرشتي راشي چې په هغه کښې يوي ته منکر او بلي ته نکير ويېل کيږي، ۳ هغه دواړي د دې مړي څخه پوښتنه کوي. چې تا د دې سړي يعنی محمد ﷺ په باره کې څه ويل؟ ۴ که چېرته هغه سړي مؤمن وي نو هغه به وايي چې هغه د الله ﷻ بنده او د هغه رالېږل شوي رسول دي، او زه ګواهي ادا کوم چې د الله ﷻ څخه ماسوا بل هيڅ څوک د عبادت لايق نشته او بې شکه محمد ﷺ د الله ﷻ بنده او د هغه رسول دي، ۵ په دې اوريدو سره هغه دواړي فرشتي وايي: زمونږ پوهيدو چې ته به يقيناً داسې اووائې، د دې څخه وروسته د هغه د قبر په اوږد والي او پلنوالي کښې اويا اويا ګزه فراخي وکړل شي او دې مړي ته به اوويل شي چې اوده شه. ۶ مړي به وايي چې زه غواړم چې خپل اهل وعيال ته واپس لاړشم چې هغه د خپل حال څخه خبر کړم، فرشتي به هغه ته وايي ته د هغه ناوي په شان اوده شه چې يوازي هغه سړي يې وينولي شي چې د ټولو څخه ورته زيات محبوب وي، يعنی د هر چا وينول به نه لګيږي څکه چې په دې سره وحشت کيږي، البته کله چې يې محبوب را وينوي نو به لګيږي، تر دې چې الله ﷻ هغه د هغه ځاي څخه راپورته کوي. ۷ او که هغه مړي منافق وي نو وايي چې ما خلقو څخه څه اوريدلي وو هغه به ما هم ويل. ليکن زه (د دې په

---

۱) اخرجه الترمذي کتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ باب ما جاء في عذاب القبر (رقم-۱۰۷۲)

حقيقت) نه پوهيږم ⑧(د منافق دا جواب اوريدو سره) فرشتي وايي زمونږ پوهيدو چې ته به يقينًا داسې وايې، د دې څخه وروسته وزمکي ته د يو ځاي کيدو حکم اوسي، نو زمکه به دا مړي داسي سره کنبيکاږي چې د هغه بني پښتي به گسه او گسه پښتي به بني طرفته را ووځي او په دغسې هميشه عذاب کښې به اخته وي تر دي چې الله تعالى ﷻ هغه د هغه ځاي څخه پورته کړي. ترمذي

**حل اللغات:** ① قُبِرَ: أَيْ: دُفِنَ: قبرکښې کيخودې شي يعنی دفن کړې شي. ② أَزْرَقَانِ: شنو سترگو والا، دا صفت په عربو کښې ډير زيات مقبوح دې او هيبت ناك دي. ③ الْمُنْكَرُ وَالنَّكِيرُ: منكر د اسم مفعول صيغه ده دباب افعال نه، يعنی ناآشنا، او نكير د فعيل نه په معنی د مفعول يعنی مكروه او ناخوښه (دا صفات ددوئ د ويرونكی شكل دظاهريدو دپاره دی، كافر او منافق ته هم دا فرښتې راځی). ④ يُفْسَحُ: أَيْ يُوَسَّعُ: فراخيږی، كهلاويږی. ⑤ الْعَرُوسِ: ناوې. ⑥ الْتَئِمِي: أَيِ انْضَمِّي وَاجْتَمِعِي: راجوخته شه، راټوله شه. ⑦ فَتَخْتَلِفُ: أَيْ: تَزُولُ عَنِ الْهَيْئَةِ الْمُسْتَوِيَةِ: نو گډ وډ شی او خپل حالت ئې بدل شی. ⑧ أَضْلَاعُهُ: د ضِلَع جمع ده، وَهُوَ عَظْمُ الْجَنْبِ: د ډډې هډوكی ته وائی.

**تسهيلات:**

**د بعضې جملو وضاحت:**

**قوله:** إِذَا قُبِرَ الْمَيِّتُ: دا ئې د عام عادت مطابق اوفرمائيل گنی قبر څخه مراد برزخ دې، اوس كه څوك دفن شی كه نه فرښتې دا مړې په برزخ كښې بيا مومو‌ی او دهٔ ته راځی.

**قوله:** الْمُنْكَرُ، وَالْآخَرُ: النَّكِيرُ: كافر او منافق ته هم دا فرښتې راځی، او مؤمن دپاره چې كومې راځی په هغوئ كښې د يو نوم بشير دې، د بل نوم نذير دې.

**قوله:** سَبْعُونَ: دا وسعت څخه كنايه دې، تعين ترې مراد نه دې. مدبصر او سبعون كښې تعارض نشته دې. ځكه چې سبعون كښې تكثير او وسعت طرفته اشاره ده كوم چې دمد بصر خلاف نه د ی. سبعون فی سبعين كښې عدد د بل عدد دپاره ظرف دې. او ددې څخه دَځلور وارو طرفونو مقدار مراددې.وسعت د قبرد اشخاصوپه اعتبارسره هم كيږی.

**قوله:** كُنَّا نَعْلَمُ: يعنی مونږ ته د مخونو څخه اندازه شوې وه. يا راته د الهام په طور معلوم شوی وو چې تاسو به داسې جواب وركوئی.

**قوله:** نَمْ: دائی دَ توجو اخوا كولودپاره اووئيل چه زه آرام اوكړه.

### [٣١]په قبر كښې د مؤمن او كافر مختلف حالات

٣١ -( )[٧] ① وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ( ②«يَأْتِيهِ مَلَكَانِ فَيُجْلِسَانِهِ، فَيَقُولَانِ: لَهُ: مَنْ رَبُّكَ؟ فَيَقُولُ: رَبِّيَ اللَّهُ. ③ فَيَقُولَانِ لَهُ: مَا دِينُكَ؟ فَيَقُولُ دِينِيَ الْإِسْلَامُ، ④

[١] اخرجه ابوداود كتاب السنة/باب فی المسألة فی القبر وعذاب القبر(رقم-٤٧٥٣)و احمد فی المسند: ٤/ ٢٨٧

فَيَقُولَانِ: مَا هٰذَا الرَّجُلُ الَّذِي بُعِثَ فِيكُمْ؟ فَيَقُولُ: هُوَ رَسُولُ اللّٰهِ ۵ فَيَقُولَانِ لَهُ: مَا يُدْرِيكَ؟ فَيَقُولُ: قَرَأْتُ كِتَابَ اللّٰهِ فَآمَنْتُ بِهِ وَصَدَّقْتُ ۶ فَذٰلِكَ قوله: {يُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ} [ابراهيم: ٢٧] الْآيَةَ. ۷ قَالَ: فَيُنَادِي مُنَادٍ مِنَ السَّمَاءِ: أَنْ صَدَقَ عَبْدِي فَأَفْرِشُوهُ مِنَ الْجَنَّةِ، وَأَلْبِسُوهُ مِنَ الْجَنَّةِ، وَافْتَحُوا لَهُ بَابًا إِلَى الْجَنَّةِ، فَيُفْتَحُ. قَالَ: فَيَأْتِيهِ مِنْ رَوْحِهَا وَطِيبِهَا، وَيُفْسَحُ لَهُ فِيهَا مَدَّ بَصَرِهِ. ۸ وَأَمَّا الْكَافِرُ فَذَكَرَ مَوْتَهُ، قَالَ: وَيُعَادُ رُوحُهُ فِي جَسَدِهِ وَيَأْتِيهِ مَلَكَانِ، فَيُجْلِسَانِهِ ۹ فَيَقُولَانِ: مَنْ رَبُّكَ؟ فَيَقُولُ: هَاهْ هَاهْ، لَا أَدْرِي! ۱۰ فَيَقُولَانِ لَهُ: مَا دِينُكَ؟ فَيَقُولُ: هَاهْ هَاهْ، لَا أَدْرِي! ۱۱ فَيَقُولَانِ: مَا هٰذَا الرَّجُلُ الَّذِي بُعِثَ فِيكُمْ؟ فَيَقُولُ: هَاهْ هَاهْ، لَا أَدْرِي! ۱۲ فَيُنَادِي مُنَادٍ مِنَ السَّمَاءِ: أَنْ كَذَبَ فَأَفْرِشُوهُ مِنَ النَّارِ، وَأَلْبِسُوهُ مِنَ النَّارِ، وَافْتَحُوا لَهُ بَابًا إِلَى النَّارِ. قَالَ: فَيَأْتِيهِ مِنْ حَرِّهَا وَسَمُومِهَا. قَالَ: ۱۳ وَيُضَيَّقُ عَلَيْهِ قَبْرُهُ حَتّٰى تَخْتَلِفَ فِيهِ أَضْلَاعُهُ، ثُمَّ يُقَيَّضُ لَهُ أَعْمٰى أَصَمُّ، مَعَهُ مِرْزَبَّةٌ مِنْ حَدِيدٍ، لَوْ ضُرِبَ بِهَا جَبَلٌ لَصَارَ تُرَابًا، فَيَضْرِبُهُ بِهَا ضَرْبَةً يَسْمَعُهَا مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ إِلَّا الثَّقَلَيْنِ، فَيَصِيرُ تُرَابًا، ثُمَّ يُعَادُ فِيهِ الرُّوحُ» "رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** او حضرت براء بن عازب ﷺ روایت کوي چې حضور ﷺ وفرمایل ۱ په قبر کې مړي ته دوه فرشتې راځي او هغه کینوي او پوښتنه ځني کوي چې ستارب څوك دي؟ هغه جواب ورکوي زما رب الله ﷻ دي، ۲ بیا فرشتې پوښتنه کوي چې ستا دین کوم یو دي؟ هغه جواب ورکوي چې زما دین اسلام دي ۳ بیا فرشتې د هغه څخه سوال کوي چې کوم سړي د الله د طرف څخه تاسو ته رالیږل شوې وو هغه څوك دي؟ هغه اووائي هغه د الله رسول دي، ۴ بیا فرشتې د هغه څخه سوال کوي دا وتاته چا وښودل، هغه وایي چې ما د الله کتاب ویلي دي او په هغه مي ایمان راوړي او هغه مي ریشتوني وګڼلو (یعني څوك چې د الله ﷻ په کلام باندې ایمان راوړي او هغه به مخ کښې په رسول الله ﷺ باندې ایمان راوړي) ۵ حضور ﷺ وفرمایل دا مطلب دي د الله تعالیٰ ﷻ د دي قول: يُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ الْآيَةَ یعنی الله هغه خلق ثابت قدم لري چې په ثابته خبره باندې ایمان راوړي (د آیت تر آخره پوري) ۶ حضور ﷺ فرمایي چې د آسمان څخه آواز کونکي (یعني الله تعالیٰ ﷻ یا د هغه په حکم سره فرشته) آواز وکړي او وایي چې زما بنده ریشتیا وویل، نو د هغه د پاره د جنت فرش وغوړوي او هغه ته د جنت کالي ور واغوندي او د هغه د پاره د جنت طرفته یوه دروازه خلاصه کړي (نو د هغه د پاره جنت دروازه خلاصه شي) رسول الله ﷺ وفرمایل (دهغي د روازي څخه) هغه ته د جنت هواوي خوشبویاني راځي او د نظر ترحده پوري د هغه قبر فراخ کړل شي، ۷ او پاتې شو کافر، نو حضور ﷺ دهغه د مرګ ذکر وکړو او د هغه څخه وروسته یې وفرمایل بیا د هغه روح د هغه په بدن کښې واچول شي او هغه ته دوه فرشتې راځي هغه کینوي ۸ پوښتنه ځيني کوي چې ستا رب څوك دي؟ هغه وایي هاه هاه ماته نه دي معلوم، ۹ بیا پوښتنه ځيني کوي ستا دین کوم یو دي؟ هغه وایي هاه هاه ماته نه دي معلوم، ۱۰ بیا

پوښتنه څيني کوي چې دا سړي څوك دي چې د الله د طرف څخه تاسو ته راليږل شوي وو، هغه وايي هاه هاه ماته نه دي معلوم، [۱۱] بيا د آسمان څخه يو آواز کونکي آواز وکړي چې دي دروغجن دي، نو د ده د پاره د اور فرش وغوړوي او د اور جامه ور واغو ندي، د ده د پاره د دوزخ طرف ته يوه دروازه خلاصه کړي، رسول الله ﷺ فرمايي د دوزخ څخه به هغه ته ګرمي هواوي او تاؤ راځي [۱۲] او وي فرمايل د هغه قبر به د هغه د پاره دومره تنك کړل شي چې د يوه طرف پښتي هغه بل طرف ته او د هغه بل طرف پښتي به دي بل طرفته راووځي، بيا په هغه باندې يوه ړنده او کڼه فرشته مقرره شي چې د هغه سره به د وسپني داسې ګرز وي چې که هغه په غرته هم ووهي نو هغه غر به خاوره شي او هغه فرشته به هغه په دي ګرز داسې وهي چې (د هغه د چغو چغارو آواز) به د مشرق څخه تر مغربه ټول مخلوقات اوري، ليکن پيريان او انسان يي نه آوري او د دغه وهلو څخه دا مړي خاوري شي، ددي څخه وروسته بيا په هغه مړي کې روح واچول شي. احمد وابوداؤد

**حل اللغات:** ① فَأَفْرِشُوهُ: فَاجْعَلُوا لَهُ فَرْشًا: دده دپاره بستره خوره کړئ. ② رَوْحِهَا: أَيْ نَسِيمُ الرِّيحِ: هواګانې دجنت، ③ طِيبِهَا: خوشبو دجنت، ④ يُفْتَحُ: په يو نسخه کښې تُفْتَحُ هم راغلي دي، أَيْ يُوَسَّعُ: فراخيږي، کهلاويږي، ⑤ هَاهْ هَاهْ: دا په عربی لغت کښې يولفظ دي چه دَ ډيرزيات خطرناك اوتحيراوتحسر په وخت ئې انسان وائی لکه په اردوکښې هائې وائې الفاظ راځي لاادري هم دَدې بيان دې. ⑥ حَرُّهَا: أَيْ حَرُّ النَّارِ: د اور ګرمائش، ⑦ سَمُومِهَا: وَهِيَ الرِّيحُ الْحَارَّةُ: ګرمي هواګانې، ⑧ يُقَيَّضُ: أَيْ يُسَلَّطُ وَيُوَكَّلُ: مسلط کولې شی، مقرر کولې شی، ⑨ أَعْمَى: أَيْ زَبَانِيَةٌ لَا عَيْنَ لَهُ: ړندې به وی څکه چه سترګې به ئې نه وی دا زبانيه فرشتې دی. ⑩ أَصَمُّ: أَيْ لَا يَسْمَعُ صَوْتَ بُكَائِهِ: کڼې به وی دجهنميانو د چغو سورو آوازونه به نه آوری. ⑪ مِرْزَبَّةٌ: وَهِيَ الَّتِي يُدَقُّ بِهَا الْمَدَرُ: ګرز ته وائی کوم باندې چه اوسپنه يا کانړی ټکوی. ⑫ الثَّقَلَيْنِ: أَيْ الْجِنُّ وَالْإِنْسُ: ددې نه مراد انسانان او جنات دی، دوی ته ثقلين څکه وائی چه دوی په زمکه بار (بوج) کړې شوی دی.

**تسهيلات:**

**د بعضې جملو وضاحت:**

**قوله:** مَا يُدْرِيكَ؟: دَدې جملې نه معلومه شوه چه په قبرکښې فرښتې څوسوالونه کوی صرف هغه مشهوردرې سوالونه نه دی کوم چه مشهوردی.

**قوله:** مَدَّ بَصَرِهِ: يعنی دَ نظردَ حدپورې په قبرکښې وسعت. په دنياکښې دَدې مثال بعضې شيش محل دَ سرو زرو دکانونه دی په کوم کښې چه انسان دَنظردَحد پورې وسعت محسوسوی حالانکه هغه شپږ فټه دکان وی.

**قوله:** الَّذِي بُعِثَ فِيكُمْ؟: کوموخلقوچه نبی کريم ﷺ منلې وی دَحضورپاك په شريعت ئې

عمل کړې وی په سنت باندې ئې تګ کړې وی هغه به زر اوپېژنی چه دَدغه مبعوث نه مراد محمد عربی ﷺ دې او کوم خلق چه په دنیاکښې بعثت وشریعت نه ړانده کانړه پاتې شو هغوی به هلته هم هغه شان ړانده کانړه پاتې وی.

**قوله:** فَيُنَادِي مُنَادٍ مِنَ السَّمَاءِ: لکه څنګه چه په ریډیو باندې اعلان فوراً رسیږی هم دغه شان به دااعلان وی. "أن كذب" یعنی دا کس په باطل باندې ووهم دغه مطلب دې ګنی دلته دروغ نشته دې نه هغه دلته دروغ وئیلی دی.

**قوله:** أَعْمَى أَصَمُّ: یعنی په منزله دَاعمی دی چه ترس ئی نه راځی او په منزله دَ کانړو دی لکه چه اوری نه، دا په دې وجه چه په مجرم باندې ترس رانه شی نه احساس وی.

**قوله:** مِرْزَبَّةٌ: ګرز ته وائی کوم چه دَ اوسپنې وی. ثم يعاد: یعنی روح بیان تازه کولې شی. دَدې نه داهم معلومه شوه چه روح دوباره اچولې شی.

**[۱۳۲] دآخرت د منزلونو نه ړومبی منزل**

۱۳۲–()[۸] [۱] «وَعَنْ عُثْمَانَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّهُ كَانَ إِذَا وَقَفَ عَلَى قَبْرٍ بَكَى حَتَّى يَبُلَّ لِحْيَتَهُ، [۲] فَقِيلَ لَهُ: تُذْكَرُ الْجَنَّةُ وَالنَّارُ فَلَا تَبْكِي، وَتَبْكِي مِنْ هَذَا؟! [۳] فَقَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "إِنَّ الْقَبْرَ أَوَّلُ مَنْزِلٍ مِنْ مَنَازِلِ الْآخِرَةِ، [۴] فَإِنْ نَجَا مِنْهُ فَمَا بَعْدَهُ أَيْسَرُ مِنْهُ، وَإِنْ لَمْ يَنْجُ مِنْهُ فَمَا بَعْدَهُ أَشَدُّ مِنْهُ". [۵] قَالَ: وَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "مَا رَأَيْتُ مَنْظَرًا قَطُّ إِلَّا وَالْقَبْرُ أَفْظَعُ مِنْهُ"» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت عثمان رضي الله عنه په باره کښې منقول دي چې هغه به کله د يو قبر سره ودريدلو (نو د الله ﷻ د ويرې څخه) به يې دومره ژړل چې د هغه ږيره مبارکه به (د اوښکو څخه) لونده شوه، [۲] هغه ته چا اوويل چې کله ته د جنت او دوزخ ذکر کوي نو نه ژاړي او دلته چې ودريږي نو ژاړي، [۳] د دې په جواب کښې هغه اوويل چې نبی کريم ﷺ فرمايلي دي چې د آخرت په منزلونو کښې اولني منزل قبر دي، [۴] نو چا چې د دې منزل څخه دخلاصی لار پیدا کې هغه ته د دې څخه وروسته آساني ده، او چا چې د دې منزل څخه دخلاصی لار نه کې پیدا هغه ته د دې څخه وروسته سخته ګراني ده، [۵] حضرت عثمان رضي الله عنه وايي چې حضور ﷺ وفرمايل چې ما هيڅ کله يو منظر د قبر څخه زيات سخت نه دي ليدلي، ترمذي ابن ماجه او ترمذي ويلي دي چې دا حديث غريب دي

**حل اللغات:** ① يَبُلَّ: أَيْ يُنَدِّوُهُ: لمده به شوه (په ژړا او اوښکو سره). ② أَفْظَعُ: دا د فَظُعَ نه دي، يَعْنِي أَشَدَّ وَأَفْزَعَ: ډير سخت ويرونکي منظر.

[۱] اخرجه الترمذي كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ باب (رقم-۲۳۰۸) و احمد في المسند: ۶۳/۱

**تسهیلات:**

**قوله: بَكَى:** دَ الايمان بين الخوف والرجاء په بنياد به حضرت عثمان رضي الله عنه ژړل. مقربين دالله تعالى په دربار كښې زيات ژاړي. دا ژړل ددې خلاف نه دی چې حضرت عثمان رضي الله عنه په عشره مبشره كښې وو بلكه بشارت والا خو په اعمالواو عباداتو كښې زيات چست وي. او دهرې موقعې او مقام حق ادا كوي، دا نه چې په عباداتو او اعمالو كښې سستي كوي. قبر خو داسې مقام دې چې ټول لذتونه هيروي.

**قوله: فَمَا بَعْدَهُ أَشَدُّ مِنْهُ:** وئيلى شي چې د دنيا نهه سوه مصيبتونه د حالت نزع د يو مصيبت برابر دي. د نزع نهه سوه مصيبتونه او د قبر يو مصيبت برابر دي.د قبر نهه سوه مصيبتونه او د محشر يومصيبت او د محشر نهه سوه مصيبتونه او د دوزخ يو مصيبت برابر دي.

**[۱۳۳] د دفن نه روسته قبر سره د مړي دپاره دعا غوښتل**

۱۳۳-()[۹] [۱](وَعَنْهُ)، قَالَ: «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا فَرَغَ مِنْ دَفْنِ الْمَيِّتِ وَقَفَ عَلَيْهِ، [۲]فَقَالَ: "اسْتَغْفِرُوا لِأَخِيكُمْ، ثُمَّ سَلُوا لَهُ بِالتَّثْبِيتِ، [۳]فَإِنَّهُ الْآنَ يُسْأَلُ» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عثمان رضي الله عنه روايت كوي چې حضور صلى الله عليه وسلم چې به كله د مړي د دفن كولو څخه فارغه شو، نو د قبر سر ته به ودريدلو [۲] او خلقو ته به يې فرمايل د خپل ورور د پاره استغفار وكړي (بخښنه وغواړي) او د هغه د ثابت قدم كيدو دعا وغواړي (يعني چې الله تعالى جل جلاله هغه ثابت قدم وساتي) [۳] ځكه چې په دا وخت كښې د هغه څخه سوال كيږي. ابوداؤد

**حل اللغات:** ① التَّثْبِيتِ: د باب تفعيل نه مصدر دې په معنى: د ثابت قدم ساتلو.

**تسهیلات:**

**قوله: اسْتَغْفِرُوا لِأَخِيكُمْ:**

**د مړي د خښو څخه روسته دهغه دپاره ددعا ثبوت:** دَحديث شريف دَدې جملونه په قبرباندې استغفار او قبرستان كښې دَدعا مسئله ثابتيږي. لهذا دَمړي دَخښيدونه پس په عام توګه دعاغوښتلې شي. علماء ربانيين په دې دعا كښې لاسونه اوچتول خلاف اولى ليكلي دي ځكه چه دَمړي نه دَغوښتلو شبه پيداكيدې شي اوكه چرې دَ لاسونو نه اوچتولوسره فتنه خوريږي نولاسونه اوچتولوسره دې دعا غواړي ليكن دَ مړي په محاذات كښې دې نه اودريږي. كه په خپل ماحول كښې خپلو دوستانوسره وي نوهغوی ته دې دَارسال يدين حكم وركړي ځكه چه دا افضل دي

(۱) اخرجه ابوداود كتاب الجنائزباب الاستغفار عند القبر للميت في وقت الانصراف(رقم-۳۲۲۱)

**قوله: بِالتَّثْبِيتِ،**

**مړی دپاره په قبرکښې د تثبت دعا:** تثبيت دعاداسې ده "اللهم ثبته اللهم اغفرله اللهم ارحمه" وغيره وغيره.

**مړی ته د تلقين کولو حکم** داد احنافو مسلك دې شوافع حضراتودَدې حديث نه دَ مړی دَ خښيدونه پس دَتلقين مسئله هم راويستې ده خوبياهم دَ تلقين مسئله په سماع موتی باندې متفرع ده. کوم حضرات چه دَ سماع موتی قائل دی هغوی دَتلقين هم قائل دی اوکوم حضرات چه دَسماع موتی قائل نه دی هغوی دَ تلقين هم قائل نه دی. کوم چه دَ خښيدونه پس په قبرباندې کيږی،

**دتلقين کلمات:** حضورپاك فرمائيلی دی چه کله تاسو نه څوم مړشی اوتاسو هغه خښ کړئی نو يو سړې دې دَقبر سرته اودريږی اووائی دې اې فلانکی ابن فلان اې فلانکی بن فلانه، مړې جواب ورکوی که چرې ته نه اورې بيااووايه اې فلانکی هغه کلمه ياده کړه په کومه چه ته دَدې دنيانه رخصت شوې وې اوهغه "اشهدان لا اله الا الله وان محمدًا عبده ورسوله" ګواهی ده. بل ته په دې باندې راضی شوې چه الله تعالی ستاپروردګاردې اومحمد ﷺ ستا پيغمبردې اوقرآن ستا لارخودونکې اوامام دې. کله چه دا وئيلی شی نو منکرنکيردَ يوبل لاس نيولوسره اووائی چه زه دَدې بنده دَمخې نه بهراوزه زمونږ ده سره څه کاردې څکه چه دَالله تعالی دَ طرف نه ده ته تلقين کيږی. (مظاهرحق ج۱ص۱۴۹)

دا حديث ضعيف دې او په دې تلقين کښې اختلاف دې ليکن يوبل تلقين هم دې په کوم کښې چه دَ چا اختلاف نشته. (مشکوة شريف ص ۱۴۹)

**د خښولو څخه روسته د سورة بقره د اول اوآخر څخه تلاوت کول:** دَ سورة بقره نه يوه دَ شروع او آخر نه يوه يوه رکوع لوستل اتفاقی مسئله ده. دَحضرت ابن عمر رضی الله عنه نه روايت دې چه ما نبی کريم ﷺ نه اوريدلې دی چه کله ستاسو څوك مړه شی نوهغه په کور کښې مه حصاره وئی بلکه زر هغه په قبرکښې دَخښولودَپاره اوړئی بيادَدې مړی سر ته دَ سورة بقره دَ شروع نه اولولئی اودَخپوطرف ته دَ سورت بقره آخر (آمن الرسول) نه اولولئی. بيهقی دَدې روايت تخريج کړې دې مګرصحيح دادې چه دا موقوف دې. يوتلقين دَ زنکدن په وخت کښ دَ شهادتينو تلقين دې دې دَپاره چه مړکيدونکې سړې اوريدو سره لوستل اوکړی. چنانچه حکم دې لقنواموتاکم الخ

[۳۳] په قبر کښې په کافر نه نوي (۹۹) اژدهاوي مسلط کيدل

۳۳ -() [۱۰] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] لَيُسَلَّطُ عَلَى الْكَافِرِ فِي قَبْرِهِ تِسْعَةٌ وَتِسْعُونَ تِنِّينًا تَنْهَسُهُ وَتَلْدَغُهُ حَتَّى تَقُومَ السَّاعَةُ، [۳] لَوْ أَنَّ تِنِّينًا مِنْهَا نَفَخَ فِي الْأَرْضِ مَا أَنْبَتَتْ خَضِرًا» ". رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ، وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ نَحْوَهُ، وَقَالَ: (سَبْعُونَ) بَدَلَ (تِسْعَةٌ وَتِسْعُونَ).

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو سعيد رضي الله عنه وايي چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] په کافر د هغه په قبر کښې نه نوي اژدهاوي (ماران) مسلط کيږي چې هغه به تر قيامته پورې چيچي [۳] او هغه اژدهاوي (ماران) داسې دي چې که په هغه کښې يو مار په زمکه باندې پوك ووهي نو زمکه به د سبزه (شينکي) زرغونولو څخه محرومه شي، دارمي، او ترمذي رحمه الله څخه هم داسې قسم روايت نقل دي ليکن په هغه کښې د يوکم سلو په ځاي د اوياوو شمير دي.

**حل اللغات:** ① يُسَلَّطُ: د باب تفعيل نه د مضارع مجهول صيغه ده، مسلط کولې شي، مقرر کولې شي. ② تِنِّينًا: وَهِيَ حَيَّةٌ عَظِيمَةٌ كَثِيرَةُ السُّمِّ: لويه او ډيره زهريله اژدها، ③ تَنْهَسُهُ: النَّهْسُ: أَخْذُ اللَّحْمِ بِأَطْرَافِ الْأَسْنَانِ: په غابنونو سره غوښه شوکول. ④ تَلْدَغُهُ: ضَرْبُ السِّنِّ بِلَا قَطْعٍ لَكِنْ مَعَ إِرْسَالِ السُّمِّ: په غابنونو باندې چک لګولو سره زهر ورپريخودل. ⑤ خَضِرًا: أَيْ نَبَاتًا أَخْضَرَ: شنه اوني بوټي، ګيا وغيره.

**تسهيلات:**

**قوله:** تِسْعَةٌ وَتِسْعُونَ تِنِّينًا تَنْهَسُهُ وَتَلْدَغُهُ:

**د نهه نوي اژدهاګانو په مسلط کولو کښې درې حکمتونه:** ① د الله يو کم سل نومونه مبارك دي، د هر يو نوم جدا جدا خصوصيت دې، کافر چې کله کفر کوي نو د ټولو څخه انکار کوي. لهذا د هر نوم په انکار باندې يو يو اژدها مقرريږي.

② دا د شارع کلام دې په دې کښې د تعداد د خصوصياتو يا حکمتونو لټولو ضرورت نشته دې.

③ د الله تعالى رحمتونه په دې کائناتو کښې تقسيم شوي دي او يو کم سل رحمتونه الله تعالى سره خاص دي، او هغه به عالم آخرت کښې ظاهريږي. او مؤمن سره به خاص وي. کافر چونکه د دې ټولو انکار کوي نو د مؤمنينو برعکس کفارو باندې به يو کم سل اژدهاګانې مسلط کيږي.

د ترمذي په روايت کښې د يو کم سلو په ځاې د اوياؤ ذکر راغلې دې کوم چې په عربي کلام کښې د تکثير د پاره راځي. مراد هم هغه يو کم سل دي.

[۱] ) اخرجه الترمذي كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب (رقم-۲۴۶۰) و احمد في المسند: ۳۸/۳

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۱۳۵] د قبر تنګېدل او فراخه کېدل

۱۳۵-(¹) [۱۱] ١ عَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِلَى سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ حِينَ تُوُفِّيَ، ٢ فَلَمَّا صَلَّى عَلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَوُضِعَ فِي قَبْرِهِ وَسُوِّيَ عَلَيْهِ، سَبَّحَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَسَبَّحْنَا طَوِيلًا، ثُمَّ كَبَّرَ، فَكَبَّرْنَا. ٣ فَقِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ لِمَ سَبَّحْتَ ثُمَّ كَبَّرْتَ؟ ۴ قَالَ: "لَقَدْ تَضَايَقَ عَلَى هَذَا الرَّجُلِ الصَّالِحِ قَبْرُهُ حَتَّى فَرَّجَهُ اللَّهُ عَنْهُ»" رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ١ او حضرت جابر ﷛ روایت کوي چې د حضرت سعد بن معاذ ﷛ د وفات څخه وروسته مونږ د حضور ﷺ سره د هغه جنازي ته لاړلو، ٢ حضور ﷺ د جنازي مونځ اوکړو او حضرت سعد ﷛ په قبر کښې واچول سواو د قبر خاوره برابره کړې شوه، نو حضور ﷺ تسبیح (یعني سبحان الله) ویل شروع کړه نومونږ هم تسبیح وویل، بیا حضور ﷺ تکبیر (یعني الله اکبر) اووئیلو زمونږ هم تکبیر وویلې، ٣ بیا د حضور ﷺ څخه پوښتنه وشوه چې یا رسول الله ﷺ تا تسبیح ولي او بیا تکبیر ولي اووئیلو؟ ۴ وي فرمایل په دې صالح بنده باندې د هغه قبر تنګ کړل شو، او بیا الله پاک زمونږ د تسبیح او تکبیر په وجه هغه فراخ کړلو، احمد

**حل اللغات:** ① سُوِّيَ: أَيِ التُّرَابُ: برابر کړې شی پرې خاوره، ② تَضَايَقَ: تنګ کړې شو (قبر)، ③ فَرَّجَهُ: أَيْ كَشَفَهُ وَأَزَالَهُ: دا تنګوالې ئې ترې ختم کړو یعنی فراخه ئې کړو.

## [۱۳۶] د قبر په مړي باندې راتنګېدل

۱۳۶-(²) [۱۲] ١ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - " ٢ «هَذَا الَّذِي تَحَرَّكَ لَهُ الْعَرْشُ، ٣ وَفُتِحَتْ لَهُ أَبْوَابُ السَّمَاءِ، وَشَهِدَهُ سَبْعُونَ أَلْفًا مِنَ الْمَلَائِكَةِ، ۴ لَقَدْ ضُمَّ ضَمَّةً ثُمَّ فُرِّجَ عَنْهُ» " رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابن عمر ﷛ روایت کوي چې حضور ﷺ وفرمایل ٢ دې (یعني سعد ابن معاذ ﷛) هغه سړې دې چې د هغه د پاره عرش حرکت وکړو (یعني د هغه چې کله پاک روح آسمان ته ورسیدې نو د عرش مخلوق د خوشحالي اظهار اوکړو) ٣ او د هغه د پاره د آسمان دروازې خلاصې شوې او د هغه په جنازه اویا زره فرشتې حاضرې شوې، ۴ یقینا د هغه قبر تنګ کړې شو بیا هغه تنګې لرې کړل شوه، او (د تسبیح د برکته) د هغه قبر فراخ شو. نسائي

**حل اللغات:** ① تَحَرَّكَ: په یو روایت کښې د اِهْتَزَّ لفظ دې، یعنی حرکت کوی، خوزی (د ډیرې

¹) اخرجه احمد في المسند: ۳/ ۳۶۰

²) اخرجه النسائي كتاب الجنائز / باب ضمة القبر وضغطه (رقم-۲۰۵۵)

خوشحالئ نه). ② ضُمَّ: أَيْ عُصِرَ: زور ورکړې شی، یعنی جوخت کړې شو (لکه چه سم ئې نچوړې کړی). ③ ضَمَّةً: د فعلة په وزن دې یوکار یوځل کولو دپاره استعمالیږی. أَيْ: ضَمَّةً وَاحِدَةً: یعنی یوځل زور ورکول. ④ فُرِّجَ: دا تنګوالې تړې ختم کړې شو یعنی قبر ورته فراخه کړې شو.

**تسهیلات:**

**قوله: تَحَرَّكَ لَهُ الْعَرْشُ:**

**د له ضمیر مرجع:** دواړو احادیثوکښې اشاره دَحضرت سعدبن معاذ ﷺ طرف ته ده چه دَجنګ خندق په موقع زخمی شوې وو او روستو شهید شوې وو.

**دعرش په حرکت کښې دوه وجوهات:** ① علامه سیوطی ﷫ فرمائی ممکن دی چه دَحضرت سعد ﷺ په وفات باندې په توګه دَغم او افسوس عرش کښې دا حرکت راغلې وی او دادَ غم نه کنایه وی.

② دَعرش حرکت دَخوشحالئ په توګه وو چه دَدغه عظیم الشان انسان دَ روح سره به دَعرش ملاقات اوشی. عرش سره دَدې چه جماددې مګر په خپل انداز سره خو آسمان هم ژاړی اونور جمادات هم ژاړی کله چه یونیك سړې دَ دنیانه ځی. لهذا دَ عرش خوشحالیدل او حرکت کول څه مستبعد امر نه دې.

**قوله: لَقَدْ ضُمَّ ضَمَّةً:**

**د قبرپه راتنګیدو کښې درې اقوال:** ① بعضو وئیلی دی په شروع کښې دَ لږ شان زحمت اشاره اوکړه دې دَپاره چه روستو ورته دَ راحت په ښه شان احساس وی.

② په دې حدیث کښې دَ قبرهیبت ناك او خطرناك منظر نه ویرول مقصود دی چه دومره لوئی درجاتو او دَدومره لوئی شان والا صحابی ته اوګوره چه عرش دَهغه دَپاره په حرکت شو. اویا زره فرښتې په جنازه کښې شریکې شوې دَ شهادت اوچته درجه ورته ملاؤشوه دَ آسمان ټولې دروازې دَاستقبال دَپاره کولاؤشوې مګر بیاهم قبردَ راټینګولو کوشش اوکړو نودَ نورو به څه حال وی. په دې وجه چاله هم دَ خپل انجام نه بې خطرې کیدل نه دی پکار.

③ بعضې وئیلی چه قبر په محبت کښې زور ورکړو په کوم سره چه ظاهری تکلیف کیږی مګر باطنی خوند وی. احباب او ابرار سره هم دغه معامله کیږی خو فجارو سره دَتکلیف اوسزا معامله کیږی. داکلام ډیر زیات بعید دې دَ حدیث سیاق اوسباق دا نه قبلوی. والله اعلم [ والکاشف: ۱/۳۲۰ ]

## [۳۷] د قبر ازمائش او امتحان

۳۷-(۱) [۱۳۱] [۱] وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: «قَامَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - خَطِيبًا [۲] فَذَكَرَ فِتْنَةَ الْقَبْرِ الَّتِي يُفْتَنُ فِيهَا الْمَرْءُ، فَلَمَّا ذَكَرَ ذَلِكَ [۳] ضَجَّ الْمُسْلِمُونَ ضَجَّةً. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ هَكَذَا، وَزَادَ النَّسَائِيُّ: حَالَتْ بَيْنِي وَبَيْنَ أَنْ أَفْهَمَ كَلَامَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۴] فَلَمَّا سَكَنَتْ ضَجَّتُهُمْ قُلْتُ لِرَجُلٍ قَرِيبٍ مِنِّي، أَيْ بَارَكَ اللَّهُ فِيكَ! مَاذَا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي آخِرِ قَوْلِهِ؟ [۵] قَالَ: "قَدْ أُوحِيَ إِلَيَّ أَنَّكُمْ تُفْتَنُونَ فِي الْقُبُورِ قَرِيبًا مِنْ فِتْنَةِ الدَّجَّالِ» ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت اسماء بنت ابي بکر ﷺ روایت کوي چې یوه ورځ نبی کریم ﷺ د خطبي د پاره ودریدلو [۲] او د قبر د فتنې ذکر یي وفرمایلي چې په هغه کښې انسانان اخته کول کیږي [۳] نو د دې ذکر سره مسلمانان وویرېدل او چغي وفریادیي شروع کړي، دا روایت د بخاري دي او نسائي دومره نور زیات بیان کړي دي چې (د ویرې او دهشت په وجه) د مسلمانانو د چغو او چغارو په سبب ما د حضور ﷺ الفاظ وانه وریدل [۴] کله چې دا چغې چغاري بندي شوې نو ما د خپل نزدي ناست یو سړي څخه پوښتنه وکړه چې الله دي تاته برکت درکړي (یعني ستا په علم او حلم کښې دي زیات والي وشي) په آخر کښې حضور ﷺ څه وفرمایل؟ [۵] هغه سړي اوویل چې نبی کریم ﷺ وفرمایل چې په ما دا وحي راغلي ده چې تاسو به په قبرونو کې په فتنه کښې واچولي شئ (یعني تاسو به آزمایلي شي) او دا آزمایش او امتحان به د فتنۂ جال نزدي نزدي وي.

**حل اللغات:** ① ضَجَّ: أَيْ: صَاحُوا وَجَزِعُوا: چغې ئې کړې او ژړا فریاد ئې شروع کړو، ② حَالَتْ: پرده شو، حائل شوې (دا چغې یعنی ددې چغو په وجه مې د نبی ﷺ الفاظ وانه ؤریدل) ③ سَكَنَتْ: چپ شو (یعنی چغې بندې شوې) ④ تُفْتَنُونَ: أَيْ تُمْتَحَنُونَ: تاسو به په فتنه کښې واچولې شئ یعنی او به آزمائلی شئ (په قبرونو کښې).

## [۳۸] د مونځګذار په قبر کښې د مونځ کولو خواهش

۳۸-(۲) [۱۳۲] [۱] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «إِذَا أُدْخِلَ الْمَيِّتُ الْقَبْرَ مُثِّلَتْ لَهُ الشَّمْسُ عِنْدَ غُرُوبِهَا. [۳] فَيَجْلِسُ يَمْسَحُ عَيْنَيْهِ، وَيَقُولُ: دَعُونِي أُصَلِّي» " رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر روایت ﷺ کوي چې نبی کریم ﷺ وفرمایل [۲] کله چې مړي (مؤمن) په قبر کې دفن شی نو د هغه په مخکې د نمر د لویدو وخت وړاندي کړل شی [۳] نو هغه مړي په لاسو سره سترګو مږلو سره راکیني او وایي ما پرېږدي چې مونځ وکړم. ابن ماجه

---

[1] ) اخرجه البخاری کتاب الجنائز/باب ما جاء فی عذاب القبر(۱۳۷۳) والنسائی کتاب الجنائز/ باب التعوذ من عذاب القبر (رقم -۲۰۶۲)

[2] ) اخرجه ابن ماجة کتاب الزهد/باب ذکر القبر والبلی (رقم-۴۲۷۲)

**حل اللغات:** ① مُثِّلَتْ: أَيْ: صُوِّرَتْ: يعنى دَ نمر به دَ ډوبيد ونظاره پيش کړې مرى ته به ښکارى. ② يُمَسِّحُ: مرى به سترګې ‹لکه څنګه چه څوک دخوب نه راپاڅى نو سترګې مږى›. ③ دَعُونِي: أَيْ اتْرُكُوا: پريمې ږدئ ‹يعنى سوال جواب او خبرې راسره مه کوئ›.

**تسهيلات:**

**قوله: دَعُونِي أُصَلِّي:** دا دَمداومت الصلوة دليل دې چه کوم خلق پابندئى سره مونځ کوى هغوى سره په هوش بې هوشئى اومرګ اوژوند هره لمحه کښې دَ مونځ فکروى اوداد کامل ايمان نښه ده.

**قوله: مُثِّلَتْ لَهُ الشَّمْسُ:** دا وخت دَ مسافردَپاره دَ پريشانئ وى هغه سوچ کوى چه شپه به کوم ځائى تيروم داسې هم دَعالم شهودعالم دنيا نه دَ عالم غيب او دَ عالم آخرت مسافر دې ده ته پريشانى ده چه نمرډوبيږى مونځ هم دې وخت کښې کول دى مکان لټولو سره شپه تيرول دى. چاسره واقفيت نشته ژبه هم ناآشناده مکان هم ناآشنادې خلق هم ناآشنا دى سوال اوجواب هم ناآشنادې او امتحان هم ناآشنادې. چا پښتو کښې وئيلى دى:

ناشنا وطن ناشنا مکان دې ناشنا کتاب ناشنا تپوس رانه کوينه

يوفارسى شاعر وئيلى دى:

توزلف راکشادى وتاريک شد جهاں اکنوں قرار شام، غريباں کجا روند

## [٣١] د نيک عمله اوبدعمله دقبر حالات

٣١-()[١٥] ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: «إِنَّ الْمَيِّتَ يَصِيرُ إِلَى الْقَبْرِ ② فَيَجْلِسُ الرَّجُلُ فِي قَبْرِهِ غَيْرَ فَزِعٍ وَلَا مَشْعُوبٍ، ③ ثُمَّ يُقَالُ: فِيمَ كُنْتَ؟ فَيَقُولُ: كُنْتُ فِي الْإِسْلَامِ، ④ فَيُقَالُ: مَا هَذَا الرَّجُلُ؟ فَيَقُولُ: مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ جَاءَنَا بِالْبَيِّنَاتِ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ، فَصَدَّقْنَاهُ. ⑤ فَيُقَالُ لَهُ: هَلْ رَأَيْتَ اللَّهَ؟ فَيَقُولُ: مَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ أَنْ يَرَى اللَّهَ، ⑥ فَيُفْرَجُ لَهُ فُرْجَةٌ قِبَلَ النَّارِ، فَيَنْظُرُ إِلَيْهَا يَحْطِمُ بعضها بعضا، ⑦ فَيُقَالُ لَهُ: انْظُرْ إِلَى مَا وَقَاكَ اللَّهُ، ثُمَّ يُفْرَجُ لَهُ فُرْجَةٌ قِبَلَ الْجَنَّةِ، فَيَنْظُرُ إِلَى زَهْرَتِهَا وَمَا فِيهَا،

**ترجمه:** ①او حضرت ابوهريره ﷺ څخه روايت دې چې حضور ﷺ وفرمايل کله چې مړې قبر ته دننه ورسي ‹يعني دفن کړل شي›② نو نيك بنده په قبر کې دننه داسې کينول کيږي چې نه خو هغه يوه لمحه خوف زده وي او نه ويريدلي، ③بيا د هغه څخه پوښتنه کيږي چې ته په کوم دين باندې وې؟ هغه ورته وايي چې زه په دينِ اسلام وم، ④ بيا د هغه څخه پوښتنه کيږي چې داسړي ‹محمد ﷺ › څوك دي؟ هغه ورته وايي محمد ‹ﷺ› د الله رسول دي چې د الله پاك د طرف څخه زمونږ د پاره په ښکاره دليلونو سره راغې او مونږ يې تصديق اوکړو، ⑤ بيا د هغه څخه سوال کيږي چې آيا تا الله ﷻ ليدلي دي؟ هغه

(١) اخرجه ابن ماجة كتاب الزهد/باب ذكر القبر والبلى (رقم-٤٢٦٨)

به جواب کښې اووائي چې الله تعالی ﷺ خو څوك نشي ليدي. [٦] د دې څخه وروسته د هغه د پاره يو روښن دان د دوزخ طرفته خلاص کړل شي او هغه اخوا (طرفته) ګوري (او د اور لنبې داسې ويني لکه چې هغه يوبل سره خوري) [٧] او هغه ته اوويل شي چې دا شي وګوره چې الله ﷻ څيني ته ساتلي يې، بيا د هغه د پاره يو روښندان د جنت طرفته خلاص کړل شي او هغه د جنت تر وتازګي او د هغه څيزونو ته ګوري،

**حل اللغات:** ① فَزِعٍ: ويره، خوف. ② مَشْغُوبٍ: وَهُوَ تَهْيِيجُ الشَّرِّ وَالْفِتْنَةِ: چه د شر اوفساد او د فتنو نه محفوظ وي. ③ الْبَيِّنَاتِ: أَيْ: الْآيَاتِ الظَّاهِرَاتِ: يعنی ښکاره واضحه دليلونه او معجزات. ④ فَيُفْرَجُ: أَيْ: يُكْشَفُ وَيُفْتَحُ: کهلاؤ شی، پرانستلي شي. ⑤ يَحْطِمُ: أَيْ يَكْسِرُ وَيَغْلِبُ وَيَأْكُلُ بَعْضُهَا بَعْضًا: يوبل باندې غالب کيږي او يوبل خوری. ⑥ وَقَاكَ اللَّهُ: أَيْ: حَفِظَكَ: ته ئې بچ کړې ئې ستا حفاظت ئې کړې دې (چه ته ئې دګناهونو اود کفر نه ساتلي وې). ⑦ زَهْرَتِهَا: أَيْ حُسْنِهَا وَبَهْجَتِهَا: ښائست او تر وتازګی د جنت.

[١] فَيُقَالُ لَهُ: هٰذَا مَقْعَدُكَ، عَلَى الْيَقِينِ كُنْتَ، وَعَلَيْهِ مِتَّ، وَعَلَيْهِ تُبْعَثُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَى. [٢] وَيَجْلِسُ الرَّجُلُ السُّوءُ فِي قَبْرِهِ فَزِعًا مَشْغُوبًا [٣] فَيُقَالُ: فِيمَ كُنْتَ؟ فَيَقُولُ: لَا أَدْرِي! [٤] فَيُقَالُ لَهُ: مَا هٰذَا الرَّجُلُ؟ فَيَقُولُ: سَمِعْتُ النَّاسَ يَقُولُونَ قَوْلًا فَقُلْتُهُ، [٥] فَيُفْرَجُ لَهُ فُرْجَةٌ قِبَلَ الْجَنَّةِ، فَيَنْظُرُ إِلَى زَهْرَتِهَا وَمَا فِيهَا، فَيُقَالُ لَهُ: انْظُرْ إِلَى مَا صَرَفَ اللّٰهُ عَنْكَ، [٦] ثُمَّ يُفْرَجُ لَهُ فُرْجَةٌ إِلَى النَّارِ، فَيَنْظُرُ إِلَيْهَا يَحْطِمُ بَعْضُهَا بَعْضًا، [٧] فَيُقَالُ لَهُ: هٰذَا مَقْعَدُكَ، عَلَى الشَّكِّ كُنْتَ، وَعَلَيْهِ مِتَّ، وَعَلَيْهِ تُبْعَثُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَى» "رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] بيا هغه ته ويل کيږي چې دا ستا ځاي دې، ځکه ستا عقيده مضبوطه او يقين دې کامل وو او د دې يقين واعتماد په حالت کښې ته وفات شوې او په دې حالت کښې به (د قيامت په ورځ) پورته کيږې که الله پاك وغواړي [٢] او بدکاره بنده په (خپل) قبر کښې ويرې په حالت کښې کينول کيږي، [٣] بيا به د هغه څخه پوښتنه وشي چې ته په کوم دين باندې وې؟ هغه به وايي چې زه نه پوهيږم، [٤] بيا به د هغه څخه سوال وشي چې دا سړي (محمد ﷺ) څوك وو؟ هغه وايي ما چې څه د خلقو څخه اوريدل هغه به مي ويل، [٥] د دې څخه وروسته به د هغه د پاره د جنت طرفته يو روښندان خلاص کړل شي چې د هغه څخه به د جنت تر وتازګي او د هغه څيزونه ويني، بيا به هغه ته اوويل شي د دې شي طرف ته اوګوره چې الله پاك ستا څخه ګرځولي دي، [٦] بيا به د هغه د پاره د دوزخ طرفته يوه کړکي (دربچه) خلاصه شي او هغه به ويني چې د اور تيزې شغلې يوه بله خوري [٧] او هغه ته به ويل کيږي چې دا ستا ځاي دې، د هغه شک په سبب چې ته پکې اخته وې او په هغه ته مړشوې او په هغه به ته پورته کيږې که الله پاك وغواړي. ابن ماجه

**حل اللغات:** ⑧ صَرَفَ اللّٰهُ: چه ګرځولي دې الله تعالی (چه تاته ئې هدايت نه ووکړې اود نيکو اعمالو توفيق ئې نه وو درکړې). ⑨ مَقْعَدُكَ: أَيْ: مَكَانُكَ: ستا د اوسيدو ځاي. ⑩ تُبْعَثُ: ته به پورته کولې شې، دوباره به راپاځولې شې.

**تسهیلات:**

**قوله: هَلْ رَأَيْتَ اللَّهَ؟:**

**په قبر کښې د درې تپوسونو څخه علاوه نور تپوسونه:** چونکه حضوراکرم ﷺ سره متعلق سوال جواب کښې فرښتوته مړی وئیلی وو چه "جاءنابالبینات" هم په دې وجه فرښتې سوال اوکړو چه آیاتا خپل رب لیدلې دې چه من عندالله وایې؟ دَدې نه معلومه شوه چه په قبرکښې به دَ مشهور دریو سوالونو ضمن کښې څه نور سوالونه به هم وی لکه دا مذکوره سوال "علی الیقین کنت" یعنی ستا عقیده مضبوطه وه په ایمانی کیفیاتو کښې څه تزلزل نه وو او هم په دې به اوچتولې شی. ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی دایوه جدا مستقل جمله ده.

## [۵/۵] بَابُ الاِعْتِصَامِ بِالْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ

### کتاب او سنت باندې د عمل بیان

**د اعتصام لغوی معنی:** د اعتصام معنی په مضبوطیا سره د نیولو راځی لکه چه د الله پاک ارشاد دې ﴿وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا﴾ یعنی کتاب او سنت په مضبوطیا سره اونیسئ. (طیبی)

**په کتاب اوسنة د اعتصام مطلب:** کتاب او سنت لره په مضبوطیا سره د نیولو مطلب دا دې چه د قرآن او سنت په حقیقت باندې اعتقاد اوساتی او څه چه په دې کښې دی د هغې په تقاضو باندې عمل اوکړی. د بدعت او مذاهب باطله نه دې لرې اوسیږی.

**د بدعت په تعریف کښې اقوال:** ① په بحر الرائق او ردالمختار کښې دی:

﴿البدعة مَا أُحدِثَ عَلَى خِلَافِ الْحَقِّ الْمُتَلَقَّى عَنْ رَسُولِ اللَّهِ ﷺ مِنْ عِلْمٍ أَوْ عَمَلٍ أَوْ حَالٍ بِنَوْعِ شُبْهَةٍ وَاسْتِحْسَانٍ وَجُعِلَ دِينًا قَوِيمًا وَصِرَاطًا مُسْتَقِيمًا﴾ (بحر الرائق، رد المختار)

(بدعت هغه دې کوم چه د رسول الله ﷺ د طریقې خلاف وی که علم نه وی او که عمل نه وی، که د مشتبهات نه وی او که د استحسان د څه حالت سره متعلق وی)

② په مجالس الابرار کښې دی: ﴿البدعة لها معنيان احدهما لغوی وهو عام ای الحدث مطلقا، والثانی شرعی خاص ای الزيادة فی الدين اوالنقصان منه بعد الصحابة بغير اذن من الشارع لا قولا ولا فعلا ولا صريحا ولا اشارة﴾ (مجالس الابرار ص ۱۳۱)

(د بدعت دوه معنې دی، ۱: لغوی او هغه عام ده یعنی مطلق پیدا کړې شوې څیز. ۲: شرعی کوم چه خاص دې یعنی په دین کښې زیاتې کمې کول د صحابه کرامو رضی الله عنهم د زمانې نه پس په داسې طریقه چه د دې زیادت یا کمی د رسول الله ﷺ د قول یا فعل نه صراحة یا اشارة هیڅ اجازت نه وی)

③ امام نووی رحمه الله فرمائی : هِيَ كُلُّ شَيْءٍ عُمِلَ عَلَى غَيْرِ مِثَالٍ سَابِقٍ وفی الشرع: البدعة احداث مالم یکن فی عهد رسول الله ﷺ (حاشیة المشکاة عن المرقاة)

(بدعت د هر نوی څیز نوم دې چه د هغې مخکښې څه مثال موجود نه وی او په شریعت کښې هر هغه څیز کوم چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې نه وی د هغې په دین کښې د پیدا کولو نوم بدعت دې)

د امام نووی رحمه الله د تعریف مطابق په حدیث کښې ( کل بدعة ضلالة ) عام مخصوص عنه البعض دې.

**د بدعت دوه قسمونه:** بعضې حضراتو د بدعت دوه اقسام بیان کړې دی.

① **بدعت هدی:** ددې تعریف دا دې : ماکان واقعا تحت عموم ما ندب الله الیه وحض الله ورسوله فهو فی حیز المدح (کوم څیز چه د الله پاک د خوښ کړې شوې څیز د عموم د لاندې راځی هغه د مدح په درجه کښې دې)

② **بدعت ضلالة:** ددې تعریف دا دې : ماکان فی خلاف امر الله ورسوله فهو فی حیز الانکار والذم (او کوم څیز چه د الله پاک او د هغه د رسول د حکم خلاف وی هغه په مرتبه د انکار او ذم کښې راځی یعنی مذموم دې) (النهایة ص ۹۶)

**د بدعت هدی اوبدعت ضلالة کښې د عالمانواقوال:** ① امام شافعی رحمه الله فرمائی : ( ما احدث فما یخالف الکتاب والسنة اولاثر اولاجماع فهو ضلالة وما احدث من الخیر فما لا یخالف شیئا من ذلک فلیس بمذموم) (حاشیة المشکاة عن المرقاة)

(هر هغه څیز کوم چه د کتاب الله او سنت رسول الله ﷺ، آثار صحابه او اجماع خلاف پیدا کړې شوې وی هغه ګمراهی ده او کوم څیز چه د نیکو نه پیدا کړې شوې وی او هغه د مذکوره څیزونو خلاف نه وی نو هغه مذموم نه دې).

② شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله فرمائی :"بدانکه هر چه پیدا شده بعد از پیغمبر بدعت است و از آنچه موافق اصول و قواعد سنت اوست وقیاس کرده شده است برآن ان را بدعت حسنه گویند. وآنچه مخالف آن باشد بدعت سیئه خوانند وکلیة (کل بدعة ضلالة) محمول برین است ای بر بدعت سیئة" (اشعة اللمعات)

③ هم د دې قبیلې نه د سیدنا عمر رضی الله عنه ارشاد دې ( نعمة البدعة هذه ) د هذه مشار الیه قیام رمضان دې. (مرقاة)

**د شیخ عز الدین په نیز د بدعت پنځه قسمونه:** شیخ عز الدین بن عبدالسلام د کتاب القواعد په آخر کښې لیکلې دی چه د بدعت (لغویه) پنځه قسمونه دی.

① **واجب :** چه د هغې په ذریعه آیت قرآنیه او د احادیث نبویه معرفت حاصل شی او د دین او ملت حفاظت په هغې باندې موقوف شی لکه علم نحو او علم الصرف.

② **محرمه** : لکه جبریه، قدریه، مرجئه، مجسمه باندې رد کول داسې بدعت دي کوم چه د واجب په درجه کښې دي ځکه چه د دې فرقو تردید کولو سره د شریعت حفاظ کول فرض کفایه دی.

③ **مندوب**: هر هغه څیز د کوم چه د رسول اللهﷺ په زمانه کښې معمول نه وو لکه د تراویح اجتماع د مدارس دینیه قیام وغیره.

④ **مباح** : لکه په خوراک څکاک او استوګنه کښې توسیع اختیارول.

⑤ **مکروه** : لکه د مسجدونو ډولی کول.

**دبدعت مثالونه**:① که یو سړې په یوحکومت کښې جعلی نوټ جوړوی او بیا په هغې باندې جعلی ټهاپه لګولوسره هغه دَ سرکار دَ طرف نه رائج کړې شوې نوټونو کښې داخل کړی او چلوی ئې نوهغه سړې به دَ حکومت او قانون په نظر کښې څومره لوئی مجرم وی؟ بالکل هم دغه شان یو بدعتی سړې دې چه په مستند شریعت کښې دَ خپل طرف نه یوغیرمستند عمل داخلوی اوبیا خلقو ته دهوکه ورکوي او دغه مصنوعی عمل دَ اصلی عمل په صورت کښې دَ رائج کولو کوشش کوی. نوتاسو پخپله اندازه اولګوئی چه دا سړې به دَ الله اودَهغه دَ رسول اودَ اسلامی قانون په نظرکښې څومره لوئی مجرم جوړیږی؟

② دَبدعت مثال داسې اوګڼړئی لکه چه یوه ډاکخانه وی دَ هغې نه ډاکی خطونو او رسیدونو باندې مشتمل یوه تهیلئی بلې ډاکخانې ته رسوی. اوس که چرې دغه ډاکی دا مهر شوې تهیلئ کولاؤ کړی اودَ هغې نه یو خط راؤباسی نو هم دَ حکومت مجرم ګرځی. اوکه چرې په هغه تهیلئ کښې یوبل بنه خط دَخپل طرف نه داخل کړی نوبیاهم مجرم ګرځی. ځکه چه په دننه خطونو باندې دَ حکومت سرکاری مهر لګیدلې وې ډاکی غیرتصدیق شوې بغیرمهر شوې لفافه په هغې کښې داخلوی نودا دَ بغاوت او خیانت په شان یو ډیر لوئی جرم دې.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۱۴۰] په دین کښې دهر نوی څیز ایجاد کولو مردودیت

۳۰-()[۱]① عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: (②«مَنْ أَحْدَثَ فِي أَمْرِنَا هَذَا مَا لَيْسَ مِنْهُ فَهُوَ رَدٌّ») مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[۱] اخرجه البخاری کتاب الصلح /باب إذا اصطلحوا علی صلح جور فالصلح مردود (رقم-۲۶۹۷) ومسلم کتاب الأقضیة/باب نقض الأحکام الباطلة. ورد محدثات الأمور(رقم-۱۷ - (۱۷۱۸)) ابن ماجة الکتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم]باب تعظیم حدیث رسول الله صلی الله علیه وسلم. والتغلیظ علی من عارضه(رقم-۱۴) وابو داود کتاب السنة/باب فی لزوم السنة(رقم-۴۶۰۶)و احمد فی المسند:۶/۲۷۰

**ترجمه:** [١] او حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها روايت كوي چې نبی کریم ﷺ وفرمايل [٢] چا چې زمونږ په دې دين كښې داسې نوې خبره راوايستله چې هغه په دې كښې نه وي نو هغه مردود دې. بخاري او مسلم

**حل اللغات:** ① أَحْدَثَ: أَيْ: جَدَّدَ وَابْتَدَعَ: نوې خبره، بدعت ئې راوايستلو. ② أَمْرِنَا: أَيْ: فِي دِينِ الْإِسْلَامِ: د دې نه دين اسلام او شريعت مطهره مراد دې. ③ رَدٌّ: أَيْ: مَرْدُودٌ عَلَيْهِ: رد كړې شوې دې، ناقابل قبول دې.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ أَحْدَثَ فِي أَمْرِنَا هَذَا:

**په هذا سره اشاره كولو كښې حكمت:** دلته داشاره قريب صيغه استعمال كړې شوې ده. سره دَدې چه دين محسوس او مبصرنه دې. په دې سره دَ دين اسلام ډير واضح او روښانه كيدو طرف ته اشاره ده. چه دَ دلائلو او يقينياتو په اعتبارسره دا دين داسې روښانه دې لكه چه يو محسوس او مبصرخيز وي.

**قوله:** أَحْدَثَ:

**نوټ:** د بدعت تعريف د باب په اول كښې تيرشوې دې هغې ته رجوع اوكړئ.

### [١٤١] هر بدعت ګمراهي ده

١٤١-(٢)[٢] [١] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ([٢] «أَمَّا بَعْدُ، فَإِنَّ خَيْرَ الْحَدِيثِ كِتَابُ اللَّهِ، وَخَيْرَ الْهَدْيِ هَدْيُ مُحَمَّدٍ، [٣] وَشَرَّ الْأُمُورِ مُحْدَثَاتُهَا، وَكُلُّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ») رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] جابر رضي الله عنه وايي چې حضور ﷺ په يوه خطبه كښې وفرمايل [٢] وروسته د دې څخه پوهيدل پكار دي چې د ټولو څخه ښه خبره د الله كتاب دي، د ټولو څخه ښه لاره د محمد (ﷺ) لاره ده [٣] او د ټولو څخه بد ترينه شي هغه دي كوم چې (په دين كې نوي را ايستل شوي وي او هر بدعت (دخپله ځانه په دين كې پيدا كړي نوي خبره) ګمراهي ده. مسلم

**حل اللغات:** ① الْحَدِيثِ: أَيْ: مَا يُتَحَدَّثُ بِهِ وَيُتَكَلَّمُ: خبرې كوم باندې چه كلام كيږي. ② الْهَدْيِ: اى السِّيرَةُ: سيرت ته وائى په ښه لار باندې هم ددې اطلاق كيږي. ③ مُحْدَثَاتُهَا: يَعْنِي الْبِدَعَ: بدعاتو ته وائى (بدعات اعتقادی، قولی او فعلی ټول پكښې داخل دی). ④ بِدْعَةٍ: أَيْ إِحْدَاثُ مَا لَمْ يَكُنْ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: په لغوی توګه بدعت يو نوې څيز اونوی كار كولوته وائی. او دَ شريعت په اصطلاح كښې بدعت هغه نوې كاردې چه په خيرالقرون كښې نه وی او سلف اوخلف دَهغې طرف ته محتاج وی. او يو سړې هغه دَ ثواب حاصلولو په نيت اوكړی. ⑤ ضَلَالَةٌ: ګمراهی

[١] اخرجه مسلم فى كتاب الجمعة / باب تخفيف الصلاة والخطبة رقم الحديث ٢٠٤٢

**تسهیلات: قوله: أَمَّا بَعْدُ.**

رسول الله ﷺ کیدی شی چه خطبه ارشادفرمائیله په دې وجه نی دَامام بعدکلمه اوفرمائیله دَدې کلمې متعلق په شروع کښې پوره تفصیل تیرشوې دې.

**قوله: وَكُلُّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ.**

**د هربدعت گمراهی:** په يوروايت کښې راغلی دی "وكل ضلالة في النار" يعنی دَ گمراهئ اهل خلق به ټول په دوزخ کښې وی. په دين اسلام کښې بدعت يوخطرناك څيزدې په کوم سره چه دَدين مسخ کیدو خطره پيداکيږی اودين فاسد کيږی.

**مذکوره حديث کښې د بدعت څخه مراد:** په زيربحث حديث کښې د بدعت څخه اصطلاحی شرعی بدعت مراد دې دکوم چې ټول افراد مذموم دی باقی پاتې شو بدعت لغويه نودهغې بعضې افراد مستحب بلکه واجب هم دی.ترکومې پورې چې د بدعت شرعی خبره ده نو د دې حديث په رڼا کښې هرقسم اصطلاحی شرعی بدعت مذموم او ګمراهی ده.

**[۳۲] دالله تعالی په نيز درې مبغوض کسان**

۳۲-()[۳] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ([۲] «أَبْغَضُ النَّاسِ إِلَى اللَّهِ ثَلَاثَةٌ: [۳] مُلْحِدٌ فِي الْحَرَمِ، وَمُبْتَغٍ فِي الْإِسْلَامِ سُنَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ، [۴] وَمُطَّلِبُ دَمِ امْرِئٍ بِغَيْرِ حَقٍّ لِيُهَرِيقَ دَمَهُ») رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن عباس ﷺ روايت کوي چې حضور ﷺ وفرمايل[۲] د الله تعالی ﷻ په نيزد د ټولو څخه لوي مغضوب (يعني هغه خلق چې د هغوئ څخه الله تعالی ﷻ سخت ناراضه دي) درې دي،[۳] ۱: په حرم کښې کجروي کونکي. ۲: په اسلام کښې د جاهليت د زماني طريقو لټونکي،[۴] ۳: د يو مسلمان د ناحقه ويني طلبګار چې د هغه وينه توي کړي. بخاري

**حل اللغات:** ① مُلْحِدٌ: أَيْ: ظَالِمٌ أَوْ عَاصٍ: الحاد دَنيغې لار نه اخواکيدل او کګې لارې ته وائی. ② مُبْتَغٍ: أَيْ: طَالِبٌ: لټونکي، تلاش کونکي. ③ سُنَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ: د جاهليت د زماني طور طريقه (لکه لونړه بنځول، جواری وغيره. ④ مُطَّلِبُ: أَيْ: مُجْتَهِدٌ فِي الطَّلَبِ: چه په دې طلب اوکوشش کښې لګيا وی. ⑤ لِيُهَرِيقَ: چه توئې کړی، اوبهيوی.

**تسهیلات:**

**قوله: أَبْغَضُ النَّاسِ إِلَى اللَّهِ ثَلَاثَةٌ.**

[۱]) اخرجه البخاری کتاب الديات/باب من طلب دم امرئ بغير حق (رقم-۶۸۸۲)

**اشكال:** د حديث د ظاهر څخه دا معلوميږي کوم مسلمان چې په هغه کښې دا درې واړه صفات وي نو د هغه څخه هغه کافر بهتر دې په کوم کښې چې دا درې صفات نه وي.

**د اشكال جواب:** دلته په حديث کښې ګناهګار مسلمانان مراد دي ټول خلق مراد نه دي لکه څکه چې په بل حديث کښې وئيلي شوي دي ((ابغض البلاد الى الله اسواقها)) يعني په ټولو کښې ناخوښه ځايونه بازارونه دي حالانکه په بازار کښې چې کوم کسان کار کوي هغه ټول مبغوض نه وي.

**قوله:** مُلْحِدٌ فِي الْحَرَمِ:

**د ملحد في الحرم پيژندګلو:** ملحد في الحرم هغه سړي دې چه په حرم شريف کښې دَ شريعت دَ احکامو خلاف ورزي کوي. دَ الله تعالى دَ حرم بې حرمتي کوي. او هلته بدامني خوروي، جګړه کوي او هلته ښکار کوي. وئيلي شي چه په حرم شريف کښې دَ ګناه تصور کول هم ګناه ده او صغيره هم کبيره شميرلې کيږي.

**قوله:** سُنَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ:

**د سنة الجاهلية څخه مراد:** يعني دَ اسلام قبلولونه پس په بدبختئي سره دَ جاهليت رسم اورواج په اسلام کې رائج کوي. مثلاً نوحه کول، ګريوان شلول، ماتم کول، وينته شوکول قومي تعصب ته هوا ورکول اودَ جاهليت بدعت په اسلام کښې داخلول وغيره وغيره.

**قوله:** وَمُطَّلِبُ دَمِ امْرِئٍ:

**د مذکوره جملې مطلب:** يعني دَ يو مسلمان دَ ناحقه وينې په لټون کښې لګيدل لويه ګناه ده علماؤ ليکلي دي چه دَدې جملې اودَدې نه دَ مخکښې جملې مطلب دادې چه دا سړي دَ دې ګناهونو دَ لټون دَ وجې نه ګناهګار جوړشوې دې نوچه کوم خلق دا ګناه کونکې وي دَهغوي ځائې به کوم ځائې وي؟

**د صفات ثلاثة د تخصيص وجه:** دا دريواړه خصلتونه ئې خاص کړل څکه چه:

① په اول صفت کښې دحرم مرکزيت اودهغې د احترام د وجې ددې تخصيص اوکړې شو.

② په دويم صفت کښې دَ حدود اسلام رعايت دې.

③ په دريم کښې دَ امن عامه خصوصيت دې.

**[١٤٢] د نبي عليه السلام په تابعداري جنت ته تلل**

| ٣٣-( )[٣] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] «(كُلُّ أُمَّتِي يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ إِلَّا مَنْ أَبَى) [٣] قِيلَ: وَمَنْ أَبَى؟ قَالَ: (مَنْ أَطَاعَنِي دَخَلَ الْجَنَّةَ [٤] وَمَنْ عَصَانِي فَقَدْ أَبَى») رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. |
|---|

[١] ) اخرجه البخاري كتاب الاعتصام والسنة/باب الاقتداء بسنن رسول الله صلى الله عليه وسلم (رقم-٧٢٨٠)و احمد في المسند:٢/

**ترجمه:** [۱] ابو هریره رضی الله عنه روایت کوي چې حضور ﷺ وفرمایل [۲] زما ټول امت به په جنت کښې داخل شی لیکن هغه سړي چې هغه انکار اوکړو او سرکشي وکړي هغه به په جنت کښې نه داخلیږي، [۳] نو پوښتنه څیني وشوه هغه کوم سړي دي چې هغه انکار وکړي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل کوم سړي چې زما اطاعت او فرمانبرداري وکړه هغه به په جنت کښې داخل شو [۴] او چا چې زما نافرماني وکړه نو هغه انکار اوسرکشي وکړه بخاري

**حل اللغات:** ① أبی: أي امْتَنَعَ عَنْ قَبُولِ مَا جِئْتُ بِهِ: انکار نه مراد ددین اسلام نه قبلول دی.

**تسهیلات: قوله:** كُلُّ أُمَّتِي:

**دامت په مصداق کښې دوه احتمالات:**

① که د امت څخه امت دعوت مراد وی نو بیا د حدیث مطلب دا شو چې زما ټول امت دعوت به جنت ته داخلیږی خو هغه څوک به نه داخلیږی څوک چې د ((من ابی)) مصداق وی په دې صورت کښې به د «من ابی» مصداق کافر وی.

② که دامت څخه امت اجابت مراد شی نو بیا به د حدیث مطلب دا شی چې زما د امت اجابت ټول خلق به جنت ته داخلیږی خوهغه څوک به نه داخلیږی څوک چې د «من ابی» مصداق وی په دې صورت کښې به د «من ابی» مصداق عصاة المؤمنین وی اودا حدیث به په زجر او توبیخ باندې حمل وی.

**[۱٤٤] د نبی علیه السلام مثال**

۱۴۴-()[۵] [۱] وَعَنْ جَابِرٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: «جَاءَتْ مَلَائِكَةٌ إِلَى النَّبِيِّ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-وَهُوَ نَائِمٌ، [۲] فَقَالُوا إِنَّ لِصَاحِبِكُمْ هَذَا مَثَلًا فَاضْرِبُوا لَهُ مَثَلًا [۳] قَالَ بَعْضُهُمْ: إِنَّهُ نَائِمٌ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: إِنَّ الْعَيْنَ نَائِمَةٌ وَالْقَلْبَ يَقْظَانُ. [۴] فَقَالُوا: مَثَلُهُ كَمَثَلِ رَجُلٍ بَنَى دَارًا وَجَعَلَ فِيهَا مَأْدُبَةً وَبَعَثَ دَاعِيًا [۵] فَمَنْ أَجَابَ الدَّاعِيَ دَخَلَ الدَّارَ وَأَكَلَ مِنَ الْمَأْدُبَةِ، وَمَنْ لَمْ يُجِبِ الدَّاعِيَ لَمْ يَدْخُلِ الدَّارَ وَلَمْ يَأْكُلْ مِنَ الْمَأْدُبَةِ. [۶] فَقَالُوا: أَوِّلُوهَا لَهُ يَفْقَهْهَا. قَالَ بَعْضُهُمْ: إِنَّهُ نَائِمٌ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: إِنَّ الْعَيْنَ نَائِمَةٌ وَالْقَلْبَ يَقْظَانُ. [۷] فَقَالُوا: الدَّارُ الْجَنَّةُ، وَالدَّاعِي مُحَمَّدٌ [۸] فَمَنْ أَطَاعَ مُحَمَّدًا فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ، وَمَنْ عَصَى مُحَمَّدًا فَقَدْ عَصَى اللَّهَ، وَمُحَمَّدٌ فَرْقٌ بَيْنَ النَّاسِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضی الله عنه فرمایي چې څه فرشتي حضور ﷺ ته هغه وخت راغلي چې حضور ﷺ اوده وو، [۲] هغوئ (فرشتو) په خپلو کښې اوویل ستاسو د دې دوست یعنی د حضور ﷺ متعلق یو مثال دي هغه د ده په مخ کښې بیان کړي، [۳] نورو فرشتو اوویل هغه خو اوده دي، نو د بیانولو څه فایده، په هغوئ کښې بعضو اوویل بیشکه سترګي يي اوده دي لیکن زړه يي ویښ دي، [۴] بیا هغوئ اوویل د ده مثال د هغه سړي

[۱] اخرجه البخاری کتاب الاعتصام والسنة/ باب الاقتداء بسنن رسول الله صلی الله علیه وسلم (رقم-۷۲۸۱) والترمذی کتاب الأمثال عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی مثل الله لعباده (رقم-۲۸۶۰)

پشان دي چې هغه کور جوړکي او د طعام خوړلو د پاره يي سترخوان وغوړوي او بيا د خلقو د رابللو د پاره يي يو سړي وليږلي۞ نو چا چې د بلونکي خبره ومنله هغه به په کور کې داخل شي او طعام (خوراك) به وخوري او چا چې د بلونکي خبره قبوله نه کړه هغه نه په کور کې داخل شو او نه يي خوراك وخوړلو۞ په دي اوريدو سره فرشتو په خپلو کښې اوويل دا په وضاحت سره بيان کړي چې په دي پوه شي، بعضې فرشتو اوويل چې (د بيان کولو څخه څه فايده ځکه چې هغه خو اوده دي، نورو اوويل بې شکه سترګې يي اوده دي ليکن زړه خوږي ويښ دي، ۞او بيايي اوويل د کور څخه مراد جنت دي او د بلونکي څخه مراد محمد ﷺ دي،۞ چا چې د هغه فرمانبرداري وکړه هغه د الله تعالى ﷻ فرمانبرداري وکړه او چا چې دمحمد ﷺ نافرماني وکړه هغه د الله تعالى ﷻ نافرماني وکړه او محمد ﷺ د خلقو په مينځ کښې فرق کونکي دي. بخاري

**حل اللغات:** ① فَاضْرِبُوا: أَيْ: بَيِّنُوا: جوړکړئ، بيان کړئ، ② يَقْظَانُ: بيدار، ويخ، ③ مَأْدُبَةً: أي طَعَامُ عَامٌ يُدْعَى النَّاسُ إِلَيْهِ كَالْوَلِيمَةِ: عامه روټئ او خيرات ته وائی چه هر چاته پکښې د شريکيدو دعوت وی. ④ الدَّاعِيَ: رابلونکې، ⑤ أَوِّلُوهَا: أَيْ: فَسِّرُوا: يعنى تاويل او تفسير ددې خوب يا قصې ورته بيان کړئ، ⑥ يَفْقَهْهَا: أَيْ يَفْهَمْهَا: چه پوهه شی پرې (نو بيا به پرې خلق هم پوهه کړی). ⑦ فَرْقٌ: أَيْ: فَارِقٌ: دا په معنی د فارق سره دې يعنی فرق کونکې دې په مينځ د مؤمن اوکافر کښې، د صالح او فاسق کښې.

**تسهيلات:**

**قوله: وَالْقَلْبَ يَقْظَانُ:**

**د نبی عليه السلام زړه نه اوده کيدل:** دعامو خلقو د خوب اثر ظاهری اوباطنی ټولو اندامونو باندې وی او سترګو سره زړه هم اوده کيدو سره د ادراك او شعور نه غافليږی. ليکن د نبی په خوب سره صرف ظاهری اندامونه متاثر کيږی د زړه په ادراك او شعور باندې د خوب اثر نه وی.

**دنبی د زړه نه اوده کيدو وجه:** د ډيرو احاديثونه ثابتيږی چه دانبياء کرامو زړه نه اوده کيږی ځکه چه دنبی په زړه باندې هروخت د عالم بالا نه د وحی نزول کيږی. نو په خوب او بيدارئی کښې دعلوم وحی د حصول دپاره دزړه تياريدل ضروری وی. هم دغه وجه ده چه دنبی خوب د وحی يو مستقل قسم دې کوم چه قطعی او يقينی وی. حضرت ابراهيم عليه السلام هم دخوب د وجې نه د اسماعيل عليه السلام د ذبح کولو فيصله اوکړه. که چرې د خوب حيثيت يقينی او قطعی نه وې نود اولاد د قتل په شان عمل ارتکاب به ئی ځنګه کولو؟ هم دغه وجه ده چه نبی د خوب نه پاسول جائز نه دی. ممکن ده چه وحی کيږی اوهم دغه وجه ده چه د انبياء کرامو خوب ناقض وضو نه دې.

**اشکال:** په کتاب الصلوة کښې لیلة التعریس په نوم سره یو حدیث راځی. په هغې کښې دي چې حضورپاك په یو ځائی کښې ډیره واچوله او ټول لښکر والا اوده شو؟ حضورپاك هم اوده شو اوډ نمر راختو نه پس ئې سترګې کولاؤ شوې او ډ سحرمونځ قضاء شو، که چرې ډ رسول الله ﷺ زړه ویښ وو نو مونځ ولې قضاء شو؟ او په وخت باندې ولې بیدار نه شو؟

**داشکال دوه جوابونه:** ① دقضاء شوی مونځ عملی تعلیم ورکولودپاره الله تعالی خلاف معمول د نبی ﷺ څخه د صبا مونځ قضاء کړل چې د خوب په وجه د قضاء شوی مونځ احکام معلوم شی.

② دانسان په بدن کښې ډ هر یو اندام خپل کار او ذمه واری ده. ډ سحر ادراك کول اوهغه لیدل اومعلومول دا ډ زړه ذمه واری نه ده بلکه ډ سترګو ذمه واری ده. هم دغه وجه ده چه که یو سړې سترګې پټې کړی نو ډ ویښې په حالت کښې هم هغه په صبح صادق باندې نه شي پوهیدلې حالانکه زړه ئې بیدار دې مګر سترګې پټې دی. دلته هم دغه شان معامله ده. ډ حضورپاك زړه بیدار وو لیکن ډ سحر پیژندل ډ زړه کار نه وو بلکه ډ سترګو وو او په ظاهری توګه باندې سترګې ډ خوب ډ وجې نه متاثر وې. نوډ سحر ادراك هغه وخت اوشو کله چه نمر بدن په احساس سره متاثر کړو اوډ بدن قوتِ حاسه محسوس کړه چه ډ سحر وخت اووتلو بلکه نمر راختلې دې.

**قوله:** وَالدَّاعِي مُحَمَّدٌ:

**په حدیث کښې تشبیهات:** ① د نبی ﷺ تشبیه د رجل سره ورکړې شوې ده.
② د جنت تشبیه د دار سره ورکړې شوې ده.
③ د جنت د نعمتونو تشبیه د مادبة سره ورکړې شوې ده.

**اشکال:** بعضې نورو روایاتو کښې ډ داعی نه مراد الله تعالی دې. اوډ مادبة نه مراد جنت دې. اوډ دار نه مراد اسلام اخستې شوې دې. د کوم نه چه په ظاهره تعارض معلومیږی.

**د تعارض جواب:** په دې کښې هیڅ تعارض نشته دې ځکه چه اصل او بلاواسطه داعی الله تعالی دې. او نبی کریم بالواسطه داعی دې نوکله نسبت بلاواسطه اوکله بالواسطه کړې شوې دې.

**قوله:** وَمُحَمَّدٌ فَرْقٌ بَيْنَ النَّاسِ:

**د فرق کیدو مطلب:** یعنی حضورپاك ډمؤمن اوکافر په مینځ کښې فارق دې چه د حضورپاك منونکې مؤمن او نه منونکې کافر دې. څوك چه محمدی دې هغه مؤمن دې او څوك چه محمدی نه دې هغه مسلمان نه دې. ځکه چه په میدانِ حقانیت کښې اوس هم ډمحمدیت شهرت او دور دې.

## [١٤٥] د سنتو څخه د بې رغبتۍ وعيد

٣٥-()[٢] [١] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «جَاءَ ثَلَاثَةُ رَهْطٍ إِلَى أَزْوَاجِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] يَسْأَلُونَ عَنْ عِبَادَةِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٣] فَلَمَّا أُخْبِرُوا بِهَا كَأَنَّهُمْ تَقَالُّوهَا ; [٤] فَقَالُوا: أَيْنَ نَحْنُ مِنَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٥] وَقَدْ غَفَرَ اللّٰهُ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَا تَأَخَّرَ؟!.

**ترجمه:** [١] حضرت انس ﷺ روايت كوي چې دري كسه د نبی كريم ﷺ د بيبيانو په خدمت كې حاضري شو ، [٢] چې د هغوئ څخه د نبی كريم ﷺ د عبادت حال وپوښتي ، [٣] هر كله چې دوي ته د نبی كريم ﷺ د عبادت حال وښودل شو نو هغوئ ګويا د ده ﷺ عبادت كم وګڼلو [٤] واپس سمدستي يي يووبل ته سره اوويل چې د حضور ﷺ په مقابله كښې زمونږ څه يو [٥] الله تعالى ﷻ خو د هغه مخكې ورستني ټول ګناهونه معاف كړي دي ،

**حل اللغات:** ① رَهْط : أي العِصَابَةُ: جماعت او ډله ، (العِصَابَةُ دُونَ الْعَشَرَةِ، وَقِيلَ: دُونَ الْأَرْبَعِينَ) ② تَقَالُّوهَا: باب تفاعل دې مجرد ني قلة دې ، أيِ اسْتَقَلُّوهَا: كم ئې او ګڼړلو (عبادت د نبي ﷺ)

[١] فَقَالَ أَحَدُهُمْ: أَمَّا أَنَا فَأُصَلِّي اللَّيْلَ أَبَدًا. [٢] وَقَالَ الْآخَرُ: أَنَا أَصُومُ النَّهَارَ أَبَدًا، وَلَا أُفْطِرُ. [٣] وَقَالَ الْآخَرُ: أَنَا أَعْتَزِلُ النِّسَاءَ فَلَا أَتَزَوَّجُ أَبَدًا، [٤] فَجَاءَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِلَيْهِمْ [٥] فَقَالَ: " أَنْتُمُ الَّذِينَ قُلْتُمْ كَذَا وَكَذَا؟ ! [٦] أَمَا وَاللّٰهِ إِنِّي لَأَخْشَاكُمْ لِلّٰهِ، وَأَتْقَاكُمْ لَهُ، [٧] لَكِنِّي أَصُومُ وَأُفْطِرُ، وَأُصَلِّي وَأَرْقُدُ، وَأَتَزَوَّجُ النِّسَاءَ، [٨] فَمَنْ رَغِبَ عَنْ سُنَّتِي فَلَيْسَ مِنِّي» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] په هغوئ كښې يوه اوويل چې اوس خو به زه هميشه ټوله شپه مونځ كوم اوده كيږم به نه ، [٢] دويم اوويل چې زه به د ورځې هميشه روژه نيسم او هيڅكله به يي نه پرېږدم ، [٣] دريم اوويل چې زه به د ښځو څخه بيل اوسم او هيڅ كله به نكاح نه كوم [٤] نو حضور ﷺ تشريف راوړو ، دپوښتني بعديي و فرمايل [٥] تاسو خلقو داسي داسي ويلي دي؟ [٦] خبردار زه ستاسو څخه زيات د الله تعالى ﷻ څخه ويرېږم او ستاسو څخه زيات تقوي اختياروم ، [٧] ليكن د دي باوجود زه روژه هم نيسم او كله يي پرېږدم هم ، زه د شپې مونځ هم كوم او اوده كيږم هم او د ښځو سره نكاح هم كوم [٨] (او دغه زما طريقه ده نو) كوم سړي چې زما د طريقي څخه مخ اړوي ، هغه زما څخه نه دي (يعني زما د جماعت څخه خارج دي) . بخاري ومسلم

**حل اللغات:** ③ أَعْتَزِلُ: أَيْ أَجْتَنِبُهُنَّ: جدا به اوسيږم ، خان به بچ ساتم. ⑥ لَأَخْشَاكُمْ: أَخْشَى د اسم تفضيل صيغه ده ، زيات ويريږم په نسبت ستاسو. ⑤ أَتْقَاكُمْ: أَتْقَى د اسم تفضيل صيغه ده ، ستاسو په

---

[١] ) اخرجه البخاري كتاب النكاح/باب الترغيب في النكاح (رقم-٥٠٦٣) ومسلم كتاب النكاح/ باب استحباب النكاح لمن تاقت نفسه إليه، ووجد مؤنه، واشتغال من عجز عن المؤن بالصوم (رقم-٥ - (١٤٠١)

نسبت زياته تقوى اختياروم. ⑥أَرْقُدُ: اوده كيږم. ⑦رَغِبَ: أَيْ: مَالَ وَأَعْرَضَ: مخ ئې واړولو، اعراض ئې اوکړو، ⑧فَلَيْسَ مِنِّي: أَيْ: مِنْ أَشْيَاعِي: زما د جماعت نه نه دې (يعنى دمسلمانانو د ډلې نه نه دې).

**تسهيلات: قوله: جَاءَ ثَلَاثَةُ رَهْطٍ:**

**درې سړو څخه مراد:** په دې حديث کښې د درې سړو د سوال او خپل مينځ کښې د خبرو ذکر دې دا درې سړې: ① سيدنا على، ② سيدنا عثمان بن مظعون ③ سيدنا عبد الله بن رواحه رضي الله عنهم دى.

**د درې کسانو مقصود:** د دې حضراتو مقصود دا وو چه رسول الله ﷺ ته خو الله پاک بخښنه کړې ده په دې وجه هغوى ته د دومره عبادت ضرورت نشته څومره چه مونږ ته دې. په دې باندې رسول الله ﷺ خبردارې ورکړو چه په دنيا کښې دې د دنياوى اصولو د رعايت سره د احکام شرعيه پابندى اوکړې شى. ترک دنيا او تجرد په اسلام کښې نشته. دا خو د نصارى طريقه وه چه هغوى به رهبانيت اختيارولو او دا به ئې د عبادت اعلى مقام تصور کولو، اسلام د رهبانيت نفى اوکړه (لا رهبانية فى الاسلام) چه په اسلام کښې دنيا ترک کولو سره په ځنګلو او غارونو کښې تلو سره عبادت کول جائز نه دى. په اسلام کښې نفس په قابو کښې ساتل او هغې لره د الله پاک د مرضئ مطابق روانولو دپاره روژه فرض کړې شوې ده نه رهبانيت.

**د مذکوره درې کسانو عبادات:** ① نوهم دَ دې محنت وړاندې ذکر راځى چې يو اووئيل چې ټوله شپه به مونځ کوم،

② دوئم اووئيل چې هميشه به روژې نيسم، ولا أفطر، يعنى د ايام ممنوعه منهيه څخه علاوه به روژې نيسم، او کله به هم افطار نه کوم.

③ دريم د عدم نکاح عهد اوکړو.

**قوله: فَلَيْسَ مِنِّي:**

**اشکال:** نبى کريم ﷺ په دې حديث کښې فرمائى چې هغه زما څخه يا زمونږ څخه نه دى نو ددې ظاهرى مطلب دا دې چې ددې کار د کولو نه پس به هغه کس مسلمان نه وى بلکه اسلام څخه به خارج وى؟

**داشکال دوه جوابونه:** ① د فليس منى دا جمله چې ده، ددې تعلق عام اسلام او ايمان سره نه دې بلکه مطلب دا دې چې هم په دې جزئيه او په دې عمل کښې دا کس زما څخه نه دې او نه د مسلمانانو په طريقه باندې دې. بلکه په دې جزئې کښې دا کس د بل مذهب والو په شان دې د مسلمانانو په شان نه دې.

② دا کلام دَ اسلوب حکیم په طریقه دې چې داشان دَ لاتعلقۍ اعلان کله چې یو مسلمان واوړی نو هغه به چغې وهی او ژاړی به چې څه خو دخپل نبی ﷺ اودَ خپلې عقیدې څخه واوړیدم، نو توبه به اوباسی او دې معصیت ته به نزدې هم نه ورځی.

**قوله: وَقَدْ غَفَرَ اللّٰهُ لَهُ** دمذکوره جملې د وضاحت څخه وړاندې دعصمت انبیاء مسئله باندې ځان پوهول ضروری دی.

**د عصمت انبیاء مفهوم:** د انبیاء ﷺ د معصوم کیدو مطلب دا دې چه الله پاک په انبیاء ﷺ کښې د باقی انسانانو په شان د ګناه د کولو صلاحیت قدرت او اختیار کیخودلې دې خو الله پاک د انبیاء ﷺ خاص طور سره حفاظت فرمائی او د هغوی نه هیڅ ګناه د بشری تقاضو د وجې نۀ صادر کیږی. ددې داسې مثال دی چې ړوند د بدنظرۍ څخه نشی منع کولی ځکه چې هغه بد نظرکولې نشی نو انبیاء علیهم السلام په ګناه باندې قدرت لری خو ددې باوجود الله تعالی د هغوی حفاظت کوی.

**د انبیاء علیهم السلام څخه د ګناه په صدور کښې اقوال:**

① داهل سنت والجماعت دا عقیده ده چې انبیاء علیهم السلام قبل النبوة اوبعد النبوة د شرک اوکفرڅخه محفوظ وی اوبعد النبوة عمداً اوسهواً د کبائروڅخه محفوظ وی. او قبل النبوة سهوا اوعمداً د صغائرو اوکبائروصدورترې کیدې شی.

② د اشاعرۀ په نیز انبیاء قبل ازنبوت اوبعد ازنبوت د شرک کفر اوکبائروڅخه محفوظ وی خوبعد النبوة سهوا اوعمداً د صغائرو صدور ترې کیدې شی.

③ د ماتردیۀ په نیزانبیاء علیهم السلام قبل النبوة اوبعدازنبوت د صغائرو اوکبائرو څخه محفوظ وی بیا په دوی کښې بعضې وائی چې قبل ازنبوة سهواً ترې د صغائرو صدور کیدې شی.

④ دحشویه فرقې په نیز انبیاء علیهم السلام معصوم نه دی.(والعیاذ بالله)بلکه د هغوی څخه ګناه کیدې شی.

**دعصمت انبیاء دلائل:** ① الله تعالی فرمائیلی دی ((وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا لِيُطَاعَ بِاِذْنِ اللّٰهِ)) نبی هرقدم د الله تعالی په تابعداری کښې اوچتوی که ګناه کوی نو د الله تعالی نافرمانی لازمیږی.

② مرتکب د معصیت قابل عتاب وی که نبی ګناه اوکړی نو دامت د طرفه به معتوب وی اودا د نبی د شان خلاف خبره ده.

③ که انبیاء معصوم نه شی نوبیا به د هغوی څنګه کولی شی اوهغوی به د الله تعالی د طرفه څنګه نمائندګان جوړشی.

**اشكال:** په بعضې نصوصو کښې انبياء عليهم السلام ته د ذنب نسبت شوې دې كه دوى معصوم وې نو بيا ورته د ذنب نسبت ولې شوې دې؟

**د اشكال جوابونه:** ① په کومو نصوصو کښې چې نبى ته د ذنب نسبت شوې دې نو دهغې څخه د امت ذنب مراد دې د نبى ذنب مراد نه دې.

② د ذنب څخه مراد خلاف اولى دې ځکه چې د انبياؤ مقام ډير اوچتې دې نو په خلاف اولى باندې هم هغوى ملامته کړې شوى دى. نوهغوى ته چې په کومونصوصو کښې د ذنب نسبت شوې دې د هغې څخه معصيت مراد نه دې.

**اشكال:** انبياء ﷺ خو بغير د تخصيص نه معصوم او مغفور دى بيا په دې آيت كريمه کښې رسول الله ﷺ ولې خاص کړې شو.

**د اشكال جواب:** نفس مغفرت ټولو انبياءعظام ﷺ ته عام دې. اعلان مغفرت د رسول الله ﷺ دپاره خاص دې د دې وجه دا ده چه کوم څیزونه د رسول الله ﷺ خاص دى لكه شفاعت کبرى، مقام محمود وغيره. كه اعلان نه وې کړې شوې نو د قيامت په ورځ باندې به د نورو انبياء كرام ﷺ په شان خپلو لغزشونو لره يادولو سره د قلبى ويرې د وجې نه د خپل خصوصى حق طرف ته پيش قدمى نه كوله. اعلان كولو سره الله پاک رسول الله ﷺ مطمئن کړو. هم دا وجه ده چه کله په ټولو انبياء ﷺ باندې شفاعت كبرى پيش کړې شى نو فرمائى به چه محمد ﷺ ته لاړ شئ الله پاک د هغوى مخکښې روستو ټول گناهونه معاف کړې دى. (فيض البارى)

**اشكال:** د مغفرت ﴿ما تأخر﴾ معنى په فهم کښې نه راځى، يعنى چه كومه گناه به په مستقبل کښې صادر کيږى په ماضى کښې د هغې د معاف كولو څه معنى ده او بيا معافى د گناه د کولو نه پس راځى او دلته چه کوم څيز معاف کړې شوې دې هغه بالكل په وجود کښې نه دې راغلې.

**د اشكال جوابونه:** ① حافظ توربشتى رحمه الله جواب وركولو سره فرمائيلې دى چه دلته د مغفرت نه مراد عدم مواخذه ده يعنى كه په مستقبل کښې كه څه گناه صادر هم شوه نو په هغې باندې به مواخذه نه وى يا دا چه د الله پاک د علم مطابق چه کوم گناهونه په مستقبل کښې صادر كيدونكى دى هغه د مخکښې نه معاف کولې شى. يا دا چه د مغفرت تعلق د آخرت سره دې او د آخرت نه مخکښې ټول څيزونه ماضى دى.

② علامه کشميرى رحمه الله د د شاه ولى الله نه نقل کړى دى چه په دې آيت كريمه کښې د مغفرت مقتضاء عدم عمل وترک احتياط نه دې بلكه د عمل زيادت او احتياط د دې مقتضى دې. لكه چه د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړې شو چه يا رسول الله ﷺ! ستاسو

خو الله پاک مغفرت کړې دې بیا تاسو دومره د عمل مشقت ولې اوچتوئ؟ نو رسول الله ﷺ جواب ورکړو (افلااکون عبداشکورا) نو د اعلان مغفرت مطلب د عمل زیادت او احتیاط دې چه د مغفرت شکر ادا کړې شی. لکه چه رسول الله ﷺ په غزوه بدر کښې شریک کیدونکو ته خطاب کولو سره فرمائیلي وو چه څه غواړئ کوئ ستاسو مغفرت کړې شوې دې. لهذا دلته د مغفرت مقتضاء د عمل زیادت دې نه دا چه د تکلیف ساقط کول دی.

③ مغفرت د عالم آخرت معامله ده په آخرت کښې به ما تاخرهم ما تقدم اوګرځی نو څه اشکال پاتې نشو.

④ د ما تقدم او ماتاخراصول وکلیه د مخلوق دباره ده خالق دپاره ما تقدم او ماتاخردواړه یو حیزدي.

⑤ په ما تقدم اوما تاخر کښې مقصود ما تقدم دې د ما تاخر ذکر د محاورې په توګه شوې دې لکه څنګه چې دوکاندار ګاهک ته اووائی په دې نرخ کښې کمې زیاتې نه کیږی. نودلته هم مقصد کمې دې زیاتې د محاورې په طور باندې ذکرشوې دې.

⑥ د ما تقدم ذکر د مغفرت دپاره دې اود ما تاخرذکر په طور د تکریم دې.

**اشکال:** صوفیاء کرامو هم د دې ګمراه فرقو د اقوالو سره یو شان خبرې کړې دی چه سالک چه کله مقام د معرفت ته اورسیږی نو د هغه نه تکلیف د عبادت ختم شی بیا په دواړو کښې څه فرق دې؟

**داشکال جواب:** د صوفیاء کرامو په نزد د تکلیف معنی مشقت ده چه د هغې مطلب دا دې چه د سالک په عبادت کښې مشقت نه پاتې کیږی بلکه خوند پکښې پیدا شی. (شرح فقه اکبر ص ١٤٩)

## [١٤٦] دبې ځایه پرهیزګارۍ ممانعت

٣٦-()[٧] ١ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: «صَنَعَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - شَيْئًا، فَرَخَّصَ فِيهِ، ٢ فَتَنَزَّهَ عَنْهُ قَوْمٌ، فَبَلَغَ ذَلِكَ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ؟ فَخَطَبَ فَحَمِدَ اللَّهَ، ثُمَّ قَالَ: " ٣ مَا بَالُ أَقْوَامٍ يَتَنَزَّهُونَ عَنِ الشَّيْءِ أَصْنَعُهُ؟ ! ٤ فَوَاللَّهِ إِنِّي لَأَعْلَمُهُمْ بِاللَّهِ وَأَشَدُّهُمْ لَهُ خَشْيَةً» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ او حضرت عائشه صدیقه ﷺ فرمایي چې سرداردوعالم ﷺ یو کار اوکړو او د هغه اجازت یې ورکړه ٢ لیکن بعضې خلقو د هغه څخه پرهیز اوکړو بیا چې حضور ﷺ خبر شو نو ده ﷺ خطبه ورکړه او د الله د حمد او تعریف څخه وروسته یې وفرمایل ٣ چې د خلقو څه حال دې چې د هغه شي څخه پرهیز کوي کوم چې زه کوم، ٤ په الله مې دې قسم

[1] ) اخرجه البخاری کتاب الادب باب من لم یواجه الناس بالعتاب(رقم-٦١٠١)و احمد فی المسند:٦/٤٥

وي چې زه د الله تعالی ﷻ مرضي او نا مرضي د دوي څخه زیاته پیژنم او د دوي څخه زیات د الله څخه ویریږم. بخاري و مسلم

**حل اللغات:** ① صَنَعَ: أَيْ إِجَادَةُ الْفِعْلِ: کار کولو ته وائي یعنی نبی ﷺ یو کار اوکړو. ② فَرَخَّصَ: او خلقو ته ئې هم د کار کولو اجازت ورکړو. ③ فَتَنَزَّهَ: أَيْ: عَنْ ذٰلِكَ الصُّنْعِ: لیکن بعضې خلقو د هغه کار څخه پرهیز اوکړو.

**تسهیلات:**

**قوله:** صَنَعَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - شَيْئًا:

**د صنع مصداق:** ممکن دی چې ددې کار څخه مراد د روژې په حالت کښې د خپلې ښځې ښکلولو اجازت وی. نبی کریم ﷺ پخپله عمل اوکړو، خلق ئې په رخصت پرېښودل. خو څه خلقو ددې څخه پرهیز اوکړو او احتیاط ئې اوکړو، نو نبی کریم ﷺ په دغه موقع دا ارشاد اوفرمائیل.

**قوله:** فَرَخَّصَ فِيهِ،

**د رخصت په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① یعنی نبی ﷺ په رخصت باندې دعمل کولو رخصت او اجازت ورکړو.

② په رخصتونو باندې د عمل کولو حکم ئې ورکړو.

مطلب دا چې صحابه کرامو ﷺ دا خیال اوکړو چې په عزیمت باندې عمل کولو کښې ثواب زیات دې او په رخصت کښې کم دې د نبی ﷺ مقام خو اوچت دې که هغوی په عزیمت عمل کوی او که په رخصت څه پرواه نه کوی او مونږ خو ګناهګار یو مونږ لره په عزیمت باندې عمل کولو پکار دی چې زیات څخه زیات کمالات راته حاصل شی نو نبی ﷺ په دې باندې تنبیه اوفرمائیله چې کله کله په رخصت باندې هم عمل پکار دې چې الله تعالی ته خپله عاجزی او انکساری ښکاره کړی.

**په رخصت باندې عمل کولو کښې حکمتونه:** ① که په رخصت باندې عمل کوی او نیت ئې د عزیمت وی نو د عزیمت هومره ثواب ملاویږی. څکه چې الله تعالی ته چې څنګه په خپلو عزیمتونو باندې عمل کول خوش دی دغه شان په رخصتونو باندې عمل کول هم خوښ دی.

② په اعمالو کښې آسانتیا پیدا کیږی

③ د بنده عجز او ضعف ښکاره کیږی.

**قوله:** إِنِّي لَأَعْلَمُهُمْ:

**په عبادت کښې مقصود:** یعنی څه ددې ټولو څخه زیات پوهیدونکې یم، او د ټولو څخه زیات متقی هم یم. او د ټولو څخه زیات د الله تعالی څخه هم ویریږم. او حقوق الله او

حقوق العباد هم ادا کوم. او دا کارونه او دا خيزونه د الله تعالى د ويري او تقوى خلاف نه دى. څه خلقو غوښتل چې په عمل کښې د نبى کريم ﷺ څخه وړاندې لاړ شى او د رخصت د پريښودلو او په عزيمت باندې د عمل کولو اراده ئې لرله خو معتوب شو. ځکه چې کثرت عبادت مقصود او مطلوب نه دې بلکه شدت اطاعت مقصود و مطلوب دې.

**[٣٧] په دنياوى امورو کښې د نبى د اطاعت عدم وجوب**

٣٧-( )[٨][١] وَعَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَدِمَ نَبِيُّ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَهُمْ يُؤَبِّرُونَ النَّخْلَ،[٢] فَقَالَ: مَا تَصْنَعُونَ؟. قَالُوا: كُنَّا نَصْنَعُهُ.[٣] قَالَ: "لَعَلَّكُمْ لَوْ لَمْ تَفْعَلُوا كَانَ خَيْرًا. فَتَرَكُوهُ، فَنَقَصَتْ.[٤] قَالَ: فَذَكَرُوا ذَلِكَ لَهُ.[٥] فَقَالَ: إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ، إِذَا أَمَرْتُكُمْ بِشَيْءٍ مِنْ أَمْرِ دِينِكُمْ، فَخُذُوا بِهِ ;[٦] وَإِذَا أَمَرْتُكُمْ بِشَيْءٍ مِنْ رَأْيِي، فَإِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت رافع بن خديج رضی الله عنه بيان کوي چې کله سرداردوعالم ﷺ مديني ته تشريف راوړلي هغه وخت د مديني خلقو د خرماوو په ونو کښې تابير کولي (يعني د ماده ونې ښاخ پريکول په هغه کښې د نرښاخ بندول)، [٢] حضور ﷺ (دا ليدلو سره) وفرمايل چې تاسو دا څه کوي؟ د مديني خلقو عرض اوکړو چې مونږ داسې کوو، [٣] حضور ﷺ ورته وفرمايل که تاسو داسې ونه کړي نو شائد چې بهتر وي، خلقو د حضور ﷺ دا ارشاد اوريدو سره هغه پريښودل او په هغه کال ميوه کمه وشوه، [٤] روايت کونکي وايي چې د دې ذکر حضور ﷺ ته وشوه، [٥] نو حضور ﷺ وفرمايل چې زه هم يو انسان يم، نو کله چې زه تاسو ته داسې حکم درکړم چې ستاسو د دين وي نو هغه قبول کړي [٦] او کله چې کمه خبره پخپلې رأې سره تاسو ته وکړم نو تاسو پوه شى چې زه هم انسان يم (يعني خطايي پکښې راتلاي شي). مسلم

**حل اللغات:** ① يُؤَبِّرُونَ: أَيْ: يُلَقِّحُونَ: يَعْنِي: يَجْعَلُونَ الذَّكَرَ فِي الْأُنْثَى: تابير د باب تفعيل نه د اصلاح په معنى کښې دې. بل دا د تلقيح اوپيوند په معنى کښې هم راځي. چه د نر کهجورې قلم په ماده کهجورې کښې اولګولې شى. ② فَنَقَصَتْ: نو کمه اوشوه ميوه

**تسهيلات:**

**قوله: يُؤَبِّرُونَ النَّخْلَ**

**د قلم لګولو دوه طريقې:** ① چه د نر کهجورې قلم په ماده کهجورې کښې اولګولې شى. ② چه د نر کهجورې د ونې ګل د ماده کهجورې په ګل باندې اولګولې شى دې د پاره چه ميوه زياته اوکړی.

[١] اخرجه مسلم كتاب الفضائل/باب وجوب امتثال ما قاله شرعا، دون ما ذكره صلى الله عليه وسلم من معايش الدنيا، على سبيل الرأي(رقم-١٤٠ - (٢٣٦٢)

**د تابیر باره کښې د مدینې د خلقو تعامل:** د مدینې منورې خلقو داعمل د مدینې په باغونو کښې کولو ځکه چه د کهجورې ونه د حضرت آدم ﷺ د پاتې شوې ختې د حصې نه جوړه ده په دې وجه په دې کښې هم هغه عادات دی کوم چه د انسان په مذکر او مؤنث کښې دی. په کوم باغ کښې چه نر کهجور نه وی هلته میوه نه کیږی بیا د دې تابیر په عمل سره فصل کښې اضافه کیږی او میوه هم ښکلې راځی.

**قوله:** لَعَلَّكُمْ لَوْلَمْ تَفْعَلُوا:

**د نبی علیه السلام د مشورې بنیاد:** حضورپاك دا خیال اوکړو چه دا هم د جاهلیت طریقه ده الله تعالی چه څنګه لیکلی وی هم هغه شان به کیږی. نو د دې طریقه کار څه ضرورت دې؟ بل په دې کښې تکلیف او محنت هم دې. حضور پاك نه نفی اوکړه او نه ئی منع اوکړه بلکه د دغه عمل ضرورت ئی ختم کړو جواز خو ئی بیا هم باقی دې. بل طرف ته د الله تعالی په نیز تکوینی توګه باندې په عالم اسباب کښې د دې عمل او د دې محنت هم ضرورت وو په دې وجه د دې عمل په پریخودو سره میوه هم کمه راغله.

**قوله:** فَإِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ:

**په دنیوی امور کښې د نبی علیه السلام د حکم حیثیت:** یعنی زه یو انسان یم کله چه زه څه حکم د دین متعلق تاسو ته درکړم نو هغه اختیاره وئی ځکه چه لامحاله هغه به د وحی نه وی او کله چه زه څه حکم د خپل اجتهاد اورائې نه درکړم نو کیدې شی چه په هغې کښې خطاء وی ځکه چه زه بشریم نو د صحیح او خطاء احتمال بهرحال دواړه موجود دی.

**قوله:** وَإِذَا أَمَرْتُكُمْ بِشَيْءٍ مِنْ رَأْيِي

**په شرعی امورو کښې د نبی علیه السلام د حکم وجوب:** یوه سلسله د تشریعاتو او د شرعی امورو ده په هغې کښې د حضورپاك نه د غلطی امکان نشته ځکه چه ﴿وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى ۝ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحٰى ۝﴾ آیت موجود دې دویمه سلسله د دنیاوی معاملاتو او د اسبابو ده نو په دې کښې د خطا احتمال کیدې شی. ځکه چه کله ټول توجهات هم د آخرت طرف ته وی نو د دنیا پریشانو کښې د اخته کیدو چرته فرصت وو؟ دا رنګ دنیاوی مشقتونه د دنیا د حصول سره لګیدلی وو کوم چه دنیادارو پیژندل، په دې وجه رسول الله ﷺ اوفرمائیل "انتم اعلم بامور دنیاکم" یعنی دا د سبب او مسبب جوړ او د محنت او مشقت په پریخودو باندې د نقصان ښکاره کیدل تاسو دنیادار ښه پیژنئی.

**د یوې غلطی تنبیه:** د دې حدیث مطلب داهیڅ کله نه دې چه حضورپاك خپل امت د اقتصادیاتو په میدان کښې اوپه معاملاتو کښې د شریعت د قواعدو نه آزادولو اعلان کوی لکه چه بعضې ملحدین په دې سره د خلقو د ګمراه کولو کوشش کوی. که چرې د حضورپاك مقصد داوې نو د معاملاتو او د اخستلو خرڅلو په زرګونو مسائل ئی ولې بیانول؟

## [١٤٨]د نبي عليه السلام په امت باندې د شفقت مثال

١٣٨-( )[٩] [١] وَعَنْ أَبِي مُوسَى -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] «إِنَّمَا مَثَلِي وَمَثَلُ مَا بَعَثَنِي اللَّهُ بِهِ كَمَثَلِ رَجُلٍ أَتَى قَوْمًا، [٣] فَقَالَ: يَا قَوْمِ! إِنِّي رَأَيْتُ الْجَيْشَ بِعَيْنَيَّ، وَإِنِّي أَنَا النَّذِيرُ الْعُرْيَانُ! فَالنَّجَاءَ النَّجَاءَ. [٤] فَأَطَاعَهُ طَائِفَةٌ مِنْ قَوْمِهِ فَأَدْلَجُوا، فَانْطَلَقُوا عَلَى مَهْلِهِمْ، فَنَجَوْا. [٥] وَكَذَّبَتْ طَائِفَةٌ مِنْهُمْ فَأَصْبَحُوا مَكَانَهُمْ، فَصَبَّحَهُمُ الْجَيْشُ فَأَهْلَكَهُمْ وَاجْتَاحَهُمْ [٦] فَذَلِكَ مَثَلُ مَنْ أَطَاعَنِي فَاتَّبَعَ مَا جِئْتُ بِهِ، وَمَثَلُ مَنْ عَصَانِي وَكَذَّبَ مَا جِئْتُ بِهِ مِنَ الْحَقِّ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابو موسیٰ ﷺ روایت کوي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل [٢] زما او د دې شي مثال چې د دې سره زه الله تعالی ﷻ رالیږلی یم (یعني دین او شریعت) د هغه سړي په شان دې چې یو قوم ته راغې [٣] او ورته یې اوویل اې قومه ما په خپلو سترګو یو لښکر لیدلی دی او زه ښکاره بیرونکی یم، نو تاسو خپل نجات (خلاصي) تلاش کړي، [٤] نو د هغه قوم یو جماعت د هغه فرمانبرداري وکړه او د شپې شپې په قلار قلار ووتل او دخلاصی لار یې پیدا کې، [٥] په هغوئ کې یو ډلې هغه دروغجن وګڼلو او د سحر پورې په خپلو کورونو کې وو، نو سحر لښکر راغې او هغه یې هلاک کړل (تردي چې د هغوئ رېښې یې پرېکړې) یعنې د هغوئ د نسل خاتمه یې وکړه [٦] نو دا مثال دې د هغه سړي چې زما فرمانبرداري یې وکړه او کوم حکمونه چې ما راوړي دي د هغه پیروي یې وکړه او د هغه سړي هم دا مثال دي چې زما نافرماني یې وکړه او کمه حقه خبره (یعني دین او شریعت) چې ما را وړې دي د هغه تکذیب یې وکړو (دروغ یې وګڼل). بخاري و مسلم

**حل اللغات:** ① الْجَيْشَ: أي: الْعَسْكَرَ الْكَثِيرَ: لوئي لښکر، ② النَّذِيرُ: ویرونکې، ③ الْعُرْيَانُ: بربنډ یعنی ښکاره ویرونکې یم. ③ فَالنَّجَاءَ النَّجَاءَ: أي: اطْلُبُوا النَّجَاءَ: یعنی نجات تلاش کړئی او دخپل ځان د بچ کولو کوشش اوکړئ. ⑤ طَائِفَةٌ: جماعت، ډله، ⑥ فَأَدْلَجُوا: أي: سَارُوا أَوَّلَ اللَّيْلِ: د شپې په اوله حصه کښې لاړل. ⑦ فَانْطَلَقُوا: أي: ذَهَبُوا وَسَارُوا: لاړل روان شو. ⑧ مَهْلِهِمْ: د مهلت، اطمینان او سکون په معنی کښې دي. ⑨ وَاجْتَاحَهُمْ: أي: اسْتَأْصَلَهُمْ وَأَهْلَكَهُمْ بِالْكُلِّيَّةِ: اجتاح دَ ویخه او جرړې راویستو په معنی کښې دې، یعنی ټول په ټوله ئې هلاک کړل.

**تسهيلات:**

**قوله: وَإِنِّي أَنَا النَّذِيرُ الْعُرْيَانُ!:**

**دمذکوره محاورې پس منظر:** یعنی زه بربنډ ویرونکې یم. دا یو عام ضرب المثل دې، د عربو خلق دا د زیاتې ویرې او آفت او مصیبت په وخت کښې وائی، ددې صورت به دا وو چې یو کس به خپلې جامې اوشلولې او په سر یا په لرګی به ئې رازوړندې کړې او بالکل

[١] اخرجه البخاری کتاب الرقاق باب الاقتداء بسنن رسول الله صلی الله علیه وسلم (رقم-٧٢٨٣) ومسلم کتاب الفضائل /باب شفقته صلی الله علیه وسلم علی أمته ومبالغته فی تحذیرهم مما یضرهم(رقم-١٦ - (٢٢٨٣)

به ئې ځان بربنډ کړو او چغې به ئې وهلې چې خلق ده طرفته متوجه شي او دده خبره واؤرې، روستو دا يو ضرب المثل پاتې شو، چه دَ واضحه اعلان دپاره استعماليږي.

**دنبي عليه السلام مقصد:** دنبي کريم ﷺ د فرمان مقصد دادې چې لکه څنګه هغه کس خپل قوم د ويرې ښخه خبروي، نو څه هم داشان تاسو خبروم. د عربو د زمکې په سر او خاص کر قريشو کښې د نذير لفظ د رسول ښخه زيات مشهور وو. کاهنانو به دا ډير استعمالولو. يو کاهنې ښځې چې کله د نبي کريم ﷺ مور بی بی اوليدله نو وې وئيل چې يا خو پخپله نذيره ده يا ددې ښخه نذير پيداکيدونکې دې. هم دا وجه ده چې قرآن پاك کښې د نذير لفظ زيات د نبي کريم ﷺ راغلې دې.

**په حديث کښې تشبيهات:** ① په حديث کښې د نبي عليه السلام تشبيه د ويرونکی سره ورکړې شوې ده داسې ويرونکې چې په هغې کښې د ويرونکو دپاره شفقت وی هغوی ته دهمکی ورکول نه وی.

② د نبي عليه السلام خبرې منکونکو تشبيه ئې دهغه خلقو سره ورکړې ده چا چې د ويرونکی خبره اومنله اوپه هغې ئې عمل اوکړو.نوهغوی کامياب شو اونجات ئې موندلو.

③ د نبي عليه السلام خبرې نه منکونکو کافرانوتشبيه ئې دهغه خلقو سره ورکړې ده چا چې د ويرونکې منذر خبره اونه منله اودهغه تکذيب ئې اوکړو نو دشمن راغلل اوهغوی ئې تباه اوبرباد کړل.نودغه شان کومو کافرانوچې د نبي عليه السلام خبره اونه منله هغوی هم په دنيا کښې مغلوب شو اوپه آخرت کښې دهغوی بربادی خويقينی ده.

**[۳۹] دامت د اور نه په بچ کولو کښې دَ حضوراکرم ﷺ مثال**

۳۹-(1)[۱۰] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " ②«مَثَلِي كَمَثَلِ رَجُلٍ اسْتَوْقَدَ نَارًا، فَلَمَّا أَضَاءَتْ مَا حَوْلَهَا، جَعَلَ الْفَرَاشُ وَهَذِهِ الدَّوَابُّ الَّتِي تَقَعُ فِي النَّارِ يَقَعْنَ فِيهَا، ③ وَجَعَلَ يَحْجُزُهُنَّ وَيَغْلِبْنَهُ فَيَتَقَحَّمْنَ فِيهَا، ④ فَأَنَا آخِذٌ بِحُجَزِكُمْ عَنِ النَّارِ، وَأَنْتُمْ تَقَحَّمُونَ فِيهَا. ⑤ هَذِهِ رِوَايَةُ الْبُخَارِيِّ، وَلِمُسْلِمٍ نَحْوُهَا، وَقَالَ فِي آخِرِهَا: قَالَ: فَذَلِكَ مَثَلِي وَمَثَلُكُمْ، أَنَا آخِذٌ بِحُجَزِكُمْ عَنِ النَّارِ: ⑥ هَلُمَّ عَنِ النَّارِ، هَلُمَّ عَنِ النَّارِ! فَتَغْلِبُونِي. تَقَحَّمُونَ فِيهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت کوي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل ② زما مثال د هغه سړي په شان دې چې هغه اور لګولې وي ③ هر کله چې اور څلورو طرفونو ته رڼا خوره کړه نو پتنګان (پروانې) او نور هغه حيوانان چې په اور کې غورزيږي راتلو سره په اور کې غورزيدل شروع شو، ④ اور لګونکي سړي هغه منع کول شروع کړه ليکن هغه نه

[1] ) اخرجه البخارى كتاب الرقاق باب الدعاء عند الوضوء(رقم-٦٣٨٣) ومسلم كتاب الفضائل/ باب شفقته صلى الله عليه وسلم على أمته ومبالغته فى تحذيرهم مما يضرهم(رقم-١٨ - (٢٢٨٤) والترمذى كتاب الأمثال عن رسول الله صلى الله عليه وسلم باب ما جاء فى مثل ابن آدم وأجله وأمله (رقم-٢٨٧٤)و احمد فى المسند:٢/٢٤٤

منع کيږي بلکه د هغه په کوششونو باندې غالب راځي او په اور کې غور ځيږي، ⑤ هم دغسې زه هم ستاسو له ملا څخه نيولو سره تاسو په اور کې د غورزيدو څخه منع کوم او تاسو په اور کې غورځيږي، ⑥ دا روايت د بخاري دي او په مسلم کې هم داسې روايت دي البته د مسلم د روايت آخري الفاظ دا دي. حضور ﷺ وفرمايل چې بالکل داسې مثال زما او ستاسو دي چې زه تاسو د ملاوو څخه نيسم چې تاسو د اور څخه وساتم ⑦ او دادرته وايم چې د دوزخ څخه بچ شی زما طرف ته راځي ليکن تاسو په ما غالب راځي او په اورکي غورځيږي.

**حل اللغات:** ① اسْتَوْقَدَ: بل کړې ئې وی، ② أَضَاءَتْ: روښانه کړی، رڼا کړی، ③ الْفَرَاشُ :أی دُوَيبَةٌ: طَيْرٌ تَتَسَاقَطُ فِي النَّارِ: وړوکي شان مرغئ ده چه الوځی او په اور کښې ځان راغورځولو کوشش کوی، بلبلکئ او پتنګ ورته وائی. ④ يَحْجُزُهُنَّ: حجز د حجزة جمع ده. معقدالازار دَ پرتوغابن ځائی يعنی نرئی ملا ته وائی. حجز يحجز دَ نصر نه دَ بندولو او منع کولو په معنی کښې دې. ⑤ يَغْلِبْنَهُ: غالب راځی هغوی په هغه باندې، ⑥ فَيَتَقَحَّمْنَ: أَيْ: يَدْخُلْنَ فِيهَا: تقحم په يو مشکل کار کښې ورننوتلو په معنی کښې دې. دلته په اور کښې پريوتل او ورننوتل مراد دی. ⑦ هَلُمَّ: أَسْرِعُوا إِلَيَّ وَأَبْعِدُوا أَنْفُسَكُمْ عَنِ النَّارِ: زما طرف ته راشئ او دَ اور نه لرې شئ او دَ خپل ځان دَ بچ کولو کوشش اوکړئ.

**تسهيلات:**

**قوله:** كَمَثَلِ رَجُلٍ: کمثل کاف زائده دې. يعنی مثلی مثل رجل.

**قوله:** اسْتَوْقَدَ: .

**د اور فائده اونقصان:** إِسْتَوْقَدَ دَ اور لګولو په معنی کښې دې. سين، تاء دَ مبالغې دَپاره دی په اصل کښې اوقد وو. دَ استيقاد نار نه هدايت اودَدې دَتبليغ رڼا مراد ده. يعنی اور دَ رڼا سبب دې او په تياره کښې فائده ورکونکې څيزدې. ليکن چه کله دَدې نه اعراض اوکړې شی نو دا به سبب دَ هلاکت جوړ شی. لکه څنګه چه چراغ دَ پتنګانو دَپاره رڼا اودَ لارخودنې سبب دې مګر بيا دغه فائده مند څيز دَهغوی دَ هلاکت ذريعه هم جوړيږی. نو نبی کريم ﷺ چه کوم نور دَ اسلام پيش کړې دې دَدې نفع ورکونکی او نافع څيز نه چه خوك اعراض کوی هم دغه څيز به دَهغه دَ هلاکت سبب هم جوړيږی.

**په حديث کښې تشبيهات:** ① دمحرماتو اوممنوعاتو تشبيه د اور سره ورکړې شوې ده لکه څنګه چې اور د هلاکت سبب دې دغه شان ګناهونه هم د هلاکت سبب دې.

② د نبی ﷺ د محرماتو بيانول د اور بلولو پشان دې لکه څنګه چې خلق د اور څخه فائده اخلی اودهغې د نقصان څخه ځان بچ کوی نو د نبی ﷺ په ناصحانه بيان سره صحابو ﷺ حرام اوپيژندل اودهغې د نقصان څخه ئې ځان بچ کړل.

③ نبی ﷺ د خپلو ناصحانه بیاناتو مشرق اومغرب ته د رسیدو تشبیه د ,,ماحولها،، سره ورکړې ده چې لکه څنګه هغه خلقو ته فائده رسیږي کوم چې د اور څخه ګیرچاپیره وی دغه شان زما په بیان سره به د مشرق اومغرب خلقو ته فائده رسیږي.

④ کافران د لاعلمۍ په وجه کفراختیاروی او اور ته ورغورزیږي نو د دې تشبیه ئې دهغه پتنګانو سره ورکړې ده کوم چې په اوربانديځان سوزوی.

⑤ نبی ﷺ خپل امت د اورڅخه بچ کولو تشبیه دهغه کس سره ورکړې ده کوم چې هغه خلق د اورد غورزیدو څخه د بچ کولو کوشش کوی کوم چې اورته ورغورزیږي.

**[۱۵۰] د وحی دباران سره تشبیه ورکول**

۱۵۰-()[۱] ۱ وَعَنْ أَبِي مُوسَى - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ «مَثَلُ مَا بَعَثَنِي اللَّهُ بِهِ مِنَ الْهُدَى وَالْعِلْمِ كَمَثَلِ الْغَيْثِ الْكَثِيرِ أَصَابَ أَرْضًا، ۳ فَكَانَتْ مِنْهَا طَائِفَةٌ طَيِّبَةٌ قَبِلَتِ الْمَاءَ، فَأَنْبَتَتِ الْكَلَأَ وَالْعُشْبَ الْكَثِيرَ، ۴ وَكَانَتْ مِنْهَا أَجَادِبُ أَمْسَكَتِ الْمَاءَ، فَنَفَعَ اللَّهُ بِهَا النَّاسَ، فَشَرِبُوا وَسَقَوْا وَزَرَعُوا، ۵ وَأَصَابَ مِنْهَا طَائِفَةً أُخْرَى، إِنَّمَا هِيَ قِيعَانٌ لَا تُمْسِكُ مَاءً، وَلَا تُنْبِتُ كَلَأً ۶ فَذَلِكَ مَثَلُ مَنْ فَقُهَ فِي دِينِ اللَّهِ وَنَفَعَهُ مَا بَعَثَنِي اللَّهُ بِهِ فَعَلِمَ وَعَلَّمَ، ۷ وَمَثَلُ مَنْ لَمْ يَرْفَعْ بِذَلِكَ رَأْسًا، وَلَمْ يَقْبَلْ هُدَى اللَّهِ الَّذِي أُرْسِلْتُ بِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ ابو موسی رضی الله عنه روایت کوي چې نبی کریم ﷺ وفرمایل ۲ د هغه شي مثال چې الله تعالی جل جلاله ماته راکولو سره زه رالیږلي یم یعنی علم او هدایت د ډیر باران په شان دي چې په زمکه کیږي ۳ نو د زمکې ښه ټوټې هغه قبول کړي (یعني په خپل ځان کې جذب کړي) او د هغه څخه ډیر زیات وچ او شنه واښه پیدا شي ۴ او د زمکې یوه ټکړه داسې سخته وي چې په هغه اوبه جمع شوې الله جل جلاله د هغې څخه هم خلقو ته نفع ورسوله خلقو هغه وڅښلې او په نورو یې وڅښلې او پټي (فصلونه) یې وربانديې اوبه کړل ۵ او د باران دا اوبه د زمکې داسې ټکړي ته هم ورسیدي چې هغه بالکل بي آب وګیاه (بي اوبو او بي شینګیا) سخت میدان وو، نو نه خو اوبه وساتلي او نه یي واښه زرغونه کړل نو دا ټول (ذکر شوې مثالونه) دهغه سړي مثال دي چې هغه د الله په دین پوه شو او کوم شي چې الله تعالی جل جلاله زما په وساطت سره رالیږلي وو هغه د هغه څخه فائده واخسته نو هغه په خپله هم زده کړي او نورو ته یي هم وښودلي او د هغه سړي مثال دي چې هغه د الله جل جلاله په دین باندې پوهیدو باندې د تکبر په وجه سر پورته نه کړي د الله تعالی جل جلاله هدایت کوم چې زما په ذریعه رالیږل شوې وو قبول نه کړلو، بخاري ومسلم

[۱]) اخرجه البخاری کتاب العلم باب فضل من علم وعلم(رقم-۷۹) ومسلم کتاب الفضائل/باب بیان مثل ما بعث به النبی صلی الله علیه وسلم من الهدی والعلم(رقم-۱۵ - (۲۲۸۲) و احمد فی المسند: ۳۹۹/۴

**حل اللغات:** ① الْهُدَى: هدایت، ② الْغَيْثِ: أَيِ: الْمَطَرِ الْكَثِيرِ: ډیر باران، هغه باران ته وائی کوم چې د ډیرې زیات سکرې او قحط ختمه روستو راشي. ③ الْكَلَأَ: شین او اوچ واښه دوارو دپاره استعمالیږی، ④ الْعُشْبَ: صرف د شنو وښو دپاره استعمالیږی، او حشیش صرف اوچو وښو ته وائی، ⑤ أَجَادِبُ: د أَجْدَب جمع ده، وَهِيَ الْأَرْضُ الصُّلْبَةُ: هغه سختې زمکې ته وائی کوم ځائې کښې چې اوبه خو جمع کیدیشی خو شنه واښه نه رازرغونیږی. ⑥ سَقَوْا: اوبه ئې اوڅکلې په خلقو، ⑦ زَرَعُوا: پټی ئې پرې اوبه کړل، ⑧ طَائِفَةً: أَيْ: قِطْعَةً: ددې څخه د زمکې یوه حصه او ټکړه مراد ده. ⑨ قِيعَانٌ: د قَاعٍ جمع ده، صفا میدان ته وائی. دلته داسې خوشې میدان مراد دې کوم ځائې کښې چې اوبه نه اودریږی. اونه په کښې شنه واښه زرغونیږی. لا تمسك ماء هم ددې قیعان تفسیر دې.

**تسهیلات:**

**قوله:** كَمَثَلِ الْغَيْثِ الْكَثِيرِ:

**د مثال وضاحت:** په حدیث کښې د وحی مثال بیان کړې شوې دې اود دوه قسمه خلقو ذکرشوې دې یوهغه خلق چې د وحی دعلم څخه فائده واخلی دویم هغه خلق چې د وحی دعلم څخه فائده وانخی.

**دوه قسمه زمکه:** په دې طریقه په حدیث کښې د دوه قسمه زمکې ذکرشوې دې:

① هغه زمکه چې د باران اوبه جذب کړی اوفائده ترې واخلی ② هغه زمکه چې د باران اوبه جذب نکړی. اوفائده ترې وانخلی

**دفائده اخستونکې زمکې دوه قسمونه:** بیا کومه زمکه چې اوبه جذب کړی او فائده ترې واخلی نودا په دوه قسمه ده..

① **طیبه:** هغه زمکه چې اوبه جذب کړی اومختلف قسم نباتات رازرغون کړی اوخلق ترې فائده هم واخلی نو دا زمکه نافع اومنتفع دواړه ده.یعنی پخپله هم سیراب شوه اونورو خلقو ته ئې هم د میوې او قسما قسم نباتاتوپه رازرغونولو سره فائده ورکړه.

② **جادب:** یعنی نافع غیرمنتفع هغه زمکه چې د سخت والی په وجه اوبه خوجمع کړی خوپه خپله ترې فائده وانخلی نونور خلق ترې فائده واخلی نودا زمکه د خپل ځان دپاره فائده منده نه ده خو د نورو دپاره فائده منده شوه.

**په ممثل له کښې درې قسمه خلق:** اوس د مثال وضاحت داسې دې چې د وحی د علم څخه فائده اخستونکی خلق هم په دوه قسمه دی.① هغه خلق چې د وحی علم ئې زده کړلو عمل ئې پرې اوکړو او نورو خلقو ته ئې هم اوښودل نو ددوی مثال د هغه زمکې پشان دې چې باران جذب کړی اوقسما قسم نباتات رازرغون کړی نو دوی ته خپله هم د خپل علم فائده اوشوه او نورو خلقو ترې هم فائده واخستله.

② هغه خلق چې علم حاصل کړي خو په خپله ترې فائده وانخلي بلکه نور خلق دده څخه علم حاصل کړي اوعمل پرې اوکړي نود دوی تشبیه د زمکې هغې حصې سره ورکړې شوې ده چې په خپله اوبه اوساتي اوجمع کړي خوخپله ترې فائده نشي اخستې بلکه نور خلق ترې فائده واخلي.

③ هغه خلق چې د تکبر په وجه د وحی علم حاصل نکړي د دوی مثال دهغه قیعان سختې زمکې پشان دې چې نه اوبه جذب کړې اونه چا ته فائده ورکړي ځکه چې فائده خو به هغه صورت کښې وی چې اوبه ئې جذب کړې وې اوپه دې صورت کښې خو دې اوبه د سره جذب کړي اوجمع کړي دې خلقوته برې ترې څه ورکړي.

**اشکال:** په دې تشبیه کښې مشبه به یعنی اقسام دزمکې درې دی او مشبه یعنی اقسام دانسان دوه دی. نو په مشبه او مشبه کښې مطابقت نشته دې یا داسې اووائې چې په ممثل له او مثال کښې توافق نشته دې.

**داشکال جوابونه:**① په مشبه کښې هم درې قسمه انسانان دی. اول هغه انسان چه پخپله هم متعلم او منتفع دې. اودَ نورو دَپاره هم معلم اونافع دې. دا فقهاء کرام دی. دَدوی په مثال کښې دَ زمکې ړومبې قسم بیان کړې شوې دې. دویم هغه انسان دې چه دَخپل ځان دَپاره خو نافع دې نه ذخیره جمع کونکې دې مګر دَ نورو دَپاره نه دې یعنی متعلم خودې لیکن معلم نه دې. دریم هغه خلق دی چه نه ئی پخپله دَ دې دولت نه فائده واخسته او نه دَ نورو دَپاره نافع دی.داهغه خلق دی چا چه دَ شریعت طرف ته تش کتل هم برداشت نه کړل.

② حافظ تورپشتی رحمه الله فرمائی چې په مشبه به کښې هم دوه څیزونه دی.

**( الف) ارض نافع:** دې او ددې دوه صورتونه دی. یو اعلی درجه کښې نافع، او بل په ادنی درجه کښې نافع دې. خو نافع په هر صورت کښې دې.

**(ب) ارض غیرنافع:** اوس په مشبه کښې هم دوه څیزونه دی. یو استفاده کوؤنکې انسان کوم چې نافع دې او دویم استفاده څخه محروم انسان کوم چې غیر نافع دې. او په مشبه به کښې هم دوه څیزونه دی نوهیڅ اعتراض نشته.

**دحدیث وضاحت:**اوس په دې تشبیهاتو باندې داسې پوهه شئی چه دَ حضورپاك ذات مبارك په منزله دَ سحاب فیاض دې. اووحی آسمانی په منزله دَ باران رحمت ده.

دَ وحی د تعلیماتو د راتلونه پس خلق په دریو قسمونو کښې تقسیمیږی. یو قسم د اعلی او نافع فقهاو دې. دویم قسم دَ نافع محدثینو دې او دریم قسم دَمحرومینو دې چه دَدې میدان رحمت نه بهر دی.

دَ فقهاؤ، محدثینو او کافرانو په مینځ کښې چه کوم خلق دی دَهغوی تذکره په دې حدیث کښې نشته ځکه چه که هغه نیکان وی نو په اول قسم کښې دی ګنی بیا به په دویم قسم کښې په عارضی توګه کښې شمیرلې شی.

## [۱۵۱] په قرآن کښې د متشابهاتو د لټونکو مذمت

۱۵۱-( ) [۱۲] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: «تَلَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: {هُوَ الَّذِي أَنْزَلَ عَلَيْكَ الْكِتَابَ مِنْهُ آيَاتٌ مُحْكَمَاتٌ} [آل عمران: ۷] وَقَرَأَ إِلَى: {وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّا أُولُو الْأَلْبَابِ} [البقرة: ۲۶۹]. [۲] قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: فَإِذَا رَأَيْتَ - وَعِنْدَ مُسْلِمٍ: رَأَيْتُمُ - الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ، [۳] فَأُولَئِكَ الَّذِينَ سَمَّاهُمُ اللَّهُ، فَاحْذَرُوهُمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] عائشه رضي الله عنها فرمايي چې حضور ﷺ دا آیت تلاوت کړي هُوَ الَّذِيْ أَنْزَلَ عَلَيْكَ الْكِتَابَ مِنْهُ آيَاتٌ مُحْكَمَاتٌ (ترجمه) الله هغه ذات دي چې په تا ﷺ باندې یې کتاب نازل کړي دي چې د هغه بعضې آیاتونه محکم دي، اود آخر آیت وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّا أُولُو الْأَلْبَابِ (عمران ۱۷) (ترجمه) او نصيحت نه اخلي مګر د عقل خاوندان، پورې یې اووئیلو، [۲] حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چې دا آیت ویلو سره حضور ﷺ وفرمايل کوم وخت چې ته ووینې، او د مسلم په روایت کښې دي هر کله چې تاسو ووینې چې خلق په دې آیتونو کښې لګیاوي کوم چې متشابه دي [۳] (نو تاسو پوهه شی چې دا) هغه خلق دي چې د هغوئ نوم الله تعالی ﷻ کجرویان (یا ګمراه) ښودلي دي نو د دې خلقو څخه ځان ساتي، بخاري و مسلم.

**حل اللغات:** ① مُحْكَمَاتٌ: محکم آیتونه چه واضح او ظاهر وی چه د تاویل احتمال پکښې نه وی.

### تسهیلات:

**قوله: مِنْهُ آيَاتٌ مُحْكَمَاتٌ:**

**د قرآنی آیاتونو دوه قسمونه:** ① محکمات دی، دا هغه آیتونه دی چه دَ هغې معنې او مطالب مضبوط، واضح، غیرمنسوخ او ظاهر وی. چې په هغې کښې هیڅ قسم ابهام او اخفاء نه وی.

② متشابهات دی،

**دمتشابهاتو دوه قسمونه:** ① هغه آیتونه دی کوم چې معلوم المعنی دی خو معلوم المراد نه دی. لکه. ( يَدُ اللهِ، وَجْهُ اللهِ، اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ، جَآءَ رَبُّكَ ) وغیره.

② هغه آیتونه دی چې دهغې نه لفظی معنی معلوم وی او نه مرادی معنی معلوم دی. لکه حروف معقطعات چې دی کوم چې د سورتونو په شروع کښې راځی،

**داول قسم حکم:** ددې قسمه متشابهاتو متعلق د علماء کرامو او سلف صالحینو عقیده

[۱] ) اخرجه البخاری کتاب تفسیر القرآن/باب {منه آیات محکمات} [آل عمران: ۷](رقم-۴۵۴۷) ومسلم کتاب العلم/باب النهی عن اتباع متشابه القرآن. والتحذير من متبعيه. والنهی عن الاختلاف فی القرآن(رقم-۱ - (۲۶۶۵) وابوداود کتاب السنة/باب النهی عن الجدال واتباع المتشابه من القرآن(رقم-۴۵۹۸) وابن ماجة کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب اجتناب البدع والجدل (رقم-۴۸)

داده چې په دې کښې هیڅ قسم تاویل اونه کړې شی بلکه کوم الفاظ چه دی هغه دې بغیر د تاویل څخه هم هغه شان پریښودې شی، خو ( مایلیق بشانه ) الفاظو سره دې اداکړې شی، یعنی ( یَدُ اللهِ ما یلیق بشانه، اسْتَوٰی عَلَی الْعَرْشِ ما یلیق بشانه ) یعنی کوم چې د الله تعالی د شان سره ښائی

**د اول قسم باره کښې د عالمانواقوال:** ① امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چې ید الله کښې د ید ترجمه په قدرت سره کول د الله تعالی په صفاتو کښې تحریف دې لهذا الفاظ چې څنګه دی هم هغه شان ترجمه دې اوکړې شی او ورسره دې دا اووئیلې شی ( مایلیق بشانه )
② امام مالك رحمه الله څخه چې کله د (اسْتَوٰی عَلَی الْعَرْشِ) متعلق تپوس اوشو نو وئی فرمائیل (الاستواء معلوم والکیفیة مجهولة والسؤال عنها بدعة)

**د دویم قسم حکم:** د هغې متعلق د علماء کرامو وینا ده چې الله أعلم بمراده بذلك، د سلف صالحینو عقیده دې اوساتلې شی، او هیڅ قسمه تاویل دې اونه کړې شی.
**دقرآنی محکماتواو متشابهاتوباره کښې د اهل حق عقیده:** کوم خلق چې نیك او صالح دی او دچا قلوب چې په ایمان منور دی هغه خلق په آیات محکمات باندې ایمان لری او دې ته مدار احکام وائی. او متشابهات هم ددې آیتونو په رڼړا کښې منی. لکه قرآن پاك اعلان کوی چې نبی کریم ﷺ بشر دې. او په دې باندې آیات محکمات موجود دی. لکه ( قُلْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ ) محکم آیت مبارك دې. ددې په مقابله کښې که چرته لفظ د نور راغلې دې نو هغه ذو معنی او متشابه دې. دا به د محکم په رڼړا کښې کتلې شی. بهر حال صفا زړه لرونکی متشابهات منی خو ددې معنی د الله تعالی په حواله کوی.
**دقرآنی محکماتواو متشابهاتوباره کښې د اهل باطل عقیده:** کومو خلقو په زړونو کښې چې زیغ او کوږوالې دې، هغوئ متشابهاتو پسې انخښتی وی او په هغې بې ځایه تاویلات کوی. ددې حدیث پاك څخه معلومه شوه چې کوم خلق په متشابهاتو کښې خپل عقلونه استعمالوی او ددې د اصلی معنی د موندلو کوشش کوی نو دا خلق الله تعالی کږې لارې والا او ګمراهان ګرځولی دی.
**دحروف مقطعاتوباره کښې عقیده سالم:** د حروف مقطعات معنې الله تعالی نبی کریم ﷺ ته خودلی دی. یعنی دا د الله تعالی او درسول کریم ﷺ په مینځ کښې یو راز دې. او په دې باندې بل څوك نه دی پوهه کړې شوی. دلته په دې خبره هم پوهه شی چې د اعجاز په اعتبار سره ټول قرآن پاك متشابه یعنی ( متشابه فی الفصاحة والبلاغة والحسن) دې. او د تاویل اوتفسیر په اعتبار سره ځینې محکم او ځنې متشابه دی، خو دحکم مدار په محکم باندې دې.

[۱۵۳] اختلاف کول سبب د هلاکت دي

۱۵۳-( )[۱۳] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: «هَجَّرْتُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَوْمًا، [۲] قَالَ: فَسَمِعَ أَصْوَاتَ رَجُلَيْنِ اخْتَلَفَا فِي آيَةٍ، [۳] فَخَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُعْرَفُ فِي وَجْهِهِ الْغَضَبُ، [۴] فَقَالَ: إِنَّمَا هَلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ بِاخْتِلَافِهِمْ فِي الْكِتَابِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] عبد الله بن عمرو ﷺ روایت کوي چې زه د نبی کریم ﷺ په خدمت کې حاضر شوم، حضرت عبد الله ﷺ فرمايي چې حضور ﷺ د دوو سړو آوازونه واوريدل چې په یو متشابه آیت کې يي اختلاف کولي (یعني د هغه په معني کې یي جګړه کوله) [۲] حضور ﷺ زمونږ په مینځ کې تشریف راوړو (هغه وخت) یي په مخ مبارك د غصي آثار ښکاره وو، [۳] حضور ﷺ وفرمایل ستاسو څخه مخکي خلق په کتاب الهي کي د اختلاف کولو په سبب هلاك شوي دي. مسلم

**حل اللغات:** ① هَجَّرْتُ: أَيْ أَتَيْتُ فِي الْهَاجِرَةِ أَيْ الظَّهِيرَةِ: یعنی څه بالکل د ماسپخین په وخت کښې حاضر شوم.

**تسهيلات:**

**قوله: فَسَمِعَ أَصْوَاتَ رَجُلَيْنِ:**

**داختلاف په نوعیت کښې اقوال:**

① دا اختلاف د قرآني متشابهاتو او دهغې په معنی کښې وو.

② دا اختلاف د قران پاک په قرآءت کښې وو چې دا آیت به څنګه وئیلی شی.

③ دا اختلاف دیو قرآني آیت د قرآن څخه کیدو کښې وو چې دا آیت د قرآن حصه ده که نه ده.

**په آیت کښې د اختلاف دوه قسمونه:**

① هغه اختلاف چې هغه د بنده د هلاکت سبب وی دکوم په وجه کښې په دین کښې شکوک او شبهات پیدا کیږی په حدیث کښې هم دا اختلاف مراد دي.

② هغه اختلاف چې د شکوک اوشبهاتو لرې کولو دپاره وی لکه څنګه چې د مجتهدینو اختلاف دي کله چې په آیاتونو یا احادیثو کښې تعارض وی نو هلته هغوی اختلاف کوی خو د هریو مقصد د الله تعالی رضا وی. دا اختلاف د الله تعالی رحمت دي او محمود دي.

[۱] ) اخرجه مسلم کتاب العلم /باب النهی عن اتباع متشابه القرآن، والتحذير من متبعيه، والنهی عن الاختلاف فی القرآن(رقم-۲ - (۲۶۶۶)و احمد فی المسند:۱۷۹/۱

## [١٥٣] د امت لوئ گناهگار

١٥٣-()[١٤] ١ وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢ «إِنَّ أَعْظَمَ الْمُسْلِمِينَ فِي الْمُسْلِمِينَ جُرْمًا ٣ مَنْ سَأَلَ عَنْ شَيْءٍ لَمْ يُحَرَّمْ عَلَى النَّاسِ، فَحُرِّمَ مِنْ أَجْلِ مَسْأَلَتِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ

**ترجمه:** ١ سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه روايت كوي چي نبي اكرم ﷺ وفرمايل ٢ چې په مسلمانانو كې د ټولو څخه لوي گنهگار هغه سړي دي ٣ چې هغه د يو داسې شي سوال اوكړو چې هغه حرام نه وو ليكن د هغه د سوال كولو سره حرام شو. بخاري ومسلم

**حل اللغات:** ① جُرْمًا: أَيْ ذَنْبًا وَظُلْمًا: مجرم او گناهگار.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ سَأَلَ عَنْ شَيْءٍ:

**دتپوس دوه قسمونه:** ① هغه تپوس چې په ضرورت باندې مبني وي نوهغه تپوس كول پكار دي ځكه چې په خپله قرآن پاك وئيلي دي ﴿ فَاسْئَلُوْا اَهْلَ الذِّكْرِ﴾ يعني د عالمانو څخه تپوس كوئ دغه شان نبي عليه السلام ښه سوال ته نصف علم فرمائيلي دې. هغه منع نه دی.

② هغه تپوس چې د هغې څخه ضرورت نه وي اوهغه دحرمت د نازليدو سبب جوړيدونكي كس دَمسلمانانودَپاره يو بدترين مجرم دي. ځكه چه دَ وحی دَ نازليدلو په وخت ضروری احكام به پخپله نبی كريم ﷺ بيان.فرمائيل. خاموشي به په هغه خبره باندې وه كوم چه به معاف او غيرضروری وو. نو په دې قسم خبروكښې كوششونه اولټونونه كول اوتپوس پختنه كولوسره سوالونه كول منع كړې شو دې دَپاره چه په عامو مسلمانانو باندې سختي رانه شي. لكه څنگه چه بنی اسرائيلو دَ غوا متعلق سوالونه كولوسره تنگی پيدا كړه. نو دَ دې قسم دَ ځان جوړشوو او سركشئی والا سوالونه منع اوكړې شوه. [الكاشف: ٣٤٦/١]

## [١٥٣] په آخری زمانه كښې د دروغژنو د خبرو څخه د ځان ساتلو حكم

١٥٣-()[١٥] ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " ٢ «يَكُونُ فِي آخِرِ الزَّمَانِ دَجَّالُونَ كَذَّابُونَ يَأْتُونَكُمْ مِنَ الْأَحَادِيثِ بِمَا لَمْ تَسْمَعُوا أَنْتُمْ وَلَا آبَاؤُكُمْ ٣ فَإِيَّاكُمْ وَإِيَّاهُمْ، لَا يُضِلُّونَكُمْ وَلَا يَفْتِنُونَكُمْ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

[١] ) اخرجه البخاری كتاب التمنی/باب ما يكره من كثرة السؤال وتكلف ما لا يعنيه(رقم-٧٢٨٩) ومسلم كتاب الفضائل/باب وجوب اتباعه صلی الله عليه وسلم(رقم-١٣٢ - (٢٣٥٨) وابوداود كتاب السنة/باب لزوم السنة(رقم-٤٦١٠)

[٢] ) اخرجه مسلم باب فی الضعفاء والكذابين ومن يرغب عن حديثهم(رقم-٧ - (٧)و احمد فی المسند:٣٤٩/٢

**ترجمه:** [١]ابوهريره ﷺ روايت كوي چې حضور ﷺ وفرمايل[٢] په آخره زمانه كې به داسې دهوكه وركونكي او دروغجن خلق وي چې هغه به تاسو له داسې حديثونه راوړي چې هغه به نه تاسو اوريدلي وي او نه به ستاسو پلرونو اوريدلي وي، [٣]نو د هغه څخه ځان ساتي او هغه د خپل ځان څخه لرې كړي چې هغه تاسو بې لارې نه كړي او نه مو په فتنه كې وغورځوي.مسلم

**حل اللغات:** ① دَجَّالُونَ : دجال دَ دجل نه دَمبالغې صيغه ده يعني ډير غټ دهوكه باز او فريب وركونكي

**تسهيلات:**

**قوله:دَجَّالُونَ كَذَّابُونَ يَأْتُونَكُمْ مِنَ الْأَحَادِيثِ:**

**د احاديثو په مصداق كښې دوه اقوال:**① ددې احاديث څخه من گړت او موضوعى احاديث مراد دى چې دا دهوكه باز خلق به ئې بيانوى اوخلق به گمراه كوى

② دې څخه دا مراد دى چې دا خلق به هغه عقائد خلقو ته وړاندې كوى چې هغه به اسلامى عقائد نه وى بلكه غلط عقائد به وى اوخلقو ته به وائى چې مونږ د خپل طرفه تاسو ته دا نه وايو بلكه دا مونږ ته يو قسم الهام شوې دې نبى ﷺ د داسو باطل پرستو خلقو د فتنې څخه امت ويروى.

**[١٥٥]داهل كتابو د تفسير حكم**

١٥٥-()[١٦][١]وَعَنْهُ،قَالَ كَانَ أَهْلُ الْكِتَابِ يَقْرَءُونَ التَّوْرَاةَ بِالْعِبْرَانِيَّةِ،وَيُفَسِّرُونَهَا بِالْعَرَبِيَّةِ لِأَهْلِ الْإِسْلَامِ،[٢] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-:«لَا تُصَدِّقُوا أَهْلَ الْكِتَابِ وَلَا تُكَذِّبُوهُمْ،وَ{قُولُوا آمَنَّا بِاللَّهِ وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْنَا}[البقرة:١٣٦]الْآيَةَ».رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:**[١] ابوهريره ﷺ فرمايي چې اهل كتابو تورات په عبراني ژبه كې وئيلو (چې د يهوديانو ژبه ده) او د مسلمانانو د پاره به يې د هغه تفسير په عربي ژبه كې كولي،[٢] نبي كريم ﷺ د هغوئ دا عمل ليدلو سره وصحابوﷺ ته وفرمايل تاسو داهل كتابو مه تصديق كوي اومه يې تكذيب كوي (صرف) دا وايئ چې زمونږ په الله ﷻ باندې او په هغه شي چې په مونږ نازل شوې دي ايمان راوړي دي، د آخر آيت پورې. بخاري

**تسهيلات:** **قوله:لَا تُصَدِّقُوا:**

**داهل كتابو د تفسير درې قسمونه:**① د اهل كتابو يوهغه تفسيردې كوم چې د قرآن او حديثو سره مطابق وى نو دهغې تصديق پكار دې

② هغه تفسير چې د قرآن او حديث څخه مخالف وى ددې تكذيب پكار دې

[١] ) اخرجه البخاري كتاب التفسير باب ما يجوز من تفسير التوراة وغيرها من كتب الله، بالعربية وغيرها(رقم-٧٥٤٢)

④ هغه تفسير چې د قرآن او حديث د نصوصو نه موافقت کوی او نه مخالفت کوی دا حديث د دې دريم قسم تفسيرباره کښې دې چې مه ئې تصديق کوئ او مه ئې تکذيب کوئ ځکه چې هغوی په خپلو کتابونوکښې ردوبدل اوتحريف کړې دې د تکذيب په صورت کښې کيدې د حق تفسير تکذيب اوشی اودتصديق په صورت کښې کيدې شی د تحريف شده تفسيرتصديق اوشی ځکه نبی ﷺ د احتياط لار اختيار کړه

## [۱۵۶] دبې تحقيقه خبرې نقل کولو ممانعت

۱۵۶-(۱)[۱۷] ۱ وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۲ «كَفَى بِالْمَرْءِ كَذِبًا أَنْ يُحَدِّثَ بِكُلِّ مَا سَمِعَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ ابوهريره ﷺ روايت کوي چې حضور ﷺ وفرمايل ۲ چې د انسان د دروغ ويلو دپاره داکافي دي چې هغه کمه خبره واوري (بغير د تحقيق څخه) يې نقل کړي. مسلم

**تسهيلات:**

**قوله:** كَفَى بِالْمَرْءِ كَذِبًا أَنْ يُحَدِّثَ بِكُلِّ مَا سَمِعَ:

**د مذکوره جملې ترکيب:** کفی،، فعل او ،،ان تحدث ددې فاعل دې،،بالمرء کښې باء زياتی ده او مرء ددې فاعل او ،،کذبا تميز دې.

**دحديث مقصد:** په دې حديث کښې مسلمانانو ته تعليم ورکړې شوې دې چه هره يوه اوريدلې خبره بغيرد تحقيق نه مه بيانوئی او په دې حديث کښې ډير سخت زجر او وعيد دې دهغه سړې د پاره چه داسې خبره نقل کوی. دکومې چه هغه ته تصديق او تحقيق نه وی خاص کر چه کله احاديث نبوی ﷺ نقل کوی.

## [۱۵۷] نااهله خليفګان اودهغوني حکم

۱۵۷-(۲)[۱۸] ۱ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ «مَا مِنْ نَبِيٍّ بَعَثَهُ اللَّهُ فِي أُمَّتِهِ قَبْلِي إِلَّا كَانَ لَهُ فِي أُمَّتِهِ حَوَارِيُّونَ وَأَصْحَابٌ يَأْخُذُونَ بِسُنَّتِهِ وَيَقْتَدُونَ بِأَمْرِهِ، ۳ ثُمَّ إِنَّهَا تَخْلُفُ مِنْ بَعْدِهِمْ خُلُوفٌ يَقُولُونَ مَا لَا يَفْعَلُونَ، وَيَفْعَلُونَ مَا لَا يُؤْمَرُونَ، ۴ فَمَنْ جَاهَدَهُمْ بِيَدِهِ فَهُوَ مُؤْمِنٌ، وَمَنْ جَاهَدَهُمْ بِلِسَانِهِ فَهُوَ مُؤْمِنٌ، ۵ وَمَنْ جَاهَدَهُمْ بِقَلْبِهِ فَهُوَ مُؤْمِنٌ، ۶ وَلَيْسَ وَرَاءَ ذَلِكَ مِنَ الْإِيمَانِ حَبَّةُ خَرْدَلٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ ابن مسعود ﷺ روايت کوي چې نبي اکرم ﷺ وفرمايل ۲ زما څخه مخکې په هيڅ يو قوم کې الله ﷻ يو نبي داسې نه دي راليږلي چې د هغه مدد ګار او دوست د

---

[۱] اخرجه مسلم باب النهى عن الحديث بكل ما سمع(رقم-۵ - (۵)

[۲] اخرجه مسلم كتاب الإيمان/باب بيان كون النهى عن المنكر من الإيمان، وأن الإيمان يزيد وينقص، وأن الأمر بالمعروف والنهى عن المنكر واجبان(رقم-۸۰ - (۵۰)و احمد فى المسند:۴۵۸/۱

هغه قوم څخه نه وي چې د هغه نبي طریقه اختیاروي او د هغه د حکمونو پیروي کوي③ بیا د هغه دوست او مددګار څخه وروسته داسې ناخلف (نالایق) خلق پیدا شي چې هغه خلقو ته داسې خبري کوي چې په خپله یې نه کوي او هغه کارونه به کوي چې دهغه به حکم نه وي ورته شوي (لکه چې د غلطوملایانو او امیرانو او سردارانو طریقه ده)④ نو په ستاسو کښې چې کوم سړي د هغه خلقو سره په لاس جهاد کوي هغه مؤمن دي⑤ او چې کوم سړي د هغه خلقو سره په خپله ژبه سره جهاد کوي هغه مؤمن دي⑥ او کوم سړي چې د هغه خلقو سره په خپل زړه سره جهاد کوي هغه مؤمن دي،⑦ او د دې څخه علاوه چې کوم سړي د هغوئ خلاف دومره هم نشي کولي په هغه کې د اُوري (رائي) د دانې برابر هم ایمان نشته. مسلم

**حل اللغات:** ① حَوَارِيُّونَ : أَيْ نَاصِرُونَ: مددګار، ② وَيَقْتَدُونَ : أَيْ: يَتَّبِعُونَهُ: دهغه اقتداء او تابعداري کوي. ③ تَخْلُفُ: أَيْ تَحْدُثُ: روستو به پیدا کیږي، ④ خُلُوفٌ: د خَلْف جمع ده (په سکون د لام سره) أي الرَّدِيءُ مِنَ الْأَعْقَابِ: روسته راتلونکي نالائقه خلق، بد ملګري، (که چرې لام مفتوح شي نو بیا به د َښه ملګرې دَپاره وئیلی شي). ⑤ جَاهَدَهُمْ: أي حَارَبَهُمْ: جهاد ورسره اوکړي، ⑥ حَبَّةٌ: دانه. تخم. ⑦ خَرْدَلٍ: اوري، رائي، غوښت.

**تسهیلات: قوله:** حَوَارِيُّونَ:

**دحواریون په مصداق کښې دوه اقوال:** ① حواریون د حواری جمع ده دا دهوبی ته وائی چونکه دهوبی هم کپړې پاکوی دغه معنی به دې حدیث کښې هم ملحوظ ده او د دې څخه هغه خالص اود دنیاوی اغراضو څخه پاک ملګری او امدادیان مراد دی څوک چې د پیغمبرانو سره مدد اونصرت کوی.

② د دې څخه خاص رازدار خلق مراد اخستی دی. الکاشف: ١/٣٥٠.

**قوله:** فَمَنْ جَاهَدَهُمْ:

**د جهاد درې درجې:** په حدیث کښې د جهاد د درې درجوذکردې.

① **جهادبالید:** یعنی په لاس سره جهاد کول.ددې درجې والا کس د کامل ایمان خاوند دې.

② **جهادباللسان:** یعنی په ژبې د باطل رد کول ددې درجې والا کس ایمان درمیانه دې.

③ **جهاد باالقلب:** یَعنی په زړه سره جهاد کول دادې چه دا بد اوګنړی ددې درجې واکس ایمان ډیرکمزورې دې.

**قوله:** وَلَيْسَ وَرَاءَ ذَلِكَ:

**په زړه کښې هم ګناه بد نه ګنړل:** یعنی د کوم کس په زړه کښې د حاکمانو په ناروا کارونو باندې په زړه کښې هم څخه نفرت پیدا نشی نود دوی په زړونوکښې دَ اوری دَ دانې برابر

هم ايمان نشته ځكه چه دا سړې په ګناه باندې راضي شو. او معاصي سره ئې دَ مباح معامله اوکړه په کوم سره چه سړې دَ ايمان نه اووځي. يعنى دغه وخت دَهغه احساس دومره مړ شوې دې چه غلط څيزونه په زړه سره هم بد نه ګنړي نودَدې مطلب دا شو چه دَهغه دَ ايمان پاره مړه شوې ده لهذا دَ هغه په زړه کښې دَ ايمان رڼړا باقى پاتې نه شوه.

**[١٥٨] هدايت او ګمراهئ طرف ته د رابلونکو ثواب او ګناه**

١٥٨-()[١٩] [١]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[٢]«مَنْ دَعَا إِلَى هُدًى كَانَ لَهُ مِنَ الْأَجْرِ مِثْلُ أُجُورِ مَنْ تَبِعَهُ، لَا يَنْقُصُ ذَلِكَ مِنْ أُجُورِهِمْ شَيْئًا. [٣]وَمَنْ دَعَا إِلَى ضَلَالَةٍ كَانَ عَلَيْهِ مِنَ الْإِثْمِ مِثْلُ آثَامِ مَنْ تَبِعَهُ، لَا يَنْقُصُ ذَلِكَ مِنْ آثَامِهِمْ شَيْئًا» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١]ابوهريره ﷺ روايت کوي چې نبى کريم ﷺ وفرمايل [٢]کوم سړي چې څوك د هدايت طرف ته را وبللې هغه ته به دومره ثواب حاصليږي څومره چې هغه چاته کوم چې د ده پيروي اختيار کړي او د هغه (پيروي کونکي) په ثواب کې به هيڅ کمي نه کيږی [٣]او کوم څوك چې د ګمراهي طرف ته راوبلي د هغه به هغومره ګناه وي لکه څومره چې د هغه چا چې د ده اطاعحت کوي او د هغه په ګناه کښې به هيڅ کمي هم نه کيږی. مسلم

**حل اللغات:** ①دَعَا: راوبلى، دعوت ورکړى، ②هُدًى: هدايت، أى مَا يُهْتَدَى بِهِ مِنَ الْأَعْمَالِ الصَّالِحَةِ: دلته ددې نه مرادهغه نيک عمل دې چه هدايت ورسره حاصليږى ③آثَام: د اثم جمع ده. ګناه ته وائي.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ دَعَا إِلَى هُدًى:

**د نيکئ دعوت ورکونکى ثواب:** څوک چه خلقو ته د هدايت طرف ته دعوت ورکوى نو د هغه په دعوت چه څومره خلق د هغه اتباع کولو سره اعمال صالحه کوى د هغوى ټولو ثواب به دې داعى ته هم ملاويږى. او د دې ثواب د ملاويدو د وجې نه به د هغوى په ثواب کښې هيڅ کمې نه راځى.

**قوله:** وَمَنْ دَعَا إِلَى ضَلَالَةٍ:

**دګمراهئ د موجد ګناه:** او دويم جزء د دې حديث د دې مقابل دې چه کوم سړې خلقو ته د ګمراهئ دعوت ورکوى نو څومره خلق چه د هغه د دعوت په اتباع کښې بد اعمال کوى نو د هغه ټولو ګناه به دې داعى ته هم ملاويږى او د اصل عمل کونکو په ګناه کښې به هم کمې نه راځى.

---

[١]) اخرجه مسلم كتاب القدر/ باب من سن سنة حسنة أو سيئة ومن دعا إلى هدى أو ضلالة(رقم-١٦ - (٢٦٧٤))و احمد في المسند:٣٩٧/٢ وابوداود كتاب السنة/باب لزوم السنة(رقم-٤٦٠٩) والترمذى كتاب العلم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فيمن دعا إلى هدى فاتبع أو إلى ضلالة (رقم-٢٦٧٤) ابن ماجة كتاب فى الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب من سن سنة حسنة أو سيئة(رقم-٢٠٦)

**اشکال:** دا حديث ددې آيت څخه معارض ښکاري چې ﴿ ولاتزروازرة وزراخرى ﴾ څکه چې په آيت کښې دا دى چې يو کس د بل کس د ګناه بارنشي اوچتولې اوپه حديث کښې دا دى چې چا د ګناه خبرې ته دعوت ورکړو نو هغه ته به د هغه د ګناهونوعذاب هم ملاويږى چا چې دغه ګناه کړې وى.

**داشکال جواب:** دلته اصل ګناه کونکى د خپلو ګناهونو بوجه پخپله اوچتوى، او داعى چه کومه ګناه شوې ده هغه د هغه د سبب ضلالت د جوړيدو د وجې او سبب ضلالت کيدل خپله ګناه ده. نوځکه چه په دې دواړو کښې هيڅ تعارض نشته،

**[١٥٩] دغريبانود پاره زيرې**

١٥٩-()[٢٠] [١] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] «بَدَأَ الْإِسْلَامُ غَرِيبًا، وَسَيَعُودُ كَمَا بَدَأَ، فَطُوبَى لِلْغُرَبَاءِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] ابوهريره ﷺ روايت کوي چې نبي مکرم ﷺ وفرمايل [٢] اسلام په غربت (غريبي) کې شروع شو او په آخرکي به هم دغسې شى نو د غريبانو د پاره زيرى دى. مسلم

**حل اللغات:** ① غَرِيبًا: نا آشنا (چانه پيژندلو). ② سَيَعُودُ: واپس به اوګرځى (ناآشنا به شى). ③ فَطُوبَى: پس خوشحالى او زيرې دې وى.

**تسهيلات:**

**قوله:** بَدَأَ الْإِسْلَامُ غَرِيبًا:

**دحديث په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① غريب په عربى ژبه کښې ناآشنا او غيرمعروف ته وائى. مطلب دا چې دايمان دارو خلقو تعداد به ډير لږ وى، کمزورې به وى، هيرکړې شوې به وى، دهغوى د حال تپوس کونکى به څوك نه وى. هم دغه خلقو په داسې کمزورى حالت کښې په شروع کښې اسلام قبول کړې وو او بيا به هم دغه شان خلق په اسلام باندې وى. هغوى ته دې مبارکى وى. البته په مينځ دورکښې الحمدلله اسلام ته ډيره ترقى شوې وه. چنانچه په مشرق اومغرب کښې د اسلام جهنډا د خلفاء راشدينو ﷺ او د خلفاء بنواميه او په آخره کښې د خلفاء بنوعباس په دور کښې په اکثرعالم باندې اوچته شوه. الحمدلله.

② په شروع کښې د اسلام حاملين په معاشره کښې ورك خلق وو د پوره معاشرې نه کټ شوې خلق ګڼړلې شو چه نه به په غم کښې او نه په خوشحالئى کښې هغوى شريکولې شو اونه به په څه قومى اجتماعى کارکښې هغوى يادولې شو. بيا به هم داسې کيږى او

[١] ) اخرجه مسلم كتاب الإيمان/باب بدأ الإسلام غريبا(رقم-٢٣٢ - (١٤٥) والترمذى كتاب الإيمان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن الإسلام بدأ غريبا وسيعود غريبا (رقم-٢٦٢٩)و احمد فى المسند:٣٨٩/٢

اوس هم دغه حال دې چه په محلو کښې هرسړې په خوشحالئ او غم کښې يادولې شي ديندارہ خلق هميشه ډيرولې شي

## [١٠] ايمان به د مديني طرف ته راټول شي

٢٦٠ - ( ) [٢١] [١] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[٢] «إِنَّ الْإِيمَانَ لَيَأْرِزُ إِلَى الْمَدِينَةِ كَمَا تَأْرِزُ الْحَيَّةُ إِلَى جُحْرِهَا»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] ابوهريره رضي الله عنه روايت كوي چې نبي مكرم ﷺ وفرمايل [٢] ايمان به د مديني طرفته داسې راټول شي لکه څنګه چې يو مارد خپلې غاړې طرف ته راټوليږي. بخاري ومسلم

[١] وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ أَبِي هُرَيْرَةَ (ذَرُونِي مَا تَرَكْتُكُمْ) فِي كِتَابِ الْمَنَاسِكِ [٢] وَحَدِيثَيْ مُعَاوِيَةَ وَجَابِرٍ (لَا يَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِي) فِي بَابِ ثَوَابِ هَذِهِ الْأُمَّةِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى.

[١] او د حضرت ابوهريره رضي الله عنه حديث ذروني ماتركتكم به مونږ په كتاب مناسك (حج) كې ذكر كوو [٢] او د حضرت معاويه رضي الله عنه او جابر رضي الله عنه دواړه احاديث لايزال من امتي الخ او لايزال طائفة من امتي هم د دې امت د ثواب په باب كې ذكر كو انشاء الله (يعني دا احاديث صاحب د مصابيح په دي باب كې ذكر كړي وو ليكن مونږ هغه په هغه بابونو كې ذكر كوو انشاء الله تعالى

**حل اللغات:** ① لَيَأْرِزُ: أَيْ: يَأْوِي وَيَنْضَمُّ: راټوليږي او راغونډيږي به. ② الْحَيَّةُ: مار، ③ جُحْرِهَا: أَيْ: ثَقْبِهَا: خپلې سوړې ته، خپل غار ته

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ الْإِيمَانَ لَيَأْرِزُ إِلَى الْمَدِينَةِ كَمَا تَأْرِزُ الْحَيَّةُ إِلَى جُحْرِهَا:

**د مشار اليه د وخت مصداق:** شيخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله ليكلى دى چې دنصوصو څخه معلوميږي چې دا به د خروج دجال په وخت كښې واقع كيږي

بهر حال حديث پاك كښې دَ مديني منورې دپاره دا اشاره ملاويږي چه مدينه منوره به په مشكل وخت كښې هم دَ اسلام يو مركز وي. [ اشعة المعات ١/١٤٢ ]

**د صاحب مشكاة څخه تسامح:** صاحب مشكوة فرمائى چه باب ثواب هذه الأمة لاندې به دوه احاديث راوړم يو حديث د حضرت معاويه رضي الله عنه فرمائيلي او دويم حديث دَحضرت جابر رضي الله عنه دې ليكن هلته صاحب مشكوة دَ حضرت جابر رضي الله عنه حديث ذكر نه دې فرمائيلې بلكه هيره شوې ترې دې څكه چه (وَخُلِقَ الْإِنْسَانُ ضَعِيفًا) مشكوة ص ٥٨٣ اوګورئ.

---

[1] ) اخرجه البخارى كتاب الحج/باب: الإيمان يأرز إلى المدينة(رقم-١٨٧٦)و احمد فى المسند:٢/٢٨٦ ومسلم كتاب الإيمان/باب بدأ الإسلام غريبا(رقم-٢٣٣ - (١٤٧) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الوقت الأول من الفضل (رقم-١٧٠) ابن ماجة كتاب المناسک/بباب فضل المدينة(رقم-٣١١١)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [١٨] د نبي د دعوت مثال

١٨-() [٣٢] [١] عَنْ رَبِيعَةَ الْجُرَشِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «أُتِيَ نَبِيُّ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] فَقِيلَ لَهُ: لِتَنَمْ عَيْنُكَ، وَلْتَسْمَعْ أُذُنُكَ، وَلْيَعْقِلْ قَلْبُكَ. قَالَ: (فَنَامَتْ عَيْنِي، وَسَمِعَتْ أُذُنَايَ، وَعَقَلَ قَلْبِي). [٣] قَالَ: فَقِيلَ لِي: سَيِّدٌ بَنَى دَارًا، فَصَنَعَ فِيهَا مَأْدُبَةً وَأَرْسَلَ دَاعِيًا، فَمَنْ أَجَابَ الدَّاعِيَ، دَخَلَ الدَّارَ، وَأَكَلَ مِنَ الْمَأْدُبَةِ، وَرَضِيَ عَنْهُ السَّيِّدُ، [٤] وَمَنْ لَمْ يُجِبِ الدَّاعِيَ، لَمْ يَدْخُلِ الدَّارَ، وَلَمْ يَأْكُلْ مِنَ الْمَأْدُبَةِ، وَسَخِطَ عَلَيْهِ السَّيِّدُ). [٥] قَالَ: (فَاللَّهُ السَّيِّدُ، وَمُحَمَّدٌ الدَّاعِي، وَالدَّارُ الْإِسْلَامُ، وَالْمَأْدُبَةُ الْجَنَّةُ»). رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [١] ربيعه الجرشي ﷺ روايت كوي چې نبي مكرم ﷺ ته په خوب کې فرشتي ونبودل شوې [٢] او ده ﷺ ته اوويل شو (يعني فرشتو وويل) چې ستا ﷺ سترګي دي اوده يې، ستا ﷺ غوږونه دي واوري او ستا ﷺ زړه دي پوه شي، رسول الله ﷺ وفرمايل زما سترګي اوده شوې زما غوږونو واوريدل او زما زړه پوه شو، [٣] بيا ده ﷺ وفرمايل چې ماته اوويل شو (يعني د مثال په طور فرشتو زما په مخکې بيان وکړي) چې يو سردار كور جوړ كې او دعوت يي تياره كړي بيا يي يو بلونكي وليږي (چي خلق را وبلي) نو چا چې د رابلونكي دعوت قبول کې نوهغه په هغه كور كښې داخل شو او دعوت يي وخوړلي او سردار په دي خوشحاله شو، [٤] اوچا چې د بلونكي دعو ت قبول نه کې هغه كورته داخل هم نه شو او نه يي د عوت وخوړلو او نه د هغه څخه سردار خوشحاله شو، [٥] حضور ﷺ وفرمايل په دي مثال کې د سردار څخه مراد الله پاك دي او د رابلونكي څخه مراد محمد ﷺ دي او د كور څخه مراد اسلام دي او د عوت څخه مراد جنت دي. درامي

**حل اللغات:** ① مَأْدُبَةٌ: أي طَعَامٌ عَامٌ يُدْعَى النَّاسُ إِلَيْهِ كَالْوَلِيمَةِ: عامه روټئ او خيرات ته وائی چه هر چاته پکښې د شريکيدو دعوت وی. ② السَّيِّدُ: سردار، ③ لَمْ يُجِبْ: قبول ئې نه كړو دعوت، ④ سَخِطَ: غصه شو، ناراضه شو.

**تسهيلات:**

**قوله** لِتَنَمْ عَيْنُكَ، وَلْتَسْمَعْ أُذُنُكَ:

**دمذكوره جملې مطلب:** داكلمات په لفظونوكښې انشاء دی او په معنی كښې اخباردی. يعنی پكاردی چه دهغوی سترګې اودې وی. مطلب دا چه په خپلو سترګو سره دې نور څه نه ګوری او په غوږونو دې نور څه وانوری يعنی په غور اوفكر سره دا مثال اوريدل او په دې باندې پوهيدل پكاردی.

[١] اخرجه الدارمي في السنن رقم الحديث ١١

**د مذکوره کلام به محل کښې دوه احتمالات:**

① کیدې شي چه دا کلام په توګه دَ الهام شوې وي

② کیدې شي فرښتو په حقیقت کښې داکلام حضورپاك مخاطب کولوسره کړې وي.
بهرحال حضورپاك په قال سره جواب ورکړو چه زه دَ اوریدلو دَپاره پوره تیاریم.

**اشکال:** په دې باب کښې دَدې نه مخکښې حدیث نمبر(۳۲) تیرشوې دې دَمذکوره حدیث
دې حدیث سره په ظاهره تعارض معلومیږي ځکه چه هلته دار جنت ته وئیلې شوې دې
اودلته دار اسلام ته وئیلې شوې دې.

**داشکال جواب:** اسلام دَ جنت دَپاره یو سبب دې اوجنت مسبب دې. نوچرته دَ سبب ذکر
دې او چرته دَ مسبب ذکر دې. دا تعارض نه دې. دغه شان بعضې روایاتو کښې دَ السید
لفظ راغلې دې دکوم نه مراد چه الله تعالی دې اودَ داعی لفظ دَنبی کریم ﷺ دَپاره
استعمال شوې دې. اوچرته دَ داعی نه مراد الله تعالی دې. نو په دې کښې هم تعارض
نشته ځکه چه اصلاً داعی خوالله تعالی دې چه بې نیازه دې او بالواسطه داعی رسول الله
ﷺ دې.

## [۴۴]دانکارحدیث فتنه

۴۴-()[۲۳]① وَعَنْ أَبِي رَافِعٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: («لَا أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ مُتَّكِئًا عَلَى أَرِيكَتِهِ، يَأْتِيهِ الْأَمْرُ مِنْ أَمْرِي مِمَّا أَمَرْتُ بِهِ أَوْ نَهَيْتُ عَنْهُ،② فَيَقُولُ لَا أَدْرِي، مَا وَجَدْنَا فِي كِتَابِ اللَّهِ اتَّبَعْنَاهُ»). رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي (دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ)

**ترجمه:** ① ابو رافع رضی الله عنه روایت کوي چې نبي مکرم ﷺ وفرمایل زه په تاسو کې څوك په
دي حال کې ونه وینم چې هغه په خپل چپرکټ (چار پایي) تکیه لګولي وي او زما د هغه
حکمونو څخه چې د هغه ما حکم ورکړي دي یا د څه څخه چې مي منع کړیده څه حکم هم
هغه ته ورسیږي ذ③ او هغه (دهغه په اوریدو سره) دا اووائي چې ماته هیڅ معلوم نه دي
کوم څه چې مونږ ته د الله په کتاب کې حاصل شو مونږ بس د هغه پیروي کوو. احمد،
ابوداؤد، ترمذي، ابن ماجه. بیهقي

**حل اللغات:** ① لَا أُلْفِيَنَّ: أَيْ لَا أَجِدَنَّ: زه دې اونه وینم (یعنی تاسو په داسې حالت کښې اخته کیږئی
مه چې څه تاسو په داسې حالت اومومم) ② مُتَّكِئًا: چه تکیه ئې لګولې وی، ③ أَرِيكَتِهِ: أَيْ: سَرِيرِهِ
الْمُزَيَّنِ بِالْحُلَلِ: شاهی تخت ته اریکة وائی. اوددې جمع أرائك دې. دې ته چپر کټ هم وائی.④
يَأْتِيهِ الْأَمْرُ: دلته مطلق دین اسلام مراد دې. امر وی اوکه نهی یا بل څه حکم

[1] اخرجه ابوداود کتاب السنة/باب فی لزوم السنة(رقم-۴۶۰۵)و احمد فی المسند:۸/۶ والترمذی کتاب العلم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما نهی عنه أن یقال عند حدیث النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-۲۶۶۳)

**د راوي مختصر تعارف:** نوم اسلم کنیت ابورافع دَهغه دپاره دومره عزت ډیر دې چه دې دَرسول الله ﷺ په غلامانو کښې شمیردې. په شروع کښې حضرت ابورافع رضي الله عنه دَحضرت عباس رضي الله عنه غلام وو هغه رسول الله ﷺ ته هدیه کړو بیا حضور ﷺ دَحضرت عباس رضي الله عنه دَ مسلمانیدو په خوشحالئ کښې هغه آزاد کړو.

دَجنګ بدر نه پس هجرت اوکړو او مدینې ته راغلو اوحضور ﷺ سره اوسیدو. دَ بدر نه علاوه په ټولو جنګونو کښې شریك شوې وو. حضرت علی رضي الله عنه سره سریه ته هم تلې وو اوحضرت علی رضي الله عنه په خپل غیرموجودګئ کښې دَسریه مشری هغه ته حواله کړې وه. سره دَ دې چه رسول الله ﷺ هغه آزاد کړې ووخو هغه اوس هم دَحضور ﷺ په غلامئ کښې راګیر وو سره دَ آزادیدو ئې دَ رسول الله ﷺ دَ خدمت شرف نه پریخودو. رسول الله ﷺ به هم هغه سره ډیره مینه کوله اودَهغه هم دَ رسول الله ﷺ غلامی ډیره خوښه وه. همیشه به ئې خپل ځان ته دَ رسول الله ﷺ غلام وئیلو.

**وفات:** دَ حضرت علی رضي الله عنه دَخلافت دَ شروع زمانه کښې وفات شو.

**مرویات:** دَ هغوی نه دَ احادیثو په کتابونو کښې۶۸ روایات ملاویږی په دې کښې بخاری په یو کښې او مسلم په دریو کښې منفرددې. (تهذیب الکمال ص ۴۴۹) دَ نورو حالاتودپاره اوګورئی ① طبقات ابن سعد ۵۱/۱ ② مستدرك حاکم ۵۹۸/۳ ③ تهذیب التهذیب ۹۲/۲ ④ اسدالغابة ۱۹۱/۵ ⑤ تهذیب الکمال ۴۴۹ ⑥ اصابه۹۲/۴ وغیره.

**تسهیلات:**

**قوله:** مُتَّکِئًا عَلٰی أَرِیْکَتِهٖ:

**په منکرین حدیثو باندې رد:** په دې حدیث پاك کښې په منکرینِ حدیث باندې بلیغ تردید اورد دې کوم چې خپل ځان ته اهل قرآن وائی اودجهالت په وجه داحایثو څخه انکار کوی دوئ ډیر تکبر او غرورسره وائی چې زمونږدپاره صرف قرآن پاك کافی دې. ددې مشاهده علماء حق په هغه وخت کښې کړې وه کله چې هغوئ د وفد په شکل کښې دَ عبدالله چکړالوی منکرِحدیث په خدمت کښې حاضرشو اوهغه په چپرکټ کښې ناست وو، او په غرور سره ئې وئیل چې حسبنا کتاب الله چې بس مونږ دپاره دالله تعالی کتاب کافی دې.

**[۱۳] دانکار حدیث د فتنې پیشنګوئی**

۱۶۳—(۱)[۲۴] ① وَعَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِیْکَرِبَ-رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ:

---

[۱] ) اخرجه ابوداود کتاب السنة/ باب فی لزوم السنة(رقم-۴۶۰۴) والترمذی کتاب العلم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما نهی عنه أن یقال عند حدیث النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-۲۶۶۴) وابن ماجة کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/ باب تعظیم حدیث رسول الله صلی الله علیه وسلم، والتغلیظ علی من عارضه(رقم-۱۲)و احمد فی المسند: ۱۳۲/۴

(«أَلَا إِنِّي أُوتِيتُ الْقُرْآنَ وَمِثْلَهُ مَعَهُ، أَلَا يُوشِكُ رَجُلٌ شَبْعَانٌ عَلَى أَرِيكَتِهِ يَقُولُ: عَلَيْكُمْ بِهَذَا الْقُرْآنِ، فَمَا وَجَدْتُمْ فِيهِ مِنْ حَلَالٍ فَأَحِلُّوهُ، وَمَا وَجَدْتُمْ فِيهِ مِنْ حَرَامٍ فَحَرِّمُوهُ، [٢] وَإِنَّ مَا حَرَّمَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَمَا حَرَّمَ اللَّهُ؛ [٣] أَلَا لَا يَحِلُّ لَكُمُ الْحِمَارُ الْأَهْلِيُّ، وَلَا كُلُّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ [٤] وَلَا لُقَطَةُ مُعَاهِدٍ إِلَّا أَنْ يَسْتَغْنِيَ عَنْهَا صَاحِبُهَا، [٥] وَمَنْ نَزَلَ بِقَوْمٍ، فَعَلَيْهِمْ أَنْ يَقْرُوهُ، فَإِنْ لَمْ يَقْرُوهُ فَلَهُ أَنْ يُعْقِبَهُمْ بِمِثْلِ قِرَاهُ») . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَرَوَى الدَّارِمِيُّ نَحْوَهُ، وَكَذَا ابْنُ مَاجَهْ إِلَى قَوْلِهِ: (كَمَا حَرَّمَ اللَّهُ).

**ترجمه:** [١] مقدام بن معديكرب ﷺ روايت كوي چې حضور ﷺ وفرمايل خبردار شی ماته قرآن راكړل شوې دي او د هغه سره د هغه مثل هم، [٢] خبردار نزدي ده په خپل چپركټ باندې پروت يو په خيټه موړ سړي به وايي چې بس دا قرآن په خپل ځان لازم وګڼي يعنى فقط په قرآن باندې ځان پوه كړي او په دي عمل كوي او كوم شي چې تاسو په قرآن كې حلال پيدا كې هغه حلال وګڼي او كوم شي چې تاسو په قرآن كې حرام پيدا كې هغه حرام وګڼي [٣] حالانكه كوم څه چې رسول الله ﷺ حرام كړي دي هغه داسې دي لكه چې الله حرام كړي دي، [٤] خبردار نه ستاسو د پاره اهلي (كورني) خرحلال دي او نه داړهور درندګان (ځيرونكي حيوانان) [٥] او نه ستاسو د پاره د معاهد (يعني هغه قوم چې د هغه سره معاهده شوې وي) لقطه (ورك شيء) حلال كړي شوې ده، مګر هغه لقطه چې د هغه پرواه د هغه مالك ته نه وي [٦] او كوم سړي چې د يو قوم ميلمه وي نو په هغه قوم باندې لازم ده چې د هغه ميلمستيا وكړي او كه چېرته هغه ميلمستيا اونه كړي نو د هغه سړي د پاره دا جائز دي چې هغه د ميلمستيا په اندازه د هغوئ څخه حاصل كړي. ابو داود، دارمي، هم داسې روايت نقل كړي دي او ابن ماجه هم تر (كما حرم الله) پوري.

**حل اللغات:** ① أَلَا: دا حرف تنبيه ده، أَيْ: أَنَبِّهُكُمْ فَتَنَبَّهُوا: يعنى زه تاسوته خبر دركوم نو تاسو خبردار شئ، ② مِثْلَهُ مَعَهُ: أَيْ: مِثْلَ الْقُرْآنِ: يعنى دَ قرآن پاك په شان دَ احكامودَ اثبات دَپاره ماته احاديث هم راكړې شوې دى. او فرق دومره دې چه قرآن وحى متلو ده او احاديث وحى غير متلو دى. په دواړو باندې عمل كول ضرورى دى. حلت او حرمت دَ دواړو نه ثابتيږى ③ يُوشِكُ: أَيْ: يَقْرُبُ: نزدې ده، ④ شَبْعَانٌ: موړ سړې، په دې لفظ سره دَ هغه سړى دَ بلادت، حماقت، جهالت او عيش وعشرت طرف ته اشاره ده ځكه چه دَ ډكې خيټې والا بليد او بې وقوف وى. لهذا هغه به دَ بلادت او حماقت دَ وجې نه دَاحاديثو نه انكار كوى. ⑤ أَرِيكَتِهِ: أَيْ: سَرِيرِهِ الْمُزَيَّنِ بِالْحُلَلِ: شاهى تخت ته اريكة وائى. اوددې جمع أرائك دې. دې ته چپر كټ هم وائى. ⑥ الْحِمَارُ الْأَهْلِيُّ: كورنى خر (چه په كوركښې ساتلى شوى وى ځنګلى نه وى)، ⑦ ذِي نَابٍ: د داړو والا ځناور ⑧ السِّبَاعِ: أَيْ: سِبَاعُ الْوُحُوشِ: وحشى شلونكى ځناور (مثلاً زمرې، شيرمخ وغيره) ⑨ لُقَطَةُ: چه دچا نه په غفلت او بې خبرئ كښې څه ځيز اوغورځيږى هغې ته لقطه وائى. ⑩ مُعَاهِدٍ: چه معاهده ورسره شوې وى.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَإِنَّ مَا حَرَّمَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**د نبی تحریم دالله تعالی تحریم:** یعنی دَ رسول الله ﷺ په فرمان سره هم هغه شان څیزونه حرام شوی دی لکه څنګه چه الله تعالی حرام ګرځولی دی. لهذا دَ حضورپاك ذات په حقیقت کښې هم دغه شان شارع دې لکه څنګه چه الله تعالی شارع دې. ځکه چه ﴿وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى ۝ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحٰى ۝﴾ واضح آیاتونه دی.

**قوله:** أَلَا لَا يَحِلُّ لَكُمْ:

**په احادیثو حرام شوی څیزونه:** دَدې ځائی نه دَهغه څیزونو بیان شروع کړې شوې دې دکومو حرمت چه په سنتِ رسول کښې ذکردې او په قرآن کریم کښې نشته دې. دا ټول څلور څیزونه دی:

① **الحمارُ الاهلي:** ساتلي شوي خر نه چه وحشی خر ځکه چه هغه صحرائی دې او حلال دې. کَوم ته چه زیبرا وائی. دَدې ساتلی شوی خر دَ حرمت حکم په حدیث کښې شته او قرآن کریم کښې نشته دې.

② **ذی ناب:** یعنی په غاښونو او پنجو سره دَ ښکار کونکی ځناورو دَ حرمت ذکر په قرآن کښې نشته دې په احادیثو کښې شته.

③ **دمعاهد:** لفظ استعمالول. معاهد یا ذمی وی او یا حلیف کافر وی. دَدې نه معلومه شوه چه دَ غیر ذمی مسلمان لقطه استعمالول په طریقه اولی حرام دی او معمولی څیزچه څوك ئی پخپله اوغورزوی یا دَ پریوتلو نه پس دَهغې دَ اوچتولو ضرورت محسوس نه کړی نو هغه ترې مستثناء دې.

④ **ومن نزل:** دا څلورم څیز دې چه چه څوك مسلمان یو قوم ته راشی نو په هغه قوم باندې دَ هغه میلمستیا واجب ده ګنی میلمه دې دَ خپلې میلمستیا په شان دَهغه خلقو نه دَدې عوض واخلی.

**اشکال:** دَ چا په مال کښې تعرض کول، یا په زوره اخستل چرته جائز دی په دې حدیث کښې دا اجازت څنګه ورکړې شوې دې؟

**داشکال درې جوابونه:**

① دا حکم دَ اسلام په شروع کښې وو بیا منسوخ شو.

② په اصل کښې دا به داهل کتاب سره دَ جزي معاهده شوې وه. په دغه معاهده کښې به دا فیصله شوې وه چه که چرې مسلمانان ستاسو په کلی تیریږی نو تاسو به په هغوی باندې خوراك کوئی. لهذا دا دَ جزي او ټیکس حصه وه. په نه ورکولوسره په زور اخستل

جائز وو. دا جواب واضح دې او راتلونکې روایت هم په دې باندې محمول دې کوم چه د حضرت عرباض ﷺ نه نقل دې.

④ دا د حالت اضطرار حکم دې. چه کوم سړې په مخمصه او اضطرار کښې وی نوهغه د ځان بچ کولو دپاره دا اخستې شی. بیا به عوض واپس کوی هم دغه مطلب د اعقاب دې.

**[۶۳] په معاهد باندې د ظلم حرمت**

۶۳–()[۲۵] ①وَعَنِ الْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَامَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: "②«أَيَحْسَبُ أَحَدُكُمْ مُتَّكِئًا عَلَى أَرِيكَتِهِ يَظُنُّ أَنَّ اللَّهَ لَمْ يُحَرِّمْ شَيْئًا إِلَّا مَا فِي هَذَا الْقُرْآنِ؟ !③أَلَا وَإِنِّي وَاللَّهِ قَدْ أَمَرْتُ وَوَعَظْتُ وَنَهَيْتُ عَنْ أَشْيَاءَ إِنَّهَا لَمِثْلُ الْقُرْآنِ أَوْ أَكْثَرُ،④وَإِنَّ اللَّهَ لَمْ يُحِلَّ لَكُمْ أَنْ تَدْخُلُوا بُيُوتَ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا بِإِذْنٍ،⑤وَلَا ضَرْبَ نِسَائِهِمْ وَلَا أَكْلَ ثِمَارِهِمْ إِذَا أَعْطَوْكُمُ الَّذِي عَلَيْهِمْ» "⑥رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَفِي إِسْنَادِهِ: أَشْعَثُ بْنُ شُعْبَةَ الْمِصِّيصِيُّ، قَدْ تُكُلِّمَ فِيهِ.

**ترجمه:** ①عرباض بن ساریه ﷺ روایت کوي چې حضور ﷺ (د خطبې د پاره) ودریدلو او وې فرمایل② چې آیا په تاسو کې څوك په خپل چپرکټ باندې څنګ وهلې دا خیال ساتي چې الله یوازې هغه څیزونه حرام کړي دي کوم چې په قرآن کې ذکر شوې دي ③خبردار په الله قسم چې بې شکه ما حکم ورکړیدې ما نصیحت کړې دې او ما څه څیزونه منع کړل کوم چې داشیان هم په مثل د قرآن دي بلکه زیات دي④ بې شکه الله تعالی ﷻ دا ستاسو د پاره نه دي حلال کړي چې تاسو د اهل کتابو کورونو ته بغیر د اجازت اخستو څخه داخل شی ⑤او نه ستاسو د پاره د هغوئ ښځې وهل حلال دي او نه ستاسو د پاره دهغوئ دمیوو خوړل جائز دي، هرکله چې هغوئ مقررکړل شوې ادا کړي کوم چې د هغوئ په ذمه وي، ⑥(ابوداؤد) ددې حدیث په سند کې اشعث بن شعبه مِصیصي دې چې د هغه په باره کې کلام شوې دې چې هغه ثقه دې یا نه؟

**حل اللغات:** ① ضَرْبَ: وهل، (ددې نه مراد یا په لاس یا لرګی وغیره سره وهل دی، یا دا کنایه ده د جماع نه، یعنی جماع کول ورسره جائز نه دی).

**د راوي مختصر تعارف:** نوم عرباض کنیت ابونجیح دې.د پلار نوم ئې ساریه ووا و په صحابه صفه کښې د ده شمیرکیدلو.دې پخپله فرمائی چه زه څلورم نمبرمسلمان یم مانه وړاندې درې کسان په اسلام کښې داخل شوې وو.والله اعلم.

**وفات:** شام ته ئې تشریف یوړو او بیا حمص ښارکښې دخپل ژوند دآخری ورځو پورې هلته وو.د هغه د شاګردانو هم یولوئ شمیروو.

**روایات:** د هغه نه ۷۵ روایات نقل دی ابن حزم ۳۱ ونیلی دی.

[۱] اخرجه ابوداود كتاب الخراج والإمارة والفیء/باب في تعشير أهل الذمة إذا اختلفوا بالتجارات(رقم-۳۰۵۰)

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّهَا لَمِثْلُ الْقُرْآنِ أَوْ أَكْثَرُ:

**د ،،او،، د كلمې نوعيت** :دا او په معنى دَ بل دې. دا دَ شك دَپاره نه بلكه دَ اولنې وحى سره متصل دويمه وحى راغله نو بل اكثر ئې اوفرمائيلو

**قوله:** وَلَا ضَرْبَ نِسَائِهِمْ:

**دمفتوح قوم د ښځوهلو حرمت**:دې نه مراد دَ مفتوح قوم دَ ښځو وهلو ممانعت دې. دا رنګ دَهغوى دَ كورونو دَ بې حرمتئ ممانعت دې. لكه چه عام طورد فاتحينو عادت وى. دَ دواړو احاديثو خلاصه داده چه داسې احكام ډيرزيات دى دكوم ذكر چه په قرآن كريم كښې نشته ليكن دَ احاديثو نه ثابت دى. دكوم تفصيل چه په حجيت حديث كښې تيرشوې دې.

**[١٦٥] صحابوته د نبى عليه السلام نصيحت**

١٦٥-()[٢٦] ١ وَعَنْهُ، قَالَ: «صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ذَاتَ يَوْمٍ، ٢ ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ فَوَعَظَنَا مَوْعِظَةً بَلِيغَةً، ذَرَفَتْ مِنْهَا الْعُيُونُ، وَوَجِلَتْ مِنْهَا الْقُلُوبُ. ٣ فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! كَأَنَّ هَذِهِ مَوْعِظَةُ مُوَدِّعٍ فَأَوْصِنَا، ٤ فَقَالَ "أُوصِيكُمْ بِتَقْوَى اللَّهِ، وَالسَّمْعِ وَالطَّاعَةِ، وَإِنْ كَانَ عَبْدًا حَبَشِيًّا، فَإِنَّهُ مَنْ يَعِشْ مِنْكُمْ بَعْدِي فَسَيَرَى اخْتِلَافًا كَثِيرًا، ٥ فَعَلَيْكُمْ بِسُنَّتِي وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الرَّاشِدِينَ الْمَهْدِيِّينَ، تَمَسَّكُوا بِهَا وَعَضُّوا عَلَيْهَا بِالنَّوَاجِذِ، ٦ وَإِيَّاكُمْ وَمُحْدَثَاتِ الْأُمُورِ، فَإِنَّ كُلَّ مُحْدَثَةٍ بِدْعَةٌ، وَكُلَّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ إِلَّا أَنَّهُمَا لَمْ يَذْكُرَا الصَّلَاةَ.

**ترجمه:** ١ عرباض بن ساريه ﷺ روايت كوي چې نبي كريم ﷺ مونږ ته مونځ راكې، ٢ زمونږ طرفته ته په متوجه كيدو سره كيناستل او مونږ ته په انتهائي موثر انداز كې نصيحت وكړو چې زمونږ د سترګو څخه اوښكې رواني شوې او په زړونو كې مو بيره پيدا شوه، ٣ يو سړي عرض وكړو چې يا رسول الله ﷺ (داسې معلوميږي لكه چې) داديو نصيحت كونكي آخري نصيحت وي، نو مونږ ته وصيت اوفرمايه، ٤ ده ﷺ وفرمايل زه تاسو ته نصيحت كوم چې د الله ﷻ څخه وويرېږي او تاسو ته د مسلمان سردار (د حكم) اوريدو او په ځاي راوړلو وصيت كوم اګر كه هغه سردار حبشي غلام وي په تاسو كې چې څوك زما څخه وروسته ژوندي پاتې شى هغه به ډيراختلافات ويني، ٥ نو په داسې حالت كې په تاسو لازم دي چې زما او د هدايت يافته خلفائي راشدينو طريقه لازم ونيسئ او په هغه طريقه باندې اعتماد وكړئ او هغه په غاښونو سره مضبوط

---

[١] ) اخرجه ابوداود كتاب السنة/باب فى لزوم السنة(رقم-٤٦٠٧) والترمذى كتاب العلم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ باب ما جاء فى الأخذ بالسنة واجتناب البدع (رقم-٢٦٧٦) رابن ماجة كتاب فى الإيمان وفضائل الصحابة والعلم /باب اتباع سنة الخلفاء الراشدين المهديين (رقم-٤٢)

ونیسي ⑥ او تاسو په دین کې د نوو نوو خبرو پیدا کولو څخه ځان ساتي څکه چې هره نوي خبره اونوي کاربدعت دي او هر بدعت ګمراهي ده احمد، ابو داؤد، ترمذي، ابن ماجه، مګر په دي روایت کې ترمذي او ابن ماجه د مونځ د کولو ذکر نه دي کړي یعنی د هغوئ په روایت کې د حدیث الفاظ صلي بنا رسول اللهﷺ ذکرنه دي بلکه حدیث د وعظنا موعظة څخه شروع کیږي

**حل اللغات:** ① بَلِيغَةً: بَالَغَ فِيهَا بِالْإِنْذَارِ وَالتَّخْوِيفِ: په انتهائی مؤثر انداز کښې وعظ او نصیحت کول ② ذَرَفَتْ: أَيْ: دَمَعَتْ: د اوښکو بهیدو په معنی کښې دي ③ وَجِلَتْ: أَيْ: خَافَتْ: د زړه ویرې او خشوع ته وائی. ④ مَوْعِظَةُ مُوَدِّعٍ: جامع نصیحت ته موعظة مودع وائی. ⑤ الْخُلَفَاءِ: جمع د خلیفة ده، جانشین، ⑥ الرَّاشِدِينَ: نیغه لار موندونکی. ⑦ الْمَهْدِيِّينَ: هدایت موندونکی (مراد څلور خلیفه ګان صحابه کرام دی چه هغوی د نبی ﷺ مکمله تابعداری کړې وه). ⑧ تَمَسَّكُوا: تاسو لازم اونیسئ (طریقه د خلفاء راشدینو) ⑨ عَضُّوا: په غاښونو سره کلک نیولو ته وائی یعنی کلک اونیسئ، ⑩ النَّوَاجِذِ: ددې نه مراد یا د ژامې غاښونه دی یا په ثنائی پسې چه کوم غاښونه دی یعنی انیاب (داړې) هغه مراد دی (په غاښونو سره نیول کنایه ده ددې نه چه په سنت باندې کلک عمل کونکی جوړشئ). ⑪ مُحْدَثَاتِ: يَعْنِي الْبِدَعَ: بدعاتو ته وائی (بدعات اعتقادی، قولی او فعلی ټول پکښې داخل دی).

**تسهیلات:**

**قوله: فَوَعَظَنَا مَوْعِظَةً بَلِيغَةً:**

**د مزیدنصیحت کولود درخواست وجه:** په دې مقام باندې ټولې داسې خبرې ذکر کړې ګویا چې نبی کریم ﷺ روان دې ځی هم په دې وجه صحابی د نور نصیحت او وصیت درخواست اوکړو.

**قوله: أُوصِيكُمْ بِتَقْوَى اللَّهِ:**

**دتقوی مثال:** ظاهراً او باطناً خپله معامله خپل رب سره کولو ته تقوی وائی. حضرت عمر فاروق ﷺ چې کله د حضرت ابی بن کعب ﷺ څخه د تقوی متعلق تپوس اوکړو نو هغوئ اوفرمائیل چې اې امیر المؤمنین ! د تقوی مثال داسې دې لکه څنګه چې یو کس په ازغی جنه لار باندې ځی او خپل جسم او کپړې د ازغو څخه بچ کوی، هم دا د تقوی صورت دې.

**قوله: وَالسَّمْعِ وَالطَّاعَةِ، وَإِنْ كَانَ عَبْدًا حَبَشِيًّا:**

**اشکال:** په اسلام کښې غلام بادشاه نشی جوړیدې. بلکه حدیث پاك کښې راغلی دی چې، الأئمة من قريش، یعنی حاکمان به د قریشو څخه وی. نو بیا دحبشی غلام بادشاهت ثې څنګه واجب الاطاعت اوګرزولو؟

**داشکال دوه جوابونه:** ① بادشاه جوړيدل علی سبيل المبالغه دی چې دا حبشی غلام په تاسو په زور مسلط شو. نو بیا ددهٔ اطاعت کوئی دا د وخت ضرورت دې په دې شرط چې غلام دالله تعالی دکتاب مطابق فیصلې کوی. خپل حکم نه چلوی. (أي مالم يأمر بمعصية)
② دا حدیث په دا علی سبيل المبالغة باندې حمل دې. گویا چه معمولی کس هم وی، چې دهغه سر د کشمش د دانې برابر ولې نه وی خو تاسو ئې اطاعت کوئی چې انتظام روان وی، او انتشار پیدا نشی.

**قوله:** وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الرَّاشِدِينَ الْمَهْدِيِّينَ:

**دخلفاء راشدينو مصداق:** د خلفاء راشدينو څخه مراد خلفاء اربعه دی. مشهور هم دا څلور دی. ددې نه پس حضرت حسن ﷺ او حضرت معاویه ﷺ هم خلافت اوکړو. هغوئ هم خلفاء وو. حضرت عمر بن عبدالعزيز ﷫ لره هم علماء کرامو په خلفاء راشدينو کښې شمیر کړې دې.

**دخلفاء راشدینود تخصیص وجه:** دلته د څلورو خلفاء کرامو امتیازی شان بیان کړې شوې دې. ددې نه د هغوئ تخصیص مراد دې. د نورو خلفاء کرامو د خلافت نفی مراد نه ده. قیامت پورې به خلفاء راځی خو دلته د خلافت علی منهاج النبوة ذکر کړې شوې دې.

**قوله:** وَعَضُّوا عَلَيْهَا:

**دخلفاء راشدینوپه سنتو دعمل کولو حکم:** دې حدیث پاك کښې نبی کریم ﷺ خپلو سنتو مبارکو سره دخلفاء راشدینو د سنتو د نیولو هم حکم فرمائیلې دې. ددې څخه معلوم شو چې دخلفاء راشدینو سنت هم معیار دحق دی. حضرت شاه صاحب ﷫ فرمائی چې د خلفاء راشدینو مقام د تشریع او اجتهاد په مینځ کښې دې. تشریع دنبی مقام دې. او اجتهاد د ائمه مجتدینو کار دې. د خلفاء راشدینو مقام نه خو د تشریع والا دې بلکه ددې څخه لاندې دې. او نه دمجهدینو والا دی. بلکه ددې څخه پورته دې بلکه ددې دواړو په مینځ کښې دې.

**[۱۲٦] دالله تعالی اود شیطان د لارو نقشه**

| |
|---|
| ١٦٦—(١)[٢٧] ١ وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «خَطَّ لَنَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - خَطًّا. ثُمَّ قَالَ: "هَذَا سَبِيلُ اللَّهِ" ٢ ثُمَّ خَطَّ خُطُوطًا عَنْ يَمِينِهِ وَعَنْ شِمَالِهِ وَقَالَ: "هَذِهِ سُبُلٌ عَلَى كُلِّ سَبِيلٍ مِنْهَا شَيْطَانٌ يَدْعُو إِلَيْهِ" ٣ وَقَرَأَ: {وَأَنَّ هَذَا صِرَاطِي مُسْتَقِيمًا فَاتَّبِعُوهُ} [الأنعام: ١٥٣] الْآيَةَ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ. |

**ترجمه:** ١ عبد الله بن مسعود ﷺ وايي چې ضور ﷺ زمونږ د پوهیدلو د پاره یو نیغ

[۱] اخرجه احمد فی المسند: ۱/۴۳۵ والدارمی فی السنن رقم الحدیث ۲۰۲

خط راښکلو او وي فرمايل چې دا د الله ﷻ لاره ده، [۲] بيا حضور ﷺ د دې خط ښي او ګس طرف ته يو څو واړه خطونه وښکل او وي فرمايل دا هم لارې دي چې په دې کښې په هره يوه لاره شيطان ناست دې چې د خپلې لارې طرفته بلنه کوي. [۳] بيا رسول الله ﷺ دا آيت تلاوت وفرمايلې وَأَنَّ هَٰذَا صِرَاطِي مُسْتَقِيمًا فَاتَّبِعُوهُ وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَن سَبِيلِهِ، (ترجمه) او بې شکه دا زما نيغه لار ده لهذا د دې پيروي کوي او د نورولارو پيروي مه کوي هسې نه چې د سمې لارې څخه مو جدا نه کړي. احمد، نسائي، د ارمي

**حل اللغات:** ① خَطَّ: کرښې راښکلو ته وائي.

**تسهيلات:**

**قوله:** ثُمَّ خَطَّ خُطُوطًا عَنْ يَمِينِهِ وَعَنْ شِمَالِهِ.

**د نيغ او کږو خطونو څخه مراد:** دَتقريب فهم دَپاره اودَ پوهه کولودَپاره ئې کرښې راښکلې دي دې دَپاره چه انسان دَ کمې زياتې نه بچ شي. ځکه چه دَ اسلام خط او کرښه په مينځ کښې نيغه او معتدل ده. اوهم دغه دَ شريعت شاهراه اعظم دې. دې نه علاوه کاګه خطوط دَ بدعاتو اوګمراهئې دې کومې چه دَ شيطان لارې دي.

## [۱۶۷] خواهشات د شريعت تابع کرځول

۱۶۷—( ) [۲۸] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «لَا يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ حَتَّى يَكُونَ هَوَاهُ تَبَعًا لِمَا جِئْتُ بِهِ»). رَوَاهُ فِي (شَرْحِ السُّنَّةِ)، [۳] وَقَالَ النَّوَوِيُّ فِي (أَرْبَعِينِهِ) هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ، رَوَيْنَاهُ فِي كِتَابِ (الْحُجَّةِ) بِإِسْنَادٍ صَحِيحٍ.

**ترجمه:** [۱] عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما روايت کوي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل [۲] په تاسو کې هيڅ يو سړي تر هغه وخت پورې پوره مؤمن نشي جوړيدې تر څو چې د هغه خواهشات د هغه شي (يعني دين او شريعت) تابع نه شي کوم چې ما (د الله ﷻ د طرفه) راوړي دي، دا حديث شرح السنه کې روايت شوې دې [۳] او امام نووي رحمه الله په خپل چهل حديث کې ليکلې دي چې دا حديث صحيح دې کوم چې مونږ په کتاب الحجة کې په صحيح سند سره روايت کړې دې.

**حل اللغات:** ① هَوَاهُ: أَيْ: مَيْلُ نَفْسِهِ: د هَوِيَ يَهْوِي هَوًى نه، د زړه يو طرف ته اوړيدل او ميلان کول، ② لِمَا جِئْتُ بِهِ: کوم چه ما راوړلې دی (يعنی دين او شريعت).

**تسهيلات:** **قوله:** لَا يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ.

**دايمان په نفی کښې اقوال:** ① شيخ مظهر رحمه الله وغيره فرمائي چه دلته داصل ايمان نفی

[۱]) اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم الحديث ۱۰٤

ده يعنى دَ ايمان مدار دَ شريعت په اتباع دې نو چه کوم سړې اطاعت کوى نو هغه ئى دې دَپاره کوى چه دا دَهغه دين دې سره دَ دې چه طبيعت ئى نه غواړى په دې باندې هغه ته ثواب هم ملاويږى. ليکن که يوه مسئله داسې ده چه هغه دَ خواهش مطابق ده او زړه ئى غواړى چه په هغې باندې عمل اوکړى اوهغه سړې عمل کوى خودَ اتباع اراده ئى نه وه بلکه دَخواهش پوره کولو اراده ئى وه نودَ دغه سړى دا عمل دين پاتې نه شو لهذا هغه مومن هم نه شو. خلاصه دا چه دَ شريعت اتباع اصل مقصود دې

④ علامه توريشتى رحمه الله فرمائى چه دا نفى دَ کمال ده چه دَ انسان طبيعت داسې دې چه هغه دَ خپل خواهش اتباع کوى اوهغه په هرڅيز باندې مقدم لرى. نوترکومې پورې چه هغه خپل طبيعت، جبلت اوخواهش دَ شريعت تابع کړې نه وى ترهغه وخته پورې کامل مؤمن کيدې نه شى

**[١٢٨] د سنت ژوندي کولو ثواب، اوبدعت رائج کولو ګناه**

١٢٨-(١)[٢٩] ١ وَعَنْ بِلَالِ بْنِ الْحَارِثِ الْمُزَنِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "٢ «مَنْ أَحْيَا سُنَّةً مِنْ سُنَّتِي قَدْ أُمِيتَتْ بَعْدِي، فَإِنَّ لَهُ مِنَ الْأَجْرِ مِثْلَ أُجُورِ مَنْ عَمِلَ بِهَا مِنْ غَيْرِ أَنْ يَنْقُصَ مِنْ أُجُورِهِمْ شَيْئًا، ٣ وَمَنِ ابْتَدَعَ بِدْعَةَ ضَلَالَةٍ لَا (يَرْضَاهَا) اللّٰهُ وَرَسُولُهُ، كَانَ عَلَيْهِ (مِنَ الْإِثْمِ) مِثْلُ آثَامِ مَنْ عَمِلَ بِهَا لَا يَنْقُصُ مِنْ (أَوْزَارِهِمْ) شَيْئًا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ١ بلال بن حارث مزني رضي الله عنه روايت کوي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل ٢ کوم سړي چې زما يو داسې سنت ژوندي کړي (يعني رائج يې کي) کوم چې زما څخه وروسته پريښودل شوي وو نو هغه ته دومره ثواب ورکول کيږي څومره چې په هغه سنت باندې عمل کولو والا ته ورکول کيږي بغير د دې څخه چې په هغه سنت باندې دعمل کولو والا په ثواب کې څه کمي وشي ٣ او کوم سړي چې د ګمراهۍ څه داسې نوي خبره (بدعت) را وايستي چې په هغه سره الله جل جلاله او د هغه رسول صلى الله عليه وسلم نه خوشحاليږي نو په هغه به دومره ګناه وي څومره چې په هغه بدعت باندې د عمل کولو والا ګناه وي بغير د دې څخه چې د هغه په ګناه کې به هيڅ کمي نه شي کيدي، ترمذي

**حل اللغات:** ① أَحْيَا: أَيْ: مَنْ أَظْهَرَهَا وَأَشَاعَهَا: ژوندې کړى (د ژوندى کولو نه مراد دا دى چه بنکاره ئې کړى اتباع ئې اوکړى او خور ئې کړى که په قول سره وى اوکه په فعل سره وى. ② أُمِيتَتْ: أَيْ: تُرِكَتْ: مړشوې وى يعنى دغه سنت پريخودلې شوې وى څوک پرې عمل نه کوى. ③ ابْتَدَعَ: نوې کار يعنى بدعت ئې شروع کړو. ④ آثَام: د اثم جمع ده، ګناه ته وائى. ⑤ أَوْزَارِهِمْ: أَوْزَار د وِزر جمع ده، بوج ته وائى.

---

(١) اخرجه الترمذي كتاب العلم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الأخذ بالسنة واجتناب البدع (رقم-٢٦٧٦)

**د راوي مختصر تعارف:** بلال، کنیت ابوعبدالرحمان، دپلار نوم حارث، قبیله مزنی سره ئې تعلق ساتلو. دمزینه قبیلې وفد سره پنځمه هجرئ کښې د حضور نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضر شو، فتح مکه کښې حضرت نبی کریم ﷺ سره شریک وو او قبیله مزینه بیرغ دوی سره لاس کښې وو، آخر کښې ئې بصره کښې استوګنه اختیار کړې وه.
وفات: ٦٠ هجرئ کښې ددې فانی دنیا نه رخصت شو او دې وخت کښې ددوی عمر اتیا (٨٠) کاله وو.

**مرویات:** دوی د حضرت نبی کریم ﷺ نه اتلس (١٨) احادیث مبارک نقل کړی دی

**تسهیل: قوله:** مَنْ أَحْيَا:

**د احیاء څخه مراد:** ددې د احیاء او د ژوندی کولو مطلب دادې چه پخپله هم په دې باندې عمل اوکړی او نورو ته هم ددې ښه تبلیغ اوکړی. داسې سړی ته یوه خپل عمل او یوه بل دپاره دعمل د سبب جوړیدو ثواب ملاویږی.

**قوله:** سُنَّةً مِنْ سُنَّتِي:

**دسنت څخه مراد:** سنت نه مراد مطلق حکم دَ اسلام دې که هغه فرض وی اوکه دَ واجباتو دَ قبیل نه وی یا دَ سنن دَ قسم نه وی.

**قوله:** قَدْ أُمِيتَتْ بَعْدِي:

**د امیتت مفهوم:** یعنی داسې سنت ژوندی کړی کوم چې د خلقو د رواج اومعمول څخه وتلی وی اودې مجاهده اوککوش اوکړی او هغه سنت ژوندې کړی نود هغه دپاره دا ثواب دې.

| ١٦٩—( )[٥] وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ عَنْ كَثِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ. |
|---|

**ترجمه:** او دا روایت ابن ماجه د کثیر بن عبدالله بن عمر څخه او عمر د خپل پلار څخه او هغه د خپل نیکه څخه روایت کړې دي.

## [١٧٠] حجازته د دین اسلام راجمع کیدل

| ١٧٠—( )[٣٠] [١] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " «إِنَّ الدِّينَ لَيَأْرِزُ إِلَى الْحِجَازِ كَمَا تَأْرِزُ الْحَيَّةُ إِلَى جُحْرِهَا، [٢] وَلَيَعْقِلَنَّ الدِّينُ مِنَ الْحِجَازِ مَعْقِلَ الْأُرْوِيَّةِ مِنْ رَأْسِ الْجَبَلِ. [٣] إِنَّ الدِّينَ بَدَأَ غَرِيبًا وَسَيَعُودُ كَمَا بَدَأَ، فَطُوبَى لِلْغُرَبَاءِ وَهُمُ الَّذِينَ يُصْلِحُونَ مَا أَفْسَدَ النَّاسُ مِنْ بَعْدِي مِنْ سُنَّتِي» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. |
|---|

[١]) اخرجه ابن ماجة کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب من أحیا سنة قد أمیتت(رقم-٢١٠)
[٢]) اجرجه الترمذی کتاب الإیمان عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء أن الإسلام بدأ غریبا وسیعود غریبا (رقم-٢٦٣٠)

**ترجمه:** [١] عمرو بن عوف رضي الله عنه روايت کوي چې نبی کريم ﷺ وفرمايل بې شکه دين (اسلام) به حجاز (مکه ومدينه او د هغه متعلقات) طرف ته داسې راټول شی لکه څنګه چې يو مار د خپل غاري طرف ته راغونډيږي [٢] او دين به په حجاز کې داسې ځاي ونيسي لکه چې يوه بزه د غره په سرکي ځاي نيسي [٣] او دين په ابتداء کې غريب پيدا شوې وو او په آخر کې به هم دغسې شی لکه څنګه چې په ابتداء کې وو، نو غريبانو ته دې زيرې وي، [٤] اوداهغه کسان دي چې اصلاح کوي دهغه شي کوم چې زما څخه وروستو خلقو خراب کړي وي زمادسنتوڅخه. ترمذي

**حل اللغات:** ① لَيَأْرِزُ: أَيْ: يَأْوِي وَيَنْضَمُّ: راټوليږی او راغونډيږی به. ② الْحِجَازِ: ددې نه مراد مکه او مدينه او ددې نه خواوشا ګيرچاپيره علاقې دي. ③ الْحَيَّةُ: مار. ④ جُحْرِهَا: أَيْ: ثُقْبِهَا: خپلې سوړې ته، خپل غار ته. ⑤ لَيَعْقِلَنَّ: أَيْ: وَاللّٰهِ لَيَعْتَصِمَنَّ: ځاي به اونيسی يعنی محفوظ به شي. ⑥ مِعْقَلَ: دعقل څخه يا خو مصدر ميمی دې يا د ظرف مکان صيغه ده. دلته ترې مراد د غر په څوکه باندې محفوظ مقام دې او په کلام کښې تشبيه ده. ⑦ الْأُرْوِيَّةِ: غرسنۍ چيلۍ ته اروية وائی (يعنی ماده چيلۍ، بزه). ⑧ غَرِيبًا: نا آشنا (چانه پيژندلو نو ملګرتيا به ئې هم ورسره نه کوله) ⑨ فَطُوبَى: يعنی دوئ ته دې مبارك وی، دوئ ته د جنت طوبی بشارت دې

**د راوي مختصر تعارف:** نوم عمروابوعبدالله کنيت دَ اسلام په شروع کښې مسلمان شوې اودَ دې نه پس مدينې طرف ته هجرت کړې دې. (٢) په غزوه تبوك کښې چه کله سخت قحط وو دَ هغې دَپاره رسول الله ﷺ تيارې شروع کړو نوعمرو بن عوف رضي الله عنه په خدمت کښې حاضر شو که زمونږ دَپاره هم څه انتظام اوشی نومونږ دَدې جهادنه محروم نه شو. دَهغه دَ پاره څه انتظام اونه شوخوالله تعالی دَ داسې خلقو باره کښې دَ قرآن کريم دا آيت نازل کړو ﴿وَلَا عَلَى الَّذِينَ إِذَا مَا أَتَوْكَ لِتَحْمِلَهُمْ قُلْتَ لَا أَجِدُ مَا أَحْمِلُكُمْ عَلَيْهِ تَوَلَّوْا وَأَعْيُنُهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ حَزَنًا أَلَّا يَجِدُوا مَا يُنْفِقُونَ ﴾ (سورة التوبه) اونه په دې خلقو باندې څه ګناه شته چه تاله راشی چه هغوی ته سورلی ملاو نه شوه نو تا جواب ورکړو چه ماسره څه داسې څيز نشته چه تاپرې سور کړم. دې اوريدو سره هغه واپس شو اودَ خر دَ نشتوالی په وجه د غمه دَ هغوی سترګو نه اوښکې روانې شوې.

**وفات:** دَ اميرمعاويه رضي الله عنه په دور کښې مدينې کښې وفات شو (٣)

**مرويات:** دَ هغوی نه اووه احاديث روايت دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَيَعْقِلَنَّ الدِّينُ مِنَ الْحِجَازِ مَعْقَلَ الْأُرْوِيَّةِ مِنْ رَأْسِ الْجَبَلِ:

**د اروية څخه مراد:** منجد کښې چې د ارويه کوم تصوير دې هغې څخه معلوميږی چې دا

مشك نافه دی. او د وعل چې کوم تصویر دې دهغې څخه اندازه کیږی چې دا غرسنۍ چیلۍ ده دکومې چې نیغ او اوچت ښکران وی. او دا د غر ډیر په مشکل ځائې کښې اوسیږی. انسان ته داسې محسوسیږی چې ددې په ښنو کښې دَ کاڼړی او کمرو سره د انښتو یو ماده اومساله لیکیدلې ده. دا دسحر په وخت کښې د رمې په صورت کښې د څرن دپاره راځی. او هم په تیاره کښې په یو قطار کښې واپس ځی. ښکاریان ددې ډیر خصوصیات بیانوی. او دې ته په ښنتو کښې غرخه وائی.

**په اروية کښې د مؤنث راوړلووجه:** نبی کریم ﷺ دلته اروية مؤنث ذکر فرمائیلې ده. ځکه چې دا دَ ځائې په نیولو کښې دَ مذکر او نر څخه زیات محتاط وی. دې حدیث پاك کښې نبی کریم ﷺ پیشن گوئی کړې ده چې قیامت ته به نزدې فتنې زیاتې شی. او دَ فتنو دَ ظاهریدو په وخت کښې به دین اسلام بیا واپس حجاز مقدس ته راغونډ شی. اوپه حجاز مقدس کښې به دې ته د پناه اخستو یو محفوظ مقام ملاؤ شی.

**د مذکوره حدیث زمانه:** دا واقعات به د حضرت مهدی علیه السلام په وخت کښې راڅرگندیږی چې دوی به د معاشرې څخه هر لحاظ سره لرې کړې شی. نه به د دوئ په غم کښې څوك تپوس کوی او نه به په خوشحالۍ کښې.

**قوله:** فَطُوبَى لِلْغُرَبَاءِ وَهُمُ الَّذِينَ..الخ:

**دغرباؤ مصداق:** دا د دوئ نښه ده چې دوئ په سنتو باندې عمل کوی. خلقو چې به په دین کښې کومه فتنه پیدا کړې وی دهغې اصلاح به کوی. الحمدلله په دې نقشه باندې دَ دیوبند علماء قائم دی.

## [۱۷۱] په بني اسرائيلو او امت محمدی کښې مماثلت

> ۱۷۱ـ( )[۳۱] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "«لَيَأْتِيَنَّ عَلَى أُمَّتِي كَمَا أَتَى عَلَى بَنِي إِسْرَائِيلَ حَذْوَ النَّعْلِ بِالنَّعْلِ، [۲] حَتَّى إِنْ كَانَ مِنْهُمْ مَنْ أَتَى أُمَّهُ عَلَانِيَةً، لَكَانَ فِي أُمَّتِي مَنْ يَصْنَعُ ذَلِكَ. [۳] وَإِنَّ بَنِي إِسْرَائِيلَ تَفَرَّقَتْ عَلَى ثِنْتَيْنِ وَسَبْعِينَ مِلَّةً، وَتَفْتَرِقُ أُمَّتِي عَلَى ثَلَاثٍ وَسَبْعِينَ مِلَّةً، كُلُّهُمْ فِي النَّارِ إِلَّا مِلَّةً وَاحِدَةً" [۴] قَالُوا: مَنْ هِيَ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: "مَا أَنَا عَلَيْهِ وَأَصْحَابِي»" رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] عبد الله بن عمرو رضی الله عنه روایت کوي چې نبی کریم ﷺ وفرمایل بي شکه زما په امت باندې به یوه داسې زمانه راشي لکه څنګه چې په بني اسرائیلو باندې راغلي وه او په دواړو کې به داسې مماثلت (یو شان والي) وي لکه څنګه چې دواړه څپلي بالکل برابري او ټیك وي [۲] تر دي چې که په بني اسرائیلو کې چا په ډاګه د خپلي مور سره

[۱] اخرجه الترمذی کتاب الإیمان عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ما جاء فی افتراق هذه الأمة (رقم-۲۶۴۲)

بدفعلي کړي وي نو زما په امت کې به هم داسې خلق وي چې هغه به داسې کوي [٣] او بني اسرائیل په دوو اویاو فرقو کې تقسیم شوې وه زما امت به په دریو اویا فرقو کې تقسیم شی او هغه ټولې فرقې به دوزخې وي په هغوئ کې به یوازې یوه فرقه جنتې وي، [٣] صحابه رضي الله عنهم عرض وکړو چې یارسول الله ﷺ جنتې فرقه به کمه یوه وي؟ ده ﷺ وفرمایل په کمه چې زه او زما اصحاب یو، (ترمذي)

**حل اللغات:** ① حَذْوَ: اِسْتِعَارَةٌ فِي التَّسَاوِي: د یوځیز دبل ځیز سره د برابر والی دپاره استعمالیږی. ② النَّعْلِ: پیزار، څپلئ، ③ تَفَرَّقَتْ: فرقې فرقې شوی وو، مختلفو ډلو کښې تقسیم شوی وو. ④ مِلَّةً: هغه طور طریقې، اقوال او افعال چه یوه ډله، جماعت په هغې باندې متفق وی هغې ته ملت وائی که هغه په حق وی اوکه په ناحقه.

> ١٧٣—(٠)[١] وَفِي رِوَايَةِ أَحْمَدَ، وَأَبِي دَاوُدَ، عَنْ مُعَاوِيَةَ: «ثِنْتَانِ وَسَبْعُونَ فِي النَّارِ، وَوَاحِدَةٌ فِي الْجَنَّةِ، وَهِيَ الْجَمَاعَةُ، [٢] وَإِنَّهُ سَيَخْرُجُ فِي أُمَّتِي أَقْوَامٌ تَتَجَارَى بِهِمْ تِلْكَ الْأَهْوَاءُ كَمَا يَتَجَارَى الْكَلْبُ بِصَاحِبِهِ، لَا يَبْقَى مِنْهُ عِرْقٌ وَلَا مَفْصِلٌ إِلَّا دَخَلَهُ».

**ترجمه:** [١] او احمد او ابوداؤد چې کوم روایت د معاویه رضي الله عنه څخه نقل کړي دي د هغه الفاظ دا دي چې: دوه اویا ډلې به دوزخ ته ځي او یوه ډله به جنت ته ځي او جنتې ډله جماعت دي، [٢] او زما په امت کې به څو قومونه پیدا شی چې په هغوئ کې به خواهشات (یعني په عقایدو او عملونو کې به بدعات) داسې داخلیدل وکړي لکه چې د لیونې سپي مکروب (جراثیم) په هغه چا کښې سرایت کوي چې چیچلې وي چې هیڅ رګ او بند باقي پاتې نه شي.

**حل اللغات:** ① تَتَجَارَى: أَيْ تَدْخُلُ وَتَجْرِي: داخلیږی، جاری کیږی، ② الْأَهْوَاءُ: د هَوَى جمع ده، وَهُوَ مَيْلُ النَّفْسِ إِلَى مَا تَشْتَهِيهِ: خواهشاتو طرف ته د زړه میلان ته هواء وائی، دلته ددې نه مراد بدعات دی. ③ عِرْقٌ: رګ، ④ مَفْصِلٌ: بند، جوړ.

**تسهیلات: قوله:** حَذْوَ النَّعْلِ بِالنَّعْلِ:

**د مذکوره محاورې مطلب:** یعنی څه رنګه چې یو پیزار بل پیزار سره یو شان او مشابه وی نو دغه شان به امت محمدیه د یهودیانو او د نصاراؤ مشابهت اختیار کړی. دا محاوره دکمال مطابقت او کمال مشابهت په وخت کښې وئیلې کیږی.

**قوله:** أَتَى أُمَّهُ عَلَانِيَةً:

**دام په مصداق کښې دوه اقوال:** ① علامه طیبی رحمه الله لیکلی دی چې شاید ددې څخه مراد ناسکه مور وی.

---

[١] اخرجه ابوداود کتاب السنة /باب شرح السنة (رقم-٤٥٩٧) و احمد فی المسند: ١٠٢/٤

② ددې څخه سکه مور هم مراد کيدل څه بلرې خبره نه ده. ځکه چې يورپ په فحاشۍ سره انسان څخه حيوان جوړ کړې دې بلکه بعضې خلقوخوزنا کارۍ خپله پيشه جوړه کړې ده بلکه وړاندې مې په نټ کښې کتل چې په يوملک کښې دا بل پاس کيدونکې دې چې د خلقو معاشي حالت ښه کولودپاره ددې خبرې اجازت ورکوی خوهغوی د زناکارۍ اډې جوړې کړی اوپه هغې باندې خپل ضروريات پوره کوی.

**قوله:** وَتَفْتَرِقُ أُمَّتِي:

**دافتراق څخه مراد:** دا افتراق او فرقه بندی د فروعاتو په اعتبار سره نه ده بلکه دبنيادی عقائدو په اعتبار سره ده، هم په دې وجه په دې فرقو باندې د دوزخ د اور حکم لګولې شوې دې، يعنی چې دا خلق به د خرابو عقيدو او غلطو نظرياتو په وجه دوزخ ته ځی. او صرف يو نا جيه فرقه به وی چې د خپلو عقيدو په وجه به د دوزخ څخه بچ شی.

دلته په دې خبره پوهيدل پکار دی چې د فرقه ناجيه څخه علاوه دا دوه اويا فرقې د خپلو اصولو او عقائدو په اعتبار سره شپږ دی. بيا هم ددې څخه دفروعاتو په اعتبار سره درې اويا فرقې جوړې شوې دی. هغه شپږ دادی:

① معتزله ② مرجئه ③ مجسمه ④ جبرية ⑤ شيعه ⑥ خوارج

**دامت څخه مراد:** ددې څخه مراد امت اجابت دې. ځکه چې امت دعوت يعنی غيرمسلمه خو بې شميره فرقې دی. يعنی د امت اجابت به درې اويا فرقې جوړيږی.

**د فرق ضالو اواهل سنت والجماعت فرق:** دا فرق به په عقلی دلائلوسره کيږی او په نقلی دلائلو اوعلاماتوسره به هم اوشی. هغه داسې چه ددې ناجيه جماعت به دا شان وی چه د قرآن کريم حافظان به هم ددوی نه وی. دمحدثينو کثرت به هم په دوی کښې وی. فقهاء به هم په دوی کښې وی. باعمل علماء، زاهدان، اهل تصوف، د الله تعالی نه ويريدونکی متقيان او پرهيزګاران به په دوی کښې وی او دصحابه کرام هم داشان وو. په نورو فرقو کښې به دا څيزونه موجود نه وی نو هغوی به د صحابه کرامو په نقش قدم باندې نه وی. او حضورپاك [ماأناعليه وأصحابی] فرمائيلی دی.

**قوله:** وَهِيَ الْجَمَاعَةُ:

**دجماعة څخه مراد:** په دې سره جماعت حقه او جماعت ناجيه طرف ته اشاره ده. بيا ددې پوره نوم [اهل السنة والجماعة] شو. دا پوره نوم په اصل کښې ددوی نه وو بلکه د ښه عقيدو، نيك اعمال اوافعال، ښه کردار او په صحيح لار تللو د وجې نه ددوی نوم روستو اهل سنت والجماعت شو.

**داهل سنت مطلب:** د اهل سنت مطلب دادې چه په سنت نبوی ﷺ باندې تلونکی خلق اود

الجماعة مطلب دا دي چه دَ جماعت صحابو پیروکار او دَ هغوی په نقش قدم باندې تلونکی خلق اهل سنت والجماعت دی. کوم خلق چه په سنت باندې تلونکې نه وی یا دَ صحابه کرامو جماعت سره عقیدت نه لری هغوی دَ اهل سنت والجماعت نه خارج دی که هغوی خپل ځان څه هم ګنړی.

**قوله: كَمَا يَتَجَارَى الْكَلْبُ بِصَاحِبِهِ:**

**دَ يتجارى معنى:** دکاف او لام په فتحې سره دَهغې خطرناکې بیمارئی نوم دې چه دَ لیونی سپی دَ چیچلودَ وجې نه په پوره بدن کښې خوریږی.

**لیونی سپی سره دَ تشبیه وجه:** دَ حدیث مطلب دادې چه دَ دې امت دَ اهل باطل بدن او ځان کښې اودَ دوی په هريو رګ کښې به خواهشات او بدعات داسې ورننوتلوسره داخلیږی لکه دَ سپی چیچلو بیماری چه دَ لیونی سپی په رګونو کښې داخلیږی نوهغه سپی لیونی شی. دکوم دَ وجې نه چه هغه دَ اوبو نه تختی نه اوبه کتلې شی اونه اوبه څکلې شی او څوک چه اوچیچی نوهغه هم دغه شان لیونی شی. هم دغه شان بدعتی دې چه پخپله دَ بدعت بیماری دَ هغه رګ رګ کښې داخلیږی نوهغه حق ته نیزدې کیدې نه شی بلکه دَ حق نه لرې تختی. اوکله چه بل سره ملاویږی نودَ بدعت دا بیماری په هغه کښې هم ورداخلیږی اوهغه هم بدعتی جوړوی. په دې وجه بدعتی واجب الاجتناب دې.

**قوله: مَا أَنَا عَلَيْهِ وَأَصْحَابِي:**

**دَ انبیاؤ مبعوث کولو ضرورت:** دادَ فرقه ناجیه وضاحت دې دَ ما أناعلیه نه اشخاص مع القانون مراد دې. الله تعالی چه څومره آسمانی مذهبونه رالیږلې دی دهغې سره نې دَ نمونې په توګه انبیاء کرام هم رالیږلی دی. دَ آسمانی قانون بغیر دَ اشخاصو پیروی شرک دې اودَ اشخاصو نه بغیر قانون هم معتبر نه دې.

**[١٧٣] دټول امت په ګمراهئ باندې عدم اجتماع**

١٧٣ـ(¹)[٣٢] [١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ([٢] «إِنَّ اللَّهَ لَا يَجْمَعُ أُمَّتِي أَوْ قَالَ: أُمَّةَ مُحَمَّدٍ -عَلَى ضَلَالَةٍ، [٣] وَيَدُ اللَّهِ عَلَى الْجَمَاعَةِ، [٤] وَمَنْ شَذَّ شُذَّ فِي النَّارِ») رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابن عمر ﷺ روایت کوي چې نبي اکرم ﷺ وفرمايل [٢] چې الله تعالی ﷻ زما امت يا (په ځاي زما د امت) دا وفرمايل چې امت محمديه به په ګمراهۍ باندې جمع نه کوي [٣] او د الله تعالی ﷻ لاس په جماعت باندې دي [٤] او څوک چې د جماعت څخه جدا شو هغه به تنها (د جنتيانو د جماعت څخه جدا کيدو سره) په دوزخ کې وغورځول شي. ترمذي

¹) اخرجه الترمذي كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في لزوم الجماعة (رقم-٢١٦٧)

**حل اللغات:** ① يَدُ اللّٰهِ: كِنَايَةٌ عَنِ النُّصْرَةِ وَالْغَلَبَةِ: يعنى دالله تعالى مدد حق جماعت سره دي. ② شَذَّ: أي: انْفَرَدَ عَنِ الْجَمَاعَةِ: يعنى چې د حق جماعت څخه جدا شو نو د عقائدو او خيالاتو په اعتبار سره د كتاب وسنت څخه لرې اوتلو.

**تسهيلات: قوله**: لَا يَجْمَعُ أُمَّتِي:

**داضافت نوعيت**: امتى كښې اضافت تشريفيه دې. او ددې څخه ددې امت شرافت معلوميږى. او په دې كښې د اشاره ده چې د اجماع امت دا شرف صرف دنبى كريم ﷺ امت ته حاصل دې. وړاندينو امتونو ته دا امتياز نه وو حاصل.

**داجماع څخه مراد**: ددې اجماع څخه د علماء كرامو او فقهاء كرامو اجماع مراد ده. د عوامو د اجماع هيڅ اعتبار نشته دې. شارحينو ليكلى دى چې ددې حديث پاك څخه د اجماع امت ثبوت ملاويږى.

**داجماع ضرورت**: د اجماع په حجيت كښې دا حكمت ضرور دې چې په دين اسلام كښې اختلافات او اړيكې پيدا كيدو په صورت كښې د دين حفاظت دپاره د قوت حافظه او قوت معصومه وجود ضرورى دې، چې دهغې خبره حرف آخر وى او په هغې كښې د غلطۍ څه احتمال نه وى. اصل كښې دا قوت معصومه خو نبوت وى. په سابقه امتونو كښې به وخت په وخت پيغمبران راتلل او دا ضرورت به ئې پوره كولو. خو دې امت كښې د ختم نبوت په وجه بل نبى نشى راتلې نو ددې ضرورت پوره كولو دپاره دَ قرآن او حديث په رڼړا كښې د اجماع امت وجود دې. ددې امت ددې اوږدې مودې دوران كښې چې د احوالو د تغير په وجه چې كومې نوې نوې مسئلې راپيدا كيږى نو دَ شريعت په رڼړا كښې دهغې حل صرف د علماء كرامو اجماع ده، چې د شريعت د حفاظت دپاره د اجماع دا قوت حافظه هر وخت د نوؤ نوؤ مسئلو حل پيش كړى.

**داجماع د حجتيت دليل**: اجماع په ادلهٔ اربعؤ كښې يو دليل دې. د اجماع امت حجيت د قرآن پاك څخه هم ثابت دې، دالله تعالى ارشاد دې:

﴿ وَمَنْ يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدٰى وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلّٰى وَنُصْلِهِ جَهَنَّمَ ﴾ او بيا ئې ددې ددې ضرورت دپاره نبى اكرم ﷺ دې امت ته د اجماع اختيار وركړې دې. او بيا ئې ددې د محفوظ او مامون حيثيت طرفته اشاره اوفرمائيله چې الله تعالى به دا امت په ګمراهۍ باندې نه جمع كوى. د اجماع دا امتيازى شان صرف دې امت ته د نبوت په بركت ملاؤ شوې دې.

**قوله**: وَيَدُ اللّٰهِ عَلَى الْجَمَاعَةِ:

**جماعت سره دالله تعالى نصرت**: يعنى جماعت من حيث الجماعة چې كله په سنتو باندې قائم وى، كتاب الله ئې كلك نيولې وى، نو دالله تعالى دَ طرفه به دوئ سره مدد كيږى.

**[۱۷۴] د لوي جماعت د تابعدارۍ حکم**

۱۷۴-(¹)[۳۳] ۱ وَعَنْهُ. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «۲ (اتَّبِعُوا السَّوَادَ الْأَعْظَمَ ۳ فَإِنَّهُ مَنْ شَذَّ شَذَّ فِي النَّارِ») رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ مِنْ حَدِيثِ أَنَسٍ.

**ترجمه:** ۱ ابن عمر رضي الله عنه روایت کوي چې نبي اکرم ﷺ وفرمایل ۲ دلوي جماعت پیروي کوي ځکه چې څوك د جماعت څخه جدا شو ۳ هغه به یوازي په اورکي اچول کیږي، ابن ماجه رحمه الله دا حدیث د انس رضي الله عنه څخه او ابن عاصم روایت کړي دي په کتاب السنة کي.

**حل اللغات:** ① السَّوَادَ: أي الجَمَاعَةَ: جماعت، ډله، ② شَذَّ: أي: انْفَرَدَ عَنِ الْجَمَاعَةِ: یعنی چې د حق جماعت څخه جدا شو نو د عقائدو او خیالاتو په اعتبار سره د کتاب وسنت څخه لرې اوتلو.

**تسهیلات:**

**قوله: اتَّبِعُوا السَّوَادَ الْأَعْظَمَ:**

**دسواد اعظم څخه مراد:** دَ سواد معنی توروالي دې او ددې اطلاق په جماعت باندې هم کیږی هم ددې مناسبت په وجه د قوم سردار ته سید وائی چې هغه د قوم دکارونو انتظام کوی. اعظم څخه اهل سنت والجماعت دی.

**اشکال:** اهل حق په هره زمانه کښې دَ اهل باطل په مقابله کښې کم وی بیا هغوی ته سواداعظم یعنی لوئی جماعت ځنګه اووئیلې شو؟

**داشکال دوه جوابونه:** ① دلته د اعظم څخه عظیم اوشان والا جماعت مراد دې.دعدد په اعتبار سره اعظم نه دې مراد ،لکه ځنګه چې ابراهیم علیه السلام باندې دهغوی د عظمت په وجه د امة اطلاق شوې دې.

② دَ سواد اعظم نه صرف دَ یو زمانې خلق مراد نه دی بلکه دَ حضرت آدم علیه السلام نه واخله تر ننه پورې چه څومره خلق په حق باندې قائم راروان دی هغه اهل حق سواد اعظم دی او ښکاره خبره ده چه دا لوئی جماعت دې اودَ هرې زمانې دَ اهل باطل نه زیات دی. دَدې برعکس کفر یو جماعت نه دې بلکه دَ هرې زمانې هریو جماعت په جدا جدا کفرکښې اخته دې. په کوم کښې چه تسلسل نشته نودغه سواد اعظم نه دې. په دې توجیه سره دَ اهل بدعت سوال هم ختمیږی څوك چه وائی چه مونږ زیات یو نوهم مونږ سواد اعظم یو.

**[۱۷۵] مسلمان سره د کینه نه ساتلو او په سنت باندې د عمل کولو تاکید**

۱۷۵-(²)[۳۴] ۱ وَعَنْ أَنَسٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: «قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ يَا بُنَيَّ إِنْ

¹) اخرجه ابن ماجة كتاب الفتن/باب السواد الأعظم (رقم-۳۹۵۰)

²) اخرجه الترمذى كتاب العلم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الأخذ بالسنة واجتناب البدع (رقم-۲۶۷۸)

قَدَرْتَ أَنْ تُصْبِحَ وَتُمْسِيَ وَلَيْسَ فِي قَلْبِكَ غِشٌّ لِأَحَدٍ فَافْعَلْ). ۳ ثُمَّ قَالَ: (يَا بُنَيَّ وَذٰلِكَ مِنْ سُنَّتِي، وَمَنْ أَحَبَّ سُنَّتِي فَقَدْ أَحَبَّنِي، وَمَنْ أَحَبَّنِي كَانَ مَعِي فِي الْجَنَّةِ») رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ انس رضی الله عنه روایت کوي چې نبي اکرم ﷺ ما ته وفرمایل ۲ اي خویه که ته په دي باندې قدرت لري چې د سحر څخه تر ماښامه په دي حال کې تیر کړي چې ستا په زړه کې د هیچا سره کینه نه وي نو داسې وکړه ۳ بیا یي وفرمایل اي خویه دا زما سنت دي نو چې چا زما سنتو سره محبت وساتې هغه زماسره محبت وکړي اوچا چې زماسره محبت وکړي هغه به په جنت کې زما سره وي. ترمذي

**حل اللغات:** ① غِشٌّ: أي ضِدُّ النُّصْحِ: دا د نصیحت او د اصلاح ضد دي. په دې کښې قلبی خیرې، کینه او بغض او حسد وغیره بد صفات ټول داخل دي.

**تسهیلات:**

**قوله:** كَانَ مَعِي فِي الْجَنَّةِ:

**په بغض کینه نه ساتلو سره د نبی علیه السلام رفاقت ملاویدل:** یعنی سنتو سره محبت کول او دا خوښول دَ نبی کریم ﷺ سره محبت کول دی. او څوک چې دَ نبی کریم ﷺ سره محبت کوی نو جنت کښې به هم دَ نبی کریم ﷺ سره وی. د سنتو سره د محبت دا مقام دې نو په سنت باندې د عمل کولو به څه مقام وی؟

**[۱۷٦] د فساد په وخت کښې په سنت دعمل کولو ثواب**

۱۷٦ – [۳۵] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (۲ «مَنْ تَمَسَّكَ بِسُنَّتِي عِنْدَ فَسَادِ أُمَّتِي، فَلَهُ أَجْرُ مِائَةِ شَهِيدٍ»). رَوَاهُ....)

**ترجمه:** ۱ ابوهریره رضی الله عنه روایت کوي چې نبي اکرم ﷺ ماته ارشاد وفرمایلي ۲ چې زما د امت د خرابیدو په وخت کښې چې کوم سړي زماپه سنتومنګولي ونیولي هغه ته به د سلو شهیدانو ثواب حاصلیږي، بهیقي دا روایت په خپل کتاب زهد کې د ابن عباس رضی الله عنهما څخه نقل کړي دي.

**حل اللغات:** ① تَمَسَّكَ: أَيْ: عَمِلَ: چه منګولې اولګوی یعنی مضبوط اونیسی او عمل اوکړی (په سنت طریقو د نبی علیه السلام باندې).

**تسهیلات:**

**قوله:** عِنْدَ فَسَادِ أُمَّتِي:

**د فساد امت مفهوم:** چه اغلبًا او اکثرًا په خلقو کښې جهالت خور شوې وی او هرطرف ته دَ بدعاتو او شرکیاتو تیارې خورې شوې وی

**د سلوشهیدانوثواب ملاویدو وجه:** یاد لرئی چه دې حکمی شهید دې یعنی د شهید ثواب

به ورته ملاويږي.په ده باندې به دَ شهيد دنياوي احکام نه جاري کيږي. لهذا ده له به غسل ورکولې شي او کفن به ورته اغوستلې شي. دارنګ دَدې سنت نه مراد داسې سنت دي دَ کوم په ژوندی کولو سره چه دَ دنيا دَ خلقو جګړې اخستې شي. باقاعده اهل باطل سره مقابله کيږي خلق دې دغه سنتو ژوندی کولوته نه پريږدي. مګر دا سرې په بهادرئی سره مقابله کوی اوسنت ژوندی کوی اودَ معاشرې پرواه نه کوی لکه ډيره ساتل او جهاد ژوندې کولو سنت هم دغه حيثيت دې.

**[١٧٧]د يهوديا نو څخه د بعضې خبرو ليکلو مما نعت**

١٧٧-()[٣٦] [١] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حِينَ «أَتَاهُ عُمَرُ [٢] فَقَالَ: إِنَّا نَسْمَعُ أَحَادِيثَ مِنْ يَهُودَ تُعْجِبُنَا، أَفَتَرَى أَنْ نَكْتُبَ بَعْضَهَا؟ [٣] فَقَالَ: أَمُتَهَوِّكُونَ أَنْتُمْ كَمَا تَهَوَّكَتِ الْيَهُودُ وَالنَّصَارَى؟! [٤] لَقَدْ جِئْتُكُمْ بِهَا بَيْضَاءَ نَقِيَّةً، [٥] وَلَوْ كَانَ مُوسَى حَيًّا مَا وَسِعَهُ إِلَّا اتِّبَاعِي» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي كِتَابِ (شُعَبِ الْإِيمَانِ)

**ترجمه:** [١] جابر ﷺ د حضور ﷺ څخه روايت کوي چې حضرت عمر ﷺ په دربار رسالت کې حاضر شو [٢] او عرض يي وکړو چې مونږ د يهودو حديثونه اورو او هغه مونږ ته ښه معلوميږي آيا ته ﷺ اجازت راکوي چې مونږ ده هغه څخه بعضې وليکو؟ [٣] رسول الله ﷺ ورته وفرمايل ايا تاسو هم داسې حيران يي لکه څنګه چې يهود ونصاري حيران وه [٤] (پوه شه چې) بلا شک وشبه ما تاسو ته صفا او روښانه شريعت رواړې دي [٥] که چېرته موسیٰ ژوندي وې نو هغه به هم څما په پيروي باندې مجبوره وو. احمد و بيهقي

**حل اللغات:** ① تُعْجِبُنَا: أَيْ: تَحْسُنُ عِنْدَنَا: مونږ په تعجب کښې اچوي يعنی زمونږ په زړه ډير ښه لګی. ② أَفَتَرَى : يَعْنِي فَتَأْذَنُ: آيا تاسو دا ښه ګڼړئ مونږ دپاره، آيا تاسو مونږته ددې اجازت راکوئ؟ ③ أَمُتَهَوِّكُونَ : أَيْ: أَمُتَحَيِّرُونَ: دا صيغه دَ باب تفعل نه ده او په شروع کښې الف استفهاميه لګيدلې دې. دادَ تحير او حيرانتيا په معنی کښې دې. آيا تاسو هم حيران يئ (په خپل دين کښې). ④ بَيْضَاءَ: أَيْ: وَاضِحَةً: روښانه يعنی واضحه شريعت، ⑤ نَقِيَّةً: أَيْ: طَاهِرَةً: پاک صفا يعنی بالکل ښکاره او واضحه (يعنی روښانه، بې عيب، واضحه، دَ کمی زياتی نه اودَ شک شبهې نه او دهرقسم عيب نه پاک دې.)

**تسهيلات: قوله:** أَمُتَهَوِّكُونَ:

**دمذکوره جملې مفهوم:** يعنی دَهغوی دکتابونو دَمحرف کيدودَ وجې نه هغوي حيران او پريشان دی. اوس هغوی هغه احکامات دَ خپلو راهبانو دَ رائې نه اخلی. آيا تاسو دَهغوی په شان دَ خپل کتاب باره کښې حيران او پريشان يئ چه دا پريخودو سره دَ نورو د

[١] ) اخرجه احمد فی المسند: ٣٨٧/٣

کتابونو وئیل شروع کول غواړئ. ګورئ تاسو خو قرآن کریم خپل ځان سره ایږدئ آیا تاسو په هغې کښې پریشان او حیران شوی یئ؟ چه آیا دا هم هغه آسمانی کتاب دې که نه؟ ددې تهدید نه معلومه شوه چه اوس خیر او هدایت د قیامته پورې هم په قرآن کریم کښې منحصردې.

## [١٧٨] دمتبع سنت جنت ته داخليدل

١٧٨–()[٣٧] ١ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ( ٢ «مَنْ أَكَلَ طَيِّبًا، وَعَمِلَ فِي سُنَّةٍ، وَأَمِنَ النَّاسُ بَوَائِقَهُ، دَخَلَ الْجَنَّةَ». ٣ فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! إِنَّ هَذَا الْيَوْمَ لَكَثِيرٌ فِي النَّاسِ؟ ٥ قَالَ: «وَسَيَكُونُ فِي قُرُونٍ بَعْدِي»). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ١ ابو سعید خدري ﷺ روایت کوي چې حضور ﷺ وفرمایل ٢ کوم سړي چې حلال رزق وخوري په سنت طریقه باندې عمل وکړو او د هغه د شر څخه خلق په امن کې شو نو هغه به په جنت کې داخلیږي. ٣ یو سړي عرض اوکړو چې یا رسول الله ﷺ داسې خلق خونن صبا ډیردي. ٤ رسول الله ﷺ وفرمایل چې زما څخه وروسته به هم داسې خلق وي. ترمذي

**حل اللغات:** ① طَيِّبًا: أَيْ: مَنْ كَانَ قُوتُهُ حَلَالًا: پاک یعنی دچا خوراک چه حلال وی ② بَوَائِقَهُ: د بَائِقَةٌ جمع ده، وَهِيَ الْمِحْنَةُ الْعَظِيمَةُ: لوې مصیبت او تکلیف ته وائی. ③ قُرُونٍ: د قرن جمع ده، ای: أَهْلُ عَصْرٍ: زمانې او مودې ته وائی، دلته ترې اهل عصر مراد دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ أَكَلَ طَيِّبًا:

**د حلال خوراک د تقديم وجه:** په دې حدیث پاك کښې ئې حلال رزق مقدم کړیدې. او عمل بالسنه ئې مؤخر کړو. په دې کښې دې حقیقت طرفته اشاره کړې شوې ده چې په سنتو باندې عمل هغه کس کولې شی کوم چې حلال رزق خوری. دالله تعالی ارشاد دې: ﴿يَا أَيُّهَا الرُّسُلُ كُلُوا مِنَ الطَّيِّبَاتِ وَاعْمَلُوا صَالِحًا﴾. دلته د ﴿الطَّيِّبَاتِ﴾ لفظ استعمال شوې دې. د حرام لفظ نه دې استعمال شوې. ځکه چې طیبا خوشبو لره متضمن دې. او د حلال رزق څخه هم د تقوی معنوی خوشبو رازی. د ﴿الطَّيِّبَاتِ﴾ څخه داشاره هم ده چې دا کس د مشتبه څیزونو څخه ځان بچ کوی

**دحديث جامعيت:** په دې حدیث پاك کښې دوه عجیبه جملې دی کومو کښې چې د ﴿اکل طیبا﴾ څخه ټولو حقوق الله طرفته اشاره ده. او [ وأمن الناس بوائقه ] څخه ټولو حقوق

---

(١) اخرجه الترمذی کتاب صفة القیامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-٢٥٢٠)

العباد طرفته اشاره ده. او د حقوق الله او د حقوق العباد د مجموعې نوم اسلام او شریعت دې، او شریعت باندې عمل کولو سره جنت ملاویږي.

**قوله:** وَسَيَكُونُ فِي قُرُونٍ بَعْدِي:

**په هره زمانه کښې دنیکانو خلقو وجود:** یعنی نن سبا خو د عهد نبوی ﷺ برکت سره داسې خلق ډیر دی. آیا بیا به هم داسې خلق وی یا به کم شی اوختم به شی ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې بیا به هم تر یو وخته پورې داسې خلق وی یعنی صرف ستاسو زمانې پورې خاص نه دی بلکه تر خیرالقرون زمانې پورې به وی.

**[۱۷۹] په آخری زمانه کښې د دین په لسمه حصه عمل باندې نجات**

۱۷۹—( )[۳۸] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: (۲ «إِنَّكُمْ فِي زَمَانٍ مَنْ تَرَكَ مِنْكُمْ عُشْرَ مَا أُمِرَ بِهِ هَلَكَ، ۳ ثُمَّ يَأْتِي زَمَانٌ مَنْ عَمِلَ مِنْهُمْ بِعُشْرِ مَا أُمِرَ بِهِ نَجَا»). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1]

**ترجمه:** ۱ ابو هریره ﷺ روایت کوي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل ۲ تاسو په داسې زمانه کې یئ که په تاسو کې یو سړي د دې احکامو لسمه حصه هم پریږدي کوم چې ورکول شوې دي نو هغه به هلاك شی ۳ لیکن یوه زمانه به داسې راشي که یو سړي د دې احکامو په لسمه حصه باندې عمل وکړي نو هغه به د خلاصی لار پیدا کي. ترمذي

**حل اللغات:** ① عُشْرَ: لسمه حصه، ② هَلَكَ: هلاک به شی، ③ نَجَا: خلاص به شی، کامیاب به شی.

**تسهیلات:**

**قوله:** عُشْرَ مَا أُمِرَ بِهِ:

**په حدیث باندې اشکال:** ددې حدیث پاك مطلب باندې پوهیدلو دپاره اول په دې سوال باندې پوهیدل پکار دی چې دلته که د مامور به څخه فرائض اسلام مراد واخستې شی نو د حدیث اول جز به صحیح شی که صحابه کرامو د فرائضو لسمه هم پریښوده نو د هلاکت خطره ده خو د حدیث دویم جز به صحیح نه وی. ځکه چې کوم خلق روستو راځی نو هغوئ دپاره د فرائضِ اسلام یو جز پریښودل هم جائز نه دی، او چه لا نهه حصې پریږدی او په لسمه باندې عمل اوکړی او کامیاب شی؟ او که مامور به څخه مستحبات او سنن مراد واخستې شی نو د حدیث دویمه حصه بهٔ صحیح شی چې د سنتو په لسمه باندې عمل کولو والا به کامیاب وی. خو د حدیث اوله حصه به صحیح نه وی. ځکه چې صحابه کرام هم دَ سنتو په معامله کښې دعام امت پشان وو. ځکه چې دَ سنتو په پریښودو یو کس د وعید او تهدید په دې درجه کښې نه رازی که هغه اول دور وی او که دویم دور؟

---

[1] ) اخرجه الترمذی کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب (رقم-۲۲۶۷)

**داشكال جواب:** دلته د ماموراتو څخه مراد عام مامورات او فرائض مراد نه دي بلکه دلته ترې امر بالمعروف او نهي عن المنکر مراد دې. او دې ته نورو الفاظ کښې امور تبليغ وئيلې شي. نو وې فرمائيل چې د امر بالمعروف او دَ تبليغ په حوالې سره تاسو په داسې زمانه کښې يئ که چرې تاسو يو جز هم پريښودو نو هلاك به شئ. ځکه په دې وخت کښې د حق حاميان زيات دی. او دَ نبوت مبارك دور دې. که چرې تاسو د ددين په تبليغ او اشاعت کښې سستی کوئی نو اسلام به په جزيرۀ عرب کښې محدود پاتې شی.

## [۱۸۰] د هدايت څخه پس د ګمراهئ سبب

۱۸۰-()[۳۹] ①وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②«مَا ضَلَّ قَوْمٌ بَعْدَ هُدًى كَانُوا عَلَيْهِ إِلَّا أُوتُوا الْجَدَلَ» ③ثُمَّ قَرَأَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - هَذِهِ الْآيَةَ: {مَا ضَرَبُوهُ لَكَ إِلَّا جَدَلًا بَلْ هُمْ قَوْمٌ خَصِمُونَ} [الزخرف:۵۸]» رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ①ابو امامه ﷺ روايت کوي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل② هدايت موندلو او هدايت باندې قائم پاتې کيدلو څخه وروسته هيڅ يو قوم ګمراه شوې نه دي مګر هغه وخت چې کله پکې جګړه پيدا شوه،③ بيا حضور ﷺ دا آيت اووئيلو: مَا ضَرَبُوهُ لَكَ إِلَّا جَدَلًا بَلْ هُمْ قَوْمٌ خَصِمُونَ، (قرآن) ترجمه: هغوئ تاسو لره نه بيانوي مثال مګر د جګړې د پاره بلکه هغه قوم جنګ مار دي. ترمذي ابن ماجه

**حل اللغات:** ① أُوتُوا: أَيْ: أُعْطُوهُ: ورکړې شوه، يعنی پکښې پيدا شوه، ② الْجَدَلَ: وَهُوَ الْخُصُومَةُ: جنګ جګړې او اختلاف په باطل او ناجائزه باندې،③ مَا ضَرَبُوهُ: أَيْ: مَا قَالُوا: نه وائی دوی، يعنی نه بيانوی دا مثال، ④ جَدَلًا: أَيْ لِمُخَاصَمَتِكَ: د پاره د جګړې او اختلاف تاسره (چه تاته به ناجائزه تکليف اورسوی نور څه دحق طلب ئې پکښې نه وی)، ⑤ خَصِمُونَ: أَيْ: كَثِيرُو الْخُصُومَةِ: ډير جګړمار خلق دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِلَّا أُوتُوا الْجَدَلَ:

**د جدل په مصداق کښې اقوال:** ① يعنی کله چې خلق دَسنت په پريخودو به ګمراه کيږی. نو دوئ ته ددې په بدله کښې دَ سزا او عذاب په توګه جګړې او جدل ورکړې کيږی. بيا دوئ په عناد او تعصب سره دخپل مؤقف بې جا حمايت کوی. بيا مکاربه او محاربه اختيار کړی او دا حرامه ده.

② علامه طيبی ﷫ فرمائی چې جدل څخه مراد عناد او جګړې دی. او د اشان د خپل مذهب او مسلك د ترويج دپاره تعصب کول جدل دې. د خپلو مشائخو او بزرګانو رائې

[۱] اخرجه الترمذی کتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب: ومن سورة الزخرف(رقم-۳۲۵۳) وابن ماجة، باب اجتناب البدع والجدل (رقم-۴۸) اخرجه احمد في المسند: ۲۵۲/۵.

او دهغوی اقوالو باندې په سختۍ سره عمل کول چه کله شریعت دهغوی د اقوالو او افعالو تائید نه کوی. نو دا جدل دې اودا حرام دې.

**فائده:** که په یو مسئله باندې د پوهې دپاره یا په معلوماتو کښې داضافې دپاره یا سامعینو ته د تعلیم ورکولو یا خبرولو په غرض سره وی نو په دې کښې هیڅ باق نشته دې. دا ممنوع جدال کښې نه دی داخل.

**[١٨] د سختو اعمالو اختیارولو څخه ځان ساتل**

١٨ ـ( )[٣٠] ١ وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَقُولُ: ( ٢ «لَا تُشَدِّدُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ فَيُشَدِّدَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ، ٣ فَإِنَّ قَوْمًا شَدَّدُوا عَلَى أَنْفُسِهِمْ، فَشَدَّدَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ، ٤ فَتِلْكَ بَقَايَاهُمْ فِي الصَّوَامِعِ وَالدِّيَارِ ٥ {وَرَهْبَانِيَّةً ابْتَدَعُوهَا مَا كَتَبْنَاهَا عَلَيْهِمْ} [الحديد:٢٧]» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ انس رضی الله عنه وايي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل ٢ تاسو په خپل نفس باندې سختي مه کوي ځکه چې بيا به الله جل جلاله هم په تاسو سختي کوي، ٣ يو قوم (يعني بني اسرائيل) په خپل نفس سختي کړي وه نو الله جل جلاله هم په هغوئ سختي وکړه، ٤ نو نن چې کوم خلق په صوامعو (د عيسايانو د عبادت ځاي) او ديار (د يهوديانو د عبادت ځاي) کې موندل کيږی ٥ دا طريقه دغه خلقو پيدا کړي ده، مونږ په هغوئ باندې فرض کړي نه وه. ابوداؤد

**حل اللغات:** ① لَا تُشَدِّدُوا: سختی مه کوئ (په خپلو ځانونو چه سخت عملونه کوئ مثلا همیشه روژې نیول، یا ټوله شپه نفلونه کول او ښځو نه جدا اوسیدل وغیره). ② الصَّوَامِعِ: د صَوْمَعَة جمع ده، وَهِيَ مَوْضِعُ عِبَادَةِ الرُّهْبَانِ مِنَ النَّصَارَى: دَ نصاریٰ دَ راهب کوټړئ ته وائی. ③ الدِّيَارِ: د دَيْر جمع ده. وَهُوَ الْكَنِيسَةُ وَهِيَ مَعْبَدُ الْيَهُودِ: دَ یهودو عبادت خانې ته وائی، دې ته کنیسه هم وائی. ④ رَهْبَانِيَّةً: د رَهِبَ رَهْبَةً نه د فُعْلَانٌ په وزن، أَيْ خَافَ: په معنی د ویرې سره، وهي الْخَصْلَةُ الْمَنْسُوبَةُ إِلَى الرُّهْبَانِ: هغه بدعت ته وائی کوم چه راهب ته منسوب وی. ⑤ ابْتَدَعُوهَا: چه دوی یعنی راهبانو د ځان نه جوړکړې دې. ⑥ مَا كَتَبْنَاهَا: مونږ پرې نه دې فرض کړې (بلکه په خپله ئې جوړکړې او عمل ئې پرې شروع کړې دې).

**تسهیلات: قوله: لَا تُشَدِّدُوا:**

**د تشدد څخه ممانعت:** یعنی دَ مستحباتو په پریخودو باندې تشدد اوسختی مه کوئی ځکه چه دَ وحی په زمانه کښې دَ سختئی کولو دا نتیجه راوتلې شی چه هغه حکم به فرض شی اوبیا به دَ هغې دَپوره کولو طاقت هم نه وی.

**د یهودیانو تشدد:** حضورپاك دَ یهودیانو اونصاراؤ مثال هم ورکړو چه هغوی په خپل ځان باندې سختی کولو سره رهبانیت اختیارکړو.

---

[١] ) اخرجه ابوداود کتاب الأدب /باب في الحسد (رقم- ٤٩٠٤)

**د يهودو تشدد:** ① ماشومان تختولوسره په خپله نګرانئ کښې پاللوسره راهبان جوړکړل.
② په زمکه باندې په خېو دَ ګرځيدوپه ځائې پرمخې ګرځيدل. ښځوته نيزديکيدل ئې ګناه او لوئې معصيت ګڼړلو.

③ دَ وينښتوسره به ئې روزانه چتونو پورې ځان تړلو. دَ مرئي غوټې سره به ئې سورې کولو او په هغې کښې به ئې رسئي اچولوسره به خپل ځان چت پورې تړلو. دَ خوندناکو خوراك او څښاك نه، دَ مجامعت دَ ښځونه به ئې خپل ځان لرې ساتلو.

**قوله:** وَرَهْبَانِيَّةً:

**د رهانيت ابتداء:** دا لفظ دَ ابتدعوا عامل دَ وجې نه منصوب دې. ښځه بچې اوعام معاشره پرېخودو سره په غارونوکښې دَ عبادت دَپاره ځان له ژوندتيرولو عمل ته رهبانيت وائي. عيسايانودا بدعت دَ خپل ځان نه جوړکړې دې. اسلام دَداسې ژوند تيرولواجازت نه ورکوی.

**[۱۸۲] دقرآنی آياتونو پنځه قسمونه**

۱۸۲—()[۳۱] [۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲]«نَزَلَ الْقُرْآنُ عَلَى خَمْسَةِ أَوْجُهٍ: حَلَالٍ وَحَرَامٍ، وَمُحْكَمٍ، وَمُتَشَابِهٍ، وَأَمْثَالٍ. [۳]فَأَحِلُّوا الْحَلَالَ، وَحَرِّمُوا الْحَرَامَ، وَاعْمَلُوا بِالْمُحْكَمِ، وَآمِنُوا بِالْمُتَشَابِهِ، وَاعْتَبِرُوا بِالْأَمْثَالِ». [۴]هَذَا لَفْظُ الْمَصَابِيحِ وَرَوَى الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ)، وَلَفْظُهُ («فَاعْمَلُوا بِالْحَلَالِ، وَاجْتَنِبُوا الْحَرَامَ، وَاتَّبِعُوا الْمُحْكَمَ»).

**ترجمه:** [۱] ابوهريره رضی الله عنه روايت کوي چې حضورﷺ وفرمايل[۲] قرآن کريم په پنځو صورتونو نازل شوې دي ① حلال ② حرام ③ محکم ④ متشابه ⑤ امثال،[۳] نو تاسو حلال حلال وګڼې او حرام حرام وګڼې، په محکم باندې عمل کوي په متشابه باندې ايمان راوړي او د امثال (قصو) څخه عبرت حاصلوي، [۴]دا الفاظ د مصابيح دي او بيهقي چې کوم روايت شعب الايمان کې نقل کړيدي د هغه لفظونه دا دي. لهذا په حلالو عمل کوي او د حرامو څخه ځان ساتي او د محکم پيروي کوي.

**حل اللغات:** ① أَوْجُهٍ: د وَجْهُ جمع ده، اقسام او صورتونه او طريقو ته وائي. ② مُحْكَمٍ: چه واضح او ظاهر وی چه د تاويل احتمال پکښې نه وی. ③ مُتَشَابِهٍ: دَ متشابه نه مراد دا وی چه نه صريح امر وی اونه صريح نهی او په دلائلو کښې تشابه ده چه څه دلائل دَ حلت طرف ته اشاره کوی او څه په حرمت دلالت کوی. ④ أَمْثَالٍ: يَعْنِي قَصَصَ الْأُمَمِ الْمَاضِيَةِ: د تيرو شوو امتونو قصې لکه د نوح او صالح عليهما السلام وغيره، ⑤ اعْتَبِرُوا: عبرت حاصلوئ.

[۱] اخرجه المصابيح السنة رقم الحديث ١٤٤

**تسهيلات:**

**قوله: وَمُتَشَابِهٍ:**

**د متشابه دوه قسمونه:** ① هغه متشابه چې معنى او مراد دواړه ئې معلوم نه وى لکه حروف مقطعات

② هغه متشابه چې معنى ئې معلومه وى خو مراد ئې معلوم نه وى لکه «يد الله فوق ايديهم» دلته د يد معنى معلومه ده خو د الله تعالى دپاره د يد ثبوت ددې مراد مونږ ته معلوم نه دې.

**[١٨٣] د امر درې قسمونه**

١٨٣—()[٣٢]① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (②«الْأَمْرُ ثَلَاثَةٌ: أَمْرٌ بَيِّنٌ رُشْدُهُ فَاتَّبِعْهُ، وَأَمْرٌ بَيِّنٌ غَيُّهُ فَاجْتَنِبْهُ، وَأَمْرٌ اخْتُلِفَ فِيهِ فَكِلْهُ إِلَى اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ»). رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ① ابن عباس رضي الله عنهما روايت کوي چې حضور ﷺ وفرمايل ② امر په درې قسمه دي ① هغه امر چې د هغه هدايت ښکاره دي د هغه پيروي کوي ② هغه امر چې د هغه ګمراهي ښکاره ده د هغه څخه ځانونه وژغوري ③ هغه امر چې هغه مختلف فيه دي هغه الله تعالى جل جلاله ته وسپاري. احمد

**حل اللغات:** ① بَيِّنٌ: أَيْ ظَاهِرٌ: واضحه، ښکاره (لکه مونځ، روژه). ② رُشْدُهُ: هدايت دهغې، ③ غَيُّهُ: أَيْ ضَلَالَتُهُ: ګمراهي دهغې (لکه سود، شراب وغيره). ④ فَكِلْهُ: أَيْ: فَوِّضْ: اوسپارئ.

**تسهيلات:**

**قوله: وَأَمْرٌ اخْتُلِفَ فِيهِ:**

**د امر په مراد کښې درې اقوال:** ① ددې څخه مراد متشابهات دى چې په هغې کښې اهل زيغ والې اختلاف کوى.

② دې څخه مراد اجتهادى اختلافى مسائل دي په کوم کښې چې دلائل مختلف وى او ددلائلو د اختلاف په وجه په کښې اختلاف راغلى وى.

③ دې څخه مراد مسکوته دى د کوم په باره کښې چې د شريعت دطرفه د حلت او حرمت صراحت نه وى نوهغه الله تعالى ته سپارل پکار دى اود اصل په اعتبار سره د اباحت اعتقاد ساتل پکار دى.

[1] ليس عنه احمد فى المسند

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۱۸۳] د انسانانو شرمخ

۱۸۳-()[۴۳] [۱] عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «إِنَّ الشَّيْطَانَ ذِئْبُ الإِنْسَانِ كَذِئْبِ الْغَنَمِ [۳] يَأْخُذُ الشَّاذَّةَ وَالْقَاصِيَةَ وَالنَّاحِيَةَ [۴] وَإِيَّاكُمْ وَالشِّعَابَ، وَعَلَيْكُمْ بِالْجَمَاعَةِ وَالْعَامَّةِ»). رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] معاذ بن جبل رضی الله عنه روایت کوي چې حضور ﷺ وفرمایل [۲] چې شیطان د انسان شرمخ دي لکه څنګه چې د بوزي شرمخ وي [۳] چې هغه هغه بوزه پورته کوي کمه چې درمي څخه تښتیدلي وي یا د رمي څخه لرې تللي وي یا د رمي په غاړه وي [۴] او تاسو د غره د کندوونو (یعني ګمراهۍ) څخه ځان ګوري او د جماعت او مجمع سره ملګرتیا لري. احمد

**حل اللغات:** ① ذِئْبُ: شرمخ، ② الشَّاذَّةَ: أي: النَّافِرَةَ: هغه چیلئ ته وائي چه د رمې نه اوتختی او د نورو څناورو نه جدا شی. ③ الْقَاصِيَةَ: الَّتِي قَصَدَتِ الْبُعْدَ: د وښو او اوبو په لټون کښې لرې وتلې چیلئ ته قاصیه وائی. ④ النَّاحِيَةَ: دغفلت او بې پرواهئ د وجې نه چه کله چیلئ د رمې نه جدا کیږی هغې ته ناحیه وائی. ⑤ الشِّعَابَ: وَهُوَ الْوَادِي: کندواؤ ته وائی یعنی وادی (د دې نه مراد هغه خیزونه دی کوم چه د وادئ سره تړلې وی لکه درندګان، ډاکوان، غلاګر وغیره.

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّ الشَّيْطَانَ ذِئْبُ الْإِنْسَانِ:

**د شیطان شرمخ سره د تشبیه وجه:** دا تشبیه په فساد هلاکت او تباهی خوررولوکښې ده لکه څنګه چه شرمخ د ګډو چیلودپاره د هلاکت او فساد سبب دې دغه شان شیطان د انسان دپاره په منزله د شرمخ دې.

**قوله:** وَعَلَيْكُمْ بِالْجَمَاعَةِ وَالْعَامَّةِ:

**د جماعت سره دیوځائې کیدوترغیب:** خاص کر کله چه چیلئ د رمې نه جدا کیږی نو دا هلاکت او فساد زیات خطرناك صورت اختیاروی. دغه شان چه کله یو انسان د جماعت حقه نه جدا کیږی د جمهورو لار پریخودو سره، د حق د لوئی لارې نه اخواکیدوسره دقسما قسم ګناهونو په جاړو کښې ورپریوځی. نود شیطان د پاره د هغه ښکارکول آسان شی. لهذا هرسړی له پکار دی چه د اهل حق قافلې سره روان شی دې دپاره چه د شیطان د حملونه بچ شی.

---

۱) اخرجه احمد فی المسند: ۲۴۳/۵

## [١٨٥] دجماعت سره د جدا کیدو نقصان

١٨٥-()[٣٣] ١ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ «مَنْ فَارَقَ الْجَمَاعَةَ شِبْرًا فَقَدْ خَلَعَ رِبْقَةَ الْإِسْلَامِ مِنْ عُنُقِهِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ ابوذر رضی الله عنه روایت کوي چې نبی کریم ﷺ وفرمایل ٢ کوم سړي چې د جماعت څخه یوه لویشت برابر هم (یعني د یو ساعت د پاره هم) جدا شو هغه د اسلام پټي د خپلي غاړي څخه ویستله. احمد و ابوداؤد

**حل اللغات:** ① فَارَقَ: جدا شو، ② شِبْرًا: یوه لویشت، ③ خَلَعَ: أَيْ: نَزَعَ: اوئې ویستله، جدا ئې کړه، ④ رِبْقَةَ: أَيْ: ذِمَّتَهُ: رسئ د اسلام، مراد ذمه واری ده.

**د راوي مختصر تعارف:** نوم ئېي جندب کنیت ئېي ابوذر، لقب ئې صدبیح الاسلام وو د پلار نوم ئې جناده او د مور نوم ئې رمله وو د بنوغفار قبیلې سره ئې تعلق ساتلو په اول کښې ډیر مشهور لارشوکونکې ډاکو وو بیا ئېي یک دم په ژوند کښې انقلاب راغلو پخپله فرمائی چه د اسلام قبلولو نه درې کاله وړاندې به ما مونځ کولو.

**اسلام قبلول:** کله چه ئې د نبی کریم ﷺ دعوت واوریدو نو خپل ورو انس ئې د تحقیق کولو دپاره اولیږلو او بیا پخپله راغلو د حضرت علی رضی الله عنه سره ملاؤ شو او د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اسلام ئې قبول کړو نبی کریم دوی خپل قوت ته د دعوت دپاره اولیږلو خپل ټول وخت ئې په دعوت او تبلیغ کښې خرچ کولو. نیمه قبیله هم په هغه وخت کښې مسلمانه شوه اونیمه قبیله د هجرت نه پس مسلمانه شوه.

**مدینې ته هجرت:** د نبی کریم ﷺ د هجرت نه پس ئې مدینې ته هجرت اوکړو او د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې به پاتې کیدو.

**زهد او تقوی:** حضرت ابوذر رضی الله عنه یو تارک الدنیا او زاهد وو د نبی کیم ﷺ او د حضرت ابو بکر رضی الله عنه په زمانه کښې په مدینه کښې اوسیدو د دې نه پس ئې شام ته هجرت او کړو او لاړلو.

**د دوی مذهب:** د دوی مذهب وو چه کوم مال وی نو هغه د خپل ځان سره ساتل جائز نه دی دا د اوګو تګو او بربنډو حق دې په دې وجه ئې د ټولو صحاب سره اختلاف وو. حضرت عثمان رضی الله عنه دوی مدینې ته راغوښتل دلته ئې هم د خلقو سره اختلاف کولو نو حضرت عثمان رضی الله عنه مجبوره شو اودوی نه ئې اووئیل چه تاسو مکې ته نزدې ،،ربذه،، مقام ته تشریف یوسئ او بعضو وئیلی دی چه دوی په خپله باندې وئیلی وو چه زه به ،،ربذه،، ته لاړ شم اوهلته قیام خوښوم

[1] اخرجه ابوداود کتاب السنة /باب فی قتل الخوارج(رقم-٤٧٥٨)اخرجه احمد فی المسند: ٥/١٨٠

**وفات:** په ربذه کښې د دوی طبیعت زیات خراب شو نو د دوی بی بی په ژړ شوه چه په دې صحراء کښې به څوک دده د تیمارداریٔ یا که مړ شو نو د تکفین بندوبست کوی؟ نو دوی ورنه اووئیل زه تاته زیرې درکوم چه هه دا چه نبی کریم ﷺ مونږ ته فرمائیلی وو چه په تاسو کښې به یو په دشته کښې مری هلته به د مسلمانانو یوه ډله راورسی اوهغوی به مو کفن دفن کوی زما نه سوا نور څومره خلقو وو هغوی په آبادیٔ کښې وفات شوی دی صرف زه پاتې یم نو هم داسې اوشوه چه چه حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ د یوې ډلې سره راغلو او دجنازې مونځ ئې پرې اوکړواو د دفن ئې کړو (۱)

**مرویات:** د دوی د روایاتو شمار ۲۸۱ دې په دې کښې دولس په بخاری او مسلم دواړو کښې دی او په دوو کښې بخاری اوپه اووهٔ کښې مسلم منفرد دې.

**تسهیلات:**

**قوله:** مَنْ فَارَقَ الْجَمَاعَةَ شِبْرًا:

**دمذکوره جملې مفهوم:** یعنی کوم کس چې د جماعت څخه جدا شو نوداسې شوه چې هغه د اسلام رسی د خپل څټ څخه ویستله ددې څخه مراد د کمال اسلام نفی ده د نفی اسلام نفی نه ده.

**قوله:** فَقَدْ خَلَعَ رِبْقَةَ الْإِسْلَامِ مِنْ عُنُقِهِ:

**د اسلام رسې د څټ څخه په ویستلو کښې دوه اقوال:** ① یعنی هغه دَ سټ نه دَ اسلام پټه ویستله داحکم په تغلیظ او تشدید باندې محمول دې.

② ددې نه مراد دادې چه کله جدا کیدل دَ ده عادت دې نو یو نه یو ورځ به هغه اسلام پریږدی. اودَ هغې پټه به دَ سټ نه ویستلو سره اوغورزوی.

**[۱۸۶] د نبی علیه السلام امت ته د دوو څیزونو پریخودل**

۱۸۶-(۲)[۳۵] ① وَعَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - مُرْسَلًا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «تَرَكْتُ فِيكُمْ أَمْرَيْنِ لَنْ تَضِلُّوا مَا تَمَسَّكْتُمْ بِهِمَا: كِتَابَ اللَّهِ وَسُنَّةَ رَسُولِهِ». رَوَاهُ فِي (الْمُوَطَّأِ)

**ترجمه:** ① مالك بن انس ﷺ مرسلاً روایت کوي چې حضور ﷺ وفرمایل ② ما ستاسو په مینځ کې دوه څیزونه پریښي دي ترڅو پورې چې تاسو هغه (مضبوط) نیولي وي نو هیڅ کله به گمراه نه شی هغه کتاب الله (قرآن مجید) او سنت رسول الله (احادیث) دي. موطا

**حل اللغات:** ① تَمَسَّكْتُمْ: أَيْ: عَمِلْتُمْ: چه منګولې اولګوئ تاسویعنی عمل اوکړئ (په قرآن اوحدیث باندې).

---

(۱) مستدرک حاکم (۳/۳۴۶)_(۲)تهذیب الکمال (ص،۴۴۹)_(۳) الترمذی فی صفة القیامة باب ولکن یا حنظلة ساعة وساعة رقم ۲۴۴۱،والحدیث الذی فی ذیل هذا الحدیث رواه احمدفی مسند بنی هاشم رقم ۲۵۳۷)

(۲) اخرجه مالک کتاب القدر /باب النهی عن القول بالقدر(رقم-۳)

**تسهیلات: قوله: مُرْسَلًا:**

**دمرسل تعریف:** مرسل هغه روایت ته وائي چه یو تابعي دَ حضورپاك نه نیغ په نیغه یو حدیث نقل کړي لکه چه [قال الأعمش قال رسول الله صلی الله علیه وسلم]

**مذکوره روایت ته د مرسل وئیلو وجه:** امام مالك رحمه الله تابعي نه دې بلکه تبع تابعي دې خود ددې باوجود دې روایت ته د منقطع په ځائې مرسل ځکه اوئیلو شو چې دا ئې توسعاً او مسامحةً فرمائیلي دي.

**دمرسل روایت په قبولیت کښې اختلاف:** دَحدیث مرسل په قبولیت کښې داسې اختلاف دې که چرې دَ دې نقل کونکې راوي ثقه وي او هغه دَ ثقه راوي نه روایت کوي نو دَ امام مالك رحمه الله امام ابوحنیفه رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله په نیزبه دا روایت مقبول وي. امام شافعي رحمه الله فرمائي چه که دَ مرسل روایت دَ نورو صحیح روایاتو سره توثیق کیږي نو مقبول دې ګڼی نه دې. یعنی چرته په بل روایت سره دَهغې توثیق اوتائید کیږي اګرچه هغه روایت پخپله مرسل ولې نه وي.

**قوله: تَرَكْتُ فِيكُمْ أَمْرَيْنِ:**

**دهدایت دوه چینې:** ① قرآن کریم پاک چې د الله تعالی آخري کتاب دې اودا د هرقسم تحریفاتو څخه پاك دې.

② د نبي علیه السلام سنت یعني احادیث مقدسه زما نه پس دَ هدایت دَپاره دَ هدایت سامان دې

**قوله: لَنْ تَضِلُّوا مَا تَمَسَّكْتُمْ بِهِمَا:**

**په قرآن اوسنت د عمل کولو ضرورت:** الله تعالی انسانانو ته دَ هدایت ورکولو وعده کړې ده. اوس به هدایت په کوم صورت سره ورکړې کیدې شي؟ اودَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم نبوت د آخري نبي نبوت دې دنیا ته بل نبي نه شي راتلې. لهذا دَ هدایت جاري پاتې کیدو حضورپاك دا اعلان کړې دې چې ستاسو دګمراهۍ څخه بچ کونکي دوه څیزونه دي دالله تعالی کتاب او زما سنت.نو چه څوك هم دَ هدایت دا سرچشمې په مضبوطیا سره نیسي هغه به دَ ګمراهۍ نه بچ وي.

**[۱۸۷] دبدعت په راتلو د سنت ختمیدل**

١٨٧ـ( )[٣٦] ① وَعَنْ غُضَيْفِ بْنِ الْحَارِثِ الثُّمَالِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "② «مَا أَحْدَثَ قَوْمٌ بِدْعَةً إِلَّا رُفِعَ مِثْلُهَا مِنَ السُّنَّةِ؛ ③ فَتَمَسُّكٌ بِسُنَّةٍ خَيْرٌ مِنْ إِحْدَاثِ بِدْعَةٍ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ① غضیف بن حارث الثمالي رضي الله عنه روایت کوي چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل ② چې کله یو قوم په دین کې نوي خبره را وباسي (یعني داسې کار کوم چې د سنتو خلاف وي) نو د

---

[1]) اخرجه احمد في المسند: ۱۰۵/٤

هغه په مثل یو سنت پورته کیږي ۳ نو د دې وجې څخه سنت مضبوطه نیول د نوي خبري را ایستلو (یعني بدعت) څخه ښه دي احمد

**حل اللغات:** ۱ أَحْدَثَ: أَيْ: جَدَّدَ وَابْتَدَعَ: نوې خبره، بدعت ئې راویستلو ۲ بِدْعَةً: په لغوی توګه بدعت یو نوې څیز او نوی کار کولوته وائي او دَ شریعت په اصطلاح کښې بدعت هغه نوې کار دې چه په خیرالقرون کښې نه وی او سلف اوخلف دَهغې طرف ته محتاج وی او یو سړې هغه دَ ثواب حاصلولو په نیت اوکړی ۳ رُفِعَ: پورته کولې شی یعنی ختمولې شی ۴ تَمَسُّكٌ: منګولې لګول یعنی مضبوط نیول او عمل کول (په سنت طریقو د نبی ﷺ باندې).

**تسهیلات:** **قوله:** إِلَّا رُفِعَ مِثْلُهَا مِنَ السُّنَّةِ:

**د بدعت په ایجاد د سنت د ختمیدو وجه:** بدعت دَ سنت ضد دې اوکله چه دَ بدعت غلبه اوشی نو سنت به اوچتولوسره لاړشی اوهم دغه شان دَدې عکس دې چه کله دَ غلبې په توګه سنت عام شی بدعت به ورانیدوسره ختم شی. دا دواړه دَ یو بل ضد دی چه کله یو ځائی کیدې نه شی.

**قوله:** تَمَسُّكٌ بِسُنَّةٍ خَيْرٌ مِنْ إِحْدَاثِ بِدْعَةٍ:

**بلاغی نکته:** دلته [سنة] کښې تنوین دَ تقلیل دَپاره دې. یعنی وړوکې سنت یا لږ سنت [بدعة] یعنی لوئی بدعت، تنوین دَ تعظیم دَپاره دې.

**د خیر د صیغې حیثیت:** یعنی سنت په مضبوطیا سره نیول دَ بدعت ایجاد کولو نه بهتر دی. دلته لفظ خیر دَ اسم تفضیل په معنی کښې نه دې بلکه دَ اصل صیغې په معنی کښې استعمال شوې دې. لکه [الصيف احرمن الشتاء] دلته دَ مثلها لفظ دَ ضدین دَ نسبت تضاد دَ وجې نه ونیلې شوې دې.

## [۱۸۸] د بدعت په ایجاد د سنت تلل

۱۸۸-(۱) [۴۷] ۱ وَعَنْ حَسَّانَ، قَالَ: مَا ابْتَدَعَ قَوْمٌ بِدْعَةً فِي دِينِهِمْ إِلَّا نَزَعَ اللّٰهُ مِنْ سُنَّتِهِمْ مِثْلَهَا، ثُمَّ لَا يُعِيدُهَا إِلَيْهِمْ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۱ حسان ؓ فرمایي چې هر کله یو قوم په خپل دین کې نوي خبره (یعني داسې خبره چې د سنتو خلاف وي) را وباسي نو الله تعالی ﷻ د هغه د سنت څخه د هغه مثل اوباسي (یعني چې هر کله چې څه بدعت پیدا کیږي نو د هغه مثل سنت د دنیا څخه اوچتولي شي) او بیا هغه سنت تر قیامته وهغه طرف ته نه واپس کیږي. دارمي

**حل اللغات:** ۱ ابْتَدَعَ: نوې کار یعنی بدعت ئې شروع کړو (چه د سنت سره مقابل وو). ۲ نَزَعَ: اوباسی یعنی د دنیا نه ئې اوچتوی او ختموی).

(۱) اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحدیث ۹۸

**تسهيلات: قوله:** لَا يُعِيدُهَا إِلَيْهِمْ:

**د ختميدو څخه پس د سنت نه راتلو وجه:** دَدې وجه داده چه دا سنت په خپل ځائی باندې کلك او مضبوط وو اودې دَ ونې په شان په زمکه کښې جرړې خښې کړې وې. نو چه کله دا دَ بيخ نه راويستلې شو او ضائع کړې شو نودا دوباره په هغه شکل کښې نه شی قائم کيدې. لکه څنګه چه يوه ونه په زمکه کښې خپلې جرړې مضبوطوی. نودَ راويستو سره دَ هغه ونې جرړې دَ خپل اصلی حالت طرف ته واپس کيدې نه شی. اونه هغه ونه مضبوطه کيدې شی. دغه شان سنت دَ ختميدونه پس دوباره دَ خپل اولنی حالت په شان مضبوطيدې نه شی. سره دَدې چه هغه دوباره راژوندې هم کړې شی.

**[١٨٩]دبدعتي عزت کولوجرم**

١٨٩ – ()[٣٨] ١ وَعَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مَيْسَرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ «مَنْ وَقَّرَ صَاحِبَ بِدْعَةٍ، فَقَدْ أَعَانَ عَلَى هَدْمِ الْإِسْلَامِ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ) مُرْسَلًا.

**ترجمه:** ١ ابراهيم بن ميسره ﷺ روايت کوي چې حضور ﷺ وفرمايل ٢ کوم سړي چې د يو بدعتي عزت وکړو هغه د اسلام (ستن) په راوغورزولو کښې مدد اوکړو. بيهقي

**حل اللغات:** ① وَقَّرَ: أَيْ: عَظَّمَ أَوْنَصَرَ: تعظيم اوعزت ئې اوکړو يا ئې دهغه مدد اوکړو. ② أَعَانَ: مدد ئې اوکړو. ③ هَدْمِ: رانړول، راغورزول.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَقَدْ أَعَانَ عَلَى هَدْمِ الْإِسْلَامِ:

**د اسلام په نړولو کښې د مدد کولومطلب:** يعنی په خلقو کښې ئي هغه مقبول جوړکړو دَهغه تعظيم ئی اوکړو اودَ هغه اکرام او احترام ئی اوکړو دکوم په وجه چه په خلقو کښې دَ هغه اعتماد پيدا شو نوهغه سړی دَ اسلام سرحدات راغورزولو کښې امداداوکړو.

**قوله:** عَلَى هَدْمِ الْإِسْلَامِ:

**دبدعت د ايجاد د اسلامی عمارت نړولوسره د تشبيه وجه:** هر څيز په خپل حدودو باندې قائم وی. که چرې حدود نه وی نوهغه څيز هم قائم نه شی پاتې کيدې بلکه ختميږی. نو مبتدع سړې خپل بدعات او نوی نوی څيزونه په اسلام کښې داخلولو سره په اسلام کښې کندر کوی اودَ هغې حدود راغورزوی. او دَ خپل جهالت په ذريعه سره سنت ختموی اودَ هغې په ځائی بدعت راولی. نوداسې بدعتی مقبول جوړول بعينه دَ اسلام عمارت راغورزولو په شان دې. لهذا دغه سړې هم دَ اسلام حدود راغورزولو کښې د دغه بدعتی امدادی شو.

---

[١] اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ٩٤٦٤

## [١٩٠] د قرآن تابعداری د دنيا او آخرت کاميابی

١٩٠-(١)[٤٩] ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: مَنْ تَعَلَّمَ كِتَابَ اللَّهِ ثُمَّ اتَّبَعَ مَا فِيهِ; ٢ هَدَاهُ اللَّهُ مِنَ الضَّلَالَةِ فِي الدُّنْيَا، وَوَقَاهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ سُوءَ الْحِسَابِ. ٣ وَفِي رِوَايَةٍ: قَالَ: مَنِ اقْتَدَى بِكِتَابِ اللَّهِ لَا يَضِلُّ فِي الدُّنْيَا وَلَا يَشْقَى فِي الْآخِرَةِ ٤ ثُمَّ تَلَا هَذِهِ الْآيَةَ: {فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَايَ فَلَا يَضِلُّ وَلَا يَشْقَى} [طه: ١٢٣]. رَوَاهُ رَزِينٌ.

**ترجمه:** ١ ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي چې کوم سړي د کتاب الله علم حاصل کړي او بيا ذ هغه شي پيروي يي وکړه کوم چې په کتاب الله کې وي ٢ نو الله تعالی جل جلاله به هغه په دنيا کې د ګمراهۍ څخه لرې کولو سره د هدايت په لاره ولګوي (يعني هغه به د هدايت په لاره ثابت قدم وساتي او د ګمراهۍ څخه به يي وساتي) او د قيامت په ورځ به هغه د خراب حساب څخه محفوظه وي (يعني د ده څخه به مواخذه نه کيږی) ٣ او په يو روايت کې دي چې کوم سړي د کتاب الله پيروي وکړه نو نه به هغه په دنيا کې ګمراه شي او نه به په آخرت کې بد بخته شي (هغه ته به عذاب نه ورکول کيږی) ٤ تر دي وروسته ابن عباس رضي الله عنه دا آيت تلاوت کنبي: فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَايَ فَلَا يَضِلُّ وَلَا يَشْقَى. رزين

**حل اللغات:** ① هَدَاهُ اللَّهُ: أَيْ آمَنَهُ اللَّهُ: هدايت به ورته اوکړی الله پاک يعنی د اسلام په نيغه لار به ئې روان کړی او دګمراهئ نه به ئې بچ اوساتی. ② وَقَاهُ: أَيْ: حَفِظَهُ: بچ به ئې اوساتی او محفوظ به ئې کړی. ③ اقْتَدَي: تابعداری ئې اوکړه (په اعتقاداتو او عباداتو وغيره کنبې). ④ لَا يَشْقَى: نه به بدبخته شی (يعنی په دنيا او آخرت کنبې به کامياب شی).

## [١٩١] د اسلام د بعضي اهمو اعمالو مثال

١٩١-(٢)[٥٠] ١ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: " ٢ «ضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا صِرَاطًا مُسْتَقِيمًا، ٣ وَعَنْ جَنْبَتَيِ الصِّرَاطِ سُورَانِ، ٣ فِيهِمَا أَبْوَابٌ مُفَتَّحَةٌ، وَعَلَى الْأَبْوَابِ سُتُورٌ مُرْخَاةٌ، ٤ وَعِنْدَ رَأْسِ الصِّرَاطِ دَاعٍ يَقُولُ: اسْتَقِيمُوا عَلَى الصِّرَاطِ وَلَا تَعْوَجُّوا، ٥ وَفَوْقَ ذَلِكَ دَاعٍ يَدْعُو، كُلَّمَا هَمَّ عَبْدٌ أَنْ يَفْتَحَ شَيْئًا مِنْ تِلْكَ الْأَبْوَابِ قَالَ: وَيْحَكَ! لَا تَفْتَحْهُ; فَإِنَّكَ إِنْ تَفْتَحْهُ تَلِجْهُ ". ٦ ثُمَّ فَسَّرَهُ فَأَخْبَرَ: " أَنَّ الصِّرَاطَ هُوَ الْإِسْلَامُ، وَأَنَّ الْأَبْوَابَ الْمُفَتَّحَةَ مَحَارِمُ اللَّهِ، وَأَنَّ السُّتُورَ الْمُرْخَاةَ حُدُودُ اللَّهِ، ٧ وَأَنَّ الدَّاعِيَ عَلَى رَأْسِ الصِّرَاطِ هُوَ الْقُرْآنُ، وَأَنَّ الدَّاعِيَ مِنْ فَوْقِهِ وَاعِظُ اللَّهِ فِي قَلْبِ كُلِّ مُؤْمِنٍ» ". رَوَاهُ رَزِينٌ، وَرَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ١ ابن مسعود رضي الله عنه روايت کوي چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل ٢ الله تعالی جل جلاله يو مثال بيان کړي دي (هغه دا چې) يوه نيغه لاره ده ٣ او د هغه دواړو طرفو ته دوه ديوالونه دي ٤ په هغه ديوالونو کې خلاصي دروازي دي، په هغه دروازو پردي پرتي دي ٥ او د لاري په سر يو بلونکي ولاړ دي چې بلنه کوي وايي چې په نيغه لار راځي په غلطه

---

[1] اخرجه رزين

[2] اخرجه احمد في المسند: ٤/ ١٨٢

لاره مه ځي، ⑥د دې آواز کولو والا د پاسه (يعني د هغه څخه مخکې) ولاړ يو دويم بلونکي دي هر کله چې يو بنده د هغه دروازو څخه يوه دروازه خلاصول غواړي نو هغه دويم بلونکي وايي په تا افسوس دي دا مه خلاصه وه که دا خلاصه کښې او په دې کښې داخل شې (نو هلته به سخت تکليف کې يې)⑦ بيا حضور ﷺ د دې مثال وضاحت وکړو او وې فرمايل د نيغه لارې څخه مراد اسلام دې (چې د هغه په اختيارولو سره جنت ته رسي) او د خلاصو دروازو څخه مراد هغه څيزونه دي کوم چې الله تعالى ﷻ حرام کړي دي (چې د هغه اختيارول د تکميل اسلام منافي يعنى خلاف دي) او په دروازو د پرتو پردو څخه مراد د الله تعالى ﷻ قائم کړي حدود دي او د لارې په سر چې بلونکي ولاړ دي د هغه څخه مراد قرآن کريم دي ⑧او هغه دويم بلونکي چې د اولني بلونکي څخه مخکې ولاړ دي د هغه څخه مراد د الله تعالى ﷻ د طرفه څخه يو نصيحت کونکي شې دي چې هغه د هر مؤمن په زړه کې دي، رزين، احمد

**حل اللغات:** ① ضَرَبَ: بيان کړي ئې دي (مثال). ② جَنْبَتَي: أَيْ: عَنْ طَرَفَيْهِ: دواړه طرفونه (يعنى ښي او ګس طرف). ③ سُورَانِ: أَيْ: جِدَارَانِ: دوه ديوالونه. ④ مُفَتَّحَةٌ: پرانستې. خلاصې شوې. ⑤ سُتُورٌ: د ستر جمع ده. پردې ته وائي. ⑥ مُرْخَاةٌ: أَيْ: مُرْسَلَةٌ: زوړنديدو ته وائي. يعنى زوړنده پردې په دروازو باندې پرتې دي. ⑦ لَاتَعْوَجُّوا: د اِعْوِجَاج نه دي، أَيْ: لَاتَمِيلُوا: يعنى په غلطه لاره مه ځئ. ⑧ هَمَّ: أَيْ: قَصَدَ وَأَرَادَ: يعنى قصد او اراده ئې اوکړه. ⑨ وَيْحَكَ: دا کلمه د زجر ده. د افسوس په طور د رحم دپاره استعماليږي يعنى افسوس دې په تا باندې. ⑩ تَلِجُهُ: أَيْ: تَدْخُلُهُ: يعنى ته به په هغې کښې داخل شې. ⑪ مَحَارِمُ اللهِ: دالله تعالى د طرفه حرام کړې شوى څيزونه.

**تسهيلات:**

**قوله: وَاعِظُ اللَّهِ فِي قَلْبِ كُلِّ مُؤْمِنٍ:**

**د واعظ الله څخه مراد:** دې نه مراد هغه فرښته ده چه دَ هرمؤمن په زړه کښې وى اودَ مؤمن په زړه کښې دَ نيکئى الهام کوى. دَدې پوره تفصيل باب الوسوسه کښې تيرشوې دې [الکاشف ۳۸۴/۱.]

**دشيطان انسان سره دشمنى:** بهرحال پوره حديث مونږ ته دا تعليم راکوى چه دَ انسان يو پټ دښمن دې دَ هغه نوم شيطان دې چه هروخت زمونږ په شيش کښې ناست وى چه لږ شان دا مسلمان دَ اهل حق دَ جماعت نه اخواديخوا شى نو شيطان هغه په مکمل توګه باندې هلاک کړى. الله تعالى دَ دغه پټ دښمن دَ پاره دَ فرښتو يوه خفيه څوکئى کينولې ده چه دَ نيکو نصيحت او الهام کوى.

۱۹۲—()[٥٠]وَالْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ) عَنِ النَّوَّاسِ بْنِ سَمْعَانَ، وَكَذَا التِّرْمِذِيُّ عَنْهُ إِلَّا أَنَّهُ ذَكَرَ أَخْصَرَ مِنْهُ.

**ترجمه:** او بيهقي دا روايت په شعب الايمان کې د نواس بن سمعان څخه نقل کړې دي او ترمذي هم د هغه روايت کړيدي خو ترمذي مختصراً بيان کړې دي.

**[۱۹۳]دصحابه کرامو د تابعدارۍ کولو نصيحت**

۱۹۳—()[٥١]① وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: مَنْ كَانَ مُسْتَنًّا، فَلْيَسْتَنَّ بِمَنْ قَدْ مَاتَ فَإِنَّ الْحَيَّ لَا تُؤْمَنُ عَلَيْهِ الْفِتْنَةُ، ② أُولَئِكَ أَصْحَابُ مُحَمَّدٍ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانُوا أَفْضَلَ هَذِهِ الْأُمَّةِ، ③ أَبَرَّهَا قُلُوبًا وَأَعْمَقَهَا عِلْمًا، وَأَقَلَّهَا تَكَلُّفًا اخْتَارَهُمُ اللَّهُ لِصُحْبَةِ نَبِيِّهِ، وَلِإِقَامَةِ دِينِهِ، ④ فَاعْرِفُوا لَهُمْ فَضْلَهُمْ، وَاتَّبِعُوهُمْ عَلَى آثَارِهِمْ، وَتَمَسَّكُوا بِمَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ أَخْلَاقِهِمْ وَسِيَرِهِمْ، ⑤ فَإِنَّهُمْ كَانُوا عَلَى الْهُدَى الْمُسْتَقِيمِ. رَوَاهُ رَزِينٌ.

**ترجمه:** ① ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې کوم سړي چې د يوې طريقې پيروي کول غواړي نو هغه لره پکار دي چې د هغه خلقو لاره اختيار کړي کوم چې مړه شوې دي ځکه چې ژوندي سړي (په دين) کې د فتنې څخه محفوظه نه وي ② او کوم خلق چې مړه شوي دي (او د هغوئ پيروي کول پکار ده) هغه د حضور ﷺ اصحاب ووچې د دې امت د ټولو څخه ښه خلق وو ③ د زړونو په اعتبارسره د انتها درجې نيک وو، د علم په اعتبار سره انتهايي کامل او ډير کم تکليف کونکي وو، الله تعالیٰ جل جلاله هغه د خپل نبي د رفاقت (ملګرتيا) او دخپل دين د قائمولو د پاره منتخب کړي وو، ④ نو تاسو د هغوئ بزرګي اوپيژني اوهغوئ د نقش قدم پيروي اوکړو تر کمه چې وشي د هغوئ آداب واخلاق اختيار کړي ⑤ (ځکه چې) هغه خلق د هدايت په نيغه لاره وو. رزين

**حل اللغات:** ① مُسْتَنًّا: أَيْ: مُقْتَدِيًا: تابعداري او پيروی کونکې، استنان دَ چا اتباع او دَ چا په نقش قدم باندې تللو ته ونيلې شي. هم دَدې نه سنت دې ② الْفِتْنَةُ: آزمائش، امتحان. ③ أَبَرَّهَا: داسم تفضيل صيغه ده، أَيْ: أَطْوَعَهَا: ډير تابعدار او نيکان، ④ أَعْمَقَهَا: أَيْ: أَكْثَرَهَا غَوْرًا: ډير زيات اوکامل، ژور علم والا، ⑤ تَمَسَّكُوا: أَيْ: خُذُوا وَاعْمَلُوا: لازم اونيسئ، عمل پرې اوکړئ. ⑥ سِيَرِهِمْ: سِيَر د سيرة جمع ده. سيرت دهغوی يعنی دهغوی طور طريقې.

**تسهيلات: قوله:** قَدْ مَاتَ فَإِنَّ الْحَيَّ لَا تُؤْمَنُ عَلَيْهِ الْفِتْنَةُ:

**د مات او حي څخه مراد:** ددې نه هغوی ﷺ هغه صحابه کرام مراد واخستل چه دَ دنيا نه تلي وو اودَ الحی نه هغوی ﷺ دَخپلې زمانې تابعين مراد اخستې دی. دَدې ګواهئی نه پس دَ صحابو دَ يو دښمن دَ هيڅ غلطې خبرې اعتبار نشته دې.

---

[1] ) اخرجه الترمذی کتاب الأمثال عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی مثل الله لعباده (رقم-٢٨٥٩) والبيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ٧٢١٦

[2] ) اخرجه رزين

**قوله: وَأَعْمَقَهَا عِلْمًا:**

**دصحابۀ دعلم ژوروالی:** یعنی دَ صحابه کرامو ﷺ علم وسیع کیدو سره سره ژور هم وو. هر صحابي دَعلم اومعرفت، فهم و فراست، تدبر اوتفکر، دَعقل او دانش دَ رنړا یوه مناره وه. دَ چا نه چه دَ دنیا مظلومانو او په جهالت کښې اخته انسانانو دَ تعلیم، ترقئی، تهذیب، شرافت، عظمت او دَ انسانیت درس واغستلو. چنانچه یو صحابي تفسر او حدیث کښې بې مثال وو نو څوك په فقه او قرأت کښې امام وو، څوك دَ تصوف علمبردار وو نو څوك په کښې دَ علم الفرائض اوعلم الحلال والحرام امام وو.

**قوله: وَأَقَلَّهَا تَكَلُّفًا:**

**د صحابۀ بې تکلفي:** یعنی دَ علم اوعرفان غرونه کیدوسره سرد دَ صحابه کرامو ﷺ دَ بې تکلف کیدو دا حال وو چه که هغوی به هرڅومره په اوچت منصب باندې ولې نه وو خپې ابله خپې تلو کښې به ورته هیڅ شرم نه محسوسیدو. او نه به ئې په زمکه باندې مونځ کولو، کیناستلو یا سملاستلو کې څه شرم محسوسولو. په یولوښي کې به لسولسو کسانو خوراك کولو او پیړې پیړې کپړې به ئې اغوستلې. حلال خوراك چه به دَ کوم قسم نه هم راغلو بغیرد څه تکلف نه به ئې خوړلو کومه کپړا چه به ورته ملاؤ شوه اغوستله به ئې. غرض دا چه دَ بناوټ اوتکلف نه دومره لرې وو چه دکوم نه دوړاندې تصور هم ممکن نه وو.

**قوله: فَاعْرِفُوا لَهُمْ فَضْلَهُمْ:**

**صحابه اود حق معیار:** یعنی دَ هغوی فضیلت اوپیژنئی دَهغې اعتراف اوکړئی دهغوي تابعداري وکړئي څکه چه هغوی دَ هدایت په لویه لار باندې وو. دادَ حضرت ابن مسعود ﷺ گواهی ده چه دَ خپلو ملگرو او دَ رسول الله ﷺ دَ صحابه کرامو باره کښې هغوی دَ یو څو صحابو او عام تابعینو په مخکښې په توگه دَ معیار او پیمانې کړې

**[۱۹۳] د صحابه کرامو د نبی علیه السلام په مزاج پوهیدل**

۱۹۳—(¹)[۵۲] ١ وَعَنْ جَابِرٍ «أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، أَتَى رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِنُسْخَةٍ مِنَ التَّوْرَاةِ، ٢ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! هَذِهِ نُسْخَةٌ مِنَ التَّوْرَاةِ، فَسَكَتَ ٣ فَجَعَلَ يَقْرَأُ وَوَجْهُ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَتَغَيَّرُ. ٤ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: ثَكِلَتْكَ الثَّوَاكِلُ! مَا تَرَى مَا بِوَجْهِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟! ٥ فَنَظَرَ عُمَرُ إِلَى وَجْهِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: أَعُوذُ بِاللَّهِ مِنْ غَضَبِ اللَّهِ وَغَضَبِ رَسُولِهِ، رَضِينَا بِاللَّهِ رَبًّا وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا، وَبِمُحَمَّدٍ نَبِيًّا. ٦ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ، لَوْ بَدَا لَكُمْ مُوسَى فَاتَّبَعْتُمُوهُ وَتَرَكْتُمُونِي لَضَلَلْتُمْ عَنْ سَوَاءِ السَّبِيلِ، وَلَوْ كَانَ حَيًّا وَأَدْرَكَ نُبُوَّتِي لَاتَّبَعَنِي» رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

¹) اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحدیث ٤٣۵

**ترجمه:** [۱] جابر ﷺ راويت كوي چې يو ځل حضرت عمر ابن خطاب ﷺ نبي كريم ﷺ ته د تورات يوه نسخه راوړه [۲] او عرض يي وكړو چې يا رسول الله ﷺ دا د تورات نسخه ده نبي كريم ﷺ چپ شو [۳] بيا حضرت عمر ﷺ تورات ويل شروع كړل اخوا د غصې څخه د نبي كريم ﷺ مخ مبارك متغير كيدي [۴] (په دي ليدو سره) حضرت ابوبكر صديق ﷺ اوويل اي عمره وركونكي دي تا ورك كې آيا ته د نبي كريم ﷺ مخ مبارك (متغير كيدونكي) نهويني، [۵] حضرت عمر ﷺ د نبي كريم ﷺ په مخ مبارك د غصې آثارو ليدو سره يي اوويل زه د الله ﷻ د غضب او د هغه د رسول د غضب څخه پناه غواړم زمونږ د الله تعالى ﷻ په رب كيدو د اسلام په دين كيدو او د محمد ﷺ په نبي كيدو راضي يو، [۶] نبي كريم ﷺ وفرمايل قسم دي په هغه ذات چې د هغه قبضه كې د محمد (ﷺ) ساه ده كه موسى (ﷺ) ستاسو په مينځ كې ښكاره شوې وايي نو تاسو به د هغه پيروي كوله او زه به مو پريښودلم (د هغه په نتيجه كښې به) تاسو د نيغه لاري څخه گمراه شوي وايي او كه هغه ژوندي وي بيابه هم (يقيناً) زما پيروي كوله. دارمي

**حل اللغات:** ① ثَكِلَتْكَ الثَّوَاكِلُ: ثِكل دَ كاف په كسرې سره د فقدان او وركيدو په معنى كښې دې. او الثَّوَاكِلُ دَ ثَاكِلَةٌ جمع ده هغه ښځې ته وائي دَ كومې بچې چه ورك شوې وى يا هلاك شوې وى او هغه ډيرزيات ژړا فرياد كوى د ثواكل نه مراد نزدې رشته داران دى يعنى: مِنَ الْأُمَّهَاتِ وَالْبَنَاتِ وَالْأَخَوَاتِ: مطلب دا چه تا دې وركونكي مئيندې ورك كړى يا خوئيندې يا لونړه دې ورك كړى يعنى ته دې مرشې، په ظاهركښې دا خيرې ښكارى خو ددې نه مراد خيرې نه دى بلكه تاديب او تنبيه دد. ② لَضَلَلْتُمْ: خامخا گمراه به شئ تاسو، ③ سَوَاءِ السَّبِيلِ: نيغه لار يعنى صراط مستقيم.

**تسهيلات:**

**قوله: فَجَعَلَ يَقْرَأُ:**

**عمر رضى الله عنه او دعلم حرص:** حضرت عمر ﷺ دَعلم حريص او شوقين وو. دَحكمت اومعرفت قدردان وو. يهودو له به كله كله تللو. اول ئې دَ څه نيكو خبرو دَ اوريدو اجازت غوښتې وو اوس ئې څه ښې خبرې اوړول شروع كړه. خيال ئې اوكړو چه دا به دَ غيرمحرف او منزل من الله تورات حصه وى. دَ هغوى داخيال نه وو چه حضورپاك به غصه كيږى او حضرت عمر ﷺ په بې خيالئى كښې لوستلو.

**قوله: ثَكِلَتْكَ الثَّوَاكِلُ:**

**دمذكوره جملې مفهوم:** دا محاوره په عربو كښې عاموخبرو اتروكښې وئيلې شى دې نه حقيقى معنى مراد نه اخلى. حضرت ابوبكر ﷺ اوفرمائيل چه ژړا كونكې ښځې دې په تا باندې اوژاړى يعنى ته ورك شې دَ يوفعل دَ انكار او خفگان په وخت دا جمله دعربو په

محاوره کښې ونيلی کيږی. نودلته صرف دَ انکار او حيرانتيا دَپاره استعمال شوې ده.

**قوله: فَنَظَرَ عُمَرُ:**

**دنبی علیه السلام د خوشحاله کولو کوشش:** حضرت عمر ﷺ خوبیا عمر وو. مُلْهَم و محدث وو اشدهم فی امرالله عمر وو. فوری ئی توبه اوکړه اودَ الله تعالی اودَ هغه دَ رسول ﷺ دَ غضب نه ئي تعوذ شروع کړو. دَ رسول الله ﷺ غصه به هم په دې باندې يخيدله. حضورپاك اوفرمائيل که چرې موسٰی ﷺ ژوندي وې نوزما دَ تابعدارئی نه به ئی بل څه لار نه وه ځکه چه دادَ دين اسلام دور دې.

**[١٨٥] په حديث کښې د نسخ درې قسمونه:**

١٨٥–()[٥٣][١]وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:[٢]«كَلَامِي لَا يَنْسَخُ كَلَامَ اللَّهِ،[٣]وَكَلَامُ اللَّهِ يَنْسَخُ كَلَامِي وَكَلَامُ اللَّهِ يَنْسَخُ بَعْضُهُ بَعْضًا»"

**ترجمه:** [١]جابر ﷺ روايت کوي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل[٢] زما کلام د الله ﷻ کلام نه منسوخه کوي [٣] او د الله ﷻ کلام زما کلام منسوخه کوي او د الله ﷻ د کلام بعضې حصي بعضې منسوخه کوي.

**تسهيلات:**

**دنسخ لغوی معنی:** دَ نسخ لغوی معنی نقل کول ورانول ليکل وغيره دی.

**د نسخ شرعی تعريف:** [رفع الحکم الشرعی بدليل شرعی متأخر] يعنی سابقه شرعی حکم په راتلونکی دليل سره اوچتول او اخواکول.

**قوله: كَلَامِي لَا يَنْسَخُ كَلَامَ اللَّهِ:**

**د نسخ څلور قسمونه:**

① **نسخ القرآن بالقرآن:** قرآن کريم دَ قرآن کريم دَپاره ناسخ وی. لکه د متوفی عنها زوجها عدت اول يو کال ووبيا په څورمياشتو اولسو ورځوسره منسوخ شو.

② **نسخ الحديث بالحديث:** حديث دَ حديث دَپاره ناسخ وی. لکه ((کنت نهيتکم عن زيارة القبور))د دې حديث په آخری جملې ((فزوروها))سره منسوخ دې.

③ **نسخ الحديث بالقرآن:** چې قرآن کريم دَ حديث دَپاره ناسخ وی. لکه څنګه چې اول داحاديثو په رڼا کښې بيت المقدس ته مونځ کولې شو. اوبيا په «فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ» سره منسوخ شو.

(١) اخرجه الدارقطنی فی السنن رقم الحديث ٩

④ **نسخ القرآن بالحديث،** حدیث شریف دَ قرآن کریم دَپاره ناسخ وی. ددې مثال د خپلوانو دپاره وصیت کول د قرآن څخه په دې آیت سره ثابت دی «كُتِبَ عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ» خودا آیت د نبی ﷺ په دې حدیث سره منسوخ دې ((لا وصية لوارث))

په اولنو دريو صورتونو کښې دَ امت اتفاق دې آخری صورت کښې اختلاف دې

**په حديث مشهور باندې د قرآن په نسخ کښې مذاهب:**

① دَ امام شافعی رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله په نیزپه حدیث دَ قرآن نسخ جائز نه ده

② دَ امام مالك رحمه الله او امام ابوحنیفه رحمه الله په نیزباندې حدیث مشهورسره نسخ دَ قرآن واقع کیږی.

**داول فریق دلائل:** ① زیربحث حدیث د دوی مستدل دې څکه چې په دې کښې نبی کریم ﷺ په صراحت سره فرمائیلی دی چې ((كلامي لا ينسخ كلام الله)) یعنی زما حدیث قرآن نشی منسوخ کولې.

**داول فریق اوداول دلیل څلور جوابونه:** ① دلته دَ کلامی نه مراد کلام اجتهادی دې په کوم سره چه نسخ دَ کلام الله نه شی کیدې.

② دې څخه مراددادې چه زما کلام دَ الله تعالی دَ کلام تلاوت نه منسوخ کوی بلکه حکم ئي منسوخ کوی.

③ دا حدیث پخپله منسوخ دې.

④ په دې روایت کښې یو راوی جبرون بن واقد دې چه ډیر ضعیف بلکه متهم بالکذب دې لهذا دا روایت ناقابل احتجاج دې څکه چه دَ جمهورو مسلك دادې چه سنت مشهوره متاخره سره کلام الله کښې نسخ راتلې شی.

**داول فریق دویم دلیل:** ② په بل حدیث کښې راغلی دی ((اذا روي لكم عني حديث فاعرضوه على كتاب الله تعالى فان وافق الكتاب فاقبلوه والا فردوه))

**داول فریق د دویم دلیل جواب:** دا حدیث ضعیف دې نوقابل استدلال نه دې.

**د دویم فریق دلیل:** د رشته دارانو دپاره د وصیت آیت په ((لا وصية لوارث)) سره منسوخ دې.

**[۱۹۶] دحدیث نسخ په حدیث سره**

۱۹۲ ــ( ) [۵۳] ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ②«إِنَّ أَحَادِيثَنَا يَنْسَخُ بَعْضُهَا بَعْضًا كَنَسْخِ الْقُرْآنِ» "

---

[1] اخرجه الدارقطني في السنن رقم الحديث ۱۰

**ترجمه:** [۱] ابن عمر رضي الله عنه راوي دي چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] زما بعضې احاديث بعضې منسوخه کوي څنګه چې د قرآن بعضې حصې، قرآن منسوخ کوي.

**حل اللغات:** ① يَنْسَخُ: منسوخ کوي.

**تسهيلات:**

**قوله: كَنَسْخِ الْقُرْآنِ:**

**د مذکوره جملې په ترکيب او معنی کښې دوه اقوال:** ① لفظ نسخ دلته مصدر واقع شوې دې کوم چه دَ قرآن طرف ته مضاف دې. ددې اضافت دَمفعول طرف ته دې ترجمه ئې داسې ده چه زمونږ احاديث په خپل مينځ کښې يو بل داسې منسوخ کوي. کنسخ القرآن لکه څنګه چه دا احاديث قرآن لره منسوخ کوي. دَدې ترجمې مطابق دا حديث دَ ماسبق حديث دَپاره ناسخ شي. او به دادَ احنافو اومالکيه دليل جوړشي. ليکن په دې روايت کښې هم يو راوي محمدبن حارث کاذب دې.

② ددې مصدر اضافت دَ فاعل طرف ته دې اوترجمه ئې داسې ده دَ قرآن بعضې حصه بعضې منسوخ کوي.

**[۱۹۷] څلور قسمه احکام او د هغې متعلق هدايات**

> ۱۹۷ـ( )[۵۵] [۱] وَعَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " [۲] «إِنَّ اللَّهَ فَرَضَ فَرَائِضَ فَلَا تُضَيِّعُوهَا، [۳] وَحَرَّمَ حُرُمَاتٍ فَلَا تَنْتَهِكُوهَا، وَحَدَّ حُدُودًا فَلَا تَعْتَدُوهَا، [۴] وَسَكَتَ عَنْ أَشْيَاءَ مِنْ غَيْرِ نِسْيَانٍ فَلَا تَبْحَثُوا عَنْهَا» " رَوَى الْأَحَادِيثَ الثَّلَاثَةَ الدَّارَقُطْنِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ابو ثعلبه خشني رضي الله عنه راوي دي چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] الله تعالی جل جلاله څو فرائض فرض کړي دي نو تاسو هغه مه ضائع کوي (يعني هغه مه پريږدي د هغوئ شرايط او ارکان مه ترک کوي يا دا چې په هغوئ فرائضو کښې ځان ښوونه او ريا، شک اوشبه، غرور او تکبر مه کوي) [۳] او څو څيزونه الله تعالی جل جلاله حرام کړي دي (يعني د هغوئ اختيارول يې ګناه ګرځولي ده) نو تاسو هغه ته نزدې مه ورځئ [۴] او څو حدود يې مقرر کړي دي (مثلاً: قصاص وغيره) نو تاسو د هغوئ څخه تجاوز مه کوي (يعني په هغوئ کښې د خپل طرفه څخه کمي زياتي مه کوي) او د څو څيزونو په باره کښې په هيره سره نه (بلکه قصداً) سکوت اختيار کړي دي (يعني څو څيزونه داسې دي چې د هغه په باره کښې وضاحت نه دي شوې چې هغه حرام دي يا حلال يا واجب دي نو هغه په هغه څيزونو کښې تاسو د خپل طرفه څخه) بحث مه کوي، مذکوره دري سره حديثونه دار قطني روايت کړي دي.

[۱] اخرجه الدارقطني في السنن رقم الحديث ٤٢ من كتاب رضاع

**حل اللغات:** ① فَلَا تُضَيِّعُوهَا: مه ئې ضائع کوئ (یعنی شرائط او ارکان پکښې مه پرېږدئ یا دا چه ریا، تکبر اوغرور وغیره پکښې مه کوئ). ② فَلَا تَنْتَهِكُوهَا: أي: لَا تَقْرَبُوهَا: مه نزدې کیږئ (دغې گناهونو ته)، ③ فَلَا تَعْتَدُوهَا: أي: لَا تَتَجَاوَزُوا: تجاوز مه کوئ، مه ورتیریږئ (ددغې حدودو نه)، ④ فَلَا تَبْحَثُوا: أي: لَا تَفْتِشُوا: بحث پکښې مه کوئ، د یو بل نه پکښې تفتیش او تپوسونه مه کوئ. ⑤ سَكَتَ: أي: تَرَكَ ذِكْرَ أَشْيَاءَ: د بعضې څیزونو تفصیلي ذکر ئې نه دې کړې او دهغې د وجوب اود حرمت او حلت وضاحت ئې نه دې کړې (نو تاسو پکښې توقف کوئ ډېر لټون پکښې مه کوئ).

**د راوي مختصر تعارف:** دَ ده په نوم کښې ډېر اختلاف دې. اکثرو ورته جرثوم وئیلي ابوثعلبه ئې کنیت دې. دَ اسلام په شروع کښې مسلمان شوې وو. په صلح حدیبیه کښې رسول الله ﷺ سره سور وو او په بعیت رضوان کښې حاضر وو. حضور ﷺ هغه هم دَ هغه قبیلې ته دَدعوت په توګه لیګلې وو. دَ هغه په کوشش او محنت سره دَ هغه ټوله قبیله مسلمانان شو.(۳) دَ شام دَ فتح کیدونه پس هم په شام کښې اوسیدو.

**وفات:** په خپل ژوندکښې به ئې اکثر وئیل چه الله تعالی به ما ستاسو په شان په ګیټو مړلو مړلو نه وژنی.هم داسې اوشو یوه شپه ئې مونځ کولو چه دَهغه لور خوب اولیدو چه پلار مې مړشو هغه اوویریدله اوپاسیده چه آواز ئې ورکړو نومعلومه شوه چه مونځ کوی. بیائی لږ ساعت پس آواز ورکړو نو څه جواب ملاو نه شومعلومه شوه چه هم دَسجدې په حالت کښې ترې روح الوتې دې.

**مرویات:** دَهغه نه ۴۰ احادیث نقل دی. په دې کښې په دریو باندې بخاری اومسلم شریف دواړه متفق دی او په یوکښې امام مسلم رحمه الله منفرددې. (۱)

**تسهیلات:**

**نوټ:** حدیث کښې څه مشکل نشته.

(۱) تهذیب الکمال ص۶ ٤٤).(۲) ابوداود فی الجهاد باب ما یؤمر به من إنضمام العسکر وسعته).
(۳) طیبی شرح مشکوة. په یوبل روایت کښې "ثم ارکبوها صحاحا"

# [۲]کِتَابُ الْعِلْمِ

## دعلم (دَفضیلت) بیان

**ددې باب د احادیثو موضوع**: د دې باب احادیث علم، تعلیم، تعلم او د هغې د متعلقاتو او فضیلت او افضلیت په بیان کښې دی نه د ماهیت علم په بیان کښې. ځکه چه په ماهیاتو او حقائق اشیاء کښې غور او فکر کول د دې کتاب موضوع نه ده او نه دا د دې فن کتاب دې. (العینی، التعلیق)

**په کتاب العلم د کتاب الایمان دتقدیم وجه**: بیا د کتاب الایمان د مقدم کولو وجه دا ده چه ایمان راوړل په مکلف باندې د ټولو نه اول فرض وی که علم وی او که عمل وی د هر قسم کمال او امر خیر دپاره د مبداء او منشاء کیدو په وجه باندې ئې ایمان مقدم کړو بیا ئې په اعمالو باندې کتاب العلم په دې وجه مقدم کړو چه په علم باندې د ټولو اعمالو د صحت مدار دې اوس د ابوابو ترمینځه مناسبت هم ښکاره شو. (العینی)

**د علم لغوی معنی**: علم په لغت کښې دانستن ته وائی.

**د علم په اصطلاحی تعریف کښې دوه نظریات**:

① د جمهورو خیال دې چه دَعلم تحدید او تعریف ممکن دې اودَ اوچتې درجې دَ وجې نه دا تعریفات اتلسو پورې رسیږی. دکوم نه چه دَعلم دَ شان دَ اوچتوالی اندازه کیږی

② دبعضې عالمانو نظر دا دې چې دَعلم تعریف یا بالکل نه شی کیدې او یا مشکل ترین څیزدې. چنانچه امام غزالی رحمه الله فرمائی: [نعم تحقیق حقیقته عسیر جدًا] یعنی دَعلم بیخ او حقیقت ته رسیدل ډیر ګران دی. امام رازی رحمه الله فرمائی چونکه علم د اجلي البدیهیات نه دی ځکه دا ناقابل تحدید اوتعریف دې.

**د علم په تعریف کښې پنځه اقوال**: ① امام ابوحنیفه رحمه الله دَعلم تعریف داسې کړې دې: [معرفة النفس مالها وما علیها] په دې تعریف کښې علم فقه او تصوف هم داخل شو.

② ملاعلی قاری رحمه الله دَ علم تعریف داسې کړې دې:

[العلم نور فی قلب المؤمن مقتبس من مصابیح مشکوة النبوة من الاقوال المحمدیة والافعال الاحمدیة یهتدي به الی الله وصفاته واحکامه].

③ علامه بدرالدین عینی رحمه الله داسې تعریف کړې دې:

[العلم صفة توجب تمیزاً لایحتمل النقیض]

④ ماتریدیه دَعلم تعریف داسې کړې دې: [العلم صفة مودعة فی القلب کالقوة الباصرة فی العین والسامعة فی الاذن].

⑤ دَ فلاسفۇ په نيز يو تعريف [حصول صورة الشئ] دې يو تعريف [الصورة الحاصلة عندالعقل] دې يو تعريف [الحاضرعندالمدرك] دې

**د علوم شرعيۀ دوه قسمونه:** دا شرعی علوم بیا په دوه قسمه دی

① **وهبی علم:.** وهبی هغه علوم دی دکوم په حاصلولوکښې چه دَ انسان اکتساب نه وی. دا وهبی علوم بیا په دوه قسمه دی.

(ا) اول هغه چه بغیردَ واسطې دَ وحی په ذریعه حاصل شی. دا علوم النبوة دی.

(ب) او دویم هغه چه په کمال اتباع نبی دَ وجې نه ملاؤشی. دا الهام کشف اوفراست باندې مشتمل علوم دی. دَالهام دَپاره علامات نشته او کشف فراست دَپاره علامات وی.

② **علم کسبی:** کسبی علوم دی دا کسب دَ بشرنه په واسطه دَ بشرحاصلیدونکی علوم دی. کوم ته چه علوم الشرعیات وئیلی شی. په دې کښې یوعلم الاحکام دې په کوم سره چه په مقبول اوغیرمقبول کښې فرق کیږی. که چرې قبلویت ظاهرسره متعلق وی نو دا علم الفقه دې اوکه چرې باطن سره متعلق وی نو دا علم التصوف دې نوعلم تصوف هم په علوم کسبیه کښې داخل دې.

**د حکم په اعتبار سره د شرعی علومو اقسام:**

① بیاچه کوم څیزونه فرض دی دَهغې علم هم فرض دې

② کوم چه سنت دی دَهغې علم سنت دې

③ اوکوم اعمال چه واجب دی دَهغې علم هم واجب دې.

④ کوم څیزونه چه حرام دی دَهغې علم فرض دې

⑤ کوم چه مکروه تحریمی دی دَهغې علم واجب دې

⑥ کوم چه مکره تنزیهی دی دَهغې علم سنت دې.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۱۹۸] دتبلیغ اهمیت

۱۹۸—()[۱] [۱]عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [۲]قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۳]" «بَلِّغُوا عَنِّي وَلَوْ آيَةً، [۴]وَحَدِّثُوا عَنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ وَلَا حَرَجَ، [۵]وَمَنْ كَذَبَ عَلَيَّ مُتَعَمِّدًا، [۶]فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱]حضرت عبد الله بن عمرو رضی الله عنهما راوي دي [۲]چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۳]زما د

---

[۱] ) اخرجه البخاری کتاب أحادیث الأنبیاء/ باب ما ذکر عن بنی إسرائیل (رقم-۳۴۶۱)اخرجه احمد فی المسند:۲/۱۵۹ والترمذی کتاب العلم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الحدیث عن بنی إسرائیل (رقم-۲۶۶۹)

طرف څخه ورسوي که څه هم يو آيت وي [۲] او د بني اسرائيلو څخه چې قصې واوري د خلقو په مخ کښې يې بيان کړي دا ګناه نه ده [۵] او کوم سړي چې قصدا زما طرف ته د دروغو خبره منسوب کړی [۶] هغه ته پکار دي چې خپل ځاي په دوزخ کښې تلاش کړي بخاري

**حل اللغات:** ① بَلِّغُوا: أي: انقلوا إلى النَّاسِ: زما د طرفه ئې خلقو ته اورسوئ. يعنی علوم به زما وی اوخورول ستاسو کاردي زما خبره په مستند طريقه نورو ته اورسوئ ② لَا حَرَجَ: الضِّيقُ وَالْإِثْمُ: څه ګناه او الزام ملامتيا نشته. ③ مُتَعَمِّدًا: په قصد سره. ④ فَلْيَتَبَوَّأْ: جوړ دې کړی. اودې نيسی. ⑤ مَقْعَدَهُ: د اوسيدو ځائې.

**تسهيلات:** قوله: بَلِّغُوا عَنِّي وَلَوْ آيَةً:

**د حديث د حفاظت طرف ته اشاره:** يعنی چه يو آيت ولې نه وی دا زما د طرف نه اورسوئی. قاضی بيضاوی رحمه الله فرمائی چه رسول الله ﷺ د حديث په ځائی د آيت تحديث او ابلاغ ترغيب ورکړو. د قرآن پاك د حفاظت وعده پخپله الله تعالی کړې ده ددې نه باوجود ددې تبليغ واجب دې. نو په دې سره د احاديثو تبليغ په طريقه اولی ثابت شو.

علامه معافی نهروانی رحمه الله فرمائی چه په حديث کښې «آية» راوړلو حکمت دادې چه کله هم څوك حديث اوری نو هغه به د قرآنی آيت په تبليغ کښې وړانديوالي او اهتمام کوی. سره ددې چه آياتونه د تعداد په لحاظ سره کم وی ددې د اهتمام فائده به دا وی چه د رسول الله ﷺ نه نقل شوی آياتونه او احاديث ټوله سرمايه به امت ته اورسيږی. (۱)

**قوله:** وَحَدِّثُوا عَنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ:

**دمذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** يعنی د يهودو او نصاری روايات نقل کولو کښې هيڅ حرج نشته دې. ① شراح فرمائی چه رسول الله ﷺ په شروع کښې د صحابه کرامو د يهودو په کتابونو لوستلو باندې ربنه کړې وه اودهغوی کتابونه وئيل ئی منع کړې وو چه هغه د محرف کيدو د وجې نه د فتنې سبب جوړيدې شی. روستو چه احکام اسلام او قواعد دين ته استحکام ملاؤ شو او صحابه کرامو ته د يهودو د تحريفاتو او دخان نه جوړشوو مضامينو علم اوشو نو حضورپاك د يهودو نه روايت شوی اقوالو او حکاياتو د تحديث اجازت ورکړو. (۲)

② بعض حضرات فرمائی چه حرج د ضيق اوتنګئی په معنی کښې دې اود حرج مطلب دادې چه د يهودو عجيبه او حيرانونکی روايات اوريدو سره په زړه باندې بوج نه دی محسوس کول پکار ځکه چه ددې قسم روايات يهودو سره ډيرزيات دی. (۳)

---

۱) فتح الباري: ۶۱۷/۷

۲) فتح الباري: ۶۱۷/۷عمدة القاري:۶۳/۱۶ارشادالساري:۴۱۴/۷.

۳) فتح الباري: ۶۱۷/۷عمدة القاري:۶۳/۱۶ارشادالساري:۴۱۴/۷.

قوله: وَلَا حَرَجَ:

**د ولاحرج راؤړلو وجه**: بعض شراح فرمائی ((حدثوا)) دَ امر صيغه ده اومفيد وجوب دي. مخاطب به دا لفظ په وجوب باندې محمول کولې شو نو حضورپاك دَدې خودلودَپاره چه دا امر دَ وجوب دَپاره نه دې بلکه دَ اباحت دَپاره دې. په آخره کښې دَ ((ولا حرج)) تصريح اوفرمائيله چه دَ يهودو نه دَ روايت نه کولو کښې هيڅ حرج نشته دې.

خلاصه دا چه دَدې حضراتو په نيز((ولا حرج)) مطلب دادې چه دَ يهودو نه په ترك حديث کښې هيڅ حرج نشته دې اومقصد مخاطب په دې باندې پوهه کول دی چه ((حدثوا)) کښې امر دَ اباحت دَپاره دې. يو قول دادې چه په حديث کښې صرف دَهغه رواياتو دَتحديث اجازت ورکړې شوې دې کوم چه په قرآن مجيد او احاديث صحيحه کښې راغلی دی.

يو قول دادې چه په روايت کښې اسرائيلی اخبار نقل کولو مطلقًا اجازت ورکړې شوې دې. که هغه سنداً متصل وی اوکه منقطع، ځکه چه دَ اسرائيلی رواياتو په اسنادکښې اتصال متعذر دې. دَدې په خلاف احکام اسلام سره متعلق رواياتو په تحديث کښې دَ سند اتصال دَاصل درجه لری او رسول الله ﷺ سره دَ قرب عهد دَ وجې نه دا متعذر هم نه دې.

**د اسرائيلی رواياتوپه بيانولوکښې د فقهاء اقوال**: ① امام مالك رحمه الله ((حدثوا عن بني إسرائيل)) مطلب دا بيان کړې دې: ((المراد جواز التحديث عنهم بما كان من أمر حسن. أما ما علم كذبه فلا)) يعنی دَ حديث مطلب دادې چه دَ اهل کتاب کومې ښه خبرې دی هغه نقل کول جائز دی. خو چه دَ کوم روايت بې بنياده او غلط کيدل معلوم وی نوهغه نقل کول جائز نه دی (١)

② امام شافعی رحمه الله فرمائی: ((من المعلوم أن النبي صلى الله عليه وسلم لا يجيز التحدث بالكذب، فالمعنى حدثوا عن بني إسرائيل بما لا يعلمون كذبه، وأما ما تجوزونه، فلا حرج عليكم في التحدث به عنهم، وهو نظير قوله: إذا حدثكم أهل الكتاب فلا تصدقوهم ولا تكذبوهم)) (٢)

يعنی دا خبره واضحه ده چه رسول الله ﷺ هيڅ کله دَ دروغونقل کولو اجازت نه ورکوی. نو دَحديث معنی داده چه دَ اهل کتاب دکوم روايت دَتکذيب څه ذريعه تاسو سره نه وی نوتاسو هغه روايت کولې شئ، اودَهغوی چه کوم روايات تاسو صحيح ګنړئ دَهغې په نقل کولوکښې هم څه حرج نشته دې. دَدې روايت مضمون دَ رسول الله دَدې روايت په شان دَمعنی دې په کوم کښې چه حضورپاك فرمائيلی: کله چه تاسوته اهل کتاب يو روايت بيان کړی نوتاسو مه دَهغې تصديق کوئ او مه ئې تکذيب.

---

(١) فتح الباری: ٢١٧/٨.
(٢) فتح الباری: ٦١٨/٨

**د اسرائيلي رواياتو درې قسمونه:**

① اول قسم دَهغه رواياتو دې چه په صحيح معنوكښې دَ قرآن اوسنت موافق وی. دَ داسې رواياتو خورونه جائز ده ځکه چه دَ دې صداقت دَ شك نه بالا دې.[١]

② دويم قسم دَ هغه رواياتو دې دکوم مثال چه په قرآن او سنت کښې نه وی مگر دغه روايات دَدې دواړو سره معارض هم نه وی. دغه شان روايات دَ عام اخبار او رواياتو په شان دَ صدق اوکذب دواړو احتمال لری. دا دَعبرت اوترغيب په غرض په دې شرط نقل کول جائز دی چه دا خو نه دَ قضيه مسلمه په توگه پيش کړې شی اونه دَدې نه په څه شرعی حکم باندې استدلال اوکړې شی.[٢]

③ دريم قسم دَهغه رواياتودې چه کتاب اوسنت سره متصادم وی. داسې روايات صرف دَ دروغو په ضمن کښې راځی اودا صرف دَ ابطال او تکذيب په غرض سره پيش کول پکاردی چه دَخلقو په وړاندې دَهغوی کذب محض کيدل ښکاره شی.[٣]

**قوله: فَلْيَتَبَوَّأْ:**

**حديث دَ ځان نه دَ جوړولو سخت وعيد:** دا امر انشاء په معنی دَ خبر دې. يعنی دغه سړی په دوزخ کښې ځان له خپل ځائی جوړکړو. په دې حديث کښې دَ ځان دَ احاديثو جوړولو سخت وعيد راغلې دې. هم دَدې په رڼا کښې علامه ابو محمد جوينی رحمه الله حديث دَ ځان نه جوړ ونکی ته کافر وئيلې دې. ليکن جمهور امت دې ته ډيره لويه گناه وئيلې ده. يعنی کوم سړې چه دادَ ځان جوړولو ته جائز وائی نوبيا خودا کفردې گڼی نه دې. جمهور امت په دې باندې هم متفق دی چه دَ حديث جوړول مطلق ناجائزدی. که هغه په نيکه اراده سره وی اوکه هرقسم اراده سره وی.

**يوه جاهلانه نظريه:** بعضې جاهل صوفيان گڼړی چه دَ ترغيب اوترهيب دَپاره دَ ځان نه حديث جوړول جائزدی. په دې کښې دَ دين فائده ده خلقو ته فائده ده څه نقصان نشته دې.

**د نظريه ترديد:** دين هم په دغه لار راځی چه دَ دين لار وی دَ بې دينئ په لار باندې دين نه راځی. نوکومه فائده چه په دين باندې دَ دروغو تړلوسره حاصله وی هغه به څه فائده وی؟ هغه خو هم نقصان اونقصان دې. بله خبره داده چه اسلام دَ چا فائدې ته نه گوری هغه دې ته گوری چه دې سره څه معامله اوکړې شوه آيا دَدې ښائسته شکل په ځائی اوساتلې شو که وران کړې شو.

[١]) منارالقاری شرح مختصر صحيح البخاری: ٢١٣/٤.
[٢]) المصدرالسابق.
[٣]) المصدرالسابق.

**قوله: مُتَعَمِّدًا:**

**په نبي عليه السلام د دروغو جوړولو دوه صورتونه:**

① دَدې لفظ نه معلومه شوه چه دا دَ كذب عمد دَپاره وعيد دې. كه په غلطئ سره وي يا په كتاب كښې غلطي وي نو هغه دې نه خارج دې.

② بعضې محدثينو ليكلي دي چه متعمداً لفظ په بعضې رواياتو كښې دې او په بعضې كښې دا لفظ نشته دې. لهذا دا وعيد دَ عمداً او غير عمد دواړو صورتونو دَپاره دې.

علامه دارقطني رحمه الله خوتردې پورې ليكلي دي چه په حديث كښې دَمتعمداً لفظ نشته دې خلقو دا زيات كړې دې. (بحواله مقدمه موضوعات كبير)

**د وعيد عموميت:** علامه كرماني رحمه الله ليكلي دي چه دا وعيدعام دې. كه دَ نبي كريم ﷺ په موافقت كښې وي اوكه په مخالفت كښې وي دواړو صورتونوكښې لويه گناه ده.

دَحديث په اوله جمله كښې دَ تبليغ ترغيب وو نوخطره وه چه څوك په جوش كښې راتلوسره بغيرځېو سرونو واقعات بيانول شروع نه كړي. په دې وجه ئې په دې جمله كښې اوفرمائيل تبليغ كوئي خوچه چا بې سند خبرې بيان كړې او په ماباندې ئې دروغ اووئيل نوهغه دې دوزخ ته تلو ته تيارشي.

**[۱۹۹] د نبي كريم ﷺ طرف ته د دروغ منسوب كولو گناه**

۱۹۹—( )[۲] [۱] وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - وَالْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَا [۲]: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۳] "«مَنْ حَدَّثَ بِحَدِيثٍ يَرَى أَنَّهُ كَذِبٌ، [۴] فَهُوَ أَحَدُ الْكَاذِبِينَ»" رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] سمره بن جندب او مغيره بن شعبه رضي الله عنهما راويان دي [۲] چې حضور ﷺ وفرمايل [۳] كوم سړي چې زما طرف ته منسوب كولو سره يو داسې حديث بيان كړي چې د هغه په باره كښې د هغه داخيال وي چې هغه دروغ دي [۴] نو هغه په دروغجنو سړو كښې يو دروغجن دي.

**حل اللغات:** ① حَدَّثَ: بيان كړي. ② يَرَى: داصيغه مجهول دَ يظن په معنى كښې ده. هم مجهول استعماليږي. اودَ رؤيت نه مراد رؤيت قلبي دې.

**دراوي مختصر تعارف:** نوم سمرة كنيت ابوسعيد اودَ پلار نوم ئې جندب بن بلال وو. پلار ئې په ماشوموالي كښې وفات شوې وو. مور ئې دې راوستو اومدينې ته راغله او انصارو ته ئې دَنكاح پيغام وركړو په دې شرط چه څوك ماسره نكاح كوي نوهغه به زما اوزما دَ خوئ پالنه كوي. په دې شرط باندې مرلى بن شيبان بن ثعلبه سره نكاح اوشوه.

[۱] ) اخرجه مسلم باب وجوب الرواية عن الثقات، وترك الكذابين (رقم-۱) والترمذي كتاب العلم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فيمن روى حديثا وهو يرى أنه كذب (رقم-۲۶۶۲) وابن ماجة كتاب في الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب من حدث عن رسول الله صلى الله عليه وسلم حديثا وهو يرى أنه كذب(رقم-۳۹)اخرجه احمد في المسند:۱۴/۵

سمره رضی الله عنه په جنګ بدر کښې شريك شوې نه وو. دَ کم عمرئ په وجه کله چه نبی کريم ﷺ يوهلك ته اجازت ورکړو نوده وئيل چه زه خودَ ده نه طاقتوريم. په پرخونوکښې حضرت سمره رضی الله عنه هغه راسملولو نو په احد او بيا دې نه پس په ټولو عزواتوکښې شرکت ئې کولو. په عهدنبوی ﷺ کښې هم په مدينه کښې وو.

**وفات**: ۵۴هـ کښې وفات شو اودَ وفات کيدو واقعه ئې داسې وه چه بدن ئې يخ شو نودَ علاج دَ پاره به ئې دَ ګرمو اوبوپه ديګ کينولو هم په دې کښې يوځل په خوټکيدلو اوبو کښې پريوتلواو وفات شو.

طبقات ابن سعدکښې ليکلی دی چه په يوه موقعه کله حضرت ابوهريره رضی الله عنه، ابومحذوره رضی الله عنه او سمره رضی الله عنه دا دريواړه حضور ﷺ سره ناست وو نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه په تاسوکښې به يوکس په اُور کښې سوزی اومری به.نودَحضور پاك ﷺ دا پيشنګوئی دَحضرت سمره رضی الله عنه په باره کښې پوره شوه.(١)

**مرويات**: دَ هغه ١٢٣ احاديث نقل دی. بخاری اومسلم کښې په دوو باندې اتفاق دې. يعنی دواړو نقل کړی دی بخاری کښې يو او مسلم شريف کښې څلور روايتونه منفرد دی.

**قوله**: وَالْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ:

**د حضرت مغيره بن شعبه رضی الله عنه حالات**: نوم ئې مغيره کنيت ابوعبدالله، دَ پلار نوم ئې شعبه بن ابی عامر وو. (٥) دَ عزوه خندق په کال يعنی ۵ هـ کښې مسلمان شو اوهم په دغه کال ئې هجرت اوکړو او مدينې ته ئې تشريف يوړو راغلو. په حديبيه اوډيرو عزواتو کښې ورته دَشرکت شرف حاصل شوې وو.حضور ﷺ په يوخاص لښکرکښې هغه او ابوسفيان رضی الله عنه طائف ته ليګلې وو په دې کښې هغوی ډير په بهادرئ سره دښمن ته ماتې ورکړه.

وائی چه هغوی دَ نبی پاك ﷺ بدن مبارك په قبرکښې دَ کيخودو په وخت خپله ګوته غورزولې وه. حضرت علی رضی الله عنه اوفرمائيل چه دا راوباسه. هغه دَ رسول الله ﷺ قدم مبارك سره لاس اولګولو او باهر راووتلو نودَ رسول الله ﷺ نه جداکيدونکې هم دا آخری صحابی رضی الله عنه وو(٧).

ډير زيات پوهه صحابی وو. حضرت قبيصه بن جابر وائی چه زه دَ ډيرې مودې پورې مغيره رضی الله عنه سره ووم هغه دومره دَ پوهې سياست سړې وو. که دَ ښار اته دروازې وی او په هغې کښې په يوه کښې هم تلل ګران وی خو مغيره رضی الله عنه به دَ اته واړونه راوځی. (٨)

**وفات**: ۵۰هـ کښې چه کله په کوفه کښې دَ طاعون وبا خوره شوه نو په هغې کښې وفات شو هغه وخت دَ هغوی عمر ٧٠ اويا کاله وو. (٢)

---

(١) طبقات ابن سعد ٢٢/٦، اسدالغابة ٣٥/٢)

(٢) ابن اثير ١٨٢/٣). (٢)تهذيب الكمال٣٨٥). (٣) مظاهرحق جديد ٥١٣/٤. (٤)مظاهرحق جديد ٥١٣/٤

**مرويات:** دَ دوی نه دَ روايتونوشمير ۱۳۰ دي. په دې کښې ۹ متفق عليه دی. په يوکښې امام بخاری رحمه الله او په ۲ کښې امام مسلم رحمه الله منفرد دی.

**تسهيلات:**

**قوله: أَحَدُ الْكَاذِبِينَ:**

**د کاذبين په صيغه کښې دوه احتمالات:**

① دادَ تثنيه صيغه منلې ده. چه يو دروغژن خو هغه دې چا چه دروغ جوړکړې دې او دويم دروغژن دا سړې دې څوك چه ئې بيانوی چه دَ ځان نه جوړونکی ملګر تياکوی.

② دادَ جمع صيغه ده اوهم دا راجح ګرځولې شوې ده. يعنی په نورو کذابينوکښې يو دا سړې هم دې ځکه چه دې هم دَهغوی دَ افتراء تائيد کوي او نقل کوی ئې.

**دموضوعی حديث بيانولودوه صورتونه:** ① موضوعی حديث بيانول حرام دی.

② که موضوعی حديث دې دپاره بيانوی چې دهغې وضع بيان کړی نودا جائز دې په موضوعاتوباندې علماؤ ډير کتابونه ليکلی دی.

**[۲۰۰] نبی عليه السلام د علم تقسيمونکې**

۲۰۰–()[۳] ۱ وَعَنْ مُعَاوِيَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ۲ «مَنْ يُرِدِ اللَّهُ بِهِ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّينِ، ۳ وَإِنَّمَا أَنَا قَاسِمٌ وَاللَّهُ يُعْطِي». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1]

**ترجمه:** ۱ معاويه رضي الله عنه راوي دي رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل ۲ د کوم سړي د پاره چې الله تعالی جل جلاله د خير (او نيکي) اراده اوکړو نو هغه ته د دين پوهه ورکوي ۳ او زه (علم) تقسيمونکي يم ورکونکي خو الله تعالی جل جلاله دي. بخاري او مسلم

**حل اللغات:** ① يُفَقِّهْهُ: أَيْ: يَجْعَلْهُ عَالِمًا: د احکامو داسرار د علم نوم فقه دي. لهذا فقاهت هغه قابليت او پوهې ته وئيلې کيږی چې دَ هغې په ذريعه انسان د غير حاصل معلوماتو استخراج کولې شی. دا يو عظيم نعمت دې ② قَاسِمٌ: تقسيمونکې، يعنی دوحی د علومو زه قاسم يم ③ يُعْطِي: أَيْ: الْفَهْمَ فِي الْعِلْمِ: يعنی الله تعالی ورکونکې د فهم دې، ددې مطلب دادې چې بيا الله تعالی انسانانو ته درجه په درجه فهم او ادراك هم عطا کوی. نو څوك د اعلی درجې ذهين وی او څوك متوسط او څوك د ادنی درجې وی.

**دراوي مختصر تعارف:** نوم معاويه ابوعبدالرحمن کنيت دَ پلارنوم ابوسفيان او دَ مور نوم ئې هنده ووادَ جاهليت په زمانه کښې هم دَ دوی خاندان ممتازوو. دَ مکې دَ فتح په

[1] ) اخرجه البخاری کتاب العلم/باب: من يرد الله به خيرا يفقهه فی الدين (رقم-۷۱) ومسلم کتاب الزکاة/باب النهی عن المسألة(رقم-۱۰۰ - (۱۰۳۷) والترمذی کتاب العلم عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب إذا أراد الله بعبد خيرا فقهه فی الدين (رقم-۲۶۴۵) وابن ماجة کتاب فی الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل العلماء والحثّ علی طلب العلم(رقم-۲۲۰) ومالک کتاب وقوت الصلاة/باب جامع ما جاء فی أهل القدر(رقم-۸)اخرجه احمد فی المسند: ۹۲/٤

ورځ حضرت امیرمعاویه ﷛ او د هغه پلار حضرت ابوسفیان ﷛ دواړه مسلمانان شوي وو. د بعضې روایتونو نه معلومیږی چه د صلح حدیبیه په زمانه کښې په امیر معاویه ﷛ کښې د اسلام حقانیت راغلې وو لې د خاندان د ویرې نه ئې اظهار نه کولو. ړومبې روایت ډیر قوی دې. بیا په غزوه حنین او طائف کښې رسول الله ﷺ سره وو. د حنین په جنګ کښې رسول الله ﷺ د مال غنیمت نه هغه ته سل اوښان ۴۰ اوقیه سره زر یا سپین زرور کړه. (۲) حضرت حسن بن علی ﷛ ۴۰ﻫ کښې خلافت هغه ته حواله کړو دې نه پس هغه ۱۹ کاله اودرې میاشتې حکومت اوکړو په کوم کښې چه ډیرې علاقې فتح شوې.

**وفات**: رجب ۶۰ﻫ کښې ۷۵ کالو په عمر کښې هغه ته د ګوزن بیماری اوشوه. په آخری ورځو کښې به ئې فرمائیل چه افسوس زه د قریشو یو عام سړې وې او حکومت وغیره مې نه کولو. هغوی سره د رسول الله ﷺ څادر قمیص څه ویښته او څه نوکونه مبارك وو. هغه نصیحت کړې وو چه د حضور ﷺ په څادر قمیص او ازار کښې ماکفن کړئی. زما په پوزه او د سجدې په اندامونو باندې د رسول الله ﷺ ویښته مبارك او نوکونه مبارك کیږدئی. کیدې شی چه الله تعالی د دې په برکت زما ښښنه اوکړی.(۳) ضحاك ﷫ جنازه کړې او په دمشق کښې دفن کړې شو.

**مرویات**: د احادیثو په کتابونو کښې د هغه نه ۱۶۳ روایات ملاویږی. ۴ بخاری او مسلم دواړه کښې دی ۴ کښې بخاری او ۵ مسلم منفرد دې.

**تسهیلات**:

**قوله**: يُفَقِّهْهُ فِي الدِّيْنِ:

**د مذکوره مضمون تائید**: د پورتنی حدیث مضمون د نورو روایتونو نه هم ملاویږی مثلاً شرح السنة کښې حضرت سفیان ثوری ﷫ دا قول نقل دې چه ماته د طالب علم نه غوره بل څیزنه معلومیږی. په یوروایت کښې دی الله تعالی چه کله یوبنده سره ښیګړه کول غواړی نو په هغه کښې درې صفتونه پیداکوی:

① د دین پوهه ② د دنیانه ویزاره کیدل ③ په عیبونو باندې نظر.

**د حدیث مطلب**: د حدیث شریف حاصل دادې چه الله تعالی کوم سړی سره د ښیګړې معامله کول غواړی نو هغه ته د دین په معامله کښې ژور نظر او ډیره پوهه ورکوی. هم یوحدیث وی خو د هغې په فهم کښې مختلف خلق وی بعضې د هغې صرف ظاهر مطلب ګڼړی بعضې د هغې ژوروالی ته رسی او په سوونو مسئلې ترې راوباسی. غرض دادې چه چاته په دین کښې پوهه حاصله شی هغه به ډیر خوش نصیب وی.

**اشکال**: په دې حدیث کښې دا معلومیږی چه خیر او نیکی منحصر دی "تفقه فی الدین" والا ګې یعنی په فقهاؤ کښې سره د دې چه د خیر امور په غیرفقهاؤ کښې هم موندلې شی.

**د اشکال دوه جوابونه:** ① په خیراً کښې تنوین دَ تعظیم دَ پاره دې مطلب دا چه الله تعالی چاسره دَ ډیر خیر معامله کول غواړی نو هغه ته تفقه فی الدین ورنصیب کړی.
② دادې چه په خیراً کښې تنوین هم دَ تنکیر دَ پاره دې دلته دا کلام دَ تنزیل الناقص بمنزلة المعدوم دَ قبیل نه دې. مطلب دادې چه سره دَ دې چه غیرفقهاؤسره هم ښیګړه وی خو هغوی دَ فقهاؤ په مقابله کښې دومره ناقص وی لکه چه هغه کالعدم وی.

**قوله: وَإِنَّمَا أَنَا قَاسِمٌ:**

**دعلم تقسیمول:** زه علوم تقیسموم. او الله تعالی هر انسان ته دهغې د پوهیدو فهم ورکوی. ددې حدیث پاك تعلق د علوم نبوت دَ تقسیم سره دې. هم دا وجه ده چې داحدیث محدثین په کتاب العلم کښې راوړی.

**[۲۰۱] دجاهلیت د زمانې غوره د اسلام غوره دی**

۲۰۱-[۳] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " «النَّاسُ مَعَادِنُ كَمَعَادِنِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ، [۳] خِيَارُهُمْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ خِيَارُهُمْ فِي الْإِسْلَامِ [۴] إِذَا فَقِهُوا» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] ابو هریره ﷛ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] سړي کان دي څنګه چې د سرو زرو او سپینو زرو کان وي، [۳] کوم خلق چې په زمانهٔ جاهلیت کښې بهتر وه هغه په اسلام کښې هم بهتر دي [۴] څه وخت چې په دین پوه شي. مسلم

**حل اللغات:** ① مَعَادِنُ: جمع د مَعْدِن ده، او معدن کان ته وائی، دلته ترې د ښو اخلاقو والا خلق مراد دی. ② خِيَارُهُمْ: غوره، بهترین، ③ فَقِهُوا: أَيْ: إِذَا اسْتَوَوْا فِي الْفِقْهِ: یعنی پوهه د علم پکښې پیدا شی.

**تسهیلات:**

**قوله: النَّاسُ مَعَادِنُ:**

**دخوئی خصلت په اعتبار سره د خلقو اختلاف:** یعنی څنګه چه دَ زمکې په کان کښې سره زر وی، سپین زر وی، تانبه، اوسپنه، زمرد او جواهرات وغیره وی. دغه شان انسانان هم دَ خپلو ښواخلاقو په وجه یو بل نه مختلف وي. دَ انسان ښه اخلاق، شجاعت، مروت، سخاوت، علم، حیاء، ذکاوت او ذهانت وغیره دی.

**قوله: خِيَارُهُمْ:**

**په اسلام راوړلو سره دجاهلیت د دور فضیلت زیاتیدل:** یعنی اسلام قبلولو سره نسبی اوچتوالې کم یا ختمیږی نه بلکه په جاهلیت کښې چه دَهغه کوم نسبی خاندانی اوچتوالې اوشرافت وو اسلام قبلولوسره که چرې فقاهت حاصل کړی اوعالم جوړشی نوهغه اوچتوالې او لوئی والې نور هم زیاتیږی. څکه چه په حدیث کښې دی [الإسلام یزید الشریف شرفًا] اسلام خو انسانی شرافت زیاتوی.

**قوله: إِذَا فَقِهُوا:**

**فضيلت سره د فقاهت شرطيت**: خودا فضيلت او اوچتوالي هغه وخت دې کله چه په اسلام کښې فقاهت حاصل کړی. که يو دَ اوچت خاندان سړی دَ اسلام قبلولو نه پس علم دين او فقاهت حاصل نه کړو او بل دَ کمې درجې والا انسان اسلام ته راتلوسره علم فقه حاصل کړو نودَ دغه اوچت خاندان والا نه به دغه کم خاندان والا اوچت وی ځکه چه شرط فقاهت دې. يعنی دا ملکات پټ وو اسلام دا راښکاره کړل خو شرط دا دې چه دغه انسان دَ تعليم په کالی سره ځان ښکلې کړی.

**د سرواوسپينوزرو کانونو سره د تشبيه وجه**: په دې حديث کښې سرو زرو او سپينو زرو سره دَ انسان خوبيانو لره تشبيه ورکړې شوې ده په کوم سره چه اشاره ملاويږی لکه څنګه چه دَ دغه پټو خزانودَ راويستلودپاره دَ محنت ضرورت وی دغه شان دَ انسان خوبيانې راښکاره کولودپاره هم محنت کول ضروري دي. دارنګ بل سره او سپين زر په اور کښې ويلې کيدو سره محنت برداشت کړی نودَ کالی جوړيدو قابل شی. دغه شان انسان له هم په علمی کمالاتو کښې محنت کولوسره خپلې خوبيانې راښکاره کول پکاري دي. دې حديث هرانسان ته دَ احساس کمترئی نه دَ بچ کيدو تعليم ورکړې دې.

**[۲۰۲] دوه قسمه خلقو سره غبطه کول**

۲۰۲-()[۵] [۱] وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«لَا حَسَدَ إِلَّا فِي اثْنَتَيْنِ: [۳] رَجُلٍ آتَاهُ اللَّهُ مَالًا فَسَلَّطَهُ عَلَى هَلَكَتِهِ فِي الْحَقِّ، [۴] وَرَجُلٍ آتَاهُ اللَّهُ الْحِكْمَةَ فَهُوَ يَقْضِي بِهَا وَيُعَلِّمُهَا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [۱] ابن مسعود رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د دوو خلقو په باره کښې حسد کول صحيح دي [۳] ① يو خو هغه سړي چې الله جل جلاله مال ورکړي او بيا په حقه لاره کښې د خرڅ کولو توفيق ورکړي [۴] ② هغه سړي چې الله جل جلاله علم ورکړي او هغه د هغه علم مطابق حکم کوي او نورو ته يې هم ورښايي. بخاري مسلم

**حل اللغات**: ① لَاحَسَدَ: وَهُوَ تَمَنِّي زَوَالِ نِعْمَةِ أَحَدٍ وَانْتِقَالِهَا إِلَيْهِ: د غير د نعمت د زوال تمنا کول چه دغه دې ماته ملاؤ شی دې ته حسد وائی. ② فَسَلَّطَهُ: أَيْ: وَكَّلَهُ اللَّهُ وَوَفَّقَهُ: مسلط اومقرر ئې کړی يعنی الله تعالی ورته په حق لار کښې دخرچ کولو توفيق ورکړی. ③ هَلَكَتِهِ: أَيْ: إِنْفَاقِهِ وَإِهْلَاكِهِ: هلاکولو نه مراد خرچ کول دی او هلاکول ئې ورته ځکه اووئيل چه په حق لار کښې ئې بيخی ختم کړی او هيڅ ورسره پاتې نه شی. ④ الْحِكْمَةَ: وَهِيَ إِصَابَةُ الْحَقِّ بِالْعِلْمِ وَالْعَمَلِ: حق ته رسيدل سره دعلم اوعمل

---

[۱] ) اخرجه البخاری کتاب العلم /باب الاغتباط فی العلم والحکمة(رقم-۷۳) ومسلم کتاب صلاة المسافرين وقصرها /باب فضل من يقوم بالقرآن، ويعلمه، وفضل من تعلم حکمة من فقه، أو غيره فعمل بها وعلمها(رقم-۲۶۸ - (۸۱۶)اخرجه احمد فی المسند:۴۳۲/۱

نه، دې ته حکمت وائی یعنی ددین د احکامو علم اوپه هغې باندې عمل.

**تسهیلات:**

**قوله:** قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا حَسَدَ إِلَّا فِي اثْنَتَيْنِ:

حضرت عبدالله بن مسعود ﷛ فرمائی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه صرف د دوو سړو په خصلتونو باندې رشك کیدل پکار دی.

**د حسد په مراد کښې دوه احتمالات:** ① په حدیث کښې،، حسد،، حقیقی معنی کښې نه دې. بلکه د،،غبطه،، په معنی کښې دې.ددې دلیل دا دې چه امام بخاری ﷬ هم دا روایت په،،فضائل القرآن،، کښې د حضرت ابوهریره ﷛ نه هم روایت کړې دې چه د هغې الفاظ دا دی.((**لاحسد إلا فی اثنتین: رجل علمه الله القرآن، فهو یتلوه آناء اللیل و آناء النهار، فسمعه جار له، فقال: لیتنی أوتیت ما أوتی فلان فعملت مثل ما یعمل**))[1] دا الفاظ په دې خبره باندې دلالت کوی چه دلته،،حسد،، مراد نه دې په کوم کښې چه د بل کس د نعمت زوال مطلوب وی.بلکه غبطه مراد ده.چه په دې کښې د زوال نه بغیر د هغه د نعمت خپل خان دپاره دحصول تمنا او خواهش کیږی.

② ،،حسد،، پخپله حقیقی معنی کښې دی. خو په دې صورت کښې به استثناء منقطع وی. او مطلب به دا وی چه حسد خو په هیڅ صورت کښې هم صحیح نه دې.البته دا دوه خصلتونه محموددی.چه په دې کې هم حسد نشته.نوپه هیڅ څیز کښې حسد مه کوئ.([2])

**قوله:** رَجُلٌ آتَاهُ اللّٰهُ مَالًا فَسُلِّطَ عَلَى هَلَكَتِهِ فِي الْحَقِّ:

**دالله تعالی په لارکښې مال خرچ کونکې مالدار:** په دې روایت کښې،،سلطه،، دې.او د ابوذر په روایت کښې ،،سُلِّط،، دې.،،هلکة،، په فتحې د هاء او لام سره دې. د دولت مندو عام طور باندې دا حال وی.چه دهغه دولت د هغه په زړه باندې خور (او چاپیره) وی.خو ددې سړی دا کیفیت بیان کړې شوې دې.چه الله تعالی څنګه ده ته مال ورکړې دې.دغه شان نې په حق لارد کښې ده ته د خرچ کولو توفیق هم ورکړې دې.

**په حق لاره کښې دټول مال خرچ کولوحکم:** ددې خائې نه یوه خبره بله هم معلومه شوه.چه که الله تعالی یوکس ته مال ورکړی.او هغه ټول په ټوله په حق لاره کښې خرچ کړی.نو دې ته به اسراف نشی وئیلې.

**اشکال:** شبه داده چې حسد خو شرعًا جائز نه دې نو په دې دوؤ څیزونو کښې ددې اجازت ورلې ورکړې شوې دې؟

[1] صحیح البخاری(۲\۷۵۱) کتاب فضائل القرآن، باب إغتباط صاحب القرآن. رقم(۵۰۲۶)_

[2] فتح الباری(۱\۱۶۷)-

**داشكال دوه جوابونه:** ① دا كلام د فرض او تقدير به طور دې چې حسد په هيڅ ځيز دې جائز نه دې. خو دا دوه نعمتونه داسې دی كه فرض كړه چې چرې حسد جائز وې نو په دې دوؤ ځيزونو كښې به جائز وو. خو حسد يوځائې كښې هم جائز نه دې نو په دې دوؤ كښې هم جائز نه دې. ځينو دا هم وئيلى دى چې دا دوه خصلتونه دومره لوې دى چې په دې كښې حسد كول هم جائز دى. گويا كه دا دوه ځيزونه د حسد د عامې قاعدې څخه مستثنى دى.

② دلته په دې حديث پاك لفظ د حسد راغلې دې. خو دا د غبطې په معنى استعمال شوې دې. په دې جواب باندې دا اعتراض كيديشى چه كه چرې د حسد څخه مراد غبطه او پسخيدل وو نو بيا صرف په دې دوؤ ځيزونو كښې د پسخيدلو داجازت څه مطلب دې؟ هركله چې پسخيدل يو جائز امر دې نو بيا په هر ځيز كښې پكار دې؟

**[٢٠٣] د مرگ څخه روسته د درې اعمالو ثواب جارى پاتې كيدل**

٢٠٣-()[٦] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ؟ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "«إِذَا مَاتَ الْإِنْسَانُ انْقَطَعَ عَنْهُ عَمَلُهُ إِلَّا مِنْ ثَلَاثَةِ أَشْيَاءَ [٣]: صَدَقَةٍ جَارِيَةٍ، أَوْ عِلْمٍ يُنْتَفَعُ بِهِ، أَوْ وَلَدٍ صَالِحٍ يَدْعُو لَهُ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1]

**ترجمه:** [١] ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] هركله چې انسان مړشي نو د هغه د عمل سلسله د هغه څخه پرې شى خو د دريو ځيزونو د ثواب سلسله باقي وي [٣] ① صدقه جاريه ② علم چې د هغه څخه نفع حاصليږي ③ صالح اولاد چې د مرگ څخه وروسته د هغه د پاره دعا كوي. مسلم

**حل اللغات:** ① انْقَطَعَ: يَعْنِي لَا يَصِلُ إِلَيْهِ أَجْرٌ وَثَوَابٌ مِنْ شَيْءٍ مِنْ عَمَلِهِ: دعمل سلسله ئې ختمه شي يعنى دهغه دعمل اجر او ثواب هغه ته نه ملاويږى. ② يُنْتَفَعُ: چه نفع او فائده ترې اخستلې شى (مثلا درس تدريس، تصنيف اوتاليف او د علم نشر واشاعت وغيره). ③ يَدْعُو: چه دعا ورله غواړى.

**تسهيلات:**

**قوله: إِلَّا مِنْ ثَلَاثَةِ:**

**د ثواب په اعتبارسره درې جارى پاتې كيدونكې اعمال:** دنيا دَعمل كور دې او آخرت دَ بدلې كور دې. انسان چه تركومې پورې په دنياكښې ژوند تيروى نودَ هغه ښه او بدعمل جارى وى. ليكن كله چه انسان مړشى دَ هغه دَعمل سلسله ختمه شى. او درې قسمه

[1] ) اخرجه مسلم باب الوصية بالثلث /باب ما يلحق الإنسان من الثواب بعد وفاته(١٤ - (رقم-١٦٣١) والترمذى كتاب الأحكام عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب في الوقف (رقم-١٣٧٦) وابوداود كتاب الصيد/باب ما جاء فى الصدقة عن الميت (رقم-٢٨٨٠) والنسائى كتاب الوصايا/ فضل الصدقة عن الميت(رقم-٣٦٥١)اخرجه احمد فى المسند:٣٧٢/٢

اعمال داسې دی چه دَ مرګ نه پس هم دَ هغې اعمالو سلسله جاری وی.

① **صدقه جاریه**: صدقه جاریه مثلاً یو سړې زمکه وقف کړی یا کوهې یا تالاب تیار کړی اووقف ئی کړی. اوس دَ هغه دَ مرګ نه پس خلق دَدغه څیزونونه فائده اخلی نودَهغې ثواب مرحوم ته رسیږی.لکه مثلاً څوک جمات جوړ کړی یا کوهې اوباسی یا هسپتال جوړ کړی یا مدرسه جوړه کړی نوترڅو پورې چې خلقو ته ددې څخه فائده حاصلیږی ده ته ثواب ملاویږی اګرکه دې په قبر کښې وی.

② **علم نافع**: علم نافع دې یعنی دَ یو عالم باعمل انتقال اوشی په ژوندون کښې هغه مخلوق خدا ته په علم دین سره فائده رسوله او ثواب ئی ګټلو. کله چه وفات شو نوشاته ئی علمی ذخیره پریخوده یا په خپلو تصنیفاتو، تقریراتو او تحریراتو سره اویا دَ قابل قدر شاګردانو په ذریعه یا دَدینی کتابونو دَ وقف کولو په ذریعه اویا خپل اولاد ته علم خودلو سره دَعلم نافع ذخیره خپل شاته پریخوده او دَهغې فائده دَ وفات نه پس هغه ته ملاویږی.الله تعالی دې زما احقرشاه فیصل تالیفات اوتراجم هم په خپل دربار کښې قبول کړی اود دې ثواب تې ماته د مرګ څخه روسته هم رارسوی.امین (تاسو هم آمین اووایې.جزاکم الله)

③ **نیک اولاد**: یو سړې پخپله مړشی او شاته نیك صالح اولاد پریږدی اوهغوی دَخپل مرحوم والدینودَپاره دعاګانې کوی تلاوت کولوسره ایصال ثواب کوی،

**قوله**: أَوْوَلَدٍصَالِحٍيَدْعُولَهُ:

**دَ نیک اولاد دَ قید فائده**: ابن حجر مکی رحمه الله فرمائی دَ صالح نه مراد دلته مؤمن دې. علماء فرمائی دَ اولاد سره دَ صالح قیدل دَ دې دپاره لګولې شوې دې چه خامن راوچتول پکار دی چه هغوی هم نیکان جوړشی. علماء فرمائی که هلك غیرصالح هم وی اوهغه دعااوکړی نوبیاهم څه فائده ورکولې شی. بعضې علماؤ په ولد صالح کښې یوه عجیبه نکته طرف ته اشاره کړې ده چه مور پلار له پکاردی چه خپل اولاد نیکان جوړ کړی نوهله به هغوی ته فائده وی.

## [۲۰۴]دعلم لټون او د جنت لار

۲۰۴-(۱)[۷] ۱ وَعَنْهُ،قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«مَنْ نَفَّسَ عَنْ مُؤْمِنٍ كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ الدُّنْيَا ۳ نَفَّسَ اللّٰهُ عَنْهُ كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ. ۴ وَمَنْ يَسَّرَ عَلَى مُعْسِرٍ يَسَّرَ اللّٰهُ عَلَيْهِ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ.

[۱] اخرجه مسلم كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب فضل الاجتماع على تلاوة القرآن وعلى الذكر(رقم-۳۸-۲۶۹۹) وابوداود كتاب الأدب/باب فى المعونة للمسلم(رقم-۴۹۴۶) والترمذى كتاب القراءات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۹۴۵) وابن ماجة كتاب في الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل العلماء والحث على طلب العلم(رقم-۲۲۵) اخرجه احمد فى المسند:۲/۲۵۲

⑤وَمَنْ سَتَرَ مُسْلِمًا سَتَرَهُ اللَّهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ. ⑥وَاللَّهُ فِي عَوْنِ الْعَبْدِ مَا كَانَ الْعَبْدُ فِي عَوْنِ أَخِيهِ. ⑦وَمَنْ سَلَكَ طَرِيقًا يَلْتَمِسُ فِيهِ عِلْمًا سَهَّلَ اللَّهُ لَهُ بِهِ طَرِيقًا إِلَى الْجَنَّةِ. ⑧وَمَا اجْتَمَعَ قَوْمٌ فِي بَيْتٍ مِنْ بُيُوتِ اللَّهِ يَتْلُونَ كِتَابَ اللَّهِ وَيَتَدَارَسُونَهُ بَيْنَهُمْ، إِلَّا نَزَلَتْ عَلَيْهِمُ السَّكِينَةُ، ⑨وَغَشِيَتْهُمُ الرَّحْمَةُ وَحَفَّتْهُمُ الْمَلَائِكَةُ، ⑩وَذَكَرَهُمُ اللَّهُ فِيمَنْ عِنْدَهُ. ⑪وَمَنْ بَطَّأَ بِهِ عَمَلُهُ لَمْ يُسْرِعْ بِهِ نَسَبُهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ①ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ②كوم سړي چې د دنيا په سختيو او تنگيو كښې د يو مسلمان يوه سختي او تنگي لرې كړي ③نو الله تعالى به د قيامت په ورځ د هغه سختي او تنگي لرې كړي ④او چا چې په يو مسلمان تنگدست آسانتيا وكړه الله تعالى به دهغه سره آسانتيا وكړي په دنيا او آخرت كې ⑤وچاچې د يو مسلمان پرده پوشي وكړه الله جل جلاله به په دنيا او آخرت كښې د هغه پرده پوشي وكړي ⑥او الله جل جلاله تر هغه وخته پورې د يو سړي مدد كوي ترڅو پورې چې هغه د خپل مسلمان ورور مدد كوي ⑦او كوم سړي چې د علم په تلاش كښې په يوه لاره ځي نو الله جل جلاله په هغه د جنت لار آسانوي ⑧او هركله چې يو جماعت د الله جل جلاله په كور (مسجد يا مدرسه) كښې قرآن وايي او نوروته يي ورښايي نو په هغوئ د الله جل جلاله د طرف څخه تسكين نازليږي ⑨رحمت الهي په هغوئ خوريږي او فرښتې په هغوئ چارچاپيره راتاويږي ⑩او الله جل جلاله د هغه جماعت ذكر (په فرښتو كښې) كوي چې هغه سره دي ⑪او چا چې په عمل كښې تاخير اوكړو په آخرت كښې به د هغه نسب هيڅ په كار نه راځي. مسلم

**حل اللغات:** ①نَفَّسَ: أَيْ: فَرَّجَ: لرې كړي، ②كُرْبَةً: أَيْ: أَيَّ حَزَنٍ وَعَنَاءٍ: څه مصيبت غم او تكليف، ③يَسَّرَ: أَيْ: سَهَّلَ: آساني اوكړي، ④مُعْسِرٍ: أَيْ: فَقِيرٍ: تنگدسته يعني فقير، محتاج، ⑤عَوْنِ: أَيْ: فِي قَضَاءِ حَاجَتِهِ: مدد يعني دهغه په حاجت پوره كولو كښې مشغول وي، ⑥سَلَكَ: أَيْ: دَخَلَ أَوْمَشَى: روان شي، لاړ شي، ⑦يَلْتَمِسُ: لټوي، تلاش كوي، ⑧السَّكِينَةُ: هِيَ الْوَقَارُ وَالْخَشْيَةُ: تسكين يعني وقار او اطمينان د زړه (په زړه كښې تياره ختمه شي نور پكښې پيدا شي چه ذوق او شوق ورسره نور هم زيات شي) ⑨حَفَّتْهُمْ: أَيْ أَحَاطُوا بِهِمْ، أَوْطَافُوا بِهِمْ: دوى نه چار چاپيره تاويږي (تر آسمانه پورې، ددوى قرآن او درسونه آورى او د آفاتو بلياتو نه ددوى حفاظت كوى). ⑩بَطَّأَ: په معنى د روسته والى سره، أَيْ: مَنْ أَخَّرَهُ: چه روسته ئې كړو هغه لره، د بَطَّأَ ضد التَّعَجُّلِ راځي.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَمَنْ سَلَكَ طَرِيقًا يَلْتَمِسُ فِيهِ عِلْمًا سَهَّلَ اللَّهُ لَهُ بِهِ طَرِيقًا إِلَى الْجَنَّةِ.

**دمذكوره جملې په مفهوم كښې درې اقوال:** ① په دې حديث شريف كښې دَ علم دَ طلب يوخاص فضيلت طرف ته اشاره كولې شي كوم سړي چه دَعلم دَ حاصلولودَ پاره خپل خور وطن او خپلوانونه جدا شي عيش او آرام پريږدي اوځي نودهغه دَ دې رياضت او مشقت په وجه دَ هغه دَ پاره دَ جنت لار آسانولې شي.[٢]

④ چه کله طالب علم مصیبتونه اوتکلیفونه اوزغمل نوالله تعالی هغه ته په دې باندې دَ عمل کولو توفیق هم ورکوی اوچه کله هغه په خپل علم باندې علم کوی نو دَدې په وجه دَهغه جنت ته دَداخلیدلو لار آسانیږی.

⑤ دَعلم حصول هم دَ جنت دَ داخلیدلو سبب دې. [۴] دَعلم په وجه هغه دَخیر اعمالوطرف ته لار مومی او په دې علم سره به هغه ته دَ حق او باطل په مینځ کښې تمیز کول آسان شی اودَ غلط او صحیح عمل به هغه ته هدایت کولې شی او په دې باندې عمل کولوسره به هغه په آسانئی سره جنت کښې داخل شی. [۵]

**په حدیث کښې ذکرشوی معاشرتی تعلیمات:** ①که یو سړې دَخپل مصیبت وهلی رور یو وړوکې شان مصیبت لرې کوی نوالله تعالی به دَ قیامت په ورځ دَ هغه نه یو لوئی مصیبت اخواکړی دلته دَمؤمن مسلمان دَ خدمت خبره ده دَ غیرمسلم نه ده لهذا کوم خلق چه ایمان او اسلام هیر کړی صرف دَخلقو دَخدمت جذبه په زړه کښې ساتی او خدمت کوی نوهغه په خپل ځائی ښنګه چه هم وی لیکن دَ دې حدیث مصداق نه دې.

② دَ یو تنګدست دَ امداد متعلق دې. یعنی دَیو ناداره سړی ضرورت دې په دنیاکښې پوره کړو مثلاً هغه قرضداری دې نویا دې ورته قرض معاف کړو یادې دَهغې دَ اداکولو انتظام اوکړو نوالله تعالی به دَ دنیا او آخرت دَ تنګدستو نه دغه سړی ته خلاصې ورکړی.

③ دَ یو شریف سړی نه بشری کمزوری اوشی اوهغه دګناه ارتکاب اوکړو نوهغه مشهوره وه مه بلکه دَ هغه پرده اوساته دې دَ پاره چه دَهغه ژوند بچ شی ګنی هغه به ضائع شی. اوکه چرې هغه عادی مجرم وی اودَ هغه ګناه خوریږی نودَهغې پټول جائز نه دی.

④ ترکومې چه یو مسلمان دَ بل مسلمان په امدادکښې لګیا وی نوالله تعالی هم دَ هغه امدادکوی اودا امداد اونصرت مسلسل جاری وی.

⑤ کوم سړې دَعلم دین دَ زده کړې په لار روان شی اودَ تعلیم دَحاصلولو دَپاره محنت کوی نوالله تعالی دَ هغه دَپاره دَ جنت لار آسانه وی.

⑥کله هم دَ مسلمانانو جماعت په یو جمات مدرسه یا خانقاه کښې کینی دَ الله تعالی دَ کتاب قرآن مجید تلاوت کوی اودَ هغې په تعلیم اوتدریس کښې لګیا وی نودَ الله تعالی خاص فرښتې هغه پټوی او په هغوی باندې رحمت راوریږی او الله تعالی خپل ځان سره دَ هغوی تذکره کوی.

⑦ کوم سړې دَهغه نیکو اعمالو شاته کړو یعنی هغه دَ خپلو نیکو اعمالو نه شاته پاتې شو نو خاندان او اوچت حسب نسب هغه وړاندې کولې نه شی. چا ښه وینا کړې ده.

## [٢٠٥] د رياكارۍ د عمل سزا

٢٠٥-()[٨] [١] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] " «إِنَّ أَوَّلَ النَّاسِ يُقْضَى عَلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ رَجُلٌ اسْتُشْهِدَ، [٣] فَأُتِيَ بِهِ فَعَرَّفَهُ نِعْمَتَهُ فَعَرَفَهَا، [٤] فَقَالَ: فَمَا عَمِلْتَ فِيهَا؟ [٥] قَالَ: قَاتَلْتُ فِيكَ حَتَّى اسْتُشْهِدْتُ [٦] قَالَ: كَذَبْتَ، وَلَكِنَّكَ قَاتَلْتَ لِأَنْ يُقَالَ: جَرِيءٌ، فَقَدْ قِيلَ، [٧] ثُمَّ أُمِرَ بِهِ فَسُحِبَ عَلَى وَجْهِهِ حَتَّى أُلْقِيَ فِي النَّارِ،

**ترجمه:** [١] ابو هريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] د قيامت په ورځ به مخکښي سړي چې (په هغه به د خلوص نيت پرېښودلو) حکم ولګول شی هغه وي چې (په دنيا کښې) شهيد شوي وو [٣] په ميدان حشر کښې) هغه به پيش کړل شي او الله تعالى به هغه ته خپل (ورکړي) نعمتونه را ياد کړي چې هغه ته به ياد شي، [٤] بيا به الله تعالى هغه ته وفرمايي چې تا د دې نعمتونو په شکر کښې څه کار اوکړو؟ يعنى الله تعالى به هغه ته خپل نعمتونه ښودلو سره الزامًا وفرمايي چې تا د دې نعمتونو په شکرانه کښې څه اعمال وکړل؟ [٥] هغه به اووائي ما ستا په په لار کښې جنګ اوکړو تر دې چې شهيد شوم، [٦] الله تعالى به ورته وفرمايي ته دروغجن يې ځکه چې ته د دې د پاره جنګيدلي وې چې تا ته بهادر اوويل شي نو وتاته بهادر اوويل شو او ستا اصل مقصد د خلقو څخه حاصل شو (اوس زما څخه څه غواړې) [٧] بيا به حکم وشي چې دې پړمخي راکش کښې تردې چې په اور کښې وغورځول شي.

[١] وَرَجُلٌ تَعَلَّمَ الْعِلْمَ وَعَلَّمَهُ، وَقَرَأَ الْقُرْآنَ [٢] فَأُتِيَ بِهِ فَعَرَّفَهُ نِعَمَهُ فَعَرَفَهَا. قَالَ: فَمَا عَمِلْتَ فِيهَا، [٣] قَالَ: تَعَلَّمْتُ الْعِلْمَ وَعَلَّمْتُهُ، وَقَرَأْتُ فِيكَ الْقُرْآنَ. [٤] قَالَ: كَذَبْتَ، وَلَكِنَّكَ تَعَلَّمْتَ الْعِلْمَ لِيُقَالَ: إِنَّكَ عَالِمٌ، وَقَرَأْتَ الْقُرْآنَ لِيُقَالَ: هُوَ قَارِءٌ، فَقَدْ قِيلَ، [٥] ثُمَّ أُمِرَ بِهِ فَسُحِبَ عَلَى وَجْهِهِ حَتَّى أُلْقِيَ فِي النَّارِ.

**ترجمه:** [١] بيا (دويم) به هغه سړي وي چې هغه علم حاصل کښې نورو ته يې تعليم ورکړي او قرآن يې اووئيلو [٢] هغه به هم (د الله تعالى په حضور کښې) راوستل شي الله تعالى به ورته خپل ورکړي نعمتونه راياد کړي چې هغه ته به ياد شی بيا به ځني الله تعالى پوښتنه وکړي چې تا د دې نعمتونو په شکر کښې څه کار وکړي؟ [٣] هغه به وايي ما علم حاصل کښې او نورو ته مي وروښودل او ستا د پاره مي قرآن اووئيلو، [٤] الله تعالى به ورته فرمايي ته دروغجن يې، تا علم محض د دې دپاره حاصل کښې چې خلق درته عالم اووائي او قرآن دې د دې د پاره زده کښې چې خلق درته قاري اووائي نو (عالم او قاري) درته اوويل شو، [٥] بيا به حکم وشي چې دې پړمخي بوزي نوپه دوزخ کښې به واچول شي،

[١] ) اخرجه مسلم كتاب الإمارة/ باب من قاتل للرياء والسمعة استحق النار(رقم-١٥٢ - (١٩٠٥) والنسائى كتاب الجهاد/باب باب من قاتل ليقال فلان جرىء (رقم-٣١٣٧) اخرجه احمد فى المسند:٢/٣٢٢

١ وَرَجُلٌ وَسَّعَ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَأَعْطَاهُ مِنْ أَصْنَافِ الْمَالِ كُلِّهِ، ٢ فَأُتِيَ بِهِ فَعَرَّفَهُ نِعَمَهُ فَعَرَفَهَا، قَالَ: فَمَا عَمِلْتَ فِيهَا؟ ٣ قَالَ: مَا تَرَكْتُ مِنْ سَبِيلٍ تُحِبُّ أَنْ يُنْفَقَ فِيهَا إِلَّا أَنْفَقْتُ فِيهَا لَكَ. ٤ قَالَ: كَذَبْتَ، وَلٰكِنَّكَ فَعَلْتَ لِيُقَالَ: هُوَ جَوَادٌ، فَقَدْ قِيلَ، ٥ ثُمَّ أُمِرَ بِهِ فَسُحِبَ عَلَى وَجْهِهِ ثُمَّ أُلْقِيَ فِي النَّارِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ بيا به (دريم) هغه سړي وي چې الله تعالی ﷻ ورته (په مال کښې) وسعت ورکړي وي او هرقسم مال يې ورته ورکړي وي ٢ هغه به هم د الله تعالی ﷻ په حضور کښې راوستل شی الله تعالی ﷻ به هغه ته خپل ورکړي نعمتونه رایاد کړي چې وهغه ته به یاد شي، بیا به ورته الله تعالی ﷻ وفرمایي چې تا د دې نعمتونو په شکر کښې څه اعمال وکړل، ٣ هغه به وايي ما هيڅ داسې لار پرې نه ښودله چې په هغه کښې ته خرڅ کول خوښوي او ستا د رضا د پاره ما په هغه کښې خرڅ نه وي کړي، ٤ الله تعالی ﷻ به ورته فرمايي چې ته دروغ وايي تا خرڅ ځکه اوکړو چې تاته سخي اوویل شی او سخي درته اوویل شو، ٥ بیا به حکم وشي چې دي پړمخې بوځي تردي چې په دوزخ کښې به واچول شي. مسلم

**حل اللغات:** ① اسْتُشْهِدَ: أَيْ: قُتِلَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ: شهيد شوي وو يعنی دالله په لار کښې قتل کړې شوې وو. ② جَرِيءٌ: د فَعِيلٌ په وزن باندې د جَرَاءَةٍ نه مهموز دې، أَيْ: شُجَاعٌ: بهادر. ③ فَسُحِبَ: أَيْ: جُرَّ: رابه ښکلې شی، ④ أَصْنَافِ: انواع او اقسام د مال (لکه نغدې، سامانونه، زمکې او څاروی وغيره). ⑤ جَوَادٌ: أَيْ: سَخِيٌّ كَرِيمٌ: سخاوت کونکې، صدقه اوخيرات کونکې، ⑥ أُلْقِيَ: اوبه غورځولې شی (په اور د دوزخ کښې).

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ أَوَّلَ النَّاسِ:

**په احاديثو کښې تعارض:** ① په دې حديث شريف کښې خودلې شی چه دَ قيامت په ورځ باندې به دَ ټولو نه مخکښې حساب اوفيصله دَ هغه ځان خودونکی شهيد کيږی.

② په بل حديث کې ذکردی چه دَ ټولو نه مخکښې فيصله به دَ قيامت په ورځ دَ مونځ کيږی.

③ په يو بل حديث کښې راغلی دی چه دَ ټولونه مخکښې فيصله به دَ ناحق وينه تويونکی قاتل اومقتول کيږی.

**دتعارض جواب:** دَ قيامت په ورځ معاملات اوحقوق العباد کښې دَ ټولو نه مخکښې فيصله دَ ناحق وينې کيږی. دَدې يو صورت خودَ ناحق قتل دې اوبل صورت دَ رياکارئی او ځان خودونکې وينې دې. لکه چه په دې حديث کښې دَ هغه رياکارشهيد دَ وينې دې لهذا په حقوق العبادکښې به دَ دې قسم معاملاتو فيصلې کيږی او په حقوق الله او عبادت کښې به دَ ټولونه مخکښې فيصلې دَ مانځه کيږی. نوهيڅ تعارض نشته دې.

په حدیث کښې چه دَ [اول الناس] کوم اولیت دې په اعتبارد انواع دې. دَ انواع عبادت فیصلې به جدا وی اودَ انواع معاملات فیصلې به جدا وی.

**قوله: فَعَرَّفَهُ نِعَمَهُ:**

**اشکال:** دَ نعمتونو سلسله خو بې شمیره ده دابه څنګه وریادولې شی؟ او په حدیث کښې دی چه هغه ته به عام نعمتونه وریادولې شی اوهغه سړې به دَدې یاداش سره دَهغې پیژند ګلو هم کوی.

**داشکال جواب:** نن صبا جدت او جدید آلاتو ددې جواب آسان کړې دې. څکه چه په کمپیوټر سسټم او ټیلی ویژن پروګرامونوکښې اقوال، افعال، حرکات، سکنات، مقامات او زمانیات ټول هرڅه محفوظ کولوسره دَ ضرورت مطابق کوم یو وخت هم دوباره کتلې شی. نودَ قادر مطلق بادشاه دَپاره دَنعمتونو وریادول څه ګران کاردې.

**قوله: وَقَرَأْتُ فِيكَ:**

**د ریاکار قاری انجام:** یعنی ستا دَ رضا او خوشحالولودَپاره ما قرآن لوستلو، علم مې زده کړو او بل ته مې خودلو. په دې حدیث کښې صرف درې کسان مراد نه دی بلکه دا درې قسمه خلق دی دکومو شمیر چه هم الله تعالی ته معلوم دې.

**د فاسق عالم انجام:** دفضیل بن عیاض رحمه الله قول دې چه د قیامت په ورځ به فاسق عالم بت پرست نه اول نیولې کیږی څکه پوهه اوناپوهه برابر نشی کیدې. څنګه چه دې درې واړو څیزونو کښې اخلاص او للهیت ضروری دې نوداشان هر عمل کښې اخلاص ضروری دې. که اخلاص نه وی نو لوئې نه لوئې عمل هم یو کس جنت ته نه بلکه جهنم ته د داخلیدو سبب جوړیږی.

**[۲۰۶] په آخیره زمانه کښې د علم پورته کیدل**

۲۰۶-()[۹] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«إِنَّ اللَّهَ لَا يَقْبِضُ الْعِلْمَ انْتِزَاعًا يَنْتَزِعُهُ مِنَ الْعِبَادِ، [۳] وَلَكِنْ يَقْبِضُ الْعِلْمَ بِقَبْضِ الْعُلَمَاءِ، [۴] حَتَّى إِذَا لَمْ يُبْقِ عَالِمًا؛ اتَّخَذَ النَّاسُ رُءُوسًا جُهَّالًا، [۵] فَسُئِلُوا فَأَفْتَوْا بِغَيْرِ عِلْمٍ، [۶] فَضَلُّوا وَأَضَلُّوا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] عبد الله بن عمرو رضی الله عنهما راوي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] الله تعالی جل جلاله به علم (په آخري زمانه کښې) داسې نه پورته کوي چې د خلقو (د زړونو او دماغ) څخه به يې وباسي [۳] بلکه علم به داسې پورته کړي چې علماء به د دې دنيا څخه پورته کښې [۴] تر

[۱] ) اخرجه البخاری کتاب العلم/باب: کیف یقبض العلم(رقم-۱۰۰) ومسلم کتاب العلم /باب رفع العلم وقبضه وظهور الجهل والفتن فی آخر الزمان(رقم-۱۳ - (۲۶۷۳) والترمذی کتاب العلم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی ذهاب العلم (رقم-۲۶۵۲) وابن ماجة کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم باب اجتناب الرأی والقیاس (رقم-۵۲)

دي چې یو عالم به باقي پاتې نشي نو خلق به جاهلان خپل پیشوا جوړ کړي ⑤نو د هغوئ څخه به د مسئلو پوښتنه کوي او هغه به بغیر د علم څخه فتوي ورکوي ⑥نو هغه به خپله هم ګمراه وي او نور خلق به هم ګمراه کوي. بخاري مسلم

**حل اللغات:** ① لَا يَقْبِضُ : أي بِأَنْ يَرْفَعَهُ: نه قبض کوی، نه پورته کوی. ② انْتِزَاعًا : چه اوئې باسی (دخلقو د زړونو اودماغ نه). ③ رُءُوسًا : أيْ خَلِيفَةً: خپل مشر او خلیفه (قاضی، امام وغیره به ئې جوړکړی). ④ فَضَلُّوا : أيْ: صَارُوا ضَالِّينَ: په خپله هم ګمراه شول، ⑤ وَأَضَلُّوا: أيْ مُضِلِّينَ لِغَيْرِهِمْ: خلق ئې هم ګمراه کړل.

**تسهیلات:**

**قوله:** لَا يَقْبِضُ الْعِلْمَ:

## دعلم په قبض کولو کښې د عالمانو اقوال:

① دغه شان دَحضرت عمر ﷺ نه روایت دې فرمائی چه علم به داسې نه شی قبض کولې چه دَ سینو نه به اوخی بلکه داسې به وی چه علماء کرام به فنا شی. (۱)

② حضرت عبدالله بن ثابت ﷺ فرمائی عالمان به مړه کیږی اودَ هغوی سره به دَ حق نښې هم ختمیږی تردې چه جاهلان به زیات شی او عالمان به ختم شی. نو خلق به په جهالت باندې عمل او باطل باندې یقین کول شروع کړی او په دې سره به ګمراهی پوره شی. (۲)

③ حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائی علم دَ هغې دَ قبض کیدو نه وړاندې وړاندې زده کړه. دَ علم قبض کیدل دَ اهل علم دَ دنیانه اوچتیدل دی.

**دعلم د پورته کیدو وجوهات:** ① دَ علماؤ په زړه کښې به دَ دنیا لالچ راشی او هم هغوی سره به دَعلم قدر نه وی نو بیا نور خلق به ترې څه فائده حاصله کړی.

② په عام توګه به دَ علم او اهل علم قدر ختم شی.

③ دکوم طرف ته چه په دې حدیث پاك کښې اشاره فرمائیلې شوې ده اهل حق علماء به دِ دنیا نه اوچتیږی بیا به دِ هغوی په ځایْ دنیا پرست خلق راځی چه پخپله به هم ګمراه وی او څوك چه دوی سره تعلق ساتی هغه به هم ګمراه کوی.

**قوله:** رُءُوسًا:

**د رؤوس څخه مراد:** دلته د سر لفظ څه په عجیبه معنی کښې دې. ځکه چې سر د انسان په بدن کښې هغه حصه ده کومې ته چې بلد العلماء وئیلې شی. ځکه چې د علم ټول وسائل

(۱) العلم والعلماء: ۱۱۵.

(۲) العلم والعلماء: ۱۱۷.

او ذرائع په سر كښې دي. لكه قوت مدركه او ادراك په سر كښې دي. قوت باصره، قوت سامعه، قوت شامه، قوت ذائقه او قوت لامسه ټول په ټوله په سر كښې دي. نو دا د علماء ښار شو.

**دحديث مطلب:** نو ددې حديث مطلب دا هم شو چې خلق به جاهلانو لره د علم مركز جوړ كړي نو ګمراه به شي. ځكه چې د جاهل د ماغ چا ته رڼا نشي وركولې بلكه هم تياره وركوي. [اخرجه البخاري ۲۷/۱]

**[۲۰۷] په وعظ او نصيحت كښې ميانه روي كول**

۲۰۷-(۱)[۱۰] [۱]وَعَنْ شَقِيقٍ: - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - [۲]«كَانَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ يُذَكِّرُ النَّاسَ فِي كُلِّ خَمِيسٍ. [۳]فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ: يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ! لَوَدِدْتُ أَنَّكَ ذَكَّرْتَنَا فِي كُلِّ يَوْمٍ. [۴]قَالَ: أَمَا إِنَّهُ يَمْنَعُنِي مِنْ ذَلِكَ أَنِّي أَكْرَهُ أَنْ أُمِلَّكُمْ، [۵]وَإِنِّي أَتَخَوَّلُكُمْ بِالْمَوْعِظَةِ [۶]كَمَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَتَخَوَّلُنَا بِهَا [۷]مَخَافَةَ السَّآمَةِ عَلَيْنَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱]شقيق رحمه الله راوي دي [۲]چې حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه به د هر زيارت (جمعرات) په ورځ د خلقو په مخكې وعظ او نصيحت كولې [۳](يوه ورځ) يو سړي عرض اوكړو اې ابو عبد الرحمٰن! زما خواهش دي چې ته مونږ ته هره ورځ وعظ كوې [۴]عبد الله بن مسعود رضي الله عنه ورته وفرمايل زه داسې ځكه نه كوم چې په دې سره به تاسو تنګ شى [۵]زه د نصيحت په معامله كښې ستاسو خبر ګيري (خبر اخستل) داسې كوم څنګه چې مونږ ته به د نصيحت په معامله كښې حضور صلى الله عليه وسلم خبر ګيري كوله [۷]او زمونږ د تنګ كيدو خيال به يې ساتلې. بخاري مسلم

**حل اللغات:** ① خَمِيس: د زيارت ورځ، جمعرات (پنج شنبه). ② أُمِلَّكُمْ: أَيْ: إِمْلَالُكُمْ: تنګول ستاسو، ستومانه كول ستاسو. ③ أَتَخَوَّلُكُمْ: وَهُوَ التَّعَهُّدُ وَحُسْنُ الرِّعَايَةِ: خبرګيرى كول، خير خبر اخستل او دخلقو لحاظ ساتل. ④ السَّآمَةِ: أَيِ الْمَلَالَةِ: ستړى كيدل او ستومانه كيدل.

**د راوي مختصر تعارف:** دې دَ آل خضرمى مولى دې. دَحضرت انس بن مالك رضي الله عنه نه روايت نقل كوى او دَ هغوى دَ شاګردانونه يحيى قطان او وكيع وغيره دى. اكثر محدثينو هغه ته ثقه وئيلې تردې چه علامه نووى رحمه الله دَ هغه په عظمت باندې اتفاق نقل كړې دې.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَإِنِّي أَتَخَوَّلُكُمْ بِالْمَوْعِظَةِ:

[۱] ) اخرجه البخارى كتاب العلم/باب ما كان النبى صلى الله عليه وسلم يتخولهم بالموعظة والعلم كى لا ينفروا(رقم-۶۸) ومسلم كتاب صفة القيامة والجنة والنار/باب الاقتصاد فى الموعظة(رقم-۸۳ - (۲۸۲۱) والترمذى كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الفصاحة والبيان (رقم-۲۸۵۵)اخرجه احمد فى المسند: ۳۷۸/۱

**روزانه د وعظ نصیحت کولو غوښته دابن مسعود رضی الله عنه انکار:** حضرت شقیق رحمه الله تابعی دی هغوی حضرت ابن مسعود رضی الله عنه ته روزانه دَ وعظ اونصیحت کولو درخواست اوکړو. حضرت ابن مسعود رضی الله عنه دَ هغه مطالبه مسترد کړه. په کوم سره چه امت ته دا تعلیم ملاؤ شو چه دَ وعظ اونصیحت او دعوت اوتبلیغ په معامله کښې دَ اعتدال او احتیاط نه کار اخستل پکاردی. هر وخت او په هره موقع باندې وعظ اونصیحت نه دی کول پکار. ځکه چه په دې سره به دَ خلقو زړونه ستومانه شی اوهغوی به دَ دین خبره بوج محسوس کړی. اودَ دین خبره بوج محسوس کول په حقیقت کښې دَ نفرت ذریعه ده. اودَ دین دَ خبرې نه نفرت کول دَ کفر سبب دې. نودَ زیات وعظ او اوږد وعظ انجام به ځومره خطرناک وی اودَ رشد او هدایت په ځائی به رحمت زحمت جوړیدوسره دَ گمراهئی ذریعه جوړه شی.

**[٢٠٨] د سامعینود پوهولو دپاره درې ځله خبره کول**

٢٠٨-()[١١] ١ وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ ٢: «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا تَكَلَّمَ بِكَلِمَةٍ أَعَادَهَا ثَلَاثًا ٣ حَتَّى تُفْهَمَ عَنْهُ، ٤ وَإِذَا أَتَى عَلَى قَوْمٍ فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ ٥ سَلَّمَ عَلَيْهِمْ ثَلَاثًا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ١ انس رضی الله عنه راوي دي ٢ چې رسول الله صلی الله علیه وسلم چې به کله څه خبره کوله نو درې ځله به يې کوله ٣ تر دې چې خلق به په هغه په ښه شان پوه شو ٤ او کله به چې حضور صلی الله علیه وسلم يو جماعت ته راغې او د سلام اراده به يې فرمايله ٥ نو درې ځله به يې سلام کولې. بخاري

**تسهیلات:**

**قوله:** أَعَادَهَا ثَلَاثًا:

**د درې ځله خبرې کولو په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① نبی علیه السلام به اهمه او ضروری علمی خبره درې ځله فرمائیله. چې په اول ځل ذکی او ذهین خلق په دې پوهه شی. په دویم ځل متوسط ذهین خلق او په دریم ځل غبی خلق په دې پوهه شی. نبی کریم صلی الله علیه وسلم به هره خبره دوباره نه کوله.

② نبی کریم صلی الله علیه وسلم به هره خبره درې درې ځل نه فرمائیله بلکه نبی کریم ته به د دریو ځلو فرمائیلو ضرورت په هغه وخت کښې راپیښیدو کله چې به دا اندیښنه وه چې سامعین به پوهه شوی نه وی.

**قوله:** سَلَّمَ عَلَيْهِمْ ثَلَاثًا:

**درې ځله د سلام اچولو په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① درې ځه د سلام اچولو مطلب دا دې چې نبی علیه السلام به د مجمع اولې حصې ته اول سلام او مینځنۍ حصې ته دویم سلام او مقام

[١] ) اخرجه البخاری کتاب العلم/باب عظة الإمام النساء وتعليمهن(رقم-٩٨) والترمذی کتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی کراهية أن يقول عليک السلام مبتدئا (رقم-٢٧٢٣)

مقصود ته په رسيدلو يا د رخصتيدو په وخت كښې دريم سلام وو. دا نن سبا هم كيږي. د حديث پاك مطلب دا نه دې چې په هم يو ځائې باندې ئې درې ځل سلام كولو.

② يعنې نبي كريم ﷺ چې به كله مجمع ته راغلو نو سلام به ئې كولو نو دا به ئې درې ځل كولو. دا عادت مبارك به ئې په هغه وخت كښې وو چې كله به مجمع زياته وه. نو د نبي كريم ﷺ اول سلام به په راتلو سره وو، دويم به د مجمع ښي طرفته او دريم به د مجمع ګس طرفته وو.

**[٢٠٩] د نيكۍ خودونكي دپاره د نيكۍ كونكي پشان ثواب**

٢٠٩-()[١٢] ① وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ ②: «جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ③ فَقَالَ: إِنَّهُ أُبْدِعَ بِي فَاحْمِلْنِي ④ فَقَالَ: مَا عِنْدِي. ⑤ فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! أَنَا أَدُلُّهُ عَلَى مَنْ يَحْمِلُهُ. ⑥ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ دَلَّ عَلَى خَيْرٍ فَلَهُ مِثْلُ أَجْرِ فَاعِلِهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① ابو مسعود انصاري رضي الله عنه راوي دي ② چې يو سړي د حضور ﷺ په خدمت كښې حاضر شو ③ او عرض يي اوكړو چې زما سوارلئ د تلو څخه عاجزه شويده ته ماته سوارلئ راكړي؛ ④ حضور ﷺ ورته وفرمايل زما سره څه سوارلئ نشته (چې وتاته يي دركړم) ⑤ يو سړي عرض اوكړو يا رسول الله ﷺ زه وده ته داسې سړي ښايم چې ده ته به سوارلئ وركړي حضور ﷺ وفرمايل كوم سړي چې د چا د خير طرف ته رهنمايي وكړي ⑥ نو هغه ته به هم هغومره ثواب وركول كيږي څومره چې هغه خير (نيكي) باندې عمل كونكي ته وركول كيږي. مسلم

**حل اللغات:** ① أُبْدِعَ: أَيْ: انْقَطَعَ رَاحِلَتِي بِي: زما د سورولو نه ستړي شوې او عاجزه شوې ده. ② فَاحْمِلْنِي: أَيْ: رَكِّبْنِي: ما سور كړه، يعنې ماته سورلى راكړه چه زه پرې سور شم. ③ أَدُلُّهُ: زه به ورته اوښايم.

**تسهيلات:**

**قوله: مَنْ دَلَّ عَلَى خَيْرٍ فَلَهُ مِثْلُ أَجْرِ فَاعِلِهِ:**

**شان ورود:** لكه څنګه چه دَ قرآن پاك دَ آيت شان نزول وي نودغه شان دَ بعض احاديثو شان ورود وي چه په يوخاص موقع باندې ارشاد فرمائيلې شوې وي نودغه شان دَ دې حديث هم شان ورود دې. يو صحابي رضي الله عنه چه كله دَ سفرد پاره دَ حضور ﷺ نه سورلى اوغوښتله په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه ماسره سورلى نشته. يوسړى اووئيل چه زه داسې سړې درښايم چه ده له به سورلى وركړى په دې باندې رسول الله ﷺ دا

[1]) اخرجه مسلم كتاب الإمارة/باب فضل إعانة الغازي في سبيل الله بمركوب وغيره، وخلافته في أهله بخير(رقم-١٣٣-١٨٩٣) والترمذي كتاب العلم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء الدال على الخير كفاعله (رقم-٢٦٧١) وابوداود كتاب الأدب/باب في الدال على الخير(رقم-٥١٢٩)اخرجه احمد في المسند: ١٢٠/٤

پورتني حديث شريف بيان كړو.(۲)

**ددعوت اووعظ نصيحت لويه فائده** په دې حديث شريف كښې دَ الله تعالى دَ طرف نه دَ بواوچت انعام او وركړې بيان دې چه سړې پخپله دومره كارنه شي كولې بل ته دې ترغيب وركړى دَ دې كارد پاره دې تياركړى مثلاً دَ ناداركيدو په وجه يا دَ څه بلې وجه نه مال په كثرت سره نه شي خرچ كولې نو نورو له دې ترغيب وركړى دَ خرچ كولو نودا ترغيب وركونكې دَخرچ كونكى سره به هم په ثواب كښې شريك شي.كه يوسړې پخپله روژه نه شي ساتلې حج نه شي كولې جهاد نه شي كولې غرض دا چه دَ كوم يونيك كار دَ پاره بل سړې تياركړى او ترغيب وركړى نو دَ كونكى په شان به ترغيب وركونكى ته هم اجر او ثواب ملاويږي.

## [۲۱۰] د نيک عمل جارى كولو بدله

۲۱۰-()[۱۳] [۱]وَعَنْ جَرِيرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ[۲]: «كُنَّا فِي صَدْرِ النَّهَارِ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳]فَجَاءَ قَوْمٌ عُرَاةٌ مُجْتَابِي النِّمَارِ أَوِ الْعَبَاءِ، [۴]مُتَقَلِّدِي السُّيُوفِ، [۵]عَامَّتُهُمْ مِنْ مُضَرَ، بَلْ كُلُّهُمْ مِنْ مُضَرَ، [۶]فَتَمَعَّرَ وَجْهُ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِمَا رَأَى بِهِمْ مِنَ الْفَاقَةِ، [۷]فَدَخَلَ ثُمَّ خَرَجَ، فَأَمَرَ بِلَالًا فَأَذَّنَ، وَأَقَامَ فَصَلَّى [۸]ثُمَّ خَطَبَ فَقَالَ: {يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ} [النساء:۱] إِلَى آخِرِ الْآيَةِ {إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا} [النساء:۱]، وَالْآيَةَ الَّتِي فِي الْحَشْرِ {اتَّقُوا اللَّهَ وَلْتَنْظُرْ نَفْسٌ مَا قَدَّمَتْ لِغَدٍ} [الحشر:۱۸] [۹]تَصَدَّقَ رَجُلٌ مِنْ دِينَارِهِ، مِنْ دِرْهَمِهِ، مِنْ ثَوْبِهِ، مِنْ صَاعِ بُرِّهِ مِنْ صَاعِ تَمْرِهِ [۱۰]حَتَّى قَالَ" وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ".

**ترجمه:** [۱]جرير رضي الله عنه راوي دي [۲]چې (يوه ورځ) مونږ د ورځې په ابتدايي حصه كښې د حضور ﷺ په خدمت كښې حاضر وو، [۳]يوقوم د حضور ﷺ په خدمت كښې راغې چې بربنډ بدنونه يې ود عبا يا كمبل يې اچولي وي [۴]او په غاړه كښې يې توري زوړند وې [۵]په هغوئ كښې اكثره بلكه ټول د قبيلۀ مضر خلق وو [۶]په هغوئ د فاقې اثر ليدو سره د حضور ﷺ مخ مبارك متغير شو [۷] حضور ﷺ د هغوئ د پاره خوراك تلاش كښې كورته يې تشريف وړي وړي (خو په كوركې يې څه نه كړه پيدا) نو واپس راغې حضرت بلال رضي الله عنه ته يې (د اذان كولو) حكم اوكړو او تكبير يې اووئيلو او د جمعې يا ماسپښين مونځ وشو، [۸]بيا حضور ﷺ خطبه وويله او دا آيت يې اووئيلو: يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ، الآية، اې خلكو د خپل پروردگار څخه وويرېږې چې هغه تاسو د يونفس (آدم عليه السلام) څخه پيدا كړي يئ، پوره آيت يې تلاوت كښې چې د هغه آخري حصه دا

۱) اخرجه مسلم كتاب القدر/باب الحث على الصدقة ولو بشق تمرة، أو كلمة طيبة وأنها حجاب من النار(رقم-۶۹ - ۱۰۱۷) والنسائى كتاب الزكاة/باب التحريض على الصدقة (رقم-۲۵۵٤) والترمذى كتاب العلم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فيمن دعا إلى هدى فاتبع أو إلى ضلالة (رقم-۲۶۷۵) اخرجه احمد فى المسند: ۳۵۹/٤

ده. بیشکه الله تعالی ﷻ دي په تاسو نګهبان (څارونکي) بیا یي دا آیت اووئیلو، چې په سورة حشر کښې دي ﴿وَلْتَنْظُرْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ لِغَدٍ﴾ الآية، اي ایمان والاؤ د الله تعالی ﷻ څخه وویرېږي او هر سړي دي وګوري چې صبا له (د قیامت) د پاره هغه څه ذخیره لیږلي دہ، ⑨ بیا یي وفرمایل خیرات دي وکړي سړي د خپل دینار څخه د خپل درهم څخه د خپلو کپړو څخه د خپلو غنمو د پیماني څخه ⑩ تر دي چې حضور ﷺ وفرمایل خیرات دي کړي که څه هم د خورما یوه ټوټه وي،

**حل اللغات:** ① صَدْرِ النَّهَارِ: أَيْ: أَوَّلِهِ: د ورځ شروع، د ورځ ابتدائی حصه. ② عُرَاةٌ: بربنړ یعنی د بدن ا کثره حصه ئې ښکاره وه. ③ مُجْتَابِي: أَيْ لَابِسِي: اغوستې ئې وو، بعضې بدن ئې پټ کړي وو. ④ النِّمَارِ: وَهِيَ أَكْسِيَةٌ مِنْ صُوفٍ: د وړئ نه جوړ شوي څادر، ⑤ الْعَبَاءِ: اى بُرْدَةٌ مِنْ صُوفٍ: د وړئ نه جوړه شوي کمبل، شړئ، ⑥ مُتَقَلِّدِي: په غاړه کښې ئې رازوړندي کړي وې. ⑦ السُّيُوفِ: د سیف جمع ده، توري، ⑧ فَتَمَعَّرَ: أَيْ: فَتَغَيَّرَ: بدل شو (رنګ دمخ دنبی ﷺ) ⑨ الْفَاقَةِ: أَيِ: الْفَقْرِ الشَّدِيدِ: سخت محتاج او تنګدست خلق وو. ⑩ رَقِيبًا: نګران، (سارونکې دي ستاسو اقوالو او افعالو او حالاتو). ⑪ مِنْ بُرِّهِ: أَيْ: مِنْ قَمْحِهِ وَحِنْطَتِهِ: غنم، اوړه. ⑫ شِقِّ: ټکړه، خصه،

> ① قَالَ: فَجَاءَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ بِصُرَّةٍ كَادَتْ كَفُّهُ تَعْجِزُ عَنْهَا، بَلْ قَدْ عَجَزَتْ، ② ثُمَّ تَتَابَعَ النَّاسُ حَتَّى رَأَيْتُ كَوْمَيْنِ مِنْ طَعَامٍ وَثِيَابٍ. ③ حَتَّى رَأَيْتُ وَجْهَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَتَهَلَّلُ كَأَنَّهُ مُذْهَبَةٌ ④ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: مَنْ سَنَّ فِي الْإِسْلَامِ سُنَّةً حَسَنَةً فَلَهُ أَجْرُهَا وَأَجْرُ مَنْ عَمِلَ بِهَا ⑤ مِنْ بَعْدِهِ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَنْقُصَ مِنْ أُجُورِهِمْ شَيْءٌ، ⑥ وَمَنْ سَنَّ فِي الْإِسْلَامِ سُنَّةً سَيِّئَةً كَانَ عَلَيْهِ وِزْرُهَا وَوِزْرُ مَنْ عَمِلَ بِهَا مِنْ بَعْدِهِ ⑦ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَنْقُصَ مِنْ أَوْزَارِهِمْ شَيْءٌ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه: ① راوي وايي یو انصاري سړي (د دینارو او درهم څخه ډکه) یوه تیلي راوړه چې د هغي په وزن سره د هغه لاس ستړي کیدو ته نزدې وو، بلکه ستړي شوې وو، ② بیا خو خلقو پرله پسې څیزونه راوړل شروع کړل، تر دي چې ما دوه ډیري (کوړي) د غلي او کپړو (جمع شوي) ولیدلي ③ بیا ما ولیدل چې د حضور ﷺ مخ مبارک د خوشحالي په وجه د کندن (خالص سرو زرو) په شان ځلیدلي، ④ بیا حضور ﷺ وفرمایل چې کوم څوک په اسلام کښې یوه نیکه طریقه رائج کړي نو هغه ته به د هغه هم ثواب حاصلیږي او د هغه ثواب هم چې د هغه څخه وروسته څوک وربانديې عمل وکړي ⑤ لیکن د عمل کونکي په ثواب کښې به هیڅ کمي نه کیږی ⑥ او کوم سړي چې په اسلام کښې یوه خرابه طریقه رائج کړه نو د هغه به ورته هم ګناه وي او د هغه سړي هم چې د هغه څخه وروسته په هغه عمل کوي ⑦ لیکن د عمل کونکي په ګناه کښې به هیڅ کمي نه کیږی. مسلم

**حل اللغات:** ⑬ بِصُرَّةٍ: أَيْ: رَبْطَةٍ مِنَ الدَّرَاهِمِ أَوِ الدَّنَانِيرِ: تهیلئ چه دینار او دنانیر پکښې وو. ⑭ كَفُّهُ: تهلي (ددې نه لاس مراد دې). ⑮ تَعْجِزُ: عاجزه کیدو (د دروندوالی په وجه ستړې شوې وو). ⑯ كَوْمَيْنِ:

أي الصُّفرَةُ: دهیری، توپونه، ⑰ یَتَهَلَّلُ: أَيْ: یَسْتَنِیرُ: پرقیدو او ځلیدو (یعني د خوشحالئ اثار پرې ښکاره معلومیدل). ⑱ مُذْهَبَةٌ: هُوَ مَا مُوِّهَ بِالذَّهَبِ: چه د سرو زرو اوبه ورله ورکړې شوې وی. ⑲ وِزْرُهَا: أَيْ: إِثْمُهَا: بوج یعنی ګناه دهغې بدعمل.

**ه راوي مختصر تعارف:** نوم جریر ابوعمر کنیت جریر دَ یمن دَ شاهی خاندان رکن او قبیله بجیله سردار وو په دې وجه هغه ته بجلي وائی.علامه واقدی فرمائی چه په رمضان ۱۰ھ کښې په اسلام کښې داخل شوپه حجة الوداع کښې دَ رسول الله ﷺ هم رکاب وو.
کله چه دې دَ اسلام قبلولودَ پاره راغلو نورسول الله ﷺ ورته خپل څادرمبارك خور کړو.(اصابه ۲۴۲/۱) حضرت عثمان رضي الله عنه هغه دَ همدان ګورنر هم جوړکړې وو.دَحضرت عمران رضي الله عنه باره کښې به ئې فرمائیل چه الله تعالی دې په تاباندې رحمت نازل کړی ته په جاهلیت کښې هم ښه سردار وو او په اسلام کښې هم ښه سردار ئې. ([1])
**وفات:** یمنی وو بیا کوفې ته لاړو بیا قرقیباکښې اوسیدلو او بیا هم دلته په ۵۴ھ کښې وفات شو.([2])
**مرویات:** دَ هغوی نه سل (۱۰۰) احادیث نقل دی.۸ په بخاری اومسلم دواړو کښې مشترك دی یو کښې بخاری او ۷کښې مسلم منفرد دې. ([3])
**تسهیلات:**
**قوله:** قَوْمٌ عُرَاةٌ:
**د عراة مطلب:** یعنی دَ یو قوم خلق راغله اوهغه خلق په بدنونوباندې بربنډ وو یعنی کپړې کمې وې.دَټول بدن دَپاره ئې کپړې پوره نه وې.هغه کپړې وړینې هم وې او شلیدلې هم وې.
**قوله:** عَامَّتُهُمْ مِنْ مُضَرَ:
**د وفد تعارف:** دا خلق دَ بنومضروو چه اول کافران وو اودَ قبیله عبدالقیس دښمنان وو. دې مجاهدینوسره کپړې خونه وې مګر دَ جهاددَپاره ئې توري رازوړندکړې وې. کومې سره چه دَ نن صبا دَ مسلمانانو سترګې غړیدل پکاردی. چه دَ وسلې نه نفرت کوی اودَ دنیا عیش اومزو سره محبت کوی.
**قوله:** تَصَدَّقَ:
**د تصدق په ترکیب کښې دوه اقوال:** ① علامه ابن انباری رحمه الله فرمائی دلته په تصدق کښې لام امرمحذوف دې. په اصل کښې لیتصدق وو. لهذا دَ امر غائب صیغه شوه یعنی هرسړی له صدقه کول پکاردی.

---
[1] ) تهذیب التهذیب ۳/۲)
[2] ) اصابه ۲٤۲/۱)
[3] ) تهذیب الکمال ۶۱).

④ دا دَماضي صيغه ده کوم چه خبردې مګر دلته دَ انشاء په معنی کښې دې يعنی دَ هرسړی نه چه څه کيدې شي صدقه دې اوکړی. [الکاشف: ۱/۴۰۵.]

**قوله:** كُوْمَتَيْنِ:

**دکومين څخه مراد:** کوم ډهيرې ته وائي چونکه دَ غلې او کپړو ډهيری جوړيږی په دې وجه دلته دَ غونډئی او ډهيری ذکر راغلې دې. اودَ درهم او دنانيرو ډهيرې عادتاً نه وی په دې وجه دَهغې ذکرهم اونه کړې شو.

**ضروری تنبيه:** دلته سنت جاری کولوسره محقق علماء په نيز په دې حديث شريف کښې دَ حسنة قيد دې يعنی هغه طريقه په شريعت کښې دلالةً يا ارشارةً موجود وی او ادله اربعه نه په يودليل کښې داخله وی.داهيڅ کله مراد نه دې چه دَخپل طرف نه يوځيز جاری کړی هم دَ دې نوم خو بدعت دې او په شريعت کښې داخراب کاردې.(۴)

بعض علماءکرامو ليکلی دی مراد دَ طريقې جاری کولونه دادې چه هغه دَ حضور ﷺ يا دَ خلفاء راشدينو سنت وو خودَ خلقو نه هيرشوی وو نواوس دَهغې طرف ته خلقو له دعوت ورکول اودَ هغې تعليم ورکول او په هغې باندې پخپله عمل کول مراد دی.(۵)

دغه شان په بعض رواياتوکښې من سن فی الاسلام په ځائې ايما داع دعا إلى هدی الفاظ راغلی دی.(۶)

**[٢١١] دقابيل دپاره د هرمظلوم د قتل سزا**

٢١١—(١)[١٣] ① وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللهُ تَعَالٰى عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ ② لَا تُقْتَلُ نَفْسٌ ظُلْمًا ③ اِلَّا كَانَ عَلَى ابْنِ اٰدَمَ الْاَوَّلِ كِفْلٌ مِّنْ دَمِهَا لِاَنَّهٗ اَوَّلُ مَنْ سَنَّ الْقَتْلَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ ④ وَسَنَذْكُرُ حَدِيْثَ مُعَاوِيَةَ لَا يَزَالُ طَآئِفَةٌ مِّنْ اُمَّتِي فِي بَابِ ثَوَابِ هٰذِهِ الْاُمَّةِ اِنْ شَآءَ اللهُ تَعَالٰى.

**ترجمه:** ① ابن مسعود رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② کوم سړي چې د ظلم په طريقه قتل شی نو د هغه د وينی يوه حصه د آدم ) مخکني ځوي په قابيل باندې وي ③ ځکه چې هغه اولني سړي دي چې د قتل طريقه يي راويستله، بخاري ومسلم ④ او د معاويه رضی الله عنه هغه حديث چې د هغه ابتدا دا ده: لايزال اُمتي، مونږ به يي انشاء الله تعالی په باب ثواب هٰذه الامتي کښې بيان کړو.

**حل اللغات:** ① كِفْلٌ: أَيْ: نَصِيبٌ: حصه، ② سَنَّ: چه طريقه ئې شروع کړې ده.

---

(١) اخرجه البخاری کتاب الحج/باب خلق آدم صلوات الله عليه وذريته(رقم-٣٣٣٥) ومسلم کتاب القسامة والمحاربين والقصاص والديات/باب بيان إثم من سن القتل(رقم-٢٧ - (١٦٧٧) والترمذی باب العلم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء الدال على الخير كفاعله (رقم-٢٦٧٣) ابن ماجة کتاب الديات باب التغليظ فی قتل مسلم ظلما(رقم-٢٦١٦)اخرجه احمد فی المسند:١/٣٨٣

**تسهيلات:**

**قوله:** اِلَّا كَانَ عَلَى ابْنِ اٰدَمَ الْاَوَّلِ كِفْلٌ مِنْ دَمِهَا:

**دابن آدم څخه مراد:** کوم سړي چې د ظلم په طريقه قتل شی نو د هغه د وينې يوه حصه د آدم دَ آدم ﷺ ړومبې څوئ (قابيل) باندې دَ هغه دَ وينې حصه وی.دَ هغه واقعه دَ قرآن په دې آيت کښې بيان کړې شوې ده.(وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَاَ ابْنَيْ اٰدَمَ بِالْحَقِّ ۘ اِذْ قَرَّبَا قُرْبَانًا فَتُقُبِّلَ مِنْ اَحَدِهِمَا وَلَمْ يُتَقَبَّلْ مِنَ الْاٰخَرِ ۭ قَالَ لَاَقْتُلَنَّكَ ۭ قَالَ اِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللّٰهُ مِنَ الْمُتَّقِيْنَ) [1]

علامه نووی ﷫ فرمائی څوك هم چه څه غلط کار شروع کوی نو هغه ته به دَ دغې گناه هم وی اوڅوك چه په دې عمل کوی دَ هغه ټولو گناه به هم ده ته ملاوېږی.اودا سلسله به دَ قيامته پورې روانه وی.[2]

**دبدکار شروع کولو خطرناک انجام:** په دې حديث شريف تنبيه ده چه سړې دې څه داسې کار نه شروع کوی چه دَ شريعت نه خلاف او خراب کاروی اوروستو بيا خلق په دې کار کښې دَ ده تقليد کوی.نودا دومره لوئ جرم دې چه دَ قيامته پورې څوك دغه کار کوی نودَ دې ټولوگناه به دَ دې بدعت جاری کونکی دَ پاره وی.لکه چه دَ دې نه وړاندې روايت کښې راغلی وو که څوك يوه ښه طريقه جاری کړی نودَ دې ثواب به دغه طريقه جاری کونکی ته دَ هميشه دَ پاره ملاويږی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۲۱۲] د طالب علما نو دپاره د فرشتو وزرې خورول

۲۱۲-(۳)[۱۵] ١ عَنْ كَثِيرِ بْنِ قَيْسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ ٢: «كُنْتُ جَالِسًا مَعَ أَبِي الدَّرْدَاءِ فِي مَسْجِدِ دِمَشْقَ ٣ فَجَاءَ رَجُلٌ فَقَالَ: يَا أَبَا الدَّرْدَاءِ! إِنِّي جِئْتُكَ مِنْ مَدِينَةِ رَسُولِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِحَدِيثٍ بَلَغَنِي أَنَّكَ تُحَدِّثُهُ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٤ مَا جِئْتُ لِحَاجَةٍ. ٥ قَالَ: فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ ٦: "مَنْ سَلَكَ طَرِيقًا يَطْلُبُ فِيهِ عِلْمًا سَلَكَ اللّٰهُ بِهِ طَرِيقًا مِنْ طُرُقِ الْجَنَّةِ، ٧ وَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ لَتَضَعُ أَجْنِحَتَهَا رِضًا لِطَالِبِ الْعِلْمِ،

**ترجمه:** ١ حضرت کثير ابن قيس وايې ٢ زه (يوصحابي) حضرت ابودرداء ﷜ سره د دمشق په مسجد کښې ناست وم ٣ چې هغه ته يوسړي راغې هغه اوويل زه د نبي کريم ﷺ د ښار څخه تاته د يوحديث د پاره راغلي يم د هغه په باره کښې ماته معلومه شويده

---

[1]) سورة مائده ۲۷.

[2]) شرح مسلم للنوی.

[3]) اخرجه ابوداود کتاب العلم/باب الحث علی طلب العلم(رقم-۳۶۴۱) وابن ماجة کتاب فی الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/ باب فضل العلماء والحث علی طلب العلم(رقم-۲۲۳)

چې هغه ته د نبي كريم ﷺ څخه نقل كوي [٤] تا ته زما د راتلو د دې څخه علاوه بل هيڅ غرض نشته [٥] په دې اوريدو سره حضرت ابودرداء رضي الله عنه وفرمايل چې) ما د نبي كريم ﷺ څخه دا اوريدلي دي [٦] كوم سړي چې يوه لار (خواه هغه اوږده وي يا مختصره) د علم دين حاصلولو د پاره اختياروي نو الله تعالى ﷻ هغه د جنت په لار بيايي [٧] او فرښتې د طالب علم د رضامندي د پاره خپل وزر غوړوي

> [١] وَإِنَّ الْعَالِمَ يَسْتَغْفِرُ لَهُ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ وَالْحِيتَانُ فِي جَوْفِ الْمَاءِ [٢] وَإِنَّ فَضْلَ الْعَالِمِ عَلَى الْعَابِدِ [٣] كَفَضْلِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ عَلَى سَائِرِ الْكَوَاكِبِ، [٤] وَإِنَّ الْعُلَمَاءَ وَرَثَةُ الْأَنْبِيَاءِ، [٥] وَإِنَّ الْأَنْبِيَاءَ لَمْ يُوَرِّثُوا دِينَارًا وَلَا دِرْهَمًا، [٦] وَإِنَّمَا وَرَّثُوا الْعِلْمَ، [٧] فَمَنْ أَخَذَهُ أَخَذَ بِحَظٍّ وَافِرٍ». [٨] رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ وَسَمَّاهُ التِّرْمِذِيُّ قَيْسَ بْنَ كَثِيرٍ.

ترجمه: [١] او د عالم د پاره هرهغه شي چې په اسمانونو كښې دننه دي (يعني فرښتې) او هغه چې زمكي په سر دي (يعني پيريان او انسانان) او ماهيان چې په اوبو كښې دننه دي دعاء مغفرت كوي [٢] او په عابد باندې عالم ته داسې فضيلت دي [٣] څنګه چې د څوارلسمې سپوږمې تولو ستورو باندې فضيلت لري [٤] او عالمان د انبياؤ وارثان دي [٥] انبياؤ په وراثت كښې دينار او درهم نه دي پريښې [٦] د هغوئ ورثه علم دي [٧] چا چې علم حاصل كښې هغه كامله حصه پيدا كړه [٨]، احمد، ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجه او ترمذي د راوي نوم قيس ابن كثير ذكر كړي دي ليكن صحيح كثير بن قيس دي څنګه چې صاحب مشكوٰة نقل كړي دي.

**حل اللغات:** ① سَلَكَ : أَيْ: دَخَلَ أَوْ مَشَى: روان شي، لاړ شي، ② لَتَضَعُ : وَهِيَ فَرْشُ الْجَنَاحِ وَبَسْطُهَا: غوړوي، خوروي. ③ أَجْنِحَتَهَا: وزرې خپلې. ④ الْحِيتَانُ : د حُوت جمع ده، مني او كب ته وائي. ⑤ الْبَدْرِ : أَيْ: لَيْلَةَ الرَّابِعَ عَشَرَ: د څوارلسمې شپې سپوږمۍ ته بدر وائي. ⑥ بِحَظٍّ : يَعْنِي نَصِيبًا: حصه، نصيب، ⑦ وَافِرٍ: أَيْ تَامًّا: كامله، پوره.

**تسهيلات:**

**قوله: كُنْتُ جَالِسًا مَعَ أَبِي الدَّرْدَاءِ فِي مَسْجِدِ دِمَشْقَ :**

**د مسجد دمشق محل وقوع :** دمشق د صحابه كرامو مركز وو. او ددين د سپايانو يو لاره وه. او د فوجيانو بندرګاه وه. هم په دې ځائې به صحابه كرام تيريدل او افريقې ته به تلل. دا د صحابه كرامو يو خصوصيت وو چې هغوئ به د علم او طلب علم په لار كښې ډير مشقتونه زغمل. هم په دې سلسله كښې ديو صحابي دا سفر دې. دده شوق او جذبې ته اوګورئ چې مدينې منورې نه تر شام پورې تقريبًا اته سوه كلوميټره سفر صرف په يو حديث پسې كوي. بل ئې څه مقصد نه وو.

ځینې روایاتو کښې راغلی دی چې دا صحابی د سورلۍ څخه لاندې هم نه وو راکوز شوې چې دعلم دا سفرخالص دعلم دپاره اوشی. سبحان الله دا وو د نیت د اخلاص مقام.

**قوله**: بَلَغَنِي أَنَّكَ تُحَدِّثُهُ عَنْ رَسُولِ اللهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**د حدیث اوریدوپه غرض کښې دوه احتمالات:** ① دې کس ته حدیث معلوم وو خو په په واسطې سره حدیث معلوم وو او دائی غوښتل چې پخپله ئې د ابو الدرداء څخه واؤری او علو سند هم حاصل کړی. او د سند واسطه هم ختمه شی. ځکه چې ( الاسناد من الدین ولولا الاسناد لقال من شاء ماشاء )

② اجمالاً ده ته حدیث معلوم وو. د تفصیل معلومولو په غرض ئې سفر اختیار کړو.

**د بیان کړی حدیث په بیانولو کښې دوه احتمالات:**

① دَ کوم حدیث دَ اوریدودپاره چې دا صحابی ددمشق اوړد سفر اختیار کړې وو نو ابو درداء ﷺ ورته هم هغه حدیث کړو،

② حضرت ابو الدرداء چې ددې صاحب شوق اوکتلو نو هغوئ ته ئې دا حدیث د زیری په طور واؤرولو چې په دې سره خوشحاله شی. او ددوئ مطلوبه حدیث ورته جدا بیان کړلو.

**قوله**: وَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ لَتَضَعُ أَجْنِحَتَهَا رِضًا لِطَالِبِ الْعِلْمِ:

**د وزرو خورولو څخه مقصود**: د اعزاز او اکرام او تواضع په طور فرښتې وزرې غوړوی. لکه څنګه چه د بادشاه د اعزاز دپاره دده د ګاډهی مخې ته په میلونو قالین غوړولې کیږی او په دې باندې دده ګاډهی تیریږی.

**د وزرو په خورولو کښې دوه احتمالات:**

① دا حدیث په مجاز باندې محمول وی، یعنی فرښتې تواضع او عاجزی کوی. یعنی وزرې خورول په طلب علم باندې د الله تعالی د رحمت نه کنایه وی.

② دا کلام په حقیقت باندې محمول شی او مونږ ته ددې مشاهده نه وی. وائی چې یو طالب عالم د خپلو پښو لاندې زمکه زور سره اووهله چې فرښتې چرته دی چې زه هغوئ له چقنړی کړم نو دده پښې شلې شوې. (قاله الحافظ توربشتی رحمه الله)

**قوله**: يَسْتَغْفِرُ لَهُ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ:

**دعالمانودپاره د غیرذی عقل څیزونود دعا کولووجه**: حشرات الارض، بهائم، او حیتان فی البحر او میږی وغیره غیر ذی عقل څیزونه د عالمانو دپاره ځکه دعا غواړی چې ځنارونو او حیوانانو ته د خپل خالق او مالك علم وی. او دوئ ته د مرګ او قیامت اجمالی علم هم وی. ددوئ په اجمالی علم کښې داهم دی چې ددوئ بقاء او د کائناتو بقاء ددین دَ بقاء سره تړلی ده. او دَ دین اسلام بقاء د علم او د علماء کرامو د بقاء سره تړلې ده.

که دین پاتې نشی نو د کائناتو وجود هم باقی نه پاتې کیږی. په دې وجه هر ځناور د علماء کرامو د بقاء دپاره دعا کوی چې ددوئ خپل وجود او د کائناتو د عالم وجود محفوظ پاتې شی. عالم بالله او عالم بأمر الله دپاره دا دعاګانې کیږی.

**قوله:** كَفَضْلِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ عَلَى سَائِرِ الْكَوَاكِبِ:

**سپوږمۍ سره د عالم د تشبيه ورکولو وجه**: دا یوه عجیبه تشبیه ده. څکه چه څنګه د سپوږمۍ رڼا سره جهان منور کیږی نو داشان د عالم په علم سره جهان روښانه کیږی. لکه څنګه چې د سپوږمۍ رڼا د نمر د رڼا څخه حاصله شوې ده، همداشان د علماء کرامو د علم رڼا د علم نبوت د رڼا څخه مستفاده ده.

د عوامو مثال لکه د ستورو دې، د علماء کرامو لکه د سپوږمۍ دې. او رسالت مآب لکه دنمر دې. لکه څنګه د نمر په ورځ اندې ستورې بې نوره ښکاری، او دنمر په موجودګۍ کښې سپوږمۍ پټیږی، هم داشان د علماء کرامو په موجودګۍ کښې د عوامو دعلم هیڅ حیثیت نشته دې او درسول الله ﷺ دعلم په وړاندې د علماء کرامو د علم هیڅ حیثیت نشته دې.

**قوله:** وَإِنَّ الْعُلَمَاءَ وَرَثَةُ الْأَنْبِيَاءِ:

**د وارث حقيقی مصداق**: وارث هغه وی چه د مورث په ټول مال جائیداد کښې حصه دار وی. که چرې صرف په یو څیز کښې حصه داردې نو وارث نه دې بلکه قرض خوا او دائن دې.

**کوم عالمان د وراثة النبی ﷺ مصداق دی؟**: د حضورپاك وارثان به هغه علماء وی چه د حضورپاك اخلاقیات، معاملات، د حضورپاك علوم او امانات، دیانات معاشیات اود معاشرات جامع وی. د حضورپاك د دعوت اوجهاد اود حضورپاك د عباداتو او ریاضاتو امین وی. صرف یوې شعبې پسې لګیدونکې سړې وارث کیدې نه شی. معلومه شوه چه د علماؤنه دلته مراد عالم بامرالله او عالم بالله دی.

**قوله:** وَإِنَّ الْأَنْبِيَاءَ لَمْ يُوَرِّثُوا دِينَارًا وَلَا دِرْهَمًا:

**د شیعه ګانو د غلطې نظریې تردید**: ددې جملې نه معلومه شوه چه انبیاء کرامو مادی میراث نه دې پریخودې. بلکه روحانی میراث یعنی علم ئې پریخودې دې. نو روافض په خپلې دې قول کښې په غلطئی باندې دی چه حضرت فاطمه ﷺ ته د حضورپاك میراث ورنه کړې شو. مونږ تپوس کوو چه کله حضورپاك اوفرمائیل چه زما میراث به نه تقسیمیږی [ما ترکناه فهو صدقة] کوم څه چه مونږ پریخودل هغه ټول په مسلمانانو باندې صدقه ده نومیراث د کوم ځائی نه راغلو؟ پریږده څه فرض کړه میراث وو نو حضورپاك په خپل ژوند کښې تقسیم ولې نه کړو؟ یا چه کله حضرت علی ﷺ خلیفه جوړ شو نو هغوی ولې تقسیم نه کړو؟ اود فدك باغ ئې ولې واپس وانخستلو؟

## [۲۳] په عابد باندې د عالم فضيلت

۲۳-(۱)[۱۲] ① وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ الْبَاهِلِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ ②: «ذُكِرَ لِرَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَجُلَانِ: أَحَدُهُمَا عَابِدٌ وَالْآخَرُ عَالِمٌ، ③ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (فَضْلُ الْعَالِمِ عَلَى الْعَابِدِ كَفَضْلِي عَلَى أَدْنَاكُمْ) ④ ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (إِنَّ اللَّهَ وَمَلَائِكَتَهُ وَأَهْلَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ حَتَّى النَّمْلَةَ فِي جُحْرِهَا، وَحَتَّى الْحُوتَ، ⑤ لَيُصَلُّونَ عَلَى مُعَلِّمِ النَّاسِ الْخَيْرَ)». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① ابي أمامه باهلي رضي الله عنه روادي دي ② چې د حضور ﷺ په مخکې د دوو سړو ذکر وشو په هغوئ کښې يو عابد او دويم عالم وو (يعني د حضور ﷺ څخه پوښتنه وشوه چې په دې دواړو کښې کوم يو افضل دې) ③ حضور ﷺ وفرمايل د عالم په عابد داسې فضيلت دي لکه څنګه چې زما فضيلت په هغه سړي دي چې په تاسو کښې د ادنې درجې وي، ④ بيا د دې څخه وروسته حضور ﷺ وفرمايل بلاشبه الله تعالى جل جلاله د هغه فرښتې او د آسمانو او زمکو ټول مخلوقات تر دې چې ميږيان په خپلو سوريانو کښې او ماهيان په (اوبو کښې) ⑤ دهغه سړي د پاره دعا د خير کوي چې خلقو ته خير ښيګړه (يعني علم دين) ورښايي، ترمذي

**حل اللغات:** ① أَدْنَاكُمْ: چه ادنا وی يعنی کم درجې والا وی په تاسو کښې، ② جُحْرِهَا: أَيْ: ثُقْبِهَا: خپلې سوړې ته، خپل غار ته. ③ الْحُوتَ: كب، مښې، ④ لَيُصَلُّونَ: أَيْ: يَدْعُونَ بِالْخَيْرِ: دلته د صلوة نه مراد د خير او برکت دعاګانې غوښتل دي.

۲۳-(۲)[۰] ① وَرَوَاهُ الدَّارِمِيُّ عَنْ مَكْحُولٍ مُرْسَلًا، وَلَمْ يَذْكُرْ: رَجُلَانِ وَقَالَ: ② («فَضْلُ الْعَالِمِ عَلَى الْعَابِدِ كَفَضْلِي عَلَى أَدْنَاكُمْ. ثُمَّ تَلَا هَذِهِ الْآيَةَ: {إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ} [فاطر: ۲۸]» ③ وَسَرَدَ الْحَدِيثَ إِلَى آخِرِهِ.

**ترجمه:** ① دا روايت د مکحول څخه په مرسل طريقه باندې روايت کړي دي چې په هغه کښې د لفظ رجلان ذکر نشته او ويلي يي دي چې حضور ﷺ وفرمايل ② په عابد باندې وعالم ته داسې فضيلت دي لکه څنګه چې زما په تاسو کښې په يو ادنې سړي باندې دي، بيا حضور ﷺ دا آيت اووئيلو: إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ، ترجمه: د الله تعالى جل جلاله په بنده ګانو کښې علماء د الله تعالى جل جلاله څخه ويريږي، ③ بيا يي پوره حديث تر آخره پورې دغسې بيان کړي دي.

**حل اللغات:** ① يَخْشَى: أَيْ خَوْفٌ مَعَ التَّعْظِيمِ: د خشيت نه مراد ويريدل دی سره د تعظيم نه.

---

[۱] اخرجه الترمذی کتاب العلم عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی فضل الفقه علی العبادة (رقم-۲۶۸۵)
[۲] اخرجه الدارمی عن مکحول رقم الحديث ۲۸۹

**تسهيلات:**

**قوله:** كَفَضْلِي عَلَى أَدْنَاكُمْ:

**د مذكوره نسبت وضاحت:** ددې توضيح دا ده چې دا نسبت يو غير متناهي نسبت دې. ځکه چې په کائناتو کښې د نبی رتبه او درجه دومره اوچته ده چې دهغې نه پس دالله تعالی شان دې. نو نبی کريم ﷺ د ادنی (امتی) ا ودخپلې اوچتې در جې او دَ رتبې تفاوت سره دعابد او عالم تشبيه ورکړې ده. داشان د عالم او غير عالم نسبت هم غير متناهي دې. نو څنګه چې د نبی کريم ﷺ دفضيلت اندازه د يو ادنی امتی په مقابله کښې نشی لګولې نو داشان ديو عالم د فضيلت اندازه د يو غير عالم په مقابله کښې نشی لګولې.

**نوټ:** ددې حديث مضمون د حديث نمبر ٢١٢ د مضمون پشان دې مکمله تشريح هلته تيره شوې ده.

**[٢١٥] طالبانو ته د خير رسولو وصيت**

٢١٥-()[١٧] ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «إِنَّ النَّاسَ لَكُمْ تَبَعٌ، ③ وَإِنَّ رِجَالًا يَأْتُونَكُمْ مِنْ أَقْطَارِ الْأَرْضِ يَتَفَقَّهُونَ فِي الدِّينِ، ④ فَإِذَا أَتَوْكُمْ فَاسْتَوْصُوا بِهِمْ خَيْرًا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① ابي سعيد خدري رضي الله عنه راوي دي ② چې رسول الله ﷺ وفرمايل خلق ستاسو (يعني د صحابه رضي الله عنهم) تابع دي ③ او ډير خلق په علم دين باندې د پوهيدو د پاره د اطراف عالم څخه تاسو ته راځي ④ نو کله چې هغه تاسو لره راشي نو د هغوئ سره د خير ښيګړې معامله کوي. ترمذي

**حل اللغات:** ① تَبَعٌ: د تَابِعٌ جمع ده، لکه خَدَمٌ چه د خَادِمٌ جمع ده، تابعداری او پيروی کولو ته وائی. ② أَقْطَار: أَيْ: جَوَانِبُهَا: اطرافو ته وائی. ③ فَاسْتَوْصُوا: مَعْنَاهُ مُرُوهُمْ بِالْخَيْرِ وَعِظُوهُمْ وَعَلِّمُوهُمْ: يعنی خير ښيګړه ورسره کوئ، نصيحت ورته کوئ او علم ورته زده کړئ.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ النَّاسَ لَكُمْ تَبَعٌ:

**صحابه د حق معيار دی:** يعنی اې صحابوُ راتلونکی خلق په دين کښې ستاسو تابع دی. تاسو د خپلو راتلونکو خلقو د پاره متبوع يئ، هغوئ به ستاسو په نقش قدم باندې روان وی، او ستاسو زمانې کښې به تاسو ته راځی او ستاسو څخه به دعلم زدکړه کوی. ددې

(١) اخرجه الترمذی کتاب العلم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الاستيصاء بمن يطلب العلم (رقم-٢٦٥٠) وابن ماجة کتاب فی الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/ باب الوصاة بطلبة العلم (رقم-٢٤٩)

حدیث څخه دا خبره واضح شوه چې صحابه کرام دَ راتلونکی امت دپاره معیار د حق دی.

**قوله: فَإِذَا أَتَوْكُمْ فَاسْتَوْصُوا بِهِمْ خَيْرًا:**

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① چې کله هغه خلق ستاسو مخکښې له راشی نو دهغوئ د ښکړې دپاره هغوئ ته نصیحت کوئی. په دې کښې کوتاهی مه کوئی. دهغوی ښهٔ تربیت کوئی.

② زه تاسو ته نصیحت کوم تاسو ددوئ باره کښې زما نصیحت قبول کړئی. او دوئ سره ښیګړه اوکړئی.

**د دینی مدارسو د طالبانو عظمت:** ددې حدیث پاك څخه ثابت شو چې ددینی مدارسو طلباء کرام د نبی کریم ﷺ ملیمانه دی، ددوئ ناقدری نه دی کول پکار. الحمد لله د حدیث پاك دا نقشه نن هم په دینی مدارسو کښې موجود ده.

**[۲۴] د خیر د خبرې د لټولو ترغیب**

۲۴-()[۱۸] [۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲](«الْكَلِمَةُ الْحِكْمَةُ ضَالَّةُ الْحَكِيمِ، فَحَيْثُ وَجَدَهَا فَهُوَ أَحَقُّ بِهَا»). [۳]رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَإِبْرَاهِيمُ بْنُ الْفَضْلِ الرَّاوِي يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ.

**ترجمه:** [۱]ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې نبی کریم ﷺ وفرمایل [۲]په دین کښې فایده ورکونکي خبره د هوښیار سړي مطلوب ده نو هغه چې چېرته دا پیدا کښې د دې مستحق دي، [۳]ترمذي، ابن ماجه او ترمذي ویلي دي چې دا حدیث غریب دي او په دې حدیث کښې یو راوي ابراهیم ابن فضل دي چې په روایت د حدیث کښې ضعیف ګڼل کیږي.

**حل اللغات:** ① الْحِكْمَةُ: هِيَ الْفِقْهُ فِي الدِّينِ: حافظ توربشتی رحمه الله فرمائی چې د حکمت څخه مراد فقاهت دې، د دانائی خبره ده. علمی نکته او علمی مسئله ده. ② ضَالَّةُ: أَيْ: مَطْلُوبُهُ: ورک شوې څیز چه دهغې په طلب او تلاش کښې وی، یعنی مقصودی ضروری ورک شوې څیز. ③ الْحَكِيمِ: هُوَ الْمُتْقِنُ لِلْأُمُورِ: هر یو کار په مضبوطیا او په ښه طریقه سره کوښکې.

**تسهیلات:**

**قوله: فَحَيْثُ وَجَدَهَا:**

**دحیث په مفهوم کښې دوه احتمالات:** ① چې ددین خبره وی نو دَ عمل دَپاره چه کوم نیك او مؤمن کس ته دا ملاؤ شی نو دا دې قبوله کړی. او په دې دې عمل اوکړی. ﴿انظروا الی ما قیل ولا تنظروا الی من قال﴾ په دې سوچ کښې مه پریوزئی. چې ما دا خبره د یو

[۱]) اخرجه الترمذی کتاب العلم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی فضل الفقه علی العبادة (رقم-۲۶۸۷)

کمزوری کس څخه آؤریدلي وه، په دې باندې زه څنګه عمل اوکړم؟ که د يو بزرګ څخه مې آؤريدلي وي نو عمل به مې پرې کړې وې.

② يعنی د خیر خبره چې چرته څخه هم ملاؤشي نو دا مسلمان لره پکار دی چې دا قبوله کړی کیدې شی اول داخبره د نااهل سره وه،اوس اهل ته ملاؤ شو نو ددې قدر دې اوکړی.

**نصیحت د هرچا څخه قبلول**:شیخ سعدی رحمه الله هم دا حقیقت ظاهر کړې دې فرمائی

مرد باید که گیرد اندر گوش ............ گر نوشت است پند بر دیوار

ظلاست آنچه مدعی گوید ............ خفته را خفته کے کند بیدار

يعنی انسان له پکار دی چې نصیحت قبول کړی که هغه په يو ديوال باندې ليکلې شوې ولي نه وی. مدعی غلط وائی چې يو اودهٔ کس بل اودهٔ کس څنګه راپاسوی. (ګوره د ديوال دَ نصيحت نه فائده اوشوه،خلاصه دا چه علمی نکته دَ مؤمن نه ورکه شوې متاع ده).

## [۲۱۷]عالم دين په شيطان باندې د زرو عابدانو نه زيات سخت دي

۲۱۷-(۱)[۱۹] [۱]وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ [۲]فَقِيْهٌ وَاحِدٌ اَشَدُّ عَلَى الشَّيْطَانِ مِنْ اَلْفِ عَابِدٍ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَةَ.

**ترجمه**: [۱]ابن عباس رضي الله عنه راوي دي چې نبی کريم ﷺ وفرمايل [۲]يو فقيه (يعني عالم دين) په شيطان باندې د يوزر عابدانو څخه زيات سخت دي. ترمذي ابن ماجه

**حل اللغات**: ①أَشَدُّ:صيغه د اسم تفضيل ده، ډير سخت.

**تسهيلات**:

**قوله**:فَقِيْهٌ وَاحِدٌ......مِنْ اَلْفِ عَابِدٍ:

**دفقيه اوعابد څخه مراد**: فقيه څخه مراد هغه کس دې چې د دين اسلام پوهه ورته حاصل وی. که هغه په هر ځائې کښې وی او په هره شعبه کښې وی. عابد څخه مراد هغه عابد دې کوم ته چې فرائض معلوم وی خو د احکامو مقاصد نه پيژنی. عابد څخه مراد جاهل عابد نه دې ځکه چې هغه پخپله خطرناك وی،

**دعبدالقادر جيلانی اوشيطان واقعه**:يوه قصه مشهوره ده چې يو ځل ابليس د حضرت شيخ عبد القادر جيلانی رحمه الله په خدمت کښې د شپې په وخت کښې حاضر شو، او فضا ئې په رنګارنګ رڼاګانو سره ښائسته کړه او وې وئيل چې زه فرښته يم او الله تعالی راليږلې يم چې عبدالقادر جيلانی رحمه الله ډير عبادت کړې دې او اوس هغه معاف دې، هغه ته دَ نور عبادت کولو ضرورت نشته دې.

---

۱) اخرجه ترمذی کتاب العلم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ باب ما جاء فی فضل الفقه على العبادة (رقم-۲۶۸۱) وابن ماجة کتاب فی الایمان وفضائل الصحابة والعلم باب فضل العلماء والحث على طلب العلم(رقم-۲۲۲)

شيخ عبد القادر جيلاني رحمه الله جواب ورکړو چې لرې شه مردود شيطانه، الله تعالى نبي کريم ﷺ تر مرګه پورې د عبادت کولو پابند جوړ کړې وو خه څوك يم چې ماته به معافي اوکړې شي. ابليس اووئيل چې هم اوس ما څلويښت پيران په دې طريقه ګمراه کړل. خو تاسره لوئي علم وو چې په هغې بچ شوئې.

شيخ ورته اووئيل چې ورك شه شيطان مردوده خه په علم سره نه بلکه دالله تعالى په فضل سره بچ شوم

**[۲۱۸] د علم حاصلولو فرضيت**

۲۱۸-(۲۰) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ [۲] طَلَبُ الْعِلْمِ فَرِيْضَةٌ عَلٰى كُلِّ مُسْلِمٍ وَمُسْلِمَةٍ [۳] وَوَاضِعُ الْعِلْمِ عِنْدَ غَيْرِ أَهْلِهٖ كَمُقَلِّدِ الْخَنَازِيْرِ الْجَوْهَرَ وَاللُّؤْلُؤَ وَالذَّهَبَ، [۴] رَوَاهُ ابْنُ مَاجَةَ وَرَوَى الْبَيْهَقِيُّ فِيْ شُعَبِ الْإِيْمَانِ إِلٰى قَوْلِهٖ مُسْلِمٍ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ مَتْنُهٗ مَشْهُوْرٌ وَإِسْنَادُهٗ ضَعِيْفٌ وَقَدْ رُوِيَ مِنْ أَوْجُهٍ كُلُّهَا ضَعِيْفَةٌ.[1]

**ترجمه:** [۱] انس رضي الله عنه راوي دي [۲] چې نبي کريم ﷺ وفرمايل علم حاصلول په هر مسلمان سړي او ښځې باندې فرض دي [۳] او نا اهل ته علم ښودل داسې دي لکه يو سړي چې د خنزير په غاړه کښې د جواهراتو ملغلرو او د سرو زرو هار واچوي، [۴] (ابن ماجه) او بيهقي دا روايت په شعب الايمان کښې د لفظ مسلم پورې نقل کړي دي او ويلي يې دي چې د دې حديث متن مشهور دي او اسناد يې ضعيف دي او دا حديث په مختلفو طريقو سره بيان شوي دي او هغه ټول ضعيف دي.

**حل اللغات:** ① وَاضِعُ الْعِلْمِ: علم ښودونکې، علم زده کونکې. ② مُقَلِّد: چاته غاړه کښې اچول. ③ الْجَوْهَرَ: جواهرات، ④ اللُّؤْلُؤَ: ملغلرې (د سرو زرو په شان قيمتي دهاتونه دي).

**تسهيلات:**

**قوله: طَلَبُ الْعِلْمِ فَرِيْضَةٌ:**

**دعلم د فرضيت مصداق:** ضروري علوم خو په هرمسلمان باندې فرض دی يعنی هرعاقل بالغ مسلمان ښځه اوسړی باندې دَ حالت راهنه حدپورې علم فرض دې. دَحالت راهنه مطلب دادې چه په کوم حالت کښې هم مسلمان دې دَهغه حالت دَجائزيانا جائز کيدودَحد پورې علم حاصلول فرض دی. دَدې نه علاوه مصادر اوماخذ معلومول فرض کفايه دی. په علاقه کښې دَدې قسم جيدعالم موجودګی فرض کفايه ده ګنی ټول په ټول به ګناهګاران وی.

[1] ) اخرجه ابن ماجة كتاب فى الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/ بَابُ فَضْلِ الْعُلَمَاءِ وَالْحَثِّ عَلَى طَلَبِ الْعِلْمِ (رقم-۲۲۴)

**قوله: غَيْرِأَهْلِهِ:**

**د غیر اهل مصداق:** دنا اهل خلقو نه مراد هغه خلق دی چه د دنیا طالب، اهل اهواء او اهل بدعت دی. یا دنا اهل نه مراد هغه نالائق طالبان دی په کوم کښې چه دعلم دین د زده کړې صلاحیت نه وی. نو دهغوی مخې ته علم پیش کول او وړاندې کول دعلم ناقدری ده لکه چه دخنزیر په غاړه کښې د ګلونو امیل یاد جواهراتو اوملغلرو اویاد سرو زرو هار واچولې شی.

**قوله: كَمُقَلِّدِ الْخَنَازِيْرِ:**

**نا اهل ته د علم خودلو په مذمت کښې بلیغه تشبیه:** په دې جمله کښې نالائق کس او بې ادب طالب علم ته دعلم خودلو مثال خودلې شوې دې چه نالائق اوبې ادب ته علم خودل داسې دی لکه چه یوسړې د سرو زرو او سپینوزرو هار او د ملغلرو اوجواهراتو هار د خنزیر په غاړه کښې زوړند کړی. لکه څنګه چه خنزیر یونالائق اومبغوض اومنحوس ښاور دې. اوده ته د جواهراتو اوملغلرو هار اچول د دغه جواهراتو توهین دې. دغه شان بې ادب اوګستاخ ته علم خودل دعلم توهین دې. ځکه چه دین دادب اواحترام نوم دې دعارفینو کلام دې "الدین کله أدب" یعنی دین ټول ادب دې. قال الشاعر:

**[٢٨] په منافق کښې دوه خویونه نه جمع کیږی**

٢٨-()[٢١] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ([٢] «خَصْلَتَانِ لَا تَجْتَمِعَانِ فِي مُنَافِقٍ: حُسْنُ سَمْتٍ، وَلَا فِقْهٌ فِي الدِّينِ»). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ابوهریره رضی الله عنه راوي دي [٢] چې نبي مکرم ﷺ وفرمایل دوه خصلتونه داسې دي چې په منافق کښې نه جمع کیږی ① یو نیک خلق (ښه خوي) ② دویم دیني پوهه. ترمذي

**حل اللغات:** ① خَصْلَتَانِ: دوه عادتونه، خویونه، ② حُسْنُ سَمْتٍ: أَيْ: خُلُقٍ وَسِيرَةٍ: ښه اخلاق، ښه سیرت، ③ فِقْهٌ فِي الدِّينِ: یعنی د دین اسلام پوهه.

**تسهیلات:**

**قوله: خَصْلَتَانِ لَا تَجْتَمِعَانِ فِي مُنَافِقٍ:**

**په منافق کښې د مذکوره دواړو خصلتونو د نه جمع کیدو وجه:** منافق که عملی وی او که اعتقادی وی په ده کښې مذکوره دوه خصلتونه ځکه نه جمع کیږی که په منافق کښې دا دواړه خصلتونه جمع شو نو په حق اوباطل کښې به فرق پاتې نشی ددې وجې په منافق کښې د دې دواړه خلصتونه جمع کیدل نشی کیدې ځکه چې منافق د اسلامی اخلاقو څخه هم مرحوی وی اود دین اسلام څخه هم محروم وی ځکه چې دا دواړه خصلتونه نور

[١] اخرجه الترمذی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/ باب ما جاء فی فضل الفقه علی العبادة (رقم-٢٦٨٤)

او باطني رڼا ده او منافق د دې نور څخه محروم وي.

**دعلامه طيبي تحقيق:** علامه طيبي رحمه الله فرمائي چې ددې حديث مطلب دا نه دې چې په منافق کښې دا دواړه خصلتونه نه جمع کيږي يوپه کښې راتلې شي بلکه مقصود مسلمانانوته ترغيب ورکول دي چې دا دواړه صفتونه په ځان کښې پيدا کړئ.

**قوله:** حُسْنُ سَمْتٍ:

**دحسن سمت څخه مراد:** حسن خلق او خوش خلقي ته حسن سمت وئيلې شوي دي. د ښو اخلاقو مطلب دادې چې د الله تعالى مخلوق دپاره يو مجسمه جوړ شي. او د خيرښيګړې ذريعه جوړ شي. دوست او دښمن ورته تول برابر په نظر راځي. دا اسلامي ښه اخلاق دي. او دا په منافق کښې نه وي. يو تاجرانه اخلاق وي کوم چې يو تاجر اخستونکي سره برقرار ساتي. حديث مبارك کښې دا اخلاق مراد نه دي. دريم قسم د مشن اخلاق وي. لکه انګريزانو کښې د مشن تحت اخلاق وي. هغوئ هرې يوې بې حيايئ ته د اخلاقونوم ورکوي او مسلمانان ګمراه کوي. دا خو اخلاق نه دي بلکه بداخلاقي ده.

**قوله:** وَلَافِقْهٌ فِي الدِّينِ:

**د فقه في الدين حقيقت:** علامه توريشتي رحمه الله فرمائي چې حقيقة في في الدين څخه مراد دا دې چې کله د دين صحيح قدر اوحقيقت په زړه کښې پيدا شي نوددې په وجه د الله تعالى معرفت اود نبي عليه السلام صداقت اود قرآن په حقانيت په زړه کښې يقين پيدا شي اوبيا د دې ظهور په ژبې سره اوشي اوعملي جامې ورته حاصله شي.اوهم دې خوف اوتقوى او ويره وئيلې شي.

**[٢٢٠] په طلب علم د في سبيل الله اطلاق**

٢٢٠–()[٢٢] ١ وَعَنْ أَنَسٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ٢ («مَنْ خَرَجَ فِي طَلَبِ الْعِلْمِ فَهُوَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ حَتَّى يَرْجِعَ»). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ١ انس رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ٢ کوم سړي چې د کور څخه د علم حاصلولو د پاره ووتې هغه چې ترڅو پورې کورته واپس رانشي د الله جل جلاله په لار کښې دي. ترمذي، دارمي

**حل اللغات:** ① فِي سَبِيلِ اللَّهِ: أَيْ: فِي الْجِهَادِ: د في سبيل الله نه مراد جهاد دې.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَهُوَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ:

**د طالب علم په في سبيل الله کيدو څخه مراد:** طالب علم چونکه علم په دې سفر ډير

[١] اخرجه الترمذي كتاب العلم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فضل طلب العلم (رقم-٢٦٤٧)

زيات مشقتونه برداشت كوى، په دې وجه ده ته د مجاهده فى سبيل الله ثواب ملاويږى دا مطلب نه دې چې طالب مجاهد فى سبيل الله جوړ شى بلكه مطلب دادې چې دده د مشقتونو او كوششونو په وجه ده د جهاد فى سبيل الله ثواب ملاويږى. ددې حديث په وجه ځينې فقهاء كرام مصرف زكوة فى سبيل الله كښې مجاهدينو سره طلباء علم دين هم شامل كړى دى.

**[۲۲۱] د علم طلب د صغيره ګناهونو كفاره**

۲۲۱-(۱)[۲۳] [۱]وَعَنْ سَخْبَرَةَ الْأَزْدِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲]«مَنْ طَلَبَ الْعِلْمَ كَانَ كَفَّارَةً لِمَا مَضَى». [۳]رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ ضَعِيفُ الْإِسْنَادِ وَأَبُودَاوُدَ الرَّاوِي يُضَعَّفُ.

**ترجمه:** [۱]سنجره ازدي رضي الله عنه راوي دي چې رسول اكرم ﷺ وفرمايل [۲]كوم سړي چې علم طلب كوي نو هغه د هغه د تيرو (صغيره) ګناهونو د پاره كفاره كيږى [۳]، ترمذي، دارمي، او امام ترمذي فرمايلي دي دا حديث ضعيف الاسناد دي يعنى د دې حديث يو راوي ابوداؤد په روايت حديث كښې ضعيف شمارل كيږي.

**حل اللغات:** ① كَفَّارَةً: وَهِيَ مَا يَسْتُرُ الذُّنُوبَ: د كفاره نه مراد ګناهونه رژول او ختمول دى. ② مَضَى: كوم چه تيرشوى دى (يعنى مخكينى ګناهونه).

**تسهيلات:**

**قوله: كَانَ كَفَّارَةً:**

**د علم په طلب سره د ګناهونو معاف كيدل:** كه دې نيك عمل سره دې كس توبه اوويستله نو دده واړه لوې ګناهونه ټول معاف كيږى. اوكه توب او نه باسى نود علم بركت سره واړه ګناهونه معاف كيږى. او لوې ګناهونه به كمزورى شى.

**قوله: هَذَا حَدِيثٌ ضَعِيفُ الْإِسْنَادِ:**

**د حديث تضعيف:** امام ترمذى رحمه الله ددې حديث سند ضعيف ګرزولې دې. او وئيلى ئې دى چې ابوداود نومې راوى ضعيف دې. ياد ساتى چې دا راوى د ابو داؤد شريف مؤلف نه دې بلكه بل څوک كس دې چې ضعيف دې.

**[۲۲۲] د مؤمن په علم نه مړيدل**

۲۲۲-(۲)[۲۴] [۱]وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲]«لَنْ يَشْبَعَ الْمُؤْمِنُ مِنْ خَيْرٍ يَسْمَعُهُ حَتَّى يَكُونَ مُنْتَهَاهُ الْجَنَّةَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

---

[۱] اخرجه الترمذى كتاب العلم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فضل طلب العلم (رقم-۲۶۴۸)

[۲] اخرجه الترمذى كتاب العلم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى فضل الفقه على العبادة (رقم-۲۶۸۶)

**ترجمه:** [١]ابو سعيد خدري ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢]مؤمن په خير (علم) نه مړيږي هغه اوري (يعني حاصلوي) يي تر دي چې د هغه انتها جنت وي. ترمذي

**حل اللغات:** ① لَنْ يَشْبَعَ: هيچرې نه مړيږي ② مُنْتَهَاهُ: أي: غَايَتُهُ: انتهاء او آخري حد.

**تسهيلات:**

**قوله:** حَتَّى يَكُونَ مُنْتَهَاهُ الْجَنَّةَ:

**طالب علم ته د خاتمې بالخير بشارت:** ددې حديث څخه معلومه شوه چې يو كس په حقيقت كښې د علم طلب كوى نو دې به سوء خاتمې څخه محفوظ وى څكه چې د ده منتهى جنت دې نو جنت ته كافر نشى داخليدې.

**[٢٢٣] د علم د پټولو سزا**

٢٢٣-()[٢٥][١]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[٢]«وَمَنْ سُئِلَ عَنْ عِلْمٍ عَلِمَهُ ثُمَّ كَتَمَهُ[٣]، أُلْجِمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِلِجَامٍ مِنْ نَارٍ» "رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١]ابو هريره ﷺ راوي دي چې نبى كريم ﷺ وفرمايل [٢]د كم سړي څخه چې د علم څه داسې خبره وپوښتل شى چې هغه ته معلومه وي خو هغه پټه كړه (يعني ني ونښودله) [٣] نو د قيامت په ورځ به د هغه په خُله كښې د اور واگي واچول شي. احمد، ابوداؤد، ترمذي

**حل اللغات:** ① كَتَمَهُ: پټ ئي اوساتلو دغه علم (دا وعيد د فرائضو او واجباتو متعلق دي). ② أُلْجِمَ: أي: أُدْخِلَ فِي فِيهِ لِجَامٌ: د اور د واگې مطلب دادې چې دا كس به دوزخ كښې داخليږى. څكه چې د اور واگې بل چرته نشى اچولې كيدې.

**تسهيلات:** **قوله:** ثُمَّ كَتَمَهُ:

**د علم د بيانولو ضرورت:** دَدې حديث نه په ظاهره دامعلوميږى چه كله هم څوك سوال اوكړى نو زر دَ هغې جواب وركوه. حضرت شاه ولى الله محدث دهلوى ﷫ فرمائى چه سوال كونكى ته په جواب وركولوكښې دومره وخت لګول چه هغه اول خپله خبره پوره كړى دا دَ علم په پټولوكښې داخل نه دى. حضرت شيخ الهند ﷫ فرمائى دَ دې حديث نه دا مسئله ښكاره كيږى چه دَ مسئلې جواب وركول ډير زر ضرورى دى.(٣) علم پټول دَ ګناهونو نه دى. (٤)

**قوله:** أُلْجِمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِلِجَامٍ مِنْ نَارٍ:

**دعلم په پټولو دوعيد دپاره درې شرطونه:** دَ علم دَپټولو دَ وعيد مستحق كيدو دَ پاره علماء كرامو يوڅو شرطونه بيان كړى دى چه په دې كوم يو شرط هم راغلو نودَ علم

---

[١] اخرجه الترمذى كتاب العلم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ باب ما جاء فى كتمان العلم (رقم-٢٦٤٩)اخرجه احمد فى المسند:٢٦٣/٢

پټولو په ګناه کښې به وی.

① چه پخپله په مسئله کښې تردد وی دَ دې تردد په وجه پټوالی کوی نوګناهګار نه دی.
② چه سوال کونکی صادق طالب نه وی دَ هغه څه بل څه مطلب وی نو په نه خودلو باندې څه ګناه نشته.
③ هلته بل څوک دَ مسئلې خودونکې نه وی اوکه هلته بل څوک عالم وی نو دَ علم دَ پټولو په وعید کښې به داخل نه وی. (۵)

| ۲۲۴ـــ()[۰]وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ عَنْ أَنَسٍ. |
|---|

**ترجمه:** او ابن ماجه دا د حضرت انس ﷛ څخه روایت کړی دی.

**[۲۲۵] د فخر د پاره د علم حاصلولو سزا**

| ۲۲۵ـــ()[۲٦] [۱]وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ( [۲]«مَنْ طَلَبَ الْعِلْمَ لِيُجَارِيَ بِهِ الْعُلَمَاءَ أَوْ لِيُمَارِيَ بِهِ السُّفَهَاءَ، أَوْ يَصْرِفَ بِهِ وُجُوهَ النَّاسِ إِلَيْهِ [۳]: أَدْخَلَهُ اللَّهُ النَّارَ») رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. |
|---|

**ترجمه:** [۱]کعب بن مالک ﷛ راوي دي چې نبی کریم ﷺ وفرمایل [۲]کوم سړي چې علم په دې غرض سره حاصل کښې ①چې د هغه په ذریعه په علماؤ باندې فخر وکړي ②د ناپوهانو سره جګړې وکړي ③او خلق د ځان طرف ته متوجه کړي [۳]نو الله تعالی ﷻ به هغه په جهنم کښې داخل کښې، ترمذي

| ۲۲٦ـــ()[۰]وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ عَنِ ابْنِ عُمَرَ. |
|---|

**ترجمه:** او ابن ماجه دا حدیث د حضرت ابن عمر ﷠ څخه روایت کړی دی.

**حل اللغات:** ①لِيُجَارِيَ: أَيْ لِيُقَاوِمَ: دا دمجارات څخه دی. تکبر، تعلی او فخر او مباهات ته وائی. ② لِيُمَارِيَ: أَيْ: يُجَادِلَ: چه جګړه اوکړی ③السُّفَهَاءَ: دا د سَفِیه جمع ده، وَهُوَ قَلِيلُ الْعَقْلِ: کم عقل او ناپوهه ته وائی. ④يَصْرِفَ: أَيْ: يُمِيلَ: راوګرځوی، راواړوی (په دې علم سره).

**د راوي مختصر تعارف:** نوم ئې کعب، کنیت ئې ابوعبدالله د پلار نوم ئې مالک د مور نوم ئې لیلی بنت زید بن ثعلبه وو د بنو سلمه قبیلې سره ئې تعلق وو د جاهلیت په زمانه کښې ئې ابو بشر کنیت وو نبی کریم ﷺ ورته کنیت بدل کړو او ابو عبدالله ئې ورکته کیخودلو په عقبه ثانیه کښې د اویا کسانو سره دې هم شامل وو (۴)

[۱] ) اخرجه ابن ماجة کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب من سئل عن علم فکتمه(رقم-۲٦۴)
[۲] ) اخرجه الترمذی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/ باب ما جاء فیمن یطلب بعلمه الدنیا (رقم-۲٦۵۴)
[۳] ) اخرجه ابن ماجة تاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/ب باب الانتفاع بالعلم والعمل به(رقم-۲۵۳)
[۴] ) بخاری (۵۵۰۱۱)-

**په غزواتو کښې شرکت:** په جنګ بدر کښې شریک شوې نه وو د احد نه پس په ټولو غزاګانو کښې ئې شرکت کړې وو په تبوک کښې ئې شرکت کړې نه وو اګرچه اراده ئې وه او د دې غزا دپاره حضرت کعب ﷺ اوښ هم تیار کړې وو خو په نن صبا کښې پاتې شو تردې چه نبی کریم ﷺ واپس تشریف راوړلو بیا پنځوس ورځې پس د دوی توبه قبوله شوه

**د فتنې نه اجتناب:** د حضرت امیر معویه ﷺ او حضرت علی ﷺ دواړو د جنګونو نه یو طرف ته وو د نبی کریم ﷺ په زمانه کښې په مسلمانانو کښې درې شاعران وو په هغوی کښې یو کعب ﷺ هم وو د دوی په کلام کښې ډیر اثروو کله چه د دوس قبیلې خلقو ددوی دوه شعرونه واویدل نو ټول مسلمانان شول

قضینا من تهامة کل ریب　　وخیبر ثم اغمدنا السیوفا
نخیرها ولو نطقت لقالت　　قواطعهن دوسا وثقیفا

**ترجمه:** د تهامه او خیبر د خلقو نه مونږ کینه لرې کړه او توری مو په تیکو کښې واپس کړې، اوس مونږ هغوی دوباره راپاسوو اوکه وئیلی شو نو اوبه وایو چه اس د دوس یا ثقیف نمبر دې

**وفات:** د حضرت امیر معاویه ﷺ په زمانه کښې په ۵۰ هجرئ کښې د ۷۷ کالو په عمر کښې وفات شو.

**مرویات:** د دوی د روایاتو تعداد ۸۰ دې په بخاری او مسلم کښې درې روایات متفق علیه دی او په بخاری کښې یو او په مسلم کښې دوه منفرد دی

**تسهیلات:**

**توله:** مَنْ طَلَبَ الْعِلْمَ لِيُجَارِيَ بِهِ الْعُلَمَاءَ:

**دعلم مقصد:** علم یو نور دې. او دا دالله تعالی د صفاتو څخه یو صفت دې ددې په حصول سره دَ انسان په ظاهری او باطنی حالت کښې صالح انقلاب راتلل پکار دی. او د علم مقصد دا کیدل پکار دې چې دا کس دَ رسول کریم ﷺ په نیابت او وراثت علمی کښې ددین دا رڼرا د الله د مخلوق زړونو کښې او ددوئ په دماغونو کښې واچوی او هغه روښانه کړی.

**عالمانو سره دمناظرې دپاره علم کول:** که څوک علم د دې دپاره کوی چې عالمانو سره به پرې مناظرې کوم اوهغوی به رسوا کوم نودا د علم مقصد نه دې اودا کس ګناهګار دې.په دې علم ده ته دفاندې په ځائې نقصان رسیږی.

**توله:** أَوْ لِيُمَارِيَ بِهِ السُّفَهَاءَ:

**جاهلانو سره جګړو دپاره علم کول:** دغه شان که څوک د ناپوهه او جاهلو خلقو سره دجګړو دپاره علم کوی چې په هغوی باندې خپل رعب قائم کړی نودا علم هم د

هلاکت باعث دي.

**قوله**: أَوْيَصْرِفَ بِهِ وُجُوهَ النَّاسِ إِلَيْهِ;

**د شهرت دپاره علم کول**: دغه شان که څوک د دې دپاره علم کوی چې صبا زه لوئې شخصیت جوړ شم اوپه خلقوکښې مې يو مقام اؤ عزت جوړ شی اودهغوی څخه دنيا حاصله کړم. نودا نيت هم د اخلاص سره منافی دې. ددې څخه توبه ويستل پکار دی.

**قوله**: أَدْخَلَهُ اللَّهُ النَّارَ:

**د بې اخلاص علم نتیجه**: علم ډير لوئې دولت دې خو چې په دې کښې هم اخلاص نه وی نو دجنت په ځائې د علم خاوند جهنم ته ځی. لکه څنګه چې په حديث کښې راځی چې د ټول څخه اول به جهنم ته درې قسمه خلق اچولی شی په هغوی کښې يو قاری او عالم دې چې په علم کښې ئې

**[۲۲۷] د علم په ذريعه د دنيا د متاع حاصلولو سزا**

۲۲۷—( )[۲۷] [۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲]" «مَنْ تَعَلَّمَ عِلْمًا [۳]مِمَّا يُبْتَغَى بِهِ وَجْهُ اللَّهِ، [۴]لَا يَتَعَلَّمُهُ إِلَّا لِيُصِيبَ بِهِ عَرَضًا مِنَ الدُّنْيَا ;[۵]لَمْ يَجِدْ عَرْفَ الْجَنَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ» " يَعْنِي رِيحَهَا. رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه**: [۱]ابوهريره رضی الله عنه راوي دي چې نبی کريم ﷺ وفرمايل [۲]چا چې هغه علم [۳]چې په هغه سره د الله تعالى جل جلاله رضا طلب کيږي [۴]په دې غرض سره زده کې چې د هغه په ذريعه د دنيا متاع حاصل کړي [۵]نو د قيامت په ورځ به هغه ته د جنت خوشبويي هم نه حاصليږي. احمد ابوداؤد، ابن ماجه

**حل اللغات**: ① يُبْتَغَى: أَيْ: مِمَّا يُطْلَبُ: چه تلاش او طلب کولې شی په هغې سره، ② عَرَضًا: أَيْ: حَظًّا مَالًا: څه حصه دمال اوعزت، ③ عَرْفَ: أَيْ رِيحَهَا الطَّيِّبَةَ: دجنت خوشبوداره هواګانې

**تسهيلات**:

**قوله**: مَنْ تَعَلَّمَ عِلْمًا:

**دعلم حاصلولو غرض**: يعنی دَعلم دَ حاصلولو نه غرض صرف او صرف دنياوی نودَهغه دَپاره دا وعيد دې که په حصول علم سره ئی غرض دَدين حفاظت اودَ الله تعالى خوشحالی اورضا وی اوبيا په دې باندې دَ دنيا ترتب اوشی اوده ته دنياهم حاصله شی نو په دې کښې څه حرج نشته. اواکثرهم داسې کيږی چه الله تعالى داسې عالم ته دين اودنيا دواړه ورکوی.

[۱]) اخرجه ابوداود كتاب السنة/باب فی طلب العلم لغير الله تعالى(رقم-۳۶۶۴) اخرجه احمد فی المسند:۳۳۸/۲ وابن ماجة كتاب فی الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب الانتفاع بالعلم والعمل به(رقم-۲۵۲)

**قوله**: لَمْ يَجِدْ عَرْفَ الْجَنَّةِ:

**سوال**: دلته یوشبه ده چه داسړې به کله هم دَ جنت بوئی نه محسوسوی نودَدې مطلب داشو چه دا سړې خوکافر شو حالانکه شرعی قاعده داسې نه ده؟

**جواب**: دَدې شبه دوه جوابات دی اول جواب دادې چه اول خل داخلیدوسره به دَ جنت خوشبوئی نه بوئی کوی بلکه دَ سزا او عذاب تیرولونه پس به جنت ته ځی.

**دویم جواب**: دادې چه کوم سړی دَالله تعالی دَ رضادَپاره علم حاصل کړو اودَ دنیاوی اغراضونه جدا ئی دَ دین خدمت کولو هغه به دَ حشرپه میدان کښې دَ جنت دَداخلیدونه وړاندې دَ جنت خوشبوئی حاصلولې شی. ځکه چه دَهغه مسامات به کولاؤوی نو په میدان حشرکښې دَهغې خوشبوئی نه مزه اخلی. لیکن چه کوم سړی دین دَ دنیاوی اغراضو دَپاره حاصل کړې وی او په هغې کښې دَ الله تعالی دَ خوشحالولو شائبه نه وی نو په دغه فاسدو اغراضو سره به دَ هغه دَ بدن مسامات بند شوی وی لهذا هغه به په میدان حشرکښې دَ جنت دَ خوشبوئی نه محروم وی. دا یوه ځان له خبره ده چه هغه به بیاجنت کښې داخلیږی مګر په میدان حشرکښې به دَ جنت دَ خوشبوئی دَ خوند اومزې نه محروم وی.

**دریم جواب**: دادې چه دا "تغلیظًا تشدیدًا تهدیدًا" فرمائیلی شوی دی.

### [۲۲۸] طالب او عالم دپاره د رسول الله ﷺ دعا

۲۲۸—()[۲۸] [۱] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] "«نَضَّرَ اللَّهُ عَبْدًا سَمِعَ مَقَالَتِي فَحَفِظَهَا وَوَعَاهَا وَأَدَّاهَا، [۳] فَرُبَّ حَامِلِ فِقْهٍ غَيْرِ فَقِيهٍ، [۴] وَرُبَّ حَامِلِ فِقْهٍ إِلَى مَنْ هُوَ أَفْقَهُ مِنْهُ. [۵] ثَلَاثٌ لَا يَغِلُّ عَلَيْهِنَّ قَلْبُ مُسْلِمٍ: إِخْلَاصُ الْعَمَلِ لِلَّهِ، وَالنَّصِيحَةُ لِلْمُسْلِمِينَ، وَلُزُومُ جَمَاعَتِهِمْ، [۶] فَإِنَّ دَعْوَتَهُمْ تُحِيطُ مِنْ وَرَائِهِمْ»". رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي الْمَدْخَلِ.

**ترجمه**: [۱] ابن مسعود رضی الله عنه راوي دي [۲] چې نبي کریم ﷺ وفرمایل الله تعالیٰ دي هغه بنده تازه لري (یعني قدر ومنزلت دي زیات کړي او د دین ودنیا خوشحالیو سره دي لري) چې هغه زما څه خبره واوریده هغه یي یا د وساتله او څنګه چې یي اوریدلي وه هغسې یي خلقو ته ورسوله [۳] ځکه چې بعضې حامل فقه (یعني د علم دین حامل) فقیه (یعني پوه) نه وي [۴] او بعضې حامل فقه وهغه خلقو ته رسوي چې د هغوئ څخه زیات فقیه (یعني پوه) وي [۵] او دري خیزونه داسې دي چې په هغه کې د مسلمان زړه خیانت نه کوي ① یو خو عمل په خاص طور سره د الله تعالیٰ ﷻ د پاره کول ② د مسلمانانو سره نیکي کول ③ او دریم د مسلمانانو جماعت لازم نیول [۶] ځکه چې د جماعت دعا

[۱] اخرجه الترمذی کتاب العلم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الحث علی تبلیغ السماع (رقم-۲۶۵۸)

دخلورو طرفو څخه په دوي چاپیره وي، شافعي اوبیهقي په مدخل کښې

**حل اللغات:** ① نَضَّرَ: أي الْحُسْنُ وَالرَّوْنَقُ: تروتازګی، ښائست، ② مَقَالَتِي: أي حَدِيثِي: یعنی احادیث، ③ فَحَفِظَهَا: یادول یا محفوظ ئې کړی (په ژبه، زړه یا کتابت سره). ④ وَعَاهَا: أي: دَامَ عَلَى حِفْظِهَا: همیشوالې او اهتمام کوی ددې د یادولو او دحفاظت کولو. ⑤ أَدَّاهَا: أي: أَوْصَلَهَا إِلَى النَّاسِ وَعَلَّمَهَا: یعنی خلقوته ئې اورسوی، خلقو ته ئې اوښائی، ⑥ فَرُبَّ: اسْتُعِيرَتْ لِلتَّكْثِيرِ: ډیر خله (یعنی دکثرت او زیاتوالی ښودلو دپاره استعمالیږی). ⑦ حَامِلِ فِقْهٍ: أي: عِلْمٍ: علم زده کونکې، ⑧ لَا يَغِلُّ: دا د إِغْلَال نه دې خیانت ته وائی، یعنی خیانت نه کوی، ⑨ لُزُومُ: لازم اوسیدل، همیشه کلک اوسیدل، ⑩ تُحِيطُ: أي: تَدُورُ: چاپیره وی.

۲۲۹–(¹)[۰] وَرَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ. إِلَّا أَنَّ التِّرْمِذِيَّ، وَأَبَا دَاوُدَ لَمْ يَذْكُرَا: (ثَلَاثٌ لَا يَغِلُّ عَلَيْهِنَّ) إِلَى آخِرِهِ.

**ترجمه:** احمد، ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجه، دارمي، خو ترمذي او ابوداؤد د حدیث الفاظ: ثَلَاثٌ لَا يَغِلُّ عَلَيْهِنَّ ترآخره نه دی ذکرکړي.

**تسهیلات:**

**قوله: فَرُبَّ حَامِلِ فِقْهٍ غَيْرِ فَقِيهٍ:**

**دمحدثینو دوه قسمونه:** ① بعضې علماء دَ حدیث الفاظ یاد ساتونکی وی هغوی فقاهت او زیاته پوهه نه لری. هغوی دَ الفاظوخو ماهران وی لیکن دَ استنباط نه قاصر وی. او دَمسائلو دَ استخراج نه عاجز وی.

② دَ الفاظو یاد لرونکی بعضې علماء خو پوهیږی مګر هغوی چه دَ چا په وړاندې حدیث بیانوی اکثر وختونوکښې هغه اوریدونکی دَ اورونکی نه زیات عالمان او پوهه وی. لهذا حدیث یاد لرونکوله پکاردی چه هغوی دې حدیث پخپلو الفاظو سره په حفاظت نورو ته اورسوی.

**قوله: ثَلَاثٌ لَا يَغِلُّ عَلَيْهِنَّ:**

**دمذکوره جملې د ماقبل سره مناسبت:** په زیربحث حدیث دحدیث د الفاظویادولو او نورو ته د رسولو ترغیب ورکړې شوې دې. لیکن بعضې وخت په دغه تبلیغ او خوررونوکښې څه بندیزونه راپیښیږی مثلاً ریاکاری یا حسد یا ځان له کیدل یا چرته ګوټ کښې کیناستل دَ دغه تبلیغ نه مانع جوړیږی. هم دَدې دَ بیانولودَپاره ئې مذکوره جمله ارشاد فرمائیلې ده:

¹) اخرجه ابن ماجة كتاب في الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/ باب من بلغ علما (رقم-۲۳۰)

**قوله**: لَا یَغِلُّ عَلَیْهِنَّ:

**د لایغل په اعراب کښې دوه احتمالات**: ① که چرې لَا یُغِلُّ د یاء په پیش او دغین په کسرې سره دَ باب افعال نه اولوستلې شي نودا لفظ دَ غلول نه دې او دَ خیانت په معنی کښې به وی. غلول په مال دَ غنیمت کښې خیانت ته هم وائی. په دې صورت کښې به دَ حدیث شریف مطلب داشی چې په دې دریو واړو څیزونوکښې دَمسلمان زړه خیانت نه شی کولې. بلکه هرمسلمان دَ دې دریو څیزونو متعلق تبلیغ او خورونوکښې بغیردَ څه خیانت نه شوق لري.

② که چرې دَ لَایَغِلُّ دَ یا په زبر سره اودَ غین په زیر سره وی نودا غل دَ حسد اوکینې په معنی کښې دې. په دې صورت کښې دَ حدیث شریف مطلب دا شوچه دَ الله تعالی دَ رضا دَ پاره په اخلاص عمل، دَ مسلمانانو ښیګړه، نصیحت، خیرخواهی اودَ مسلمانانو جماعت سره یوځائی اوسیدل دا درې څیزونه داسې دی په کوم باندې چه دَ یومسلمان په زړه کښې دَ څه قسم کینه اوحسد باقی نه شی پاتې کیدې. هر یو مسلمان به دَ دې دریو څیزونو متعلق په تبلیغ او خورونوکښې هیڅ کوتاهی نه کوی.

**قوله**: وَلُزُومُ جَمَاعَتِهِمْ، فَإِنَّ دَعْوَتَهُمْ تُحِیطُ مِنْ وَرَائِهِمْ:

**دمسلمانود جماعت سره د پاتې کیدو فائده**: اجمله دَدې نه مخکښې [ولزوم جماعتهم] دَپاره تفصیل اوعلت دې. اوفاء دَ تفصیل اوتوضیح دَپاره اخستې شی. مطلب دا چه هرمسلمان په قلبی توګه دَ مسلمانانو جماعت سره تړلې پاتې کیدل پکاردی ځکه چه دَمسلمانانو دَ جماعت دعاګانې دَ ټولو دَپاره عام دی. هغه په جماعت کښې شاملیدو سره دَ دغه دعاګانو مستحق کیدې شی.

**[۲۳۰] د نبي کریم ﷺ د خبرې د رسونکي مقام**

۲۳۰—()[۲۹] [۱] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَقُولُ: [۲] «نَضَّرَ اللَّهُ امْرَأً سَمِعَ مِنَّا شَيْئًا فَبَلَّغَهُ كَمَا سَمِعَهُ، [۳] فَرُبَّ مُبَلَّغٍ أَوْعَى لَهُ مِنْ سَامِعٍ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه**: [۱] ابن مسعود رضی الله عنه راوي دي [۲] چې ما د رسول الله ﷺ څخه واوریدل چې الله ﷻ دي هغه سړي تازه لري (یعني خوشحاله او باعزته دي لري) چې زما څه خبره یي واوریده او څنګه چې یي اوریدلي وه هغسي یي ورسوله [۳] اکثره هغه خلق چاته چې یي رسولي شی د اوریدونکي څخه زیات یاد لرونکي وي، ترمذي ابن ماجه

**حل اللغات**: ① نَضَّرَ: أَيْ: نَوَّرَ: تروتازه او روښانه دې ساتی. ② شَيْئًا: يَعُمُّ الْأَقْوَالَ وَالْأَفْعَالَ: د شیئًا نه

[۱] اخرجه الترمذی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/ باب ما جاء فی الحث علی تبلیغ السماع (رقم-۲۶۵۸)اخرجه احمد فی المسند:۴۳۷/۱ وابن ماجة کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/ باب من بلغ علما (رقم۲۳۲)

مراد د نبي ﷺ او د صحابه كرامو اقوال او افعال دی، ③ نَبَلَّغَهُ: أَيْ: نَقَلَ: اوتې رسول، وړاندې خلقو ته ئې نقل کړی دا اوريدلی اقوال يا افعال، ④ أَوْعَى: أَيْ: أَحْفَظُ وَأَضْبَطُ: ياد لرونکې او اهتمام سره حفاظت کونکې.

٢٣١-( )[٠] وَرَوَاهُ الدَّارِمِيُّ عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ.

**ترجمه:** او دارمي دا حديث د ابو درداءؓ ﷺ څخه روايت کړي دي.

**تسهيلات:**

**نوټ:** د زيربحث حديث تشريح دې څخه وړاندې د حديث نمبر(٢٢٨) په تسهيل کښې تيره شوې ده.

**[٢٣٢] په نبي کريم ﷺ د دروغو ويلو سزا**

٢٣٢-( )[٣٠] [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " [٢] «اتَّقُوا الْحَدِيثَ عَنِّي إِلَّا مَا عَلِمْتُمْ. [٣] فَمَنْ كَذَبَ عَلَيَّ مُتَعَمِّدًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] ابن عباس ﷺ راوي دي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل [٢] زما د جانب څخه حديث بيانولو څخه بچ شی خو هغه حديث بيانوې چې هغه تاسو ربښتيني وګڼئ [٣] او کم سړي چې قصداً په ما درواغ اووائي هغه ته پکار دي چې خپل ځايي په دوزخ کې جوړ کړي، ترمذي

**حل اللغات:** ① اتَّقُوا: أَيْ: احْذَرُوا: اويريږئ، بچ اوسيږئ، ② مُتَعَمِّدًا: په قصد سره، ③ فَلْيَتَبَوَّأْ: جوړ دې کړي، اودې نيسي، ④ مَقْعَدَهُ: د اوسيدو ځائې.

٢٣٣-( )[٠] وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ وَجَابِرٍ، وَلَمْ يَذْكُرْ: «اتَّقُوا الْحَدِيثَ عَنِّي إِلَّا مَا عَلِمْتُمْ» ".

**ترجمه:** او ابن ماجه دا حديث د ابن مسعود ﷺ او د جابر ﷺ څخه روايت کړي دي او هغوئ دا لفظونه نه دي ذکر: اِتَّقُوا الْحَدِيثَ عَنِّي إِلَّا مَا عَلِمْتُمْ.

.....

**[٢٣٤] په قران کښې د خپل عقل څخه د څه ويلو سزا**

---

[١] ) اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحديث ٢٣٠

[٢] ) اخرجه الترمذی كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الذی يفسر القرآن برأيه (رقم-٢٩٥١)

[٣] ) اخرجه ابن ماجة كتاب فی الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب التغليظ فی تعمد الكذب على رسول الله صلى الله عليه وسلم (رقم-٣٠)

۲۳۴—( )[۳۱] [۱]وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲]«وَمَنْ قَالَ فِي الْقُرْآنِ بِرَأْيِهِ فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ». [۳]وَفِي رِوَايَةٍ: «مَنْ قَالَ فِي الْقُرْآنِ بِغَيْرِ عِلْمٍ فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱]ابن عباس ﷺ راوي دي [۲]چې نبي كريم ﷺ وفرمايل كم سړي چې په قرآن كې د خپل عقل څخه څه اوويل هغه ته پكار دي چې خپل ځايي په اُوركي جوړ كړي، [۳]او د يو روايت الفاظ دادي چې كم سړي بغير د علم څخه په قرآن كې څه اووائي هغه ته پكار دي چې خپل ځايي په دوزخ كې جوړ كړي، ترمذي

**حل اللغات:** ① بِرَأْيِهِ: أَيْ: مِنْ تِلْقَاءِ نَفْسِهِ: په خپله رائې سره (يعنى د ايمه ؤ او د اهل لغت اقوالو ته او شرعى قواعدو طرف ته د رجوع كولو نه بغير) ② اى بِغَيْرِ عِلْمٍ: أَيْ: دَلِيلٍ: يعنى بغير د څه دليل نه.

[۲۳۵] په قرآن كښې خپله رايه وركول

۲۳۵—( )[۳۲] [۱]وَعَنْ جُنْدُبٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲]«مَنْ قَالَ فِي الْقُرْآنِ بِرَأْيِهِ فَأَصَابَ فَقَدْ أَخْطَأَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱]جندب ﷺ راوي دي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل [۲]چا چې په قرآن كې د خپلي رايي څخه څه اوويل او هغه د حقيقت او واقع مطابق هم وي نو بيا هم هغه غلطي وكړه، ترمذي، ابوداؤد

**حل اللغات:** ① فَأَصَابَ: أَيْ: وَلَوْ صَارَ مُصِيبًا: اورسيدلو حق ته، يعنى كه اتفاقا هغه صحيح هم وى. ② أَخْطَأَ: أَيْ: فَهُوَ مُخْطِئٌ: نو بيا ئې هم خطاء كار اوكړو.

**د راوي مختصر تعارف:** نوم جندب دَ پلار نوم عبدالله.دَ سفيان بجلى علقى نمسې وو.دا عقله قبيله دَ بجلى يوښاخ دې دَ دې سره دَ هغه تعلق وو.اول په كوفه كښې اوسيدلو بيا بصرې ته لاړو اوهم هلته وفات شو.

**مرويات:** دَ هغه ۴۳ احاديث نقل دى ۱۲ بخارى اومسلم كښې دى په ۷ باندې دَ بخارى اومسلم دواړه متفق دى.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ قَالَ فِي الْقُرْآنِ بِرَأْيِهِ:

دلته مناسب ګڼړم چې د مفتى محمد تقى عثمانى رحمه الله د تصنيف ,,علوم القرآن ،،

[۱] ) اخرجه الترمذى كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الذى يفسر القرآن برأيه (رقم-۲۹۵۰)

[۲] ) اخرجه ابوداود كتاب العلم/ باب الكلام فى كتاب الله بغير علم(رقم-۳۶۵۲) والترمذى كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ باب ما جاء فى الذى يفسر القرآن برأيه (رقم-۲۹۵۲)

تالیف څخه عبارت نقل کړم د کوم ترجمه چې احقرشاه فیصل په پښتو کښې لیکلې ده.

**په قران کښې د رائې د استعمال مفهوم**: علامه ماوردی رحمه الله فرمائی. غلو پسند خلقو ددې حدیث نه دا مطلب اخستلې دې. چې په قرآن کریم کښې څه خبره د فکر او رائې په بنیاد سره کول جائز نه ده. تر دې چې د اجتهاد په ذریعه د قرآن کریم نه داسې معانی راویستل هم جائز نه دی. کوم چې د اصول شرعیت سره مطابق وی. خو دا خیال تیك نه دې. ځکه چې پخپله قرآن پاك د تدبر او استنباط خائې په خائې ستائنه کړې ده. او که فکر او تدبر باندې بالکل پابندی اولګولې شی. نو د قرآن او سنت نه به د شرعی احکامو او قوانینو د راویستلو دروازه بیخی بنده شی. نو ددې حدیث مطلب په هر قسم رائې باندې پابندی لګول نه دی. (۱) په دې خبره د جمهورو عالمانو اتفاق دې. چې د قرآن او حدیث د نورو دلائلو په رنړا کښې ددې حدیث مطلب هرګز دا نه دې. چې په قرآن کښې غور فکر او عقل او رائې ته بیخی څه دخل نشته. بلکه ددې اصل مقصد دې دې. چې د قرآن کریم د تفسیر دپاره چې کوم اصول اجماعی طور باندې مسلم او منلی شوی دی. چې هغه پریږدی. باقی کوم تفسیر صرف د رائې په بنیاد باندې شوې وی. نو هغه ناجائز دې. او که په داسې قسم تفسیر کښې یو کس اتفاقا څه صحیح نتیجې ته اورسی نو بیا هم هغه خطاکار دې. ځکه چې هغه غلطه لاره اختیار کړله. اوس د اصول تفسیر پریخودلو ډیر صورتونه کیدیشی.

**د تفسیر د اصولو پریخودلو صورتونه**: ① کوم کس چې د قرآن کریم په تفسیر کښې د خبروکولو اهلیت نه لری. او هغه صرف په خپله رائې باندې تفسیر شروع کړی.

② چې د یو آیت څه تفسیر ښکاره د نبی ﷺ یا صحابه کرامو رضي الله عنهم یا تابعین نه ثابت وی. هغه پریږدی. او صرف په خپل عقل باندې څه معنی بیان کړی.

③ په کومو آیاتونو کښې چې د صحابه کرامو یا تابعینو نه ښکاره تفسیر نقل نه وی. او په هغې کښې د لغت او ژبې او ادب اصولو د پښخوْ لاندې کړی. او څه بله تشریح بیان کړی.

④ د قرآن او سنت نه براه راست د احکامو او قوانینو د راویستلو د اجتهاد اهلیت نه لری. او بیا هم اجتهاد شروع کړی.

⑤ د قران کریم متشابه آیاتونه (د کومو په باره کښې چې قرآن په خپله وئیلې دی. چې ددې سل فیصده صحیح مراد د الله ﷻ نه سوا بل څوك نه پیژنی.) د هغې په جزم او یقین سره بل تفسیر بیان کړی. او په هغې باندې باقی اوسی.

⑥ چې د قرآن کریم داسې تفسیر بیان کړی. چې په هغې سره د اسلام د نورو اجتماعی

---

۱) ماخوذ از الاتقان ۲/ ۱۸۰ نوع ۷۸]

طور سره مسلم او منلی شوی عقائد یا احکام مجروح شی.
⑤ د تفسیر په معامله کښې چې په کوم ځائې کښې د عقل او فکر استعمال جائز دې. نوهلته یقینی طور دلیل نه بغیر خپله ذاتی رائې تیك او د نورو مجتهدینو رائګانې یقینی طور باطلې ګڼرې.
دا ټول صورتونه،په رائې سره د تفسیرکولو، ، دی.د کومو نه چې په پورتنی حدیث کښې منع شوې ده.په یو بل حدیث کښې دا ټولو صورتونه په یوه مختصره جمله کښې راګیر شوی دی.((من قال فی القرآن بغیر علم فلیتبوأ مقعده من النار)) کوم کس چې په قرآن کریم کښې بغیر د علم نه څه خبره اوکړله.نو هغه خپل ځائې په جهنم کښې تیار کړلو.

**[۲۳۶] په قران کښې جګړه کول کفر دي**

۲۳۶—(۱)[۳۳] ⓵ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "⓶ «الْمِرَاءُ فِي الْقُرْآنِ كُفْرٌ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ⓵ ابوهریره ﷜ راوي دي نبی کریم ﷺ وفرمایل ⓶ په قرآن کې جګړه کول کفر دي، احمد ، ابوداؤد

**حل اللغات:** ① المِرَاءُ: أَي: الجِدَالُ: جګړه کول ② کُفْرٌ: کفردې (څکه چه داتجام نه ئې اونه پریدلو، یا څکه چه جګړه کول په قرآن کښې دا شک دې. اوپه قرآن کښې شک کول کفر دې).

**تسهیلات:**

**قوله: الْمِرَاءُ فِي الْقُرْآنِ كُفْرٌ:**

**په قرآن کښې په جګړې کولود کفرد اطلاق وجه:** یعنی کوم سړې چه دَخپل خواهش پوره کولودَپاره دَ قرآن کریم آیاتونه اونصوص په خپل مینځ کښې ټکراوهی او په هغې کښې بې ځایه تاویل کوی اویوآیت پریږدی اوبل قبلوی داکفردي مثلاً هغه کس آیت ﴿ مَآ أَصَابَ مِنْ مُّصِيبَةٍ فَبِإِذْنِ اللَّهِ ﴾ آیت ﴿ وَمَآ أَصَابَكُمْ مِّنْ مُّصِيبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتْ أَيْدِيكُمْ ﴾ سره متعارض جوړوی اوخپل مینځ کښې جګړه کوی. یوفریق یو ایت اخلی دویم پریږدی اوبل فریق یو آیت اخلی دویم پریږدی نودا صورت دَ جانبینودَپاره دَخطرې اودَ کفرسبب دې. څکه چه دادا سې خطرناك عمل دې چه په مزه مزه دَدې نوبت کفرته رسیږی.

**[۲۳۷] قرآنی آیاتونه د خپلې باطلې نظریې دپاره پیش کول**

۲۳۷—(۲)[۳۴] ⓵ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ ⓶: «سَمِعَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَوْمًا يَتَدَارَءُونَ فِي الْقُرْآنِ، ⓷ فَقَالَ: " إِنَّمَا هَلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ بِهَذَا: ⓸ ضَرَبُوا كِتَابَ اللَّهِ بَعْضَهُ بِبَعْضٍ، ⓹ وَإِنَّمَا

[1]) اخرجه ابوداود کتاب السنة/باب النهی عن الجدال فی القرآن(رقم-۴۶۰۳)اخرجه احمد فی المسند:۲/۲۸۶
[2]) اخرجه ابن ماجة کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/ باب فی القدر(رقم-۸۵)اخرجه احمد فی المسند:۲/۱۸۵

نَزَلَ كِتَابُ اللّٰهِ يُصَدِّقُ بَعْضُهُ بعضًا، فَلَا تُكَذِّبُوا بَعْضَهُ بِبعضٍ. [٦]فَمَا عَلِمْتُمْ مِنْهُ فَقُولُوا، وَمَا جَهِلْتُمْ فَكِلُوهُ إِلَى عَالِمِهِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١]عمرو ابن شعيب رحمه الله د خپل پلار څخه او هغه د خپل نيكه څخه روايت كوي [٢]چې رسول الله ﷺ د يو جماعت په باره کې واوريدل چې هغه په خپلو کې د قرآن په باره کې بحث او جګړې كوي [٣]نو حضور ﷺ وفرمايل بيشكه ستاسو څخه مخکې خلق په دي سبب هلاك شول [٤]چې هغوئ د كتاب الله بعضې حصه په بعضې ووهله يعنى په آيت كې تضاد او اختلاف ثابت كې (چې فلاني آيت د دې آيت مخالف دي او دا آيت د فلاني آيت مخالف دي) [٥]او بېشكه د كتاب الله بعضې حصې د بعضې تصديق كوي نو تاسو د قرآن بعضې حصې په بعضې سره مه دروغ كوي [٦]او د هغه په باره کې چې څومره تاسو پېژني هغه بيان كوي او كومه چې نه پېژني (درته نه وي معلومه) هغه د پوهيدونكو طرف ته وسپاري، احمد، ابن ماجه

**حل اللغات:** ① يَتَدَارَءُونَ: أَيْ: يَخْتَلِفُونَ: اختلاف كول د يوبل سره، د يوبل خبره او دليل رد كولو ته تَدَارُء وائي. دې نه مراد بحث اوجګړه كول اودَ قرآن كريم آياتونه په خپل مينځ كښې ټكراوهل دي. ② ضَرَبُوا: أَيْ: خَلَطَ: چه اوويشتلوهغوى، يوه حصه د بلې حصې سره ګډ وډ كول يا يوه حصه په بله حصه باندې رد كول مراد دى. ③ جَهِلْتُمْ: چه تاسوته معلوم نه وى. تاسو پرې نه پوهيږئ. ④ فَكِلُوهُ: أَيْ: رُدُّوهُ وَفَوِّضُوهُ: واپس كوئ، ور سپارئ.

**د راوي مختصر تعارف:** نوم عمرو، شعيب بن محمدبن عبدالله بن عمرو بن العاص ځوئ دې. هغه په عامه توګه دَ خپل پلارنه اودَسعيدبن المسيب رحمه الله نه روايات اوريدلى دى. داسنددَ احاديثو په كتابونو كښې ډير په كثرت سره موندلې شى. ' ابيه' ضمير دَ عمرو رحمه الله طرف ته راجع دې او د ابيه مصداق شعيب دې.

**تسهيلات:** قوله: عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ:

**د جده په ضمير كښې دوه احتمالات:**

① عمرو دې دَدې مصداق محمد دې. يعنى شعيب دَ عمرو نيكه محمدنه روايت كوى.
② دَ جده مرجع ابيه دې اوس به دَ جده مصداق عبدالله بن عمرو وى كوم چه دَ شعيب نيكه دې. مطلب به دا وى چه شعيب دَ خپل نيكه عبدالله نه روايت كوى. دَ دې احتمالاتو په وجه په دې سندكښې اختلاف شوې دې چه دا سنددَ احتجاج قابل دې كه نه. صحيح رائې دا ده چه دا سند دَ احتجاج قابل دې كم نه كم دَ حسن په درجه كښې دې. اصحاب السنن اوامام احمد رحمه الله وغيره دا سندقبول كړې دې. ([1]) هغه په ١١٨هـ كښې وفات شوې دې.

[1]) ميزان الاعتدال ٢٦٦/٣ وتدريب الراوى ٢٥٧/٢)

**تسهیلات:**

**قوله: قَوْمًا يَتَدَارَءُونَ فِي الْقُرْآنِ:**

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال،**

① شاه ولی الله رحمه الله فرمائی چې د حدیث مصداق هغه خلق دی چې یوفریق د خپلې مدعا دپاره د قرآن پاک یو آیت پیش کړی اوبل فریق بل آیت پیش کړی اوهریو د بل فریق د قرآنی مستدل تکذیب کوی.یا په هغې کښې غلط تاویل کوی.د دوی مقصود د حق اظهار نه وی بلکه دخپل مسلک تائید وی.دا طریقه د هلاکت باعث ده.

② قاضی بیضاوی رحمه الله فرمائی د حدیث مصداق هغه خلق دی چې د تکذیب په غرض دقران پاک بعضې آیاتونه د بعضې نورو سره متضاد ثابتولو کوشش کوی.دا طریقه د هلاکت ده.قرآن پاک د الله تعالی کتاب دې په دې کښې یوه خبره هم د بلې خخه مخالف او متضاد نه ده.اوپه کوموځایونوکښې چې په ظاهره تضاد معلومیږی.په هغې کښې تطبیق پکار دې.د قرآن پاک په متعارض آیاتونو باندې تاسو زما عاجز شاه فیصل یو کتاب ,, آیات متعارضه اودهغې حل،، په نوم مطالعه کولې شئ.په دې کتاب هغه آیاتونه راجمع شوی دی کوم چې په ظاهره متعارض ښکاری.اوبیا په هغې کښې تطبیقات شوی دی. دلته یودوه مثالونه دهغې ځخه رانقل کوم.

**قرانی آیت:** ① ﴿وَاِذْ وٰعَدْنَا مُوْسٰۤى اَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً...الخ﴾ پاره ۱ رکوع ۶ سورۃ البقرۃ

**د اولنی آیت مفهوم:** په رومبی آیت کښ خو فرمائی چه مونږ د موسی علیه السلام سره د ځلویښتو شپو وعده کړې وه چه هغوی دې کوه طور ته د ځلویښتو ورځو دپاره تشریف راوړی مونږ به هغه ته تورات ورکوو

**متعارض آیت:** ② ﴿وَوٰعَدْنَا مُوْسٰى ثَلٰثِيْنَ لَيْلَةً وَّاَتْمَمْنٰهَا بِعَشْرٍ فَتَمَّ مِيْقَاتُ رَبِّهٖۤ اَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً﴾ پاره ۹ رکوع ۷ سورۃ اعراف

**د دویم آیت مفهوم:** او په دې آیت کښ چه د دیرشو شپو وعده اوشوه بیا د لسو شپو اضافه کولو سره ئې ځلویښت ورځې پوره کړې پس په دواړه کښ په ظاهر کښ تعارض دې.

**د تعارض حل:** د دې تعارض جواب دا دې چه په دې دواړو آیتونو د اجمال او تفصیل فرق دې څه تعارض پکښ نشته اصل وعده د دیرشو ورځو وه چه تاسو کوه طور ته تشریف راوړئ او یوه میاشت په عبادت کښ تیره کړئ موسی علیه السلام یوه میاشت د الله پاک په عبادت کښ تیره کړه او مسلسل روژې ئې اونیولې په مینځ کښ ئې افطار اونکړو چه هغې ته صوم وصال وائی په دیرشمه ورځ ئې افطار اوکړو الله پاک ورته اوفرمائیل چه تاسو د روژې هغه بوئی (کوم چه د معدې نه راوچتیږی) ختم کړو کوم چه ماته د مشکو نه هم زیات محبوب دې په دې وجه تاسو لس روژې نورې اونیسئ او موسی علیه السلام لس روژې نورې هم اونیولې

دغه شان دا څلويښت ورځې شوې دا د اربعين تفصيل شو كوم چه په دويم آيت كښې ذكر كړې شوې دې هم دې لره په اول آيت كښې دواړه عددونو لره جمع كولوسره اجمالاً حاصل او نتيجه بيان كړې شوې ده او فرمائي ﴿ وَإِذْ وٰعَدْنَا مُوسَىٰٓ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً ﴾ او هيڅ يو څيز لره د اجمال نه پس تفصيل سره ذكر كولو كښې هيڅ تعارض نشته (جمل، خازن، مدارک، بيان القران)

**قوله: وَمَا جَهِلْتُمْ فَكِلُوهُ إِلَىٰ عَالِمِهِ :**

**دعالم په مصداق كښې دوه اقوال:** ① دلته د عالم نه مراد الله تعالى دې مطلب دا چې په كومو آياتونو تاسو نه پوهيږئ لكه حروف مقطعات يا د الله تعالى صفات لكه، يد ،ساق، وجه، وغيره نو هغه الله تعالى ته اوسپارئ.

② د عالم نه مراد هغه انسان دې چې په قرآن او حديث مهارت لرى.لكه د صحابه كرامو په زمانه كښې حضرت عبدالله بن عباس رضى ا لله عنهما شو.اوداسې وه هم.چې كله به عاموصحابه كرامورضى الله عنهم ته په قرآن كښې څه مشكل پيښ شو.نوعبدالله بن عباس رضى الله عنهما ته په ئې رجوع كوله.

**اشكال:** په ظاهره داسې معلوميږى چې جګړه كونكى صحابه كرامو رضى الله عنهم وو. حالانكه صحابه خوداوچت مقام خاوندان وو.هغوى به څنګه په قرآن كښې داسې اختلاف كړى وى كوم چې پخوانو امتونو په خپلو كتابونوكښې كړې وو.

**داشكال دوه جوابونه:** ① د دې مخاطبين منافقان وو.اومنافقانوچې په قرآن پاک كښې كوم اختلاف كولونو هغه اختلاف د سابقه قومونو د اختلاف سره ملاويدل.

② داسې نه ده چې صحابه كرامو په كتاب الله كښې غلط تاويل اواختلاف كړې وو.بلكه نبى ﷺ دا ارشاد د سداً للباب په طورسره فرمائيلې دې چې تاسو خان په كتاب الله كښې د اختلاف كولو اود دې داسې معنى اخــتلوڅخه اوساتئ كوم چې د قرآن د تكذيب اوستاسو د هلاكت سبب اوګرځى.

**[٢٣٨]د قرآن په اووه لغاتو نازليدل**

٢٣٨-(١)[٣٥] ① وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "② «أُنْزِلَ الْقُرْآنُ عَلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ، ③ لِكُلِّ آيَةٍ مِنْهَا ظَهْرٌ وَبَطْنٌ، ④ وَلِكُلِّ حَدٍّ مَطْلَعٌ» ". رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه:** ① ابن مسعود ﷺ راوي دي ② چې رسول الله ﷺ وفرمايل چې قرآن كريم په اوه شان نازل شوې دي ③ په هغه كې هرآيت لپاره ظاهر دي او باطن دي ④ او د هر حد د پاره يو ځاي د خبر داريدو دي، شرح السنة

[١] اخرجه البذاز وطبرانى فى الاوسط.

**حل اللغات:** ① سَبْعَةِ أَحْرُفٍ: اووه قراءتونه يا اووه لغات (د عربو مراد دی)، ② ظَهْرٌ: ظاهر، ښکاره (چه دتاویل ضرورت پکښې نه وی). ③ بَطْنٌ: پټ (چه تاويل پکښې کولې شی)، ④ حَدٌّ: دَ نهایت او طرف په معنی کښې دې. ⑤ مُطَّلَعٌ: دَ رسیدومقام ته وئیلې شی. د حد معلوم معنی شوه: حَدُّكُلِّ حَرْفٍ مَعْلُومٌ فِي التِّلَاوَةِ: چه په تلاوت کښې د هر یو حرف طرف او انتهاء معلومه ده چه دهغې نه مخالفت کول جائز نه دی.

**تسهیلات:**

**قوله:** أُنْزِلَ الْقُرْآنُ عَلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ:

**د قرآن پاک په اووه لغاتو نازليدل:** د سبعة احرف په مفهوم او مراد کښې مختلف توجیهات شوی دی. کشف الباری شرح صحیح بخاری کښې زما محترم استاذ حضرت سلیم الله خان نورالله مرقده ډیر اوږد تفصیل کړې دې ځوک که دزیات تفصیل طلبګار وی نوما احقر شاه فیصل په پښتو کښې د کشف الباری د څلوریشتو جلدونو ترجمه کړې ده. هغې ته دې رجوع اوکړی. دلته زه د شاه ولی الله رحمه الله تشریح نقل کوم. کومه چې زیاته راجحه ده. حضرت شاه ولی الله رحمه الله فرمائی:

**د احرف لغوی معنی:** "احرف" دَحرف جمع ده کوم چه دَ لغاتو په معنی کښې دې. "ای سبعة لغات"

**په اووه لغاتو د قرآن پاک نزول:** دَ قرآن نزول دَ قریشو په لغت کښې شوې وو مګر دَدې نه علاوه په عربو کښې شپږ لغات مشهور او متعارف وو کوم چه دادی:

① لغت قریش ② لغت بنوطې ③ لغت بنوتمیم

④ لغت هوازن ⑤ لغت اهل یمن ⑥ لغت ثقیف

⑦ لغت هذیل.

دَدې قبائلو لغات چونکه مختلف وو او هره قبیله دَ بلې قبیلې په لغت باندې نه پوهیدله او دَ قرآن کریم لوستل اویادول ګرانیدل. رسول الله ﷺ دَالله تعالی نه دعااوغوښتله نو الله تعالی دَ اوؤ لغاتو پورې آسانی پیداکړه اودَ اووه لغاتو پورې دَ لوستلو اجازت ورکړې شو.

دا اجازت داسې نه وو چه هرلغت کښې اووه قسمه لوستل وو مګر په مجموعی اعتبار سره دَدغه لغاتو شمیر اوؤ ته اورسیدو. دَ قبائلو اختلاف هم داسې وو

لکه پښتوژبه کښې دَمختلف قومونو په نیز دَ لحاف مختلف نومونه دی مثلاً: ① بړستن ② رضائی ③ کنجړ ④ تلتك ⑤ ترنګړ ⑥ نالئی وغیره دا هم دَ یوې ژبې ویونکو قبائلو په ژبه کښې اختلاف دې.

**د مذکوره تشریح تائید دیوي واقعې څخه:** یوعربی کلی وال ته حضرت ابن مسعود ﷺ دا آیت لوستلو. [طعام الاثیم] هغه سړی دَ اثیم لفظ په ژبه باندې نه شو اداکولې. حضرت ابن مسعود ﷺ اوفرمائیل چه "ان طعام الفاجر" وایه هغه به داسې وئیل.

**دقرآن پاک د تدوین درې مراحل:** ① په عهد رسالت کښې قرآن پاک ټول په یوځائې راجمع شوې نه وو لکه نن صبا چې د سورة فاتحه څخه تر والناس پورې ټول په مصحف کښې راجمع دې بلکه د نبی ﷺ په زمانه کښې دمختلفو صحابه کرامو سره دقرآن پاک مختلف آیاتونو او سورتونه په تحریری شکل کښې موجود وو.د قرآن پاک دا متفرق تحریری حصې د نبی ﷺ ترمرګه پورې وی.اوهریوصحابی به د خپل لغت په رڼا کښې قرآن پاک لوستلو.

② بیا دا طریقه دَ حضورپاك څخه دَ صدیق اکبر ﷺ دَ زمانې پورې روانه وه. بیا دَحضرت عمر فاروق ﷺ په اصرارباندې صدیق اکبر ﷺ حضرت زیدبن ثابت ﷺ ته حکم ورکړو چه قرآن کریم په لیکلوسره یوځائی راجمع کړئی په دې لحاظ سره حضرت عمر فاروق ﷺ جامع قرآن مشهورشو.

③ بیادَ حضرت عثمان ﷺ په زمانه کښې مختلف قبائل په اسلام کښې داخل شو اودَ قرآن دَدې اووه لغاتودَ اختلاف دَ وجې نه خپل مینځ کښې تنازعات شروع شو نودَعراق ګورنر حضرت حذیفه بن یمان ﷺ حضرت عثمان ﷺ ته اوفرمائیل چه دا امت دَ اختلاف او افتراق وړاندې بچ کړه. بیاحضرت عثمان ﷺ اوفرمائیل چه قرآن کریم په شروع کښې دَ قریشو په لغت کښې نازل شوې وو. لهذا دَ دغه لغت مطابق قرآن پاك راجمع کړئی اودَ لغت قریش نه علاوه لغات ختم کړئی. نوهم داسې اوشو اوپه دې باندې دَصحابه کرامو اجماع هم اوشوه اوحضرت عثمان ﷺ دَ جامع قرآن په نوم سره مشهور شو.

**قوله**: لِكُلِّ آيَةٍ مِنْهَا ظَهْرٌ وَبَطْنٌ:

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې اووه اقوال:** ① دَهدایت یوظاهر دې یعنی دَدې معانیؤ تعلق دَ اعمال ظاهری سره دې اویوباطن دې یعنی احکام باطنه سره هم دَدې تعلق دې.

② دَهریوآیت یوه ظاهری معنی ده اویوه تاویلی اوباطنی معنی ده نوتاویل باطن دې او ظاهرظاهردې.

③ د ظهر څخه دَ هرآیت یوه ظاهری معنی ده په کوم چې ټول اهل زبان او علماء پوهیږی اود بطن څخه باطنی معنی مراد ده کوم باندې چه علماء باطن او اهل معرفت او طریقت پوهیږی.

④ د ظهر څخه مراد لفظ دې اود بطن څخه مراد معنی ده.

⑤ د ظهر څخه قرآني واقعات اود پخواني قومونو هلاکت مراد دي اود بطن څخه مواعظ اودعبرت خبرې مراد دي.

⑥ دظهر څخه مراد قرآن پاک اود بطن څخه مراد احاديث دي.

⑦ د ظهرڅخه مراد د قرآن پاک قراءت اود بطن څخه مراد په دې کښې غور اوفکر دې.

**قوله: وَلِكُلِّ حَدٍّ مُطَّلَعٌ:**

**تقديري عبارت:** دلته څه عبارت محذوف دې اصل عبارت داسې دې ((ولكل ظهر وبطن حد، ولكل حد مطلع)) يعنې ظهراوبطن دپاره يوحد دې اودهرحد دپاره يوه انتهاء ده.

**دمذکوره جملې مطلب:** دَدې جملې مطلب دا شوچه دَهرآيت دَ ظاهر اوباطن يوحد اويوطرف دې اودَ دغه حد اوطرف يومقام دې کوم ته په رسيدو اودَهغې دَ حاصليدو نه پس سړې په دغه حد اونهايت باندې خبردارشي.

**د ظاهر د مطلع څخه مراد:** نودآيت په ظاهرباندې دَخبردار کيدو مطلب دادې چه دَ عربي ژبې اصول او قواعد اوپيژنئي علم صرف ونحو اوعلم لغت اوپيژنئي اودَ آيت شان دَ نزول او دَ ناسخ او منسوخ علم حاصل کړئي داظاهرته دَ رسيدومطلع اومقام دې.

**د باطن د مطلع څخه مراد:** دَ باطن مطلع دادې چه رياضت اومجاهده کولوسره دَ قرآن حکيم په احکامو اومعانی باندې عمل اوکړې شي. په عبادت باندې خپل زړه اودماغ روښانه کولوسره دَقرآن کريم معارف اواسرارحاصل کړې شي.

**[۲۳٦] علمونه درې دی**

٢٣٦ - (¹)[٣٦] [١] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " [٢] «الْعِلْمُ ثَلَاثَةٌ: آيَةٌ مُحْكَمَةٌ، أَوْ سُنَّةٌ قَائِمَةٌ، أَوْ فَرِيضَةٌ عَادِلَةٌ. [٣] وَمَا كَانَ سِوَى ذَلِكَ فَهُوَ فَضْلٌ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] او عبد الله بن عمرو ﷺ راوي دي [٢] چې رسول الله ﷺ وفرمايل علم درې دي ① آيت محکم (يعني مضبوطه) ② سُنت قائمه ③ فريضهٔ عادله، [٣] او د دې څخه علاوه چې څه دي هغه زائده دي، ابوداؤد، ابنِ ماجه

**حل اللغات:** ① آيَةٌ مُحْكَمَةٌ: أَيْ: غَيْرُ مَنْسُوخَةٍ: داهغه احکام دی چه محکم او بلا تردد او واضحه وی او په هغې کښې دَنسخ امکان نه وی اونه په دې کښې اشتباه وی. لهذا دَمتشابهاتو رجوع هم دَدې محکماتوطرف ته کيږی. په دې جملې سره دکتاب الله حيثيت طرف ته اشاره ده. ② سُنَّةٌ قَائِمَةٌ: أَيْ: ثَابِتَةٌ صَحِيحَةٌ: دَ سنت قائمه نه مراد غيرمنسوخ سنت دی په دې جملې سره سنت رسول الله ﷺ طرف

¹) ابوداود كتاب الفرائض /باب ما جاء فى تعليم الفرائض(رقم-٢٨٨٥) وابن ماجة كتاب فى الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب اجتناب الرأى والقياس (رقم-٥٤)

ته اشاره ده. ③ فَرِيضَةٌ عَادِلَةٌ: أي الْحُكْمُ الْمُسْتَنْبَطُ مِنَ الْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ بِالْقِيَاسِ: يعنی هغه احکام چه په طريقه دَ استنباط دَ قرآن اوحديث دواړو نه مستخرج وی. ③ فَضْلٌ: دا د فُضُولٍ نه ماخوذ دي، يعنی زياتی، يعنی ددې علومو نه ماسوا ټول زياتی او فضول دی.

**تسهیلات:**

**قوله:** الْعِلْمُ ثَلَاثَةٌ:

**دعلم څخه مراد:** يعنی علوم شرعيه معتبره درې دی. او د هغې نه علاوه چه کوم دی هغه د ضرورت نه زياتی او غير ضروری دی وړاندې د هغه دريو بيان دې.

**د علم ثلاثه څخه مراد:** په حديث کښې چې د کومو درې علومو ذکر دې هغه دا دی.

**قوله:** آيَةٌ مُحْكَمَةٌ، أَوْسُنَّةٌ قَائِمَةٌ:

① آيات محکمه: يعنی غير منسوخه يا صريحه چه د تاويل احتمال نه لری.

② احاديث صحيحه ثابته

**قوله:** أَوْفَرِيضَةٌ عَادِلَةٌ:

**د فريضة عادله په مصداق کښې دوه احتمالات:** ① د فريضه عادله څخه مراد هغه احکام او اصول دی چه د هغې نه تقسيم بين الورثة په عدل سره يعنی پوره پوره کيدې شی او دا خبره د علم الفرائض نه حاصليږی

② د فريضة عادلة څخه مطلق هغه فرائض او احکام مراد دی چه په هغې باندې عمل واجب دې، او د عادله نه مراد مساويه، يعنی هغه احکام مستنبطه چه مساوی او موافق وی (ما يوخذ من الكتاب والسنة) والله تعالى اعلم.

**[۲۳۰] درې خلق به قصه بيانوي**

۲۳۰-(۱)[۲۷۴] [۱] وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«لَا يَقُصُّ إِلَّا أَمِيرٌ أَوْ مَأْمُورٌ أَوْ مُخْتَالٌ» "رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] عوف بن مالك اشجعي رضي الله عنه راوي دي [۲] چې رسول الله ﷺ وفرمايل درې خلق به قصه بيانوي ① حاکم ② يا محکوم ③ يا تکبر کونکي، رواه ابوداؤد

**حل اللغات:** ① أَمِيرٌ: أَيْ: حَاكِمٌ: حاکم، بادشاه، ② مَأْمُورٌ: أَيْ: مَأْذُونٌ لَهُ: محکوم يعنی چاته چه دحاکم د طرفه اجازت ورکړې شوی وی او خپل نائب ئې مقرر کړې وی. ③ مُخْتَالٌ: أَيْ: مُتَكَبِّرٌ: غرور او تکبر کونکي چه د حاکم جوړيدو دپاره کوشش کوی.

[۱]) اخرجه ابوداود كتاب العلم/ باب في القصص(رقم-۳۶۶۵)اخرجه احمد في المسند:۶/۲۷

۲۳۱-()[۰] وَرَوَاهُ الدَّارِمِيُّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، وَفِي رِوَايَتِهِ: "أَوْ مُرَاءٍ" بَدَلَ "مُخْتَالٍ"

**توجمه:** او دارمي دا حديث د عمرو بن شعيب ﷺ څخه روايت کړي دي او د دارمي په روايت کې د لفظ مُخْتَالٌ يعنی تکبر کونکي په ځاي او مُرَاءِ (رياکار) دي.

**حل اللغات:** ① مُرَاءٍ: رياکار، ② مُخْتَالٌ: دا لفظ دَاختيال نه دَتکبر په معنی کښې دې.

**د راوي مختصر تعارف:** نوم ئې عوف دَپلار نوم ئې مالك، کنيت ابوعبدالرحمن اودَ قبيله الاشجعی سره ئې تعلق وو. دَ خيبر په غزوه کښې دَ ټولو نه اول شريك شو اوهم هغه سره اسلامی جهنډا وه. دَمکې دَ فتحې په ورځ هم دَ هغه دَ قوم جهنډا دَ هغه په لاس کښې وه. دَ شام په ملك کښې اوسيدلو وائی چه هم هلته دَ هغه وفات په کال ۷۳ﻫ کښې اوشو.

**مرويات:** دَهغه نه ۶۷ احاديث دَاحاديثوپه کتابونوکښې ملاويږی. په هغې کښې شپږ په بخاری اومسلم کښې دی. په يوکښې امام بخاری رحمه الله منفرد اوباقی کښې امام مسلم رحمه الله منفرددي.

**تسهيلات:** **قوله:** لَا يَقُصُّ:

دلته يقص به معنی د واعظ په معنی ده. اوواعظ هغه چاته وائی چې هغه د قرآن اوحديث په رڼا کښې مطلب دادې چه دَ جمعې دَ اخترونو او دَ نورو خطبوحق غيرذمه وار کسانو ته نشته.

**قوله:** إِلَّا أَمِيرٌ أَوْ مَأْمُورٌ أَوْ مُخْتَالٌ:

**درې قسمه واعظان:**

① په حديث کښې د درې قسمه واعظانوذکر دې.

① امير: يعنی هغه اميرچه شرعًا دَمسلمانانو خليفه اوبادشاه وی او په شرعی توګه باندې هم ذمه وار وی.

② مامور: يعنی کوم سړې چه دَشرعی اميراوحاکم دَ طرفه په وعظ نصيحت کولو باندې مامور وی. يانيځ په نيغه دَالله تعالی دَ طرفه مقرروی لکه علماء کرام کله چې حاکمان نااهل اوجاهلان وی. نودا عالمان من جانب الله په وعظ اوتقرير باندې مقرر دی.

③ تکبرکونکې واعظ دې، څوک چې دوعظ کولو په وجه تکبر کوی. نودا دريم کس د وعظ کولو لائق نه دې.

[۱] اخرجه ابن ماجة كتاب العمری/ باب القصص (ر قم-۳۷۵۳) والدارمی فی السنن رقم الحديث ۲۷۷۹

## [٢٣٣] دې غلطې فتوې او مشوره ورکولو ګناه

٢٣٣—( )[٣٨] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] " «مَنْ أُفْتِيَ بِغَيْرِ عِلْمٍ كَانَ إِثْمُهُ عَلَى مَنْ أَفْتَاهُ، [٣] وَمَنْ أَشَارَ عَلَى أَخِيهِ بِأَمْرٍ يَعْلَمُ أَنَّ الرُّشْدَ فِي غَيْرِهِ فَقَدْ خَانَهُ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] ابوهريره ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] کوم سړي ته چې بغير علم څخه فتوې ورکول شوه نو د هغه ګناه به په هغه سړي وي چې هغه هغه ته غلطه فتوې ورکړي ده [٣] او کوم سړي چې خپل يو مسلمان ورور ته د داسې کار په باره کې مشوره ورکړه چې د هغه متعلق هغه پوهيږي چې د هغه خير په هغه کې نشته نو هغه سره يې خيانت وکړلو، ابوداؤد

**حل اللغات:** ① أُفْتِيَ : په صيغه د معروف سره، فتوى ورکونکې،مفتى، ② أَفْتَاهُ: بِمَعْنَى اسْتَفْتَى: چاچه فتوى طلب کړې ده، يعنى مُستفتى، ③ أَشَارَ: بِمَعْنَى الْمَشُورَةِ: مشوره ئې ورکړه، ④ الرُّشْدَ: أَيِ: الْمَصْلَحَةَ: ښيګړه، خير ⑤ خَانَهُ: خيانت ئې اوکړو د مشورې اخستونکى سره.

**تسهیلات:**

**قوله:** مَنْ أُفْتِيَ بِغَيْرِ عِلْمٍ كَانَ إِثْمُهُ عَلَى مَنْ أَفْتَاهُ:

**د فتوى ورکولو دوه صورتونه اود هر يو حکم:** ① دفتوى تپوس کونکى مستفتى باندې لازم دى چه هغه دَ عالم اوماهرمفتى څخه دَ مسئلې پوښتنه اوکړى دې دپاره چه هغه ورته صحيح مسئله اوښائى. که چرې تپوس کونکى دَ يوناأهل نه پوښتنه اوکړه اوهغه غلطه مسئله اوخودله نو په دې غلطئى کښې به مفتى اومستفتى دواړه ګناهګار وى.

② که تپوس کونکى ښه لټون، تحقيق او اعتماد څخه پس دَچا څخه دَمسئلې تپوس اوکړو اوهغه عالم صاحب جبه او دستارخو وو مګر په حقيقت کښې يونابلده تش جاهل وو اوهغه غلطه مسئله ورأوخودله نوصرف هم دغه غير عالم مفتى به ګناهګاروى.

**قوله:** وَمَنْ أَشَارَ عَلَى أَخِيهِ بِأَمْرٍ يَعْلَمُ أَنَّ الرُّشْدَ فِي غَيْرِهِ فَقَدْ خَانَهُ:

**په مشوره کښې خيانت:** که يوکس بل ته غلطه مشوره ورکړه اوده ته دا پته هم وه چې زما دا مشوره غلطه ده که ده پرې عمل اوکړو نو نقصان به ورته رسيږي.نوده ورسره خيانت اوکړو اودې خيانتګرشو.دا ياد ساتئ چې خيانت صرف په محسوس څيزونوکښې نه وى بلکه عزت، راز،دا ټول څيزونه په امانت کښې داخل دى.ددې وجې غلطې مشورې باندې د خيانت اطلاق شوې دې.

[١] ) اخرجه ابوداود كتاب العلم/ باب التوقى فى الفتيا(رقم-٣٦٥٧) وابن ماجة كتاب فى الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب اجتناب الرأى والقياس (رقم-٥٣)اخرجه احمد فى المسند:٢٠/١

**[۲۴۳] د مغالطه ورکولو ممانعت**

۲۴۳-()[۳۹] [۱]وَعَنْ مُعَاوِيَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲]«إِنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نَهَى عَنِ الْأُغْلُوطَاتِ.» رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱]او حضرت معاویه رضي الله عنه وايي [۲]چې رسول الله ﷺ د مغالطه ورکولو څخه منع فرمایلي ده، ابوداؤد

**حل اللغات:** ① الْأُغْلُوطَاتِ: دا د أُغْلُوطَةٍ جمع ده، داسې تپوسونه او سوالونه چه هغه انسان لره په مغالطه او پریشانۍ کښې اچوي.

**تسهیلات: قوله:** نَهَى عَنِ الْأُغْلُوطَاتِ:

**د اغلوطات څخه مراد:** په هره ژبه کښې په خپل خپل اندازسره مشکلې او ګرانې خبرې وی دې ته په پښتو کښې دورې وائي او اردو کښې ورته پهیلیان وائي مثلاً مونږ چې ماشومان وو نودا دوره به مو کوله وایه دا څه دی ,, بې ستنو کوټه په کښې ناست دې شهزاده،، دکوټې څخه به زمونږ مراد قبر وو.اود شهزاده څخه به زمونږ مراد کامل مؤمن وو.

**د اغلوطه مثال:** یوسړې داسې وائي "من قال قال الله فقدکفر" اوس اوریدونکې قال دَ قول ګڼړې او ویونکې دا قیلوله اخلي په دې کښې دَایمان دپاره خطرات دی نودَدې نه منع فرمائیلي شوې ده.

**دحدیث مطلب:** د حدیث مطلب داشوچه علماء کرامو لره په مغالطه کښې اچولودَپاره دَهغوی نه داسې قسم پوښتنه نه دی کول پکار چه پیچیده او ذومعنی کیدودَوجې نه دَ پریشانی او دَ تکلیف دَ رسولوسبب شي.

**د اغلوطات د ممانعت دوه وجوهات:** شاه ولی الله رحمه الله فرمائیلی دی چې د اغلوطات څخه د ممانعت ډیر وجوهات دی په هغو کښې دوه وجوهات دا دی.

① په دې سره بغیرڅه ضرورته عالمان په پریشانۍ کښې اچولی شي.اویومسلمان ته تکلیف ورکول لویه ګناه نو عالم ته خو په طریقه اولی سره ګناه ده.

② تپوس کونکې په داسې قسم تپوس سره خپل فوقیت او علمیت ښکاره کول غواړی اودا تکبر او ریا ده نوځکه په حدیث کښې د دې څخه منع اوشوه.

**[۲۴۴] تاسې فرائض اوقرآن زده کړئ**

۲۴۴-()[۴۰] [۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[۲]«تَعَلَّمُوا الْفَرَائِضَ وَالْقُرْآنَ وَعَلِّمُوا النَّاسَ [۳]فَإِنِّي مَقْبُوضٌ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

[۱] ) اخرجه ابوداود كتاب العلم/ باب التوقي في الفتيا(رقم- ۳۶۵۶)

[۲] ) اخرجه الترمذي كتاب الفرائض عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في تعليم الفرائض (رقم-۲۰۹۱)

**توجمه:** ١ابوهريره ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢تاسو فرائض (يعني فرض ځيزونه يا علم فرائض-ميراث) او قرآن كريم زده كړي او نورو ته يې هم وښايئ ٣ځكه چې زه به قبض كړل شم (يعني د دې عالم څخه به پورته شم. ترمذي

**حل اللغات:** ① الْفَرَائِضَ: أَيِ الْفَرَائِضَ الْإِسْلَامِ أَوْ فَرَائِضَ الْإِرْثِ: دې نه مراد يا د اسلام فرض احكامات دي يا علم ميراث دې. ② مَقْبُوضٌ: أَيْ: سَأُقْبَضُ: زر ده چه زه به قبض كړې شم (يعنى زه هم ستاسو په شان انسان يم دنيا څخه تلونكې يم څه هميشه خوبه ژوندې نه يم، نو تاسو زما د ژوند نه فائده واخلئ).

**تسهيلات:**

**قوله: تَعَلَّمُوا الْفَرَائِضَ:**

**د فرائض په مصداق كښې دوه اقوال:**

① د فرائض څخه علم ميراث مراد دې. ځكه چې علم الفرائض د ميراث نوم دې. او دا منلې شوې خبره ده چې علومو كښې به د تولو څخه اول پورته كيدلو ځيز علم ميراث وى.

② دفرائض څخه د قرآن پاك او احاديثو څخه ثابت شوى احكام مراد دى.

**قوله: وَالْقُرْآنَ:**

يعنى دقرآن پاك د زده كولو اهتمام كوئى ځكه چې زما څخه روسته امت دپاره دهدايت دنجات يوه لارده هغه صرف قرآن پاك دې. اوكه د فرائض څخه احكام فرضيه مراد واخستې شى نو بيا والقرآن په طور د تاكيد ذكر شوې دې چې د دې اهميت واضح شى.

**قوله: فَإِنِّي مَقْبُوضٌ:**

**د اولنى توجيه قرينه:** په اوله توجيه يعنى علم ميراث مراد اخستلو باندې هم دا قرينه ده چې زه دنيا څخه تلونكې يم، تاسو د علم ميراث زيات اهتمام كوئى. او دا خلقو ته هم اوښائى.

**[٢٣٥] علم به د خلقو څخه اوچت شي**

٢٣٥-()[٣١] ١وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ٢: «كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَشَخَصَ بِبَصَرِهِ إِلَى السَّمَاءِ ٣ثُمَّ قَالَ: " هَذَا أَوَانٌ يُخْتَلَسُ فِيهِ الْعِلْمُ مِنَ النَّاسِ، ٤حَتَّى لَا يَقْدِرُوا مِنْهُ عَلَى شَيْءٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**توجمه:** ١ابودرداء ﷺ وايي ٢يوه ورځ مونږ د حضور ﷺ سره ملګري وو چې حضور ﷺ د آسمان طرف ته نظر وكړو ٣او وي فرمايل دا وخت دي چې علم به د خلقو څخه لاړشي ٤تردي چې هغوئ به د علم په ذريعه په هيڅ شي قدرت نه لري.

١) اخرجه الترمذى كتاب العلم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى ذهاب العلم (رقم-٢٦٥٣)

**حل اللغات:** ① نَتَخَصَ: أيْ: رَفَعَ: پورته ئې كړو، بره ئې اوكتل ② أوانُ: أيْ: وقتُ: وخت، ③ يُخْتَلَسُ: أيْ: يُخْتَطَفُ وَيُسْلَبُ: اختلاف د تختولو او اوچتولو په معنى دې. ④ العِلْمُ: دلته د علم څخه مراد د وحى علم دې.

**تسهيلات:**

**قوله:** هَذَا أَوَانٌ يُخْتَلَسُ فِيهِ العِلْمُ مِنَ النَّاسِ:

**د علم په مصداق كښې دوه اقوال:** ① د نبى كريم ﷺ عادت مبارك داوو چې د وحى په انتظار كښې به ئې اكثر آسمان طرفته كتل. دې څل دوحى په دوران كښې نبى كريم ﷺ ته د وحى په ذريعه ددوئ عليه السلام د وفات خبر وركړې شو. نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې اوس وخت راغلو چې وحى بنده شى. يعنى دعلم څخه مراد وحى ده. دې سره نبى كريم ﷺ خپل وفات طرفته اشاره اوكړه.

② دعلم څخه مراد علم دين دې په دې صورت كښې نبى عليه السلام دقيامت ته نزدې د علم پورته كيدو پيشنګوئى وركړه چې علم به د عالمان په وفات كيدو سره ختم شى اوجاهلان خلق به پاتى شى. چې دعلم دين واقفيت به ورسره نه وى.

**[۲۳۶] دمدينې دلوئې عالم پيشنګوئى**

۲۳۶-(۱)[۴۲] ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - رِوَايَةً: ②"«يُوشِكُ أَنْ يَضْرِبَ النَّاسُ أَكْبَادَ الإِبِلِ يَطْلُبُونَ الْعِلْمَ، ③فَلَا يَجِدُونَ أَحَدًا أَعْلَمَ مِنْ عَالِمِ الْمَدِينَةِ»". ④رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَفِي جَامِعِهِ قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ: إِنَّهُ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَمِثْلُهُ عَنْ عَبْدِ الرَّزَّاقِ، ⑤قَالَ إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى: وَسَمِعْتُ ابْنَ عُيَيْنَةَ أَنَّهُ قَالَ: هُوَ الْعُمَرِيُّ الزَّاهِدُ وَاسْمُهُ عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ.

**ترجمه:** ①ابوهريره رضي الله عنه څخه روايتا منقول دي ②هغه زمانه نزدې ده چې خلق به دعلم حاصلولو د پاره د اوښانو ځګرونه وشلوي ③ليكن د مدينې د عالم څخه لوي عالم به هيڅ چېرته پيدا نكړي (ترمذي) ④او په جامع ترمذي كې ابن عيينه رحمه الله څخه منقول دي چې د مدينې هغه عالم مالك ابن انس دي او عبد الرزاق هم دا ليكلي دي ⑤او د اسحق ابن موسى بيان دي ما د ابن عيينه څخه دا واوريدل چې د مدينې هغه عالم عمري زاهد دي يعنى هغه د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د خاندان څخه دي د هغه نوم عبد العزيز بن عبد الله دي

**حل اللغات:** ①يُوشِكُ: أيْ: يَقْرُبُ: نزدې ده، ②يَضْرِبَ: ضرب د وهلو په معنى راځى. خو دلته ترې مراد سفر دې. ③أكْبَادَ: د كبد جمع ده، ځيګر ته وائى.

[۱]) اخرجه الترمذى كتاب العلم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى عالم المدينة (رقم-۲۶۸۰)اخرجه احمد فى المسند:۲/۲۹۹

**تسهيلات:**

**قوله:** يُوشِكُ أَنْ يَضْرِبَ النَّاسُ أَكْبَادَ الْإِبِلِ يَطْلُبُونَ الْعِلْمَ:

**د اكباد الابل څخه مراد:** داوښانو دَ ځيګر وهلوپه لفظ کښې د تيز ا و سريع معنى استعاره ده. ځکه چه کله يو ځناور تيزه منډه وهى نو دده په جګر کښې حرکت پيدا کيږی. لکه چه ځيګر ئى وهلې کيږى. بهر حال ددې جملې څخه لرې سفر مراد دې.

**قوله:** فَلَا يَجِدُونَ أَحَدًا أَعْلَمَ مِنْ عَالِمِ الْمَدِينَةِ:

**دعالم المدينه په مصداق کښې درې اقوال:** دحديث پاك دا پيشن ګوئى د يوې خاصې زمانې د يو مخصوص عالم باره کښې ده. کوم چې به مدينه منوره کښې سکونت اختيارو ی.

① ددې څخه مراد خليفه راشد عمر بن عبدالعزيز دې دا دريم قول دې.

② ددې عالم څخه مراد عمرى زاهد دى. د چا نوم چې عبدلله بن العزيز بن عبدالله دې.

③ سفيان بن عيينه رحمه الله او مشهور محدث شيخ عبدالرزاق رحمه الله د حديث پاك مصداق امام مالك صاحب ګرځولې دې. دَاکثروعالمانو هم دا رائې ده. ځکه چې د ټولې دنيا څخه د لرې لرې نه په زرګونو شاګردان مدينې ته په اوښانو راغلی وو. او پخپله امام مالك رحمه الله د مدينې عالم وو. ځکه چې ورِوکى اودس ماتى او لوې اودس ما تى څخه سوا به دوئ د مدينې منورې نه نه وتل. داسې نور څوك کيدې شى!

**[٢٢٧] په هر سل کاله کښې مجدد**

٢٢٧-()[٣٣] ① وَعَنْهُ، فِيمَا أَعْلَمُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② " «إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ يَبْعَثُ لِهَذِهِ الْأُمَّةِ عَلَى رَأْسِ كُلِّ مِائَةِ سَنَةٍ ③ مَنْ يُجَدِّدُ لَهَا دِينَهَا» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① ابوهريره رضي الله عنه وايي چې د حضور صلى الله عليه وسلم څخه چې ماته څه معلوم دي هغه دا دي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل ② الله تعالى د دې امت د نفع د پاره هر سل کاله ( يعنى په هره صدۍ) کې يو سړي راليږي ③ چې هغه دين تازه کوي. ابوداؤد

**حل اللغات:** ① يَبْعَثُ: دلیږلو اوچتولو او پيداکولوپه معنى کښې استعماليږى. ② رَأْسِ: ددې نه مراد يا ابتداء ده، يا انتهاء ده (کله چه علم او سنت طريقې کمې شى جهالت او بدعت زيات شى). ③ يُجَدِّدُ: أَيْ: يُبَيِّنُ السُّنَّةَ: د دين د نوى کولو نه مراد سنت طريقې واضحه بيانول دى اود بدعت کراهت بيانول دى.

[1] ) اخرجه ابوداود کتاب الترجل /باب ما يذکر فى قرن المائة(رقم-٤٢٩١)

**تسهيلات:**

**قوله:** يَبْعَثُ لِهٰذِهِ الْأُمَّةِ عَلٰى رَأْسِ كُلِّ مِائَةِ سَنَةٍ:

**د رأس څخه مراد:** د رأس اطلاق د صدی په اول هم کيږی اوپه آخر هم کيږی.يعنی الله تعالی به د هري صدی په اول يا په آخر کښې يو مجدد پيدا کوی.

**قوله:** مَنْ يُجَدِّدُ لَهَا دِينَهَا:

**دمجدد تعريف:** مجدد هغه وی چې د علوم دينيه ظاهريه اوباطنيه عالم باعمله وی.د سنت محی اوناصر وی اود بدعت قامع اوختمونکې وی.

**دمجدد مرکزي توقوع:** دَ ټولې دنيادَپاره يومجدد ضروری نه دی بلکه دَ جدا جدا علاقو او ملکونودَپاره په يوه زمانه کښې ډير مجددين کيدې شی. بلکه يوصالح جماعت ته هم مجدد وئيلې کيدې شی. ليکن دمجدد دَپاره ضروری دی چه دَهغه حرکات اوسکنات اودَ هغه اعمال اوافعال دَ رسول الله ﷺ دَ سنت سلسلې سره تړلې شوې وی اودَ ده په وجه په علمی اوعملی اعتبار سره دين ته غلبه حاصله شی. په يولاس کښې ئی قرآن او په بل کښې حديث وی هرمحرك مجدد نه وی.

**دمختلفو زمانو مجددين:** دچا په باره کښې په تعين سره نشی وئيلې چې دا د دې صدی مجدد دې البته په غالب گمان سره وئيلی شی ددې وجې بعضې عالمانو په مختلفو صديانو کښې د مجددينو دا تفصيل ذکر کړې دې.

① داولنی صدی مجدد عمربن عبدالعزيزرحمه الله وو.

② د دويمې صدی مجدد امام شافعی رحمه الله دې.

③ د دريمې صدی مجددين قاضی ابوالعباس ابن شريح شافعی، ابوالحسن اشعری، محمد بن جرير طبری رحمهم الله دی.

④ د څلورمې صدی مجددين ابوبکر بن باقلانی او ابوالطيب صعلوکی رحمهما الله دی.

⑤ دپنځم صدی مجدد امام غزالی رحمه الله دې.

⑥ د شپږمې صدی مجدد امام فخرالدين رازی رحمه الله دې.

⑦ د اوومې صدی مجدد تقي الدين ابن دقيق العيد رحمه الله دې.

⑧ داتمې صدی مجددين زين الدين عراقی،شمس الدين جزری اوسراج الدين بلقينی رحمهم الله وو.

⑨ دنهمې صدی مجددين جلال الدين عبدالرحمن سيوطی، شمس الدين سخاوی رحمهما الله وو.

⑩ د لسم صدی مجددين شهاب الدين رملی او ملا علی قاری رحمهما الله وو.

ددې څخه روسته مجدد شيخ احمد سرهندی رحمه الله وو.اود څلوارلسمې صدی مجدد رشيد احمد گنگوهی وو.

[٢٣٨] د راتلونکي جماعت نيک خلک

٢٣٨ – ()[٣٣] ١ وَعَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الْعُذْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ «يَحْمِلُ هَذَا الْعِلْمَ مِنْ كُلِّ خَلَفٍ عُدُولُهُ، ٣ يَنْفُونَ عَنْهُ تَحْرِيفَ الْغَالِينَ، وَانْتِحَالَ الْمُبْطِلِينَ، وَتَأْوِيلَ الْجَاهِلِينَ» ". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ "

**ترجمه:** ١ او ابراهيم بن عبد الرحمٰن عذري راوي دي چې حضور ﷺ وفرمايل ٢ هر اينده راتلونکي جماعت څخه به د هغه نيك (يعني ثقه معتمد) خلق دا علم (كتاب وسنت) حاصلوي ٣ او هغه خلق به د دې علم په ذريعه (په آيات او احاديثو كي) ① د حد څخه تير شوو خلقو تحريف ② د باطلو افتراء ګاني ③ او د جاهلانو تاويلات لرې كوي، (بيهقي)

**حل اللغات:** ① يَحْمِلُ : أَيْ: يَحْفَظُ: اوچتولو ته وائی، ددې نه مراد حاصلول او زده كول دی. ② خَلَفٍ: هُوَالرَّجُلُ الصَّالِحُ الَّذِي يَأْتِي بَعْدَ أَحَدٍ: خلف په لام باندې فتحه، روسته راتلونكی خو خلقوته وائی دلته دَ خوخلقو جماعت مرادې. ③ عُدُولُهُ: أَيْ: ثِقَاتُهُ: نيک او معتمد پرهيزګاره خلق. ④ يَنْفُونَ: د مضارع صيغه ده، أَيْ: نَافِينَ : لرې كوی، ختموی، ⑤ تَحْرِيفَ: لفظ دخپل مفهوم نه اړول (يعنی غلط مطلب ئې بيانول). ⑥ الْغَالِينَ: د غَلَا يَغْلُو نه، دَ غالِ جمع ده دَحد نه تيريدلو په معنى كښې دې دلته په دين كښې غلوكونكی مبتدعين او اهل بدعت مراد دی. ⑦ انْتِحَالَ : ادِّعَاءُ قَوْلٍ: دَ دروغونسبت ته وائی يعنی دَاهل باطل دَدروغونسبتونه كوم چه هغوی دَعلماؤ او دَ بزرګانو طرف ته كوی او دَ دروغوحوالې وركوی. ⑧ الْمُبْطِلِينَ: باطل پرست خلق، ⑨ تَأْوِيلَ: تاويلونه كول.

**د راوي مختصر تعارف:** نوم ابراهيم دَ پلار نوم عبدالرحمن بن عوف دې. دَ ده كنيت ابواسحاق زهری قرشی دې. دَحضرت عمر بن خطاب په زمانه كښې په وړوكوالی كښې راوړلې شو.

**وفات:** دده وفات ٩٥هـ يا ٩٦ هـ كښې شوې دغه وخت دَهغه عمر ٣٢ كاله وو.

١ رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي كِتَابِهِ الْمَدْخَلِ مِنْ حَدِيثِ بَقِيَّةَ بْنِ الْوَلِيدِ عَنْ مُعَانِ ابْنِ رِفَاعَةَ عَنْ إِبْرَهِيمَ ابْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الْعُذْرِيِّ ٢ وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ جَابِرٍ فَإِنَّمَا شِفَاءُ الْعِيِّ السُّؤَالُ فِي بَابِ التَّيَمُّمِ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَى،

١ (دا حديث بيهقي په خپل كتاب مدخل كې بقية بن وليد څخه نقل كړي دي او هغه د معان بن مرفاعه څخه او هغه د ابراهيم بن عبد الرحمٰن عذري څخه نقل كړي دي) ٢ او د حضرت جابر ﷺ روايت چې د هغه ابتداء دا ده فانما شفاء العي السوال به مونږ په باب تيمم كې بيان كو ان شاء الله تعالی.

**تسهيلات:**

**قوله:** يَحْمِلُ هَذَا الْعِلْمَ مِنْ كُلِّ خَلَفٍ عُدُولُهُ:

---

(١) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث

**د مذکوره جملې ترکیب:** د "هذا العلم" لفظ دَ یحمل دپاره مفعول به دې او "عدوله" دَدې فاعل دې. "من کل خلف" یحمل سره متعلق دې. ملاعلی قاری رحمه الله لیکلی دی چه "من کل خلف" کښې که چرې من زائده شی نو دا دَیحمل فاعل او عدوله به ددې بدل شی.
دعادل تعریف: عدل دَ عادل نه معتدل او افراط اوتفریط نه پاك اوثقه اومعتمد خلق مرادی.

**قوله:** يَنْفُونَ عَنْهُ تَحْرِيفَ الْغَالِينَ:

**دتحریف لغوی معنی:** دا په لغت کښې بدلولو ته وائی.

**دتحریف اصطلاحی تعریف:** د قرآن یا حدیث په نص کښې لفظی یا معنوی بدلون راوستل.

**دتحریف درې قسمونه:**

① هغه لفظی تحریف چې په هغې سره په معنی کښې تبدیلی راځی.

② هغه لفظی تحریف چې په هغې سره په معنی کښې تبدیلی نه راځی.

③ معنوی تحریف: چې د نص الفاظ په خپل ځائې وی خو په معنی کښې تبدیلی راشی.

**دحدیث مطلب:** د الغالین څخه مراد هغه مبتدعین دی چې په قرآن اوحدیث کښې د یو نص کومه معنی وی هغه پرېږدی اود خپل مقصود معنی ترې مراد واخلی. اوپه دې طریقه په نصوص شرعیه کښې تحریف اوتبدیلی راولی.

**قوله:** وَانْتِحَالَ الْمُبْطِلِينَ:

**د انتحال معنی:** انتحال د چا قول یا شعر خپل ځان ته منسوب کولو ته وائی

**دمبطلین په مصداق کښې دوه اقوال:**

① په حدیث کښې د انتحال څخه مراد د دروغژنو خلقو دروغ لرې کول دی.

② په حدیث کښې د انتحال څخه دباطل څیز سره تشبیه ورکول مقصود دی.

**قوله:** وَتَأْوِيلَ الْجَاهِلِينَ:

**تاویل الجاهلین څخه مراد:** د جاهلو د تاویل څخه مراد د قرآن داسې تفسیر کول دی کوم چې د نورو شرعی نصوصو په رڼا کښې صحیح نه وی. لکه دنبی علیه السلام په حق کښې دعیسی علیه السلام پیشن گوئی چې «وَمُبَشِّرًا بِرَسُولٍ يَأْتِي مِنْ بَعْدِي اسْمُهُ أَحْمَدُ» دا په غلام احمد قادیانی باندې حمل کول. دغه شان د نورو باطل پرستو خلقو غلط تاویلونه ټول په دې کښې شامل دی.

# الفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۲۳۹] د علم حاصلولو په وخت کښې د مرګ فضیلت**

۲۳۹–(۱)[۲۵] [۱]عَنِ الْحَسَنِ مُرْسَلًا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲]" «مَنْ جَاءَهُ الْمَوْتُ وَهُوَ يَطْلُبُ الْعِلْمَ لِيُحْيِيَ بِهِ الْإِسْلَامَ، [۳]فَبَيْنَهُ وَبَيْنَ النَّبِيِّينَ دَرَجَةٌ وَاحِدَةٌ فِي الْجَنَّةِ» ". رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱]حسن بصري رحمه الله څخه په طریق مرسل روایت دي چې رسول ﷺ وفرمایل [۲]د کوم سړي مرګ چې په داسې حال کې راشي چې هغه علم حاصلوي او هغه علم په دې غرض حاصلوي چې د هغه په ذریعه اسلام رائج کړي [۳]نو په جنت کې به د انبیاؤ او د هغه په مینځ کې یوازې د یوې درجې فرق وي [او هغه فرق مرتبه نبوت ده]. دارمي

**حل اللغات:** ① لِيُحْيِيَ: دپاره ددې چه اسلام پرې ژوندې کړي (د اسلام ژوندی کولو نه مراد ددې د قواعدو او احکامو تبلیغ او خورول دي).

**د راوي مختصر تعارف:** نوم حسن کنیت ابوسعید دَ پلار نوم یسار دَ هغه مور پلار غلامان وو. ۲۱ه کښې چه کله دَ حضرت عمر فاروق رضی الله عنه دَ خلافت دوه کاله باقی پاتې وو نو پیدا شو. حضرت حسن بصری رحمه الله ته دَ ام المؤمنین حضرت ام سلمه رضی الله عنها د رضاعت شرف هم حاصل دې. دَ دې داسې صورت وو چه دَ هغه مور به هروخت دَ کور په کارروزګار کښې اخته وه نوچه کله به حضرت حسن بصری رحمه الله ژړل حضرت ام سلمه رضی الله عنها به دَ چپ کولودَ پاره خپله سینه مبارکه دَ هغه په خُله کښې ورکوله.حسن بصری دَحضرت ام سلمه رضی الله عنها په غیږ کښې لوئ شوې دَ دې نه علاوه دَ نور ازواج مطهرات کورونوته به هم دَ هغوی تګ راتګ کیدلو. (۳) دَ دې دا برکت شو چه حسن بصری په علمی او روحانی هر اعتبارسره دَ کمال نه ډك وو لکه چه ابن سعد رحمه الله فرمائي: كان الحسن جامعاً عالمًا عاليًا رفيعًا فقيهًا مأمونًا عابدًا ناسكًا كثير العلم فصيحًا جميلاً الخ.
حضرت حسن بصری رحمه الله جامع الصفات وو، اوچته مرتبه، اوچت عزت فقیه وو مامون وو عابد زاهد وو ډیر علم والا وو فصیح اوبلیغ او ښکلي اوښائسته وو.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي: علامةٌ من بحوالعلم فقيه النفس كبير الشأن ديم النظير صليح التذكير بليغ الموعظة رأس في انواع.(۲) علامه نووی رحمه الله فرمائی دَ هغوی دَ جلالت په شان دَ ټولو اتفاق دې. (۲)

---

(۱) اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحديث ۳۵۴
(۲) تذكره الحفاظ ۶۲/۱(۲) تهذيب الاسماء ۱۶۱/۱) (۳)طبقات ابن سعد ۱۲۷/۷) (٤) طبقات ابن سعد)
(۵) ابن خلكان ۱۲۸/۱) (۶) الترمذی فی الفتن باب فی الأمر بالمعروف والنهی عن المنكر)
(۷) الترمذی فی الفتن باب ماجاء فی أفضل الجهاد كلمة عدل عند سلطان جائر)
(۸) الترمذی فی الفتن باب ماجاء فی أفضل الجهاد كلمة عدل عند سلطان جائر)

**وفات:** په آخری وخت کښې ئې لیکونکې راوغوښتلو اوورته ئې لیکل چه حسن دَ دې ګواهی ورکوی چه لااله الا الله محمد الرسول الله.چاچه دَ مرګ په وخت کښې په صدق زړه سره دَ دې ګواهی ورکړه هغه به جنت ته داخلیږی.(۳) ۱۱۲ هـ کښې دَ جمعې په شپه وفات شو.محدث ایوب اوحمیدی الطویل غسل ورکړو.(۴) بله ورځ دَ جمعې په ورځ جنازه اوچته شوه.دومره مخلوق راغلو چه ښار ټول خالی شو.په جامع مسجد بصره کښې دَ مازیګر مونځ کونکې څوک نه وو. (۵)

**تسهیلات:**

**قوله:** عَنِ الْحَسَنِ مُرْسَلًا:

**د حسن مصداق:** دَحسن نه مراد حسن بصری رحمه الله دې. دَتابعینو په طبقه کښې چه کله مطلق دَحسن نوم راشی نودَهغې څخه مراد حسن بصری رحمه الله وی. اودَ صحابه کرامو په طبقه کښې چه کله مطلق دَعبدالله نوم راشی نودې څخه مراد حضرت ابن مسعود رضی الله عنه وی.

**قوله:** فَبَيْنَهُ وَبَيْنَ النَّبِيِّينَ دَرَجَةٌ وَاحِدَةٌ فِي الْجَنَّةِ:

**د عالمانواونبیانوپه مینځ کښې د یوې درجې فرق:** په جنت کښې سل درجې دی کومې چه به انبیاء کرامو علیهم السلام ته ملاویږی. اوکوم خلق چه دَ انبیاء کرامو نائبین علماء دی هغوی ته به یوکم سل درجې ملاویږی. په دې وجه دَهغوی اودَ انبیاء کرامو په مینځ کښې دَ یوې درجې فرق خودلې شوې دې اودادرجه دَ نبوت ده. چه دَعلم دین دَ اشاعت اواحیاء دَپاره چه کوم عالم اوطالب محنت کوی او مړشی نودَ نبوت نه علاوه به ټولې درجې هغه ته ملاویږی.

### [۲۵۰] د عالم فضیلت په عابد باندې

۲۵۰ -()[۳۶] [۱] وَعَنْهُ مُرْسَلًا، قَالَ[۲]: «سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ رَجُلَيْنِ كَانَا فِي بَنِي إِسْرَائِيلَ، [۳] أَحَدُهُمَا كَانَ عَالِمًا يُصَلِّي الْمَكْتُوبَةَ، ثُمَّ يَجْلِسُ فَيُعَلِّمُ النَّاسَ الْخَيْرَ، [۴] وَالْآخَرُ يَصُومُ النَّهَارَ وَيَقُومُ اللَّيْلَ: [۵] أَيُّهُمَا أَفْضَلُ؟ [۶] قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "فَضْلُ هَذَا الْعَالِمِ الَّذِي يُصَلِّي الْمَكْتُوبَةَ ثُمَّ يَجْلِسُ فَيُعَلِّمُ النَّاسَ الْخَيْرَ عَلَى الْعَابِدِ الَّذِي يَصُومُ النَّهَارَ وَيَقُومُ اللَّيْلَ [۷] كَفَضْلِي عَلَى أَدْنَاكُمْ». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حسن بصري رحمه الله څخه بطریق مرسل روایت دي [۲] حضور صلی الله علیه وسلم څخه د بني اسرائیلو د دوو سړیو په باره کې سوال وشو [۳] په هغویٔ کې یو خو عالم وو چې فرض مونځ به یي کوي بیا به ناست وو خلقو ته به یي (د دین) علم ښوولو [۴] او دویم سړي هغه وو چې د ورځي به روژه وو او ټوله شپه به یي عبادت کولو (د حضور صلی الله علیه وسلم څخه پوښتنه

[۱]) اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحدیث ۳۴۰

وشوه) ⑤چې په دي دواړو کې کوم يو بهتر دي؟ ⑥حضور ﷺ ورته وفرمايل هغه عالم چې فرض مونځ يې کوي او بيا يې خلقو ته علم ښوويي په هغه عابد چې د ورځې يې روژه وه او د شپې يې عبادت کوي داسې فضيلت حاصل دي ⑦څنګه چې ماته په تاسو کې په يو ادنې سړي باندې فضيلت حاصل دي. دارمي

**حل اللغات:** ① الْخَيْرُ: أَيِ: الْعِلْمَ وَالْعِبَادَةَ: دخير نه مراد علم دين، عبادت او د زهد او تقوځي وغيره اخلاقو تعليم ورکول دی. ② الْعَابِدِ: عبادت ګذار، ③ أَدْنَاكُمْ: چه ادنا وی يعنی کم درجې والا وی په تاسو کښې.

**تسهيلات:**

**قوله:** كَفَضْلِي عَلَى أَدْنَاكُمْ:

**دعالم څخه مراد:** دلته دَ عالم نه هغه سړې مراددې چه فرائض او واجبات اداکولونه پس باقی وختونه خلقوته دَ دين په خودلوکښې لګوی.

**د عالم د فضيلت وجه:** دَعالم فضيلت خو هم په دې وجه په عابد باندې دې څکه چه عابددَ عبادت په ذريعه صرف خپله نفع غواړی خوعالم علم نورو ته ښانی اودَ نوروګټه غواړی.

**[٢٥١] د فقيه فی الدين دوه صفتونه**

٢٥١-( )[٤٧] ①وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②«نِعْمَ الرَّجُلُ الْفَقِيهُ فِي الدِّينِ; ③إِنِ احْتِيجَ إِلَيْهِ نَفَعَ، ④وَإِنِ اسْتُغْنِيَ عَنْهُ أَغْنَى نَفْسَهُ» "رَوَاهُ رَزِينٌ.

**ترجمه:** ①علي كرم الله وجهه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ②بهتر سړي هغه دي چې د دين پوهه لري ③كه هغه ته څه حاجت راوړل شو نو هغه نفع ورسوله ④او كه د هغه څخه يې بې پروايي وكړه نو هغه هم خپل نفس بې پروا وساتي. رزين

**حل اللغات:** ① نِعْمَ: بهتر او كامل، ② احْتِيجَ: أَيْ: إِنِ احْتَاجَ النَّاسُ: خلقو ورته څه دينی حاجت راوړی، ③ اسْتُغْنِيَ: چه خلق ترې بې پرواهی اوکړی.

**تسهيلات:**

**قوله:** نِعْمَ الرَّجُلُ الْفَقِيهُ فِي الدِّينِ; إِنِ احْتِيجَ إِلَيْهِ نَفَعَ:

**طلبګارو ته د علم ورکولو فضيلت:**

په حديث کښې دهغه عالم تعريف شوې دې چې د علم توهين نه کوی بلکه که څوک ترې په يوه دينی جذبه تپوس کوی نودې ورته ښه په خوشحالئ جواب ورکوی.اوهغه ته نفع او فائده ور رسوی.او که دخلقو د طلب باوجود دې خپل علم پټ ساتی نو د داسې کس باره کښې په احاديثو کښې وعيدات راغلی دی.الله تعالی دې ترې مونږ محفوظ کړی.

---

[1]) اخرجه رزين

**قوله:** وَإِنِ اسْتُغْنِيَ عَنْهُ أَغْنَى نَفْسَهُ:

**د مستغني عالم فضيلت:** كه څوک دده څخه دعلم طلب نه کوی اود ده دعلم ورسره څخه قدر نه وی نو په دې صورت کښې عالم لره پکار دی چې د خپل علم پخپله د توهين اوسپکاوی څخه حفاظت وکړی.

**علم لره د توهين څخه ساتلو کښې د امام مالک کردار:** امام مالک رحمه الله ته هارون الرشيد وئيلی وو چې تاسو زما دربار ته تشريف راوړئ چې زما بچو ته د قرآن او حديث درس ورکوئ. هغوی ورته اوفرمائيل «العلم يزارو ولا يزور» يعنی خلق په علم پسې خي علم چا پسې نه ورځی. هارون الرشيد ورسره خبره اومنله اوخپل بچی ئې د هغوی حلق درس ته ليګل.

**علم لره د توهين څخه ساتلو کښې د امام بخاری کردار:** دغه شان امام بخاری ته چې کله د بخاری حاکم دا اووئيل چې ته زما دربار ته راځه چې زما بچو ته حديث ښائی نوهغوی ترې انکار اوکړو چې دا د علم اود نبی ﷺ د احاديثو توهين دې.ددې په سزا کښې د بخارا حاکم دې د بخاری څخه جلا وطن کړل او هم د دې جلاوطنې په حالت کښې د خرتنګ په مقام کښې وفات شو خو د حاکم مطالبه ئې اونه منله او علم ئې دسپکاوی څخه بچ کړلو.

**[٢٥٢] د وعظ او نصيت د مؤثر جوړولو اصول**

٢٥٢–(1)[٣٨] [١] وَعَنْ عِكْرِمَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ قَالَ [٢]: «حَدِّثِ النَّاسَ كُلَّ جُمُعَةٍ مَرَّةً، فَإِنْ أَبَيْتَ فَمَرَّتَيْنِ، فَإِنْ أَكْثَرْتَ فَثَلَاثَ مَرَّاتٍ، [٣] وَلَا تُمِلَّ النَّاسَ هَذَا الْقُرْآنَ; [٤] وَلَا أُلْفِيَنَّكَ تَأْتِي الْقَوْمَ وَهُمْ فِي حَدِيثٍ مِنْ حَدِيثِهِمْ [٥] فَتَقُصُّ عَلَيْهِمْ فَتَقْطَعُ عَلَيْهِمْ حَدِيثَهُمْ فَتُمِلُّهُمْ، [٦] وَلَكِنْ أَنْصِتْ، فَإِذَا أَمَرُوكَ فَحَدِّثْهُمْ وَهُمْ يَشْتَهُونَهُ، [٧] وَانْظُرِ السَّجْعَ مِنَ الدُّعَاءِ فَاجْتَنِبْهُ، [٨] فَإِنِّي عَهِدْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَأَصْحَابَهُ لَا يَفْعَلُونَ ذَلِكَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] عکرمه رحمه الله څخه روايت دي چې ابن عباس رضي الله عنهما عکرمه رحمه الله ته وفرمايل [٢] چې ته هره جمعه يو ځل د خلقو په مخکې حديث بيانوه که دا قبول نه کړي (يعني په هفته کې يو ځل وعظ او نصيحت کافي نه ګڼي) نو په هفته کې دوه ځله او که ډير کوي نو په هفته کې ته دري ځله وعظ او نصيحت کولي شی [٣] او ته خلق د دې قرآن څخه مه تنګوه (يعني په هفته کښې د دريو ځلو څخه زيات وعظ او نصيحت کولو سره خلق مه تنګوه) [٤] او زه دي تا داسې حالت کې پيدا نه کم چې ته يو قوم ته ورسي او هغه په خپلو خبرو کې مشغول وي [٥] او ته د هغوئ خبري قطع کولو سره د هغوئ په مخکې وعظ او نصيحت شروع کې او دغسې در څخه هغه ستړي شی [٦] په داسې موقع تاته پکار دي چې

---

(1) اخرجه البخاری فی صحيحه رقم الحديث ٦٣٣٧ واحمد فی المسند ٦/ ٢١٧

ته چپ اوسي البته که هغوئ درته د وعظ ونصيحت فرمائش وکړي نو ترڅو پورې چې هغه خواهش مند وي ته د هغوئ په مخکې حديث بيانوه [۷] او ته په دعا کې مقفي عبارت ته نظر وکړه او د هغه ځخه ځان ساته [۸] چنانچې ما معلومه کړي ده چې حضور ﷺ او صحابهٔ کرام ﷺ به داسې نه کول (يعني په دعاکې به يې مقفي عبارت نه استعمالوي) بخاري

**حل اللغات:** ① أَبَيْتَ: که ته انکار اوکړې يعنې ته دا قبول نه کړې او کافي اونه ګڼړې. ② لَاتُمِلَّ: مه ستړی کوه يعنې مه تنګوه اومه ئې ستومانه کوه. ③ لاأُلْفِيَنَّكَ: أي: لاأجِدَنَّكَ: زه دې اونه وينم (يعنې ته په داسې حالت کښې مه اخته کيږه چې څه تا په داسې حالت اوموم) ④ فَتَقُصُّ: يعنې د وعظ او نصيحت قصې ورته شروع کړې. ⑤ فَتَقْطَعُ: يعنې ته دهغوی خبرې قطع کړې او خپل وعظ ورته شروع کړې. ⑥ السَّجْعَ: په ترنم او وزن کښې دعا کول. مقفی الفاظ ونيل. ⑦ عَهِدْتُ: أي: عَرَفْتُهُ: ما معلومه ګړې ده.

**تسهيلات:** **قوله**: حَدِّثِ النَّاسَ كُلَّ جُمُعَةٍ مَرَّةً، فَإِنْ أَبَيْتَ فَمَرَّتَيْنِ، فَإِنْ أَكْثَرْتَ فَثَلَاثَ مَرَّاتٍ:

**عکرمه ته د ابن عباس تعليم**: دې حديث پاك کښې حضرت ابن عباس ﷺ خپل شاګرد ته رومبی خبره دا اوفرمائيله چې دجمعې په پوره هفته کښې عوامو ته يو ځل يا زيات نه زيات درې ځل وعظ او نصيحت کوه.

**قوله**: وَلَا تُمِلَّ النَّاسَ هَذَا الْقُرْآنَ:

**په وعظ کښې ميانه روی اختيارول**: په وعظ او نصيحت کښې دَ اعتدال اودَ موقع او ماحول لحاظ ساتل پکار دی. ځکه چه دَ اثر په اعتبار سره دا دَ دعوت او تبليغ يو بنيادی رکن دې. او په دې باندې د تبليغ پورا دارومدار دې. مثلاً

① يو کس په سفر باندې روانيږی د هغې ضروری سامان ځان دپاره تياروی اوڅوک ورته وعظ نصيحت شروع کړی.

② يو کس دامتحان دپاره تيارې کوی او څوک ورته دقرآن پاک ياحديث تعليم شروع کړی.

③ يو کس ځان دفتر ته رسوی او څوک ورته په لاره کښې دعوت شروع کړی.

④ يو کس سحر وختی دوکان ته ځان رسوی اوڅوک ورته وعظ نصيحت شروع کړی.

**قوله**: فَتَقُصُّ عَلَيْهِمْ فَتَقْطَعُ عَلَيْهِمْ حَدِيثَهُمْ فَتُمِلُّهُمْ:

**په وعظ باندې د چا د ستومانه کولو ممانعت**: دريمه خبره ئې دا اوفرمائيله چې ته داسې بالکل مه کوه چې ته يو قوم ته ورشې او هغوئ خپلو خبرو کښې اخته وی او ته ورته زر وعظ او نصيحت شروع کړې اودهغوئ خبرې ملتوی کړې بلکه ته خاموشی سره کينه او دهغوئ خبرې آؤره. که هغوئ تاته د وعظ او نصيحت حکم درکړی نو ته دهغوئ د خوښې مطابق څه لږې شان خبرې اوکړه.

**قوله**: وَاُنْظُرِ السَّجْعَ مِنَ الدُّعَاءِ فَاجْتَنِبْهُ:

**د وزندارې دعا دوه صورتونه**: حضرت ابن عباس رضي الله عنهما خپل شاګرد عکرمه ته فرمائی چې کله ته دعا غوارې نو دَ سجع او قافيې نه ځان بچ ساته. د سجع دوه صورتونه دی.

① يو په تکلف سره په سجع سره دعا کول دی دا ځکه ممنوع ده چې په دې کښې مسجع الفاظو جوړولو طرف ته توجه وی الله تعالی طرف ته توجه نه وی او په دعا کښې خو لازمی څيز دا دی چې سړې په زړه سره الله تعالی ته متوجه وی ځکه چې الله تعالی دغافل زړه دعا نه قبلوی.

② بلا تکلفه که په دعا کښې مسجع الفاظ راځی نو په دې کښې څه قباحت نشته ځکه چې په احاديثو کښې ډيرې دعاګانې داسې شته چې د هغې الفاظ مسجع دی

**[٢٥٣]طالب علم ته دوه ثوابونه ملاويدل**

٢٥٣-(١)[٤٩] ١وَعَنْ وَاثِلَةَ بْنِ الْأَسْقَعِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢«مَنْ طَلَبَ الْعِلْمَ فَأَدْرَكَهُ كَانَ لَهُ كِفْلَانِ مِنَ الْأَجْرِ، ٣فَإِنْ لَمْ يُدْرِكْهُ كَانَ لَهُ كِفْلٌ مِنَ الْأَجْرِ». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه**: ١واثله بن اسقع رضي الله عنه څخه روايت دي رسول اکرم صلى الله عليه وسلم وفرمايل ٢کوم سړي چې د علم طالب وي او هغه ته علم حاصل هم شو نو هغه ته به دوه چنده ثواب حاصليږي ٣او که علم ورته حاصل نشي نو يوه حصه ثواب به ورکول کيږي. دارمي

**حل اللغات**: ① فَأَدْرَكَهُ: أَيْ: حَصَّلَهُ: بيائې مومی يعنی حاصل ئې کړی. ② كِفْلَانِ: أی نَصِيبَانِ: دوه حصې، دوه ثوابونه.

**تسهيلات**:

**قوله**: مَنْ طَلَبَ الْعِلْمَ فَأَدْرَكَهُ كَانَ لَهُ كِفْلَانِ مِنَ الْأَجْرِ:

**د طلب علم دوه صورتونه**: ① په يوصورت کښې طالب علم ته دوه ثوابونه ملاويږی يو دَ محنت اومشقت او دويم په حصول علم باندې ملاويږی. ځکه چه په حصول علم سره به دَ اشاعت علم لار کولاويږی او په علم باندې به دَعمل کولوهم موقع ملاويږی. لهذا غبرګ ثواب به ملاويږی.

②اوکه دَ محنت اومشقت باوجود ورته علم حاصل نه شو نويوثواب به ورته ضرور ملاويږی. اوهغه دده د محبت او مشقت ثواب دي.

[١] اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحديث ٣٣٥

**[۲۵۳] د مرګ څخه روسته انسان ته رسيدونکي نيک اعمال**

۲۵۳-()[۵۰][۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲]"«إِنَّ مِمَّا يَلْحَقُ الْمُؤْمِنَ مِنْ عَمَلِهِ وَحَسَنَاتِهِ بَعْدَ مَوْتِهِ: عِلْمًا عَلَّمَهُ وَنَشَرَهُ، وَوَلَدًا صَالِحًا تَرَكَهُ، أَوْ مُصْحَفًا وَرَّثَهُ، أَوْ مَسْجِدًا بَنَاهُ، أَوْ بَيْتًا لِابْنِ السَّبِيلِ بَنَاهُ، أَوْ نَهْرًا أَجْرَاهُ، أَوْ صَدَقَةً أَخْرَجَهَا مِنْ مَالِهِ فِي صِحَّتِهِ وَحَيَاتِهِ، [۳]تَلْحَقُهُ مِنْ بَعْدِ مَوْتِهِ»". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ)

**ترجمه:** [۱]ابو هريره رضی الله عنه راوي دي چې رسول اکرم ﷺ وفرمايل [۲]مؤمن ته د هغه د عمل يا د کومو نيکيو چې د مرګ څخه وروسته ثواب رسيږي په هغه کې ①يو خو علم دي چې هغه زده کړی او خپور يې کې ②دويم نيک اولاد دي چې وروسته يې پريښودلي ③دريم قرآن دي چې د وارثانو د پاره يې پريښي وي ④څلورم مسجد دي چې په خپل ژوند کې يې جوړ کړي وي ⑤پنځم مسافرخانه ده ⑥شپږم نهر دي چې جاري کړي وي ⑦اووم هغه خيرات دي چې هغه په خپلي تندرستي او په ژوند کې د خپل مال څخه ايستلي وي [۳]او د دې ټولو څيزونو ثواب د هغه د مرګ څخه وروسته هغه ته رسي. ابن ماجه بيهقي

**حل اللغات:** ① يَلْحَقُ: ورته رسيږی، ملاويږی، ② نَشَرَهُ: خور ئې کړی (دا خوروول عام دی که په تعليم اوتعلم سره وی، که په تصنيف تاليف سره وی اوکه په کتابونو وقف کولو سره وی). ③ مُصْحَفًا: قرآن مجيد، ④ وَرَّثَهُ: أَيْ: تَرَكَهُ لِلْوَرَثَةِ: چه په ميراث کښې ئې پريخودلو. ⑤ أَجْرَاهُ: أَيْ: جَعَلَهُ جَارِيًا: نهر ئې جاری کړو (چه ټول خلق ترې فائده واخلی).

**تسهيلات:**

**قوله: إِنَّ مِمَّا يَلْحَقُ الْمُؤْمِنَ:**

**مړی پسې د ايصال ثواب څو صورتونه:** په دې حديث کښې دهغه اعمالو ذکر دې د کومو ثواب چې يو انسان پسې دهغه د مرګ څخه روسته هم رسيږی اوهغه ته ملاويږی.

① علم چې هغه زده کړی اوخور ئې کړی.

② نيک اولاد چې وروسته يې پريښودې وی.

③ قرآن چې د وارثانو د پاره يې پريښودې وی هغوی په کښې تلاوت کوی.

④ جمات چې په خپل ژوند کښې ئې جوړ کړی وی.

⑤ مسافرخانه ده چې مسافر په کښې شپه کوی.

⑥ نهر چې جاری کړې ئې وی او خلق ترې فائده اخلی.

[۱]) اخرجه ابن ماجة كتاب في الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب ثواب معلم الناس الخير(رقم-۲٤۲)

⑤ هغه صدقه چې په خپل صحت او په ژوند كښې ئې د خپل مال څخه صدقه كړې وى.
**اشكال:** په يوبل حديث كښې خو د درې اعمالو ذكر دې چې سړى ته د هغه د مرگ څخه روسته هم دهغې ثواب رسيږى اودلته په دې حديث كښې د دريوڅخه زيات اعمال بيان شوى دى. دا تعارض دې.
**دااشكال دريې جوابونه:** ① په دې كښې تعارض نشته ځكه چې عدد اقل دعدد اكثرنفى نه كوى.
② په هغه حديث كښې د خاص څيزونو بيان وو. اودلته په دې حديث كښې عمومى بيان دې.
③ په دې حديث كښې د علم او ولد صالح څخه علاوه باقى ټول اعمال په يو كښې شامل دى.
يعنى باقى ټول په صدقه جاريه كښې شامل دى.

**[٢٥٥] طالب علم ته د جنت لار آسانيدل**

٢٥٥–()[٥١] ١ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّهَا قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ٢ «إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ أَوْحَى إِلَيَّ: أَنَّهُ مَنْ سَلَكَ مَسْلَكًا فِي طَلَبِ الْعِلْمِ، ٣ سَهَّلْتُ لَهُ طَرِيقَ الْجَنَّةِ ٤ وَمَنْ سَلَبْتُ كَرِيمَتَيْهِ، أَثَبْتُهُ عَلَيْهِمَا الْجَنَّةَ، ٥ وَفَضْلٌ فِي عِلْمٍ خَيْرٌ مِنْ فَضْلٍ فِي عِبَادَةٍ، ٦ وَمِلَاكُ الدِّينِ الْوَرَعُ» " رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ "

**ترجمه:** ١ عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي ما د رسول اكرم ﷺ څخه اوريدلي دي ٢ چې الله جل جلاله زما طرف ته دا وحي خفي راليږلي ده چې څوك د طلب علم د پاره لار اختيار کړي ٣ نو زه به په هغه د جنت لار آسانه کړم ٤ او د کوم سړي څخه چې ما دوه سترگي اخستي وي (يعني نابينا شوې وي) نو د دې دنياوي نعمت څخه د محرومي او په دې د صبر او شکر په بناء به زه د دې بدله هغه ته جنت ورکړم ٥ او په علم کې زيادت په عبادت کې د زديات څخه ښه دي ٦ او د دين جړ (بيخ) پرهيز گاري ده. بيهقي

**حل اللغات:** ① سَلَكَ: أَيْ: دَخَلَ أَوْذَهَبَ: لاړ شي، روان شي، ② مَسْلَكًا: أَيْ: طَرِيقًا: لار (يا څه سبب دعلم د زده کړې دپاره اختيار کړى). ③ سَهَّلْتُ: أَيْ: يَسَّرْتُ: زه ورته آسانوم ④ سَلَبْتُ: أَيْ: أَخَذْتُ: اخستي مې وى. ⑤ كَرِيمَتَيْهِ: أَيْ: عَيْنَيْهِ: سترگوته وائى (دلته ترې مراد نظر دې). ⑥ أَثَبْتُهُ: أَيْ: جَازَيْتُهُ: ثواب او بدله به ورکړم ⑦ مِلَاكُ: أَيْ: أَصْلُهُ وَصَلَاحُهُ: بنياد او جرړه، ⑧ الْوَرَعُ: أَيِ التَّقْوَى عَنِ الْمُحَرَّمَاتِ: د حرام او شبهاتو نه ځان ساتل.

**تسهيلات:**

**قوله: وَمَنْ سَلَبْتُ كَرِيمَتَيْهِ:**

**دكريمتيه څخه مراد:** په زور دَاخستلو په معنى كښې دې. كريمتيه دواړه سترگوته وائى مراد ترې نه دَ سترگو رنړا تلل دى ځكه چه دَ زيات كسب دَ وجې نه دَ نور پټې اوچيږى.

[١] اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ٥٧٥١

**قوله**: وَمِلَاكُ الدِّينِ الْوَرَعُ:

**د ورع فضيلت**، ورع په تقوی او پرهيزګاری ته وائی مطلب دا چې څوک د حرامو او مشتبهاتو څخه ځان ساتی نو اصل تقوی اوپرهيزګاری هم دا ده ددې په مقابله کښې که يو کس ډير عبادت کوی خو ورسره ګناهونه هم کوی نودې د هغه چا پشان نشی کيدې څوک چې صرف فرائض ادا کوی خو ځان د هرقسم ګناه څخه بچ ساتی

**[۲۵٦] لږ ساعت د علم درس د ټولې شپې د عبادت څخه بهتر دې**

۲۵٦ ــ()[۵۳] [۱]وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [۲]«تَدَارُسُ الْعِلْمِ سَاعَةً مِنَ اللَّيْلِ خَيْرٌ مِنْ إِحْيَائِهَا». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه**: [۱]ابن عباس رضي الله عنه راوي دي چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم وفرمايل [۲]د شپې لږ ساعت د علم درس ورکول د ټولې شپې رونولو څخه ښه دي. دارمي

**حل اللغات**: ① تَدَارُسُ: درس تدريس کول (دعلم کتابت او مطالعه هم په دې کښې شامل ده). ② إِحْيَائِهَا: أَيْ: مِنْ إِحْيَاءِ اللَّيْلِ بِالْعِبَادَةِ: يعنی ټوله شپه په عبادت کښې تيرولو ته احياء الليل وائی

**تسهيلات**:

**قوله**: تَدَارُسُ الْعِلْمِ سَاعَةً مِنَ اللَّيْلِ خَيْرٌ مِنْ إِحْيَائِهَا:

**د لږ علمی درس د ټولې شپې په عبادت باندې فضيلت**: يعنی يو ساعت او ډلږ وخت دپاره دعلمی درس اوتدريس مشغله دټولې شپې د عبادت نه بهتر دی ځکه چه دعبادت تعلق انسان ذات سره دې اوعلمی مشغله درس اوتدريس تحرير اوتصنيف دامت اسلامی عمومی خدمت دې. بل عابد او د هغه عبادت يووختی اوعارضی عمل دې اوعلمی مشغله دائمی اومتعدی اوپوخ عمل دې. په دې وجه داغوره دې.

**[۲۵۷] د علمی مجلس د عبادت په مجلس فضيلت**

۲۵۷ ــ()[۵۳] [۱]وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا [۲]«أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَرَّ بِمَجْلِسَيْنِ فِي مَسْجِدِهِ [۳]فَقَالَ: كِلَاهُمَا عَلَى خَيْرٍ وَأَحَدُهُمَا أَفْضَلُ مِنْ صَاحِبِهِ [۴]: أَمَّا هَؤُلَاءِ فَيَدْعُونَ اللَّهَ وَيَرْغَبُونَ إِلَيْهِ، فَإِنْ شَاءَ أَعْطَاهُمْ وَإِنْ شَاءَ مَنَعَهُمْ). [۵]وَأَمَّا هَؤُلَاءِ فَيَتَعَلَّمُونَ الْفِقْهَ أَوِ الْعِلْمَ وَيُعَلِّمُونَ الْجَاهِلَ، فَهُمْ أَفْضَلُ، [٦]وَإِنَّمَا بُعِثْتُ مُعَلِّمًا". [۷]ثُمَّ جَلَسَ فِيهِمْ». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه**: [۱]عبد الله بن عمرو رضي الله عنه فرمايي [۲]يو ځل حضور صلی الله علیه وسلم په دوو مجلسونو تير شو چې په مسجد نبوي (صلی الله علیه وسلم) کې منعقد وو. [۳]حضور صلی الله علیه وسلم وفرمايل دواړه په خير دي ليکن په دوي کې يو په نيکئ کې د دويم څخه ښه دي [۴]يو جماعت په عبادت کې مصروف دي

[۱]) اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحديث ۱٤

[۲]) اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحديث ۳٤۹

الله ﷻ يادوي او هغه ته د خپل رغبت اظهار کوي (يعني د مقصد د حاصلولو د پاره د الله ﷻ څخه) اميد واره دي (اود مقصد حصول دالله په خوښي باندې موقوف دي) که الله ﷻ وغواړي نو ورېه کړي او که ونه غواړي نو ورېه نه کړي [٥] او بل جماعت فقه يا علم حاصلوي او جاهلانو ته علم ښايي نو دا خلق ښه دي [٦] او زه هم معلم جوړولو سره راليږل شوې يم [٧] بيا حضور ﷺ خپله هم په هغه علمي مجلس کې کيناستل دارمي

**حل اللغات:** ① يَرْغَبُونَ: مينه او شوق لري (دهغه څه چه دالله تعالى سره دى يعنى ثواب). ② بُعِثْتُ: راليږلې شوې يم. ③ مُعَلِّمًا: ښودونکې د علم، استاذ.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَأَمَّا هَؤُلَاءِ فَيَتَعَلَّمُونَ الْفِقْهَ أَوِ الْعِلْمَ وَيُعَلِّمُونَ الْجَاهِلَ، فَهُمْ أَفْضَلُ،

**دعلمى مجلس د فضيلت وجه:** دعلم دمجلس فائده ګټه ورکونکې او متعدى ده په دې وجه دا افضل دې. د مجلس عبادت اودعابدينو د فضيلت نفى مقصودنه ده. ځکه چې دواړه مجلسونه په خيراونيکۍ باندې قائم وو.

**قوله:** وَإِنَّمَا بُعِثْتُ مُعَلِّمًا:

**دمعلم نبى عليه السلام سره نسبت:** په دې حديث کښې د مدرسينو او معلمينو دپاره يو ډير لوئې اعزاز دې ځکه چې څوک د تعلم فريضه ادا کوى نود هغه د نبى ﷺ سره يوه نسبت پيدا شو. اود محبوب سره معمولى نسبت هم د عاشقانو په نيزډير لوئې سعادت دې.

**قوله:** ثُمَّ جَلَسَ فِيهِمْ:

**د نبى عليه السلام دعلم په مجلس کښې کيناستل:** اګرچې د ذکر او علم دواړه مجلسونه د خير څخه خالى نه وو. خونبى ﷺ چې د علم مجلس کښې کيناستلو نو په دې کيناستو سره هغوى خپل امت ته عملى ترغيب ورکوى چې تاسو ذکر هم کوئ خود تعليم اوتعلم څخه هم مه غافله کيږئ.

**[٢٥٨] د څلويښت حديثونو يادولو ثواب**

٢٥٨-()[٥٣] [١] وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ [٢]: «سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: مَا حَدُّ الْعِلْمِ الَّذِي إِذَا بَلَغَهُ الرَّجُلُ كَانَ فَقِيهًا؟ [٣] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "مَنْ حَفِظَ عَلَى أُمَّتِي أَرْبَعِينَ حَدِيثًا فِي أَمْرِ دِينِهَا، بَعَثَهُ اللَّهُ فَقِيهًا، وَكُنْتُ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ شَافِعًا وَشَهِيدًا»[1]

**ترجمه:** [١] ابودرداء رضي الله عنه راوي دي [٢] چې رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وشوه چې د هغه علم مقدار څه دي چې کله انسان هغومره علم حاصل کې نو فقيه (عالم) جوړ شي او په آخرت کې هغه د علماؤ په زمره کې شميرل کيږي؟ [٣] حضور ﷺ وفرمايل کوم سړي چې

[1]) اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ١٧٢٦

زما امت ته د فایدي رسولو د پاره د امر دین څلویښت حدیثونه یاد کړي نو الله ﷻ به په قیامت کې هغه فقیه (دیني عالم) پورته کړي او د قیامت په ورځ به زه د هغه شفاعت کونکي او د هغه په اطاعت ګواه یم.

**حل اللغات:** ① فَقِيهًا: يَعْنِي عَالِمًا: د فقیه نه مراد د علم دین عالم دې.

**تسهیلات:**

**قوله:** مَنْ حَفِظَ عَلَى أُمَّتِي:

**امت ته د څلویښتو احادیثو زده کولو ترغیب:** په دې حدیث کښې نبی ﷺ امت ته د احادیثو رسولو ترغیب ورکوی. که زیات نه وی کم ازکم څلویښت احادیث امت ته رسول پکار دی چې د دې فضیلت په حاملینو کښې شامل شی.

**په امت د یادولو مختلفې طریقې:** په لاندینی طریقو کښې چې په کومه طریقه هم دا زده کړه حاصله شی نو د دې فضیلت مستحق به وی.

① د درس اوتدریس په ذریعه ئې امت ته اورسوی.

② دتالیف اوتصنیف په ذریعه ئې امت ته اورسوی.

③ دعمل په ذریعه ئې امت ته اورسوی.

④ د انټرنټ په ذریعه ئې امت ته اورسوی.

⑤ د سی ډی په ذریعه ئې امت ته اورسوی.

⑥ د موبائل په ذریعه ئې امت ته اورسوی.

⑦ د اخبار په ذریعه ئې امت ته اورسوی.

**قوله:** فِي أَمْرِ دِينِهَا:

**د دین مصداق:** هسې خو احادیث په واقعاتو باندې هم شامل دی خودلته ترې د احکامو احادیث مراد کیدې شی.

**قوله:** بَعَثَهُ اللَّهُ فَقِيهًا،

**د فقهاء په صفت کښې شاملیدل:** ډیر لوئې فضیلت دې چې څوک صرف څلویښت احادیث امت ته اورسوی نو د قیامت په ورځ به دفقهاء په صف کښې پاسیږی او هغوی سره به ئې حشر کیږی. نو چې حشرئې د فقهاء سره وی خو جنت کښې به هم دهغوی سره وی.

**قوله:** وَكُنْتُ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ شَافِعًا وَشَهِيدًا:

**د قیامت په ورځ دشفاعت اوشهادت زیري:** صرف دڅلویښتو احادیثو په زده کولو به نبی ﷺ دهغه دپاره شفاعت هم کوی اودهغوی په ایمان او صلاح باندې به ګواهی

هم ورکوی. څه لوئې سعادت دې چې شفاعت هم او شهادت هم.

**په اربعینات باندې لیکونکی مصنفین:** د مذکوره سعادت حاصلولو دپاره د امت بعضې عالمانو صرف په څلوېښتو احادیثو باندې رسالې لیکلی دی په هغوی کښې د بعضو عالمانو نومونه دا دی.

① امام دارقنطی، ② امام حاکم (صاحب مستدرک) ③ امام ابونعیم.
④ ابوعبدالرحمن سلمی ⑤ امام ابوبکر بیهقی ⑥ امام نووی.

**[٢٥٩] تر ټولو لوي سخي**

٢٥٩ ــ ()[٥٥] [١] وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - " [٢] «هَلْ تَدْرُونَ مَنْ أَجْوَدُ جُودًا؟» " قَالُوا: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. [٣] قَالَ: " اللَّهُ تَعَالَى أَجْوَدُ جُودًا، ثُمَّ أَنَا أَجْوَدُ بَنِي آدَمَ [٤] وَأَجْوَدُهُمْ مِنْ بَعْدِي رَجُلٌ عَلِمَ عِلْمًا فَنَشَرَهُ، [٥] يَأْتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَمِيرًا وَحْدَهُ أَوْ قَالَ: أُمَّةً وَاحِدَةً».

**ترجمه:** [١] او انس بن مالک رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ (د صحابه ؤ مخاطب کولو سره) وفرمایل [٢] آیا تاسو پوهیږي چې د سخاوت په معامله کې د ټولو څخه لوي سخي څوک دي؟ صحابه ؤ عرض وکړو الله جل جلاله او د هغه رسول ښه پوهیږي، [٣] حضور ﷺ وفرمایل په سخاوت کولو کې الله جل جلاله د ټولو څخه زیات سخي دي او په بني آدمو کې د ټولو څخه زیات سخي زه یم [٤] بیا په خلقو کې زما څخه وروسته د ټولو څخه لوي سخي به هغه سړي وي چې هغه علم زده کې او هغه یې خپور کښې (یعني خلقو ته یې وښودل) [٥] هغه سړي به د قیامت په ورځ د یو امیر یا وې وفرمایل د یوې ډلې په شان راځي.

**حل اللغات:** ① هَلْ تَدْرُونَ: آیا تاسو پوهیږئ، ② أَجْوَدُ جُودًا: أَيْ أَحْسَنُ جُودًا: لوئې سخی، ډیر سخاوت کونکې، ③ فَنَشَرَهُ: خور ئې کړی (دا خورول عام دی که په تعلیم اوتعلم سره وی، که په تصنیف تالیف سره وی اوکه په کتابونو وقف کولو سره وی). ④ أَمِيرًا: امیربه وی خانله یعنی مستقل (یا دا چه د یو جماعت امیر به وی چه هغه به صرف دده تابع وی).

**تسهیلات:**

**قوله: هَلْ تَدْرُونَ مَنْ أَجْوَدُ جُودًا:**

**دالله تعالی جود اوسخا:** یعنی په ټولوسخیانوکښې دَ سخاوت په اعتبارسره الله تعالی دَټولونه لوئی سخی دې ځکه چه دَ عالَم دَ پیداکولوَ شروع نه واخله ترننه پورې هر ساه والا ته اوټولو کافرانو مشرکانوته او په ټولو ابرارو او اشرارو باندې خوراك کوی څښاك کوی اودَنعمت خوانچه ئې خوره کړې ده.

[١] اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ١٧٦٧

**قوله:** رَجُلٌ عَلِمَ عِلْمًا فَنَشَرَهُ:

**د علم د خورولو ذرائع:** نبی ﷺ فرمائی زما څخه روسته هغه سړي د ټولوڅخه زیات سخی دي چې علم زده کړی اوبیا ئې امت ته اورسوی اوپه هغوی کښې خور ئې کړی. دعلم خورولو مختلف ذرائع دی مثلاً.

① د درس وتدریس په ذریعه.

② دتالیف اوتصنیف په ذریعه.

③ د وعظ اونصیحت په ذریعه.

④ د دعوت اوتبلیغ په ذریعه.

⑤ د سوشل میډیا انټرنټ وغیره په ذریعه.

⑥ د سی ډی، کمپیوټر، وغیره جدید آلاتوپه ذریعه.

⑦ د نشراواشاعت په ذریعه.

**قوله:** يَأْتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَمِيرًا وَحْدَهُ أَوْقَالَ: أُمَّةً وَاحِدَةً

**دیک تنها باوجود جماعت:** یعنی ځان له به وی خو امیر په شان به راځی لکه چه دَهغه ماتحت یو ګنړه وی. ځکه چه هغه چه چاته خودنه کړې ده یا دَهغه تعلیمات چه دَچا پورې اورسیدل اوهغوی وړاندې نوروته اورسول نودَ لاکهونوعمل به ده ته ملاویږی په دې وجه به هغه ځان له کیدو باوجود هم امیروی.

**[٢٦٠] دوه حرص کونکي نه مړیږی**

| ٢٦٠-()[٥٢]①وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ②: "«مَنْهُومَانِ لَا يَشْبَعَانِ: مَنْهُومٌ فِي الْعِلْمِ لَا يَشْبَعُ مِنْهُ، وَمَنْهُومٌ فِي الدُّنْيَا لَا يَشْبَعُ مِنْهَا»". |
|---|

**ترجمه:** ①انس بن مالك رضی الله عنه راوي دي ②چې رسول الله ﷺ وفرمایل حرص کونکي دوه سړي دي چې د هغوئ خیټه نه ډکیږي ① په علم کې حرص کونکي چې د هغه سینه هیڅ کله د علم څخه نه ډکیږي ② د دنیا حرص کونکي چې د هغه خیټه د دنیا څخه هیڅ کله نه ډکیږي، مذکوره بالا دري سره حدیثونه بیهقي رحمه الله په شعب الایمان کې روایت کړي دي، امام احمد رحمه الله د ابو درداء رضی الله عنه د حدیث په باره کې فرمایلي دي چې د دې متن په خلقو کې مشهور دي لیکن د دې اسناد صحیح نه دي.

**حل اللغات:** ① مَنْهُومَانِ: أی حَرِيصَانِ: حرص کونکی دوه کسان، ② لَا يَشْبَعَانِ: أَيْ لَا يَقْتَنِعَانِ: دواړه نه مړیږی، نه بس کوی یعنی په لږه ګذاره نه کوی.

---

[١] روى البيهقي الأحاديث الثلاثة في " شعب الإيمان " وقال: قال الإمام أحمد في حديث أبي الدرداء: هذا متن مشهور فيما بين الناس، وليس له إسناد صحيح.

**تسهيلات:**

**دحديث سندي حيثيت:** دحضرت ابوالدرداء رضي الله عنه دحديث متعلق امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائي په خلقوکښې ددې حديث متن مشهوردې مګرددې سندصحيح نه دې. امام نووی رحمه الله فرمائي چه دا حديث بيشکه ضعيف دې ليکن د دې طرق متعدددی لهذا په دې کښې قوت شته. بل طرف ته علماء کرامو تصريح کړې ده چه فضائل اعمال کښې چه قدرې ضعيف حديث هم قبلولې شي په دې شرط چه هغه چرته يوحديث يا شرعي قاعدې سره متصادم نه وي.

**قوله:** مَنْهُومٌ فِي الْعِلْمِ لَا يَشْبَعُ مِنْهُ:

**په علم نه مړيدل:** يقينا څوک چې دعلم خوند واخلي نوهغه په علم نه مړيږي.ځکه چې په علم کښې باطني لذت او خوند دې.په علم کښې عزت او شرافت دې.په علم کښې تقوی اوپرهيزګاری ده،دعلم په ذريعه الله او رسول صلی الله عليه وسلم ملاويږي. هرکله چې دا دومره فائدې په يوځيز کښې وی نوپه هغې څوک مړيږي هيڅ کله نه.

**قوله:** وَمَنْهُومٌ فِي الدُّنْيَا لَا يَشْبَعُ مِنْهَا:

**په دنيا نه مړيدل:** دا خو زمونږ مشاهده ده چې دا مرداره دنيا چې څومره چا سره زياتيږي هومره به ئې حرص او لالچ نور هم زياتيږي. د دې تائيد په يو بل حديث سره هم کيږي نبي عليه السلام فرمائي که دبني آدم د دوه خوړونو چې د سرو او سپينو څخه ډک وي مالک شي نو دې به په هغې باندې هم قانع او صبر نشي بلکه د دريمې په لټون کښې به وي.

**[۲۶] دوه حريصان برابر نه دی**

۲۶-()[۵۷] ① وَعَنْ عَوْنٍ، ② قَالَ: قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ: مَنْهُومَانِ لَا يَشْبَعَانِ: صَاحِبُ الْعِلْمِ، وَصَاحِبُ الدُّنْيَا، وَلَا يَسْتَوِيَانِ; ③ أَمَّا صَاحِبُ الْعِلْمِ فَيَزْدَادُ رِضًى لِلرَّحْمَنِ، وَأَمَّا صَاحِبُ الدُّنْيَا فَيَتَمَادَى فِي الطُّغْيَانِ. ④ ثُمَّ قَرَأَ عَبْدُ اللَّهِ {كَلَّا إِنَّ الْإِنْسَانَ لَيَطْغَى - أَنْ رَآهُ اسْتَغْنَى} [العلق:۶-۷] ⑤ قَالَ: وَقَالَ الْآخَرُ: {إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ} [فاطر:۲۸]. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ①عون راوي دې ②چې عبد الله بن مسعود رضي الله عنه وفرمايل دوه حريصان دي چې د هغوئ خيټه هيڅ کله نه ډکيږي ① يو عالم ② او دويم دنيا دار ليکن دوي (په درجه کې) برابر نه دي ③ځکه چې عالم خو د الله جل جلاله رضا مندي زياتوي او دنيا دار په شرکښي کې زياتي کوي ④بيا عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه د دنيا دار په حق کې (د دليل په طور) دا آيت اووئيلو: (د آيت ژباړه) خبردار! انسان البته سرکښي کوي هرکله چې هغه خپل ځان (د

[۱] اخرجه الدارمي في السنن رقم الحديث ۲۳۲

كثرت مال په بناء د خلقو څخه) غني ګڼي ⑤حضرت عون وايي عبد الله بن مسعود رضي الله عنه د عالم په حق کې دا آيت اووئيلو (ترجمه: ) د الله جل جلاله په بنده ګانو کې عالمان د الله جل جلاله څخه ويريږي. دارمي

**حل اللغات:** ① لَيَتَمَادَى: أَيْ: يَزْدَادُ: زياتوالي او فراخوالى كوى، ② الطُّغْيَانُ: سركشى، فساد، ③ اسْتَغْنَى: ځان بې پرواه ګڼړى دخلقو نه (دخپل مال د ډير والى په وجه). ④ يَخْشَى: أى خَوْفٌ مَعَ التَّعْظِيمِ: د خشيت نه مراد ويريدل دى سره د تعظيم نه.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْهُومَانِ لَا يَشْبَعَانِ:

**نوټ:** د زيربحث حديث او سابقه حديث نمبر(٢٦٠) حديث مضمون يوشان دې تسهيل ئې په هغې كښې اوګورئ.

**[٢٦٣] د امراؤ په صحبت كښې د فايدې په ځاى نقصان وى**

٢٦٣-()[٥٨] ①وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②" «إِنَّ أُنَاسًا مِنْ أُمَّتِي سَيَتَفَقَّهُونَ فِي الدِّينِ وَيَقْرَءُونَ الْقُرْآنَ، ③وَيَقُولُونَ: نَأْتِي الْأُمَرَاءَ فَنُصِيبُ مِنْ دُنْيَاهُمْ وَنَعْتَزِلُهُمْ بِدِينِنَا. ④وَلَا يَكُونُ ذَلِكَ، كَمَا لَا يُجْتَنَى مِنَ الْقَتَادِ إِلَّا الشَّوْكُ، كَذَلِكَ لَا يُجْتَنَى مِنْ قُرْبِهِمْ ⑤إِلَّا - قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ: كَأَنَّهُ يَعْنِي - الْخَطَايَا» ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.[1]

**ترجمه:** ①ابن عباس رضي الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ②زما په امت كې به ډير خلق پوهه (يعني د دين علم) حاصل كړي او قرآن به وايي ③او وايي به چې زمونږ امراؤ ته ورتلو سره د هغوئ د دنيا او دولت څخه خپله حصه حاصلوو او خپل دين به د هغوئ څخه يو طرف ته ساتو ④ليكن داسې نه كيږي (چې دين او دنيا يوځاي) جمع كړل شي او د امراؤ په صحبت كې د فائدې په ځاي نقصان وي ځنګه چې د خارداري (ازغني) ونې څخه يوازي ازغي حاصليدي شي دغسې د امراؤ دصحبت څخه نه حاصليږي ⑤ مګر. محمد ابن صباح وايي ګويا د حضور ﷺ مراد دلفظ الآ څخه خطايا وو، ابن ماجه

**حل اللغات:** ① سَيَتَفَقَّهُونَ: أى يَطْلُبُونَ الْفِقْهَ وَيُحَصِّلُونَهُ: علم فقه يعنى ددين علم به حاصل كړى، ② نَعْتَزِلُهُمْ: أَيْ: نَبْعُدُ عَنْهُمْ: لرې به ترې ساتو، ③ لَا يُجْتَنَى: أَيْ: لَا يُؤْخَذُ: نه شى اخستلې او حاصلولې، ④ الْقَتَادِ: أى شَجَرٌ كُلُّهُ شَوْكٌ: ازغى داره اونه، ⑤ الشَّوْكُ: ازغى (چه زخمى كول كوى او تكليف رسوى).

**تسهيلات:**

**قوله:** نَأْتِي الْأُمَرَاءَ فَنُصِيبُ مِنْ دُنْيَاهُمْ وَنَعْتَزِلُهُمْ بِدِينِنَا:

**بعضې خوش فهمه عالمان:** دحديث مطلب دادې چه په دې امت كښې به بعضې داسې

---

[1]) اخرجه ابن ماجة كتاب في الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب الانتفاع بالعلم والعمل به(رقم-٢٥٥)

مطلب پرست علماء پيداكيږي چه د هغوی سوچ او مقصد به صرف ددنيا حاصلول وی ددې غرض د حاصلولوډپاره به هغوی مالدارانو اوجاګيردارانو پسې ګرځي راګرځي اوكه هغوی ته پيغوروركولې شي نوواني به يار مونږ مالي فائدې خوحاصلوو ليکن خپل دين په خپل زړه كښې محفوظ ساتو.

**قوله:** وَلَا يَكُونُ ذٰلِكَ، كَمَا لَا يُجْتَنٰى مِنَ الْقَتَادِ إِلَّا الشَّوْكُ:

**د دنياداړود صحبت نقصان:** رسول الله ﷺ فرماني دا د دې خلقو خوش فهمي ده د مالدارانو سره ناسته پاسته او دهغوی په مجلسونوكښې كېدون د نقصان څخه خالي نه وی. بيا نبی ﷺ د دې مثال وركوی اوفرمائي: د حاكمان په كېدون كښې د ديني نقصان څخه بچ كيدل دا داسې محال دی لکه چه د يوازغی دارې بې ميوې ونې نه ميوه حاصلول دهغې نه خو صرف ازغی حاصليدلې شی اوميوه ملاويدل محال دی.

**قوله:** كَذٰلِكَ لَا يُجْتَنٰى مِنْ قُرْبِهِمْ إِلَّا:

**د مذكوره جملې مطلب:** حضورپاك د "الا" نه پس څه لفظ نه دې ارشاد فرمائيلې او په "الا" باندې ئی كلام ختم كړې دې. د امام بخاری رحمه الله استاذ محمدبن صباح رحمه الله فرمائی چه حضورپاك لکه چه د الخطايا د كلمې اراده كړې وه مګر په ژبه باندې ئی ادانه كړه

**په جرم نه بيانولوكښې نکته:** په دې كښې دانكته هم كيدې شی چه حضورپاك دا جرم مبهم پريخودو او ارشاد ئی اوفرمائيلوچه دا دومره لوئی جرم دې چه په ژبه باندې هم نه شی راوړلې كيدې.

## [٢٦٣] د علم حفاظت كونكی ته د دنيا سرداری ملاويدل

٢٦٣ – (١) [٥٩] ① وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ ②: لَوْ أَنَّ أَهْلَ الْعِلْمِ صَانُوا الْعِلْمَ وَوَضَعُوهُ عِنْدَ أَهْلِهِ، لَسَادُوا بِهِ أَهْلَ زَمَانِهِمْ، ③ وَلَكِنَّهُمْ بَذَلُوهُ لِأَهْلِ الدُّنْيَا لِيَنَالُوا بِهِ مِنْ دُنْيَاهُمْ، فَهَانُوا عَلَيْهِمْ ④ سَمِعْتُ نَبِيَّكُمْ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ⑤ "«مَنْ جَعَلَ الْهُمُومَ هَمًّا وَاحِدًا هَمَّ آخِرَتِهِ، كَفَاهُ اللهُ هَمَّ دُنْيَاهُ، ⑥ وَمَنْ تَشَعَّبَتْ بِهِ الْهُمُومُ فِي أَحْوَالِ الدُّنْيَا، لَمْ يُبَالِ اللهُ فِي أَيِّ أَوْدِيَتِهَا هَلَكَ»". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ. وَرَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ)

**ترجمه:** ① عبد الله بن مسعود رضي الله عنه په حقله روايت دي چې هغه وفرمايل ② كه اهل علم (يعني علماء) د علم حفاظت وكړي او علم د هغه د اهل (يعني د قدر دانو) په مخكې كيږدي نو هغۀ به بيشكه د خپل علم په سبب د دنيا والؤ سردار جوړ شي ③ ليكن علماؤ داسې ونه كړل بلكه هغوئ علم په دنيا دارو (يا په حاكمانو د وخت) باندې خرڅ كې چې د هغه په ذريعه هغوئ دنيا (يعني د دنيا جاه وجلال) حاصل كې او د علم حقيقي مقصد

---

[١] اخرجه ابن ماجة كتاب فی الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب الانتفاع بالعلم والعمل به(رقم-٢٥٧)

یعنی د دنیا والؤ هدایت او نصیحت پرینبودو نو هغه د دنیا والو په نظر کې ذلیل شو ④ما د نبی کریم ﷺ څخه اوریدلي دي ⑤کوم سړي چې په خپلو مقاصدو کې یوازي یو مقصد یعنی د آخرت مقصد اختیار کې نو الله ﷻ د هغه دنیاوي مقصد هم پوره کوي ⑥او د کوم سړي مقاصد چې ګډوډ وي څنګه چې د دنیا حالت وي نو بیا الله تعالی ﷻ ته پروا نشته چې هغه خواه په کوم ځنګل (یعني د دنیا په کوم حالت) کې هلاك شي، ابن ماجه، بیهقي دا حدیث په شعب الایمان کې

**حل اللغات:** ① صَانُوا: أَيْ: حَفِظُوهُ: حفاظت ئې کړې دې، ② وَضَعُوهُ: کیږدی، پیش کړی، ③ لَسَادُوا: أَيْ: فَاقُوا بِالسِّيَادَةِ: سرداران او مشران به شی. ④ بَذَلُوهُ: خرج ئې کړو دا علم. ⑤ لِيَنَالُوا: چه حاصل کړی دوی، ⑥ فَهَانُوا: ذلیله او سپک شو، ⑦ الْهُمُومَ: د هَمّ جمع ده، دَغم په معنی کښې راځی دلته مقاصداوحالات مراددی. ⑧ تَشَعَّبَتْ: أَيْ: تَفَرَّقَتْ: دَدې ترجمه ګډوډکیدل. مختلف کیدل. ښاخ په ښاخ کیدل دی. ⑨ لَمْ يُبَالِ اللَّهُ: أَيْ: لَا يَنْظُرُ إِلَيْهِ نَظَرَ رَحْمَةٍ: الله تعالی ئې هیڅ پرواه نه ساتی. یعنی د رحمت نظر پرې نه کوی. ⑩ أَوْدِيَتِهَا: د وَادِيَةٌ جمع ده،خوړ، ځنګل.

۲۶۳—()[۰] عَنِ ابْنِ عُمَرَ مِنْ قوله: (مَنْ جَعَلَ الْهُمُومَ) إِلَى آخِرِهِ.

**ترجمه:** د ابن عمر رضی الله عنه څخه د من جعل الهموم څخه تر آخر پورې روایت کړي دي.

**تسهیلات:**

**قوله:** صَانُوا الْعِلْمَ وَوَضَعُوهُ عِنْدَ أَهْلِهِ، لَسَادُوا بِهِ أَهْلَ زَمَانِهِمْ:

**دعلم دحفاظت وصیت:** حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چې عالمانو لره پکار دی چې د خپل علم حفاظت اوکړی اوحفاظت ئې دا دې چې په دې باندې د دنیا حاصلولو څخه ځان اوساتی. که چرته عالمانوپه دې عمل وکړو نودوی ته به د آخرت د اوچت مقام سره سره په دنیا کښې هم سیادت اوقیادت ملاؤ شی.خلق به ئې لکه د بادشاهانو قدر اوعزت کوی.اوکه دوی په خپل علم سره دنیا حاصلول غواړی نو بیا به بې عزته اوبې قیادته شی.

**قوله:** مَنْ جَعَلَ الْهُمُومَ هَمًّا وَاحِدًا هَمَّ آخِرَتِهِ، كَفَاهُ اللَّهُ هَمَّ دُنْيَاهُ:

**آخرت دخپل ژوند مقصد جوړول:** یعنی چاچې د خپل ژوند مقصد آخرت وګرځول نو الله تعالی به د ده دنیاوی ضروریات د غیبودخزانوڅخه پوره کوی.که نن صبا مونږ وګورو اګرچې په مدارسوکښې د عالمانو وظیفه ډیره کمه وی خو د دې باوجود په معاشره کښې د عزت ژوند تیروی.بالخصوص زمونږ شیوخ چې دنیاوی اعتبار سره ډیر کم حیثیت واله دی خو چې قدر اوعزت ته ئې وګورئ نو سړې ورته پسخیږی.او الله تعالی په عوامو کښې

[1]) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۱۰۳۴۰

داسې کسان دهغوی د خدمت دپاره تیار کړی وی چې څه دنیاوی کار وی نودغه عوام خلق د هغوی دغه کار کوی اودا خپل سعادت ګڼړی.

**خود داری:** ستاسود فائدې دپاره درته لیکم چې ما کله علم وکړو نو یقیناً معاشی او اقتصادی لحاظ سره ډیر کمزورې ووم.خوبیا هم نه مې د چا څخه سرسایه غوښتې ده اونه زکواة ، نه مې د چا څخه سوال کړې وو.اونه مې ورته خپل حاجت بیان کړې وو.اګرچې په جمات کښې راسره د امامت اوخطابت ذمه واری هم وه خو داختر په موقع مې چا څخه د قربانۍ د څرمنو مطالبه نه ده کړې.بلکه خود داری مې خپله کړې وه.ددې نتیجه دا راووتله چې نن زه د خپلې محلې په یو جامع مسجد کښې دامامت او خطابت خدمت هم کوم. اود دوی څخه تنخواه نه اخلم.څکه په کالج کښې پروفیسریم.د فیصل کتب خانه په نوم مې خپله مکتبه ده.اود تالیف اوتصنیف په میدان کښې زما کتابونه ستاسو وړاندې دی. زما عالمانو او طالبانو رونړو د خپلو ضروریاتو پوره کولو دپاره دتجارت پیشه اختیار کړئ په دې کښې عزت هم دې اودولت هم.لکه څنګه چې زمونږ مشرانو د علمی مصروفیاتو باوجود خپل تجارت اومضاربت هم جاری ساتلې وو. دامام اعظم رحمه الله مثال ستاسو وړاندې دې یوطرف ته به ئې د تدریس مشغله لرله اوبل طرف ته به ئې مضاربت کولو.بهر صورت دا زما یوه رائې ده کیدې شی تاسو ما سره په دې کښې متفق نشی.بهر صورت الله تعالی دې ما او تاسو ټول د عوامود محتاجی څخه وساتی.

## [۲۶۵] د علم آفت او ضائع کول

۲۶۵ —()[۶۰] ۱ وَعَنِ الْأَعْمَشِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۲ «آفَةُ الْعِلْمِ النِّسْيَانُ، ۳ وَإِضَاعَتُهُ أَنْ تُحَدِّثَ بِهِ غَيْرَ أَهْلِهِ». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ مُرْسَلًا.

**ترجمه:** ۱ اعمش راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ د علم آفت هیریدل دي ۳ او د علم ضائع کول دا دي چې د نا اهل په مخکې بیان شي، دارمي د ارسال په طریقه روایت کړي دي

**حل اللغات:** ① آفَةُ: مصیبت، بندیز، ② إِضَاعَتُهُ: ضائع کول د علم.

**تسهیلات: قوله:** آفَةُ الْعِلْمِ النِّسْيَانُ:

**دعلم هیرولو آفت:** حصول علم یو عظیم دولت دې اودهردولت په حاصلولو کښې بندیزونه هم وی نودعلم دحصول مخې ته هم لوئی بندیزونه دی. لکه چه وئیلی شوی دی "لکل شئ آفة وللعلم آفات." داخودحصول علم نه وړاندې آفات دی مګردعلم حصول نه پس لوئی آفت راځی اوهغه دعلم هیرول اونسیان دې.

[۱] اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحدیث ۶۲۴

**د علم هيرولو اسباب:**

① د علم ناقدري كول چې دې تقاضې پوره نه كړې شي

② چې نالائق ته علم اوښودلې شي.په كوم سره چې د علم توهين اوشو

③ په علم باندې عمل نه كول

**امام شافعي ته د خپل استاذ نصيحت:** امام شافعي رحمه الله د هيريدو دَبيمارئي ذكر خپل استاذ وكيع رحمه الله ته اوكړو نوهغوى ورته دَنيكو اعمالو وصيت اوكړو هغوى خپله دا واقعه په اشعاروكښې بيان كړې ده فرمائي.

شكوت الى وكيع سوء حفظي    فأوصاني الى ترك المعاصي

فـان العلم نور من نور الله    ونور الله لا يعطى لعاصي

ترجمه: ① ما (خپل استاذ) وكيع ته د خپلې حافظې د كمزورئ شكايت وكړو (چې څه يادوم هغه راته نه يادېږي يا راځخه هيرېږي) نوهغوى راته د ګناهونو پريخودو وصيت وكړو (كه داغواړې چې علم تا سره محفوظ پاتې شي نو د ګناهونو څخه ځان ساته)

② ځكه چې علم د الله تعالى د نور څخه يوه رڼا ده او د الله تعالى رڼا ګناهګار ته نشي وركولې.

**قوله:** وَإِضَاعَتُهُ أَنْ تُحَدِّثَ بِهِ غَيْرَ أَهْلِهِ:

**نااهلو ته علم خودل:** علم يوه قيمتي ملغره ده دا هغه چاته وركول پكار وى چا سره چې ئې قدر وى.د على رضى الله عنه قول دې خوك چې نااهلو ته علم ښائى دا داسې ده لكه چې څوك د خنزير په غاړه كښې ملغلرې اچوى.بهرصورت دعلم قدر پكار دې. اوڅوك چې د دې طلبګار وى هغوى ته ئې خودل پكار دى.نااهله او ناقدره خلقو ته علم خودل د علم سپكاوې دې.

**[۲٦٦] دعالمانو د زړونو څخه د علم وتلو سبب**

۲٦٦-(۱)[۱۱] ①وَعَنْ سُفْيَانَ، ②أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ لِكَعْبٍ: مَنْ أَرْبَابُ الْعِلْمِ؟ ③قَالَ: الَّذِينَ يَعْمَلُونَ بِمَا يَعْلَمُونَ. ④قَالَ فَمَا أَخْرَجَ الْعِلْمَ مِنْ قُلُوبِ الْعُلَمَاءِ؟ ⑤قَالَ: الطَّمَعُ. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ①سفيان راوي دي ②چې حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه و حضرت كعب رضی الله عنه ته وفرمايل ستا په نيز صاحبِ علم څوك دي؟ ③كعب رضی الله عنه جواب وركړو هغه خلق چې د خپل علم موافق عمل كوي، ④بيا حضرت عمر رضی الله عنه پوښتنه وكړه كوم شي د عالمانو د زړونو څخه علم باسي ⑤كعب رضی الله عنه وفرمايل طمع ولالچ. دارمي

[۱]) اخرجه الدارمي في السنن رقم الحديث ٥٨٤

**حل اللغات:** ① أَرْبَابُ الْعِلْمِ: أَيْ مَنْ مَلَكَ الْعِلْمَ وَرَسَخَ فِيهِ: دعلم خاوندان څوک چه مضبوط علم حاصل کړی او عمل پرې کوی ② الطَّمَعُ: د دنیا لالچ او دې سره محبت

**تسهیلات:**

**قوله:** فَمَا أَخْرَجَ الْعِلْمَ مِنْ قُلُوبِ الْعُلَمَاءِ؟ قَالَ: الطَّمَعُ:

**د طمع او لالچ تباهي:** طمع او لالچ يوداسې آفت او بلاده دکوم د وجې نه چه سړې دَعلم تقاضې نه شي پوره کولې کله چه په زړه کښې هروخت دَدنياداورنه دَدنيادَحاصلولولالچ موجود ی نوداسې سړې حق څنګه بيانولې شي؟ او کله چه حق پټ کړی نودَعلم نور اودَهغې عظمت اوبرکت به دَهغه دَزړه نه ختم شي او اوځی به په يوحديث کښې دی. "كن فى الاياس مما فى أيدى الناس تكن أغنى الناس"(که دا غواړې چې په خلقو کښې عزتمند مند شې نو، دخلقو سره چې څه وی دهغې څخه بې طمعه شه نودټولوڅه به زيات عزتمند شې

## [٢٦٧] بدترين اوافضل ترين خلق

٢٦٧-( )[٦٢] [١] وَعَنِ الْأَحْوَصِ بْنِ حَكِيمٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنْ أَبِيهِ، قَالَ [٢]: «سَأَلَ رَجُلٌ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنِ الشَّرِّ. [٣] فَقَالَ: "لَا تَسْأَلُونِي عَنِ الشَّرِّ، وَسَلُونِي عَنِ الْخَيْرِ" يَقُولُهَا ثَلَاثًا، [٤] ثُمَّ قَالَ: "أَلَا إِنَّ شَرَّ الشَّرِّ شِرَارُ الْعُلَمَاءِ، وَإِنَّ خَيْرَ الْخَيْرِ خِيَارُ الْعُلَمَاءِ»". رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [١] احوص بن حکيم د خپل پلار څخه نقل کوي [٢] چې يو سړي د رسول الله ﷺ څخه د شر په باره کې پوښتنه وکړه [٣] حضور ﷺ ورته وفرمايل زما څخه د شر په باره کې پوښتنه مه کوي بلکه د خير په باره کې پوښتنه کوي او دا جملې يې دري ځله اد اکړې [٤] بيا يې اوفرمائيل چه خبر دار په خرابو خلقو کې بد ترين خراب علماء دي او په ښه خلقو کې د ټولو څخه ښه علماء دي. دارمي

**حل اللغات:** ① شَرُّ الشَّرِّ: أَيْ: أَعْظَمُهُ: په شرونو کښې د ټولو نه لوئې شروالا خلق يعنى بدترين او خراب خلق ② خَيْرُ الْخَيْرِ: د خير والا په خلقو کښې دټولو نه لوئې خير والا خلق، ③ شِرَارُ الْعُلَمَاءِ: بد تر او خراب علماء. ④ خِيَارُ الْعُلَمَاءِ: ښه او غوره علماء.

**تسهیلات:**

**قوله:** لَا تَسْأَلُونِي عَنِ الشَّرِّ:

**د بدیٔ باره کښې د تپوس کولوممانعت:** مطلب دادې چه دا سړې دَبدترين سړی متعلق معلومات کول غواړی چه دَټولونه بدترين سړې څوك دې نو حضورپاك دا جواب ورکړو. دَحديث سياق اوسباق نه هم دغه مطلب ډيرواضح معلوميږی. بهرحال حضورپاك دَ

---

[١] اخرجه الدارمي في السنن رقم الحديث ٣٧٠

داسي قسم سوال نه منع فرمائيلي ده. حضورپاك خو تول رحمت وو نو دَ هغوی نه صرف دَ بدئي باره کښې نه بلکه دَبدئي او نیکئي دواړو متعلق سوال کول پکاروو.

**قوله:** شَرَّ الشَّرِّ شِرَارُ الْعُلَمَاءِ:

**دعالمانو بدترین کیدو وجه:** عالماء سوء دَټولوڅخه بدترین خکه دی چې دَعلماؤ شر او دَهغوی بدی متعدی ده لکه څنګه چه دَهغوی نیکی متعدی ده. ځکه چه په معاشره کښې دَعلماؤ ذات دَ یومعیاری نمونې او دَ پیمانې حیثیت لری. که چرې علماء دَاوچت معیاروی نوعوام به هم دَ هغوی په تقلید کښې دَ اوچت مثال قائم کولوکوشش کوی. ګنی عامه تباهی به راشی. دَدې حدیث نه علماء سوء مراد دی.

**قوله:** وَإِنَّ خَيْرَ الْخَيْرِ خِيَارُ الْعُلَمَاءِ:

**د عالمانو بهترین کیدو وجه:** دمخکنی صورت بالعکس که عالمان بنه وی په خپل علم عمل کوی او نورته ئې بنائی نود دوی په وجه په معاشره کښې خیر خورېږي. اوخلق د نیکۍ په لاره روانیږي. عالمانو او نیکانو سره دخلقو په زړونوکښې مینه محبت پیدا کیږي. ددې وجې عالمان په خلقو کښې افضل اوغوره مخلوق دي.

**[٢٦٨] بدترین عالم**

٢٦٨ — (١) [٦٣] ① وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -، قَالَ: ② إِنَّ مِنْ أَشَرِّ النَّاسِ عِنْدَ اللَّهِ مَنْزِلَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ: عَالِمٌ لَا يَنْتَفِعُ بِعِلْمِهِ. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ① ابو درداء ﷺ فرمایي ② چې د قیامت په ورځ به د الله ﷻ په نیز په مرتبه کښې دټولو څخه بدتر عالم هغه وي چې هغه د خپل علم څخه فایده پورته نه کړي. دارمي

**حل اللغات:** ① مَنْزِلَةً: أَيْ مَرْتَبَةً: مرتبه او درجه.

**تسهيلات:**

**قوله:** عَالِمٌ لَا يَنْتَفِعُ بِعِلْمِهِ:

**نوټ:** ددې حدیث مضمون دې څخه وړاندې د حدیث نمبر(٢٦٧) په تسهیل کښې تیرشوي دي.

**[٢٦٩] اسلامی عمارت غورځونکی اعمال**

٢٦٩ — (٢) [٦٤] ① وَعَنْ زِيَادِ بْنِ حُدَيْرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ لِي عُمَرُ ②: هَلْ تَعْرِفُ مَا يَهْدِمُ الْإِسْلَامَ؟ ③ قَالَ: قُلْتُ: لَا! قَالَ: يَهْدِمُهُ زَلَّةُ الْعَالِمِ، وَجِدَالُ الْمُنَافِقِ بِالْكِتَابِ وَحُكْمُ الْأَئِمَّةِ الْمُضِلِّينَ، رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ① زیاد بن حُدیر راوي دي چې حضرت عمر ﷺ ماته وفرمایل ② آیا ته پوهیږي چې د اسلام عمارت غورځونکي کوم شي دي ③ ما اوویل ماته نه ده معلومه حضرت عمر

[1] اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحدیث ٢٦٢
[2] اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحدیث ٢١٤

ﷺ وفرمايل ①د عالم ښويدل يعنى په يوه مسئله كې د عالم غلطي كول ②او د هغه گناه كول د منافق په كتاب الله كې جگړه كول ③او د گمراه سردارانو حكم جاري كول د اسلام دعمارت تباهيَ او بربادي وي. دارمي

**حل اللغات:** ① يَهْدِمُ: د هدم معنى ده: إِسْقَاطُ الْبِنَاءِ: بنياد نړول او ورانول. ② زَلَّةُ العَالِمِ: أَيْ عَثْرَتُهُ بِتَقْصِيرِهِ: دعالم خوئيدل (يعنى داسې خطاپه كوم سره چه ټول خلق گمراه شي اودَاسلام بنيادى پنځه اركان هم راپريوځي). ③ جِدَالُ: جگړه (چه په ښكاره مسلمان وى خوپه زړه كښې د اسلام دشمن وى). ④ الْمُضِلِّينَ: گمراهان.

**تسهيلات:**

**قوله: يَهْدِمُهُ زَلَّةُ الْعَالِمِ:**

**دعالم د بې احتياطۍ نتيجه:** عالم په يوه علاقه كښې د علماء نيابت كوى نوكه دعالم څخه گناه يا غلط كار وشى نوعوام په ټولوعالمانوپسې خبرې شروع كړى په دې طريقه په معاشره كښې د عالم بې قدرى شروع شى اود عالم بې قدرى دعلم څخه د بې رغبتۍ سبب دې.نوخلق به علم حاصلول پريږدى.په دې طريقه به په معاشره كښې جهل خور شى.اود اسلام بنياد به كمزورې شى.

**قوله: وَجِدَالُ الْمُنَافِقِ بِالْكِتَابِ:**

**دمنافق څخه مراد:** يعنى په خلې دَ اسلام تعريفونه كوى او په زړه كښې دَاسلام بيخ راكنى اودَ اسلام اصل شكل ورانوى.او په نصوصو كښې غلط تاويلات كوى لكه روافض اوخوراج اونور اهل بدعت طبقات. شوكوم چه دَعلماؤ په شكل كښې دَ جاهلانو نه هم بدتردى. لكه چه وئيلى شوى دى "ويل للجاهل مرة وللعالم سبع مرات"

**قوله: وَحُكْمُ الْأَئِمَّةِ الْمُضِلِّينَ:**

**دحاكمانودگمراهۍ تباهي:** حكمران طبقې سره طاقت اوقوت وې اوقانون هم د هغوى په لاس كښې وى ددې وجې كوم حاكمان چې گمراه او دد ين څه لرې وى نوهره ورځ په پارليمنټ كښې داسې قوانين جوړوى چې د اسلام خلاف وى.ددې وجې د حاكمانو د گمراهۍ د دين اسلام د عمارت راغورځولو سره تشبيه وركړې شوې ده.

## [۲۷۰] دعلم دوه قسمونه دي

۲۷۰-()[۶۵] ① وَعَنِ الْحَسَنِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -، ② قَالَ: الْعِلْمُ عِلْمَانِ: فَعِلْمٌ فِي الْقَلْبِ فَذَاكَ الْعِلْمُ النَّافِعُ، وَعِلْمٌ عَلَى اللِّسَانِ فَذَلِكَ حُجَّةُ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ عَلَى ابْنِ آدَمَ. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

(۱) اخرجه الدارمى فى السنن رقم الحديث ۳۶۴

**ترجمه:** [۱]حسن بصري رحمه الله فرمايي [۲]د علم دوه قسمونه دي ① يو هغه علم چې په زړه كې دننه وي دا علم خو نفع وركوي ② او دويم هغه علم دي چې د ژبې په سر دي دا علم په سړي د الله جل جلاله دليل او حجت دي. دارمي

**حل اللغات:** ① حُجَّةُ اللَّهِ: دالله تعالى دليل او حجت دي (چه تاسو په خپل علم باندې عمل ولې نه دې كړې؟).

**تسهيلات:**

**قوله:** فَعِلْمٌ فِي الْقَلْبِ فَذَاكَ الْعِلْمُ النَّافِعُ:

**دعلم نافع تعريف:**

① حضرت حسن بصرى رحمه الله دعلم په دوو قسمونوكښې يو علم نافع خودلې دې او د دې تعريف ئې دا كړې دې چې علم نافع هغه دې. چې د زړه سره تعلق ساتى.

② حضرت شيخ عبدالحق رحمه الله فرمائى علم نافع هغه علم دې په كوم سره چه زړه روښانه شى اوبيا داعلم نافع په انسانى معاملاتو باندې احاطه كوى نومعاملات صحيح كيږى. [اشعة المعات:۱۹۰/۱]

**قوله:** وَعِلْمٌ عَلَى اللِّسَانِ:

علم لسانى: علم لسانى يعنى د ژبې علم هغه دې چې نه په زړه باندې اثركوى اونه بل څوك متاثركولې شى.

**قوله:** فَذَلِكَ حُجَّةُ اللَّهِ عَزَّوَجَلَّ عَلَى ابْنِ آدَمَ:

**په بنده د علم حجتيت:** يعنى بې عمل اوصرف زبانى علم په بندګانو باندې دالله تعالى حجت اودليل اوسنددې. الله تعالى به بندګانوته الزام وركوى او فرمائى به چه ماتاسوته علم دركړې وو تاسو په هغې باندې ولې عمل اونه كړو؟

**[۲۷]ابوهريره رضى الله عنه سره دوه قسمه علمونه**

٢٧-(١)[٢٦] [١]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -، قَالَ[٢]: حَفِظْتُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وِعَاءَيْنِ، فَأَمَّا أَحَدُهُمَا فَبَثَثْتُهُ فِيكُمْ، وَأَمَّا الْآخَرُ فَلَوْ بَثَثْتُهُ قُطِعَ هَذَا الْبُلْعُومُ - يَعْنِي مَجْرَى الطَّعَامِ - رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱]ابوهريره رضي الله عنه فرمايي [۲]چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه دوه ګوډي علمونه ياد كړي دي په هغه كې خو مي ①يو ستاسو په مينځ كې خوركړي دي ②او دويم هغه علم دي كه زه هغه بيان كړم نو زما دا مري (غاړه) به پرې كړل شي. بخاري

**حل اللغات:** ① وِعَاءَيْنِ: دوه ډک لوخي (يعنى ما دنبى كريم صلى الله عليه وسلم څخه دَ علم دوه لوښى ډك كړى

[۱]) اخرجه البخارى كتاب العلم/باب حفظ العلم(رقم-۱۲۰)

دی او یاد کړی مې دی. ۞ لَبَثَّتُهُ: دا د بَثَّ يَبُثُّ نه دَ خوررولو په معنی کښې دې. أَيْ: أَظْهَرْتُهُ بِالنَّقْلِ: خورکړې مې دې يعنی په ښودلو مې تاسو ته ښکاره کړې دې ۞ قُطِعَ: پرې به کړې شی، کټ به کړې شی. ۞ الْبُلْعُومُ: أَيِ الْحُلْقُومُ: دا د حلقوم په وزن باندې دې. مراد ترې حلقوم او مرۍ ده يعنی د خوراک د تیریدلو لار.

**تسهيلات:**

**قوله: فَأَمَّا أَحَدُهُمَا فَبَثَثْتُهُ فِيكُمْ:**

**عام شرعی علم:** ابوهريره رضی الله عنه فرمائی چې یو علم خو ما عوامو کښې خور کړو د کوم تعلق چې ظاهر او علم الاحکام سره وو.

**قوله: وَأَمَّا الْآخَرُ فَلَوْبَثَثْتُهُ قُطِعَ هَذَا الْبُلْعُومُ.**

**د دویم علم په مفهوم کښې پنځه اقوال:** ① د دې څخه د عارفانو او اهل الله متعلق علوم مراد دی. ابوهريره فرمائی که مادا بیانول شروع کړل نو خلق به په دې د نه پوهیدلو په وجه زما مرۍ پرې کړی.

② د دې علم تعلق د راتلونکو فتنه ګرو او فتنه خورونکو حکمرانانو سره دې. که ما دَ دغه فتنو نشاندهی اوکړه او دغه علم مې ظاهر کړو، نو دا خلق به ما حلال کړی.

③ ددې څخه مراد د فتنې احادیث دی لکه دحضرت عمر، عثمان شهادت وغیره شول.

④ ددې څخه د بادشاهانو نومونه او دهغوی حالات مراد دی. لکه یوحدیث کښې ابوهريره رضی الله عنه به کله کله فرمائیل ((لوشئت أن اسميهم بنی فلان وبنی فلان))

⑤ ددې څخه احوال تکوینیه مراد دی.

**اشکال:** وړاندې د حدیث په پټولو او نه بیانولو باندې وعید راغلې دې نو بیا ابوهريره رضی الله عنه ولې بعضې علوم چاته نه بیانول.

**داشکال دوه جوابونه:** ① د کتمان علم وعید د هغه احادیثو په باره کښې دې د کومو تعلق چې عقائدو یا احکامو سره وی اود ابوهريره رضی الله عنه دحدیث مصداق هغه علوم دی د کوم وضاحت چې وړاندې عنوان کښې اوشو.

② دکتمان علم وعید په هغه صورت کښې دې چې څوک خواص او اهل وی دهغوی څخه علم پټ کړې شی اوابوهريره رضی الله عنه که کوم احادیث نه بیانول هغه ئې عوامو ته نه بیانول نوذمه مورد الزام او عتاب نه دې.

**دابوهريره رضی الله عنه دعا:** حضرت ابوهريره رضی الله عنه دعا کړې وه چې الله تعالی ما د هلکانو د حکمرانۍ څخه وړاندې وړاندې واخلی، نو د یزید حکومت راتلو څخه وړاندې وړاندې دوئ وفات شوی وو.

## [۲۷۲] د خپلې لاعلمۍ اظهار کول

۲۷۲–( )[۶۷] ① وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ -، قَالَ ②: يَا أَيُّهَا النَّاسُ! مَنْ عَلِمَ شَيْئًا فَلْيَقُلْ بِهِ وَمَنْ لَمْ يَعْلَمْ فَلْيَقُلْ: اللّٰهُ أَعْلَمُ، ③ فَإِنَّ مِنَ الْعِلْمِ أَنْ تَقُولَ لِمَا لَا تَعْلَمُ: اللّٰهُ أَعْلَمُ: ④ قَالَ اللّٰهُ تَعَالَى لِنَبِيِّهِ {قُلْ مَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ وَمَا أَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِينَ} [ص:۸۶] مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او روایت دي چې حضرت عبد الله ﷺ (خلقوته مخاطب کولو سره وویل) ② اې خلقو کوم سړي چې په کومه خبره پوهیږي نو پکار دي چې هغه بیان کړي او په کومه چې نه پوهیږي نو پکار دي چې اووائي چې الله ﷻ بـه پوهیږي ③ ځکه چې د کوم شي په باره کښې هغه ته علم نشته د هغه په باره کې (والله اعلم) ویل هم د علم یو قسم دي (یعنې د معلوم د غیر معلوم ځخه تمیز کول هم د علم یوقسم دي) ④ الله ﷻ د خپل نبي په واسطې سره فرمایي چې **قُلْ مَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ وَمَا أَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِينَ** یعنې اې محمده! (ﷺ) اووئیلو چې زه په دي قرآن ستاسو ځخه څه بدله نه غواړم او زه د تکلف کونکو خلقو ځخه نه یم. بخاري

**حل اللغات:** ① الْمُتَكَلِّفِينَ: أَيْ: مِنَ الَّذِينَ يَتَصَنَّعُونَ: د تکلف کونکو نه مراد په بناوټ او خوله جوړولو سره یوه خبره کول چه مخاطب متاثر شي.

**تسهیلات:**

**قوله:** فَإِنَّ مِنَ الْعِلْمِ أَنْ تَقُولَ لِمَا لَا تَعْلَمُ: اللّٰهُ أَعْلَمُ:

**د خپلې لاعلمۍ اقرار:** دا معلومه ده چې مونږ ته الله تعالی کوم علم راکړې دې هغه د الله تعالی دعلم په مقابله کښې ډیر کم دې ددې وجې که یوکس ته یوه مسئله نه ورځي نوپه دې کښې شرم نه دې پکار چې دا مسئله ماته نه راځي الله تعالی بنه پوهیږي، بلکه د خپلې لاعلمۍ اقرار پکار دې ځکه چې دا اقرار کول هم یو قسم علم دې چې سړی ته د خپل جهل علم وی اوچې یو کس جاهل وی اودخپل جهل ورته هم پته نه لری نودا خو جهل علی جهل شو. دامام ابوحنیفه رحمه الله ځخه په شپږ دیرشو مسئلو کښې دا منقول دی چې هغوی فرمائیل دی ((لاأعلم)) یعنی زه نه پوهیږم.

## [۲۷۳] د استاذ په انتخاب کښې د احتیاط ضرورت

۲۷۳–( )[۶۸] ① وَعَنِ ابْنِ سِيرِينَ قَالَ ②: إِنَّ هٰذَا الْعِلْمَ دِينٌ، فَانْظُرُوا عَمَّنْ تَأْخُذُونَ دِينَكُمْ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

[۱] ) اخرجه البخاري کتاب تفسیر القرآن/باب قوله:{وما أنا من المتكلفين} [ص: ۸۶](رقم-۴۸۰۹) ومسلم كتاب صفة القيامة والجنة والنار/باب الدخان(رقم-۳۹ - (۲۷۹۸)

[۲] ) اخرجه مسلم باب في أن الإسناد من الدين وأن الرواية لا تكون إلا عن الثقات وأن جرح الرواة بما هو فيهم جائز بل واجب وأنه ليس من الغيبة المحرمة بل من الذب عن الشريعة المكرمة

**ترجمه:** [۱] ابن سيرين رحمه الله فرمايي [۲] چې دا علم (يعني د كتاب او سنت علم) دين دي هركله چې تاسو دا حاصلوي نو دا ګوري چې خپل دين د چا څخه حاصلوي. مسلم

**د راوي مختصر تعارف:** نوم محمد كنيت ابوبكر دَ پلار نوم سيرين كوم چه دَ حرا يا عراق اوسيدونكې وو. سيرين دَ حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه كښې راګيركړې شو راغلو اودَ حضرت انس بن مالك رضي الله عنه په غلامئ كښې راغلو. حضرت انس رضي الله عنه دَ هغه نه شل يا خلويښت زره درهم واخستل اوهغه ئې آزاد كړو.

محمد رحمه الله دَ انس بن مالك رضي الله عنه سره اوسيدوكښې علم الهي حاصل كړو اودې سره سره ئې دَحضرت ابوهريره رضي الله عنه او حضرت حسن بصري رحمه الله نه هم ښه فيض حاصل كړو.

حضرت انس بن مالك رضي الله عنه هم هغه ته دَ جنازې دَمونځ كولو وصيت كړې وو.

امام نووى رحمه الله دَ هغوى باره كښې فرمائى هغه په علم تفسير حديث فقه تعبيررويا وغيره فنونوكښې امام وو. ابن حبان رحمه الله وائى محمدبن سيرين رحمه الله دَبصرې دَ تولونه زيات پرهيزګار فقيه فاضل او حافظ دَ خوب تعبيركونكې وو.

دَ دې هرڅه باوجود به دَ الله تعالى نه ډير ويريدلو. هشام بن حسان رحمه الله وائى حضرت محمد بن سيرين رحمه الله به مونږ دَ ورځې په خندا ليدلو خودَ شپې په تيروكښې به دَ هغه دَ ژړا آواز راوچتيدو. دَمرګ په ذكر كولوسره به په هغه لګه دَ مرګ په شان كيفيت پيداكيدلو.

**وفات:** دَ شنبه په ورځ ۱۱۰ هـ كښې تقريباً دَ ۸۰ كالو په عمر كښې دَدنيا نه رخصت شو او خپل حقيقى مالك له ئې تشريف يوړو. د نورو حالاتو دَ پاره اوګورئى ابن خلكان ۴۵۳/۲، تهذيب التهذيب ۲۱۵/۹، طبقات ابن سعد ۴۰/۷، تذكرة الحفاظ ۶۷/۱، شذرات الذهب ۱۳۹/۱.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ هٰذَا الْعِلْمَ دِيْنٌ؛ فَانْظُرُوا عَمَّنْ تَأْخُذُوْنَ دِيْنَكُمْ:

**داستاذ په انتخاب كښې احتياط:** يعنى دَ علم دين دَپاره ضرورى دى چه دَچانه علم حاصلولې شى په هغه دا تسلى او اعتماد وى چه هغه متدين، متقى، پرهيزګار او دَ صحيح عقائدو حامل دې. دَهركس اوناكس مخې ته دَ شاګردپه توګه كيناستل عقلمندى نه ده ځكه چه دَاستاذ اثروى. په دينى مدرسوكښې استاذان ديندار وى نوسره دَفلسفې اومنطق خودلوترنه پورې خوك طالب علم ګمراه نه شو

**[٢٧٤] د قاريانو د مقام لړاکت**

٢٧٤-(١)[٦٩] [١] وَعَنْ حُذَيْفَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -، قَالَ[٢]: يَا مَعْشَرَ الْقُرَّاءِ! اسْتَقِيمُوا، فَقَدْ سَبَقْتُمْ سَبْقًا بَعِيدًا، [٣] وَإِنْ أَخَذْتُمْ يَمِينًا وَشِمَالًا لَقَدْ ضَلَلْتُمْ ضَلَالًا بَعِيدًا، رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] او روايت دي چې حضرت حذيفه رضي الله عنه قاريان مخاطب كولو سره وفرمايل [٢] اې د قاريانو جماعته په نيغه لار قايم اوسي [٣] ځکه چې تاسو لوي سبقت وړي دي كه تاسو د نيغه لاري ځخه ايسته شى نو په لو ګمراهئ كې به اخته شي. بخاري

**حل اللغات:** ① مَعْشَرَ: ډله، جماعت، ② اسْتَقِيمُوا: قائم اوسيږئ، د استقامت نه مراد په صحيح عقيده باندې قائم اوسيدل او په علم نافع باندې عمل كول دى. ③ سَبَقْتُمْ: تاسو وړاندې شوى يئ، أى لِأَنَّكُمْ أَدْرَكْتُمْ أَوَائِلَ الْإِسْلَامِ: د وړاندې كيدو نه مراد دټولو نه مخكښې اسلام راوړل دى.

**تسهيلات:**

**توله:** وَإِنْ أَخَذْتُمْ يَمِينًا وَشِمَالًا لَقَدْ ضَلَلْتُمْ ضَلَالًا بَعِيدًا:

دا خطاب اګر چې قاريانوته دې خو مراد ترې ټول عالمان دى ددې تفصيل و ړاندې د مشكاة حديث نمبر (٢٦٧) په تسهيل كښې تيرشوي دې.

**[٢٧٥] الله تعالى ته ناخوښه قاريان**

٢٧٥-(٢)[٧٠] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " [٢] «تَعَوَّذُوا بِاللَّهِ مِنْ جُبِّ الْحَزَنِ ". قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ! وَمَا جُبُّ الْحَزَنِ؟ [٣] قَالَ: " وَادٍ فِي جَهَنَّمَ تَتَعَوَّذُ مِنْهُ جَهَنَّمُ كُلَّ يَوْمٍ أَرْبَعَمِائَةِ مَرَّةٍ ". [٤] قِيلَ يَا رَسُولَ اللَّهِ! وَمَنْ يَدْخُلُهَا؟ قَالَ: " الْقُرَّاءُ الْمُرَاءُونَ بِأَعْمَالِهِمْ» ". [٥] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَكَذَا ابْنُ مَاجَهْ، وَزَادَ فِيهِ: " «وَإِنَّ مِنْ أَبْغَضِ الْقُرَّاءِ إِلَى اللَّهِ تَعَالَى الَّذِينَ يَزُورُونَ الْأُمَرَاءَ» " قَالَ الْمُحَارِبِيُّ: يَعْنِي الْجَوَرَةَ.

**ترجمه:** [١] ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ (صحابه مخاطب كولو سره) وفرمايل [٢] تاسو د الله تعالى ځخه پناغواړي د جُبّ الحزن يعنى د غم د كوهى ځخه صحابوو رضي الله عنهم عرض وكړو يا رسول الله ﷺ د غم كوهى كوم يو دي [٣] حضور ﷺ وفرمايل په هغه دوزخ كې يوه كنده ده چې د هغه ځخه دوزخ په ورځ كې ځلور سوه ځله پنا غواړي [٤] صحابوو رضي الله عنهم عرض وكړو يا رسول ﷺ په دي كې به څوك داخليږي حضور ﷺ وفرمايل هغه قرآن ويونكي چې خپل اعمال د خپل ښوونې د پاره كوي، [٥] ترمذي ابن ماجه، او د ابن ماجه په روايت كې دا الفاظ زيات دي چې د الله تعالى په نيز مبغوض ترين قاريان هغه دي چې د سردارانو سره ملاقات كوي د دې حديث راوي

[١] ) اخرجه البخارى كتاب التمنى/باب الاقتداء بسنن رسول الله صلى الله عليه وسلم (رقم-٧٢٨٢)
[٢] ) اخرجه الترمذى كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الرياء والسمعة (رقم-٢٣٨٣)

محاربي ويلي دي چې سردارانو څخه مراد ظالم سرداران دي.

**حل اللغات:** ① تَعَوَّذُوا: پناه غواړئ، ② جُبّ الحَزَنِ: أَيْ مِنْ بِئْرٍ فِيهَا الحَزَنُ: د غم کوهي (دا په جهنم کښې يوه ژوره کنده ده)، ③ وَادٍ: وادی، کنده، ④ المُرَاءُونَ: دجمع اسم فاعل صيغه ده، ريا کاری کونکی دی، ښودنه کونکی دی، ⑤ يَزُورُونَ: زيارت او ملاقات کونکی دی، ⑥ الأُمَرَاءَ: بادشاهان، سرداران.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَإِنَّ مِنْ أَبْغَضِ القُرَّاءِ إِلَى اللهِ تَعَالَى الَّذِينَ يَزُورُونَ الأُمَرَاءَ:

**نوټ:** دعالمانو او قاريانو دپاره د حاکمانو اومالدارنودربارونوته ورتلل اودهغوی څخه دنياوی مفاد حاصلولود دي تفصيل وړاندي د مشکاة حديث نمبر(٢٧٥) په تسهيل کښې تيرشوې دي.

**[٢٧٦] داسلام به يوازې نوم پاتې شي**

٢٧٦-()[٤٧] [١] وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «يُوشِكُ أَنْ يَأْتِيَ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ ① لَا يَبْقَى مِنَ الْإِسْلَامِ إِلَّا اسْمُهُ. ② وَلَا يَبْقَى مِنَ الْقُرْآنِ إِلَّا رَسْمُهُ، ③ مَسَاجِدُهُمْ عَامِرَةٌ وَهِيَ خَرَابٌ مِنَ الْهُدَى، ④ عُلَمَاؤُهُمْ شَرُّ مَنْ تَحْتَ أَدِيمِ السَّمَاءِ، مِنْ عِنْدِهِمْ تَخْرُجُ الْفِتْنَةُ، وَفِيهِمْ تَعُودُ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ)[1]

**ترجمه:** [١] او حضرت علي رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] دير نزدې به خلقو به يو داسې وخت راشي ① چې د اسلام څخه به يوازې د هغه نوم باقي پاتې شی ② او قرآن څخه به يوازې د هغه توري باقي پاتې شی ③ د هغوئ مسجدونه به په ظاهره آباد وي خو په حقيقت کې به د هدايت څخه خالي وي ④: هغوئ علماء به د آسمان څخه په لاندي مخلوق کې د ټولو څخه بدترين وي د هغوئ څخه به (د ظالمانو د حمايت او مدد په وجه سره) په دين کې فتنه پيدا کيږي او هغوئ ته به واپس راځي يعنی په هغوئ به ظالم مسلط کولي شي. بيهقي

**حل اللغات:** ① يُوشِكُ: دا د افعال مقاربه ؤ نه دې. أَيْ: يَقْرُبُ: نزدې ده، ② رَسْمُهُ: أَيْ: أَثَرُهُ الظَّاهِرُ: رسم او عادت (ددې نه مراد قرآن ليکل، لفظی تلاوت او قرأت دې چه علم به وی عمل به نه وی، تلاوت به وی تدبّر به نه وی). ③ عَامِرَةٌ: أَيْ بِالْأَبْنِيَةِ الْمُرْتَفِعَةِ: آباد به وی په لحاظ د تعمير او آبادئ سره (غټې غټې بلډنګونه به ئې وی، قالينونه او فانوسونه به وی خو مونځګذار او عبادت ګذار به پکښې نه وی). ④ خَرَابٌ: خراب به وی (مرشد او هادی يعنی سمه لار ښودونکی به پکښې نه وی). ⑤ الْهُدَى: هدايت (يا ددې نه مراد هادی دې يعنی لار ښودونکې). ⑥ أَدِيمِ: أَيْ: وَجْهِهَا: اديم څرمن ته وائی دلته ترې د آسمان مخ مراد دې. ⑦ تَعُودُ: واپس کيږی به، راګرځی به.

---

[1]) اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ١٩٠٨

**تسهیلات:**

**قوله:** لَا يَبْقَى مِنَ الْإِسْلَامِ إِلَّا اسْمُهُ:

**یوه بلاغی نکته:** امام طیبی رحمه الله فرمائی چې په حدیث کښې د اسلام سره د اسمه او د قرآن سره د رسمه ذکر اوشو.په دې کښې دا نکته ده چې په آخره زمانه کښې به قاریان د قرآن پاک د تجوید خو به ډیر خیال ساتی هریو لفظ به د خپل خپل مخرج څخه ادا کوی خو ددې په مطلب به نه پوهیږی چې په دې آیت کښې الله تعالی څه فرمائی.

**قوله:** مَسَاجِدُهُمْ عَامِرَةٌ

**د جماتونو ظاهری آبادی:** یعنی په آخره زمانه کښې به جماتونه د زیب اوزینت او نقش ونګار په اعتبار سره ډیر ښائسته وی.نن صبا که اوګورې نو په جماتونوکښې ټائلیونه لګیدلی دی.قالینونه په کښې خواره شوی وی اواې سی ګان په کښې لګیدلی وی خو چې دجمعې په وخت کښې اوګورې نو یو یا دوه صفتونه به وی.نبی علیه السلام څوارلس سوه کاله وړاندې ددې خبرې پیشنګوئی کړې ده.

**قوله:** وَهِيَ خَرَابٌ مِنَ الْهُدَى

**د خراب په مفهوم کښې درې اقوال:**

① په جماتونوکښې به دین اوهدایت خودنکی څوک نه وی بلکه امامان به هم جاهلان وی ددې وجې به د هدایت څخه خالی وی.

② جماتونه به په ظاهری نقش اونګار سره ډیر ښائسته وی خو د اعمالو په اعتبار سره به شاړ وی ځکه چې مونځګذار به په کښې نه وی اوکه وی هم د نشت برابر به وی.

③ دخراب څخه مراد د بدعتیانو بدعات دی چې په جماتونوکښې به بدعات او خرافات کیږی.نود هدایت څخه به ځکه خالی وی.

**[٢٧٧] علم به څنګه پورته شی؟**

٢٧٧—(١)[٤٣] ①وَعَنْ زِيَادِ بْنِ لَبِيدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -، قَالَ②: «ذَكَرَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - شَيْئًا: فَقَالَ: ذَاكَ عِنْدَ أَوَانِ ذَهَابِ الْعِلْمِ "③قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! وَكَيْفَ يَذْهَبُ الْعِلْمُ وَنَحْنُ نَقْرَأُ الْقُرْآنَ وَنُقْرِئُهُ أَبْنَاءَنَا وَيُقْرِئُهُ أَبْنَاؤُنَا أَبْنَاءَهُمْ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ؟④فَقَالَ: ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ زِيَادُ! إِنْ كُنْتُ لَأَرَاكَ مِنْ أَفْقَهِ رَجُلٍ بِالْمَدِينَةِ! ⑤أَوَلَيْسَ هَذِهِ الْيَهُودُ وَالنَّصَارَى يَقْرَءُونَ التَّوْرَاةَ وَالْإِنْجِيلَ لَا يَعْمَلُونَ بِشَيْءٍ مِمَّا فِيهِمَا؟» ! " رَوَاهُ

[1]) اخرجه ابن ماجة کتاب الفتن/باب ذهاب القرآن والعلم (رقم-٤٠٤٨) اخرجه احمد في المسند:١٦٠/٤

أَحْمَدُ وَابْنُ مَاجَهْ، وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ عَنْهُ نَحْوَهُ.

**ترجمه:** [١]زياد بن لبيد ﷺ راوي دي [٢]چې رسول الله ﷺ د يو شي يعنى د فتنه او ابتلاء ذكر وكړو بيا يي وفرمايل دا به هغه وخت وي كله چې علم لاړ شي (په دي اوريدو سره) [٣]ما عرض وكړو چې يا رسول الله ﷺ علم به څنګه لاړ شي حالانكه زمونږ قرآن وايو خپلو بچو ته يي هم ورښايو زمونږ بچيان به يي بيا خپلو بچيانو ته ورښايي او دا سلسله به تر قيامته پورې جاري وي [٤]حضور ﷺ وفرمايل اي زياد ! ستا مور دي در باندي بوره شي ما خو ته د مديني په خلقو كې ډير غټ عالم ګڼلي [٥]آيا يهود او نصارې تورات او انجيل نه وايي؟ ليكن ددي باوجودپه دي كتابونو كې چې څه دي (يعني احكام) په هغه كې په هيڅ يو عمل نه كوي، احمد ابن ماجه، او ترمذي دغسې روايت د زياد څخه

**حل اللغات:** ① أَوَانِ : أَيْ: وَقْتَ: وخت ته وائى. ② ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ : أَيْ فَقَدَتْكَ: ستا مور دې تا ورک کړي يعنى ته دې مړ شې، په ظاهركښې دا خيرې ښكارى خو ددې نه مراد خيرې نه دى بلكه تاديب او تنبيه ده.

٢٧٨–()[٠]وَكَذَا الدَّارِمِيُّ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ.

**ترجمه:** او د غسي دارمي د ابي امامه ﷺ څخه نقل كړي دي.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا يَعْمَلُونَ بِشَيْءٍ مِمَّا فِيهِمَا:

**د اهل كتابو ګمراهى** :يعنى د تورات او انجيل تعليم جارى دې خو دهغې په مندرجاتو او تعليماتو باندې عمل كول ختم شوى دى. په دې وجه ددوئ سره د علم عمارت منهدم شوې دې. كتابونه موجود دى، د تعليم انتظام هم شته دې خو علم تلې دې. په دې وجه چې عمل نشته دې. ددې حديث څخه په واضحه توګه معلومه شوه چې دعمل انحطاط راځى د علم انحطاط دې. فكرمند علماء كرام د نصاب د اصلاح كوشش كوى. مشورو دپاسه مشورې كيږى خو اصل بيمارئى ته دچا پام نشته چې په كومه اداره كښې صرف عمله او طلباء نه بلكه انتظاميه او مربى اساتذه كرامو پورې په مونځ كښې سستى كوى او په عملى ميدان كښې روستو دى نو هلته به علمى انحطاب نه راځى نو نور به څه

[١]) اخرجه الدارمى فى السنن رقم الحديث ٢٤٠

راځي؟ نبي كريم ﷺ پيشګوئی کړې ده او هغه بالکل صحيح ثابت شوه، مونږ له د عمل اصلاح کول پکار دي.

**[٢٧٩] علم به پورته شي او فتنې به ښکاره شي**

٢٧٩ــ(١)[٤٣] [١] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " [٢] «تَعَلَّمُوا الْعِلْمَ وَعَلِّمُوهُ النَّاسَ، [٣] تَعَلَّمُوا الْفَرَائِضَ وَعَلِّمُوهَا النَّاسَ، [٤] تَعَلَّمُوا الْقُرْآنَ وَعَلِّمُوهُ النَّاسَ; [٥] فَإِنِّي امْرُؤٌ مَقْبُوضٌ، [٦] وَالْعِلْمُ سَيُنْتَقَصُ بَعْدِي، [٧] وَتَظْهَرُ الْفِتَنُ [٨] حَتَّى يَخْتَلِفَ اثْنَانِ فِي فَرِيضَةٍ لَا يَجِدَانِ أَحَدًا يَفْصِلُ بَيْنَهُمَا»، رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ، وَالدَّارَقُطْنِيُّ.

**ترجمه:** [١] ابن مسعود رضي الله عنه راوي دي [٢] چې رسول الله ﷺ ماته وفرمايل علم زده کړي او وي ښايئ [٣] علم فرائض (يا فرض احکام) زده کړي [٤] او خلقو ته يې هم وښايي (دغسي) قرآن زده کړي او خلقو ته يې هم وښايي [٥] ځکه چې بيشکه زه يو سړي يم او پورته به شم [٦] او علم به هم پورته شي [٧] او فتنې به ظاهري شي [٨] تر دي چې دوه خلق به په يوه فرض مسئله کې اختلاف کوي او هيڅوك به داسې پيدا نه کړي چې د هغه دواړو په مينځ کې فيصله وکړي (يعني د علم د کم کيدو او د فتنو زياتيدو به داحال شي. دارمي، دار قطني

**حل اللغات:** ① الْفَرَائِضَ: أُرِيدَ بِهَا فَرَائِضُ الْإِسْلَامِ أَوْ فَرَائِضُ الْإِرْثِ: دې نه مراد يا د اسلام فرض احکامات دي يا علم ميراث دي. ② مَقْبُوضٌ: أَيْ: سَأُقْبَضُ: زر ده چه زه به قبض کړې شم (يعنى زه هم ستاسو په شان انسان يم دنيا ځخه تلونکې يم ځه هميشه خوبه ژوندې نه يم، نو تاسو زما د ژوند نه فائده واخلئ). ③ سَيُنْقَبَضُ: زر ده چه قبض به شي علم يعنى پروته به کړې شي، ④ يَفْصِلُ: چه فيصله او کړي (ځکه چه علم به کم شي او فتنه به زياته شي).

**تسهيلات:**

**نوټ:** دې حديث تشريح وړاندې د مشکاة حديث نمبر (٢٣٤) په تسهيل کښې تيره شوې ده.

**[٢٨٠] دکوم علم ځخه چه نفع نه اخستل کيږي دهغې مثال**

٢٨٠ــ(٢)[٤٣] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] " «مَثَلُ عِلْمٍ لَا يُنْتَفَعُ بِهِ كَمَثَلِ كَنْزٍ لَا يُنْفَقُ مِنْهُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ» " رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [١] ابو هريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] د هغه علم مثال چې د

[1] اخرجه الدارمى فى السنن رقم الحديث ٢٢١ والدارقطنى فى السنن رقم الحديث ٤٥

[2] اخرجه احمد فى المسند: ٤٩٩/٢ و الدارمى فى السنن رقم الحديث ٥٥٦

هغه څخه نفع وانخستل شی (یعني نورو ته ونه ښودل شی او نه عمل پرې وشي) د هغه خزانې په شان دي چې هغه څخه د الله ﷻ په لار کې هیڅ خرڅ نه کړل شي. احمد، دارمي

**حل اللغات:** ① لَايُنْتَفَعُ: چه فائده ترې وانه خستلې شی (چه عمل پرې اوکړې شی او بل ته اوخودلې شی حالانکه علم فی نفسه خپله فائده مند دی). ② كَنْزٍ: خزانه.

**تسهیلات:**

**قوله:** كَمَثَلِ كَنْزٍ لَايُنْفَقُ مِنْهُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ:

**دعلم د خزانې سره د تشبیه ورکولو وجه:** یعني دَهغه علم مثال دکوم نه چه څوك څه فائده اوچته نه کړی دَ بې فائدې کیخودې شوې خزانې په شان دې دکومې نه چه یوه پیسه دَ څه ښیګړې په کار خرچ نه شی اونه په خپل بال بچ باندې خرچ کړې شی اونه ئی په خپل ځان باندې خرچ کړی. او نه ئی په قومی اجتماعی امورو کښې خرچ کړی اونه ئی په جهادفی سبیل الله کښې خرچ کړی.

**د تشبیه سره مقصود:** علامه طیبی رحمه الله فرمائی په دې تشبیه سره صرف دومره خودل مقصود دې چه دَعلم نه فائده اواستفاده نه کول داسې دی لکه چه دَ خزانې نه خرچ کول. علامه طیبی رحمه الله نور لیکی که چرې دَدې تشبیه نه مراد عام تشبیه واخستې شی نوبیا دَعلم تشبیه خزانې سره ورکول صحیح نه دی ځکه چه علم خرچ کولوسره زیاتیږی او خزانه کمیږی. علم باقی پاتې کیږی اوخزانه فانی کیږی دَعلم غلا نه کیږی او دَ خزانې غلا کیږی. [الکاشف: ۱/۳۶۵.]

الحمد لله د ډیرمحنت اوکوشش څخه روسته هغه ورځ هم راغله چې د تسهیلات دولس جلدونه تکمیل ته اورسیدل او په لسم اویولسم جلد کښې لږ غوندې کار پاتې دې ددې اول جلد څه حصه ما تبرک دپاره د مسجد نبوی په لائبریری کښې هم کړې وه او په مسجد حرام کښې مې د دې مقدمه لیکلې وه الله تعالی دې ورته د دې مبارکو ځایونو په برکت داسې مقبولیت ورکړی څنګه چې یې زما تسهیل الهدایه ته ورکړې دې او دا دې زما او زما د معاونینو د آخرت د نجات ذریعه جوړه کړی آمین بتاریخ ۲۸ ستمبر ۲۰۲۰ء

# أنوار الهلالين

## لفواید قیودات الجلالین

پښتو ترجمه　څلور جلدونه مکمل

# جمالین شرح جلالین

شارح: محمد جمال بلندشهری

مدرس د دارالعلوم دیوبند

پښتو مترجم: مولانا شاه فیصل

فاضل دارالعلوم اسلامیه چارسده، امداد العلوم پېښور، وفاق المدارس

### خصوصیات

① لغوی تحقیق. چې ددې لفظ په لغت کښې څه معنی ده.
② صرفی تحقیق مثلاً دا کلمه د څه صیغه ده وغیره
③ نحوی تحقیق مثلاً دا کلمه په ترکیب کښې څه واقع شوې ده.
④ بلاغی تحقیق چې په دې اضافي قید کښې کومه بلاغی نکته ده.
⑤ فقهي تحقیق چې په دې اضافي قید سره کومې مسئلې ته اشاره ده.
⑥ د قراءت تحقیق چې په دې مقام کښې دا قراءت څنګه دې.
⑦ تقدیرات راویستل چې دلته کوم لفظ مقدر پروت دې.
⑧ د تقدیری عبارا تو وجه او سبب بیانول.

خورونکی

فیصل کتب خانه

محله جنګی پېښور موبائل نمبر: ۰۳۱۵۹۵۹۵۷۱۷